# فتح الهداية



## هداية

داول حل لپاره په آسانه معیاري پښتو
دهدایې یوه جامع شرحه

زیار او ترتیب
مولوی حبیب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربیه

صداقت کتبخانه
کندهار

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

پښتو شرح

# هدايه

د اول ټل لپاره په آسانه معياري پښتو

د هدايې يوه جامع شرحه

د حديثونو تخريج

پر فقهي او ضروري معلوماتو مشتمله يوه جامع مقدمه

تعيين د قول راجح

د متن بشپړ اعراب

د هري جملي تر څنګ ژباړه

صرفي تحقيق

د عنوانا تو اضافه

د لغاتو حل

نهم ټوک

صورت د مسئلې

کتاب العارية - کتاب الغصب


ژباړه او ترتيب:

مولوی حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربية



صداقت کتب خانه- کندهار

بسم الله الرحمن الرحيم



**د کتاب پېژندنه**


| | |
|---|---|
| ❁ د کتاب نوم | : **فتح الهدایه پښتو شرح هدایه** |
| ❁ ژباړه او ترتیب | : مولوي حبیب الرحمن مدني |
| ❁ ټوک | : نهم |
| ❁ خپرندوی | : **صداقت کتب خانه**/ کندهار |
| ❁ کمپوز/ ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| ❁ د چاپ کال | : ۱۳۹۸ ل./ ۱٤٤۰ هـ.ق. / ۲۰۱۹ م. |
| ❁ چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |

د تر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار – افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

ایمېل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

# كِتَابُ الْعَارِيَّةِ

## (دا) كتاب د عاريت (د احكامو په بيان كي) دی

**تشريح**: د وديعت سره متصل د عاريت بيانولو وجه دا ده چي عاريت (په خواست غوښتل سوی) امانت وي لکه څرنګه چي وديعت (امانتاً ايښوول سوی شی) امانت دی، يعني وديعت او عاريت دواړه په امانت کېدلو کي سره مشترک دي، لېکن څرنګه چي په وديعت کي د امانت اړخ غالب وي، نو ځکه هغه مخکي بيان سوی دی او تر هغه وروسته عاريت بيان سوی دی.

**د عاريت لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: "عَارِيَّة" او "عَارِيَة" د ياء په تشديد او تخفيف دواړو سره نقل سوي دي، خو د ياء په تشديد سره فصيح او مشهوره لغت دی، "عَارِيَّة" پر وزن د "فَعَلِيَّةٌ" دی، لغوي معنیٰ يې ده: عاريتاً اخيستل سوی شی يعني "په خواست غوښتل سوی شی".

عاريت له "عَار" څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ ده، عيب، پيغور. عاريت (په خواست غوښتل سوي شي) ته ځکه عاريت وايي چي په خواست (په عاريت) شی غوښتل يو ډول عيب دی کوم چي د اخيستونکي لپاره د پيغور سبب ګرځي. او صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي عاريت له "عَرِيَّة" څخه دی چي د هغه معنیٰ ده: عطيه، يعني بغير له عوضه (مفت) يو چا ته شی ورکول، لېکن په دې هکله علامه بدرُ الدين عيني او داسي نورو حضراتو مناقشه کړې ده. صاحب د مصباحُ المنير د عاريت لفظي وضاحت داسي کړی دی: "العَارِيَّةُ" أَصْلُهُ فَعَلِيَّةٌ بِفَتْحِ العَيْنِ. قَالَ الأَزهريّ: نِسبَةٌ إِلَى "الْعَارَةِ"، وَهِيَ اِسْمٌ مِنَ "الإِعَارَةِ"، يُقَالُ: أَعَرْتُهُ الشَّيْءَ إِعَارَةً... وقال الليث: سُمِيَّتْ عَارِيَةً لِأَنَّهَا عَارٌ عَلَى طَالِبِهَا. لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه.

د عاريت اصطلاحي معنیٰ ده: "تَمْلِيكُ مَنْفَعَةٍ بِلَا بَدَلٍ" (يعني بغير له عوضه يو څوک د خپل شي د منفعت مالک کول).

خلاصه دا چي عاريت "په خواست غوښتل سوي شي" ته وايي او خواست کونکي (عاريتاً غوښتونکي) ته "مُسْتَعِيْر" وايي، او په خواست ورکونکي ته "مُعِيْر" وايي، او د "إِعَارَة" معنیٰ ده: عاريتاً ورکول يعني د خواست په توګه ورکول، مثلاً که زيد وخالد ته خواست وکړي چي د يو څو

وخت لپاره فلانکی شی په امانت راکړه! زه کار (منفعت) ځنې اخلم، او خالد هغه شی وزید ته ورکړي، نو دې ته عاریتاً ورکول وایي، زید ته "مُسْتَعِيْر" او خالد ته "مُعِيْر" وایي.

## د عاریت حقیقت او حکم

قَالَ: اَلْعَارِيَةُ جَائِزَةٌ فرمايي: عاريت جائز دی لِأَنَّهَا نَوْعُ إِحْسَانٍ ځکه چي دا یو ډول احسان دی «وَقَدِ اسْتَعَارَ النَّبِيُّ عليه السلام دُرُوْعًا مِنْ صَفْوَانَ» [1] او نبي کریم ﷺ له صفوان بن امیه څخه یو څو زغري په عاریت اخیستي وې وَهِيَ تَمْلِيْكُ الْمَنَافِعِ بِغَيْرِ عِوَضٍ او عاريت بغير له عوضه د منافعو مالک کول دي وَكَانَ الْكَرْخِيُّ يَقُوْلُ: هُوَ إِبَاحَةُ الْاِنْتِفَاعِ بِمِلْكِ الْغَيْرِ او امام کرخي رَحِمَهُ الله به فرمایل: چي عاريت د بل چا په ملکیت سره د نفعي اخیستلو اباحت [مباح کول] دي، لِأَنَّهَا تَنْعَقِدُ بِلَفْظَةِ الْإِبَاحَةِ ځکه چي عاریت د اباحت په لفظ سره هم منعقد کیږي وَلَا يُشْتَرَطُ فِيهَا ضَرْبُ الْمُدَّةِ او په عاريت کي مودت ټاکل شرط نه دي وَمَعَ الْجَهَالَةِ لَا يَصِحُّ التَّمْلِيْكُ حالانکي د جهالت سره تمليک [مالک کول] نه صحيح کيږي وَكَذٰلِكَ يَعْمَلُ فِيهَا النَّهْيُ وَلَا يَمْلِكُ الْإِجَارَةَ مِنْ غَيْرِهِ او همدارنګه په عاریت کي نهي عمل کوي او مستعیر دا ملکیت [اختیار] نه لري چي [مستعار شی] بل چا ته په اجاره ورکړي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: إِنَّهُ يُنْبِئُ عَنِ التَّمْلِيْكِ او موږ وايو: چي عاريت د تمليک خبر ورکوي فَإِنَّ الْعَارِيَةَ مِنَ الْعَرِيَّةِ وَهِيَ الْعَطِيَّةُ ځکه چي عاریت له "عرية" څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ ده عطیه وَلِهٰذَا تَنْعَقِدُ بِلَفْظِ التَّمْلِيْكِ په همدې وجه د تمليک په لفظ سره عاريت منعقد کیږي. وَالْمَنَافِعُ قَابِلَةٌ لِلْمِلْكِ كَالْأَعْيَانِ او [د شیانو] منافع هم د شیانو په څېر په ملکیت کي د راتللو قابل دي [مثلاً موټر یو عَین شی دی او د هغه منفعت سپرتیا ده. نو څرنګه چي موټر (په رانیولو او داسي نورو) سره په ملکیت کي راتلای سي، همداسي یوازي د هغه منفعت یعني سپرتیا هم (په کرایه نیولو، په خواست غوښتلو او داسي نورو) سره په ملکیت کي راتلای سي] وَالتَّمْلِيْكُ نَوْعَانِ: بِعِوَضٍ وَبِغَيْرِ عِوَضٍ او مالک کول [مالک جوړول] پر دوه قسمه دي: [۱] په عوض سره مالک کول [۲] بغير له عوضه [مُفت] مالک کول ثُمَّ الْأَعْيَانُ تَقْبَلُ النَّوْعَيْنِ

[1] تخريج: رواه النسائي في سننه الكبرىٰ، رقم الحديث: ۵۷۸۰. والحاكم في مستدركه، رقم الحديث: ۲۳۰۱.

فَكَذَا الْمَنَافِعُ او عَين شيان دغه دواړه قسمه تمليک قبلوي نو همداسي به منافع هم دواړه قبلوي وَالْجَامِعُ دَفْعُ الْحَاجَةِ او [په دواړو کي] علتِ جامع د حاجت دفع کول دي وَلَفْظَةُ الْإِبَاحَةِ اُسْتُعِيرَتْ لِلتَّمْلِيْكِ او د اباحت لفظ د تمليک لپاره مستعار اخيستل سوی دی كَمَا فِي الْإِجَارَةِ لکه څرنګه چي په اجاره کي دي فَإِنَّهَا تَنْعَقِدُ بِلَفْظَةِ الْإِبَاحَةِ ځکه چي اجاره هم د اباحت په لفظ سره منعقد کيږي وَهِيَ تَمْلِيكٌ حال دا چي هغه تمليک دی وَالْجَهَالَةُ لَا تُفْضِيْ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او دا جهالت جنګ [او اختلاف] ته رسول نه کوي [يعني د اختلاف او دعوې سبب نه جوړيږي] لِعَدَمِ اللُّزُومِ ځکه چي دا تمليک لازم نه دی [بلکي عارضي دی] فَلَا تَكُوْنُ ضَائِرَةً نو ځکه به جهالت مضر نه وي وَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَثْبُتُ بِالْقَبْضِ وَهُوَ الِانْتِفَاعُ او ځکه چي ملکيت په قبضه کولو يعني په نفع اخيستلو سره ثابتيږي وَعِنْدَ ذٰلِكَ لَا جَهَالَةَ او د نفع اخيستلو په وخت کي هيڅ جهالت نه وي وَالنَّهْيُ مَنْعٌ عَنِ التَّحْصِيلِ او نهي [د منافعو] له حاصلولو څخه منع کوي [يعني په عاريت کي نهي ځکه عمل کوي چي هغه له تحصيلِ منافع څخه مانع ګرځي] فَلَا يَتَحَصَّلُ الْمَنَافِعَ عَلٰى مِلْكِهِ نو [تر نهي وروسته] به مستعير په خپل ملکيت کي منافع نه سي حاصلولای وَلَا يَمْلِكُ الْإِجَارَةَ لِدَفْعِ زِيَادَةِ الضَّرَرِ او مستعير ځکه د اجارې ملکيت نه لري چي [له مالک څخه] زائد ضرر دفع سي عَلٰى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى لکه څرنګه چي وروسته به موږ دا انشاء الله ذکر کړو.

**اللغات**: ﴿استعار﴾ د استفعال ماضي ده: په عاريت اخيستل، په خواست غوښتل (مثلاً يو چا ته خواست کول چي ته! ديو څو وخت لپاره دا شی اماتناً راکړه!)، ﴿دُرُوْع﴾ جمع د دِرْعٌ: ده زغره، ﴿ضربُ المدة﴾ مودت ټاکل، وخت بيانول، ﴿العطية﴾ ورکړه، بغير له عوضه (مُفت) يو چا ته شی ورکول، ﴿إباحة﴾ د افعال مصدر دی: مباح کول، روا کول، روا ګرځول، ﴿انتفاع﴾ د افتعال مصدر دی: نفع اخيستل (نفع حاصلول)، فايده اخيستل، ﴿الأعيان﴾ متعين شيان، مادي شيان چي زموږ په عامه اصطلاح مطلقاً هغه ته شيان وايي، ﴿تُفضي﴾ د افعال مضارع ده: رسېدل، رسول، سبب جوړېدل (باعث ګرځېدل)، ﴿ضائرة﴾ مضر، نقصاني (نقصان مند).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د عاريت (خواست) په توګه يو شی اخيستل او ورکول جائز دي؛ ځکه نبي کريم ﷺ هم داسي کړي دي، لکه څرنګه چې په ابو داؤد، نسائي او داسي نورو کي په مختلفو الفاظو سره دا حديث نقل سوی دی "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اِسْتَعَارَ مِنْ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ دُرُوْعًا يَوْمَ حُنِيْن، فَقَالَ: أَغَصْبٌ يَا مُحَمَّد ﷺ، قَالَ: بَلْ عَارِيَةٌ مَضْمُوْنَةٌ...إلخ" (يعني نبي کريم ﷺ د غزوه حُنين په ورځ له صفوان بن اُميه څخه يو څو زغري د عاريت په توګه واخيستې، نو هغه وويل چې اې محمد ﷺ آيا ته دا زغري غصباً اخلې!، نو نبي ﷺ وفرمايل: چې نه! بلکي عاريتاً يې اخلم چې که هغه ضايع سي نو ضمان [تاوان] يې درکوم[1]). له دې څخه معلومه سوه چې عاريت جائز دی او که مستعار (په خواست اخيستل سوی) شی ضايع سي نو پر مستعير د هغه ضمان واجبيږي.

اوس پاته سوه دا مسئله چې عاريت "تمليكُ المنافع" دی او که "اباحةُ الانتفاع" دی؟، نو زموږ او د جمهورو علماؤ په نيز عاريت "تمليكُ المنافع بدون العوض" دی، لېکن د امام کرخي رَحِمَهُ الله په نيز عاريت "اباحةُ الانتفاع" دی؛ ① د هغه اول دليل دا دی چې عاريت د اباحت په لفظ سره منعقد کيږي، مثلاً که مُعير داسي ووايي: "أَبَحْتُ لَكَ هٰذَا الثَّوْبَ" نو دا عاريت ګرځي، حال دا چې تمليک د اباحت په لفظ سره نه منعقد کيږي. ② دويم دليل دا دی چې په عاريت کي موده بيانول (وخت ټاکل) شرط نه دي، حالانکي که عاريت تمليک وای نو په هغه کي به موده بيانول شرط وای، ځکه چې د مودې د جهالت په صورت کي تمليک نه صحيح کيږي. ③ دريم دليل دا دی چې په عاريت کي نهي او منع مؤثر ګرځي، يعني که مُعير (مالک) و مستعير ته داسي ووايي چې "د آينده لپاره زما له مستعار شي څخه کار مه اخله!"، نو دا منع مفيد ګرځي، تر دې چې په دې منع سره عاريت ختميږي، حال دا چې که عاريت تمليک وای، نو معير ته به د منع کولو اختيار نه وای، لکه څرنګه چې په هبه او اجاره کي هغه ته د دې اختيار نسته. ④ څلورم دليل دا دی چې مستعير دا اختيار نه لري چې مستعار شی په اجاره (په کرايه) ورکړي، حال دا چې په تمليک کي مالک د اجارتاً ورکولو اختيار لري. له دغو دلائلو څخه معلومه سوه چې عاريت اباحت دی، تمليک نه دی.

---

[1] دا حديث په سنن نسائي کي په داسي الفاظو سره نقل سوی دی: عن عبد الرحمن بن صفوان بن أمية أن رسول الله ﷺ استعار من صفوان بن أمية دروعًا فهلك بعضها، فقال رسول الله ﷺ: إن شئتَ غرمناها قال: لا يا رسول الله ﷺ. (يعني نبي ﷺ له صفوان بن اُميه څخه يو څو زغري عاريتاً واخيستې، بيا بعضي زغري ضايع سوې، نو نبي ﷺ وفرمايل: چې که ته وغواړې!، نو د هغه ضمان به درکړم، هغه په جواب کي وويل: چې نه! اې د الله رسوله!).

ونحن نقول إلخ: زموږ دليل او د امام کرخي رَحِمَهُ الله د دلائلو جواب دا دی چي عاريت له "عرية" څخه مشتق دی او د "عرية" معنیٰ ده عطيه، يعني يو څوک بلا عوضه ديو شي مالک جوړول، همدا وجه ده که يو څوک بل چا ته ووايي "مَلَّكْتُكَ مَنَافِعَ هٰذِهِ السَّيَّارَةِ" (ما ته ددې موټر د منافعو [اسپرتيا] مالک جوړ کړې!)، نو که څه هم په دې جمله کي د تمليک لفظ استعمال سوی دی خو بيا هم دا عاريت او اعاره (عاريتاً ورکول) ګرځي او د تمليک په لفظ سره منعقد کيږي. او بل تاسي دا په ياد لرئ! چي تمليک پر دوه قسمه دی: ① تمليک بالعوض، لکه خرڅول، رانيول او داسي نور، ② تمليک بدون العوض، لکه هبه، صدقه او داسي نور، او په اعيانو (شيانو) کي دواړه ډوله تمليک جائز او صحيح دی، لهذا په منافعو کي به هم دواړه ډوله تمليک جائز وي، لکه څرنګه چي د تمليک بالعوض مثال اجاره ده او د تمليک بدون العوض مثال اعاره او عاريت دی، او خلک چي څرنګه د اعيانو تمليک ته محتاج دي، همداسي د منافعو تمليک ته هم محتاج دي، بلکي د دغه ګرانۍ په عالَم کي د منافعو تمليک ته زيات ضرورت سته، نو ځکه دا عاريت به تمليک وي.

ولفظ الإباحة إلخ: له دې ځايه د امام کرخي رَحِمَهُ الله د دلائلو جواب ورکوي: ① د اول دليل جواب دا دی چي د اباحت د لفظ په ذريعه د عاريت په منعقد کېدلو سره دا نه لازميږي چي عاريت اباحت الانتفاع دی؛ ځکه د اباحت لفظ د تمليک لپاره مستعار اخيستل سوی دی، لکه څرنګه چي د اجارې لپاره هم دا لفظ مستعار اخيستل سوی دی يعني د اباحت په لفظ سره اجاره منعقد کيږي، حال دا چي اجارې ته تاسو (امام کرخي) هم تمليک المنافع واياست، اباحت المنافع يا اباحت الانتفاع نه ورته وايي. ② د دويم دليل جواب دا دی چي د عاريت والا په تمليک کي چي کوم جهالت وي، هغه د نزاع او اختلاف سبب نه ګرځي، ځکه چي دا ابدي تمليک نه وي بلکي د يو څو وخت لپاره (عارضي) تمليک وي (او تاسو ته معلومه ده چي کوم جهالت مُفضِي إلى النزاع نه ګرځي، هغه معتبر نه دی). او بله خبره دا ده چي دلته ګرسره جهالت سته نه؛ ځکه دلته ملکيت د قبضې يعني د نفعي (منفعت) اخيستلو په وخت کي ثابتيږي او د نفع اخيستلو په وخت کي هيڅ جهالت نه وي. ③ د درېيم دليل جواب دا دی چي په عاريت کي د نهي د مؤثر کېدلو وجه دا ده چي تر دغه نهي او منع وروسته مستعير ته له مستعار شي څخه د نفع اخيستلو اختيار نه وي، او څرنګه چي دا تمليک عارضي وي نو ځکه مالک ته هر وخت دا اختيار پاتيږي چي کله هم د ده خوښه وي، مستعير له نفعي اخيستلو څخه منع کړي. ④ د څلورم دليل جواب دا دی چي که مستعير ته د اجارې اجازت ورکول سي چي هغه مستعار شی په اجاره (په کرايه) ورکړي، نو په دې سره به مالک يعني معير ته زيات نقصان ورسيږي او د هغه اختيار به ختم سي يعني تر دې وروسته به له مستعير څخه خپل شی نه سي اخيستلای؛ ځکه چي اجاره لازم عقد دی

کوم چې پر مستعیر او معیر دواړو لازمیږي، او په هغه کې چې کوم أجرت او کرایه وي، هغه به دلته مستعیر ته حاصلیږي او په دې توګه به د عاریت او استعارې دروازه بنده سي، نو ځکه مستعیر ته د دې اجازت نه دی ورکول سوی. او په دې سلسله کې به نور بحث او کلام انشاء الله په آینده کې ذکر سي. (احسن الهدایه)

## د عاریت د الفاظو بیان

قَالَ: وَتَصِحُّ بِقَوْلِهِ: أَعَرْتُكَ فرمایي: او عاریت صحیح کیږي د مُعِیر په دې قول سره: ما تا ته په عاریت درکړی لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِيهِ ځکه چې دا [د اعرتُ] لفظ په عقدِ عاریت کې صریح دی وَأَطْعَمْتُكَ هٰذِهِ الْأَرْضَ او ما تا ته دا ځمکه د خوراک لپاره درکړه لِأَنَّهُ مُسْتَعْمَلٌ فِيهِ ځکه چې دا لفظ [هم] په عقدِ عاریت کې [مجازاً] مستعمل دی وَمَنَحْتُكَ هٰذَا الثَّوْبَ وَحَمَلْتُكَ عَلٰى هٰذِهِ الدَّابَّةِ إِذَا لَمْ يُرِدْ بِهِ الْهِبَةَ او ما تا ته دا کپړه درکړه یا ما ته! پر دې څاروي سپور کړې! [نو په دې الفاظو سره هم عاریت صحیح کیږي] په دې شرط چې معیر [مالک] به په دې سره هبه مراد کړې نه وي لِأَنَّهُمَا لِتَمْلِيكِ الْعَيْنِ ځکه چې دا دواړه الفاظ د عَین شي د تملیک لپاره دي وَعِنْدَ عَدَمِ إِرَادَتِهِ الْهِبَةَ يُحْمَلُ عَلٰى تَمْلِيكِ الْمَنَافِعِ تَجَوُّزًا او د هبې نه مرادولو په صورت کې به هغه مجازاً د منافعو پر تملیک حمل کیږي قَالَ: وَأَخْدَمْتُكَ هٰذَا الْعَبْدَ فرمایي: ما دا غلام تا ته د خدمت لپاره درکړی [نو په دې لفظ (أخدمتُ) سره هم عاریت صحیح کیږي] لِأَنَّهُ إِذْنٌ لَهُ فِي اسْتِخْدَامِهِ ځکه چې دا له غلام څخه د خدمت اخیستلو اجازت دی وَدَارِيْ لَكَ سُكْنٰى او زما کور ستا استوګه ده [یا ترجمه دا چې: زما کور ستا د استوګې (اوسېدلو) ځای دی] لِأَنَّ مَعْنَاهُ سُكْنَاهَا لَكَ ځکه د دې معنیٰ ده: چې د هغه اوسېدل ستا لپاره دي [یعني ما تا ته د اوسېدلو لپاره کور درکړی] وَدَارِيْ لَكَ عُمْرٰى سُكْنٰى او زما کور ټوله عمر ستا استوګه ده لِأَنَّهُ جَعَلَ سُكْنَاهَا لَهُ مُدَّةَ عُمُرِهِ وَجَعَلَ قَوْلَهُ سُكْنٰى تَفْسِيرًا لِقَوْلِهِ لَكَ ځکه چې هغه [مُعِیر] د خپل عمر د مودت په اندازه د کور اوسېدل د ده لپاره وټاکل او هغه خپل دا قول "سُکنیٰ" د "لکَ" لپاره تفسیر وګرځوی لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ تَمْلِيكَ الْمَنَافِعِ ځکه چې "لکَ" د منافعو د مالک کولو احتمال لري [چې د دې کور منفعت ستا لپاره دی او هغه د منفعت تفسیر په "سُکنیٰ" سره وکړی چې "اوسېدل" یې ستار لپاره دي] فَحُمِلَ عَلَيْهِ

بِدَلَالَةِ آخِرِهٖ نو ځکه "لك" به د کلام د آخري لفظ "سُکنیٰ" په دلالت سره د منافعو پر تمليک حمل کيږي قَالَ: وَلِلْمُعِيْرِ أَنْ يَّرْجِعَ فِي الْعَارِيَةِ مَتٰى شَاءَ فرمايي: او عاريت ورکونکي ته دا اختيار سته چي کله د ده خوښه وي، له عاريت څخه رجوع وکړي لِقَوْلِهٖ عليه السلام: «اَلْمِنْحَةُ[1] مَرْدُوْدَةٌ وَالْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چي: "ورکول سوی شی به واپس کول کيږي او په خواست غوښتل سوی شی به واپس رسول کيږي [اداء کول کيږي]" وَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ تُمْلَكُ شَيْئًا فَشَيْئًا عَلٰى حَسَبِ حُدُوثِهَا او ځکه چي منافع لږ لږ [په کراره، کراره] په ملکيت کي راځي د خپل پيدا کېدلو په حساب سره [يعني څومره منفعت چي في الحاله موجود وي صرف هغه په ملکيت کي داخليږي (يعني مستعير او مستأجر صرف د موجودېدونکي منفعت مالک کيږي) او کوم منفعت چي تر اوسه په وجود کي راغلي نه وي هغه په ملکيت کي نه داخليږي] فَالتَّمْلِيكُ فِيمَا لَمْ يُوجَدْ لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الْقَبْضُ لهذا کوم منافع چي موجود سوي نه وي په هغوی کي قبضه د تمليک سره متصل نه سوه [په بله وينا: لهذا په نا موجوده منافعو کي تمليک د قبضې سره متصل نه سو. په بله وينا: د نا موجوده منافعو سره قبضه متصل نه سوه] فَيَصِحُّ الرُّجُوعُ عَنْهُ نو ځکه له هغوی څخه رجوع کول صحيح دي.

**اللغات**: ﴿أعرتُ﴾ د افعال له بابه د واحد متکلم ماضي ده: عاريتاً ورکول (د خواست په توګه ورکول)، مثلاً زيد خالد ته خواست وکړي چي فلانکی شی ما ته د يو څو وخت لپاره امانتاً راکړه!، او خالد هغه شی ورکړي، نو دې ته عاريتاً ورکول وايي، زيد ته مستعير وايي او خالد ته معير وايي، ﴿منحتك﴾ د فتح د باب مخکني صيغه ده: ورکول، هبه کول (هديه کول)، عطا کول، ﴿سکنی﴾ د دې لفظ څو معناوي ودي: استوګه، استوګنه (اوسېدل)، د اوسېدلو ځای (مقام)، ﴿عمری﴾ د افعال له بابه اسم دی، أَعْمَرَ: د ټوله عمر لپاره هبه کول، يعني د خپل عمر يا د مخاطب د عمر په اندازه هغه ته يو شی ورکول، مثلاً خالد و زيد ته داسي ووايي "چي تر څو تـه ژوندی يې! زما دا کور ستا دی لېکن ستا تر مرګ وروسته به بيرته ما ته واپس کيږي (يا ستا تر مرګ وروسته بيرته زما دی)"، نو دې ته عمریٰ وايي، خالد ته مُعْمِر وايي او زيد ته مُعْمَر لَهٗ وايي. عمریٰ صحيح ده لېکن د واپس کولو شرط باطل دی، يعني دا

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، باب في تضمين العارية، حديث رقم: ۳۵۶۷. و الترمذي، باب ما جاء لاوصية لوارث، حديث رقم: ۲۱۲۰. وابن ماجه، باب العارية، حديث رقم: ۲۳۹۹.

کور د همېشه لپاره د معمر لهٔ (زيد) کور ګرځي او د هغه تر مرګ وروسته به مُعْمِر ته نه واپس کيږي،

﴿مردودة﴾ د نصرله بابه د واحد مؤنث اسم مفعول صيغه ده: رڈ کړی سوی، واپس کړی سوی.

﴿مؤداة﴾ د تفعيل له بابه مخکنۍ صيغه ده: اداء کړی سوی، رسول سوی.

**تشريح**: عبارت واضح دی چي له ترجمې څخه هم د هغه مطلب ښکاره کيږي، او په دې عبارت کي د هغه الفاظو بيان دی چي په هغوی سره عاريت منعقد کيږي، او صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په خپله د هغوی علت هم بيان کړی دی، لهذا د مذکوره الفاظو تشريح ته څه ضرورت نسته، لېکن د عبارت په آخري حصه کي چي کوم دا مضمون بيان سوی دی چي معير هر کله وغواړي، له مستعير څخه عاريت واپس اخيستلای سي، د هغه تشريح دا ده چي عاريت برابره ده مطلق وي او که مؤقت وي (يعني مُعِير د هغه لپاره وخت ټاکلی وي چي "زما شی به ته! ما ته مثلاً درې ورځي وروسته واپس راکوې!")، په دواړو صورتونو کي معير (مالک) ته هر وخت د مستعار شي د واپس اخيستلو اختيار سته؛ ځکه چي د نبي کريم ﷺ دا فرمان مطلق دی "اَلمِنْحَةُ مَرْدُوْدَةٌ وَالْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ"، او "منحه" او "منيحه" مطلق هغه شي ته وايي کوم چي بل چا ته د نفعي اخيستلو لپاره يو څو وخت ورکول سي، خو په اصل کي "منحه" د عاريت يو خاص قسم ته وايي چي د هغه صورت دا دی چي يو څوک بل سړي ته خپله بزه يا غوا يا اُوښه د دې لپاره ورکړي چي هغه يې شيدې استعمال کړي او کله چي يې شيدې وچي سي (يعني بزه يا اوښه... وچه سي)، نو هغه يې بېرته مالک ته واپس کړي (حاصل دا چي په اصل کي دغه ډول بزې، اُوښې او غوا ته "منحه" وايي، لېکن وروسته دا لفظ د کثرتِ استعمال په وجه د مطلق هغه ورکول سوي شي لپاره مستعمل وګرځېدی کوم چي د انتفاع لپاره يو څه وخت ورکول سي). او عاريت عام دی يعني هر ډول شی په خواست او په عاريت ورکول په هغه کي داخل دي او "منحة" او "عارية" دواړه خپل مالک ته واپس کيږي، خو د عاريت واپس کول واجب دي او د ضايع کېدلو په صورت کي د هغه ضمان هم لازميږي، لېکن د منحه د ضايع کېدلو په صورت کي د هغه ضمان زياتره خلک نه اخلي. د عاريت واپس اخيستلو بل دليل دا دی چي منافع په يوه ځل نه حاصليږي بلکي لږ، لږ حاصليږي او په هغه حساب سره (لږ، لږ) په ملکيت کي داخليږي يعني څومره منافع چي پيدا کيږي، پر هغومره قدر منافعو مستعير قابض کيږي، او پر ناموجوده (غيرِ حاصل شده) منافعو د هغه قبضه هم نه ثابتيږي، او تاسو ته معلومه ده چي له قبضې څخه مخکي رجوع کول صحيح دي. نو په دې وجه به هم معير (مالک) ته هر وخت د مستعار شي د واپس اخيستلو اختيار وي. لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز په مؤقت عاريت کي له وخت څخه مخکي مستعار شی واپس اخيستل جائز نه دي، فيکونُ حکمها عنده کالإجارة.

## د عاريت هلاکېدلو (ضايع کېدلو) حکم او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

قَالَ: وَالْعَارِيَةُ أَمَانَةٌ فرمايي: او د عاريت شی [په خواست غوښتل سوی شی] امانت دی إِنْ هَلَكَتْ مِنْ غَيْرِ تَعَدٍّ كه چيري بغير له تعدی هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ نو مستعير نه ضامن كيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضْمَنُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه ضامن كيږي لِأَنَّهُ قَبَضَ مَالَ غَيْرِهِ لِنَفْسِهِ لَا عَنْ اِسْتِحْقَاقٍ ځكه چي مستعير بغير له استحقاقه د بل چا پر مال د ځان لپاره قبضه كړې ده فَيَضْمَنُهُ نو ځكه به هغه ضامن كيږي وَالْإِذْنُ ثَبَتَ ضَرُورَةَ الِانْتِفَاعِ او د مالک [مُعير] اجازت د نفع اخيستلو د ضرورت په وجه ثابت سوی دی فَلَا يَظْهَرُ فِيمَا وَرَاءَهُ نو ځكه له ضرورته په ماسوا كي به اجازت نه ښكاره كيږي [يعني د ضرورت له ځايه بغير بل ځای به دا اجازت نه ثابتيږي] وَلِهَذَا كَانَ وَاجِبَ الرَّدِّ او له همدې كبله د عاريت واپس كول واجب دي وَصَارَ كَالْمَقْبُوضِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ او دا داسي سوه لكه د رانيولو په نيت قبضه كړی سوی شی وَلَنَا: أَنَّ اللَّفْظَ لَا يُنْبِئُ عَنِ الْتِزَامِ الضَّمَانِ زموږ دليل دا دی: چي د عاريت لفظ د ضمان لازمولو خبر نه وركوي لِأَنَّهُ لِتَمْلِيكِ الْمَنَافِعِ بِغَيْرِ عِوَضٍ أَوْ لِإِبَاحَتِهَا ځكه چي هغه بغير له عوضه د منافعو د تمليک يا اباحت لپاره وضع سوی دی وَالْقَبْضُ لَمْ يَقَعْ تَعَدِّيًا او قبضه كول تعدی [ناحقه تصرّف] نه ګرځي لِكَوْنِهِ مَأْذُونًا فِيهِ ځكه چي د قبضې په هكله [د مالک له طرفه] اجازت وركول سوی دی وَالْإِذْنُ وَإِنْ ثَبَتَ لِأَجْلِ الِانْتِفَاعِ فَهُوَ مَا قَبَضَهُ إِلَّا لِلِانْتِفَاعِ او [د مالک له طرفه] اجازت كه څه هم د نفعي حاصلولو په وجه ثابت دی خو مستعير هم صرف د نفعي حاصلولو لپاره پر مستعار شي قبضه كوي فَلَمْ يَقَعْ تَعَدِّيًا نو ځكه د هغه قبضه به تعدی نه ګرځي وَإِنَّمَا وَجَبَ الرَّدُّ مُؤْنَةً او [پر مستعير] د واپس كولو واجبېدل د خرچې په وجه دي كَنَفَقَةِ الْمُسْتَعَارِ فَإِنَّهَا عَلَى الْمُسْتَعِيرِ لكه د مستعار [په خواست غوښتل سوي غلام يا څاروي] نفقه، چي هغه پر مستعير واجبيږي لَا لِنَقْضِ الْقَبْضِ نه د قبضې ماتولو لپاره [يعني دا واپس كول د قبضې ختمولو لپاره نه واجبيږي] وَالْمَقْبُوضُ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ مَضْمُونٌ بِالْعَقْدِ او د رانيولو په نيت چي پر كوم شي قبضه وسي، هغه شی د عقد په وجه مضمون كيږي [يعني د هغه ضمان د عقد په وجه لازميږي] لِأَنَّ الْأَخْذَ فِي

الْعَقْدِ لَهُ حُكْمُ الْعَقْدِ ځکه چې د عقد شروع کولو لره د عقد حکم حاصل دی [یعني د رانیولو په نیت پر یو شي قبضه کول او په دې توګه په عقد شروع کول حکماً داسي دي لکه عقد کول] عَلىٰ مَا عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ لکه څرنګه چې دا په خپل ځای کي معلوم سوي دي.

**اللغات**: ﴿تعدّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تعدي یعني تجاوز کول، نا حقه تصرف کول، ﴿انتفاع﴾ د افتعال مصدر دی: نفع اخیستل (نفع حاصلول)، ﴿سوم الشراء﴾ "سَوْم" د نصر د باب مصدر دی، معنیٰ یې ده: نرخ او قیمت ټاکل، نرخ معلومول، "شراء" رانیولو ته وایي، "مقبوض علیٰ سوم الشراء" هغه شي ته وایي کوم چې د قیمت ټاکلو او معلومولو لپاره له بائع څخه واخیستل سي (یعني بائع ووایي چې دا شی زه په لس درهمه خرڅوم، او مشتري ورته ووایي چې زه یې وړم، قیمت یې معلوموم، که مي خوښ سو نو هغه رانیسم، کنې نه یې رانیسم، د داسي شي په هلاکېدلو سره پر مشتري ضمان واجبیږي)، په لنډه توګه چې مقبوض علی سوم الشراء هغه شي ته وایي کوم چې د رانیولو په نیت له بائع (دوکاندار) څخه واخیستل سي، ﴿التزام﴾ مخکنی صیغه ده: پر ځان لازمول، په خپله ذمه لازمول، ﴿المستعار﴾ د استفعال اسم مفعول دی: په عاریت (په خواست) اخیستل سوی شی، ﴿نقض﴾ د نصر مصدر دی: ماتول، ختول، ﴿الأخذ﴾ د نصر مصدر دی، د دې باب په صله کي چې "فِيْ" ذکر سي لکه دلته چې ذکر سوې ده "الأخذ في"، نو معنیٰ یې ده: شروع کول، پیل کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د عاریت شی د مستعیر په قبضه کي امانت دی او که چیري د هغه له تعدی او نا حقه تصرف څخه بغیر د عاریت شی ضایع سي، نو زموږ پر نېز پر مستعیر د هغه ضمان نه واجبیږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مستعیر ضامن کیږي. (ها! که چیري د مستعیر په تعدی او زیاتوب سره د عاریت شی ضایع سي نو بالاتفاق هغه ضامن کیږي)

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې مستعیر پر کوم شي قبضه کوي هغه د بل چا (مُعیر) شی او مال وي او مستعیر د هغه مستحق نه وي بلکي بغیر له څه استحقاقه یې اخلي، لهذا پر مستعیر به د هغه حفاظت کول ضروري وي او که هغه شی ضایع سي نو مستعیر به د هغه ضامن کیږي، برابره ده د هغه له طرفه تعدی سوې وي، که نه؟ پاته سو د مالک (مُعیر) د اجازت ورکولو مسئله، نو دا اجازت د نفعي اخیستلو د ضرورت پر بناء ثابتیږي او د ضرورت په هکله قاعده دا ده چې "الضَّرُوْرَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدَرِهَا" (یعني ضرورت صرف د ضرورت په اندازه ثابتیږي [یعني څومره چې ضرورت وي، فقط هغومره ثابتیږي]) نو ځکه د دې قاعدې مطابق به دا اجازت صرف د انتفاع (نفع اخیستلو) پر موقع خپل اثر ښکاره

کوي او د انتفاع له وخت څخه بغیر بل وخت به هغه نه ثابتیږي. او همدا وجه ده که د عاریت شی موجود وي، نو پر مستعیر د هغه واپس کول واجب وي، نو ځکه د ضایع کېدلو په صورت کي به د هغه قیمت د ضمان په توګه واجبیږي. یا لکه مقبوض علیٰ سوم الشراء که د قابض سره هلاک سي، نو پر قابض د هغه ضمان واجبیږي، نو همداسي به په دې مسئله کي هم پر مستعیر د مستعار شي ضمان واجبیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چي د "عاریة" د لفظ څخه د ضمان وجوب نه فهمول کیږي؛ ځکه چي دا لفظ بالکل د التزام الضمان (پر ځان د ضمان لازمولو) خبر نه ورکوي؛ ځکه چي عاریت خو یا "تملیکُ المنافع بدون العوض" دی یا "اباحةُ المنافع" دی، او د بدون العوض (بلا عوضه) تملیک یا اباحت په صورت کي ضمان نه لازمیږي، او څرنګه چي مستعیر د مالک په اجازت سره پر هغه قبضه کوي، نو ځکه د هغه په قبضه کي به هیڅ تعدی نه وي، برابره ده مالک د انتفاع لپاره هغه په قبضه کي ورکړی وي، که نه (یعني برابره ده مالک د انتفاع یادونه کړې وي، که نه)؛ ځکه چي مستعیر خو صرف د انتفاع لپاره پر هغه قبضه کوي، نو ځکه د امام شافعي رَحِمَہُ الله دا وینا موږ نه تسلیموو چي "د انتفاع له وخت څخه بغیر به دا اجازت نه ثابتیږي".

وإنما وجب الردّ إلخ: دا هم د امام شافعي رَحِمَہُ الله د دلیل جواب دی، حاصل یې دا دی چي د مستعار شي د واپسۍ (واپس کولو) په واجب کېدلو سره دا نه لازمیږي چي د هغه ضمان دي هم واجب وګرځي؛ ځکه د هغه واپس کول په دې وجه واجب وي چي پر هغه صرف د مستعیر قبضه وي او مستعیر له هغه څخه منافع حاصلوي او په واپسۍ کي خرچه او مؤنت راځي نو ځکه دا خرچه به هم پر مستعیر واجبه وي، لکه کله چي غلام یا څاروی په عاریت (په خواست) واخیستل سي، نو د هغه نفقه هم پر مستعیر واجبه وي، لهذا دا وجوب د معیر (مالک) د سهولت او اسانتیا لپاره دی، د قبضې ختمولو لپاره نه دی.

والمقبوض إلخ: فرمایي امام شافعي رَحِمَہُ الله چي د عاریت د شي ضمان واجبېدل د مقبوض علیٰ سوم الشراء د ضمان پر واجبېدلو قیاس کړي دي، دا هم صحیح نه دي؛ ځکه چي پر مقبوض علیٰ سوم الشراء د رانیولو په نیت او د رانیولو په جهت سره قبضه کیږي او همدې قبضې لره د عقد حکم حاصل وي، او د عقد حکم دا دی چي که مبیع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي او مشتري (تر اوسه) د هغه ثمن نه وي ورکړی، نو پر مشتري د هغه ضمان واجبیږي ، نو ځکه پر قابض علیٰ سوم الشراء به هم ضمان واجبیږي، د دې په خلاف په خواست او عاریت سره اخیستل سوی شی د امانت په درجه کي وي او تاسو ته معلومه ده چي که د امانت شی د مودَع (امین) له تعدی څخه بغیر ضایع سي، نو پر مودَع د هغه ضمان نه واجبیږي؛ لهذا امانت او شراء یو بول ګرځول او یو پر بل قیاسول صحیح نه دي. (احسن الهدایه)

## د عاريت شی (مستعار شی) په کرايه ورکول

قَالَ: وَلَيْسَ لِلْمُسْتَعِيْرِ أَنْ يُؤَاجِرَ مَا اسْتَعَارَهُ فرمايي: او مستعير ته دا حق نسته چي هغه شی په کرايه ورکړي کوم چي ده په عاريت [په خواست] اخيستی وی فَإِنْ آجَرَهُ او که چيري مستعير هغه په کرايه ورکړي فَعَطِبَ او هغه هلاک سي ضَمِنَ نو مستعير ضامن کيږي لِأَنَّ الْإِعَارَةَ دُوْنَ الْإِجَارَةِ ځکه چي اعارة له اجارې څخه [په درجه کي] کمه ده وَالشَّيْءُ لَا يَتَضَمَّنُ مَا هُوَ فَوْقَهُ او هيڅ شی هم تر خپل ځان لوړ شي لره نه شامليږي وَلِأَنَّا لَوْ صَحَّحْنَاهُ لَا يَصِحُّ إِلَّا لَازِمًا او ځکه که چيري موږ د مستعير عقد اجاره صحيح وګرځوو نو هغه به صرف لازماً صحيح کيږي [د دې آسانه ترجمه دا ده چي که د مستعير اجاره صحيح وګرځول سي نو پر مُعير به هم اجاره لازميږي، ځکه چي اجاره لازم عقد دی، او په دې کي د مُعير زيات نقصان دی، لکه مخکي چي هم ذکر سوه] لِأَنَّهُ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ بِتَسْلِيْطٍ مِنَ الْمُعِيْرِ ځکه چي په دې صورت کي به عقد اجاره د معير په مسلط کولو سره وي [يعني کله چي د مستعير اجاره صحيح وګرځول سي نو د دې مطلب به دا وي چي ګواکي هغه مُعير پر اجاره کولو مسلط کړی دی ځکه چي د عاريت شی د مُعير له طرفه هغه ته په قبضه کي ورکول سوی دی، نو ځکه دا اجاره به پر مُعير هم لازميږي] وَفِي وُقُوْعِهِ لَازِمًا زِيَادَةُ ضَرَرٍ بِالْمُعِيْرِ حال دا چي د عقد اجارې په لازم واقع کېدلو کي د معير زيات ضرر دی لِسَدِّ بَابِ الْاِسْتِرْدَادِ إِلَى انْقِضَاءِ مُدَّةِ الْإِجَارَةِ ځکه چي په دې صورت کي د اجارې د مودت تر ختمېدلو پوري د واپسی دروازه بنديږي [يعني تر څو چي د کرايې وخت ختم سوی نه وي، تر هغه وخته معير (مالک) خپل شی له مستعير څخه واپس نه سي اخيستلای] فَأَبْطَلْنَاهُ نو ځکه موږ [د مستعير] عقد اجاره باطل ګرځول دی فَإِنْ آجَرَهُ او که مستعير د عاريت شی په اجاره ورکړي ضَمِنَهُ حِيْنَ سَلَّمَهُ نو مستأجر ته د هغه په ورسپارلو سره [سمدستي] مستعير ضامن کيږي [يعني سمدستي پر هغه ضمان (تاوان) لازميږي] لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ تَتَنَاوَلْهُ الْعَارِيَّةُ ځکه کله چي عاريت اجاره لره شامل نه دی كَانَ غَصْبًا نو د مستعير دا فعل [په اجاره ورکول] به غصب وي وَإِنْ شَاءَ الْمُعِيْرُ او که چيري د معير خوښه وي ضَمَّنَ الْمُسْتَأْجِرَ نو له مستأجر څخه دي ضمان [تاوان] واخلي لِأَنَّهُ قَبَضَهُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَالِكِ لِنَفْسِهِ ځکه چي مستأجر د مالک له اجازت څخه بغير پر هغه قبضه کړې ده ثُمَّ إِنْ ضَمَّنَ الْمُسْتَعِيْرَ بيا که معير [مالک] له مستعير څخه

ضمان واخلي لَا يَرْجِعُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ نو مستعير پر مستأجر رجوع نه سي کولای [يعني مستعير چي په ضمان (تاوان) کي معير ته څومره مال ورکړی وي، هغه له مستأجر څخه نه سي اخيستلای] لِأَنَّهُ ظَهَرَ أَنَّهُ آجَرَ مِلْكَ نَفْسِهِ ځکه چي [په ضمان ورکولو سره] دا ښکاره سوه چي مستعير خپل ذاتي ملکيت په اجاره ورکړی دی وَإِنْ ضَمَّنَ الْمُسْتَأْجِرَ او که معير له مستأجر څخه ضمان واخلي يَرْجِعُ عَلَى الْمُؤَاجِرِ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ أَنَّهُ كَانَ عَارِيَةً فِي يَدِهِ دَفْعًا لِضَرَرِ الْغُرُورِ نو مستأجر به پر اجاره ورکونکي [مستعير] رجوع کوي په هغه صورت کي کله چي مستأجر په دې خبر نه وي چي دا شی د اجاره ورکونکي په قبضه کي عاريت دی، د دوکې د ضرر ليري کولو لپاره [يعني که مُعير له مستأجر څخه تاوان واخلي نو مستأجر به د ضمان مال له مستعير څخه اخلي، د دې لپاره چي د مستأجر له ذات څخه د دوکې ضرر ليري سي، لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي مستأجر ته دا معلومه نه وي چي دغه شی (کوم چي زه په اجاره اخلم) د عاريت شی دی بلکي د هغه فکر دا وي چي دا د مستعير خپل شی دی] بِخِلَافِ مَا إِذَا عَلِمَ په خلاف د هغه صورت کله چي مستأجر په دې خبر وي [يعني هغه ته دا معلومه وي چي دغه شی (کوم چي زه په اجاره اخلم) د عاريت شی دی، نو په دې صورت کي هغه د ضمان مال له مستعير څخه نه سي اخيستلای؛ ځکه چي په دې صورت کي مستعير هغه ته هيڅ دوکه نه ده ورکړې].

**اللغات**: ﴿يؤاجر﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: په اجاره ورکول، په أجرت او کرايه ورکول، ﴿عطب﴾ د سمع د ماضي ده: هلاکېدل، په اصل کي د څاروي هلاکېدلو ته وايي، ﴿تسليط﴾ د تفعيل مصدر دی: مسلط کول، قبضه ورکول، ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخيستل، واپس غوښتل، ﴿مستأجر﴾ د مخکنـي بـاب اسـم فاعـل دی: پـه اجـاره او کرايـه اخيـستونکی (پـه کرايـه نيـونکی)، ﴿الغرور﴾ دوکه، فرېب.

**تشريح**: صورت د مسئلې آسانه دی، او مستعار شی په اجاره ورکول داسي دي، لکه مودَع (امين) چي د وديعت شی د مودِع (مالک) له حکم څخه بغير بل چا تـه پـه وديعت (امانتا) ورکـړي، او د ضـمان واجبـېدلو او د معيـر د ضـمان اخيسـتلو دلتـه هـم هغـه دوه صـورتونه دي کـوم چـي د هـدايې پـر صفحه: ۲۷۷ ذکر سوي دي، بس فقط په غور او فکر سره مطالعه کول ضروري دي.

## د عاریت شی بل چا ته په عاریت ورکول

## (یعني په خواست اخیستلی سوی شی بل خواست کونکي ته ورکول)

قَالَ: وَلَهُ أَنْ يُعِيرَهُ فرمايي: او مستعير ته دا اختیار سته چي مستعار شی [بل چا ته] په عاریت ورکړي [یعني په خواست اخیستل سوی شی بل خواست غوښتونکي ته ورکړي] إِذَا كَانَ مِمَّا لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ [په دې شرط] کله چي هغه له داسي شیانو څخه وي کوم چي د استعمالونکي [بل مستعير] په بدلولو سره نه بدلیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَيْسَ لَهُ أَنْ يُعِيرَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مستعیر ته دا اختیار نسته چي هغه په عاریت ورکړي لِأَنَّهُ إِبَاحَةُ الْمَنَافِعِ ځکه چي دا د منافعو مباح کول [روا کول] دي عَلَى مَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي موږ بیان کړه وَالْمُبَاحُ لَهُ لَا يَمْلِكُ الْإِبَاحَةَ او د چا لپاره چي شی مباح کړی سوی وي هغه [د بل چا لپاره د هغه شي] د مباح کولو ملکیت نه لري وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَنَافِعَ غَيْرُ قَابِلَةٍ لِلْمِلْكِ او دا [حکم] ځکه دی چي منافع د ملکیت قابل نه وي لِكَوْنِهَا مَعْدُومَةً ځکه چي هغوی معدوم [نا موجود] وي وَإِنَّمَا جَعَلْنَاهَا مَوْجُودَةً فِي الْإِجَارَةِ لِلضَّرُورَةِ او موږ هغوی په اجاره کي د ضرورت په وجه موجود ګرځولي دي [یعني په اجاره کي صرف د ضرورت پر بناء منافع موجود منل کیږي] وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِالْإِبَاحَةِ هٰهُنَا او ضرورت دلته په مباح کولو سره دفع [او پوره] سو وَنَحْنُ نَقُولُ: هُوَ تَمْلِيكُ الْمَنَافِعِ او موږ وایو: چي عاریت د منافعو مالک کولو ته وايي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه مخکي چي موږ ذکر کړه فَيَمْلِكُ الْإِعَارَةَ نو ځکه مستعیر به د عاریتاً ورکولو ملکیت [اختیار] لري كَالْمُوصٰى لَهُ بِالْخِدْمَةِ لکه د چا لپاره چي د خدمت وصیت سوی وي [مثلاً یو سړي د خالد لپاره دا وصیت کړی وي چي زما غلام به ستا خدمت کوي، نو خالد دا غلام بل چا ته د خدمت لپاره ورکولای سي] وَالْمَنَافِعُ اُعْتُبِرَتْ قَابِلَةً لِلْمِلْكِ فِي الْإِجَارَةِ او په اجاره کي د منافعو د قابل ملکیت کېدلو اعتبار سوی دی [یعني په اجاره کي منافع په ملکیت کي د راتللو قابل دي] فَتُجْعَلُ كَذٰلِكَ فِي الْإِعَارَةِ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ نو ځکه د حاجت دفع کولو په خاطر به په اعاره کي هم هغوی همداسي [یعني په ملکیت کي د راتللو قابل] ګرځول کیږي وَإِنَّمَا لَا يَجُوزُ فِيمَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ دَفْعًا لِمَزِيدِ الضَّرَرِ

عَنِ الْمُعِيرِ او په هغه شي کي (کوم چي د استعمالونکي کس په بدلولو سره بدليږي) ځکه عاريتاً
ورکول جائز نه دي چي له معير ځخه زائد ضرر دفع سي لِأَنَّهُ رَضِيَ بِاسْتِعْمَالِهِ لَا بِاسْتِعْمَالِ غَيْرِهِ
ځکه چي معير صرف د اول مستعير په استعمال راضي سوي دی او د بل چا [بل مستعير] په
استعمال نه دی راضي سوی قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَهٰذَا إِذَا صَدَرَتِ الْإِعَارَةُ مُطْلَقَةً صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله
فرمايي: چي دا حکم [يعني په عاريت ورکول] په هغه صورت کي دي کله چي عاريت مطلق وي وَهِيَ
عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ: أَحَدُهَا: أَنْ تَكُونَ مُطْلَقَةً فِي الْوَقْتِ وَالِانْتِفَاعِ او عاريت پر ځلور قسمه دی: [۱] يو
قسم دا دی: چي عاريت د وقت او انتفاع دواړو له قيد ځخه مطلق وي وَلِلْمُسْتَعِيرِ فِيهِ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهِ
أَيَّ نَوْعٍ شَاءَ فِي أَيِّ وَقْتٍ شَاءَ او په دې قسم کي مستعير ته دا اختيار سته چي ځه ډول او ځه وخت
چي د ده خوښه وي، له عاريت ځخه نفع واخلي عَمَلًا بِالْإِطْلَاقِ پر مطلق والي په عمل کولو سره
وَالثَّانِي: أَنْ تَكُونَ مُقَيَّدَةً فِيهِمَا [۲] دويم قسم دا دی: چي عاريت د وقت او انتفاع دواړو په قيد سره
مقيد وي وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُجَاوِزَ فِيهِ مَا سَمَّاهُ او په دې صورت کي مستعير ته دا اختيار نسته چي له
هغه حد ځخه تېری [او مخالفت] وکړي کوم چي معير مُتعيّن کړی وي عَمَلًا بِالتَّقْيِيدِ پر مقيد والي
په عمل کولو سره إِلَّا إِذَا كَانَ خِلَافًا إِلَى مِثْلِ ذٰلِكَ أَوْ إِلَى خَيْرٍ مِنْهُ مګر دا چي کله مخالفت د معير د
مُتعيّن کړي سوي شي د مثل يا له هغه ځخه د غوره شي وطرف ته وي [نو بيا د هغه اجازت سته]
وَالْحِنْطَةُ مِثْلُ الْحِنْطَةِ او غنم د غنمو مثل دي وَالثَّالِثُ: أَنْ تَكُونَ مُقَيَّدَةً فِي حَقِّ الْوَقْتِ مُطْلَقَةً فِي حَقِّ
الِانْتِفَاعِ [۳] درېيم قسم دا دی چي عاريت د وقت په حق کي مقيد وي او د انتفاع په حق کي
مطلق وي وَالرَّابِعُ عَكْسُهُ [۴] ځلورم قسم د مخکني قسم برعکس دی [يعني چي عاريت په وقت کي
مطلق وي او په انتفاع کي مقيد وي] وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَعَدّٰى مَا سَمَّاهُ او [په دې دواړو صورتونو کي هم] مستعير
ته دا اختيار نسته چي د معير له مُتعيّن کړی سوي حد [وقت او انتفاع] ځخه تجاوز وکړي فَلَوِ
اسْتَعَارَ دَابَّةً وَلَمْ يُسَمِّ شَيْئًا نو که مستعير يو ځاروی په عاريت واخلي او هيڅ شی مُتعيّن نه کړي
لَهُ أَنْ يَحْمِلَ وَيُعِيرَ غَيْرَهُ لِلْحَمْلِ نو مستعير ته دا اختيار سته چي پر هغه ځاروي بار يووسي او [دا

اختيار هم ورته سته] چي هغه څاروی بل چا ته د بار وړلو لپاره په عاريت ورکړي لِأَنَّ الْحَمْلَ لَا يَتَفَاوَتُ ځکه چي بار وړل متفاوت [مختلف] نه وي وَلَهُ أَنْ يَرْكَبَ وَيُرْكِبَ غَيْرَهُ او مستعير ته دا اختيار هم سته چي پر هغه څاروي [په خپله سپور سي] او بل څوک پر سپور کړي وَإِنْ كَانَ الرُّكُوبُ مُخْتَلِفًا که څه هم سپرېدل مختلف [يو له بل څخه جلا] دي لِأَنَّهُ لَمَّا أَطْلَقَ فِيهِ ځکه کله چي مالک [معير] په دې کي اطلاق کړی دی [يعني کله چي هغه انتفاع (رکوب) مطلق ذکر کړی دی او مطلق اجازت يې ورکړی دی] فَلَهُ أَنْ يُعَيِّنَ نو مستعير ته دا حق سته چي هغه [مطلق رکوب] مُتعيّن کړي حَتَّى لَوْ رَكِبَ بِنَفْسِهِ نو که هغه په خپله [پر څاروي] سپور سي [يعني اول د ځان لپاره د څاروي رکوب مُتعيّن کړي] لَيْسَ لَهُ أَنْ يُرْكِبَ غَيْرَهُ نو بيا هغه ته دا اختيار نسته چي بل څوک پر سپور کړي لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ رُكُوبُهُ ځکه چي د ده سپرتيا مُتعيّنه سوه وَلَوْ أَرْكَبَ غَيْرَهُ او که هغه بل څوک پر سپور کړي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْكَبَهُ نو هغه ته دا اختيار نسته چي [په خپله] پر سپور سي حَتَّى لَوْ فَعَلَهُ تر دې که هغه داسي وکړي ضَمِنَ نو ضامن کيږي لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ الْإِرْكَابُ ځکه [په دې صورت کي د هغه بل چا] سپرول مُتعيّن سوه.

**اللغات**: ﴿معدومة﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: نيستي، ناموجود (غيرِ موجود)، ﴿اندفع﴾ د انفعال ماضي ده: ليري کېدل، ختمېدل، پوره کېدل، ﴿مزيد الضرر﴾ اضافي او زائد نقصان، ﴿يتعدى﴾ د تفعّل مضارع ده: تجاوز او زياتوب کول، ناحقه تصرف کول، ﴿لم يسم﴾ د تفعيل له بابه د حجد (نفي بلم) صيغه ده: نومول، مُتعيّن کول، ټاکل، ﴿لا يتفاوت﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: مختلف کېدل، يو شی له بل شي څخه جلا کېدل (يعني فرق او توپير پکښي راتلل)، ﴿رکوب﴾ د سمع مصدر دی: سپرېدل، سپرتيا (سپرلي)، ﴿إركاب﴾ د افعال مصدر دی: سپرول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که مستعار شی داسي وي کوم چي په استعمالولو سره بدليږي او مختلف کيږي نه، نو زموږ په نيز مستعير هغه بل چا ته په عاريت ورکولای سي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز مستعير ته دا اختيار نسته؛ ځکه چي د هغه په نيز عاريت تمليک اباحت دی او د چا لپاره چي شي مباح (روا) کړی سوی وي، هغه ته دا اختيار نسته چي د بل چا لپاره هغه شی مباح کړي؛ د دې حکم دليل دا دی چي منافع في الحاله معدوم وي او په ملکيت کي د راتللو قابل نه وي، لېکن په اجاره

کي د ضرورت پر بناء منافع موجود منل کيږي او د مستعير لپاره په مباح کولو سره دا ضرورت پوره کيږي، لهذا د مستعير په حق کي به نه دا ضرورت وي او نه به همدا اباحت ثابتيږي.

ونحن نقول إلخ: زموږ دليل دا دی چي په عقد اعاره کي د منافعو تمليک کيږي (يعني په اعاره کي مستعير د مستعار شي د منافعو مالک کول کيږي)، لهذا کله چي مستعير په هر اعتبار سره د منافعو مالک ګرځي، نو هغه به د اعاره هم مالک وي (يعني هغه ته به د دې ملکيت او اختيار هم وي چي مستعار شی بل چا ته عاريتاً ورکړي)، لکه کله چي يو سړی د يو چا مثلاً د خالد لپاره د خپل غلام د خدمت وصيت وکړي نو موصیٰ لهٗ يعني خالد هغه غلام بل چا ته د خدمت لپاره ورکولای سي، لهذا مستعير به هم مستعار شی بل چا ته په عاريت ورکولای سي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وينا چي "منافع په ملکيت کي د راتللو قابل نه دي" موږ نه تسليمو؛ ځکه کله چي د ضرورت پر بناء په اجاره کي منافع د ملکيت قابل دي نو په اعاره کي به هم د همدې ضرورت پر بناء هغوی د ملکيت قابل وي. دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي اعاره مطلقه وي او له هر ډول قيد څخه خالي وي. له همدې کبله فقهاؤ په عقلي توګه د اعارې څلور قسمونه بيان کړي دي: (۱) هغه اعاره کوم چي د وقت او انتفاع له قيد څخه مطلقه وي، په داسي اعاره کي مستعير ته هر وخت او په هر ډول سره د نفع اخيستلو اختيار سته. (۲) دويم قسم هغه اعاره ده چي په هغه کي د وخت قيد لګول سوی وي او د انتفاع جهت هم ټاکل سوی وي، مثلاً مستعير له معير (مالک) څخه يو خر په عاريت اخيستی وي او معير هغه ته داسي ويلي وي چي "ته! به درې ورځي وروسته دا خر ما ته واپس کوې! او له هغه څخه به صرف د سپرتيا کار اخلې!، بار به نه پر وړې!"، په داسي اعاره کي مستعير د معير د ټاکل سوي وخت او جهت مخالفت نه سي کولای، ها! که چيري مخالفت د ټاکل سوي شي هممثل وي يا له هغه څخه غوره وي نو بيا مخالفت صحيح دی، مثلاً معير ويلي وي چي "ته! به پر دغه خره صرف خپل غنم وړې!"، او مستعير پر هغه خره د بل چا غنم يووسي، يا مستعير تر غنمو غوره شی مثلاً اوربشي پر خره يووسي (نو دا مخالفت صحيح دی)؛ ځکه چي غنم د غنمو هممثل دي او اوربشي له غنمو څخه په وزن کي سپکي دي، نو ځکه غوره دي. (۳) درېيم قسم دا دی چي په اعاره کي وخت ټاکل سوی وي لېکن د انتفاع جهت ټاکل سوی نه وي. (۴) څلورم قسم د هغه برعکس دی، يعني د انتفاع جهت ټاکل سوی وي او وخت ټاکل سوی نه وي، په دې دواړو قسمونو کي هم مستعير د معير د حکم مخالفت نه سي کولای.

فلو استعار دابة إلخ: د دې حاصل دا دی چي که حامد له يو سړي څخه يو څاروی مثلاً خر په عاريت واخلي لېکن د وخت او انتفاع په هکله هيڅ قيد نه ولګوي، نو مستعير (حامد) ته کلي اختيار سته

چي څرنګه د هغه خوښه وي، هغسي کولای سي، يعني که خوښه يې وي نو پر هغه خره دي خپل شی بار کړي يا که وغواړي نو بل چا ته دي هغه د بار وړلو لپاره عاريتاً ورکړي؛ ځکه چي عموماً حمل متفاوت نه وي، همدارنګه که د مستعير (زيد) خوښه وي نو خپله هم پر هغه خره سپرېدلای سي او بل څوک هم پر سپرولای سي، ها! کله چي مستعير پر هغه سپور سي يا بل څوک پر سپور کړي، نو بيا د مستعير لپاره د بل فعل اختيار نسته، او که هغه داسي وکړي، نو ضامن کيږي. (احسن الهدايه)

## د دراهمو او دنانيرو (پيسو) عاريت

قَالَ: وَعَارِيَةُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ وَالمَكِيْلِ وَالمَوْزُوْنِ وَالمَعْدُوْدِ قَرْضٌ فرمايي: او دراهم، دنانير، کيلي، وزني او عددي شيان په عاريت ورکول قرض دي لِأَنَّ الإِعَارَةَ تَمْلِيكُ المَنَافِعِ ځکه چي عاريتاً ورکول د منافعو مالک کول دي وَلَا يُمْكِنُ الاِنْتِفَاعُ بِهَا إِلَّا بِاسْتِهْلَاكِ عَيْنِهَا او له منافعو څخه نفع اخيستل ممکن نه دي مګر د هغوی د عَين په استعمالولو سره فَاقْتَضٰى تَمْلِيكُ العَيْنِ ضَرُوْرَةً نو ځکه دا تمليک ضرورتاً د عَين د تمليک تقاضا [هم] کوي وَذٰلِكَ بِالهِبَةِ أَوْ بِالقَرْضِ او د عَين تمليک په هبه سره کيږي يا په قرض سره وَالقَرْضُ أَدْنَاهُمَا او قرض په دوی دواړو کي کمتر دی فَيَثْبُتُ نو ځکه هغه به ثابتيږي أَوْ لِأَنَّ مِنْ قَضِيَّةِ الإِعَارَةِ الاِنْتِفَاعَ وَرَدُّ العَيْنِ يا دا حکم په دې وجه دی چي د اعارې له تقاضا څخه په عَين [مستعار شي] سره نفع اخيستل او هغه واپس کول دي فَأُقِيمَ رَدُّ المِثْلِ مَقَامَهُ نو ځکه د مثل واپسي د عَين د واپس کولو قائم مقام کړی سو قَالُوا: هٰذَا إِذَا أَطْلَقَ الإِعَارَةَ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي اعاره مطلقه پرېږدي [يعني په هغه کي هيڅ قيد نه ولګول سي] أَمَّا إِذَا عَيَّنَ الجِهَةَ بِأَنْ اِسْتَعَارَ دَرَاهِمَ لِيُعَايِرَ بِهَا مِيزَانًا أَوْ يُزَيِّنَ بِهَا دُكَّانًا او که چيري د اعارې جهت مُتعيّن کړي په دې توګه چي مستعير د دې لپاره په عاريت [په خواست] دراهم واخلي چي په هغه دراهمو سره د خپل ترازو وزن برابروي يا په هغه دراهمو سره خپل دوکان ښايسته کوي [مثلاً د يو سړي سره دومره دراهم وي چي د هغوی وزن د يو معلوم کاڼي سره برابر وي او د مستعير سره هغه کاڼی في الحاله موجود نه وي، نو مستعير له هغه سړي څخه د دې لپاره هغه دراهم واخلي چي زه په هغوی سره د خپل ترازو وزن برابروم او شی په تلم. يا د دې لپاره دراهم په عاريت واخلي چي زه هغوی په خپل دوکان کي ايږدم چي خلک يې ووينې. پر ما يې د مالدار شک راسي او معامله را سره وکړي] لَمْ يَكُنْ قَرْضًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا المَنْفَعَةُ المُسَمَّاةُ نو دا قرض نه ګرځي او د مستعير لپاره فقط مُتعيّن کړی سوی منفعت

ثابتیږي وَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَعَارَ آنِيَةً يَتَجَمَّلُ بِهَا او دا داسي سوه لکه یو سړی چي یو څه لوښي د دې لپاره په عاریت [په خواست] واخلي چي په هغوی سره ښکلا حاصله کړي [مثلا هغه داسي ووايي چي زه په دې لوښو سره (د مېلمنو لپاره) خونه ښايسته کوم یا داسي نور] أَوْ سَيْفًا مُحَلًّى يَتَقَلَّدُهُ يا په زېور سره ښايسته کړی سوې توره د دې لپاره په عاریت واخلي چي هغه [د شو لپاره] په غاړه را وځړوي.

**اللغات**: ﴿المكيل﴾ پیمانه کېدونکی شی (کوم چي په معلوم لوښي او پیمانه سره اندازه کيږي)، ﴿الموزون﴾ وزن کېدونکي شی (کوم چي په معلوم وزن او کاڼي سره تلل کيږي)، ﴿المعدود﴾ عددي شی، شمار والا (کوم چي په شمېر سره اندازه کيږي او خرڅول کيږي)، ﴿انتفاع﴾ د افتعال مصدر دی: نفع حاصلول، فایده اخیستل، ﴿الاستهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: ضایع کول خرڅول (مصرفول)، استعمالول، ختمول، ﴿أدناهما﴾ له دواړو څخه کمي درجې والا، ﴿قضية﴾ تقاضا، مقصود، ﴿يُعاير﴾ په هدايه کي دا لفظ "لِيُعِيْرَ" ليکل سوی دی، لېکن صحیح لفظ "لِيُعَايِرَ" دي لکه څرنګه چي په حاشیه کي ذکر سوی دي، "لِيُعَايِرَ" د مفاعلې د باب مضارع ده، معنیٰ يې ده: وزن سره برابرول، یو ترازو د بل ترازو سره برابرول، ﴿يتجمّل﴾ د تفعّل مضارع ده، د دې باب په صله کي چي "باء" راسي لکه دلته چي راغلې ده "يتجمل به" نو معنیٰ يې ده: په یو شي سره ښکلا حاصلول، یعني د یوه شي په ذریعه بل شی ښايسته کول، ﴿آنية﴾ جمع د إِنَاءٌ ده: د خوراک او څښاک لوښي، جمع الجمع: أَوَانِي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿مُحلّٰى﴾ د تفعیل د باب مفعول دی، حَلَّى يُحَلِّيْ تَحْلِيَةً: په یو شي زېور اغوستل، په زېور سره ښايسته کول، مزین کول (مثلا توره په زېور سره ښايسته کول او زېورات په ځړول)، نو د "سَيْف مُحَلًّى" معنیٰ ده: په زېور سره ښايسته کړی سوې توره، ﴿يتقلّد﴾ د تفعّل مضارع ده، کله چي د دې باب په صله کي "سَيْف" راسي، نو معنیٰ يې ده: په غاړه کي د توري تسمه اچول، توره په غاړه کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي څرنګه د غير نغد مال یعني د سامان عاریتاً ورکولو ته قرض ویل کيږي، همداسي د نغد مال یعني د دراهمو، دنانیرو، وزني او کَیلي شیانو عاریتاً ورکول هم قرض دي؛ ځکه چي اعاره تمليک المنافع ته وايي، او له منافعو څخه هماغه وخت فایده اخیستل کېدای سي کله چي د هغوی عَین استعمال کړی سي، نو ځکه ضرورتاً به دلته د عَین هم تمليک منل کيږي، او د تمليک العين دلته دوه صورتونه دي، یو دا چي د عَین تمليک هبه ومنل سي (هبه وګرځول سي)، یا هغه قرض

ومنل سي، او په هبه ګرځولو کي د اصل مالک نقصان دی، لهذا هغه به قرض منل کيږي او په قرض کي د اخيستل سوي شي تر استعمالولو وروسته د هغه مثل واپس کول کيږي، لهذا دا صورت به قرض ګرځول کيږي.

دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي عاريت مطلق وي، او که عاريت مقيد وي يعني معير يا مستعير د انتفاع جهت مُتعيّن کړي، مثلاً مستعير پر دې شرط له معير څخه دراهم واخلي چي زه به هغه سره د خپل ترازو وزن برابروم يا خپل دوکان په ښايسته کوم، نو دا قرض نه ګرځي او مستعير به صرف په مُتعيّن کړی سوي جهت کي له هغه دراهمو څخه نفع اخلي او تر نفع اخيستلو وروسته به خاص هغه دراهم اما لک ته واپس کوي، نه د هغوی مثل.

د دې مثال دا دی لکه يو څوک چي د خپل ځای يا خوني د ښايسته کولو لپاره له بل چا څخه ښکلي او قيمتي لوښي واخلي، بيا يې بير ته هغه ته واپس کړي، يا مثلاً يو څوک له يو چا څخه ښايسته کړی سوې خيالداره توره يا ټوپک واخلي او يو څو ورځي يې د ځان سره وګرځوي، بيا يې مالک ته واپس کړي، ځرنګه چي په دې صورتونو کي د عَين (ذات) د پاته والي باوجود له اخيستل سوي شي څخه نفع اخيستل ممکن دي، نو ځکه دا صورتونه قرض نه شمارل کيږي، همداسي پورتني صورت هم قرض نه دی. (احسن الهدايه)

## د عاريت په ځمکه کي د يو شي جوړولو يا کرولو حکم

قَالَ: وَإِذَا اسْتَعَارَ أَرْضًا لِيَبْنِيَ فِيهَا أَوْ لِيَغْرِسَ فِيهَا فرمايي: او كه څوک يو ځمکه د دې لپاره په عاريت واخلي چي په هغې کي يو ځای جوړ کړي يا په هغې کي درختي [نيالګي] ولګوي جَازَ نو دا جائز دي وَلِلْمُعِيرِ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا وَيُكَلِّفَهُ قَلْعَ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ او معير [مالک] ته دا اختيار سته چي هغه ځمکه [له مستعير څخه] واپس واخلي او مستعير د جوړ سوي ځای او درختي پر کښلو [او ليري کولو] مکلف کړي أَمَّا الرُّجُوعُ فَلِمَا بَيَّنَّا کوم چي رجوع کول [يعني د ځمکي واپس اخيستل] دي نو د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَأَمَّا الْجَوَازُ فَلِأَنَّهَا مَنْفَعَةٌ مَعْلُومَةٌ تُمْلَكُ بِالْإِجَارَةِ او کوم چي [د دې عاريت] جائز کېدل دي نو ځکه چي دا منفعت يو معلوم منفعت دی کوم چي په اجارتاً ور کولو سره په ملکيت کي راتلای سي فَكَذَا بِالْإِعَارَةِ نو همداسي به په عاريتاً ور کولو سره هم په ملکيت کي راتلای سي وَإِذَا صَحَّ الرُّجُوعُ او کله چي رجوع کول صحيح دي بَقِيَ الْمُسْتَعِيرُ شَاغِلًا أَرْضَ الْمُعِيرِ نو مستعير د معير د ځمکي مشغولونکی وګرځېدی فَيُكَلَّفُ تَفْرِيغَهَا نو ځکه هغه به د

ځمکي پر خالي کولو مکلف کيږي ثُمَّ إِنْ لَمْ يَكُنْ وَقَّتَ الْعَارِيَّةَ بيا که چيرې معير د عاريت لپاره وخت ټاکلی نه وي [چي په دومره وخت کي به ته! ما ته خپله ځمکه واپس کوې!] فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر هغه ضمان نسته لِأَنَّ الْمُسْتَعِيرَ مُغْتَرٌّ غَيْرُ مَغْرُورٍ ځکه چي مستعير په خپله دوکه سوی دی او هغه [د مُعير له طرفه] دوکه کړی سوی نه دی حَيْثُ اعْتَمَدَ إِطْلَاقَ الْعَقْدِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَسْبِقَ مِنْهُ الْوَعْدُ ځکه چي هغه د معير له طرفه د څه وعدې څخه بغير د عقد پر مطلق کېدلو اعتماد کړی دی وَإِنْ كَانَ وَقَّتَ الْعَارِيَّةَ او که معير د عاريت لپاره وخت ټاکلی وی وَرَجَعَ قَبْلَ الْوَقْتِ او بيا له وخت څخه مخکي رجوع وکړي [يعني له ټاکلي وخت څخه مخکي ځمکه واپس واخلي] صَحَّ رُجُوعُهُ نو [هم] د هغه رجوع صحيح کيږي لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَكِنَّهُ يُكْرَهُ لېکن داسي کول مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنْ خُلْفِ الْوَعْدِ ځکه چي په دې کي وعده خلافي ده [کوم چي د منافقت له نښو څخه يوه نښه ده] وَضَمِنَ الْمُعِيرُ مَا نَقَصَ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ بِالْقَلْعِ او د جوړ سوي ځای او درختي په کښلو سره چي [د مستعير] کوم نقصان وسي، معير د هغه ضامن کيږي لِأَنَّهُ مَغْرُورٌ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] مستعير د معير له طرفه دوکه کړی سوی دی حَيْثُ وَقَّتَ لَهُ ځکه هغه د مستعير لپاره وخت ټاکلی دی فَالظَّاهِرُ هُوَ الْوَفَاءُ بِالْعَهْدِ نو ښکاره د وعدې پوره کول دي [يعني ښکاره همدا ده چي هغه به خپله وعده پوره کړي، لېکن هغه وعده ماته کړه] فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْ نَفْسِهِ نو ځکه مستعير به له ځپل ځان څخه د ضرر لېري کولو لپاره پر معير رجوع کوي [يعني له هغه څخه به ضمان (تاوان) اخلي] كَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ فِي الْمُخْتَصَرِ همداسي امام قدوري رَحِمَهُ الله په مختصر القدوري کي ذکر کړي دي وَذَكَرَ الْحَاكِمُ الشَّهِيدُ أَنَّهُ يَضْمَنُ رَبُّ الْأَرْضِ لِلْمُسْتَعِيرِ قِيمَةَ غَرْسِهِ وَبِنَائِهِ وَيَكُونَانِ لَهُ او حاکم شهيد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي د ځمکي مالک [مُعير] به مستعير ته د هغه لګول سوو درختو او د جوړ سوي ځای د قيمت ضمان [تاوان] ورکوي او دا دواړه شيان د ځمکي د مالک ګرځي إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْمُسْتَعِيرُ أَنْ يَرْفَعَهُمَا وَلَا يُضَمِّنَهُ قِيمَتَهُمَا مګر دا چي مستعير وغواړي چي خپل جوړ سوی ځای او درختي وکاږي او له مالک [مُعير] څخه د هغوی د قيمت ضمان نه واخلي

فَيَكُوْنَ لَهُ ذٰلِكَ نو مستعير ته د دې اختيار سته [يا معنىٰ چي په دې صورت كي هغه دواړه شيان د مستعير لپاره پاتيږي] لِأَنَّهُ مِلْكُهُ ځکه چي هغه د مستعير خپل ملكيت دى قَالُوا: إِذَا كَانَ فِي الْقَلْعِ ضَرَرٌ بِالْأَرْضِ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي كه د ځاى او درختو په كښلو [ليري كولو] كي ځمكي ته نقصان رسيږي فَالْخِيَارُ إِلَى رَبِّ الْأَرْضِ نو [په دې صورت كي] اختيار د ځمكي مالک لره حاصل دى لِأَنَّهُ صَاحِبُ الْأَصْلِ ځکه چي د اصل [ځمكي] مالک هغه دى وَالْمُسْتَعِيرُ صَاحِبُ تَبَعٍ او مستعير د تابع [ځاى او درختو] مالک دى وَالتَّرْجِيحُ بِالْأَصْلِ او ترجيح په اصل سره وي [يعني ترجيح اصل والا لره حاصليږي كوم چي دلته د ځمكي مالک دى، نو ځکه هغه به مخكي او راجح وي او صرف هغه ته به اختيار وي] وَلَوِ اسْتَعَارَهَا لِيَزْرَعَهَا او كه چيري مستعير د دې لپاره ځمكه په عاريت واخلي چي په هغې كي كښت وكړي لَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُ حَتَّى يَحْصِدَ الزَّرْعَ نو تر هغه وخته به ځمكه نه ځني اخيستل كيږي تر دې چي د فصل ريبلو وخت راسي وَقَّتَ أَوْ لَمْ يُوَقِّتْ برابره ده معين وخت ټاكلى وي او كه يې ټاكلى نه وي لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُومَةً ځکه چي د هغه انتهاء معلومه وي [مطلب دا چي د فصل ريبلو وخت معلوم وي] وَفِي التَّرْكِ بِالْأَجْرِ مُرَاعَاةُ الْحَقَّيْنِ او په أجرت سره په پرېښوولو كي د دواړو حقونو رعايت سته بِخِلَافِ الْغَرْسِ په خلاف د درختي لګولو لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ نِهَايَةٌ مَعْلُومَةٌ ځکه چي د هغه انتهاء معلومه نه وي فَيُقْلَعُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْمَالِكِ نو ځکه [د ځمكي] له مالک څخه د ضرر ليري كولو لپاره به درختي كښل كيږي.

**اللغات**: ﴿يبني﴾ د ضرب مضارع ده: ځاى جوړول، وداني جوړول. ﴿يغرس﴾ مخكني صيغه ده: بوټي او درختي اينبوول (لګول)، نيالګي اينبوول. ﴿قَلْع﴾ د فتح مصدر دى: له بېخه كښل، له خپل ځايه ليري كول، ختمول. ﴿البناء﴾ جوړ سوى ځاى، وداني، عمارت. ﴿شاغل﴾ د نصر اسم فاعل دى: مشغولونكى، مصروفونكى. ﴿وقّت﴾ د تفعيل ماضي ده: وقت ټاكل، وخت بيانول. ﴿مغتر﴾ د افتعال اسم فاعل دى: په خپله دوكه كېدونكى، په خپله خطا وتلى. ﴿الوفاء بالعهد﴾ وعده او ژمنه پوره كول. ﴿الحاكم الشهيد﴾ اصل نوم او سلسله د نسب يې دا ده: ابو الفضل محمد بن محمد بن احمد بن عبد الله بن عبد المجيد بن اسماعيل بن الحاكم المروزي الحنفي، مشهوره فقيه او حافظ حديث دى، د

هغه له مشهورو تصانيفو څخه منتقى او كافي دي كوم چي د امام محمد رَحِمَهُ الله تر كتابونو وروسته د مذهب د اُصولو په توګه ګڼل كيږي، حاكم شهيد رَحِمَهُ الله به تر هر لمانځه وروسته دا دعاء كوله "اللّٰهُمَّ ارْزُقْنِي الشَّهَادَةَ"، همدا وو چي دعاء يې قبوله سوه او په كال ۳۳۴ هجري د ربيع الثاني په مياشته كي د ځيني خلګو په يو تهمت لګولو سره د سجدې په حالت كي شهيد كړى سو.

﴿يُحْصِد﴾ د افعال د باب مضارع ده، أَحْصَدَ يُحْصِدُ الزَّرْعُ (أي حَانَ حِصَادُهُ): د كښت ريبلو (فصل اخيستلو) وخت را نژدې كېدل. (معجم وسيط، مصباح اللغات)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى كه څوك د يو ځاى جوړولو يا د درختو د اينښوولو (لګولو) لپاره له يو چا څخه عاريتاً (په خواست) ځمكه وغواړي او هغه يې وركړي، نو دا اعاره (عاريتاً وركول) جائز دي؛ ځكه چي د اجارې په څېر دا اعاره هم د خپل ملكيت (د خپل عَين شي) منافع د بل چا په ملكيت كي د وركولو او بل چا ته د فايدې رسولو يو غوره ذريعه ده، نو ځكه به جائز او صحيح وي، لكه څرنګه چي اجاره جائز ده، لېكن مالك (مُعير) ته هر وخت دا اختيار سته چي كله هم وغواړي له مستعير څخه ځمكه واخلي او هغه ته ووايي چي "ته! خپل جوړ سوى ځاى ونړوه! او خپلي درختي وكاږه!"؛ ځكه چي اصل مالك خو هغه دى او هغه ته هر وخت د خپل مملوک شي (ځمكي) د اخيستلو حق سته، او كه د رجوع او ردّ له مطالبې څخه وروسته مستعير دا ځمكه نه واپس كوي، نو هغه د مالك (مُعِير) د ملكيت مشغولونكى او منع كونكى ګرځي، حالانكي هغه ته د بل چا د ملكيت مشغوله كولو او منع كولو حق نسته.

ثم إن لم يكن إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه معير د عاريتاً وركولو پر مهال وخت او تاريخ ټاكلى نه وي (چي پر فلان تاريخ به ما ته ځمكه واپس كوې!)، نو پر هغه ضمان نه لازميږي؛ ځكه دا خو د مستعير خپله غلطي ده چي هغه د معير له طرفه د وخت او تاريخ له وضاحت او له څه وعدې څخه بغير دا عارت مطلق ګڼلى دى، لهذا خطا كاره په خپله مستعير دى، نه معير. د دې په خلاف كه معير وخت ټاكلى وي او بيا تر هغه وخت مخكي له مستعير څخه د ځمكي واپس كولو او خالي كولو مطالبه وكړي، نو دا رجوع او مطالبه صحيح ده، لېكن د معير لپاره داسي كول مكروه دي؛ ځكه چي په دې كي وعده خلافي ده او وعده خلافي د منافقت نښه ده، په همدې وجه فقهاؤ په دې سلسله كي دا ليكلي دي چي له وخت پوره كېدلو څخه مخكي په مستعير د ځمكي خالي كولو په صورت كي چي د درختو او جوړ سوي ځاى په قيمتونو كي كوم فرق راځي، معير د هغه ضامن كيږي، مثلاً كه له مستعير څخه د ځمكي اخيستلو او خالي كولو په وخت كي د جوړ سوي ځاى او درختو قيمت ۵۰۰۰ زره درهمه وي او د عاريتاً وركولو په وخت كي د هغوى قيمت ۱۰۰۰ درهمه وو، نو معير د

مستعير لپاره د ۵۰۰۰ درهمو ضامن كيږي؛ ځكه چي په دې صورت كي د معير له طرفه مستعير ته دوكه وركول سوې ده او هغه ته ضرر رسېدلی دی، نو ځكه د ضرر دفع كولو په خاطر به په معير و مستعير ته ضمان وركول كيږي. دا حكم په مختصر القدوري كي ذكر سوی دی. (احسن الهدايه)

وذكر الحاكم الشهيد إلخ: حاكم شهيد مروزي رَحِمَهُ الله په دې سلسله كي دا حكم بيان كړی دی چي د ځمكي مالک (مُعِير) به مستعير ته د هغه د ځای او درختو پوره قيمت (ضمان) وركوي او دواړه شيان به په خپله اخلي، دا په هغه صورت كي كله چي د مستعير هم داسي خوښه وي، او كه مستعير وغواړي نو له معير څخه دي ضمان نه اخلي او خپل ځای دي ونړوي او درختي دي وكاږي؛ ځكه چي دا شيان د مستعير په خپل ملكيت كي دي. لېكن دا خبره په ياد لرئ! چي كه د ځای او درختو په ليري كولو او كښلو سره ځمكي ته نقصان رسيږي، نو په دې صورت كي د ځمكي مالک ته اختيار حاصليږي چي كه وغواړي نو مستعير ته دي قيمت وركړي او ځای او درختي دي ځني واخلي؛ ځكه چي هغه د اصل شي (ځمكي) مالک دی او مستعير د تابع شي يعني د جوړ كړی سوي ځای او درختو مالک دی، او ترجيح اصل لره حاصله وي، نو ځكه دلته به د ځمكي مالک لره ترجيح حاصله وي او صرف هغه ته به اختيار وركول كيږي.

ولو استعارها ليزرعها إلخ: د دې حاصل دا دی چي كه څوک د يو ډول كښت (مثلاً د غنمو د كښت) كرلو لپاره له بل چا څخه ځمكه عاريتاً واخلي، نو ترڅو چي هغه كښت او فصل پوخ سوی او رېبل سوی نه وي، تر هغه وخته معير له مستعير څخه خپله ځمكه واپس نه سي اخيستلای، برابره ده معير د عاريت لپاره وخت ټاكلی وي، كه نه؛ ځكه چي د كښت پخېدلو او رېبلو مودت معلوم وي او خلګ د هغه په مقرره وخت خبر وي، نو ځكه له كښت رېبلو څخه مخكي معير خپله ځمكه نه سي اخيستلای. او په دې سلسله كي غوره طريقه دا ده چي كله معير د رجوع مطالبه وكړي (چي ما ته خپله ځمكه واپس كړه!)، نو مستعير ته پكار دي چي د مطالبې له ورځي څخه د كښت پخېدلو او رېبلو تر ورځي (يوم الحصاد) پوري هغه ځمكه په اجاره واخلي او معير ته د هغومره ورځو اُجرت او كرايه وركړي، او په داسي كولو سره د معير او مستعير دواړو د حق رعايت كيږي او دواړو ته فايده حاصليږي چي مستعير ته به كرايه او اُجرت حاصل سي او د مستعير كښت او فصل به له ضايع كېدلو څخه بچ سي.

د دې په خلاف مخكني صورت يعني كله چي مستعير د درختو د ايښولو يا ځای جوړولو لپاره ځمكه په عاريت اخيستې وي، په هغه صورت كي معير ځكه هر وخت له مستعير څخه ځمكه اخيستلای سي چي د درختو د كښلو او ځای نړولو لپاره هيڅ معلوم او يقيني وخت نه وي او دا شيان

د بل چا په ځمکه کې باقي پرېښوول تعدی او زیاتوب دی، نو ځکه مستعیر به په دې مکلف کېږي چي د معیر په حکم او مطالبه سره سمدستي ځای او درختي لیري کړي او ځمکه د معیر (مالک) لپاره فارغه کړي.

## د عاریت او داسي نورو شیانو د واپسی (واپس کولو) خرچه

قَالَ: وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَارِيَةِ عَلَى الْمُسْتَعِيرِ فرمایي: او د عاریت د واپس کولو اُجرت [مزدوري] پر مستعیر ده لِأَنَّ الرَّدَّ وَاجِبٌ عَلَيْهِ ځکه چي واپس کول پر مستعیر واجب دي لِمَا أَنَّهُ قَبَضَهُ لِمَنْفَعَةِ نَفْسِهِ ځکه مستعیر د خپل ځان د نفعي لپاره پر هغه قبضه کړې ده وَالْأُجْرَةُ مُؤْنَةُ الرَّدِّ او اُجرت د واپسی خرچه ده فَتَكُونُ عَلَيْهِ نو ځکه دا خرچه به پر واپس کونکي [مستعیر] وي وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمُسْتَأْجَرَةِ عَلَى الْمُؤَاجِرِ او د هغه شي د واپس کولو اُجرت [مزدوري] کوم چي په کرایه اخیستل سوی وي پر کرایه ورکونکي ده لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ التَّمْكِينُ وَالتَّخْلِيَةُ دُونَ الرَّدِّ ځکه چي پر مستأجر صرف قدرت ورکول او ورسپارل واجب دي، نه واپس کول فَإِنَّ مَنْفَعَةَ قَبْضِهِ سَالِمَةٌ لِلْمُؤَاجِرِ مَعْنًى ځکه چي د هغه د قبضې منفعت په حقیقت کې د مؤاجر [کرایه ورکونکي] لپاره سالم دی [یا په بله وینا دا چه د مستأجر د قبضې منفعت هم په حقیقت کې (د کرایې په شکل) مؤجر ته حاصلیږي] فَلَا يَكُونُ عَلَيْهِ مُؤْنَةُ رَدِّهِ نو ځکه پر مستأجر به د هغه د واپس کولو خرچه واجب نه وي وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمَغْصُوبَةِ عَلَى الْغَاصِبِ او د غصب کړی سوي شي د واپس کولو اُجرت پر غاصب دی لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَيْهِ الرَّدُّ وَالْإِعَادَةُ إِلَى يَدِ الْمَالِكِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ ځکه چي له مالک څخه د ضرر لیري کولو په خاطر هغه ته د مغصوب شي واپس کول او د هغه په قبضه کې ورکول پر غاصب واجب دي فَتَكُونُ مُؤْنَتُهُ عَلَيْهِ نو ځکه د واپس کولو خرچه به هم پر غاصب واجب وي.

**اللغات**: ﴿أجرة﴾ مزدوري، کرایه، ﴿الردّ﴾ د نصر مصدر دی: واپس کول، بیرته ورکول، ﴿مؤاجر﴾ او مواجر: اجارتاً د شي ورکونکی، په کرایه ورکونکی، د کرایې د شي مالک، ﴿مؤنة﴾ خرچه، لګښت، ﴿تمکین﴾ د تفعیل مصدر دی: یو چا ته پر یو شي قدرت ورکول (په قبضه کې ورکول)، ﴿تخلیة﴾ دا هم د تفعیل مصدر دی: پرېښوول، دوه شیان یا دوه کسان په خپل مینځ کې سره پرېښوول، کله چي دا لفظ د مبیع او داسي نورو سره ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: ورسپارل، حواله کول،

يعني له شي څخه خپله قبضه ختمول او بل چا ته سپارل (په قبضه کي ورکول)، ﴿سالمة﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث اسم فاعل صيغه ده: صحيح سالم، محفوظ، خوندي، ﴿الاعارة﴾ د افعال مصدر دی: عاريتاً ورکول، خواست کونکی ته شی ورکول.

**تشريح**: د عاريت او مغصوب شي پر واپس کولو چي کومه خرچه پرېوځي، هغه پر مستعير او غاصب لازميږي، نه د شي پر مالک؛ ځکه چي دا دواړه کسان بغير له استحقاقه او بلا عوضه مستعار شي او مغصوب شی په خپله قبضه کي اخلي، نو ځکه مالک به هم له دوی څخه خپل شی بلا عوضه يعني بغير له خرچې اخلي، او کومه خرچه چي هم وسي، هغه به همدوی اداء کوي. لېکن څرنګه چي د اجارې (اجارتاً ورکولو) په صورت کي مالک د خپل شي عوض يعني أجرت (کرايه) اخلي، نو ځکه د هغه شي د واپس کولو خرچه به هم پر مالک لازمه وي، پر مستأجر به صرف دومره لازم وي چي د مؤاجر او ملکيت ترمينځ تخليه وکړي يعني د مؤاجر له شي څخه خپله قبضه ختمه کړي د مؤاجر په قبضه کي يې ورکړي او هغه ته يې حواله کړي.

## د مستعار څاروي د واپس کولو بيان

قَالَ: وَإِذَا اسْتَعَارَ دَابَّةً فَرَدَّهَا إِلَى إِصْطَبْلِ مَالِكِهَا فرمايي: او که څوک يو څاروی [مثلاً آس] په عاريت واخلي بيا هغه دا څاروی د مالک [مُعير] اصطبل ته واپس کړي فَهَلَكَتْ او څاروی هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ نو مستعير نه ضامن کيږي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی [يعني دا حکم پر استحسان مبني دی] وَفِي الْقِيَاسِ يَضْمَنُ او په قياس کي هغه ضامن کيږي او لِأَنَّهُ مَا رَدَّهَا إِلَى مَالِكِهَا بَلْ ضَيَّعَهَا ځکه چي هغه دا څاروی خپل مالک ته نه دی واپس کړی بلکي څاروی يې ضايع کړی دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ أَتَى بِالتَّسْلِيمِ الْمُتَعَارَفِ د استحسان دليل دا دی چي هغه په متعارف ورسپارلو سره راتګ کړی دی [يعني په عُرف کي چي خلک څنګه مالک ته خپل څاروی واپس کوي، مستعير هم هغسي واپس کړی دی] لِأَنَّ رَدَّ الْعَوَارِيِّ إِلَى دَارِ الْمَالِكِ مُعْتَادٌ ځکه چي د مالک کور ته د عاريتونو واپس کول [په عُرف کي] عادت دي كَآلَةِ الْبَيْتِ تُعَارُ ثُمَّ تُرَدُّ إِلَى الدَّارِ لکه کورنی سامان چي په عاريت اخيستل کيږي بيا بيرته کور ته واپس کول کيږي وَلَوْ رَدَّهَا إِلَى الْمَالِكِ فَالْمَالِكُ يَرُدُّهَا إِلَى الْمَرْبِطِ او که مستعير هغه څاروی مالک ته واپس کړي بيا مالک هغه د تړلو ځای [اصطبل] ته واپس کړي فَصَحَّ رَدُّهُ نو د مستعير واپس کول صحيح سوه وَإِنِ اسْتَعَارَ عَبْدًا او که مستعير يو غلام په عاريت

واخلي فَرَدَّهُ إِلَىٰ دَارِ الْمَالِكِ وَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيْهِ بيا مستعير هغه غلام د مالک کور ته واپس کړي لېکن مالک ته يې نه وسپاري لَمْ يَضْمَنْ نو مستعير نه ضامن کېږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَلَوْ رَدَّ الْمَغْصُوبَ أَوِ الْوَدِيعَةَ إِلَىٰ دَارِ الْمَالِكِ وَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيْهِ او که چيري غصب کړی سوی شی يا د امانت شی د مالک کور ته واپس کړي او مالک ته يې نه وسپاري ضَمِنَ نو واپس کونکی ضامن کيږي لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى الْغَاصِبِ فَسْخُ فِعْلِهِ ځکه چې پر غاصب د خپل فعل [غصب] ختمول واجب دي وَذٰلِكَ بِالرَّدِّ إِلَى الْمَالِكِ دُوْنَ غَيْرِهِ او دا [خپل غصب ختمول] مالک ته په واپس کولو سره کيږي، نه بل چا ته په واپس کولو سره وَالْوَدِيعَةُ لَا يَرْضَى الْمَالِكُ بِرَدِّهَا إِلَى الدَّارِ وَلَا إِلَىٰ يَدِ مَنْ فِي الْعِيَالِ او [د مالک] کور ته د وديعت په واپس کولو سره مالک نه راضي کيږي او نه داسي کس ته په واپس کولو سره راضي کيږي کوم چې د مالک له کورنۍ څخه وي لِأَنَّهُ لَوِ ارْتَضَاهُ لَمَا أَوْدَعَهَا إِيَّاهُ ځکه که مالک په هغه راضي کېدای نو مودَع ته به يې وديعت نه اېښوولای بِخِلَافِ الْعَوَارِيْ په خلاف د عاريتونو لِأَنَّ فِيهَا عُرْفًا ځکه چې په هغوی کي عُرف جاري دی حَتّٰى لَوْ كَانَتِ الْعَارِيَّةُ عِقْدَ جَوْهَرٍ تر دې چې که عاريت [په خواست اخيستل سوی شی] د جواهرتو غاړه ګۍ وي لَمْ يَرُدَّهَا إِلَّا إِلَى الْمُعِيْرِ نو مستعير به هغه صرف معير [مالک] ته واپس کوي [يعني په دې صورت کي صرف مُعير ته واپس کول معتبر دي] لِعَدَمِ مَا ذَكَرْنَاهُ مِنَ الْعُرْفِ فِيهِ ځکه چې په داسي شي کي مذکوره عُرف [يعني کور ته واپس کول] نسته [يعني داسي قيمتي شی خلک د مالک کور ته نه واپس کوي لکه څاروی او داسي نور، بلکي د مالک په لاس کي يې ورکوي].

**اللغات:** ﴿استعار﴾ د استفعال ماضي ده: عاريتاً اخيستل، په خواست اخيستل، ﴿دابة﴾ څاروی، مثلاً آس، خر، غويی او داسي نور، ﴿اصطبل﴾ د اسونو او داسي نورو څارويو د ترلو او ساتلو ځای (کوټه)، طبيله، تبيله، طويله، ﴿العَوَارِيْ﴾ او عَوَارِيّ (ځکه په مفرد کي هم تشديد او تخفيف دواړه صحيح دي)، جمع د عَارِيةٌ ده: په عاريت (په خواست) اخيستل سوي شيان، ﴿متعارف﴾ د تفاعل اسم مفعول دی: په عُرف کي مشهوره او رواج، ﴿معتاد﴾ د تفاعل اسم مفعول دی: عادت کړی سوی، په

عُرف کي عادت، ﴿المربط﴾ د څارويو د تړلو ځای، ﴿ارتضی﴾ خوښول (يو څوک د خپل کار او خدمت لپاره خوښول)، په راضي کېدل، ﴿عِقْد﴾ (بکسر العين): هار، غاړه ګی. •

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړی عاريتاً (په خواست) له يو چا څخه آس ولخلي، بيا د خپل ضرورت له پوره کولو څخه وروسته آس د مالک کور ته ورسوي او د مالک په اصطبل خانه کي يې ودروي او هغه آس هلته مړ سي، نو استحساناً مستعير نه ضامن کيږي، لېکن قياساً پر هغه ضمان لازميږي؛ ځکه چي مستعير هغه آس خپل اصل مالک يعني معير ته واپس نه کړی، بلکي ضايع يې کړی، فيضمن.

د استحسان دليل دا دی چي د عاريت شی د مالک (مُعير) کور ته واپس کول معروفه او د عُرف و عادت مطابق طريقه ده، او دلته مستعير د همدې طريقې مطابق دا کار کړی دی، نو ځکه پر هغه به ضمان نه لازميږي. همدا وجه ده که مستعير په خپله مالک ته هغه آس واپس کړي او مالک هغه په اصطبل خانه کي ودروي او بيا هلته آس مړ سي، نو هم پر مستعير ضمان نه لازميږي او د هغه واپس کول معتبر او صحيح ګرځي، لهذا په پورتنی مسئله کي به هم د هغه واپس کول معتبر او صحيح وي او پر هغه به ضمان لازم نه وي.

د دې په خلاف که غاصب مغصوب شی د مالک کور ته واپس کړي يا مودَع يعني امانت ساتونکی وديعت (د امانت شی) د مالک کور ته واپس کړي او مالک ته يې نه وسپاري، نو د هلاکېدلو او ضايع کېدلو په صورت کي پر غاصب او مودَع د مغصوب شي او وديعت ضمان لازميږي؛ ځکه چي په غصب او وديعت کي معروف واپس کول عادت نه دي، بلکي پر غاصب د خپل فعل غصب ختمول ضروري دي، او غصب هماغه وخت ختميږي کله چي مغصوب شی خپل مالک ته واپس کړی سي. همدارنګه وديعت په دې وجه خپل مالک ته ورسپارل ضروري دي، چي که مالک په دې راضي کېدای چي وديعت دي صرف زما کور ته را ورسول سي او هلته دي پرېښوول سي يا صرف زما کورنی والا ته دي ورکول سي، نو هغه به بل چا ته وديعت نه ورکولای، لهذا تر څو چي مغصوب شی او وديعت اصل مالک ته حواله نه کړی سي، تر هغه وخته واپس کول (ردّ) نه ثابتيږي. دلته دا خبره په ياد لرئ! چي د مالک کور ته واپس کول فقط په هغه عاريتونو کي معتبر او صحيح دی چي په عُرف وعادت کي د مالک کور ته د هغوی واپس کول جاري او رايج وي (يعني په عامه توګه خلک هغه شی صرف د مالک کور ته رسوي او واپس کوي او خاص مالک ته يې په لاس کي نه ورکوي)، همدا وجه ده که عاريتاً اخيستل سوی شی د جواهراتو يا د سرو زرو غاړه ګی وي، نو تر څو چي هغه خپل مالک (مُعير) ته نه

ورکول سي، تر هغه وخته واپس کول (رد) معتبر نه دي؛ ځکه په دا ډول شیانو کي د مالک کور ته واپس کول عُرف وعادت نه دي.

## د خپل غلام یا مزدور په لاس عاریت واپس کول

قَالَ: وَمَنِ اسْتَعَارَ دَابَّةً فَرَدَّهَا مَعَ عَبْدِهِ أَوْ أَجِيْرِهِ فرمايي: او که څوک یو څاروی [مثلاً آس] په عاریت واخلي بیا هغه په خپل غلام یا مزدور سره [مالک ته] واپس کړي لَمْ يَضْمَنْ نو نه ضامن کیږي وَالْمُرَادُ بِالْأَجِيْرِ أَنْ يَكُوْنَ مُسَانَهَةً أَوْ مُشَاهَرَةً او له اجیر څخه مراد هغه مزدور دی کوم چي د یوه کال یا د یوې میاشتي لپاره په مزدوري نیول سوی وي لِأَنَّهَا أَمَانَةٌ ځکه چي عاریت امانت دی فَلَهُ أَنْ يَحْفَظَهَا بِيَدِ مَنْ فِيْ عِيَالِهِ نو ځکه هغه [مستعیر] ته دا اختیار سته چي د هغه کس په لاس عاریت محفوظه کړي کوم چي د ده له کورنۍ والا څخه وي [يعني کوم چي د ده نفقه خوري] كَمَا فِي الْوَدِيْعَةِ لکه څرنګه چي په ودیعت کي کیږي بِخِلَافِ الْأَجِيْرِ مُيَاوَمَةً په خلاف د هغه مزدور کوم چي د یوې ورځي لپاره په مزدورۍ نیول سوی وي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيْ عِيَالِهِ ځکه چي هغه د مستعیر له کورنۍ والا څخه نه دی [ځکه هغه د مستعیر نفقه نه استعمالوي بلکي هره شپه خپل کور ته ځي او خپله نفقه خوري]

وَكَذَا إِذَا رَدَّهَا مَعَ عَبْدِ رَبِّ الدَّابَّةِ أَوْ أَجِيْرِهِ او همدارنګه کله چي مستعیر هغه [څاروی] د څاروي د مالک په غلام یا مزدور سره [مالک ته] واپس کړي [نو هم مستعیر نه ضامن کیږي] لِأَنَّ الْمَالِكَ يَرْضٰى بِهِ ځکه چي مالک په دې [هم] راضي کیږي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ رَدَّهُ إِلَيْهِ فَهُوَ يَرُدُّهُ إِلٰى عَبْدِهِ آیا ته نه ګورې! چي که مستعیر ومالک ته څاروی واپس کړي نو مالک هغه خپل غلام ته واپس کوي [او په خپله یې نه بیایي] وَقِيْلَ: هٰذَا فِي الْعَبْدِ الَّذِيْ يَقُوْمُ عَلَى الدَّوَابِّ او ویل سوي دي: چي دا حکم د هغه غلام په باره کي دی کوم چي پر څارویو ولاړ وي [يعني کوم چي د څارویو پر ساتنه مأمور او ټاکل سوی وي]

وَقِيْلَ: فِيْهِ وَفِيْ غَيْرِهِ او ویل سوي دي: چي دا حکم د دغه غلام په باره کي هم دی او له ده څخه بغیر د بل غلام په باره کي هم دی [يعني هر ډول غلام په دې حکم کي داخل دی، برابره ده هغه پر څارویو مامور وي، که نه] وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا [دویم قول] زیات صحیح دی لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ لَا يَدْفَعُ إِلَيْهِ دَائِمًا يَدْفَعُ إِلَيْهِ أَحْيَانًا ځکه که څه هم مالک داسي غلام ته [کوم چي پر څارویو مامور نه وي] همېشه څاروی نه ورکوي لېکن کله نا کله یې ورکوي وَإِنْ رَدَّهَا مَعَ أَجْنَبِيٍّ او که مستعیر هغه څاروی په یو پردي سړي سره [مالک

ته] واپس کړي ضَمِنَ نو ضامن كيږي وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى أَنَّ الْمُسْتَعِيرَ لَا يَمْلِكُ الْإِيدَاعَ قَصْدًا او دا مسئله پر دې دلالت کوي چې مستعير د دې ملکيت [اختيار] نه لري چې مستعار شی بل چا ته قصداً په وديعت [په امانت] ورکړي كَمَا قَالَهُ بَعْضُ الْمَشَايِخِ لکه څرنګه چې دا ځيني مشايخو ويلي دي [چې له هغوی څخه يو امام ابو الحسن كرخي رَحِمَهُ الله هم دی] وَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَمْلِكُهُ او ځيني مشايخو ويلي دي: چې مستعير د دې ملکيت [اختيار] لري [او دا د عراق د مشايخو قول دی چې له هغوی څخه بعضي دا دي: فقيه ابو الليث، ابو بكر، محمد بن فضل بخاري او داسې نور] لِأَنَّهُ دُوْنَ الْإِعَارَةِ ځکه چې وديعتاً ورکول له عاريتاً ورکولو څخه کم تر دي وَأَوَّلُوا هٰذِهِ الْمَسْأَلَةَ بِإِنْهَاءِ الْإِعَارَةِ لِانْقِضَاءِ الْمُدَّةِ او هغوی د دغه مسئلې تأويل د مودت په پوره کېدلو سره د اعارې پر ختمېدلو کړی دی [يعني مشائخِ عراق د دې تأويل دا کړی دی چې کله د عاريت د مودت په تېرېدلو او پوره کېدلو سره د عاريت معامله ختمه سي، نو بيا د هغه لپاره وديعتاً ورکول جائز نه دي].

**اللغات**: ﴿أجير﴾ په أجرت نيول سوی مزدور، نوکر، ﴿مسانهة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، له سَنَةٌ څخه مشتق دی: د پوره کال لپاره يو معامله کول، د پوره کال لپاره يو څوک په مزدوري نيول، سالانه، کالانه، مراد ځني کالنی مزدور دی، ﴿مشاهرة﴾ مخکنی صيغه ده: د يوې مياشتي لپاره يو معامله کول (يو څوک په مزدوري نيول)، ﴿عِيال﴾ کورنی والا، هغه کسان کوم ته چې سړی نفقه ورکوي، نو په دې تعريف کي د سړي مياشتانه او سالانه مزدوران (نوکران) هم داخل دي، ﴿مياومة﴾ مخکنی صيغه ده: د يوې ورځي لپاره يو معامله کول، ﴿إيداع﴾ د افعال مصدر دی: په وديعت ايښوول، په امانت ورکول، ﴿أوّلوا﴾ د تفعيل ماضي ده: تأويل و توجيه کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک عاريتاً (په خواست) يو آس يا داسې بل شی واخلي او په هغه سره خپل ضرورت پوره کړي او بيا هغه آس د خپل غلام يا د خپل داسې مزدور په لاس مالک ته ورسوي، کوم چې ديوه کال يا د يوې مياشتي لپاره د هغه سره مزدوري کوي، نو دا واپس کول (رد) معتبر او صحيح دي، او تر دې وروسته که هغه آس هلاک سي، نو مستعير نه ضامن کيږي؛ ځکه چې عاريتاً اخيستل سوی شی د مستعير سره امانت وي او هغه ته دا اختيار سته چې په خپل عيال سره د هغه حفاظت وکړي، او غلام يا سالانه او مياشتانه مزدور هم د هغه په عيال کي داخل دي، نو ځکه د هغوی په ذريعه به واپس کول هم معتبر وي، او ځکه چې داسې کسان د اصل مالک نائبين دي. ها! روزانه کاره مزدور په عيال کي شامل نه دی، نو ځکه د هغه په ذريعه واپس کول معتبر نه دي او د هلاکېدلو په صورت کي پر مستعير ضمان لازميږي.

وكذا إلخ: فرمايي چي څرنګه د خپل غلام او مزدور په ذريعه عاريت واپس کول معتبر دي، همداسې په خپله د مالک (مُعير) د غلام او مزدور په ذريعه واپس کول هم معتبر دي؛ ځکه چي مالک هم په خپل غلام او خادم سره داسي کارونه کوي او په دې راضي وي. او زيات صحيح قول دا دی چي له غلام څخه هر ډول غلام مراد دی، خاص غلام يعني د څارويو ساتونکی او پالونکی غلام ځني مراد نه دی؛ ځکه د ضرورت پېښېدلو په وخت کي له هر ډول غلام څخه داسي کار اخيستل کيږي.

وإن ردّها مع أجنبي إلخ: مسئله دا ده که مستعير د عاريت آس يا بل شی د يو اجنبي (پردي) کس په لاس ورکړي او د هغه په ذريعه يې مالک ته واپس کړي، بيا هغه هلاک سي، نو مستعير ضامن کيږي؛ ځکه چي اجنبي کس نه د هغه په عيال او متعلقينو کي شامل دی او نه د هغه نائب ګڼل کيږي، له همدې څخه امام کرخي رَحِمَهُ الله دا مسئله اخذ کړې ده چي مستعير قصداً د عاريت شی وديعتاً (په امانت) نه سي ورکولای؛ ځکه بل چا ته د مستعار شي د ورکولو مطلب دا دی چي د عاريت مودت ختم سو او له هغه شي څخه د ده استحقاق او تعلق منقطع سو، نو ځکه هغه د بل چا شی په وديعت نه سي ورکولای. او د مشائخ عراق رايه دا ده چي مستعير د عاريت شی په وديعت ورکولای سي؛ ځکه چي وديعت له اعارې څخه کم تر دی؛ ځکه په اعاره کي د شي د منافعو تمليک کيږي، حالانکي په وديعت کي شی فقط امانتاً ايښوول کيږي، او مستعير د منافعو د تمليک اختيار هم لري، نو ځکه د وديعت اختيار خو به په درجه اولیٰ لري، ليکن ياد ساتئ! چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي د مستعير په حق کي د عاريت مودت ختم سوی نه وي او هغه پر عاريت باقي پاته وي.

او په "وَأَوَّلُوا هٰذِهِ الْمَسْأَلَة" کي د "أَوَّلُوا" فاعل مشائخ عراق دي کوم چي د وديعتاً ورکولو د جواز قائلين دي او له "مَسْأَلَة" څخه مراد د "وَإِنْ رَدَّهَا مَعَ أَجْنَبِيّ إلخ" والا مسئله ده. دلته عربي شارحينو هم داسي وضاحت کړی دی، ځکه چي هغوی هم د "أَوَّلُوا" فاعل مشائخ عراق ګرځولي دي او د مشائخ عراق خبره په هماغه صورت کي په پوهه کي راځي کله چي د عاريت مودت ختم او پوره سوی وي، نو بيا هغه ضمان کيږي، او که د عاريت مودت باقي پاته وي، نو نه ضامن کيږي، فافهم. (كفايه وبنايه ج:۹، ص:۱۹۵)

## د ځمکي د عاريتاً ورکولو په صورت کي به کوم الفاظ استعماليږي؟

قَالَ: وَمَنْ أَعَارَ أَرْضًا بَيْضَاءَ لِلزِّرَاعَةِ فرمايي: او که څوک د کښت کرني لپاره [مستعير ته] خالي ځمکه په عاريت ورکړي يَكْتُبُ إِنَّكَ أَطْعَمْتَنِيْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به مستعير [په عاريت نامه کي] داسي ليکي: تا دا ځمکه ما ته د خوراک لپاره راکړې ده وَقَالَا ❁ : يَكْتُبُ إِنَّكَ أَعَرْتَنِيْ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي داسي به ليکي: تا دا ځمکه ما ته عاريتاً راکړې ده لِأَنَّ لَفْظَةَ الْإِعَارَةِ مَوْضُوعَةٌ لَهُ ځکه چي لفظ د "اعارة" د همدې عقد اعاره لپاره موضوع [وضع کړی سوی] دی وَالْكِتَابَةُ بِالْمَوْضُوعِ أَوْلَى او په موضوع سره ليکل زيات غوره دي [يعني ديو شي لپاره چي کوم لفظ وضع سوی وي، د هغه شي لپاره هغه لفظ ليکل ډېر ښه او معتبر دي] كَمَا فِي إِعَارَةِ الدَّارِ لکه څرنګه چي د کور په اعاره کي داسي کيږي وَلَهُ: أَنَّ لَفْظَةَ الْإِطْعَامِ أَدَلُّ عَلَى الْمُرَادِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د "اطعام" لفظ پر مراد زيات دلالت کونکی دی لِأَنَّهَا تَخْتَصُّ بِالزِّرَاعَةِ ځکه چي دا لفظ د زراعت سره مختص [خاص] دی وَالْإِعَارَةُ يَنْتَظِمُهَا وَغَيْرَهَا كَالْبِنَاءِ وَنَحْوِهِ ليکن اعاره زراعت او له هغه څخه ماسوا شيانو لکه بناء او داسي نورو لره هم شامليږي فَكَانَتِ الْكِتَابَةُ بِهَا أَوْلَى نو ځکه په لفظ "اطعام" [مختص لفظ] سره به ليکل زيات غوره وي بِخِلَافِ الدَّارِ په خلاف د کور لِأَنَّهَا لَا تُعَارُ إِلَّا لِلسُّكْنَى ځکه چي هغه صرف د استوګني لپاره په عاريت اخيستل کيږي. [يعني کور صرف د اوسېدلو لپاره په خواست غوښتل کيږي].

**اللغات:** ﴿بيضاء﴾ سپينه، مراد ځني له زارعت څخه خالي ځکمه ده چي څه پر کرل سوي نه وي، ﴿زراعة﴾ کښت کرنه (فصل کرل)، کرهڼه. ﴿تختص﴾ د افتعال مضارع ده: خاص کېد، مُتعيّن کېدل، ﴿ينتظم﴾ شاملېدل، ﴿البناء﴾ جوړ سوی ځای، وداني.

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ويكتب مستعير الأرض للزراعة: قد أطعمتني أرضك لا أعرتني، خلافا لهما، فعندهما يكتب أعرتني، لأنه الصريح كما في إعارة الثوب والدار، قلنا: ذاك (أي أطعمتني) أصْرَحُ بالمقصود، كيلا يعم البناء ونحوه، فكان أولى (الدر المنتقى ج:۳، ص:۴۸۷)، و رد المحتار (ج:۴، ص:۵۶۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲۱]

**تشریح: مسئله**: دا ده چي کله یو سړی د کښت وکروندې لپاره ځمکه عاریتاً (په خواست) واخلي او په دې باره کي د خط لیکلو نوبت راسي، نو پکار دا ده چي د مستعیر له طرفه داسي الفاظ ولیکل سي "إِنَّكَ أَطْعَمْتَنِيْ" (تا دا ځمکه ما ته د خوراک یعني د غلې (غنمو او داسي نورو) د حاصلولو لپاره راکړې ده"، دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی. صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په دې صورت کي به خاص د اعارې الفاظ لیکل کیږي یعني "إِنَّكَ أَعَرْتَنِيْ" (تا دا ځمکه ما ته عاریتاً راکړې ده"؛ ځکه کله چي د دې کار لپاره د "إِعَارَةٌ" لفظ موضوع دی، نو ښکاره خبره ده چي په دې لفظ سره لیکل به زیات غوره وي، لکه کله چي یو څوک بل چا ته د اوسېدلو لپاره عاریتاً یو کور ورکړي، نو په هغه کي هم د اعارې په لفظ سره خط لیکل کیږي، نو همداسي به دلته هم لیکنه او لوستنه د اعارې په لفظ سره وي.

د امام صاحب دلیل دا دی چي په پورتني صورت کي د "إطعام" لفظ د عاریت پر مقصد زیات دلالت کوي؛ ځکه چي دا لفظ صرف د زراعت سره خاص دی (یعني د کښت کرلو او طعام [غنم حاصلولو] سره خاص دی) او تاسي ته معلومه ده چي په پورتني صورت کي ځمکه هم د زراعت لپاره ورکول سوې ده، حال دا چي لفظ د "اعارة" د زراعت سره، سره بناء او غرس لره هم شامل دی، نو د دې لفظ په استعمالولو کي وروسته د معیر او مستعیر تر منځ د اختلاف پیښېدلو احتمال او موقع سته، نو ځکه به خط او تحریر د "إطعام" په لفظ سره لیکل کیږي. او پورتنی صورت د کور (دَار) پر اعارې قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه چي د کور اخیستنه او ورکونه صرف د استوګنې (اوسېدلو) لپاره کیږي او په هغه کي د بناء او غرس امکان نه پاتیږي، حالانکي په ځمکه کي د زراعت، بناء او غرس ټولو امکان سته، نو ځکه په داسي لفظ سره به عاریت نامه (د عاریت دستاویز) لیکل کیږي کوم چي فقط پر زراعت دلالت کوي او په دې باره کي د "إطعام" د لفظ څخه غوره او بهتره بل لفظ نسته. والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الْهِبَةِ

## (دا) کتاب د هبې (د احکامو په بيان کې) دی

**تشريح**: د كتاب العارية او كتاب الهبة په مينځ کې د مناسبت وجه دا ده چې په عاريت کې بلا عوضه د منافعو تمليک کيږي او په هبه کې بلا عوضه د عَين شي او منافعو دواړو تمليک کيږي (يعني په عاريت کې يو څوک [مستعير] بغير له عوضه د شي د منافعو مالک کول کيږي او په هبه کې يو څوک [موهوب لهٗ] بغير له عوضه د شي او د هغه د منافعو دواړو مالک کول کيږي)، نو ځکه عاريت د مفرد په درجه کې سو او هبه د مرکب په درجه کې سوه، او تاسي ته معلومه ده چې مفرد تر مرکب مخکې وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله كتاب العارية مخکې کړی دی او تر هغه وروسته يې كتاب الهبه بيان کړی دی.

**د هبة لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: "هِبَةٌ" په اصل کې "وَهْبٌ" د ضرب د باب مصدر دی، له اول څخه واو حذف کړی سو او په آخر کې د تانيث هاء زياته کړی سوه، لکه د "وَعَدَ، يَعِدُ" څخه "عِدَةٌ".

د "هِبَة" لغوي معنیٰ ده: د احسان په توګه بلا عوضه شی ورکول، او ځينو لغوي معنیٰ داسي ذکر کړې ده: "إِيْصَالُ الشَّيْءِ لِلْغَيْرِ بِمَا يَنْفَعُهُ سَوَاءٌ كَانَتْ مَالًا أَوْ غَيْرَ مَالٍ" (بل چا ته داسي شی ورکول کوم چې د هغه لپاره نفع مند وي، برابره ده هغه مال وي او که غير مال وي).

د هبې اصطلاحي معنیٰ ده: "تَمْلِيْكُ الْعَيْنِ أَوِ الْمَالِ بِلَا عِوَضٍ" (بغير له عوضه يو څوک د مال يا عَين شي مالک کول). (احسن الهدايه)

لنډه دا چې يو چا ته احساناً مفت شي ورکولو ته هبه وايي. کوم سړي ته چې شی هبه کړی سي، هغه ته "مَوْهُوْبٌ لَهٗ" وايي او هبه کونکي ته "وَاهِب" وايي او هبه کړی سوي شي ته "مَوْهُوْب" وايي.

**فايــده**: د بيع او د اجارة، اعارة او هبة تعريفات په لنډه توګه داسي هم ويل کېدای سي چې ① "تَمْلِيْكُ الْعَيْنِ بِالْعِوَض" بيع ده، ② "تَمْلِيْكُ الْعَيْنِ بِلَا عِوَض" هبه ده، ③ "تَمْلِيْكُ الْمَنْفَعَةِ بِالْعِوَض" اجاره ده، ④ او "تَمْلِيْكُ الْمَنْفَعَةِ بِلَا عِوَض" اعاره ده. (تعريفات للجرجاني)

## د هبې مشروعيت او حکم

اَلْهِبَةُ عَقْدٌ مَشْرُوعٌ فرمايي: هبه يو مشرع عقد دی لِقَوْلِهِ الْعَلِيْلَا [1]: «تَهَادَوْا تَحَابُّوا» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "تاسي يو بل ته هديه کوئ! په دې سره به تاسي يو د بل سره مبحت کوی" [يعني ستاسو په مينځ کې به محبت پيدا سي] وَعَلٰى ذٰلِكَ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او پر همدې [د هبې پر مشروع کېدلو] اجماع منعقد سوې ده وَتَصِحُّ بِالْإِيْجَابِ وَالْقَبُوْلِ وَالْقَبْضِ او هبه په ايجاب، قبول او قبضې سره صحيح کيږي أَمَّا الْإِيجَابُ وَالْقَبُولُ فَلِأَنَّهُ عَقْدٌ پاته سو ايجاب و قبول نو ځکه چې هبه يو عقد دی وَالْعَقْدُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ او عقد په ايجاب و قبول سره منعقد کيږي وَالْقَبْضُ لَا بُدَّ مِنْهُ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ او قبضه د ملکيت ثابتېدلو لپاره ضروري ده وَقَالَ مَالِكٌ: يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِيهِ قَبْلَ الْقَبْضِ اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په هبه کې [هم] له قبضې څخه مخکې ملکيت ثابتيږي، پر بيع په قياس کولو سره وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الصَّدَقَةُ او پر همدغه اختلاف صدقه ده وَلَنَا قَوْلُهُ الْعَلِيْلَا [2]: «لَا يَجُوزُ الْهِبَةُ إِلَّا مَقْبُوضَةً» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی: "هبه جائز نه ده مگر د مقبوض والي په حالت کې" [يعني هبه صرف په هغه صورت کې جائز کيږي کله چې پر هغې قبضه سوې وي] وَالْمُرَادُ نَفْيُ الْمِلْكِ او [په حديث کې د "لا يجوز" څخه] مراد د ملکيت نفي گول دي لِأَنَّ الْجَوَازَ بِدُونِهِ ثَابِتٌ ځکه چې له قبضې څخه بغير [هم] جواز ثابت دی وَلِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ او ځکه چې هبه د تبرع [احسان کولو] عقد دی وَفِي إِثْبَاتِ الْمِلْكِ قَبْلَ الْقَبْضِ إِلْزَامُ الْمُتَبَرِّعِ شَيْئًا لَمْ يَتَبَرَّعْ بِهِ او له قبضې څخه مخکې د ملکيت په ثابتولو کې پر متبرع [احسان کونکي] د داسي شی لازمول سته چې ده په هغه سره تبرع نه ده کړې وَهُوَ التَّسْلِيمُ او هغه ورسپارل دي فَلَا يَصِحُّ نو ځکه به دا صحيح

---

[1] تخريج: رواه البيهقي في سننه، رقم الحديث: ۱۱۷۲۷. والبخاري في الأدب المفرد، رقم الحديث: ۵۹۴.

[2] تخريج: دا حديث امام زيلعي رَحِمَهُ الله په نصب الرايه کې نقل کړی دی او هغه دې حديث ته "غريب" ويلي دي (ج:۴، ص:۲۹۰). خو د دې حديث په معنی سره يو حديث حافظ بيهقي او داسې نورو نقل کړی دی چې له هغه څخه په ښکاره توگه دا معلوميږي چې د موهوب لهٔ قبضه کول شرط او ضروري دي او له قبضې څخه بغير ملکيت نه ثابتيږي (سنن البيهقي، باب شرط القبض في الهبة، حديث رقم: ۱۱۷۲۸). همداسې له اسلافو څخه نور هم ډېر آثار او اقوال د قبضې د اشتراط په هکله منقول دي.

نه وي [يعني نو ځکه په هبه کي به له قبضې څخه مخکي د موهوب لهٗ لپاره ملکيت ثابتول صحيح نه وي] بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ په خلاف د وصيت لِأَنَّ أَوَانَ ثُبُوتِ الْمِلْكِ فِيهَا بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چي په هغه کي د ملکيت ثابتېدلو وخت تر مرګ وروسته دی [يعني په وصيت کي د مُوصِي (وصيت کونکي) تر مرګ وروسته ملکيت ثابتيږي] وَلَا إِلْزَامَ عَلَى الْمُتَبَرِّعِ او پر متبرع هيڅ شی نه لازميږي لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ اللُّزُومِ ځکه چي [په هغه کي] د لزوم اهل کېدل معدوم دي وَحَقُّ الْوَارِثِ مُتَأَخِّرٌ عَنِ الْوَصِيَّةِ او د وارث حق له وصيت څخه مؤخر دی فَلَمْ يَمْلِكْهَا نو ځکه وارث به د وصيت د مال نه مالک کيږي.

**اللغات:** ﴿تهادوا﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر امر حاضر صيغه ده: يو بل ته هديه کول (هبه کول)، هديه ورکول. ﴿تحابوا﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر مخاطب مضارع صيغه ده: يو د بل سره محبت کول، مينه کول. ﴿تبرّع﴾ د تفعّل مصدر دی: احسان کول، بلا عوضه (مفت) شی ورکول، داسي کار کول کوم چي د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصيت، هبه او داسي نور. ﴿إيجاب﴾ د افعال مصدر دی: لازمول، ثابتول، هغه کلام کوم چي د عقد کولو په باره کي د يوه عاقد له طرفه اول صادر سي او کله چي دويم عاقد د هغه اول کلام قبول کړي نو د هغه کلام ته "قبول" وايي، مثلاً زيد و خالد ته ووايي چي "زه دا شی تا ته هبه کوم" او خالد ووايي چي "زما قبول دی، يا زما خوښه ده او داسي نور"، نو د زيد کلام ته ايجاب وايي او د خالد کلام ته قبول وايي. يادونه: ايجاب او قبول قولا (په خوله ويل) ضروري نه دی، بلکي محض ورکړه راکړه او هغه افعال کوم چي پر ايجاب و قبول دلالت کوي کافي دي، لکه څرنګه چي علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله فرمايلي دي "التَّلَفُّظُ بِالإِيجَابِ وَالْقُبُولِ لَا يُشْتَرَطُ، بَلْ تَكْفِي الْقَرَائِنُ الدَّالَّةُ عَلَى التَّمْلِيكِ"، نو که زيد په پټه خوله و خالد ته شی ورکړي او خالد پر هغه قبضه وکړي او له دوی څخه يو هم هيڅ لفظ نه ووايي، نو کافي دي. ﴿أوان﴾ وخت، ګړی، لمحه. ﴿المتبرّع﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: تبرع کونکی، احسان کونکی (احساناً بلا عوضه يو کار کونکی).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي هديه او هبه کول مشروع او جائز فعل دی او دا صرف جائز نه، بلکي غوره او مستحسن کار دی، په حديث مبارک کي هبه د خپل مينځوي محبت ذريعه ښوول سوې ده او امت مسلمه له اول څخه تر آخره د هبې پر مشروعيت او جواز متفق دي، او څرنګه چي نور عقدونه په ايجاب و قبول سره منعقد کيږي، همداسي دا عقد هم په ايجاب و قبول سره منعقد کيږي. خو په دې عقد (هبه) کي صرف هغه وخت د موهوب لهٗ ملکيت په موهوب شي کي ثابتيږي، کله چي موهوب

لهٔ پر هغه قبضه وکړي، او بغیر له قبضې ملکیت نه ثابتیږي. لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز بغیر له قبضې هم په موهوب شي کي د موهوب لهٔ ملکیت ثابتیږي، لکه څرنګه چي په بیع کي صرف تر ایجاب وقبول وروسته سمدستي بغیر له قبضې په مبیع کي د مشتري ملکیت ثابتیږي. ګواکي امام مالک رَحِمَهُ الله له قبضې څخه بغیر د ملکیت ثابتېدلو په باره کي هبه پر بیع قیاس کړې ده. همدارنګه هغه په دې باره کي هبه پر وصیت هم قیاس کړې ده چي په وصیت کي هم له قبضې څخه بغیر ملکیت ثابتیږي.

ولنا قوله عليه السلام إلخ: زموږ دلیل دا حدیث دی "لا يجوز الهبة إلا مقبوضة" چي هبه صرف هغه وخت جائز ده کله چي پر هبه (یعني پر موهوب شي) قبضه وکړی سي، او دلته د "لا يجوز" څخه مراد "لَا يُمْلَكُ" یعني له قبضې څخه بغیر هبه (موهوب شی) په ملکیت کي نه داخلیږي؛ ځکه د هبې جواز (جائز کېدل) خو بغیر له قبضې هم ثابت دي، معلومه سوه چي په حدیث مبارک کي "لا يجوز" د "لا يملك" په معنیٰ سره دی.

د دې سلسلې عقلي دلیل دا دی چي هبه د تبرع عقد دی، او په تبرع کي پر متبرع او احسان کونکي جبر نه کیږي، اوس که چیري موږ محض په ایجاب وقبول سره بغیر له قبضې په موهوب شي کي د موهوب لهٔ ملکیت ثابت کړو، نو ښکاره خبره ده چي پر هغه به سمدستي (فوراً) د موهوب شي ورسپارل لازم سي، حالانکي پر واهب او متبرع د داسي شی لازمول د تبرع د روح خلاف او منافي دي کوم چي هغه پر ځان لازم کړی نه وي، نو په دې وجه هم بغیر له قبضې هبه معتبره او جائز نه ده.

بخلاف الوصية: څه مخکي موږ وویل چي امام مالک رَحِمَهُ الله هبه پر وصیت هم قیاس کړې ده چي په وصیت کي له قبضې څخه بغیر ملکیت ثابتیږي، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه جواب ورکوي، چي په وصیت او هبه کي فرق دی او هغه دا چي په وصیت کي د موصي تر مرګ وروسته (د موصی لهٔ لپاره) ملکیت ثابتیږي، نو په وصیت کي پر موصي (متبرع) هیڅ څه نه لازمول کیږي؛ ځکه چي د مرګ په وجه په موصي کي د لزوم اهلیت پاته نه سي، یعني تر مرګ وروسته هغه د دې اهل نه پاتیږي چي پر هغه یو غیر لازم شی (د مال وصیت ورسپارل) لازم سي، نو ځکه هبه پر وصیت قیاسول صحیح نه دي.

وحق الوارث إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی، حاصل د سوال دا دی چي صحیح ده! دا خبره موږ تسلیموو چي د مرګ په وجه په موصي کي د لزوم اهلیت نه پاتیږي، لېکن د موصي په ملکیت کي وارث د هغه خلیفه او قائم مقام دی. نو څرنګه چي موصي په وصیت کي متبرع دی، نو همداسي به د

هغه وارث هم متبرع وي، او تاسي ته معلومه ده چي پر وارث موصیٰ لهٗ ته د مال وصيت ورسپارل لازم دي، حالانكي پر متبرع غیرِ لازم شی لازمول د تبرع منافي او خلاف دي.

د جواب حاصل دا دی چي د وارث حق له وصيت څخه وروسته دی (يعني اول له ميراث څخه د مړي وصيت پوره كيږي او بيا تر هغه وروسته مابقي مال د وارثانو په مينځ كي تقسيمول كيږي)، لهذا وارث په مال وصيت كي د موصي (متبرِّع) قائم مقام نه سو، فلا معتبر بتسليمه؛ لأنه لم يملكها ولا قام مقام المالك فيها.

همدارنگه هبه پر بيع قياسول هم صحيح نه دي؛ ځكه چي بيع عقدِ معاوضه دی، حال دا چي هبه عقد تبرع دی، او په معاوضه او تبرع كي د ځمكي او آسمان فرق دی.

## په هبه كي د قبضي تفصيل

قَالَ: فَإِنْ قَبَضَهُ الْمَوْهُوبُ لَهُ فِي الْمَجْلِسِ بِغَيْرِ أَمْرِ الْوَاهِبِ فرمايي: او كه چيري موهوب لهٗ د واهب له حكم څخه بغير په مجلس كي قبضه وكړي جَازَ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دي وَإِنْ قَبَضَ بَعْدَ الِافْتِرَاقِ او كه چيري [له مجلس څخه] تر جلا كېدلو وروسته قبضه وكړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ الْوَاهِبُ فِي الْقَبْضِ مگر دا چي واهب هغه ته د قبضه كولو اجازت وركړي وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ فِي الْوَجْهَيْنِ او قياس دا دی چي په دواړو صورتونو كي قبضه نه جائز كيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْقَبْضَ تَصَرُّفٌ فِي مِلْكِ الْوَاهِبِ ځكه چي قبضه [په حقيت كي] د واهب په ملكيت كي تصرف كول دي إِذْ مِلْكُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ بَاقٍ ځكه د واهب ملكيت له قبضي څخه مخكي باقي پاته وي فَلَا يَصِحُّ بِدُونِ إِذْنِهِ نو ځكه د واهب له اجازته بغير به قبضه نه صحيح كيږي وَلَنَا: أَنَّ الْقَبْضَ بِمَنْزِلَةِ الْقَبُولِ فِي الْهِبَةِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ يَتَوَقَّفُ عَلَيْهِ ثُبُوتُ حُكْمِهِ وَهُوَ الْمِلْكُ زموږ دليل دا دی: چي په هبه كي قبضه د قبول په دَرَجه كي ده په دې حيثيت سره چي د هبې حكم يعني ملكيت پر هغه موقوف دی [په بله وينا: زموږ دليل دا دی: چي په هبه كي قبضه كول داسي دي لكه په بيع كي قبول كول (يعني تر ايجاب وروسته قبلول) په دې اعتبار سره چي پر قبضه د هبې حكم يعني د ملكيت ثبوت موقوف پاتيږي (احسن الهدايه)] وَالْمَقْصُودُ مِنْهُ إِثْبَاتُ الْمِلْكِ او له دې څخه مقصود د ملكيت ثابتول دي [يعني د واهب مقصود د موهوب لهٗ لپاره ملكيت ثابتول دي] فَيَكُونُ الْإِيجَابُ مِنْهُ

تَسْلِيطًا عَلَى الْقَبْضِ نو ځکه د واهب له طرفه ايجاب کول به [موهوب لهٔ] پر قبضه مسلط کول وي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَبَضَ بَعْدَ الِافْتِرَاقِ په خلاف د هغه صورت دي کله چي [له مجلس څخه] تر جلا کېدلو وروسته موهوب لهٔ قبضه وکړي [نو جائز نه دي] لِأَنَّا إِنَّمَا أَثْبَتْنَا التَّسْلِيطَ فِيهِ إِلْحَاقًا لَهُ بِالْقَبُولِ ځکه په هبه کي چي موږ کوم پر قبضه مسلط کول ثابت کړي دي هغه مو د قبول سره د قبضې د لاحقولو په توګه کړي دي [په بله وينا: ځکه چي موږ د قبول سره د ايجاب او قبضې په لاحقولو سره په هبه کي تسليط ثابت کړی دی] وَالْقَبُولُ يَتَقَيَّدُ بِالْمَجْلِسِ او قبول [قبلول] په مجلس سره مقيد دي فَكَذَا مَا يُلْحَقُ بِهِ نو همداسي به هغه شی [هم په مجلس سره مقيّد] وي کوم چي د قبول سره لاحقول کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا نَهَاهُ عَنِ الْقَبْضِ فِي الْمَجْلِسِ په خلاف د هغه صورت کله چي واهب موهوب لهٔ په مجلس کي له قبضه کولو څخه منع کړي لِأَنَّ الدَّلَالَةَ لَا تَعْمَلُ فِي مُقَابَلَةِ الصَّرِيحِ ځکه چي دلالت د صريح په مقابله کي عمل نه کوي [يعني د صريح په مقابله کي دلالت عامل او مؤثر نه ګرځي].

**اللغات**: ﴿الموهوب لهٔ﴾ د ضرب له بابه اسم مفعول دی: چا ته چي شی هبه کړی سوی وي (هغه کس کوم چي ته بل چا يو شی هبه کړی وي)، ﴿افتراق﴾ د افتعال مصدر دی: يو له بله جلا کېدل، ﴿تصرّف﴾ د تفعّل مصدر دی: تصرف کول، دخل کول، ﴿إلحاق﴾ د افعال مصدر دی: لاحق کول، يو شی د بل شي سره يو ځای کول (لګول، متصل کول).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي زموږ په نېز د هبې د صحت او جائز کېدلو لپاره قبضه کول شرط دي. که چيري موهوب لهٔ کس د واهب له حکم او اجازت څخه بغير د هبې (ايجاب) په مجلس کي دننه پر موهوب شي قبضه وکړي، نو استحساناً دا قبضه جائز او معتبر ده. لېکن له مجلس څخه تر ولاړېدلو او جلا کېدلو وروسته د واهب له اجازت څخه بغير قبضه جائز او معتبره نه ده. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي برابره ده د هبې په مجلس کي موهوب لهٔ د واهب له اجازت څخه بغير قبضه وکړي او که تر مجلس وروسته د واهب په اجازت سره قبضه وکړي، په دواړو صورتونو کي دا قبضه معتبره نه ده، همدا قياس دی.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي له قبضې څخه مخکي د واهب ملکيت باقي پاته وي او قبضه کول د واهب په ملکيت کي تصرف کول دي، حال دا چي له حکم او اجازت څخه بغير د بل چا په ملکيت کي تصرف کول جائز نه دي، نو ځکه دلته د قبضې دواړه صورتونه موږ ته تسليم نه دي.

**زمونږ دليل**: دا دی چي څرنګه په بيع کي قبول کول (ايجاب قبلول) د ملکيت علامت دی، همداسي په هبه کي قبضه کول د ملکيت علامت دی په دې حواله سره چي په بيع کي له قبول څخه بغير ملکيت نه ثابتيږي، نو ځکه په هبه کي به هم له قبضې څخه بغير ملکيت نه ثابتيږي. او په هبه کولو سره د واهب مقصد همدا وي چي په موهوب شي کي د موهوب لهٗ ملکيت ثابت سي، نو ځکه صرف د هغه ايجاب يعني صرف د هغه هبتا ورکول او د ورکولو خبره کول به پر قبضه قدرت ورکول (تسليط على القبض) ګڼل کيږي (يعني ګواکي هغه و موهوب لهٗ ته د هبې شی په قبضه کي ورکړی)، نو دا دلالتاً اجازت سو.

په خلاف ما إذا قبض إلخ: په خلاف د هغه صورت کله چي له مجلس څخه تر جلا کېدلو روسته موهوب لهٗ قبضه وکړي، نو دا جائز نه دي، بلکي د دې لپاره صريح اجازت شرط دي؛ ځکه په هبه کي موږ ايجاب په دې وجه تسليط على القبض (په قبضه کي ورکول) ګڼلي دي چي هغه مو د قبول سره لاحق کړی دی، او قبول د مجلس سره مقيد وي (يعني قبول [اخيستل او د قبلولو خبره کول] به د هبې په مجلس کي دننه کيږي)، نو کوم شی چي د قبول سره لاحق کړی سوی دی يعني د هبې قبضه، هغه به هم د مجلس سره مقيده وي او له مجلس څخه وروسته به معتبره نه وي. لنډه دا چي څرنګه د بيع په صورت کي په مجلس کي دننه په قبول کولو سره ملکيت ثابتيږي، همداسي به په هبه کي هم په قبضه کولو سره ملکيت ثابتيږي، او څرنګه چي د بيع د قبلولو اختيار صرف د بيعي تر مجلسه پوره وي، همداسي به د هبې د قبضه کولو اختيار هم صرف د هبې تر مجلسه پوري پاتيږي، له مجلس څخه تر ولاړېدلو او جلا کېدلو وروسته به هغه ته د قبضې اختيار نه وي.

بخلاف ما إذا نهاه إلخ: د دې جملې عطف پر "بخلاف ما إذا قبض بعد الافتراق" دی، لهذا په "حرف واو" سره "وبخلاف ما إذا نهاه" ويل پکار دي. دا جمله د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي د مذکوره بيان (تسليط على القبض) مطابق که واهب له قبضې څخه موهوب لهٗ منع کړي، نو بيا هم قبضه جائز کېدل پکار دي، ځکه چي تسليط على القبض په دې صورت کي هم موجود دی، حال دا چي په دې صورت کي قبضه جائز نه ده.

د جواب حاصل دا دی چي د موهوب لهٗ قبضه د قبول سره لاحق کول د دلالت په توګه دي، يعني د واهب له فعل (ايجاب) څخه دا دليل راوځي چي هغه موهوب لهٗ ته د قبضې اجازت ورکړی دی او کله چي هغه صراحتاً له قبضې څه منع وکړي، نو دغه دلالت بې اثره سو؛ ځکه چي د صريح په مقابله کي دلالت عمل نه کوي.

## په كومو الفاظو سره هبه منعقد كيــږي؟

قَالَ: وَيَنْعَقِدُ الْهِبَةُ بِقَوْلِهِ: وَهَبْتُ وَنَحَلْتُ وَأَعْطَيْتُ فرمايي: او هبه منعقد كيـږي د هبه كونكي په دې قول سره [يعني د دې الفاظو په ويلو سره هبه منعقد كيږي]: ما هبه كړى، ما دركړى، ما عطا كړى لِأَنَّ الْأَوَّلَ صَرِيحٌ فِيهِ ځكه چي اول لفظ د هبې لپاره صريح دى وَالثَّانِي مُسْتَعْمَلٌ فِيهِ او دويم لفظ په هبه كي مستعمل دى قَالَ: الطَّيْلاً ❶ : «أَكُلَّ أَوْلَادِكَ نَحَلْتَ مِثْلَ هٰذَا؟» [لكه څرنګه چي] نبي ﷺ فرمايلي دي: "ايا ته خپل ټولو بچيانو ته داسي وركړي دي" [آيا تا خپل هر بچي ته داسي غلام وركړى دى] وَكَذٰلِكَ الثَّالِثُ او همدارنګه دريم لفظ هم په هبه كي مستعمل دى يُقَالُ أَعْطَاكَ اللهُ وَوَهَبَكَ اللهُ بِمَعْنًى وَاحِدٍ [لكه څرنګه چي] "أعطاك الله" او "وهبك الله" په يوه معنىٰ سره ويل كيږي وَكَذَا تَنْعَقِدُ بِقَوْلِهِ: أَطْعَمْتُكَ هٰذَا الطَّعَامَ او همدارنګه هبه منعقد كيږي د هبه كونكي په دې قول سره: ما دا خوراک په تا وخوړى [يعني ما دا شى (مثلا غنم) تا ته د خوراک لپاره دركړل] وَجَعَلْتُ هٰذَا الثَّوْبَ لَكَ او دا كالي ما ستا لپاره وټاكل وَأَعْمَرْتُكَ هٰذَا الشَّيْءَ او دا شى ما د ټوله عمر لپاره تا ته دركړى وَحَمَلْتُكَ عَلَىٰ هٰذِهِ الدَّابَّةِ إِذَا نَوَى بِالْحَمْلِ الْهِبَةَ او ما ته پر دغه څاروي سپور كړې!، په دې شرط چي په سپرولو سره هغه [وربونكي] د هبې نيت كړى وي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ الْإِطْعَامَ إِذَا أُضِيفَ إِلَىٰ مَا يُطْعَمُ عَيْنُهُ يُرَادُ بِهِ تَمْلِيكُ الْعَيْنِ كوم چي اول لفظ دى [يعني اطعمتك...] نو ځكه چي كله د "اطعام" نسبت د داشي وطرف ته وسي كوم چي بذات خود خوړل كيږي نو په دې سره د عَين شي [خاص د هغه شي] مالک كول مرادول كيږي [يعني د "إطعام" په لفظ سره د هبې منعقد كېدلو دليل دا دى چي كله "إطعام" د داسي شي وطرف ته منسوب سي كوم چي بعينه خوړل كيږي، نو له هغه څخه دعَين تمليک مراد وي] بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَطْعَمْتُكَ

---

● تخريج: پوره حديث په بخاري شريف كي داسي ذكر سوى دى "عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ أَنَّ أَبَاهُ أَتَى بِهِ رَسُولَ اللهِ ﷺ، فَقَالَ: إِنِّي نَحَلْتُ ابْنِي هٰذَا غُلَامًا، فَقَالَ: أَكُلَّ وَلَدِكَ نَحَلْتَ مِثْلَهُ، قَالَ: لَا، قَالَ: فَارْجِعْهُ" باب رقم: ١٢، حديث رقم: ٢٥٨٦. همداسي په مسلم شريف كي هم ذكر سوي دي، رقم الحديث: ٤٢٦٢. او په مسند أبي عوانه كي د "أَكُلَّ أَوْلَادِكَ" الفاظ ذكر سوي دي، رقم الحديث: ٢٥٧٩. د حديث ترجمه: له نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دى چي زما پلار زه نبي كريم ﷺ ته بوتلم او ورته ويل: چي ما خپل دغه ځوى ته غلام وركړى دى. نو نبي ﷺ هغه ته وفرمايل: چي آيا تا خپل هر بچي ته داسي غلام وركړى دى. هغه وويل چي نه!. نو نبي ﷺ وفرمايل: چي هغه غلام له ده (نعمان بشير) څخه واپس واخله!).

هٰذِهِ الْأَرْضَ په خلاف د هغه صورت کله چې هغه داسې ووايي: ما دا ځمکه تا ته د خوراک لپاره درکړه حَيْثُ تَكُونُ عَارِيَةً نو دا عاريت ګرځي [هبه نه ګرځي] لِأَنَّ عَيْنَهَا لَا تُطْعَمُ ځکه چې ځمکه بذات خود نه خوړل کيږي فَيَكُونُ الْمُرَادُ أَكْلَ غَلَّتِهَا نو ځکه په دې قول سره به د ځمکې د پيداوار خوړل مراد وي وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّ حَرْفَ اللَّامِ لِلتَّمْلِيكِ او کوم چې دويم لفظ دی [يعني جعلتُ هذا الثوب لك] نو ځکه چې حرفِ لام د تمليک لپاره دی [يعني په دويم لفظ سره د هبې منعقد کېدلو دليل دا دی چې "حرفِ لام" د تمليک لپاره وضع سوی دی] وَأَمَّا الثَّالِثُ فَلِقَوْلِهِ الطَّيْلا: «فَمَنْ أَعْمَرَ عُمْرَىٰ فَهِيَ لِلْمُعْمَرِ لَهُ وَلِوَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ» او کوم چې درېيم لفظ دی [يعني أعمرتك...] نو ځکه [په هغه سره هبه منعقد کيږي] چې نبي ﷺ فرمايلي دي "او څوک چې يو چا ته د ټوله عمر لپاره يو شی ورکړي [مثلاً يو څوک خالد ته کور ورکړي] نو هغه د معمر لهٗ [خالد] لپاره دی او تر هغه وروسته د ده د ميراث خورو لپاره دی" وَكَذَا إِذَا قَالَ: جَعَلْتُ هٰذِهِ الدَّارَ لَكَ عُمْرَىٰ او همدارنګه کله چې داسې ووايي: ما دا کور ټوله عمر ستا لپاره وټاکی لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَأَمَّا الرَّابِعُ فَلِأَنَّ الْحَمْلَ هُوَ الْإِرْكَابُ حَقِيقَةً او کوم چې څلورم لفظ دی [يعني "حملتُ"] نو ځکه چې حمل حقيقتاً [لغتاً] سپرول دي [يعني د حمل لغوي معنی ده: پر سپرول] فَيَكُونُ عَارِيَةً نو ځکه هغه به عاريت وي لٰكِنَّهُ يَحْتَمِلُ الْهِبَةَ ليکن هغه د هبې احتمال [هم] لري يُقَالُ: حَمَلَ الْأَمِيرُ فُلَانًا عَلَىٰ فَرَسٍ [لکه څرنګه چې] ويل کيږي: چې امير فلانکی سړی پر آس سپور کړی وَيُرَادُ بِهِ التَّمْلِيكُ او په دې سره مالک کول مرادول کيږي [يعني امير فلانکي سړی د آس مالک کړی او هغه ته يې ورکړی] فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ نِيَّتِهِ نو ځکه د هبې د نيت کولو په وخت کې به هغه پر هبه حمل کيږي.

**اللغات**: ﴿نحلتُ﴾ د فتح له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: بخشش کول يعني يو چا ته مفت شی ورکول، د احسان په توګه ورکول (کوم چې د تبرّع او هبې معنیٰ هم ده)، او کله چې د دې باب په صله کې بنځه راسي، نو معنیٰ يې ده: ښځې ته مهر ورکول، همدارنګه دا باب نوري معناوي هم لري کوم چې د صلې په بدلون سره بدليږي،

﴿أعطيتُ﴾ مخکنۍ صيغه ده: عطا کول، ورکول. ﴿إطعام﴾ د افعال د باب مصدر دی: په خوړل (په بل چا يو شی خوړل)، د خوراک لپاره يو شی ورکول. ﴿أعمر﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه يو معنیٰ ده: د ټوله عمر لپاره يو چا ته شی ورکول (يعني چې يو څوک د خپل عمر يا د مخاطب د عمر د مودت په اندازه هغه ته يو شی ورکړي). او عُمْری له همدې بابه اسم دی. ﴿غلة﴾ د ځمکې پيداوار، کوم څه چې له ځمکې څخه اخيستل کيږي، حاصلات، امدن. ﴿ورثة﴾ جمع د وَارِثٌ ده: وارثان، ميراث خوره. ﴿الإركاب﴾ د افعال مصدر دی: پر سپرول.

**تشريح:** په دې عبارت کې د هغه الفاظو بيان دی چې په هغوی سره هبه منعقد کيږي او ثابتيږي، او هغه الفاظ دا دي: ① وَهَبْتُ، ② نَحَلْتُ، ③ أَعْطَيْتُ. له دې الفاظو څخه اول لفظ يعني "وَهَبْتُ" د هبه په باره کې صريح دی او پاته دوه الفاظ د هبه او عطيه (ورکړې) لپاره مستعمل دي، لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ "نَحَلْتُ" د ورکړې او عطيه په معنیٰ سره استعمال کړی دی. همدارنګه په دغه څلورو الفاظو سره هم هبه منعقد کيږي: ① أَطْعَمْتُكَ هٰذَا الطَّعَامَ، ② جَعَلْتُ هٰذَا الثَّوْبَ لَكَ، ③ أَعْمَرْتُكَ هٰذَا الشَّيْءَ، ④ حَمَلْتُكَ عَلٰى هٰذِهِ الدَّابَّةِ. په اول لفظ سره د هبې د منعقد کېدلو وجه دا ده چې کله د "إِطْعَام" لفظ د داسې شي و طرف ته منسوب کړی سي کوم چې بذات خود خوړل کيږي، لکه څرنګه چې دلته طعام يعني غله ده (مخکې څو ځله ذکر سوي دي چې د "طعام" يو معنیٰ ده: غله، غنم او داسې نور. لهذا چې کله د "إطعام" باب او لفظ د مأکول بنفسه شي و طرف ته منسوب کړی سي)، نو په هغه سره خاص د همدې شي مالک جوړول مرادول کيږي او همدا د هبې معنیٰ ده. او په دويم لفظ يعني په "جَعَلْتُ هٰذَا الثَّوْبَ لَكَ" کې چې کوم د "لَكَ" لام دی، هغه د تمليک لپاره وضع سوی دی او پر هبې دلالت کوي. په دريم لفظ سره د هبې منعقد کېدلو دليل هغه حديث دی کوم چې په عبارت کې مذکور دی. او په څلورم لفظ يعني په "حَمَلْتُكَ إلخ" سره په هماغه صورت کې هبه منعقد کيږي کله چې قائل په هغه سره د هبې نيت کړی وي؛ ځکه چې دا لفظ حقيقتاً او لغتاً د ارکاب د معنیٰ (پر سپرولو) لپاره وضع سوی دی، لېکن په دې کې د هبې د معنیٰ احتمال هم سته، لهذا که قائل د هبې نيت وکړي، نو په هغه سره به د هبې معنیٰ مُتعيّنه وګرځي، نو ځکه صرف د نيت کولو په وخت کې به په دې لفظ سره هبه منعقد کيږي.

# د هبې څه نور الفاظ

وَلَوْ قَالَ: كَسَوْتُكَ هٰذَا الثَّوْبَ فرمايي: او كه څوک ووايي: چې ما دا جامه [کپړه] په تا واغوستل [يا ترجمه دا چې "ما دا کپړه تا ته داغوستلو لپاره درکړه] يَكُونُ هِبَةً نو دا هبه ګرځي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّمْلِيكُ ځکه چې په "کسوة" سره تمليک مرادول کيږي قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: ﴿أَوْ كِسْوَتُهُمْ﴾ الله تعالىٰ فرمايلي دي: "او کسوتهم" وَيُقَالُ: كَسَا الْأَمِيرُ فُلَانًا ثَوْبًا او ويل کيږي: امير په فلانکي کس جامه واغوستل أَيْ مَلَّكَهُ مِنْهُ يعني هغه يې د جامې مالک جوړ کړی [يعني کپړه يې د هغه په ملکيت او قبضه کې ورکړه] وَلَوْ قَالَ: مَنَحْتُكَ هٰذِهِ الْجَارِيَةَ او كه څوک ووايي: چې ما دا مينځه تا ته درکړه [تا ته مې وبخښل] كَانَتْ عَارِيَةً نو دا عاريت ګرځي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه حديث په وجه کوم چې موږ مخکې روايت کړی وَلَوْ قَالَ: دَارِيْ لَكَ هِبَةً سُكْنَىٰ أَوْ سُكْنَىٰ هِبَةً او كه ووايي: چې زما کور ستا لپاره هبه دی د استوګې په توګه، يا [زما کور ستا لپاره] استوګه [د اوسېدلو ځای] دی د هبې په توګه فَهِيَ عَارِيَةٌ نو دا عاريت دی لِأَنَّ الْعَارِيَةَ مُحْكَمٌ فِي تَمْلِيكِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چې د منفعت په تمليک کې عاريت کېدل محکم [او يقيني] دي وَالْهِبَةُ تَحْتَمِلُهَا وَتَحْتَمِلُ تَمْلِيكَ الْعَيْنِ او هبه د منفعت د تمليک احتمال [هم] لري او د عَين د تمليک احتمال [هم] لري فَيُحْمَلُ الْمُحْتَمَلُ عَلَى الْمُحْكَمِ نو محتمل به پر محکم حمل کيږي وَكَذَا إِذَا قَالَ: عُمْرَىٰ سُكْنَىٰ او همدارنګه [عاريت ګرځي] کله چې ووايي: [زما کور] د تول عمر لپاره [ستا دی] د استوګې په توګه أَوْ نُحْلَىٰ سُكْنَىٰ يا [زما کور تا ته] عطيه سوی [بخښل سوی] دی د استوګې په توګه أَوْ سُكْنَىٰ صَدَقَةً يا [ستا] د استوګې [اوسېدلو ځای] دی د صدقې په توګه أَوْ صَدَقَةً عَارِيَةً أَوْ عَارِيَةً هِبَةً يا [زما کور ستا لپاره] د عاريت په توګه صدقه دی يا د هبې په توګه عاريت دی لِمَا قَدَّمْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ مخکې ذکر کړی وَلَوْ قَالَ: هِبَةً تَسْكُنُهَا او كه چيري داسې ووايي: [زما کور ستا لپاره] هبه دی چې ته به هغه کې اووسې! فَهِيَ هِبَةٌ نو هغه کور هبه دی لِأَنَّ قَوْلَهُ: تَسْكُنُهَا مَشُورَةٌ ځکه چې د هغه [هبه کونکي] دا قول "تسکنها" مشوره ده [يعني هبه کونکی په دې قول سره هغه ته د اوسېدلو مشوره ورکوي] وَلَيْسَ بِتَفْسِيرٍ لَهُ وَهُوَ تَنْبِيهٌ عَلَى الْمَقْصُودِ او دا قول د هبې

تفسير نه دی بلکې پر مقصود [يعني پر اوسېدلو] تنبيه ورکول دي بِخِلَافِ قَوْلِهِ: هِبَةٌ سُكْنٰى په خلاف د هغه د دې قول: [زما کور ستا لپاره] هبه دی د استوګې په توګه لِأَنَّهُ تَفْسِيْرٌ لَهُ ځکه چې [په دې صورت کې] سُکْنٰى د هبةٌ تفسير دی.

**اللغات:** ﴿كَسَوْتُكَ﴾ د نصر له بابه د واحد متكلم ماضي صيغه ده: په بل چا جامه او کالي اغوستل، بل چا ته جامه ورکول، صاحب د معجم الوسيط يې داسې معنیٰ کړې ده: كَسٰى فُلَانًا ثَوْبًا، أى أَعْطَاهُ الثَّوْبَ، وَأَلْبَسَهُ الثَّوْبَ. ﴿كِسْوَتُهُمْ﴾ كِسْوَةٌ: لباس، جامه، پرده، اللِّبَاسُ الَّذِيْ يُسْتَتَرُ بِهٖ وَيُتَجَمَّلُ بِهٖ. ﴿مُحْكَم﴾ فيصله کړې سوې، متقن، مضبوط او يقيني، په کوم څه کې چې شک او احتمال نه وي. ﴿محتمل﴾ احتمالي، په کوم څه کې چې احتمال وي. ﴿نُحلٰى﴾ د بخشش په توګه ورکول سوې (عطيه سوې)، د تبرع په توګه ورکول سوی شی.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې په "كَسَوْتُكَ هٰذَا الثَّوْبَ" سره هم هبه منعقد کيږي؛ ځکه په "كَسَوْتُ" او "كِسْوَة" سره تمليک مرادول کيږي؛ د دې دليل د قرآن کريم دا آيت دی ﴿أَوْ كِسْوَتُهُمْ﴾ [سورة المائدة: ٨٠] (يعني د قسم [يمين] په کفاره کې به يا لسو مسکينانو ته غله ورکول کيږي يا لسو مسکينانو ته به د هغوی لباس او جامه ورکول کيږي) او دا ورکول د تمليک په توګه وي (يعني مسکينان به د هغوی مالکان جوړول کيږي)، له همدې کبله په "كَسَى الأَمِيْرُ فُلَانًا ثَوْبًا" کې "كَسٰى" د "مَلَّكَ" يعني د مالک جوړولو د معنیٰ لپاره مستعمل دی. د دې په خلاف "مَنَحْتُكَ" (ورکول، وربخښل) د عاريت لپاره مستعمل دی؛ ځکه په حديث کې ذکر سوي دي "الْمِنْحَةُ مَرْدُوْدَةٌ" چې عاريت به واپس کول کيږي. ها! که چيرې قائل په دې سره د هبې نيت کړی وي، نو هبه منعقد کيږي؛ ځکه چې د "نَحَلْتُ" په څېر په "مَنَحْتُ" کې هم د هبې احتمال سته، او په نيت سره يوه معنیٰ مُتعيّنه کيږي.

ولوقال داري لك إلخ: د دې حاصل دا دی که يو څوک بل چا ته داسې ووايي چې "زما کور تا ته هبه دی داوسېدلو لپاره" يا "داوسېدلو لپاره تا ته هبه دی" يعني برابره ده هبه مخکې کړي او که سکنیٰ، په دواړو صورتونو کې دا عاريت ګرځي؛ ځکه چې د سکنیٰ د لفظ په وجه دلته صرف يوې معنیٰ يعني عاريت ته تقويت حاصليږي، نو ځکه همدا معنیٰ به راجح وي. همدا حکم په هغه صورت کې هم

دی کله چي يو څوک "عُمْرٰی سُکْنٰی" يا "نُحْلٰی سُکْنٰی" يا "صَدَقَةٌ عَارِيَةٌ" او داسي نور مذکوره الفاظ ووايي، يعني په دې صورت کي هم د سکنی، صدقة او عارية د الفاظو په وجه د عاريت والا معنیٰ لره تقويت حاصليږي؛ ځکه په دې دواړو صورتونو کي سکنیٰ د ما قبل لپاره تفسير دی. ها! که چيري "دَارِيْ لَكَ هِبَةٌ تَسْكُنُهَا" ووايي، نو دا هبه ګرځي او دلته د "تَسْكُنُهَا" لفظ د ما قبل لپاره تفسير نه دی بلکي د مشورې په توګه دی او د هبې معنیٰ دلته راجح ده، نو ځکه دا به هبه شمارل کيږي.

## د نا قابلِ تقسيم او مُشاع شي د هبه کولو بيان

قَالَ: وَلَا يَجُوْزُ الْهِبَةُ فِيْمَا يُقَسَّمُ إِلَّا مَحُوْزَةً مَقْسُوْمَةً فرمايي: او هبه جائز نه ده په هغه شيانو کي کوم چي تقسيميداى سي [او مشترک وي] مګر دا چي هغوی له حقوقو څخه فارغ او تقسيم کړی سوی وي وَهِبَةُ الْمُشَاعِ فِيْمَا لَا يُقَسَّمُ جَائِزَةٌ او د غيرِ مقسوم [او مشترک] شي هبه جائز ده په هغه څه کي کوم چي تقسيميدلاى نه سي [په بله وينا: او کوم شی چي تقسيم نه قبلوي، هغه په نا تقسيم شُده حالت کي هبه کول جائز دي (احسن الهدايه)] وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: يَجُوْزُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي هبه جائز ده لِأَنَّهُ عَقْدُ تَمْلِيْكٍ ځکه چي هبه د تمليک [مالک کولو] عقد دی فَيَصِحُّ فِي الْمُشَاعِ وَغَيْرِهِ نو ځکه په مُشاع او غيرِ مُشاع دواړو شيانو کي به هبه صحيح کيږي كَالْبَيْعِ بِأَنْوَاعِهِ لکه بيع د خپل ټولو اقسامو سره وَهٰذَا لِأَنَّ الْمُشَاعَ قَابِلٌ لِحُكْمِهِ وَهُوَ الْمِلْكُ او دا حکم ځکه دی چي مُشاع [نا قابلِ تقسيم] شی هم د هبې حکم يعني ملکيت قبلوي فَيَكُوْنُ مَحَلًّا لَهُ نو ځکه مُشاع شی به هم د هبې محل وي وَكَوْنُهُ تَبَرُّعًا لَا يُبْطِلُهُ الشُّيُوْعُ او د هبې تبرع کېدل [احسان کېدل] شيوع نه باطلوي [يعني شيوع د هبې تبرّع والی نه باطلوي] كَالْقَرْضِ وَالْوَصِيَّةِ لکه قرض او وصيت وَلَنَا: أَنَّ الْقَبْضَ مَنْصُوْصٌ عَلَيْهِ فِي الْهِبَةِ زموږ دليل دا دی: چي په هبه کي د قبضې په باره کي نص [حديث] وارد سوی دی فَيُشْتَرَطُ كَمَالُهُ نو ځکه د قبضې کامل والی [کامله قبضه] به شرط وي وَالْمُشَاعُ لَا يَقْبَلُهُ إِلَّا بِضَمِّ غَيْرِهِ إِلَيْهِ او مُشاع [او مشترک] شی د بل شي له ضمولو څخه بغير قبضه نه قبلوي [يعني مشاع شی قبضه نه قبلوي مګر د هغه سره د بل شي په يو ځای کولو سره] وَذٰلِكَ غَيْرُ مَوْهُوْبٍ حالانکي هغه بل شی هبه کړی سوی نه دی وَلِأَنَّ فِيْ تَجْوِيْزِهِ إِلْزَامَهُ شَيْئًا لَمْ يَلْتَزِمْهُ او ځکه چي د مشاع شي د هبې په جائز ګرځولو

کي پر واهب داسي شی [کار] لازمول کیږي چي هغه پر ځان لازم کړی نه دی وَهُوَ الْقِسْمَةُ چي هغه [د مشاع شي] تقسیمول دي وَلِهٰذَا امْتَنَعَ جَوَازُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ لِئَلَّا يَلْزَمَهُ التَّسْلِيمُ او په همدې وجه له قبضې څخه مخکي د هبې جواز ممنوع دی، د دې لپاره چي پر واهب د موهوب شي ورسپارل لازم نه سي بِخِلَافِ مَا لَا يُقَسَّمُ په خلاف د هغه شیانو کوم چي تقسیمېدلای نه سي لِأَنَّ الْقَبْضَ الْقَاصِرَ هُوَ الْمُمْكِنُ ځکه چي [په هغوی کي] کي صرف ناقصه قبضه ممکن ده فَيُكْتَفٰى بِهِ نو ځکه پر هغه به اکتفاء کیږي وَلِأَنَّهُ لَا تَلْزَمُهُ مُؤْنَةُ الْقِسْمَةِ او ځکه چي [په هغوی کي] پر واهب د تقسیمولو مشقت نه لازمیږي وَالْمُهَايَاةُ تَلْزَمُهُ فِيمَا لَمْ يَتَبَرَّعْ بِهِ او نوبت [واری] په هغه شي کي لازمیږي چي په هغه سره واهب تبرع نه ده کړي وَهُوَ الْمَنْفَعَةُ چي هغه منفعت دی وَالْهِبَةُ لَاقَتِ الْعَيْنَ او هبه د عَین شي سره متصل سوې ده وَالْوَصِيَّةُ لَيْسَ مِنْ شَرْطِهَا الْقَبْضُ او د وصیت لپاره قبضه شرط نه ده وَكَذَا الْبَيْعُ الصَّحِيحُ وَالْبَيْعُ الْفَاسِدُ وَالصَّرْفُ وَالسَّلَمُ فَالْقَبْضُ فِيهَا غَيْرُ مَنْصُوصٍ عَلَيْهِ او همدارنګه په بیع صحیح، بیع فاسد، بیع صَرف او بیع سَلَم کي [هم] قبضه منصوص علیه [او مشروط] نه ده وَلِأَنَّهَا عُقُودُ ضَمَانٍ او ځکه چي دا د ضمان عقدونه دي فَتَنَاسَبَ لُزُومَ مُؤْنَةِ الْقِسْمَةِ نو ځکه د تقسیم مشقت [او خرچه] د لازمېدلو مناسب ده وَالْقَرْضُ تَبَرُّعٌ مِنْ وَجْهٍ وَعَقْدُ ضَمَانٍ مِنْ وَجْهٍ او قرض په یوه اعتبار سره تبرع دی او په یوه اعتبار سره د ضمان عقد دی فَشَرَطْنَا الْقَبْضَ الْقَاصِرَ فِيهِ دُونَ الْقِسْمَةِ نو ځکه موږ په قبضه کي ناقصه قبضه شرط کړې ده، نه تقسیم عَمَلًا بِالشَّبْهَيْنِ د دې لپاره چي په دواړو مشابهتونو [جهتونو] عمل وسي عَلٰى أَنَّ الْقَبْضَ غَيْرُ مَنْصُوصٍ عَلَيْهِ فِيهِ سره د دې چي په قرض کي قبضه منصوص علیه نه ده وَلَوْ وَهَبَ مِنْ شَرِيكِهِ او که واهب خپل شریک ته هبه وکړي لَا يَجُوزُ نو [هم] جائز نه دي لِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلٰى نَفْسِ الشُّيُوعِ ځکه چي د حکم [یعني د هبې نه جائز کېدلو] مدار پر نفس شیوع دی [او هغه دلته موجود دی].

**اللغات:** ﴿مَحُوْزَةٌ﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث مفعول صیغه ده، حَازَ يَحُوزُ حَوْزًا و حِيَازَةً: جمع کول، ټولول، ضمول، مثلاً ویل کیږي: حَازَ الْمَالَ: فلانکی مال سره جمع او ټول کړی او د خپل

ملکیت سره یې ضم کړي، یا معنیٰ دا چي خپل مال یې را جلا کړي، دلته د "فيما يقسم إلا محوزة" مطلب دا دی چي کوم شی تقسیم قبلوي، نو په داسي شي کي هغه وخت هبه جائز کیږي کله چي هغه د واهب له ملکیت او حقوقو څخه فارغ او جلا کړی سي او په پوره توګه د موهوب لهٗ په قبضه کي ورکول سي. او په "مقسومة" سره له مشترک شي څخه احتراز سوی دی، یعني په مشترک شي کي هغه وخت هبه جائز کیږي کله چي هغه تقسیم کړی سي یعني واهب له شریک څخه خپله حصه راجلا کړي، ﴿مقسومة﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث مفعول صیغه ده: تقسیم کړی سوی، حصه، حصه کړی سوی، ﴿المُشاع﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر اسم مفعول صیغه ده، د دې لفظ څو معناوي دي: مشترک (کوم چي تر اوسه تقسیم سوی نه وي)، غیرِ مقسوم شی، شائع او منتشر (کوم چي په ټولو اجزاؤ کي خپور وي)، لکه څرنګه چي ویل کیږي: سَهْمٌ مُشَاعٌ، مشترکه حصه، داسي حصه کوم چي د مشترک شي په ټولو اجزاؤ کي منتشره وي او مُتعیّنه نه وي، ﴿الشيوع﴾ اشتراک او شرکت، منتشر کېدل، ﴿منصوص عليه﴾ د نصر له بابه اسم مفعول دی: هغه څه د کوم په باره کي چي نص وارد سوی وي، ﴿تجويز﴾ د تفعیل مصدر دی: جائز ګرځول، ﴿القاصر﴾ د کَرُم د باب اسم فاعل دی: د کمي درجې والا، ناقص، ﴿المهايأة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په واري او نوبت سره یو کار کول، مراد څني په واري او نوبت سره نفع اخیستل دي (احسن الهدايه)، ﴿مؤنة﴾ خرچه، لګښت، مشقت، ﴿الشِّبْهَيْن﴾ تثنیه د شِبْهٌ یا شَبَهٌ ده: مشابه، مشابهت، مثل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي کوم شی قابلِ تقسیم وي (یعني تقسیم قبلوي او د دوو کسانو په مینځ کي تقسیمېدای سي)، او مالک د هغه هبه کول وغواړي، نو که چیري هغه شی مُحُوَز وي یعني د مالک (واهب) له ملکیت او حقوقو څخه فارغ وي، نو د هغه هبه کول جائز دي، همدارنګه کوم شی چي مشترک وي او یو شریک د هغه هبه کول وغواړي، نو که چیري هغه مقسوم یعني تقسیم کړی سوی او له شریک څخه را جلا کړی سوی وي، نو د هغه هبه کول جائز دي، لېکن که داسي شی محوز او مقسوم نه وي، نو هبه کول یې جائز نه دي. او کوم شی چي غیر قابل تسلیم وي (یعني تقسیم نه قبلوي. د هغه تقسیمول ممکن نه وي او تر تقسیمولو (حصه، حصه کولو) وروسته د انتفاع قابل نه پاتیږي) او هغه مشترک وي، نو هم د هغه هبه کول جائز او صحیح دي. دا تفصیل زموږ په نېز دی. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د مُشاع قابلِ تقسیم او غیرِ قابل تقسیم دواړو شیانو هبه جائز ده، لکه څرنګه چي د مُشاع قابلِ تقسیم او مُشاع غیرِ قابل تقسیم دواړو شیانو بیع جائز ده، همداسي به د دوی هبه هم جائز

دي؛ ځکه چي د بيع په څېر هبه هم د تمليک عقد دی؛ او په مطلق مُشاع شي کي د هبې د جواز (جائز کېدلو) دليل دا دی چي په مُشاع و مشترک شي کي هم د هبې حکم يعني ملکيت ثابتېدای سي، نو ځکه مُشاع و مشترک شی به هم د هبې محل وي او په هغه کي به هبه صحيح وي او د دې اعتراض کولو گنجايش به نه وي چي هبه تبرع او احسان دی او په شيوع سره به باطلېږي؛ ځکه چي شيوع و اشتراک د تبرع او احسان منافي نه دي، لکه څرنگه چي شيوع و اشتراک د قرض او وصيت منافي نه دي، مثلاً که څوک يو چا ته لک روپۍ ورکړي او هغه ته ووايي چي له دې څخه پنځوس زره روپۍ د قرض دي او په پنځوس زره روپيو زما لپاره کاروبار (بضاعت) وکړه!، نو دا صحيح دي، يا په وصيت کي چي هم کوم شيوع و اشتراک وي، هغه له صحت څخه مانع نه وي، نو همداسي به دا شيوع هم د هبې د صحت منافي او له هغه څخه مانع نه وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي د هبې د صحت (صحيح کېدلو) او پوره کېدلو لپاره قبضه کول شرط دي او دا شرط منصوص دی، يعني په هبه کي د قبضې د شرط کېدلو په باره کي نص (حديث) وارد سوی دی او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی "لَا تَصِحُّ الْهِبَةُ إِلَّا مَقْبُوْضَةً"، لهذا تر څو چي پر موهوب شي پوره کامله قبضه نه وسي، تر هغه وخته هبه نه پوره کيږي، حالانکي د اشتراک او نه محوز کېدلو په وجه پر موهوب شي پوره قبضه نه سي کېدای، نو ځکه موږ د مُشاع غيرِ مقسوم شي هبه جائز نه ده گرځولې.

د دې نه جائز کېدلو دويم دليل دا دی چي که موږ د غير قابل تقسيم مُشاع شي هبه جائز وگرځوو، نو په دې سره به پر واهب بلا ضرورته د تقسيم کولو (او د خپلي حصې را جلا کولو) مشقت او بار لازم سي، حالانکي هغه دې ته تيار نه دی، نو ځکه مالک (واهب) به له ضرر څخه ساتل کيږي او د دې هبې د جواز لاره به بندول کيږي.

د دې په خلاف په غير قابل تقسيم غير مُشاع شي کي هبه جائز ده؛ ځکه کله چي په هغه کي تقسيم گرسره ممکن نه دی، نو پر مالک (واهب) به د تقسيم بار هم نه لازميږي او پر دې شي چي کومه ظاهري نا قصه قبضه ده، هغه به د حقيقي کامله قبضې په سلسله کي کافي کيږي او د همدې قبضې په اعتبار کولو سره به هبه جائز گرځول کيږي. ها! صرف دا به لازم سي چي موهوب لهٗ به د واهب د شريک سره په مهايات يعني په واري او نوبت سره نفع حاصلوي (مثلا که هغه شی غلام وي نو يوه ورځ به موهوب لهٗ کار ځني اخلي. خپل خدمت به په کوي او يوه ورځ به د واهب ملکری شريک له هغه څخه کار اخلي او خپل خدمت به کوي)، او تاسي ته معلومه ده چي دا مهايات د نفعي (کار اخيستلو) سره متعلق دی، نه د هبې سره، حالانکي مسئله د هبې ده، نه د نفعي، نو ځکه په دې مهايات في النفع سره به د هبې پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي.

والوصيةِ إلخ: فرمايي امام شافعي رَحِمَهُ الله چي د مُشاع شي هبه پر وصيت قياس کړې ده، دا صحيح نه دي؛ ځکه چي د وصيت لپاره قبضه شرط نه ده، حالانکي د هبې لپاره قبضه شرط ده، نو ځکه په وصيت کي به شيوع مانع نه وي، لېکن په هبه کي به شيوع مانع وي. همدارنګه بيع صحيح، بيع فاسد، بيع صَرف او بيع سَلم هم د شيوع باوجود جائز دي؛ ځکه چي په دوی کي قبضه منصوص او مشروط نه ده، دويمه خبره دا ده چي بيع صحيح او داسي نور د ضمان عقدونه دي، او د ضمان په عقدونو کي د تقسيم مؤنة او خرچه لازمول کېدای سي، لېکن قرض من وجه تبرع دی؛ ځکه چي قرض اخيستونکی له هغه څخه نفع اخلي، او من وجه عقد ضمان دی، نو ځکه د تبرع د جهت په اعتبار کولو سره موږ په قرض کي د حقيقي قبضې شرط نه دی لګولی او پر قاصره قبضې مو اکتفاء کړې ده، او د ضمان د جهت په اعتبار کولو سره موږ په هغه کي تقسيم نه دی مشروط کړی.

ولووهب إلخ: فرمايي که په مُشاع غيرِ مقسوم شي کي يو شريک خپله حصه بل شريک ته هبه کړي، نو دا هم جائز نه دي؛ ځکه د عدمِ جواز (نه جائز کېدلو) چي کوم علت دی يعني شيوع، هغه دلته هم موجود دی او د حکم مدار پر همدې شيوع دی، او دا حکم شريک او غير شريک دواړو لره عام دی. (احسن الهدايه ج:۱۱، ص: ۲۷۴ - ۲۷۶)

## مشترکه حصه او مخلوط شی هبه کول

قَالَ: وَمَنْ وَهَبَ شِقْصًا مُشَاعًا فرمايي: او که څوک يو مشترکه حصه هبه کړي فَالْهِبَةُ فَاسِدَةٌ نو هبه فاسده ده لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی فَإِنْ قَسَّمَهُ وَسَلَّمَهُ او که چيري واهب هغه تقسيم کړي [او جلا يې کړي] بيا يې ور وسپاري جَازَ نو جائز کيږي لِأَنَّ تَمَامَهُ بِالْقَبْضِ ځکه چي هبه په قبضه سره پوره کيږي وَعِنْدَهُ لَا شُيُوعَ او د قبضې په وخت کي [په هغه کي] شيوع نه وي قَالَ: وَلَوْ وَهَبَ دَقِيقًا فِي حِنْطَةٍ فرمايي: او که چيري څوک په غنمو کي موجوده اوړه هبه کړي [يعني ديو چا سره ثابت غنم وي کوم چي تر اوسه اوړه سوي نه وي او بيا هغه مثلاً يو محتاج کس ته ووايي چي ماد دې غنمو اوړه تا ته هبه کړل] أَوْ دُهْنًا فِي سِمْسِمٍ يا په کونجتو کي موجوده تېل [روغن] هبه کړي فَالْهِبَةُ فَاسِدَةٌ نو هبه فاسده ده فَإِنْ طَحَنَ وَسَلَّمَ او که غنم اوړه کړي بيا يې ور سپاري لَمْ يَجُزْ نو هم نه جائز کيږي وَكَذَا السَّمْنُ فِي اللَّبَنِ او همدارنګه په شيدو کي موجوده غوړي [او کوچي] هبه کول هم جائز نه دي لِأَنَّ الْمَوْهُوبَ مَعْدُومٌ ځکه چي [په دې صورتونو کي] هبه کړی سوی شی نا موجوده دی [يعني

په دې ټولو صورتونو کي موهوب شی تر اوسه په وجود کي راغلی نه دی] وَلِهٰذَا لَوِ اسْتَخْرَجَهُ الْغَاصِبُ او له همدې کبله که غاصب هغوی راوباسي يَمْلِكُهُ نو غاصب د هغوی مالک کيږي وَالْمَعْدُومُ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لِلْمِلْكِ او نا موجوده شی د ملکيت محل نه دی فَوَقَعَ الْعَقْدُ بَاطِلًا نو دا عقد [هبه] باطل واقع سوه فَلَا يَنْعَقِدُ إِلَّا بِالتَّجْدِيدِ نو ځکه له نوي کولو څخه بغير به نه منعقد کيږي [نه صحيح کيږي] بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چي مخکي تېر سو لِأَنَّ الْمُشَاعَ مَحَلٌّ لِلتَّمْلِيكِ ځکه چي مشترک شی د تمليک محل دی وَهِبَةُ اللَّبَنِ فِي الضَّرْعِ وَالصُّوفِ عَلَى ظَهْرِ الْغَنَمِ وَالزَّرْعِ وَالنَّخْلِ فِي الْأَرْضِ وَالتَّمْرِ فِي النَّخِيلِ بِمَنْزِلَةِ الْمُشَاعِ او په غولانځه کي د موجوده شيدو هبه کول، د پسونو پر شا د وړيو هبه کول، په ځمکه کي د موجوده کښت او درختو هبه کول او په درختو کي د موجوده خرماوو هبه کول د مُشاع شي د هبه کولو په شېر دي لِأَنَّ امْتِنَاعَ الْجَوَازِ لِلِاتِّصَالِ ځکه چي د جواز ممتنع کېدل د متصل والي په وجه دي وَذٰلِكَ يَمْنَعُ الْقَبْضَ كَالْمُشَاعِ او دا د مُشاع شي په شېر قبضه منع کوي [يعني داسي له قبضې څخه مانع دی لکه څرنګه چي مُشاع له قبضې څخه مانع دی].

**اللغات:** ﴿شِقص﴾ ټوکړه (ټوټه)، حصه، جزء، ﴿مُشاع﴾ مشترک، غيرِ مقسوم، ﴿دهن﴾ روغن، له تخمه را ايستل سوي تېل، ﴿سمسم﴾ کونجتي، ﴿طحن﴾ د نصر مضارع ده: ميده کول، اُوړه کول، ﴿السمن﴾ د غوا، بزې او ميږې له شيدو څخه جوړ سوي غوړي، ﴿صوف﴾ وړۍ، د پسونو او مېږو وړېښته، ﴿غنم﴾ د "غنم" لفظ د پسه، ميږې، سېرلي او بزې ټولو لپاره استعماليږي (معجم لغة الفقهاء)، خو دلته د "صُوف" په قرينه سره پسونه او ميږې ځني مراد دي، ځکه چي د بزې او سېرلي وړېښتو ته "صُوف" (وړۍ) نه وايي، ﴿ضرع﴾ غولانځه، ﴿النخل﴾ جمع د نَخْلَةٌ ده، همدارنګه نَخِيْل هم د دې جمع ده: د خرما درخته (ونه)، ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی يو مشترکه حصه او ټوکړه هبه کړي، نو دا هبه فاسديږي؛ ځکه چي هبه (د موهوب لهٗ) په قبضه سره پوره کيږي، حال دا چي دلته د اشتراک و شيوع په وجه قبضه ممکنه نه ده؛ نو ځکه دا هبه فاسديږي، ها! که چيري واهب خپله حصه را جلا کړي او موهوب لهٗ ته يې وسپاري، نو هبه جائز ګرځي؛ ځکه چي په جلا کولو سره شيوع ختميږي او حصه مُتعيّنه کيږي چي په دې توګه پر هغه قبضه کېدای سي، نو ځکه په دې صورت کي به هبه جائز او صحيح ګرځي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که د يو سړي سره صحيح ثابت غنم او کونجتي موجود وي (يعني غنم اُوړه کړل سوي نه وي او له کونجتو څخه تېل را ايستل سي نه وي) او مالک د دې غنمو اُوړه او د کونجتو تېل يو چا ته هبه کړي، نو دا هبه هم فاسديږي؛ ځکه چي په دې دواړو صورتونو کي موهوب شی معدوم دی، او پر معدوم شي قبضه کول ناممکن دي، حال دا چي د هبې د پوره کېدلو او صحيح کېدلو لپاره قبضه شرط ده. نو ځکه په دې دواړو صورتونو کي هبه فاسديږي. همدا وجه ده که غاصب کونجتي غصب کړي او مالک ته د هغه ضمان (تاوان) ورکړي بيا له هغه کونجتو څخه تېل را واباسي، نو غاصب د هغوی مالک کيږي؛ ځکه چي د غصب کولو په وخت کي تېل معدوم وه او پر غاصب د هغه تېلو واپس کول يا د هغه ضمان ورکول لازم نه وه.

که چيري تر هبه کولو وروسته واهب غنم اُوړه کړي يا له کونجتو څخه تېل را واباسي او موهوب لهٗ ته يې وسپاري، نو هم هبه نه صحيح کيږي؛ ځکه چي دا عقد هبه له ابتداء څخه فاسد او باطل منعقد سوی دی، نو ځکه د عقد له تجديد څخه بغير به دا عقد هبه جائز او صحيح نه ګرځي؛ لأن الفاسد لا ينقلب جائزًا. د دې په خلاف د مُشاع شي د هبې مسئله ده، نو که چيري واهب شيوع ختم کړي او خپله حصه را جلا کړي او موهوب لهٗ ته يې وسپاري، نو هبه صحيح ګرځي؛ ځکه د مُشاع شي په هبه کي موهوب شی موجود وي او که څه هم پر هغه حقيقي کامله قبضه نه کيږي خو بيا هم قبضه ضرور متصور کيږي او د شيوع د ختمېدلو سره سمدستي هغه په حقيقت بدليږي، نو ځکه د مُشاع شي به هبه جائز وي.

وهبة اللبن إلخ: فرمايي که چيري څوک د څاروي په غولانځه کي موجوده شيدې هبه کړي، يا په ځمکه او درخته کي موجوده کښت او مېوه هبه کړي، نو د مُشاع شي د هبې په څېر د دې هبې جواز هم موقوف پاتيږي يعني که چيري واهب موهوب شی را جلا کړي (يعني شيدې ولوښي، کښت وريبي او مېوه را وشکوي) او موهوب لهٗ ته يې وسپاري، نو د هبې د جواز لاره صفا کيږي او هغه جائز ګرځي، لېکن په شروع کي دا هبه جائز نه وي؛ ځکه چي دلته هم موهوب شی د غير موهوب شي سره متصل پاته وي او دا اتصال د شيوع واشتراک په درجه کي دی، لهذا څرنګه چي د اشتراک په ختمېدلو سره د مُشاع شي هبه جائز ګرځي، همداسي به د اتصال په ختمېدلو سره د مذکوره شيانو هبه جائز ګرځي؛ ځکه د فقهي دا مشهوره قاعده ده "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوْعُ".

## که شی د موهوب لهٔ په قبضه کي وي نو صرف په هبه سره د هغه مالک کېږي، نوې قبضې ته ضرورت نسته

قَالَ: وَإِذَا كَانَتِ الْعَيْنُ فِي يَدِ الْمَوْهُوبِ لَهُ فرمايي : او که چيري موهوب شی د موهوب لهٔ په قبضه کي وي مَلَكَهَا بِالْهِبَةِ نو صرف [د مالک] په هبه کولو سره موهوب لهٔ د هغه مالک کيږي وَإِنْ لَمْ يُجَدِّدْ فِيهِ قَبْضًا که څه هم پر هغه نوې قبضه نه وکړي لِأَنَّ الْعَيْنَ فِي قَبْضِهِ ځکه چي موهوب شی [مخکي لا] د هغه په قبضه کي دی وَالْقَبْضُ هُوَ الشَّرْطُ او شرط همدا قبضه ده بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ مِنْهُ په خلاف د هغه صورت کله چي مالک هغه [مقبوض] شی پر ده خرڅ کړي لِأَنَّ الْقَبْضَ فِي الْبَيْعِ مَضْمُونٌ ځکه چي په بيع کي قبضه مضمونه [ضمان والا] ده فَلَا يَنُوبُ عَنْهُ قَبْضُ الْأَمَانَةِ نو ځکه د امانت قبضه به د هغه نه قائم مقام کيږي [ځکه چي د امانت قبضه د ضمان قبضه نه ده] أَمَّا قَبْضُ الْهِبَةِ فَغَيْرُ مَضْمُونٍ او کوم چي د هبې قبضه ده نو هغه د ضمان والا نه ده فَيَنُوبُ عَنْهُ نو ځکه د امانت قبضه به د هغه قائم مقام کيږي وَإِذَا وَهَبَ الْأَبُ لِابْنِهِ الصَّغِيرِ هِبَةً او که چيري پلار خپل کوچني ځوی ته يو شی هبه کړي مَلَكَهَا الِابْنُ بِالْعَقْدِ نو د عقد په وجه ځوی د هغه مالک کيږي لِأَنَّهُ فِي قَبْضِ الْأَبِ ځکه چي موهوب شی [مخکي لا] د پلار په قبضه کي دی فَيَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الْهِبَةِ نو ځکه دا قبضه به د هبې د قبضې قائم مقام کيږي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ أَوْ فِي يَدِ مُودَعِهِ او په دې حکم کي هيڅ فرق نسته چي موهوب شی د واهب [هبه کونکي] په قبضه کي وي يا د هغه د مودَع په قبضه کي وي لِأَنَّ يَدَهُ كَيَدِهِ ځکه چي د مودَع قبضه د مودِع د قبضې په شان ده بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ مَرْهُونًا أَوْ مَغْصُوبًا أَوْ مَبِيعًا بَيْعًا فَاسِدًا په خلاف د هغه صورت کله چي هغه مرهون شی وي يا مغصوب شی وي يا په بيع فاسد سره خرڅ کړی سوی شی وي لِأَنَّهُ فِي يَدِ غَيْرِهِ أَوْ فِي مِلْكِ غَيْرِهِ ځکه چي [په دې صورتونو کي] هغه شی د بل چا په قبضه کي يا د بل چا په ملکيت کي دی وَالصَّدَقَةُ فِي هَذَا مِثْلُ الْهِبَةِ او صدقه په دې حکم کي د هبې په شان ده وَكَذَا إِذَا وَهَبَتْ لَهُ أُمُّهُ وَهُوَ فِي عِيَالِهَا وَالْأَبُ مَيِّتٌ وَلَا وَصِيَّ لَهُ او همدارنګه که چيري بچي [ځوی] ته خپل مور يو شی هبه کړي په داسي حال کي چي هغه د مور له

عيال شخه وي [يعني د مور نفقه خوري او د هغې تر پرورش لاندې وي] او پلار مړ سوی وي او د هغه هيڅ وصي هم نه وي ﴿وَكَذٰلِكَ كُلُّ مَنْ يَعُوْلُهُ﴾ او همدارنګه هر هغه کس کوم چې د بچي سرپرستي کوي ﴿وَإِنْ وَهَبَ لَهُ أَجْنَبِيٌّ هِبَةً﴾ او که بچي ته پردی سړی يو شی هبه کړي ﴿تَمَّتْ بِقَبْضِ الْأَبِ﴾ نو د پلار په قبضه کولو سره هبه پوره کيږي ﴿لِأَنَّهُ يَمْلِكُ عَلَيْهِ الدَّائِرَ بَيْنَ النَّافِعِ وَالضَّائِرِ﴾ ځکه [کله چې] پلار د بچي په حق کې د داسي کار ملکيت [اختيار] لري کوم چې د نفع من او نقصان من کېدلو په مينځ کې داير وي [يعني کله چې پلار د خپل ځوی لپاره د هغه شي د معاملې کولو اختيار هم لري چې په هغه کې د نفعي او نقصان دواړو احتمال وي] ﴿فَأَوْلَىٰ أَنْ يَمْلِكَ النَّافِعَ﴾ نو د نفع من شي [د اخيستلو] ختيار به په درجه اولیٰ لري.

**اللغات:** ﴿لم يجدد﴾ د تفعيل له بابه د جحد صيغه ده: نوي کول، له نوي سره کول. ﴿مضمون﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: هغه شی چې ضمان يې لازم وي. ﴿ينوب﴾ د نصر مضارع ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل. ﴿يعوله﴾ د نصر د باب مضارع ده. د دې باب څو معناوي دي، چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي، کله چې د دې باب په صله کې بچی يا اولاد راسي، نو معنیٰ يې ده: د معاش کفالت کول، يعني د بچي د خوراک، څښاک او کپړو خرچه و ذمه واري په خپله غاړه اخيستل. ﴿الدائر﴾ د دوو شيانو تر مينځ کېدونکی، جاري. ﴿النافع﴾ نفع من، نفع بخش (فايده من). ﴿الضائر﴾ نقصان من، زيان رسونکي (تاواني).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که خالد له مخکي څخه خپل يو پُسه زيد ته وديعتاً (امانتاً) ورکړی وي، بيا خالد زيد ته هغه پُسه هبه کړي، نو دا هبه صحيح کيږي او زيد د هغه پُسه مالک کيږي، که څه هم زيد له نوي سره د خالد له طرفه پر هغه پُسه قبضه نه وکړي (يعني په دې صورت کې د هبې د پوره کېدلو او صحيح کېدلو لپاره د قبضې تجديد ته ضرورت نسته)؛ ځکه چې موهوب شی (پُسه) له مخکي څخه د موهوب لهٗ (زيد) په قبضه کې موجود دی او د هغه قبضه د امانت قبضه ده کوم چې غير مضمونه ده (مطلب دا چې که د امانت شی د امين په قبضه کې هلاک سي، نو پر هغه د شي ضمان [تاوان] نه واجبيږي، په دې توګه د امانت قبضه غيرِ مضمونه ده)، نو ځکه دا قبضه به د هبې د قبضې قائم مقام وګرځي، لېکن که خالد خپل دغه پُسه پر قابض يعني پر زيد خرڅ کړي، نو په دې صورت کې د قبضې له تجديد څخه بغير بيع پوره او صحيح نه ګرځي؛ ځکه چې د زيد قبضه د امانت قبضه ده او د بيع

قبضه د ضمانت قبضه ده، او امانت له ضمانت څخه ادنیٰ دی، لهذا هغه به اعلیٰ لره نه شامليږي يعني د اعلیٰ قبضې قائم مقام به نه ګرځي، نو ځکه د قبضې تجديد به کيږي.

وإذا وهب الأب إلخ: مسئله دا ده چې پلار د خپل بچي سرپرست او کفيل (ذمه وار) دی او د بچي د معاملاتو مالک دی، نو ځکه که پلار خپل بچي ته يو شی هبه کړي، نو هبه صحيح کيږي او د پلار قبضه د بچي خپله قبضه شمارل کيږي، برابره ده هغه شی د پلار سره موجود وي، يا پلار هغه بل چا ته وديعتاً (امانتاً) ورکړی وي؛ ځکه چې د مودَع (امين) قبضه د مودِع (مالک) د قبضې په څېر ده. ها! که چيري پلار هغه شی بل چا ته په رهن (په ګرو) ورکړی وي، يا له پلار څخه يو چا هغه غصب کړی وي، يا پلار د بيع فاسد په توګه خرڅ کړی وي، نو دا هبه معتبره او صحيح نه ده؛ ځکه چې اوس پر هغه د بل چا قبضه او تسلط دی او د بل چا قبضه د بچي قبضه نه شمارل کيږي لأنهٗ ليس في عياله.

او کوم حکم چې د پلار د هبه کولو دي، په مذکوره صورتونو کې هغه حکم د صدقه کولو هم دی، يعني که صدقه کړی سوی شی د پلار يا د هغه د مودَع په قبضه کې وي، نو صدقه صحيح کيږي، او که هغه شی مرهون يا مغصوب وي، نو صدقه نه صحيح کيږي.

وكذا إذا وهبت له إلخ: که د بچي پلار مړ سوی وي او داسي څوک هم نه وي چې پلار هغه ته د بچي د کفالت او سرپرستۍ وصيت کړی وي او هغه بچی د خپل مور تر پرورش او پالنه لاندي يا د بل کس تر سرپرستۍ لاندي وي، نو که داسي بچي ته مور يا هغه بل کس يو شی هبه کړي، نو دا هبه صحيح او جائز ده او د مور يا سرپرست کس قبضه د بچي قبضه شمارل کيږي. همدارنګه که يو اجنبي کس بچي ته يو شی هبه کړي، نو د پلار په قبضه کولو سره هبه پوره او صحيح ګرځي؛ ځکه کله چې پلار د خپل بچي لپاره د داسي شي د معامله کولو اختيار هم لري چې په هغه کې د نفع و نقصان دواړو احتمال وي، نو په کوم شي کې چې سر تر پايه نفع وي، د هغه د اخيستلو او قبضه کولو اختيار خو به هغه ته خامخا وي.

## د نا اهل له طرفه به څوک قبضه کوي؟

قَالَ: وَإِنْ وَهَبَ لِلْيَتِيمِ هِبَةً فرمايي: او که څوک يتيم ته يو شی هبه کړي فَقَبَضَهَا لَهُ وَلِيُّهُ او د يتيم ولي د هغه لپاره پر هغه شي قبضه وکړي وَهُوَ وَصِيُّ الْأَبِ أَوْ جَدُّ الْيَتِيمِ أَوْ وَصِيُّهُ او ولي د يتيم د پلار وصي وي يا د يتيم نيکه وي يا د نيکه وصي وي جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّ لِهَؤُلَاءِ وِلَايَةً عَلَيْهِ ځکه چې دغه کسانو لره پر يتيم ولايت حاصل دی لِقِيَامِهِمْ مَقَامَ الْأَبِ ځکه چې دوی د پلار قائم مقام

دي وَإِنْ كَانَ فِي حِجْرِ أُمِّهِ او كه چيري دا يتيم د مور په پرورش [او پالنه] كي وي فَقَبْضُهَا لَهُ جَائِزٌ نو د يتيم لپاره د هغې قبضه جائز ده لِأَنَّ لَهَا الْوِلَايَةَ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى حِفْظِهِ وَحِفْظِ مَالِهِ ځكه كوم څه چي د بچي د حفاظت او د هغه د مال د حفاظت سره متعلق وي په هغوى كي مور لره ولايت حاصل دی وَهٰذَا مِنْ بَابِهِ او دا [پر هبه قبضه كول] د مال د حفاظت له باب څخه دي لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى إِلَّا بِالْمَالِ ځكه چي له مال څخه بغير بچی [ژوندی] نه سي پاتېداى فَلَا بُدَّ مِنْ وِلَايَةِ التَّحْصِيلِ النَّافِعِ نو ځكه كوم شی چي نفع من وي د هغه د حاصلولو ولايت ضروري دی وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي حِجْرِ أَجْنَبِيٍّ يُرَبِّيهِ او همدارنګه كله چي بچی د يو اجنبي كس په پرورش كي وي چي هغه د ده تربيه كوي [نو هم دغه حكم دی] لِأَنَّ لَهُ عَلَيْهِ يَدًا مُعْتَبَرَةً ځكه چي دې اجنبي لره پر بچي معتبره [او مقبوله] قبضه حاصله ده أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا يَتَمَكَّنُ أَجْنَبِيٌّ آخَرُ أَنْ يَنْزِعَهُ مِنْ يَدِهِ آيا ته نه ګورې! چي بل اجنبي كس دا بچی د دې اجنبي له قبضي څخه د ايستلو اختيار نه لري فَيَمْلِكُ مَا يَتَمَحَّضُ نَفْعًا فِي حَقِّهِ لهذا كوم څه چي د بچي په حق كي خالص نفع وي، اجنبي كس به د هغه ملكيت [اختيار] وَإِنْ قَبَضَ الصَّبِيُّ الْهِبَةَ بِنَفْسِهِ او كه كوچنی پر هبه [موهوب شي] په خپله قبضه وكړي جَازَ نو هم جائز دي مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ عَاقِلًا د دې مطلب دا دی چي كله هغه بچی عاقل [پوهېدونكی] وي لِأَنَّهُ نَافِعٌ فِي حَقِّهِ ځكه چي پر هبه قبضه كول د دې بچي په حق كي نفع من دي وَهُوَ مِنْ أَهْلِهِ او [د عاقل كېدلو په جه] هغه د قبضه كولو اهل دی وَفِيمَا وُهِبَ لِلصَّغِيرَةِ يَجُوزُ قَبْضُ زَوْجِهَا لَهَا بَعْدَ الزِّفَافِ او كوم شی چي كوچنۍ نجلۍ ته هبه كړی سي نو تر زفاف [واده كېدلو] وروسته د هغې د خاوند لپاره پر هغه شي قبضه كول جائز دي لِتَفْوِيضِ الْأَبِ أُمُورَهَا إِلَيْهِ دَلَالَةً ځكه چي [تر زفاف وروسته] دلالتاً پلار د خپلې لور معاملات د هغې خاوند لره سپارلي دي بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الزِّفَافِ په خلاف له زفاف څخه د مخكي [قبضه كولو] وَيَمْلِكُهُ مَعَ حَضْرَةِ الْأَبِ او خاوند د پلار په موجوديت كي هم د هبې د قبضه كولو ملكيت [اختيار] لري بِخِلَافِ الْأُمِّ وَكُلِّ مَنْ يَعُولُهَا غَيْرُهَا په خلاف د مور او له مور څخه بغير هر هغه كس كوم چي د انجلۍ كفالت كوي حَيْثُ لَا يَمْلِكُونَهَا إِلَّا بَعْدَ مَوْتِ الْأَبِ أَوْ غَيْبَتِهِ غَيْبَةً مُنْقَطِعَةً فِي الصَّحِيحِ نو د صحيح قول

مطابق دا کسان د هغې لپاره د هبې د قبضه کولو ملکیت [اختیار] نه لري مګر د پلار تر مرګ وروسته یا په غیبت منقطعه سره د پلار د غائب والي په صورت کي لِأَنَّ تَصَرُّفَ هٰؤُلَاءِ لِلضَّرُورَةِ لَا بِتَفْوِيضِ الْأَبِ ځکه چي د دې کسانو تصرف د ضرورت پر بناء [ثابت] دی، نه د پلار په ورسپارلو سره وَمَعَ حُضُورِهِ لَا ضَرُورَةَ او د پلار په موجودیت کي هیڅ ضرورت نسته.

**اللغات**: ﴿وصي﴾ چا ته چي وصیت سوی وي، هغه کس چي مړي د یو کار وصیت ورته کړی وي، (د بچي نګران او ساتونکی)، ﴿حِجر﴾ غېږه، پرورش او پالنه، ﴿يُربِّي﴾ د تفعیل د باب مضارع ده: تربیت او پالنه کول، پالل، ﴿يتمكّن﴾ د تفعّل مضارع ده: قدرت او اختیار لرل، ﴿ينزع﴾ د ضرب مضارع ده: ایستل، واپس اخیستل، ﴿يتمحض﴾ د تفعّل مضارع ده: محض کېدل، خالص کېدل، ﴿الزِّفَاف﴾ (بکسر الزاء)، د نصر له بابه اسم دی: ناوې د خاوند کور ته استول (ناوکی د مېړه کور ته بېول)، کوم ته چي په یوه معنیٰ سره واده کېدل هم ویل کېدای سي، ﴿تفويض﴾ د تفعیل مصدر دی: ورسپارل، ﴿يعول﴾ د نصر مضارع ده: د معاش کفالت کول، ﴿غيبة منقطعه﴾ داسي غائبېدل چي د مرګ او ژوند پته یې نه وي، صاحب د معجم د غیبت منقطعه تعریف داسي کړی دی "الغيبة التي تنقطع فيها أخبار الغائب حتى لا يُعلم أحيًا كان أو ميّتًا". (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که یتیم بچي ته یو شی او مال هبه کړی شي، او پر هغه د یتیم ولي او سرپرست قبضه وکړي کوم چي د یتیم د پلار یا نیکه وصي وي، یا نیکه قبضه پر وکړي، نو دا قبضه معتبره ده او هبه جائز ده؛ ځکه چي د پلار په نا موجودیت کي وصي او نیکه د پلار قائم مقام وي او همدوی لره پر بچي ولایت حاصل وي، همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي د بچي مور یا یو اجنبي (پردی) کس د بچي پر هبه قبضه وکړي او بچی د مور یا د هغه اجنبي کس تر پرورش او سرپرستی لاندي وي، نو هم هبه جائز ده؛ ځکه چي دا د بچي په حق کي خالص نفع ده، او ښکاره خبره ده چي وصي او سرپرست د همداسي کارونو لپاره ټاکل کیږي چي په هغه کي د بچي مصلحت او ښېګڼه وي.

(۲)... كه چيري بچی نا بالغه وي، لېكن عاقل او په خبره ومعامله پوهېدونكې وي، او خپله پر موهوب شي قبضه وكړي، نو دا هم صحيح دي او هبه پوره او جائز ګرځي؛ ځكه چي پر هبه قبضه كول د بچي لپاره مفيد (نفع من) دي او دا بچی په خپل حق كي د مفيد شي د قبلولو اهل دی.

(۳)... كه چيري داسي نا بالغي نجلۍ ته يو شی هبه كړی سي چي د هغې كوزده (نكاح تړل) سوې وي، نو تر واده كېدلو (زفاف) وروسته د هغې له طرفه د خاوند قبضه كول معتبر او جائز دي، يعني كه خاوند د هغې له طرفه پر موهوب شي په داسي حال كي قبضه وكړي چي هغه د خاوند كور ته را وستل سوې وي، نو بيا د خاوند قبضه معتبره ده او هبه پوره او جائز ګرځي؛ ځكه چي د دې نجلۍ ولي كه څه هم پلار دی لېكن د خاوند كور ته د هغې استول او رخصتول د دې خبري دليل دا دي چي پلار د هغې امور او معاملات خاوند ته وسپارل. او كه چيري هغه د خاوند كور ته استول سوې نه وي، نو بيا د خاوند قبضه كول جائز نه دي؛ ځكه چي مذكوره دليل موجود نه سو.

**يادونه**: په "ايضاح" كي د زفاف پر ځاى دخول ذكر سوى دی، يعني كه خاوند په هغې دخول كړی وي، نو بيا د هغې له طرفه د خاوند قبضه معتبره او جائز ده، او په "ذخيره" كي دا شرط لګول سوى دی چي نجلۍ به د جماع قابله وي، لېكن صحيح هغه دي كوم چي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذكر كړي دي.

## د مُشاع و مشترک شي د هبې مختلفه صورتونه

قَالَ: وَإِذَا وَهَبَ اثْنَانِ مِنْ وَاحِدٍ دَارًا فرمايي: او كه دوه خلک يوه سړي ته كور هبه كړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُمَا سَلَّمَاهَا جُمْلَةً وَهُوَ قَدْ قَبَضَهَا جُمْلَةً ځكه چي هغوی دواړو [واهبانو] موهوب كور پر يوه ځاى موهوب لهٗ ته سپارلی دی او هغه پر يوه ځاى [په يوه ځل] قبضه پر كړې ده فَلَا شُيُوْعَ نو دلته شيوع [اشتراک] موجود نه سو وَإِنْ وَهَبَهَا وَاحِدٌ مِنْ اثْنَيْنِ او كه يو سړی دوو خلكو ته كور هبه كړي لَا يَجُوْزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا جائز نه دي وَقَالَا [*]: يَصِحُّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي جائز دي لِأَنَّ هٰذِهِ هِبَةُ الْجُمْلَةِ مِنْهُمَا ځكه چي دا [هم] د دواړه لپاره پر يوه ځاى [كامله او پوره] هبه ده إِذِ التَّمْلِيكُ وَاحِدٌ ځكه چي تمليک يو دی [يعني دواړه په يوه ځل او په يوه عقد سره د كور

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۴۹۷)، و رد المحتار (ج:۴، ص:۵۷۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲۲]

مالکان جوړ کړل سوي دي] فَلَا يَتَحَقَّقُ الشُّيُوعُ نو ځکه شیوع به نه ثابتیږي كَمَا إِذَا رَهَنَ مِنْ رَجُلَيْنِ دَارًا
لکه کله چي څوک دوو خلګو ته یو کور په رهن کي ورکړي وَلَهُ: أَنَّ هٰذِهِ هِبَةُ النِّصْفِ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ
مِنْهُمَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي دا د هر یوه لپاره د نصف، نصف کور هبه ده وَلِهٰذَا لَوْ
كَانَتِ الهِبَةُ فِيمَا لَا يُقَسَّمُ او همدا وجه ده که دا هبه [یعني دوو خلګو ته دیوه سړي هبه] په غیرِ قابل تقسیم
شي کي وای فَقَبِلَ أَحَدُهُمَا او په دوی کي یوه سړي [یوه موهوب لهٔ] هغه قبول کړې وای صَحَّ نو هغه
به صحیح کېدای وَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي النِّصْفِ او ځکه چي له دوی دواړو ځخه د هر
یوه لپاره نصف، نصف ملکیت ثابتیږي فَيَكُونُ التَّمْلِيكُ كَذٰلِكَ نو همداسي به تملیک هم
نصف، نصف ثابتیږي لِأَنَّهُ حُكْمُهُ ځکه چي ملکیت د تملیک حکم دی [یعني تر تملیک (مالک
جوړولو) وروسته سمدستي ملکیت ثابتیږي] وَعَلٰى هٰذَا الِاعْتِبَارِ يَتَحَقَّقُ الشُّيُوعُ او په همدغه اعتبار سره
شیوع ثابتیږي بِخِلَافِ الرَّهْنِ په خلاف د رهن لِأَنَّ حُكْمَهُ الْحَبْسُ ځکه چي د هغه حکم حبس [منع
کول] کول دي [یعني د رهن (مرهون شي) له ورکولو ځخه وروسته سمدستي مرتهن ته د خپل قرض په عوض
کي د هغه (مرهون شي) د راګرځولو او منع کولو حق حاصلیږي] وَيَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا او حبس له
دوی دواړو [مرتهنانو] ځخه د هر یوه لپاره په کامله توګه ثابتیږي [یعني د مرهون شي د راګرځولو حق هر
یوه ته په پوره توګه حاصلیږي] فَلَا شُيُوعَ نو ځکه [په رهن کي] به شیوع نه وي وَلِهٰذَا لَوْ قَضٰى دَيْنَ أَحَدِهِمَا
او همدا وجه ده که هغه [راهن] له دوی دواړو ځخه د یوه [مرتهن] قرض اداء کړي لَا يَسْتَرِدُّ شَيْئًا مِنَ
الرَّهْنِ نو هم هغه له مرهون شي [کور] ځخه هیڅ څه واپس نه سي اخیستلای وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ:
إِذَا تَصَدَّقَ عَلٰى مُحْتَاجَيْنِ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ أَوْ وَهَبَهَا لَهُمَا او په جامع صغیر کي [ذکر سوي] دي: که څوک
پر دوو غریبانو لس درهمه صدقه کړي یا هغوی ته یې هبه کړي جَازَ نو جائز دي وَلَوْ تَصَدَّقَ بِهَا عَلٰى
غَنِيَّيْنِ أَوْ وَهَبَهَا لَهُمَا او که پر دوو مالدارانو لس درهمه صدقه کړي یا هغوی ته یې هبه کړي لَمْ يَجُزْ نو
جائز نه دي وَقَالَا: يَجُوزُ لِلْغَنِيَّيْنِ أَيْضًا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د دوو مالدارانو لپاره هم
جائز دي جَعَلَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَجَازًا عَنِ الْآخَرِ امام صاحب رَحِمَهُ الله په صدقه او هبه دواړو کي هر

يو له بل يوه څخه مجاز ګرځولى دى وَالصَّلَاحِيَّةُ ثَابِتَةٌ او [په دوى كي] د مجاز كېدلو صلاحيت موجود دى لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تَمْلِيكٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ ځكه چي له دوى [هبه او صدقه] څخه هر يو بلا عوضه تمليک دى [يعني په هر يوه كي بغير له عوضه (مفت) يو شوک د شي مالک كول كيږي] وَفَرَّقَ بَيْنَ الصَّدَقَةِ وَالْهِبَةِ فِي الْحُكْمِ فِي الْجَامِعِ او په جامع صغير كي يې په هبه او صدقه كي د حكم په اعتبار سره فرق كړى دى وَفِي الْأَصْلِ سَوَّى بَيْنَهُمَا فَقَالَ: وَكَذٰلِكَ الصَّدَقَةُ او په مبسوط كي يې دوى دواړه [په حكم كي] برابر ګرځولي دي او داسي يې ويلي دي: او همداسي صدقه ده لِأَنَّ الشُّيُوعَ مَانِعٌ فِي الْفَصْلَيْنِ ځكه چي په دواړو صورتونو [يعني په هبه او صدقه دواړو كي] شيوع مانع دى لِتَوَقُّفِهِمَا عَلَى الْقَبْضِ ځكه چي دواړه [يعني د هبې او صدقې دواړو پوره كېدل] پر قبضې موقوف دي وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ أَنَّ الصَّدَقَةَ يُرَادُ بِهَا وَجْهُ اللهِ تَعَالٰى او د جامع صغير د روايت مطابق د فرق وجه دا ده چي په صدقه كولو سره د الله پاک د رضا اراده كيږي وَهُوَ وَاحِدٌ او الله پاک يو دى وَالْهِبَةُ يُرَادُ بِهَا وَجْهُ الْغَنِيِّ او په هبه سره د مالدار د رضا اراده كيږي وَهُمَا اثْنَانِ او هغوى [دلته] دوه دي وَقِيلَ: هٰذَا هُوَ الصَّحِيحُ او ويل سوي دي: چي د جامع صغير والا روايت صحيح دى وَالْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ فِي الْأَصْلِ الصَّدَقَةُ عَلَى غَنِيَّيْنِ او په مبسوط كي چي كوم څه ذكر سوي دي، له هغه څخه پر دوو مالدارانو صدقه كول مراد دي وَلَوْ وَهَبَ لِرَجُلَيْنِ دَارًا لِأَحَدِهِمَا ثُلُثَاهَا وَلِلْآخَرِ ثُلُثُهَا او كه شوک دوو خلكو ته كور هبه كړي، د يوه لپاره د كور ګوې حصې او د بل يوه لپاره د كور يوه حصه لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا هبه جائز نه ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز ده وَلَوْ قَالَ: لِأَحَدِهِمَا نِصْفُهَا وَلِلْآخَرِ نِصْفُهَا او كه هغه [واهب] ووايي: چي د يوه لپاره د كور نيمه حصه ده او د بل يوه لپاره [هم] د كور نيمه حصه ده عَنْ أَبِي يُوسُفَ فِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې سلسله كي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي فَأَبُو حَنِيفَةَ مَرَّ عَلَى أَصْلِهِ وَكَذَا مُحَمَّدٌ او امام صاحب رَحِمَهُ الله او امام محمد رَحِمَهُ الله پر خپل، خپل اصل تګ كړى دى [يعني هر يو پر خپل اصول قائم دي] وَالْفَرْقُ لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ بِالتَّنْصِيصِ عَلَى الْأَبْعَاضِ يَظْهَرُ أَنَّ قَصْدَهُ ثُبُوتُ الْمِلْكِ فِي الْبَعْضِ او د امام

ابو يوسف رَحِمَهُ الله لپاره د فرق وجه دا ده چي د بعضي، بعضي حصې په صراحت كولو سره [يعني كله چي واهب د هريوه لپاره د كور بعضي حصه وګرځوله، نو په دې سره] دا ښكاره سوه چي واهب په همدې بعضي حصه كي ملكيت ثابتول غواړي فَيَتَحَقَّقُ الشُّيُوعُ نو ځكه شيوع به ثابت سي وَلِهٰذَا لَايَجُوزُ إِذَا رَهَنَ مِنْ رَجُلَيْنِ وَنَصَّ عَلَى الْأَبْعَاضِ همدا وجه ده كه څوک دوو خلګو ته [يو كور يا بل شی] په رهن وركړي او د بعضي، بعضي حصې صراحت وكړي [مثلا داسي ووايي چي دا مرهون شی نصف د يوه او نصف د بل يوه دی] نو رهن جائز نه دی.

**اللغات:** ﴿جملة﴾ پر يوه ځای، په يوه ځل، په يوه پلا، ﴿يتحقق﴾ د تفعّل مضارع ده: ثابتېدل، ﴿الحبس﴾ د ضرب مصدر دی: منع كول، قيدول، راګرځول، ﴿يسترد﴾ د استفعال مضارع ده: واپس اخيستل، ﴿سَوّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: برابرول، ﴿ثلثاها﴾ په اصل كي ثلثان دی، نون د اضافت په وجه حذف كړی سوی دی، تثنيه د ثُلُثٌ ده: دريمه حصه، كه يو شی درې حصې كړل سي نو د هغه هري حصې ته يو ثلث وايي، ﴿الأبعاض﴾ جمع د بَعْضٌ ده: بعضي حصه، مثلاً كه كور دوې حصې كړل سي، نو هره حصه د كور بعض دی، ﴿التنصيص﴾ د تفعيل مصدر دی: صراحت كول، وضاحت كول (په ښكاره لفظو كي ذكر كول).

**تشريح:** په دې عبارت كي څو مسئلې ذكر سوي دي، چي هغه به انشاء الله على الترتيب ستاسو په خدمت كي پېش كړل سي:

(۱)... كه يو كور د دوو خلګو په مينځ كي مشترک وي او دوی دواړه هغه كور مثلاً خالد ته هبه كړي او هغه ته وېې وسپاري او خالد (موهوب لهٗ) هم پر هغه قبضه وكړي، يعني وركول هم صرف پر يوه ځای او په يوه ځل واقع سي او اخيستل هم، نه د وركولو په وخت كي شيوع وي او د نه اخيستلو په وخت كي شيوع موجود سي، نو دا هبه جائز او صحيح ده؛ ځكه د عدمِ جواز (نه جائز كېدلو) وجه شيوع وي او دلته له شروع څخه تر آخره شيوع معدوم دی.

(۲)... كه څوک يو كور دوو خلګو ته هبه كړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا هبه جائز نه ده او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز ده؛ ځكه چي دا ټوله كور صرف په يوه عقد او يوه تمليک سره هبه كړی سوی دی او په دې كي هيڅ ځای هم شيوع او اشتراک ته موقع نه ده وركول سوې. او كه څوک دوو خلګو ته يو كور د رهن (ګرو) په توګه وركړي، نو رهن جائز دی، حالانكي د هبې په نسبت د رهن لپاره شيوع زيات نقصان من دي، لېكن بيا هم دوو كسانو ته يو كور په رهن وركول جائز دي، نو ځكه دوو كسانو ته به يو كور هبه كول په درجه اولىٰ جائز وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي دلته شیوع موجود دی؛ ځکه چي کور دواړو خلګو ته نصف نصف هبه کړی سوی دی؛ ځکه که دا د غیرِ قابل تقسیم شي هبه وای او صرف یوه سړي هغه قبول کړې وای، نو هبه به صحیح وای، لېکن دا د قابلِ تقسیم شي معامله ده، نو ځکه د دواړو خلګو لپاره د نصف، نصف کور هبه واقع سوه او د همدې نصف، نصف دوی دواړه مالکان سول، او ملکیت د تملیک له اثر او حکم څخه دی، لهذا کله چي په حکم کي تنصیف او نصف والي سته، نو تملیک به هم نصف، نصف وي او له شروع څخه تر آخره به په دې کي شیوع وي او په هیڅ حال کي به زموږ په نېز جائز نه وي.

د دې په خلاف د رهن معامله ده، نو دوو کسانو (مرتهنانو) ته یو کور په رهن ورکول په دې وجه صحیح دي چي د هغه حکم حبس (منع کول او راګرځول) دی، او په حقُ الحبس کي شیوع نه راځي، بلکي هر کس ته دا حق په پوره توګه حاصلیږي، نو ځکه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله پورتني مسئله پر رهن قیاسول صحیح نه دي.

وفي الجامع الصغیر الخ: دا مسئله د جامع صغیر ده، حاصل یې دا دی چي که یو سړی دوو غریبانو (مسکینانو) ته لس درهمه صدقه یا هبه کړي، نو جائز دي، لېکن که دوو مالدارنو ته یې صدقه یا هبه کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دي او صاحبین رَحِمَهُمَا الله دا هم جائز ګرځوي او دا جواز د دوو غریبانو په حق کي پر جائز کېدلو قیاسوي یعني هغوی فرمایي چي څرنګه د دوو غریبانو لپاره صدقه او هبه کول مطلقاً جائز دي.

همداسي د دوو مالدارنو لپاره هم جائز دي، لېکن امام صاحب رَحِمَهُ الله له هبه او صدقه څخه هر یو د بل یوه مجاز او بدل ګرځوي مثلاً که څوک دوو غریبانو ته هبه وکړي نو امام صاحب رَحِمَهُ الله دا هبه له صدقې څخه بدل ګڼي (یعني د دې هبې نوم په صدقه سره بدلوي) او هغه جائز ګڼي، او که دوو مالدارنو ته صدقه وکړي، نو دا صدقه هبه ګڼي (د صدقې نوم په هبه سره بدلوي) او د دوو مالدارنو په حق کي هغه ته جائز نه وایي؛ ځکه چي شیوع موجود دی. او داسي کول صحیح دي؛ ځکه چي هبه او صدقه دواړه تملیکُ العین بلا عوض دي او یو د بل په نامه سره استعمالېدای سي، نو ګواکي امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي د هبې او صدقې په هکله د مالدار او غریب په حکم کي فرق کړی دی، لېکن په مبسوط کي یې فرق نه دی کړی بلکي د هبې نه جائز کېدلو د حکم تر ذکر کولو وروسته یې پر همدې حکم په عطف کولو سره "وَكَذٰلِكَ الصَّدَقَةُ" فرمایلي دي چي څرنګه دوو خلګو ته هبه کول جائز نه دي، همداسې صدقه کول هم جائزنه دي؛ ځکه چي په صدقه او هبه دواړو کي شیوع موجو دی او شیوع په دواړو ځایو کي مانع عن الجواز دی؛ ځکه چي صدقه او هبه دواړه په قبضه سره پوره کیږي، حال دا چي د شیوع د موجود والي په صورت کي قبضه نا ممکنه ده، نو ځکه د هبې جواز به هم نا ممکن او محال وي.

په جامع صغیر کي په هبه او صدقه کي فرق کړی سوی دی او د فرق کولو وجه او دلیل دا دی چي په صدقې سره د الله رضا مقصود وي او الله پاک واحد لا شریک ذات دی، نو ځک دوو خلګو ته په صدقه کولو کي صرف د یوه ذات (الله تعالی) رضا مقصود سوه او شیوع لازم نه سو، حال دا چي په هبه سره د مالدار کس

رضا مطلوبه وي او هغه دلته دوه دي، لهذا د هغوی دوه کېدل د شیوع دلیل او علامت دی، نو ځکه دا هبه جائز نه ده. او په مبسوط کي چي دوو مالدارنو ته د صدقې ورکولو کوم ممانعت ذکر سوی دی، له هغه صدقې څخه مجازاً هبه مراد ده، او په دې حواله سره د مبسوط او جامع صغیر په روایتونو کي هیڅ فرق نسته.

ولو وهب لرجلين إلخ: که څوک یو کور دوو خلکو ته هبه کړي او بیا دا تفصیل هم بیان کړي چي "د دې کور دوې حصه (دوه ثلثه) د یوه سړي دي او یوه حصه (یو ثلث) یې د دویم سړي ده" (یعني تر اجمال وروسته تفصیل هم بیان کړي)، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا هبه جائز نه ده او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده. او که چیري دوارو ته د نصف، نصف ورکولو تفصیل بیان کړي، نو له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چي هبه جائز ده، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه ده، په دې مسئله کي امام صاحب رَحِمَهُ الله پر خپل اصل قائم دی چي برابره ده ابتداءً تفصیل بیان سي یا تر اجمال وروسته تفصیل بیان سي (یعني اول بغیر له تفصیله مطلق داسي ووایي چي دا کور ما تاسو ته هبه کړی او تر دې وروسته د حصو تفصیل بیان کړي) او برابره ده هغه تفصیل متفاضلاً وي یعني د یوه حصه زیاته (دوه ثلثه) وي او د بل یوه حصه کمه (یو ثلث) وي او که متساویاً یعني نصف، نصف والا وي، په هر صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هبه ناجائز ده؛ ځکه چي دا تفصیل د شیوع سبب ګرځي او په دې هبه کي شیوع لازمیږي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله اصل دا دی چي که تر اجمال وروسته تفصیل بیان سي او ابتداءً بیان نه سي، نو مطلقاً هبه جائز ده، لکه څرنګه چي دلته همدا صورت دی، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله د هغه د جواز حکم کړی دی. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اصل دا دی چي که تفصیل بعد الاجمال وي، نو د متفاضلاً تفصیل کولو په صورت کي هبه جائز نه ده، لکه د دوه ثلثو یا یوه ثلث والا په مسئله کي چي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره د عدم جواز حکم کړی دی، او که چیري تفصیل متساویاً بیان سي، نو له امام ابو یوسف څخه یو روایت دا دی چي په دې صورت کي هبه جائز ده او دویم روایت دا دی چي جائز نه ده، په کتاب (هدایه) کي چي په "والفرق لأبي يوسف" سره کوم دلیل بیان سوی دی، هغه د عدم جواز (نه جائز کېدلو) د روایت دلیل دی چي د واهب د بعضي، بعضي حصې په صراحت کولو (یعني د ثلثان او ثلثا، او د نصفا، نصفا په ذکر کولو) سره د هر سړي لپاره په بعضي، بعضي کور کي ملکیت ثابتوي او په دې سره شیوع پیدا کیږي کوم چي جائز نه دي، لکه څرنګه چي د داسي صراحت کولو په صورت کي رهن هم نه جائز کیږي. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ مَا يَصِحُّ رُجُوْعُهٗ وَمَا لَا يَصِحُّ

(دا) باب د هغه هبې (په بيان کې) دی چې له هغه څخه رجوع کول صحيح دي او هغه چې له هغه څخه رجوع کول صحيح نه دي

**تشريح:** څرنګه چې رجوع کول تر وقوع او ثبوت وروسته پېښيږي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د هبې د ثبوت او وقوع تر بيانولو وروسته اوس له هبې څخه د رجوع کولو احکام او مسائل بيانوي.

## د هبه کړی سوي (موهوب) شي د واپس اخيستلو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا وَهَبَ هِبَةً لِأَجْنَبِيٍّ او که چيري څوک يو اجنبي [پردي] سړي ته يو شی هبه کړي فَلَهُ الرُّجُوعُ فِيهَا نو هغه ته په دې هبه [موهوب شي] کي د رجوع کولو اختيار سته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا رُجُوعَ فِيهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په هبه کي رجوع نه سي کېدای لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «لَا يَرْجِعُ الْوَاهِبُ فِي هِبَتِهِ إِلَّا الْوَالِدُ فِيمَا يَهَبُ لِوَلَدِهِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "واهب په خپله هبه کي رجوع نه سي کولای لېکن پلار چي خپل بچي ته کوم څه هبه کړي وي، په هغه کي رجوع کولای سي" وَلِأَنَّ الرُّجُوعَ يُضَادُّ التَّمْلِيكَ او ځکه چي رجوع کول [واپس اخيستل] د تمليک ضد دی وَالْعَقْدُ لَا يَقْتَضِي مَا يُضَادُّهُ او عقد د هغه څه تقاضا نه کوي کوم چي د هغه ضد [او منافي] وي بِخِلَافِ هِبَةِ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ عَلَى أَصْلِهِ په خلاف د خپل بچي لپاره د پلار هبه کول (د امام شافعي رَحِمَهُ الله پر اصل) لِأَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ التَّمْلِيكُ ځکه چي [په دې هبه کي] تمليک پوره نه سو لِكَوْنِهِ جُزْءًا لَهُ ځکه ځوی د خپل پلار يو جزء وي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: «الْوَاهِبُ أَحَقُّ بِهِبَتِهِ مَا لَمْ يُثَبْ مِنْهَا» أَيْ مَا لَمْ يُعَوَّضْ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: "واهب د خپلي هبې زيات حقدار دی تر څو چي هغه ته بدل نه ورکول سي"

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد في سننه، رقم الحديث: ۳۵۳۹.

[2] تخريج: رواه الدار قطني في سننه ج:۳، ص:۴۳. رقم الحديث: ۳۰۱۲. و البيهقي في سننه، رقم الحديث: ۱۲۳۸۰.

يعني تر څو چې عوض نه ورکول سي [مطلب دا چې تر څو واهب ته د هبې (موهوب شي) په بدله کې د عوض په توګه موهوب لهٔ يو شی نه ورکړي، تر هغه وخته واهب د خپل موهوب شي زيات حق دار دی] وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ بِالْعَقْدِ هُوَ التَّعْوِيضُ لِلْعَادَةِ او ځکه چې په عقد هبه سره عادتا [عموماً] د عوض اخيستل مقصود وي [يعني په عُرف کې په هبه کولو سره عموماً د واهب مقصد دا وي چې ما ته د هغه په بدله کې يو عوض او فايده حاصله سي] فَتَثْبُتُ لَهُ وِلَايَةُ الْفَسْخِ عِنْدَ فَوَاتِهِ نو ځکه د عوض فوتېدلو [نه حاصلېدلو] په وخت کې به واهب لره د فسخ کولو [رجوع کولو] ولايت حاصل وي إِذِ الْعَقْدُ يَقْبَلُهُ ځکه چې دا عقد هبه [هم] فسخ قبلوي وَالْمُرَادُ بِمَا رَوَى نَفْيُ اسْتِبْدَادِ الرُّجُوعِ وَإِثْبَاتُهُ لِلْوَالِدِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم حديث روايت کړی دی له هغه څخه مراد په رجوع کې د مستقل کېدلو [خود مختاره کېدلو] نفي کول او د پلار لپاره رجوع ثابتول دي لِأَنَّهُ يَتَمَلَّكُهُ لِلْحَاجَةِ ځکه چې پلار د ضرورت په وخت کې د هغه مالک کيږي وَذٰلِكَ يُسَمّٰى رُجُوعًا او دې ته [يعني د ضرورت په وخت کې مالک کېدلو ته هم] رجوع ويل کيږي وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ "فَلَهُ الرُّجُوعُ" لِبَيَانِ الْحُكْمِ او په قدوري [متن] کې د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "فله الرجوع" د حکم بيانولو لپاره دی أَمَّا الْكَرَاهَةُ فَلَازِمَةٌ لېکن د رجوع مکروه کېدل ضروري دي لِقَوْلِهِ الْعَلِيْلاً: «الْعَائِدُ[3] فِي هِبَتِهِ كَالْعَائِدِ فِي قَيْئِهِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: په خپل هبه کې رجوع کونکی داسي دی لکه خپل قې ته رجوع کونکی [يعني لکه د خپل قې څټونکی] وَهٰذَا لِاسْتِقْبَاحِهِ او تشبيه د هغه د قباحت [بدوالي] د ښکاره کولو لپاره ده ثُمَّ لِلرُّجُوعِ مَوَانِعُ ذَكَرَ بَعْضَهَا بيا د رجوع کولو لپاره څه موانع هم سته چې له هغوی څخه بعضي [دلته] امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي فَقَالَ: إِلَّا أَنْ يُعَوِّضَهُ عَنْهَا نو فرمايي: چې [له هبې څخه رجوع کول جائز دي] مګر دا چې موهوب لهٔ واهب ته د هبې [موهوب شي] عوض ورکړي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ ځکه چې د واهب مقصد حاصل سو أَوْ يَزِيدَ زِيَادَةً مُتَّصِلَةً يا دا چې موهوب لهٔ [په موهوب شي کې] داسي زياتوب وکړي کوم چې د هغه سره متصل وي لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى الرُّجُوعِ فِيهَا دُوْنَ الزِّيَادَةِ ځکه چې له زياتوب څخه بغير په

---

[3] تخريج: رواه البخاري في صحيحه، رقم الحديث: ٢٥٨٨.

هغه کي د رجوع هيڅ صورت نسته لِعَدَمِ الْإِمْكَانِ ځکه چي د دې امکان نسته [یعني دا ممکن نه دی] وَلَا مَعَ الزِّيَادَةِ او نه د زیاتوب سره [یعني د زیاتوب سره هم په هغه کي د رجوع کولو هيڅ صورت او امکان نسته] لِعَدَمِ دُخُولِهَا تَحْتَ الْعَقْدِ ځکه چي هغه زیاتوب تر عقد لاندې داخل نه دی قَالَ: أَوْ يَمُوتَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فرمايي: یا دا چي له دواړو عاقدینو [واهب او موهوب لهٗ] څخه یو عاقد مړ سي لِأَنَّ بِمَوْتِ الْمَوْهُوبِ لَهُ يَنْتَقِلُ الْمِلْكُ إِلَى الْوَرَثَةِ ځکه چي د موهوب لهٗ د مړه کېدلو په وجه ملکیت د وارثانو وطرف ته منتقل کيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا انْتَقَلَ فِي حَالِ حَيَاتِهِ نو داسي به وګرځي لکه د موهوب لهٗ د ژوند په حالت کي چي د وارثانو وطرف ته ملکیت منتقل سوی وي وَإِذَا مَاتَ الْوَاهِبُ او که چیري واهب مړ سي فَوَارِثُهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْعَقْدِ نو د هغه وارث له عقد [هبه] څخه اجنبي [خارج] دی إِذْ هُوَ مَا أَوْجَبَهُ ځکه وارث خو د دې عقد ایجاب کړی نه دی [یعني موهوب له ته هغه شی نه دی ورکړی بلکي دا کار مورث (واهب) کړی دی] قَالَ: أَوْ يَخْرُجَ الْهِبَةُ عَنْ مِلْكِ الْمَوْهُوبِ لَهُ فرمايي: یا دا چي هبه [موهوب شی] د موهوب لهٗ له ملکیت څخه ووځي لِأَنَّهُ حَصَلَ بِتَسْلِيطِهِ ځکه چي دا وتل [په حقیقت کي] د واهب په مسلط کولو [قدرت ورکولو] سره حاصل سوي دي فَلَا يَنْقُضُهُ نو ځکه واهب به هغه نه سي ماتولای سي [ځکه کوم څه چي انسان خپله کړي وي، د هغه ماتول او ختمول مردود دي] وَلِأَنَّهُ يَتَجَدَّدُ الْمِلْكُ بِتَجَدُّدِ سَبَبِهِ او ځکه چي د سبب په نوي کېدلو سره ملکیت هم نوي کيږي.

**اللغات:** ﴿يضاد﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: یو د بل ضد کېدل، منافي کېدل، تضاد لرل. ﴿يعوض﴾ د تفعیل مضارع ده، عَوَّضَ يُعَوِّضُ تَعْوِيضًا: عوض ورکول، بدله ورکول. ﴿فسخ﴾ د فتح مصدر دی: فسخ کول، ماتول، ختمول. ﴿استبداد﴾ د استفعال مصدر دی: مستقل کېدل. ﴿العائد﴾ د نصر اسم فاعل دی: رجوع کونکی، راګرځېدونکی. ﴿استقباح﴾ د استفعال مصدر دی: قبیح ګڼل، بد او ناخوښه ګڼل. (احسن الهدایه)

**تشریح:** **مسئله:** دا ده چي زموږ په نېز واهب (هبه کونکی) په هبه کي رجوع کولای سي یعني له موهوب لهٗ څخه خپل موهوب شی واپس اخیستلای سي. برابره ده واهب او موهوب لهٗ دواړه اجنبي وي یا پلار وخپل ځوی ته هبه کړې وي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي

اجنبي کس ته په ورکول سوې هبه کي رجوع نه سي کېدای، ها! که چيري پلار خپل بچي ته هبه وکړي، نو هغه رجوع کولای سي.

**د امام شافعي دليل** : د امام شافعي رَحِمَهُ الله نقلي دليل دا حديث دی "لَا يَرْجِعُ الْوَاهِبُ فِيْ هِبَتِهِ إِلَّا الْوَالِدُ فِيْمَا يَهِبُ لِوَلَدِهِ"، په دې حديث کي اول په مطلق هبه کي رجوع ممنوع ګرځول سوې ده او بيا د پلار د رجوع اجازت ورکول سوی دی، نو ځکه د رجوع (واپس اخيستلو) حق به صرف د پلار او بچي سره خاص وي او اجنبي په ورکول سوې هبه کي به د رجوع اختيار او امکان نه وي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي واهب د هبې په ذريعه موهوب لهٔ د موهوب شي مالک جوړ کړی دی، حال دا چي په رجوع کولو سره دا تمليک (مالک جوړول) سلبول کيږي، نو په دې حواله سره به رجوع د تمليک ضد وي او عقد خپل ضد لره نه شامليږي، نو په دې وجه هم په هبه کي رجوع نه سي کېدای. ها! پلار په دې وجه خپل بچي ته په ورکول سوې هبه کي رجوع کولای سي؛ چي بچی د پلار جزء وي، او په دې هبه کي چي د واهب يعني د پلار لپاره کوم تمليک وي، هغه تام او پوره نه وي، نو دلته په رجوع سره دا نه لازميږي چي عقد خپل ضد لره شامليږي.

**زموږ دليل** : دا حديث دی "الْوَاهِبُ أَحَقُّ بِهِبَتِهِ مَا لَمْ يُثَبْ مِنْهَا" چي تر څو پوري واهب ته د هبې عوض نه ورکول سي، تر هغه وخته واهب د خپل هبې مستحق پاتيږي، يعني تر هغه وخته واهب ته د رجوع کولو حق او اختيار سته. او څرنګه چي په دې حديث کي مطلق واهب مستحق ګرځول سوی دی او په دې کي د اجنبي او داسي نورو هيڅ قيد نه دی لګول سوی، نو ځکه دا حقُ الرجوع به هر واهب لره حاصليږي او د پلار تخصيص به نه کيږي.

زموږ عقلي دليل دا دی چي په هبه کولو سره د واهب مقصد او خواهش دا وي چي ما ته د هغه عوض ملاو (حاصل) سي او ذ موهوب لهٔ له طرفه ما ته صله او بدله حاصله سي، نو ځکه د عوض او بدلې نه حاصلېدلو په صورت کي به هغه ته د رجوع او فسخ حق حاصليږي، او څرنګه چي په نورو عقدونو کي د فسخ امکان سته، همداسي به عقد هبه هم فسخ قبلوي او دا فسخ به د هر ډول واهب حق وي.

<u>والمراد بما روی إلخ</u> : فرمايي امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کوم حديث د دليل په توګه پېش کړی دی، د هغه مراد او مطلب دا دی چي واهب په رجوع کولو کي خود مختاره او مستقل بالذات نه دی بلکي کله چي واهب او موهوب له دواړه په رجوع کولو راضي سي يا قاضي د رجوع حکم وکړي، نو بيا به رجوع کيږي، او د دواړو له رضا يا له قضاء څخه بغير به رجوع نه کيږي. او پلار ته چي کوم د رجوع حق حاصل دی، هغه د نفقې او داسي نورو د ضرورت په وجه دی، او دا که څه هم حکماً رجوع نه ده، لېکن

ظاهرا د رجوع په څېر ده، نو ځکه هغه ته رجوع ويل سوي دي. خلاصه دا چي زموږ په نېز هر واهب لره د رجوع حق او اختيار حاصل دی لېکن بيا هم رجوع کول له کراهتٌ څخه خالي نه دي؛ ځکه په حديث مبارک کي رجوع کونکی د خپل قي څټونکي په څېر ګرځول سوی دی، او د حديث مبارک دا تشبيه او مضمون د رجوع د کراهت او قباحت لپاره کافي دي.

ثم للرجوع موانع إلخ: فرمايي رجوع خو جائز ده لېکن څه افعال او حالات داسي دي چي د هغوی په وجه رجوع کول نا ممکن او محال ګرځي، د مثال په توګه: ① که موهوب لهٗ واهب ته د موهوب شي په بدله کي يو عوض ورکړي، نو بيا واهب رجوع نه سي کولای؛ ځکه په رجوع سره چي د واهب کوم مقصد دی، هغه په عوض اخيستلو سره حاصل سو. ② يا موهوب لهٗ په موهوب شي کي داسي زياتوب وکړي کوم چي د هغه سره متصل وي، مثلاً موهوب شی ځمکه وي او موهوب لهٗ په هغه ځمکه کي درختي ولګوي (نيالګي کښېږدي) يا يو ځای پکښې جوړ کړي او په دې سره د موهوبه ځمکي په قيمت کي زياتوب او اضافه راسي يا مثلاً موهوب شی پُسه وي او د موهوب لهٗ په ساتلو سره هغه ډېر چاغ سي او قيمت يې اضافه سي، نو اوس نه له زياتوب څخه بغير رجوع ممکن ده او نه د زياتوب سره رجوع ممکن ده (يعني نه دا ممکن دي چي واهب زائد کړل سوي شيان [يعني درختي، جوړ سوی ځای او چاغښت] نه منځه يووسي او صرف خپله ځمکه يا څاروی واخلي، ځکه چي د درختو او ځای تميېز او جلا کول مشکل دي او د چاغښت لېري کول نا ممکن او متعذر دي. او نه دا ممکن دي چي د زياتوب سره يعني د درختو او ځای سره ځمکه واخلي يا د چاغوالي سره پُسه واخلي؛ ځکه چي زياتوب په عقد هبه کي داخل نه وو)؛ نو ځکه په هر اعتبار سره د رجوع لاره بنده ده. ③ د رجوع نا ممکن کېدلو درېيمه وجه دا ده چي واهب يا موهوب لهٗ مړ سي؛ ځکه د موهوب لهٗ په مرګ سره موهوب شی او د هغه ملکيت د وارثانو (ميراث خورو) وطرف ته منتقل کيږي او دا داسي ده لکه د موهوب لهٗ په ژوند کي چي د وارثانو وطرف ته ملکيت منتقل سوی وي. او وارثانو ته رجوع کول (يعني له وارثانو څخه موهوب شی اخيستل) نا ممکن دي؛ ځکه چي هغوی عقد کونکي نه دي، او که چيري واهب مړ سي، نو هم رجوع نه سي کېدای؛ ځکه چي د واهب تر مرګ وروسته وارثان د هغه نائب ګرځي، حالانکي وارثان عقد کونکي نه دي بلکي له عقد هبه څخه خارج او وتلي دي.

أو يخرج الهبة إلخ: ④ همدارنګه که موهوب شی د موهوب لهٗ له ملکيت څخه ووځي، مثلاً هغه موهوب شی خرڅ کړي يا يې بل چا ته هبه کړي، نو په دې صورت کي هم واهب رجوع نه سي کولای: ځکه موهوب شی خو د هغه له طرفه د موهوب لهٗ په قبضه کي ور کول سوی دی نو ګواکي د

موهوب شي پر خرڅولو او هبه کولو واهب هغه ته قدرت کړی دی او د واهب په تسلیط او قدرت ورکولو سره دا شی د هغه له ملکیت څخه وتلی دی، نو ځکه اوس واهب د موهوب لهٔ عقد نه سي ختمولای. او په دې وجه هم واهب رجوع نه سي کولای چي د ملکیت د نوي سبب په پیدا کېدلو سره ملکیت هم نوی کیږي، مثلاً کله چي موهوب لهٔ موهوب شی خرڅ کړي، نو د خرڅولو په وجه مشتري ته نوی ملکیت (جدید ملک) حاصل سو، نو ځکه اوس واهب هغه نه سي ماتولای.

## په موهوبه ځمکه کي له کښت کرولو یا ځای جوړولو څخه وروسته د رجوع کولو بیان او پر خپل ذو رحم محرم قریب د رجوع کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ وَهَبَ لِآخَرَ أَرْضًا بَيْضَاءَ فرمایي: او که څوک بل چا ته خالي ځمکه هبه کړي فَأَنْبَتَ فِي نَاحِيَةٍ مِنْهَا نَخْلًا او دا بل څوک [موهوب لهٔ] د هغه ځمکي په یو طرف کي درختي شنې کړي [د خرما وني ولګوي] أَوْ بَنَى بَيْتًا أَوْ دُكَّانًا أَوْ آرِيًا یا خونه یا دوکان یا ښاروبو ته د خوراک ورکولو ځای پکښې جوړ کړي وَكَانَ ذَلِكَ زِيَادَةً فِيهَا او دا په ځمکه کي زیاتوب وي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِي شَيْءٍ مِنْهَا نو واهب ته دا اختیار نسته چي د ځمکي په هیڅ حصه کي رجوع وکړي لِأَنَّ هَذِهِ زِيَادَةٌ مُتَّصِلَةٌ ځکه چي دا د ځمکي سره متصل زیاتوب دی وَقَوْلُهُ وَكَانَ ذَلِكَ زِيَادَةً فِيهَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ الدُّكَّانَ قَدْ يَكُونُ صَغِيرًا حَقِيرًا لَا يُعَدُّ زِيَادَةً أَصْلًا او د ماتن رَحِمَهُ الله دا قول "وكان ذلك زيادة فيها" د دې خبري وطرف ته اشاره ده چي کله دوکان دومره کوچنی وي چي هغه بالکل زیاتوب نه شمارل کیږي وَقَدْ تَكُونُ الْأَرْضُ عَظِيمَةً يُعَدُّ ذَلِكَ زِيَادَةً فِي قِطْعَةٍ مِنْهَا او کله ځمکه دومره غټه وي چي صرف د هغې په یوه حصه کي داسي فعل زیاتوب شمارل کیږي فَلَا يَمْتَنِعُ الرُّجُوعُ فِي غَيْرِهَا نو له هغه یوې حصې څخه بغیر به د ځمکي په نوره حصه کي رجوع ممتنع نه وي قَالَ: فَإِنْ بَاعَ نِصْفَهَا غَيْرَ مَقْسُومٍ فرمایي: که چیري موهوب لهٔ د موهوبه ځمکي نیمه حصه نا تقسیم کړې سوې خرڅه کړي رَجَعَ فِي الْبَاقِي نو واهب په پاته حصه کي رجوع کولای سي [یعني پاته حصه له موهوب لهٔ څخه اخیستلای سي] لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ بِقَدْرِ الْمَانِعِ ځکه چي ممتنع کېدل د مانع په اندازه وي وَإِنْ لَمْ يَبِعْ شَيْئًا مِنْهَا او که موهوب لهٔ له هغه ځمکي څخه هیڅ حصه خرڅه نه کړي لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِي نِصْفِهَا نو واهب ته دا اختیار سته چي د

کور په نيمه حصه کي رجوع وکړي لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِي كُلِّهَا ځکه چي واهب ته دا اختيار هم سته چي په ټوله کور کي رجوع وکړي فَكَذَا فِي نِصْفِهَا بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نو په نيم کور کي به هغه ته په درجه اولیٰ د رجوع کولو اختيار وي وَإِنْ وَهَبَ هِبَةً لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او که څوک خپل ذی رحم محرم [نژدې قريب] ته يو شی هبه کړي فَلَا رُجُوعَ فِيهَا نو په هغه کي رجوع نه سي کېدای [يعني واهب له خپل ذی رحم محرم شخخه موهوب شی واپس نه سي اخيستلای] لِقَوْلِهِ الْعَلِيْلا [1] : «إِذَا كَانَتِ الْهِبَةُ لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ لَمْ يُرْجَعْ فِيهَا» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "کله چي هبه د خپل ذی رحم محرم لپاره وي نو په هغه کي رجوع نه سي کېدای" وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ صِلَةُ الرَّحِمِ او ځکه چي مقصود [په دې هبه سره] صله رحمي کول وي وَقَدْ حَصَلَ او هغه حاصل سوه وَكَذَلِكَ مَا وَهَبَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ لِلْآخَرِ او همدارنګه له خاوند او ښځي شخخه چي يو کوم شی بل يوه ته هبه کړي [په هغه کي هم رجوع نه سي کېدای] وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ فِيهَا الصِّلَةُ او ځکه چي په دې هبه سره [هم] صله رحمي کول مقصود وي كَمَا فِي الْقَرَابَةِ لکه څرنګه چي په قرابت کي کيږي وَإِنَّمَا يُنْظَرُ إِلَى هٰذِهِ الْمَقْصُودِ وَقْتَ الْعَقْدِ حَتَّى لَوْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَمَا وَهَبَ لَهَا او دغه مقصود [صله رحمي] ته به صرف د عقد [هبه کولو] په وخت کي کتل کيږي، تر دې که څوک ښځي ته د يو شي تر هبه کولو وروسته د هغې سره نکاح وکړي فَلَهُ الرُّجُوعُ نو هغه ته د رجوع کولو اختيار سته وَلَوْ أَبَانَهَا بَعْدَمَا وَهَبَ او که خاوند تر هبه کولو وروسته ښځي ته طلاق بائن ورکړي فَلَا رُجُوعَ نو [هغه ته د] رجوع [اختيار] نسته.

**اللغات**: ﴿بيضاء﴾ سپينه، خالي ځمکه چي پر هغې هيڅ کرل سوي نه وي، ﴿أنبت﴾ د افعال ماضي ده: شنه کول (راشنه کول)، ﴿ناحية﴾ ګوښه، طرف، کناره، ﴿نخل﴾ جمع د نَخْلَةٌ: د خرما درختي (ونې)، ﴿دُكان﴾ دوکان، پلورنځی، جمع: دَكَاكِين، ﴿آريًّا﴾ الآرِيُّ او الآرِيْ (بالتشديد و بالتخفيف) دلغت په کتابو کي د دې لفظ دوې معناوي ذکر سوي دي: ① عُرْوَةٌ أَوْ وَتَدٌ تُثْبَتُ فِي حَائِطٍ تُشَدُّ فِيهَا الدَّابَّةُ. يعني هغه طوق يا ميخ کوم چي په دېوال کي ثبت کړی سي (ټک وهل سي) د

[1] تخريج: أخرجه البيهقي، باب المكافاة في الهبة، حديث رقم:۱۲۳۸۴. والدار القطني، كتاب البيوع، حديث رقم:۳۰۱۷.

څاروي د تړلو لپاره (معجم وسيط)، او دې ته په عربي ژبه کي الآخِيَّة هم ويل کيږي، ② مَعْلِف: څارويو ته د خوراک (وښو) ورکولو ځای، يعني هغه خونه او کوډله چي په هغه کي د څاروي د خوراک لپاره تپ (اخور) جوړ سوی وي، په فقه کي په "الآرِيّ" سره همدا دويمه معنیٰ "مَعْلِف" مرادول کيږي.
﴿ذي رحم محرم﴾ هغه قريب چي نکاح ورسره کول حرام وي، ډېر نژدې قريب. ﴿صلة الرحم﴾ د قرابت او رشته دارۍ خيال ساتل، د قريبانو سره احسان کول (د صله او عطيه په ورکولو سره). ﴿الصلة﴾ عطيه (ورکړه)، بغير له عوضه (مفت) شی ورکول کوم ته چي هبه هم وايي. ﴿أبان﴾ د افعال ماضي ده: جلا کول، طلاق بائن ورکول. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... که ادريس و زيد ته خالي ځمکه هبه کړي او زيد د هغه ځمکي په يو طرف کي درختي شنې کړي (نيالګي کښېږدي)، يا يو دوکان پکښې جوړ کړي، يا د څارويو لپاره د خوراک (وښو) ورکولو ځای پکښې جوړ کړي، او د موهوب لهٗ (زيد) دا کار کول په ځمکه کي زياتوب او اضافه ګڼل کيږي، يعني په عُرف کي هغه زياتوب شمارل کيږي (او داسي نه وي چي دومره لږ ځای ونيسي کوم چي په عُرف کي زائد مقدار نه شمارل کيږي)، نو په دې صورت کي واهب په خپل هبه کي رجوع نه سي کولای؛ ځکه چي دا اضافه او زياتوب د موهوبه ځمکي سره متصل دی، لهذا نه له دې زياتوب څخه بغير رجوع ممکن ده (ځکه چي د هغه تمييز او عليحده کول مشکل دي) او نه د دې زياتوب سره رجوع ممکن ده (ځکه چي دا اضافه وزياتوب په عقد [هبه] کي داخل نه وو). صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په "وكان ذٰلِكَ زِيَادَةً فِيهَا" سره ودې طرف ته اشاره سوې ده چي رجوع هغه وخت ممتنع ده کله چي دا زياتوب واقعتاً زياتوب ګڼل کيږي او خلک په عُرف کي هغه زياتوب شماري (لکه څرنګه چي موږ هم ذکر کړه)؛ ځکه چي ځيني وخت دوکان دومره کوچنی او معمولي جوړ سي کوم چي په ځمکه کي زياتوب او اضافه نه شمارل کيږي، يا کله ځمکه دومره غټه وي چي صرف د هغې په يو طرف کي دا فعل زياتوب شمارل کيږي او باقي ځمکه له زياتوب څخه خالي وي او په هغه کي رجوع ممکن وي.

(٢)... که موهوب لهٗ (زيد) له تقسيمولو څخه بغير د موهوبه ځمکي نصف حصه خرڅه کړي، نو په دې صورت کي واهب (ادريس) ته په ما بقي نصف کي د رجوع کولو اختيار سته؛ ځکه چي موهوب لهٗ صرف نصف حصه له خپل ملکيت څخه ايستلې ده او صرف په همدې نصف کي مانع موجود دی، نو ځکه يوازي په دې نصف کي به رجوع ممتنع وي او په ما بقي نصف کي به رجوع جائز

وي. همدارنګه که موهوب لهٗ له موهوبه ځمکي څخه هيڅ حصه خرڅ نه کړي، نو هم واهب ته په نصف حصه کي د رجوع کولو حق او اختيار سته؛ ځکه کله چي هغه ته د موهوب شي په ټوله حصه کي د رجوع حق حاصل دی، نو په بعضي حصه کي خو به په درجه اولیٰ هغه ته دا حق حاصل وي.

(۳)... او که څوک خپل ذی رحم محرم قريب ته يو شی هبه کړي، نو په هغه کي رجوع نه سي کولای؛ ځکه په حديث مبارک کي په صريحه توګه له دې څخه منع سوې ده. او بل دا چي په دې هبه سره صله رحمي مقصود وي او رجوع د هغه منافي ده، همدا حکم د خاوند او ښځي د هبې هم دی، لېکن د ښځي او خاوند په هبه کي به صرف د عقد (هبه کولو) پر مهال د مقصود يعني د صله رحمي اعتبار کيږي، نه تر هغه وروسته. يعني خاص د هبه ورکولو او اخيستلو په وخت کي به هغوی مېړه او مايينه وي، نو بيا رجوع نه سي کېدای، لېکن که څوک پردۍ ښځي ته يو شی هبه کړي او تر دې وروسته د هغې سره نکاح وکړي، نو رجوع کولای سي يعني له هغې څخه خپل موهوب شی اخيستلای سي؛ ځکه چي د عقد کولو (هبه کولو) په وخت کي هغه د ده خپله ښځه او مايينه نه وه. او که چيري څوک تر هبه کولو وروسته ښځي ته طلاق ورکړي او هغه له ځانه بائنه او جلا کړي، نو رجوع نه سي کولای، ځکه چي د عقد په وخت کي هغه د ده مايينه وه او ده په هغه وخت کي په هبه ورکولو سره خپل مقصود (صله رحمي کول) حاصل کړی.

## د هبې د عوض اخيستلو يو صورت

قَالَ: وَإِذَا قَالَ الْمَوْهُوبُ لَهُ لِلْوَاهِبِ: خُذْ هٰذَا عِوَضًا عَنْ هِبَتِكَ أَوْ بَدَلًا عَنْهَا أَوْ فِي مُقَابَلَتِهَا فرمايي: او که چيري موهوب لهٗ واهب ته ووايي: چي دا شی ستا د هبې په عوض کي يا د هبې په بدل کي يا د هبې په مقابله کي واخله! فَقَبَضَهُ الْوَاهِبُ او قابض پر هغه شي قبضه وکړي سَقَطَ الرُّجُوعُ نو رجوع ساقطيږي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ ځکه چي د واهب مقصود حاصل سو وَهٰذِهِ الْعِبَارَاتُ تُؤَدِّي مَعْنًى وَاحِدًا او دا [درې سره] جملې صرف يوه معنیٰ اداء کوي وَإِنْ عَوَّضَهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْمَوْهُوبِ لَهُ مُتَبَرِّعًا او که يو اجنبي کس د احسان کولو په توګه د موهوب لهٗ له طرفه واهب ته عوض ورکړي فَقَبَضَ الْوَاهِبُ الْعِوَضَ او واهب پر عوض قبضه وکړي بَطَلَ الرُّجُوعُ نو [هم] رجوع باطليږي لِأَنَّ الْعِوَضَ لِإِسْقَاطِ الْحَقِّ ځکه چي عوض د حق ساقطولو لپاره دی فَيَصِحُّ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ نو ځکه د اجنبي کس عوض ورکول به [هم] صحيح وي كَبَدَلِ الْخُلْعِ وَالصُّلْحِ لکه څرنګه چي بدل خلع او بدل صلح صحيح دي [يعني که اجنبي کس د يو چا له طرفه بدل صلح يا بدل خلع اداء کړي، نو دا صحيح دي، لهذا د بدل هبه اداء کول به هم

صحيح وي] قَالَ: وَإِذَا اسْتُحِقَّ نِصْفُ الْهِبَةِ فرمايي: او كه چيري نصف هبه مستحق وخيږي [يعني بل كس دعوىٰ وكړي چي په دې موهوب شي كي نيمه حصه زما ده، او هغه كس خپله دعوىٰ او استحقاق ثابت كړي] رَجَعَ بِنِصْفِ الْعِوَضِ نو موهوب لهٗ به [پر واهب] د نصف عوض رجوع كوي [يعني له هغه څخه به خپل نيم عوض واپس اخلي] لِأَنَّهُ لَمْ يَسْلَمْ لَهُ مَا يُقَابِلُ نِصْفَهُ ځكه چي د موهوب لهٗ لپاره [د موهوب شي] هغه حصه سالم پاته نه سوه كوم چي د نصف عوض مقابل وه [يعني نيمه حصه د بل چا مستحق وخته] وَإِنِ اسْتُحِقَّ نِصْفُ الْعِوَضِ او كه نصف عوض مستحق وخيږي لَمْ يَرْجِعْ فِي الْهِبَةِ إِلَّا أَنْ يَرُدَّ مَا بَقِيَ ثُمَّ يَرْجِعُ نو واهب په هبه [موهوب شي] كي رجوع نه سي كولاى مگر دا چي ما بقي عوض هم [موهوب لهٗ ته] واپس كړي بيا دي رجوع وكړي وَقَالَ زُفَرُ: يَرْجِعُ بِالنِّصْفِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي واهب به په نصف سره رجوع كوي [يعني له موهوب لهٗ څخه به نصف عوض اخلي] اِعْتِبَارًا بِالْعِوَضِ الْآخَرِ پر بل عوض په قياس كولو سره وَلَنَا: أَنَّهُ يَصْلُحُ عِوَضًا لِلْكُلِّ مِنَ الِابْتِدَاءِ زموږ دليل دا دى: چي ما بقي عوض د ټولي هبې لپاره له ابتداء څخه د عوض جوړېدلو صلاحيت لري [يعني د ټوله هبې لپاره ابتداءً عوض جوړېداى سي] وَبِالِاسْتِحْقَاقِ ظَهَرَ أَنَّهُ لَا عِوَضَ إِلَّا هُوَ او په استحقاق [مستحق ختلو] سره دا ښكاره سوه چي عوض صرف ما بقي دى إِلَّا أَنَّهُ يَتَخَيَّرُ لېكن واهب ته به اختيار وي لِأَنَّهُ مَا أَسْقَطَ حَقَّهُ فِي الرُّجُوعِ إِلَّا لِيَسْلَمَ لَهُ كُلُّ الْعِوَضِ ځكه چي هغه خپل د رجوع حق صرف د دې لپاره ساقط كړى دى چي ټوله عوض به د هغه لپاره سالم پاته وي [او د بل چا مستحق يا عيبداره به نه وي] فَلَمْ يَسْلَمْ لَهُ لېكن [د مستحق ختلو په وجه] ټوله عوض د هغه لپاره سالم پاته نه سو فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ نو ځكه هغه ته به د ما بقي عوض د واپس كولو اختيار وي قَالَ: وَإِنْ وَهَبَ دَارًا فَعَوَّضَهُ مِنْ نِصْفِهَا فرمايي: او كه شوک بل چا ته كور هبه كړي او موهوب لهٗ هغه ته د نصف كور عوض وركړي رَجَعَ الْوَاهِبُ فِي النِّصْفِ الَّذِي لَمْ يُعَوِّضْ نو واهب په هغه نصف كي رجوع كولاى سي د كوم عوض چي يې نه وي وركړى لِأَنَّ الْمَانِعَ خَصَّ النِّصْفَ ځكه چي مانع صرف د نصف سره مخصوص دى.

**اللغات**: ﴿تؤدي﴾ د تفعيل مضارع ده: اداء کول، ﴿عوض﴾ بدل، مقابل، ﴿متبرّع﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: احسان کونکی (بلا عوضه اُفت او رکونکی)، ﴿إسقاط﴾ د افعال مصدر دی: ساقطول، ختمول، ﴿يتخير﴾ د تفعّل مضارع ده: اختيار من کېدل، اختيار حاصلېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که موهوب لهٔ واهب ته یو شی ورکړي او هغه ته ووايي چې "دا ستا د هبې عوض دی یا ستا د هبې بدل (بدله) ده یا ستا د هبې په مقابله کي دی"، او واهب پر هغه شي قبضه وکړي، نو په دې صورت کي د واهب د رجوع حق او اختيار ساقطيږي؛ ځکه چې په عوض اخيستلو سره د هغه مقصد حاصل سو. او عوض، بدل او داسي نور صرف د یوه معنیٰ او مطلب لپاره استعماليږي. همدارنګه که یو اجنبي کس د موهوب لهٔ له طرفه واهب ته عوض ورکړي او واهب پر هغه قبضه وکړي، نو هم د واهب د رجوع حق ساقطيږي؛ ځکه چې د اجنبي کس عوض ورکول صحيح دي؛ لکه څرنګه چې د يو چا له طرفه د اجنبي بدل خلع او بدل صلح اداء کول صحيح دي، نو همداسې به د هغه بدل هبه اداء کول هم صحيح وي.

وإذا استحق إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د موهوب شي په نصف حصه کي بل څوک خپل استحقاق ثابت کړي او نصف حصه له موهوب لهٔ څخه واخلي، نو هغه به له واهب څخه نصف عوض اخلي؛ ځکه چې د مستحق شُده نصف حصې عوض له هبې څخه خالي سو او د موهوب لهٔ سره د خپل نصف عوض په مقابله کي موهوب شی پاته نه سو، نو ځکه هغه ته به د خپل نصف عوض د اخيستلو حق او اختيار وي. د دې په خلاف که د عوض نصف حصه مستحق وخيږي (يعني کوم شی چې موهوب لهٔ واهب ته د هبې په عوض کي ورکړی وي، که د هغه په نصف کي بل څوک خپل استحقاق ثابت کړي او له واهب څخه يې واخلي)، نو واهب له موهوب لهٔ څخه نصف موهوب شی نه سي اخيستلای؛ ځکه چې د استحقاق (مستحق ختلو) په وجه دا ښکاره سوه چې ما بقي عوض اصلاً د ټولي هبې (ټوله موهوب شي) عوض وو، او واهب په دې وجه خپل د رجوع حق ساقط کړی وو چې هغه ته پوره سالم عوض حاصل سي کوم چې عيبداره يا د بل چا مستحق نه وي، لېکن د بعضي حصې د استحقاق په وجُه د واهب دا مقصد پوره نه سو، نو ځکه هغه ته به له دې دوو اختياراتو څخه يو اختيار حاصليږي: ① يا هغه دې ما بقي عوض واخلي او ټوله موهوب شی دې موهوب لهٔ ته پريږدي، ② يا ما بقي عوض دې هم واپس کړي او ټوله موهوب شی دې له هغه څخه واخلي. دا حکم زموږ په نيز دی. امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې څومره عوض مستحق ختلی وي، د هغه په اندازه

به واهب موهوب شی واپس اخلي، دا حکم د مخکي مطابق د نصف موهوب شي پر مستحق ختلو د نصف عوض د اخیستلو والا پر مسئله قیاس کړی سوی دی.

وإن وهب إلخ: فرمايي که څوک مثلاً خالد ته یو کور هبه کړي او بیا موهوب لهٗ یعني خالد واهب ته د نصف کور عوض ورکړي، نو د کوم نصف عوض چي یې نه وي ورکړی، واهب هغه نصف کور له موهوب لهٗ څخه اخیستلای سي؛ ځکه چي له رجوع څخه مانع صرف د نصف سره مخصوص دی، ها! کم از کم دا ویل کېدای سي چي په دې سره شیوع لازمیږي، نو د هغه جواب دا دی چي دا شیوع وروسته واقع سوی دی، نو ځکه هغه هیڅ مضر نه دی.

## د قاضي یا د واهب او موهوب لهٗ دواړو له رضاء څخه بغیر رجوع صحیح نه ده (د رجوع طریقه)

قَالَ: وَلَا يَصِحُّ الرُّجُوعُ إِلَّا بِتَرَاضِيهِمَا أَوْ بِحُكْمِ الْحَاكِمِ فرمايي: د دواړو عاقدَینو [واهب او موهوب لهٗ] له رضا یا د قاضي له فیصلې څخه بغیر [په هبه کي] رجوع کول صحیح نه دي لِأَنَّهُ مُخْتَلَفٌ بَيْنَ الْعُلَمَاءِ ځکه چي د رجوع مسئله د علماؤ په مینځ کي مختلف فیها ده وَفِي أَصْلِهِ وَهَاءٌ او د هغې په اصل کي ضعف دی وَفِي حُصُولِ الْمَقْصُودِ وَعَدَمِهِ خَفَاءٌ او د مقصود په حاصلېدلو او نه حاصلېدلو کي پټوالي [پوشیدګي] ده فَلَا بُدَّ مِنَ الْفَصْلِ بِالرِّضَا أَوْ بِالْقَضَاءِ نو ځکه د دواړو عاقدَینو په رضا یا د قاضي په قضاء سره فیصله کول ضروري دی حَتَّى لَوْ كَانَتِ الْهِبَةُ عَبْدًا فَأَعْتَقَهُ قَبْلَ الْقَضَاءِ تر دې که موهوب یو غلام وي او د قاضي له قضاء څخه مخکي موهوب لهٗ هغه آزاد کړي نَفَذَ نو آزادي [عتق] به نافذیږي وَلَوْ مَنَعَهُ فَهَلَكَ او که چیري موهوب لهٗ هغه [موهوب] منع کړي [یعني واهب ته یې نه ورکړي] بیا هغه [د موهوب لهٗ په قبضه کي] هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ نو موهوب لهٗ نه ضامن کیږي لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِيهِ ځکه چي په هغه کي د موهوب لهٗ ملکیت موجود دی وَكَذَا إِذَا هَلَكَ فِي يَدِهِ بَعْدَ الْقَضَاءِ او همدارنګه که چیري د قاضي له قضاء [فیصله کولو] څخه وروسته د موهوب لهٗ په قبضه کي موهوب هلاک سي [نو هم موهوب لهٗ نه ضامن کیږي] لِأَنَّ أَوَّلَ الْقَبْضِ غَيْرُ مَضْمُونٍ ځکه چي اوله قبضه مضمونه [ضمان والا] نه ده وَهَذَا دَوَامٌ عَلَيْهِ او دا قبضه پر هغه [اولي قبضې] دائم پاتېدل دي [یعني د قاضي تر قضاء وروسته چي کوم قبضه ده هغه نوې قبضه نه ده بلکي دا هم هغه اوله مخکنۍ قبضه ده یعني ګواکي

موهوب له پر هغه مخکښې قبضې باقي پاته دی] إِلَّا أَنْ يَمْنَعَهُ بَعْدَ طَلَبِهِ مګر دا چې ذ واهب له مطالبې څخه وروسته موهوب لهٔ هغه منع کړي [يعني واهب ته موهوب نه ورکړي او له ورکولو څخه انکار وکړي. نو بيا ضامن کيږي] لِأَنَّهُ تَعَدٍّ ځکه چې دا تعدی ده [يعني ذ منع کولو په وجه هغه تجاوز کونکی او نا حقه متصرف وګرځېدی] وَإِذَا رَجَعَ بِالْقَضَاءِ أَوْ بِالتَّرَاضِيْ او کله چې د قاضي په قضا يا تراضي سره واهب رجوع وکړي يَكُونُ فَسْخًا مِنَ الْأَصْلِ نو دا له اصله فسخ کول [عقد هبه ماتول] دي حَتَّى لَا يُشْتَرَطَ قَبْضُ الْوَاهِبِ تر دې چې [د فسخ لپاره] د واهب قبضه شرط نه ده وَيَصِحُّ فِي الشَّائِعِ او په مشترکه هبه کې [هم] رجوع صحيح ده لِأَنَّ الْعَقْدَ وَقَعَ جَائِزًا مُوجِبًا حَقَّ الْفَسْخِ مِنَ الْأَصْلِ ځکه چې عقد جائز او له اصله د حقُ الفسخ مُوجِب واقع سوی دی فَكَانَ بِالْفَسْخِ مُسْتَوْفِيًا حَقًّا ثَابِتًا لَهُ نو د فسخ په وجه به واهب د خپل ثابت سوي حق حاصلونکی [ترلاسه کونکی] وي فَيَظْهَرُ عَلَى الْإِطْلَاقِ نو ځکه دا فسخ به على الإطلاق ښکاره کيږي بِخِلَافِ الرَّدِّ بِالْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ په خلاف تر قبضې وروسته د عيب په وجه د واپس کولو لِأَنَّ الْحَقَّ هُنَاكَ فِي وَصْفِ السَّلَامَةِ لَا فِي الْفَسْخِ ځکه هلته [په بيع کي] د مشتري حق د سلامتيا [سالموالي] په وصف کي وي، نه په فسخ کي فَافْتَرَقَا نو دواړه يو له بل څخه جلا سول [يعني د هبې او بيع په مسئله کي فرق ثابت سو] قَالَ: وَإِذَا تَلِفَتِ الْعَيْنُ الْمَوْهُوبَةُ فَاسْتَحَقَّهَا مُسْتَحِقٌّ وَضَمَّنَ الْمَوْهُوبَ لَهُ فرمايي: که چيري هبه کړی سوی شی ضايع سي او بيا يو څوک د هغه مستحق وخيږي او هغه له موهوب لهٔ څخه ضمان [تاوان] واخلي لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْوَاهِبِ بِشَيْءٍ نو موهوب لهٔ پر واهب د هيڅ شي رجوع نه سي کولای [يعني له هغه څخه هيڅ شی نه سي اخيستلای] لِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ ځکه چي هبه د تبرع عقد دی فَلَا يَسْتَحِقُّ فِيهِ السَّلَامَةَ نو ځکه په هغه کي به د سلامتيا مستحق نه وي [په بله وينا: نو ځکه په هبه کي به د موهوب شي سالموالی مشروط نه وي] وَهُوَ غَيْرُ عَامِلٍ لَهُ او [بل دا چي] موهوب لهٔ د واهب لپاره کار کونکی هم نه دی وَالْغُرُوْرُ فِي ضِمْنِ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ سَبَبٌ لِلرُّجُوْعِ لَا فِي ضِمْنِ غَيْرِهِ او کومه دوکه چي د عقد معاوضه په ضمن کي وي، صرف هغه د رجوع سبب وي، نه هغه کوم چي د غير عقد په ضمن کي وي [په بله وينا: او د عقدِ معاوضه دوکه خو د رجوع سبب ده. لېکن د عقدِ غيرِ معاوضه (هبه) دوکه د رجوع سبب او موجب نه ده].

**اللغات**: ﴿تراضي﴾ د تفاعل مصدر دی: یو تر بله راضي کېدل (د دواړو عاقدَینو راضي کېدل). ﴿وهاء﴾ ضعف، ﴿خفاء﴾ پټوالی، پوشیدګي، ﴿مُوجِب﴾ د افعال اسم فاعل دی: لازمونکی، سبب (علت)، داعي، ﴿فسخ﴾ د فتح مصدر دی: ماتول، ختمول، ماتېدل، ﴿مستوفي﴾ د استفعال فاعل دی: (د خپل حق) حاصلونکی، ترلاسه کونکی، ﴿تَلِفَت﴾ د سمع ماضي ده: تلف کېدل، ضایع کېدل، هلاکېدل، ﴿ضَمّن﴾ د تفعیل ماضي ده: ضامن ګرځول، ضمان ځني اخیستل، ﴿الغرور﴾ فرېب، دوکه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دي چې تر څو پوري د واهب او موهوب لهٔ دواړو رضا نه وي یا د قاضي له طرفه د رجوع او فسخ (هبه ماتولو) فیصله صادره سوی نه وي، تر هغه وخته رجوع کول صحیح نه دي؛ ځکه چې د رجوع مسئله د علماؤ په مینځ کي مختلف فیها ده او د رجوع اصلیت او حقیقت ډېر کمزوری دی؛ ځکه که واهب د ثواب حاصلولو په نیت هبه کړې وي، نو هغه ته هیڅ د رجوع حق نه حاصلیږي، او که د تعویض یعني د عوض (بدله) اخیستلو په نیت او خواهش سره یې هبه کړې وي، نو هغه ته د رجوع حق حاصلیږي، لېکن نیت یو مخفي امر دی چې د هغه معلومېدل او په خبرېدل مشکل دي، نو ځکه د رجوع لپاره یا د دواړو عاقدَینو (واهب او موهوب لهٔ) رضا ضروري ده، یا د قاضي قضاء او فیصله ضروري ده. په دې دواړو کي له یوه څخه بغیر رجوع نه ثابتیږي.

حتی لو کانت إلخ: مسئله دا ده که یو چا ته غلام هبه کړی سوی وي، بیا واهب له موهوب لهٔ څخه د هغه د واپسی مطالبه وکړي (چي موهوب لهٔ دي ما ته خپل غلام واپس راکړي) لېکن قاضي تر اوسه یو فیصله کړې نه وي چي په دې دوران کي موهوب لهٔ هغه آزاد کړي، نو دا عتق (آزادي) نافذ او جائز ګرځي. او که چیري د واهب پر مطالبه موهوب لهٔ د موهوب (غلام) ورکولو څخه انکار وکړي بیا هغه د موهوب لهٔ په قبضه کي هلاک سي، نو هم موهوب لهٔ د هغه نه ضامن کیږي؛ ځکه چي په دې دواړو صورتونو کي نه د عاقدَینو رضا موجوده ده (بلکي صرف د یوه عاقد [واهب] رضا موجوده ده) او نه د قاضي له طرفه قضاء موجوده ده. د قضاء نشتوالی خو ښکاره دی او رضا ځکه نسته چي که موهوب لهٔ راضي وای نو د واهب پر غوښتنه او مطالبه به یې هغه ته خپل غلام ورکړي وای او انکار به یې نه کولای او نه به یې هغه آزادولای، معلومه سوه چي دلته د موهوب لهٔ رضا نسته او د هغه له رضا څخه بغیر رجوع نه سي کېدای (ځکه چي د دواړو عاقدینو رضا ضروري ده)، نو ځکه پر هغه به ضمان (تاوان) هم نه لازمیږي. همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي د قاضي تر قضاء وروسته د واهب له مطالبې څخه مخکي غلام د موهوب لهٔ په قبضه کي مړ سي، یعني قاضي خو د رجوع حکم او فیصله وکړي لېکن د واهب

له طرفه د هغه مطالبه نه وي سوې، نو هم د غلام په مړه کېدلو سره موهوب لهٔ نه ضامن کيږي؛ ځکه اول خو هغه د هبې قبضه کړې ده او د هبې قبضه مملوکه وي، مضمونه نه وي (يعني هغه د خپل ملکيت قبضه وي، د ضمان قبضه نه وي چې د هغه په وجه پر قابض ضمان لازم سي) او د قاضي تر قضاء وروسته چې د موهوب لهٔ کومه قبضه ده، هغه هم نوې او مضمونه (ضمان والا) قبضه نه ده بلکي پر مخکنۍ قبضې مداوامت او برابر پاتېدل دي، نو ځکه دا قبضه به د ضمان قبضه نه وي. هاا! که چيري د قاضي تر قضاءوسته واهب له موهوب لهٔ څخه د رجوع مطالبه وکړي او هغه انکار وکړي يعني غلام نه ورکړي، بيا غلام د هغه په قبضه کي مړ سي، نو په دې صورت کي هغه ضامن کيږي؛ ځکه چې دلته قضاء او مطالبه دواړه سره جمع دي، او اوس موهوب لهٔ د انکار کولو او د غلام نه ورکولو په وجه تجاوز کونکی (ناحقه تصرّف کونکی) دی، او تجاوز کونکی ضامن کيږي، نو ځکه په دې صورت کي به موهوب لهٔ هم ضامن کيږي.

وإذا رجع إلخ: مسئله دا ده چي کله د دواړو عاقدَينو په رضا يا د قاضي په قضاء سره له هبې څخه رجوع وسي، نو دا رجوع له اصل عقد څخه فسخ ګرځي او بيا په دې کي د يوه عاقد سره د بل عاقد هيڅ واسطه نه پاتيږي، همدا وجه ده چي د فسخ لپاره پر موهوب (غلام) د واهب قبضه کول شرط نه دي او د هغه له قبضې څخه بغير هم رجوع ثابتيږي. او څرنګه چي په غيرِ مشترکه هبه کي رجوع صحيح کيږي، همداسي په مشترکه هبه کي هم رجوع صحيح کيږي؛ ځکه چي د منفرده هبې په څېر مشترکه هبه هم جائز او د فسخ مُوجب منعقد کيږي او په فسخ کولو سره واهب ته خپل حق حاصليږي، نو ځکه په مشترکه هبه کي به هم على الإطلاق د فسخ او رجوع حق ثابتيږي. د دې په خلاف که مشتري په مبيع کي يو عيب ووينې او د دې عيب په وجه بائع ته مبيع واپس کړي، نو که چيري دا واپسي او رجوع له قبضې څخه مخکي وي يا تر قبضې وروسته د قاضي په قضاء سره وي، نو دا فسخ ګرځي، او که چيري د دواړو په رضا سره واپسي او رجوع وسي، نو فسخ نه ګرځي بلکي دا بيع جديد (نوې بيع) ده؛ ځکه په بيع کي چي مشتري ته کوم د واپس کولو حق (حق الردّ) حاصليږي هغه د سلامتيا په وصف کي وي، نه په فسخ کي (يعني مشتري ته د مبيع واپس کولو حق هغه وخت حاصليږي کله چي مبيع سالمه نه وي بلکي عيبداره وخيږي)، حالانکي په هبه کي د واهب د رجوع حق (حقُ الرجوع) په فسخ کي وي او هغه فسخ من اصل العقد وي، نو ځکه په هبه کي برابره ده په رضا سره رجوع وسي او که په قضاء سره، په هر صورت کي هغه فسخ ده. لېکن په بيع کي که په قضاء سره رجوع وسي، نو هغه بيع جديد ده.

قال وإذا تلفت إلخ: د دې حاصل دا دی چې که موهوب شی د موهوب لهٔ سره هلاک سي، بيا بل څوک د هغه مستحق وخيږي او له موهوب لهٔ څخه د موهوب شي ضمان (تاوان) واخلي، نو د دې ضامن او ذمه وار په خپله موهوب لهٔ دی او هغه ته له واهب څخه د ضمان د مال اخيستلو حق او اختيار نسته؛ ځکه چې هبه د تبرع عقد دی او د تبرع په عقد کې له دواړو طرفونو څخه عوض نه وي بلکې صرف له يوه طرفه عوض وي او هغه هم مقيد بالسلامة نه وي (يعني د هغه سالموالی مشروط نه وي لکه څرنګه چې د مبيع سالموالی مشروط دی)، نو ځکه د هغه مستحق ختل به پر واهب د رجوع سبب نه جوړيږي (يعني که موهوب شی د موهوب لهٔ لپاره سالم پاته نه سي بلکې د بل چا مستحق وخيږي، نو په دې سره به موهوب لهٔ ته پر واهب د رجوع کولو [يعني له واهب څخه د ضمان اخيستلو] حق نه حاصليږي)، ځکه چې رجوع په هغه عقد کې کيږي چې په هغه کې له دواړو طرفونو څخه عوض وي، او بل دا چې موهوب لهٔ د واهب لپاره عامل او کار کونکی هم نه دی لکه څرنګه چې مودَع (امانت ساتونکی) د مودِع (امانت ايښودونکي) لپاره عامل او د هغه د مال حفاظت کونکی دی، نو ځکه په دې حواله سره به هم موهوب لهٔ ته د رجوع حق او اختيار نه وي.

## د عوض اخيستلو په شرط سره د هبه کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا وَهَبَ بِشَرْطِ الْعِوَضِ فرمايي: او که چيري د عوض په شرط سره يو شی هبه کړي اُعْتُبِرَ التَّقَابُضُ فِي الْمَجْلِسِ فِي الْعِوَضَيْنِ نو د عقد په مجلس کې پر دواړو عوضينو قبضه کول معتبر [او ضروري] دي وَيَبْطُلُ بِالشُّيُوعِ او د شيوع په وجه دا هبه باطليږي لِأَنَّهُ هِبَةٌ ابْتِدَاءً ځکه چې دا ابتداءً هبه ده فَإِنْ تَقَابَضَا او که چيري دواړه [د عقد په مجلس کې] قبضه وکړي صَحَّ الْعَقْدُ نو دا عقد [هبه] صحي؛ کيږي وَصَارَ فِي حُكْمِ الْبَيْعِ يُرَدُّ بِالْعَيْبِ وَخِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَيُسْتَحَقُّ فِيهِ الشُّفْعَةُ او دا عقد د بيع په حکم سره ګرځي [يعني] د عيب او خِيار رؤيت په وجه به هغه واپس کول کيږي او په هغه به کې د شفعي استحقاق ثابتيږي لِأَنَّهُ بَيْعٌ انْتِهَاءً ځکه چې دا انتهاءً بيع ده وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: هُوَ بَيْعٌ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: دا ابتداءً هم بيع ده او انتهاءً هم لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْبَيْعِ وَهُوَ التَّمْلِيكُ بِعِوَضٍ ځکه چې په دې کې د بيع معنیٰ يعني "په عوض سره مالک کول" سته وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُودِ لِلْمَعَانِي او په عقدونو کې معناګانو لره اعتبار وي وَلِهَذَا كَانَ بَيْعُ الْعَبْدِ مِنْ نَفْسِهِ إِعْتَاقًا او په همدې وجه غلام پر خپل ځان خرڅول آزادول دي امثلا که مالک غلام ته ووايي چې ما ته

نومره مال راکړه! زه ستا ذات پر تا خرڅوم، نو دا که څه هم د لفظ په اعتبار سره بيع ده لېکن د معنیٰ په اعتبار سره آزادول دي] وَلَنَا: أَنَّهُ اشْتَمَلَ عَلٰى جِهَتَيْنِ زموږ دليل دا دی: چې دا عقد پر دوو جهتونو مشتمل دی فَيُجْمَعُ بَيْنَهُمَا مَا أَمْكَنَ عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ لهذا پر دواړو مشابهتونو په عمل کولو سره به حتی الامکان هغوی دواړه سره جمع کول کيږي وَقَدْ أَمْكَنَ او جمع کول ممکن هم دي لِأَنَّ الْهِبَةَ مِنْ حُكْمِهَا تَأَخُّرُ الْمِلْكِ إِلَى الْقَبْضِ ځکه چې د هبې له حکم څخه دا [هم] دي چې تر قبضې پورې ملکيت مؤخر کيږي [يعني په هبه کې تر قبضې پورې د ملکيت ثبوت ځنډيږي او په قبضه سره ملکيت ثابتيږي، او دا په بيع فاسد کې هم کيږي] وَقَدْ يَتَرَاخَى عَنِ الْبَيْعِ الْفَاسِدِ او په بيع فاسد کې هم ملکيت مؤخر کيږي وَالْبَيْعُ مِنْ حُكْمِهِ اللُّزُومُ او د بيع له حکم څخه د عقد لازمېدل دي [يعني د بيع يو حکم دا دی چې تر عقد وروسته هغه لازميږي] وَقَدْ تَنْقَلِبُ الْهِبَةُ لَازِمَةً بِالتَّعْوِيضِ او په تعويض [عوض ورکولو] سره هبه [هم] لازميږي فَجَمَعْنَا بَيْنَهُمَا نو موږ دواړه سره جمع کړي دي [يعني نو ځکه موږ په دې هبه کې دواړه شيان سره جمع کړي دي] بِخِلَافِ بَيْعِ نَفْسِ الْعَبْدِ مِنْ نَفْسِهِ په خلاف غلام پر خپل ځان خرڅول لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْبَيْعِ فِيهِ ځکه چې په دې صورت کې د بيع اعتبار کول ممکن نه دي إِذْ هُوَ لَا يَصْلُحُ مَالِكًا لِنَفْسِهِ ځکه چې غلام د خپل ځان د مالک جوړېدلو صلاحيت نه لري [يعني هغه د خپل ذات مالک کېدای نه سي].

**اللغات**: ﴿التقابض﴾ د تفاعل مصدر دی: يو تر بله قبضه کول (د دواړو عاقدينو قبضه کول)، ﴿يبطل﴾ د نصر مضارع ده: باطلېدل، ختمېدل، کالعدم کېدل. ﴿العبرة﴾ اعتبار، لحاظ. ﴿إعتاق﴾ د افعال مصدر دی: آزادول. ﴿جهتين﴾ تثنيه د جِهَةٌ ده: اړخ، رخ، طرف، حيثيت. ﴿شبهين﴾ تثنيه د شِبْهٌ يا شَبَهٌ ده: مشابه، مشابهت، مثل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک بل چا ته د عوض په شرط سره يو شي هبه کړي، مثلاً داسي ووايي چې "زه تا ته دا پسه پر دې شرط هبه کوم چې ته به ما ته ستا فلانکی سرغومی راکوې!" او دا بل څوک هم دا هبه قبوله کړي، نو د دې هبې د صحت (صحيح کېدلو) لپاره د عقد په مجلس کې پر دواړو عوضونو د عاقدينو قبضه کول شرط او ضروري دي (يعني موهوب لهٔ به پر پسه قبضه کوي او واهب به پر سرغومي قبضه کوي)، او که چيري قبضه نه وسي، نو د يوه عاقد لپاره هم په موهوب شي (پسه او

مرغومي) کي ملکيت نه ثابتيږي، همدارنګه که د يوه عاقد په موهوب شي کي بل څوک مشترک وي (مثلاً مرغومی د موهوب لهٔ او بل چا په مينځ کي مشترک وي)، نو هبه باطليږي، لعدم إمكان القبض. ها! کله چي د عقد په مجلس کي دواړه داقدين يو د بل پر موهوب شي قبضه وکړي، نو عقد صحيح کيږي او دا عقد ابتداءً د هبې په حکم سره ګرځي او انتهاءً هغه لره د بيع حکم حاصليږي، له همدې کبه د عيب او خِيار رؤيت پر بناء د هغه واپس کول جائز ګرځي او که چيري موهوب شی ځمکه يا داسي بل جايداد وي، نو په هغه کي شفعه هم ثابتيږي.

د دې په خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله رايه دا ده چي په دې مسئله کي چي کوم عقد دی، هغه د ابتداء او انتهاء دواړو په اعتبار سره بيع ده؛ ځکه چي په هغه کي له دواړو طرفونو څخه د عوض تمليک دی، او د معنیٰ په اعتبار سره هغه بيع ده او په عقدونو کي د معانيو اعتبار کيږي، همدا وجه ده که يو مالک خپل غلام ته ووايي چي "زه د دومره پيسو په عوض کي ستا ذات پر تا خرڅوم" او غلام هغومره پيسې ورکړي، نو دا که څه هم لفظاً بيع ده لېکن معناً اعتاق (آزادول) دي، نو ځکه د معنیٰ په اعتبار کولو سره د مالک دا فعل اعتاق شمارل کيږي او غلام آزاديږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د معنیٰ په اعتبار کولو سره دا هبه د ابتداء او انتهاء دواړو په اعتبار سره بيع وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي دا عقد پر دوو جتهونو مشتمل دی او د هغه دوه حيثيتونه دي يعني لفظاً هغه هبه ده او معناً بيع ده او پر دواړو عمل کول ممکن هم دي؛ ځکه څرنګه چي په هبه کي تر قبضې پوري ملکيت مؤخر کيږي، همداسي په بيع فاسد کي هم تر قبضې پوري ملکيت مؤخر کيږي، او څرنګه چي بيع په عقد کولو سره لازميږي، همداسي په عوض ورکولو سره هبه هم لازميږي، نو ځکه موږ د دواړو حيثيتونو په اعتبار کولو سره ابتداءً هغه هبه ګرځولې ده او انتهاءً مو بيع ګرځولې ده.

او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي هغه پر "بيعُ العبد من نفسه" قياسوي، دا صحيح نه دي؛ ځکه موږ په دې وجه هلته بيع اعتاق ګرځولې ده چي هغه ته بيع ويل ممکن نه دي؛ ځکه که هغه بيع ومنل سي نو دا لازميږي چي غلام به د مالک د عوض يعني د خپل ذات (ځان) مالک جوړ سي. حال دا چي په غلام کي د مالک جوړېدلو صلاحيت ګرسره سته نه. نو په دې وجه په "بيعُ العبد من نفسه" کي بيع اعتاق ګرځول سوې ده. نه د معنیٰ په اعتبار سره (يعني د معنیٰ په اعتبار کولو سره هغه اعتاق نه ده ګرځول سوې)، نو ځکه پورتنی عقد پر دې قياسول صحيح نه دي.



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ مَسَائِلَ شَتّٰى)

(دا) فصل (د هبې د بېلابېلو مسئلو په بيان کې) دی

## په هبه کې د استثناء کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ وَهَبَ جَارِيَةً إِلَّا حَمْلَهَا فرمايي: او که څوک مينځه هبه کړي ما سوا د هغې له حمل څخه [يعني د حمل استثناء وکړي] صَحَّتْ الْهِبَةُ وَبَطَلَ الِاسْتِثْنَاءُ نو هبه صحيح کيږي او استثناء باطليږي لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ لَا يَعْمَلُ إِلَّا فِيْ مَحَلٍّ يَعْمَلُ فِيهِ الْعَقْدُ ځکه چې استثناء په هماغه محل کې عمل کوي چې په هغه کې عقد عمل کوي وَالْهِبَةُ لَا تَعْمَلُ فِي الْحَمْلِ او هبه په حمل کې عمل نه کوي لِكَوْنِهِ وَصْفًا ځکه حمل يو وصف دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ فِي الْبُيُوعِ لکه څرنګه چې دا موږ په کتاب البيوع کې بيان کړي دي فَانْقَلَبَ شَرْطًا فَاسِدًا لهذا دا استثناء باطل شرط وګرځېده [په باطل شرط سره بدله سوه] وَالْهِبَةُ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او هبه په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي وَهٰذَا هُوَ الْحُكْمُ فِي النِّكَاحِ وَالْخُلْعِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او همدا حکم دی په نکاح، خلع او له قتل عمد څخه په صلح کولو کې لِأَنَّهَا لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې دا عقدونه هم په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ وَالرَّهْنِ په خلاف د بيع او اجاره او رهن لِأَنَّهَا تَبْطُلُ بِهَا ځکه چې دا عقدونه په فاسدو شرطونو سره باطليږي وَلَوْ أَعْتَقَ مَا فِيْ بَطْنِهَا ثُمَّ وَهَبَهَا او که چيرې هغه د مينځې حمل آزاد کړي بيا مينځه هبه کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ الْجَنِيْنُ عَلٰى مِلْكِهِ ځکه چې جنين [حمل] د واهب په ملکيت کې پاته نه سو فَأَشْبَهَ الِاسْتِثْنَاءَ نو دا د استثناء سره مشابه سو وَلَوْ دَبَّرَ مَا فِيْ بَطْنِهَا ثُمَّ وَهَبَهَا او که چيرې د مينځې حمل مُدبّر جوړ کړي بيا مينځه هبه کړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْحَمْلَ بَقِيَ عَلٰى مِلْكِهِ ځکه چې [په دې صورت کې] حمل د واهب په ملکيت کې پاته سو فَلَمْ يَكُنْ شِبْهَ الِاسْتِثْنَاءِ نو ځکه دا د استثناء سره مشابه نه سو وَلَا يُمْكِنُ تَنْفِيذُ الْهِبَةِ فِيهِ او په دې [حمل] کې

هبه نافذول ممكن هم نه دي لِمَكَانِ التَّدْبِيرِ د تدبير په وجه [يعني ځکه چې هغه مُدبّر جوړ کړی سوی دی] فَبَقِيَ هِبَةُ الْمُشَاعِ أَوْ هِبَةُ شَيْءٍ هُوَ مَشْغُولٌ بِمِلْكِ الْمَالِكِ لهذا دا د مُشاع يا د داسي شي هبه وګرځېده کوم چي د مالک په ملکيت سره مشغول دی.

**اللغات**: ﴿حمل﴾ هغه بچی چي د مور په ګېډه (نس) کي وي، او همدا د جنين معنیٰ ده، ﴿دم العمد﴾ قصداً قتل (هغه قتل کوم چي انسان قصداً کړی وي، نه خطاءً)، ﴿دبّر﴾ د تفعيل ماضي ده، دَبَّرَ يُدَبِّرُ تَدْبِيرًا: مُدبّر جوړول، د غلام آزادي پر خپل مرګ معلق کول (يعني چي مالک داسي ووايي: دا غلام زما تر مرګ وروسته آزاد دی)، ﴿شبيه﴾ مشابه، نظير، مثل، ﴿تنفيذ﴾ د تفعيل مصدر دی: نافذول، جاري کول، پوره کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی خپله حامله مينځه هبه کړي، لېکن د هغې د حمل استثناء وکړي، نو استثناء باطليږي او د حمل سره د مينځي هبه صحيح کيږي؛ ځکه چي استثناء په هماغه ځای کي عمل او اثر کوي، چيري چي عقد عمل کوي، په بله وينا دا چي پر کوم شي عقد واقع کول صحيح وي، د هغه استثناء کول هم صحيح دي، او څرنګه چي يوازي پر حمل عقد کول صحيح نه دي (يعني تنها حمل خرڅول صحيح نه دي، لکه مخکي چي ذکر سوه)، نو ځکه د هغه استثناء کول به هم صحيح نه وي. او بل دا چي حمل د مينځي وصف دی کوم چي د مينځي د اعضاؤ (اندامونو) په څېر دی، او له بدن څخه د اعضاؤ استثناء صحيح نه ده، نو ځکه دا استثناء به هم صحيح نه وي، او دا استثناء د مقتضاء عقد د مخالف کېدلو په وجه فاسد شرط ګرځي، او هبه په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي، نو ځکه د حمل سره (مع الحمل) به د مينځي هبه صحيح کيږي.

همدارنګه که څوک د حمل استثناء وکړي او يوازي مينځه په مهر کي وټاکي يا يوازي مينځه بدل خلع يا بدل صلح وټاکي، نو هم استثناء باطليږي او د حمل سره مينځه مهر او بدل ګرځي؛ ځکه چي نکاح، خلع او صلح هم په فاسد شرط سره نه باطليږي. د دې په خلاف بيع، اجاره او داسي نور په فاسدو شرطونو سره باطليږي، لهذا که څوک د حمل استثناء وکړي او يوازي مينځه خرڅ کړي يا يې په اجاره ورکړي، نو عقد فاسديږي.

ولو أعتق ما في الخ: د دې حاصل دا دی چي مثلاً د خالد مينځه حامله ده او خالد د هغې حمل آزاد کړي، بيا هغه مينځه يو چا ته هبه کړي، نو دا هبه جائز ده؛ ځکه چي د هغې حمل مخکي آزاد کړی سوی او د خالد له ملکيت څخه وتلی دی او د شيوع واشتراک امکان معدوم سوی دی، نو ځکه دا هبه هم جائز ده او اعتاق (آزادول) هم صحيح دي. د دې په خلاف که مالک د مينځه حمل مُدبّر جوړ کړي او بيا مينځه

هبه کړي، نو دا هبه نه صحيح کيږي؛ ځکه چي مُدبّر د مالک تر مرګ وروسته آزاديږي او في الحاله د مالک له ملکيت څخه نه وځي، نو ځکه دا هبه (مينځه) به د غير هبه (مدبر حمل) سره مخلوطه وي (ځکه چي دا حمل هم دواهب په ملکيت کي دى، د هغه له ملکيته وتلى نه دى) او څرنګه چي حمل نه سي هبه کول کېداى، ځکه چي هغه مُدبّر جوړ کړى سوى دى، نو ځکه دا هبه خو به يا د مشترک شي هبه وي يا به د داسي شي (داسي مينځي) هبه وي کوم چي د مالک په ملکيت (حمل) سره مشغول دى، حالدا چي شيوع او د مالک په ملکت سره مشغوليت دواړه له هبې څخه مانع دي، نو ځکه دا هبه نه صحيح کيږي.

## په هبه کي شرط لګول

قَالَ: فَإِنْ وَهَبَهَا لَهُ عَلَى أَنْ يَرُدَّهَا عَلَيْهِ أَوْ عَلَى أَنْ يَعْتِقَهَا أَوْ أَنْ يَتَّخِذَهَا أُمَّ وَلَدٍ فرمايي: او که څوک پر دې شرط يو چا ته مينځه هبه کړي چي هغه [موهوب لهٗ] به دا بيرته واهب [هبه کونکي] ته واپس کوي يا پر دې شرط چي موهوب لهٗ به دا مينځه آزادوي يا دا به خپل اُمِ ولد جوړوي [يعني وطي به ور سره کوي چي له هغې څخه د ده بچى پيدا سي] أَوْ وَهَبَ دَارًا أَوْ تَصَدَّقَ عَلَيْهِ بِدَارٍ عَلَى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِ شَيْئًا مِنْهَا أَوْ يُعَوِّضَهُ شَيْئًا مِنْهَا يا څوک يو چا ته پر دې شرط کور هبه کړي يا يې صدقه کړي چي موهوب لهٗ به له دې کور څخه څه حصه واهب ته واپس کوي يا له دې کور څخه به واهب ته څه حصه په عوض کي ورکوي فَالْهِبَةُ جَائِزَةٌ وَالشَّرْطُ بَاطِلٌ نو [په دې ټولو صورتونو کي] هبه جائز ده او شرط باطل دى لِأَنَّ هٰذِهِ الشُّرُوطَ تُخَالِفُ مُقْتَضَى الْعَقْدِ ځکه چي دا شرطونه د عقد د مقتضاء خلاف دي فَكَانَتْ فَاسِدَةً نو ځکه دا شرطونه به فاسد وي وَالْهِبَةُ لَا تَبْطُلُ بِهَا او هبه په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي أَلَا تَرَى أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1] أَجَازَ الْعُمْرَى وَأَبْطَلَ شَرْطَ الْمُعْمِرِ آيا ته نه ګورې! چي نبي کريم ﷺ عمرى [د ټوله عمر لپاره ورکړه] جائز ګرځولې ده او د عمرىٰ کونکي کس شرط يې باطل ګرځولى دى بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهَى[2] عَنْ بَيْعٍ وَشَرْطٍ ځکه چي نبي کريم ﷺ له بيع او شرط [شرط والا بيع] څخه منع کړې ده وَلِأَنَّ الشَّرْطَ الْفَاسِدَ فِي مَعْنَى الرِّبَا او ځکه چي فاسد شرط د سود په معنىٰ سره دى

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم، باب العمرىٰ، حديث رقم:۴۲۸۷، ۴۲۸۵. و سنن البيهقي، باب العمرىٰ، حديث رقم: ۱۲۳۴۱.

[2] تخريج: انظر مجمع الزوائد (ج:۴، ص:۸۵)، رواه الطبراني في المعجم الأوسط.

وَهُوَيَعْمَلُ فِي الْمُعَاوَضَاتِ دُوْنَ التَّبَرُّعَاتِ او سُود په معاضاتو کي عمل [اثر] کوي، نه په تبرعاتو کي.

**اللغات**: ﴿یرد﴾ د نصر مضارع ده: واپس کول، ﴿یتخذ﴾ د افتعال مضارع ده: جوړول، ګرځول، نیول، ﴿العمریٰ﴾ د افعال له بابه اسم دی، أَعْمَرَ يُعْمِرُ: د ټوله عمر لپاره کور یا داسې بل شی ورکول، یعني د خپل عمر یا د مخاطب د عمر په اندازه هغه ته یو شی ورکول، مثلاً خالد و زید ته داسې ووایي "چې تر څو ته ژوندی یې! زما دا کور ستا دی لېکن ستا تر مرګ وروسته به بیرته ما ته واپس کیږي (یا ستا تر مرګ وروسته بیرته زما دی)"، نو دې ته عُمْرٰی وایي، خالد ته مُعْمِر وایي او زید ته مُعْمَر لَهٗ وایي، عُمْرٰی صحیح ده لېکن د واپس کولو شرط باطل دی، یعني دا کور د همېشه لپاره د معمر لهٗ (زید) کور ګرځي او د هغه تر مرګ وروسته به مُعْمِر ته نه واپس کیږي بلکې د معمر لهٗ وارثانو ته به پرېښوول کیږي، ﴿معاوضات﴾ جمع د مُعَاوَضَةٌ ده: هغه معاملات چې په هغوی کي له دواړو طرفونو څخه مال او عوض ورکول کیږي (مثلا بیع، چې په هغه کي بائع مشتري ته مبیع ورکوي او مشتري ثمن ورکوي)، ﴿تبرعات﴾ جمع د تَبَرُّعٌ ده: د احسان کولو معاملات چې په هغوی کي صرف له یوه طرفه بلاعوضه مال ورکول کیږي (مثلا هبه، یا صدقه چې په دې کي یو څوک احساناً بل چا ته بلا عوضه (مفت) شی ورکوي).

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که خالد پر دې شرط زید ته خپله مینځه هبه کړي چې زید به دا مینځه بیرته ما ته واپس کوي یا زید به هغه آزادوي یا زید به هغه خپل اُمِ ولد جوړوي، نو هبه جائز کیږي او واهب (خالد) چې کوم شرط لګولی دی، هغه پر موهوب لهٗ (زید) نه لازمیږي او هغه د دې شرط پابند نه ګرځي، بلکې د هبې په هکله هغه خومختاره دی او دا شرط باطل او فاسد ګرځي، او څرنګه چې په فاسدو شرطونو سره هبه نه باطلیږي، نو ځکه په دې فاسد شرط سره به د هبې پر صحت هیڅ اثر نه پرېوځي. په همدې وجه خو نبي کریم ﷺ عمریٰ جائز ګرځولې ده او د مُعْمِر شرط یې باطل ګرځولی دی. او په عمریٰ کي چې کوم تملیک کیږي، هغه د هبې په توګه وي یعني عمریٰ هم د هبې په معنیٰ سره ده، حال دا چې په عمریٰ کي د مُعْمِر شرط باطل ګرځول سوی دی، نو ځکه په هبه کي به د واهب شرط باطلیږي.

د دې په خلاف که څوک په بیع کي داسې شرط ولګوي، نو شرط هم باطلیږي او بیع هم باطلیږي؛ ځکه چې نبي ﷺ له بیع مع الشرط څخه منع کړې ده، او په دې وجه هم په بیع کي شرط

باطل او فاسد دي چي په بيع کي فاسد شرط سُود گرځي؛ ځکه چي ثمن صرف د مبيع په مقابله کي وي نو ښکاره خبره ده چي شرط به له عوض څخه خالي وي او همدې ته سُود وايي، او سُود په معاوضاتو کي اثر کوي، نه په تبرعاتو کي، او هبه له تبرعاتو څخه ده، نو ځکه په هبه کي به سُود مؤثر نه وي او هبه به د فاسد شرط سره جائز وي، لېکن بيع به د فاسد شرط سره جائز نه وي.

## هبه پر شرط معلق کول

قَالَ: وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ فرمايي: او که د يو چا پر بل چا زر درهمه باندي وي فَقَالَ: إِذَا جَاءَ الْغَدُ فَهِيَ لَكَ أَوْ أَنْتَ مِنْهَا بَرِيءٌ بيا هغه [قرضخواه] و مقروض ته وواييي: چي کله د سبا ورځ راسي نو هغه دراهم ستا دي، يا ته له هغوی څخه بري يې! أَوْ قَالَ: إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ النِّصْفَ فَلَكَ نِصْفُهُ أَوْ أَنْتَ بَرِيءٌ مِنَ النِّصْفِ الْبَاقِي يا داسي وواييي: چي که ته ما ته [له هغوی څخه] نيم دراهم راکړې نو نيمايي ستا دي، يا ته له پاته نصف دراهمو څخه بري يې! فَهُوَ بَاطِلٌ نو دا باطل دي لِأَنَّ الْإِبْرَاءَ تَمْلِيكٌ مِنْ وَجْهٍ إِسْقَاطٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي ابراء [بري کول] په يوه اعتبار سره مالک کول دي او په يوه اعتبار سره ساقطول دي وَهِبَةُ الدَّيْنِ مِمَّنْ عَلَيْهِ إِبْرَاءٌ او مقروض ته قرض هبه کول ابراء ده [يعني مقروض ته قرض هبه کول هغه له قرض څخه بري کول دي] وَهٰذَا لِأَنَّ الدَّيْنَ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ او دا حکم ځکه دی چي قرض په يوه اعتبار سره مال دی وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ كَانَ تَمْلِيكًا او په دې اعتبار سره به ابراء مالک کول وي وَوَصْفٌ مِنْ وَجْهٍ او په يوه اعتبار سره قرض وصف دی وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ كَانَ إِسْقَاطًا او په دې اعتبار سره به ابراء ساقطول وي وَلِهٰذَا قُلْنَا إِنَّهُ يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ وَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَبُولِ او له همدې کبله موږ ويلي دي چي [د مقروض] په ردولو سره ابراء رديږي او [د هغه] پر قبلولو موقوف نه پاتيږي وَالتَّعْلِيقُ بِالشُّرُوطِ يَخْتَصُّ بِالْإِسْقَاطَاتِ الْمَحْضَةِ الَّتِي يُحْلَفُ بِهَا او په شرط سره معلق کول د اسقاطات محضه سره مختص دي چي په هغوی سره قسم اخيستل کيږي [يعني پر شرط معلق کول د هغه اسقاطاتو سره خاص دي کوم چي خالص اسقاط وي او چي د هغوی په هکله قسم اخيستل کيږي] كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ لکه طلاق او عتاق فَلَا يَتَعَدَّاهَا نو ځکه دا [تعليق بالشرط] به له هغوی څخه تجاوز نه کوي [نه تيريږي].

**اللغات**: ﴿إبراء﴾ د افعال مصدر دی: بري کول (بري گرځول)، معافول. ﴿إسقاط﴾ مخکني صيغه ده: ساقطول، ختمول. ﴿يتوقف﴾ د تفعّل مضارع ده: موقوف کېدل، منحصر کېدل. ﴿يتعدى﴾

مخکنۍ صيغه ده: تجاوز و زياتوب کول، نا حقه تصرف کول، ﴿يحلف﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: قسم اخيستل، قسم کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د خالد پر ادريس زر درهمه باندي وي او خالد هغه ته ووايي "چي کله د سبا ورځ راسي، نو هغه دراهم ستا دي، يا سبا ته له هغه دراهمو څخه بري يې!"، يا داسي ووايي چي "که تا ما ته له هغه زرو درهمو څخه پنځه سوه راکړل، نو باقي پنځه سوه درهمه ستا دي، يا ته له هغوی څخه بري يې!"، نو دا ټول هبه باطله او ناجائز ده؛ ځکه چي مقروض ته قرض هبه کول ابراء ده (يعني مقروض ته د قرض هبه کولو مطلب دا دی چي هغه له قرض څخه بري کول)، او ابراء يعني له قرض څخه بري کول من وجه تمليک دی او من وجه اسقاط دی؛ ځکه چي قرض من وجه مال دی (انجام ته په کتلو سره)، همدا وجه ده چي (په انجام [مآل] کي) په هغه کي زکاة واجبيږي، نو د مال والي په اعتبار کولو سره ابراء (يعني د قرض هبه کول) تمليک دی، او په همدې اعتبار سره ابراء په ردولو سره ردېږي (يعني که مقروض ابراء يعني د قرض هبه رد کړي چي زه ستا دا هبه نه قبلوم بلکي زه ستا قرض اداء کوم، نو پر هغه بيرته قرض لازميږي)، او قرض من وجه وصف هم دی (حال ته په کتلو سره)، همدا وجه ده که يو څوک قسم واخلي چي زما سره مال نسته حال دا چي د ده پر خلکو قرضونه باندي وي، نو هغه نه حانث کيږي، معلومه سوه چي قرض بالفعل وصف هم دی، نو د وصف کېدلو په اعتبار کولو سره ابراء (يعني د قرض هبه) اسقاط دی، او په همدې اعتبار سره هغه د مقروض پر قبلولو نه موقوف کيږي (يعني که څه هم مقروض دا ابراء [د قرض هبه] قبوله نه کړي نو بيا هم صحيح کيږي او د هغه له غاړي څخه قرض ساقطيږي).

لنډه دا چي ابراء من وجه تمليک دی او من وجه اسقاط دی، او مقروض ته قرض هبه کول ابراء ده، او قرضخواه (خالد) دغه ابراء پر شرط يعني د سبا ورځي پر راتګ معلق کړې ده، حالانکي تعليق بالشرط د اسقاطات محضه وو سره خاص دی چي د هغوی په هکله قسم اخيستل کيږي، لکه طلاق وعتاق (ځکه په طلاق کي محض دا کيږي چي خاوند د ښځي له غاړي څخه خپله نکاح ساقطوي، او په اعتاق [آزادولو] کي محض دا کيږي چي مالک د غلام له غاړي څخه خپل ملکيت ساقط کوي)، نو صرف په دغه اسقاطات محضه وو کي تعليق صحيح دی يعني که څوک خپلي ښځي ته يا خپل غلام ته ووايي چي "که تا فلانکی کار وکړی نو تا ته طلاق دی يا ته آزاد يې!" نو دا صحيح دي، لېکن له اسقاطات محضه وو څخه په ماسوا کي تعليق صحيح نه دی، او څه مخکي مخته موږ دا ثابته کړه چي ابراء (د قرض هبه کول) اسقاط محض نه دی، بلکي من وجه تمليک هم دی، نو ځکه ابراء يعني د قرض هبه کول پر شرط معلق کول باطل او ناجائز دي.

## د عُمرىٰ او رُقبىٰ حکم

قَالَ: وَالْعُمْرٰى جَائِزَةٌ لِلْمُعْمَرِ لَهٗ حَالَ حَيَاتِهٖ وَلِوَرَثَتِهٖ مِنْ بَعْدِهٖ فرمايي: او عمرىٰ جائز ده د معمر لهٗ لپاره د هغه په ټوله ژوند کي او د هغه د وارثانو لپاره د هغه تر مرګ وروسته لِمَا رَوَيْنَاهُ د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَمَعْنَاهُ أَنْ يَجْعَلَ دَارَهٗ لَهٗ عُمْرَهٗ وَإِذَا مَاتَ تُرَدُّ عَلَيْهِ او د عمرىٰ معنىٰ دا ده چي يو څوک بل چا ته د هغه د عمر د مودت په اندازه خپل کور [پر دې شرط] ورکړي چي کله هغه [معمر لهٗ] مړ سي نو دا کور به بيرته مالک [مُعمر] ته واپس کول کيږي فَيَصِحُّ التَّمْلِيكُ وَيَبْطُلُ الشَّرْطُ نو داسي مالک کول صحيح کيږي او شرط باطليږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ [څه مخکي] روايت کړی وَقَدْ بَيَّنَّا أَنَّ الْهِبَةَ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او موږ [هلته] دا هم بيان کړه چي هبه په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي وَالرُّقْبٰى بَاطِلَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او رقبىٰ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز باطله ده وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ۞: جَائِزَةٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز ده لِأَنَّ قَوْلَهٗ دَارِيْ لَكَ تَمْلِيكٌ ځکه چي د يو چا دا قول "دَارِيْ لَكَ رُقْبٰى" تمليک دی وَقَوْلُهٗ رُقْبٰى شَرْطٌ فَاسِدٌ او د هغه دا قول "رُقْبٰى" فاسد شرط دی كَالْعُمْرٰى لکه عمرىٰ چي فاسد شرط دی وَلَهُمَا: أَنَّهٗ [1] أَجَازَ الْعُمْرٰى وَرَدَّ الرُّقْبٰى او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي نبي کريم ﷺ عمرىٰ جائز ګرځولې ده او رقبىٰ يې رد کړې ده وَلِأَنَّ مَعْنَى الرُّقْبٰى عِنْدَهُمَا إِنْ مِتُّ قَبْلَكَ فَهُوَ لَكَ او ځکه چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د رقبىٰ معنىٰ ده چي "که زه مړ سوم نو هغه [زما کور] ستا دی" وَاللَّفْظُ مِنَ الْمُرَاقَبَةِ كَأَنَّهٗ يُرَاقِبُ مَوْتَهٗ او د "رقبىٰ" لفظ له مراقبه څخه مشتق دی ګواکي هغه د ده [رقبىٰ کونکي] د مرګ انتظار کوي وَهٰذَا تَعْلِيقُ التَّمْلِيكِ بِالْخَطَرِ او دا پر خطره تمليک معلق کول دي [يعني پر مرګ تمليک معلق کول دي] فَبَطَلَ نو ځکه باطل دي وَإِذَا لَمْ تَصِحَّ تَكُونُ عَارِيَةً عِنْدَهُمَا او کله چي د طرفينو رَحِمَهُمَا

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، هذا ما قاله صاحبُ القول الراجح [ج:۲، ص:۲۲۳]، لكن صرّح صاحبُ البناية بأن قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله قوي، كما ذكر نا في التشريح.

[1] تخريج: دا حديث په دغو الفاظو سره غريب دی، خو په سنن نسائي کي د دې په معنى سره بل حديث ذکر سوی دی، او ګورئ! السنن الكبرىٰ للنسائي، حديث رقم: ۶۵۶۳ - ۶۵۶۵.

الله په نیز رقبیٰ صحیح نه سوه نو د دوی په نیز به هغه عاریت وي لِأَنَّهُ يَتَضَمَّنُ إِطْلَاقَ الإِنْتِفَاعِ بِهِ ځکه چي رقبیٰ [هم] د نفعي اخیستلو مطلق والي لره متضمنه ده [یعني هغه هم د عاریت په څېر مطلق نفعي اخیستلو لره شامله ده].

**اللغات**: ﴿العمرٰی﴾ د افعال له بابه اسم دی: د ټوله عمر لپاره کور یا بل شی ورکول، په عبارت کي هم د دې تعریف ذکر سوی دی، او له تېر عبارت څخه د مخکي عبارت په لغاتو کي هم مورد د دې پوره تفصیل بیان کړی، ﴿التمليك﴾ د تفعیل مصدر دی: مالک کول، مالک جوړول، ﴿الرُّقْبٰی﴾ له مراقبه څخه مشتق دی، د رقبیٰ معنیٰ ده: یو چا ته په دې توګه کور یا بل شی ورکول چي که زه ستا څخه مخکي مړ سوم نو دا کور ستا دی او که ته زما څخه مخکي مړ سوې! نو کور زما دی (یعني یو سړی بل چا ته کور یا ځمکه ورکړي او هغه ته داسي ووایي چي په ما او تا کي هر یو مخکي مړ سي، کور د هغه دی)، صاحب د معجم یې داسي تعریف کړی دی: أَنْ يُّعْطِي إِنْسَانًا دَارًا أَوْ أَرْضًا، فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا كَانَتْ لِلْحَيِّ مِنْهُمَا (معجم لغة الفقهاء، معجم الوسيط)، ﴿مراقبة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: نګراني او چوکیداري کول، کتل (یو شي ته سترګي جګي نیول)، انتظار کول، ﴿الخطر﴾ خطره، قریب بهلاکت (مرګ ته نژدې کېدل)، غیر یقیني صورت حال، ﴿يتضمن﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شاملېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د احنافو په اتفاق سره عمریٰ یعني د ټوله عمر لپاره یو چا ته کور وغیره ورکول جائز دي او دا د هبې یو صورت دی، ځکه معمرلهٗ د همېشه لپاره د هغه مالک کېږي، یعني د هغه تر مرګ وروسته د عمریٰ کور د هغه وارثانو ته حاصلېږي او معمر ته د رجوع (واپس اخیستلو) حق نه حاصلېږي بلکي د هغه له طرفه چي کوم د رجوع او ردّ شرط لګول سوی دی، هغه باطلېږي؛ ځکه په حدیث کي ذکر سوي دي چي رسول الله ﷺ عمریٰ جائز ګرځولې ده او د معمر شرط (یعني د هغه د واپس کولو شرط) یې باطل ګرځولی دی. دا حدیث په دې باره کي واضح دلیل دی چي عمریٰ جائز ده او د ردّ (واپس کولو) شرط لګول باطل دي، او بل دا چي عمریٰ د هبې په معنیٰ سره ده او هبه په فاسدو شرطونو سره نه باطلېږي، نو ځکه عمریٰ به هم په فاسدو شرطونو سره نه باطلېږي.

د دې په خلاف رقبیٰ ده، یعني که څوک بل چا ته ووایي "دَارِيْ لَكَ رُقْبٰى" (زما کور ستا لپاره رقبیٰ دی)، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا فاسد او باطل دي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز جائز دي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي په "دَارِيْ لَكَ رُقْبٰى" كي "دَارِيْ لَكَ" د تمليک لپاره دى کوم چي جائز دي او "رُقْبٰى د "عُمْرٰى" په څېر فاسد شرط دى، نو ځکه د "دَارِيْ لَكَ عُمْرٰى" په څېر به په "دَارِيْ لَكَ رُقْبٰى" كي هم تمليک جائز کيږي او شرط به باطليږي.

د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا حديث دى "أَنَّ النبي ﷺ أَجَازَ الْعُمْرٰى وَرَدَّ الرُّقْبٰى" چي نبي کريم ﷺ عمرىٰ جائز ګرځولې ده او رقبىٰ يې مردود کړې ده، لهذا رقبىٰ جائز ګرځول د حديث مخالفت کول دي کوم چي صحيح نه دي. د طرفينو رَحِمَهُمَا الله عقلي دليل دا دى چي رقبىٰ له مراقبه څخه مشتق دى چي د هغه مطلب دى "انتظار کول" ګواکي په رقبىٰ کي اخيستونکى او ورکونکى دواړه يو د بل مرګ ته په نتظار ناست وي نو په رقبىٰ کي تمليک پر خطر معلق سوى دى، کوم چي جائز نه دي، نو ځکه به تعليق باطل وي، او کله چي تعليق باطل سو، نو رقبىٰ صحيح نه سوه، لهذا هغه کور کوم چي د رقبىٰ په توګه ورکول سوى او اخيستل سوى دى هغه به د اخيستونکى سره عاريت وګرځي (يعني ګواکي هغه دا کور له مالک څخه د يو څو وخت لپاره په خواست اخيستى دى چي زه يې بيرته درکوم)؛ ځکه چي د عاريت په څېر رقبىٰ هم مطلق نفعي اخيستلو لره متضمنه وي او له هغه څخه د مطلق نفعي د اخيستلو اجازت وي.

په دې سلسله کي صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله تفصيلي بحث کړى دى او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول يې قوي او راجح ګرځولى دى او د رقبىٰ د جواز په هکله يې دا حديث بيان کړى دى "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: العُمْرٰى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا وَالرُّقْبٰى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا" (ابو داؤد شريف، باب في الرقبىٰ، حديث رقم: ۳۵۶۰). د تفصيل لپاره او ګورئ! (بنايه ج:۹، ص:۲۶۲)، همدارنګه په سنن بيهقي کي هم يو حديث په دې الفاظو مذکور دى "الْعُمْرٰى جَائِزَةٌ لِمَنْ أُعْمِرَهَا وَالرُّقْبٰى جَائِزَةٌ لِمَنْ أُرْقِبَهَا". (سنن البيهقي، باب الرقبىٰ، حديث رقم: ۱۲۳۴۳)



# فَصۡلٌ فِي الصَّدَقَةِ

## (دا) فصل په (بيان د) صدقه کولو کي دی

**تشريح**: د هبې او صدقې دواړو لپاره شرطونه يو دي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دا فصل په کتابُ الهبة کي بيان کړی دی، لېکن څرنګه چي د دواړو احکام سره جلا دي، نو ځکه يې صدقه په عليحده فصل کي بيان کړې ده. (بنايه ج:۹، ص:۲۶۴)

### صدقه د هبې په څير ده او د ټوله مال د صدقه کولو حکم

قَالَ: وَالصَّدَقَةُ كَالْهِبَةِ لَا تَصِحُّ إِلَّا بِالْقَبْضِ فرمايي: او صدقه د هبې په څېر ده کوم چي بغير له قبضې نه صحيح کيږي. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ كَالْهِبَةِ ځکه چي د هبې په څېر صدقه [هم] تبرع ده فَلَا تَجُوزُ فِي مُشَاعٍ يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ نو په داسي مشترک شي کي صدقه جائز نه ده کوم چي د تقسيم احتمال لري [يعني کوم چي تقسيمېدلای سي] لِمَا بَيَّنَّا فِي الْهِبَةِ دهغه دليل په وجه کوم چي موږ په هبه کي بيان کړی دی وَلَا رُجُوعَ فِي الصَّدَقَةِ او په صدقه کي رجوع نه سي کېدای لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الثَّوَابُ ځکه چي [په صدقه کولو سره] د ثواب قصد کيږي وَقَدْ حَصَلَ او هغه حاصل سو [يعني په صدقه کولو سره سمدستي دا مقصود (ثواب) حاصليږي] وَكَذَا إِذَا تَصَدَّقَ عَلَى غَنِيٍّ اسْتِحْسَانًا او همدارنګه کله چي پر مالدار کس صدقه وکړي استحساناً [يعني استحساناً دا صدقه هم جائز ده] لِأَنَّهُ قَدْ يُقْصَدُ بِالصَّدَقَةِ عَلَى الْغَنِيِّ الثَّوَابُ ځکه چي ځيني وخت پر مالدار کس په صدقه کولو سره [هم] د ثواب قصد کيږي وَقَدْ حَصَلَ او هغه حاصل سو وَكَذَا إِذَا وَهَبَ لِفَقِيرٍ او همدارنګه کله چي فقير ته هبه وکړي [نو هم دغه حکم دی] لِأَنَّ الْمَقْصُودَ الثَّوَابُ وَقَدْ حَصَلَ ځکه چي مقصود ثواب دی کوم چي حاصل سو قَالَ: وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمَالِهِ فرمايي: او کوم کس چي دا نذر ومني چي خپل مال به صدقه کوي [خيراتوي]

يَتَصَدَّقُ بِجِنْسِ مَا يَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ نو هغه کس به د هغه جنس مالونه صدقه کوي چې په هغه کې زکاة واجبیږي وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِلْكِهِ او که څوک دا نذر ومني چې خپل ملکیت به صدقه کوي لَزِمَهُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِالْجَمِيعِ نو پر هغه د ټوله ملکیت [ټولو مالونو] صدقه کول لازم دي وَيُرْوٰى أَنَّهُ وَالْأَوَّلَ سَوَاءٌ او روایت سوی دی چې دا او اول سره برابر دي [یعني یو روایت دا دی چې د مال او ملکیت نذر منل دواړه په حکم کې سره برابر دي] وَقَدْ ذَكَرْنَا الْفَرْقَ وَوَجْهُ الرِّوَايَتَيْنِ فِي مَسَائِلِ الْقَضَاءِ او په دواړو کې فرق او د دواړو روایتونو دلیل موږ د قضاء په مسئلو کې ذکر کړي دي وَيُقَالُ لَهُ: أَمْسِكْ مَا تُنْفِقُهُ عَلَى نَفْسِكَ وَعِيَالِكَ إِلَى أَنْ تَكْتَسِبَ او دغه نذر منونکي ته به ویل کیږي: چې ته دومره مال راوګرځوه! کوم چې پر خپل ځان او پر خپل عیال خرچ کړې [نفقه کړې!] تر دې چې ته نور مال وګټې فَإِذَا اكْتَسَبَ مَالًا او کله چې هغه نور مال وګټي يَتَصَدَّقُ بِمِثْلِ مَا أَنْفَقَ نو څومره مال چې هغه خرچ کړی وي، د هغه په اندازه به صدقه کوي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او دا [هم] موږ مخکې ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿تبرّع﴾ د تفعّل مصدر دی: احسان کول، احساناً یو کار کول (داسې کار کول کوم چې پر انسان لازم نه وي)، بلا عوضه (مُفت) یو شی ور کول، ﴿غني﴾ مالدار، شتمن، ﴿تکتسب﴾ د افتعال مضارع ده: ګټل، ګټه کول.

**تشریح:** په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې څرنګه په هبه کې له قبضې څخه مخکې د موهوب لهٗ ملکیت نه ثابتیږي، همداسې په صدقه کې هم له قبضې څخه مخکې د مُتصدَّق لهٗ ملکیت نه ثابتیږي؛ ځکه چې په تبرع والي کې صدقه د هبې په څېر ده، همدا وجه ده چې د قابلِ تقسیم مشترک شي صدقه کول جائز نه دي؛ ځکه چې د شیوع په وجه پر هغه قبضه کول ناممکن دي، په "لما بینا فی الهبة" سره همدې طرف ته اشاره سوې ده.

ولا رجوع في الصدقة إلخ: د دې حاصل دا دی چې په هبه کې خو رجوع کېدای سي، لېکن په صدقه کې بالکل رجوع نه سي کېدای، ځکه چې په صدقه سره د الله د رضا او ثواب حاصلول مقصود وي او په صدقه کولو سره سمدستي دا مقصود حاصل سي، ګواکي په دې توګه مُتصدِّق (صدقه کونکي) ته عوض حاصل سي، نو صدقه د هغه هبې په څېر سوه چې واهب ته د هغه عوض ورکول سوی وي چې په هغه کې بالکل رجوع نه سي کېدای.

**سوال:** که څوک دا سوال وکړي چې ثواب خو په آخرت کې حاصلېږي، نو بیا "وَقَدْ حَصَلَ" ویل څنګه صحیح دي؟

**جواب:** له حصول څخه مراد د ثواب د وعدې حصول دی او د ثواب د وعدې حصول قطعي او حتمي دی، لأَنّ اللهَ تَعالیٰ لَا یُخْلِفُ المِیْعَاد.

همدا حکم په هغه صورت کې هم دی کله چې څوک مالدار کس ته صدقه ورکړي، یعني په دې کې هم رجوع نه سي کېدای؛ ځکه چې مالدار کس ته په صدقه کولو سره هم د ثواب حاصلول مقصود وي، ځکه ځیني وخت یو سړی د نصاب مالک او مالدار وي لېکن عیال یې ډېر وي، نو خلک هغه ته هم د صدقې په نیت مال ورکوي او د هغه په حق کې هم صدقه ثابتېږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده که یو سړی د مال صدقه کولو نذر ومني، مثلاً داسي ووایي چې "د الله لپاره پر ما د خپل ټوله مال صدقه کول واجب او لازم دي" یا زه خپل مال د الله په لار کې صدقه کوم"، نو پر دغه نذر منونکي سړي د هغه جنس والا مالونه صدقه کول واجب دي چې په هغوی کې زکاة واجبېږي، یعني نغدي پیسې، سره او سپین زر، د تجارت سامانونه او داسي نور، او له هغه څخه بغیر د بل مال صدقه کول واجب نه دي؛ ځکه چې شریعت د بنده ایجاب (واجبول) د الله تعالیٰ پر ایجاب قیاس کړي دي، او الله تعالیٰ د زکاة په مالونو کې زکاة واجب کړی دی، نو ځکه دا صدقه به هم صرف د زکاة په مالونو کې واجب وي.

(۳)... که یو سړی د خپل ملکیت د صدقه کولو نذر ومني، مثلاً داسي ووایي "زه چې د کومو شیانو مالک یم، هغه ټوله د الله په لاره کې صدقه دي"، نو دا نذر د هغه هر ملکیت او هر مال لره شاملېږي؛ ځکه چې د ملکیت لفظ عام دی کوم چې د زکاة مالونو لره هم شامل دی او له هغه څخه بغیر نورو

مالونو لره هم شامل دی. له حاکم شهید رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې دا روایت نقل سوی دی چې د مال او ملکیت د صدقه کول نذر سره برابر دی، یعني په دواړو صورتونو کې به صرف د زکاة مالونه صدقه کول کیږي او صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله مخکې په "فصل فی القضاء بالمواریث" کې همدې ته صحیح ویلي دي او هلته یې د مال او ملکیت فرق او د دواړو روایتونو دلیل هم ذکر کړی دی چې د شروع الفاظ یې داسې دي "ومن قال: مالي فی المساکین صدقة. فهو علی ما فیه الزکاة..... ولو قال: ما أملکه صدقة فی المساکین، فقد قیل: یتناول کل مال. والصحیح أنهما سواء" یعني صحیح دا ده چې د ملکیت لفظ او د مال لفظ دواړه سره برابر دي. (هدایه جلد ثالث، ص:۴۰۵- ۴۰۷، فصل فی القضاء بالمواریث، طبع: ادارة القرآن والعلوم الاسلامیة)

ویقال له إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د دغه نذر منونکي سړي سره فقط د زکاة مالونه وي او له هغه څخه بغیر نور مالونه ورسره نه وي، نو هغه ته به ویل کیږي چې له دې مال څخه د خپل ځان او د خپل اهل وعیال د نفقې (خرچې) او ګذارې لپاره مال راوګرځوه!، کنې ځان او عیال به د لوږې مړ کړې!؛ ځکه چې اسلام د انسان حاجت او ضرورت له خپلو حقوقو څخه مخکې کړی دی، نو ځکه غوره دا ده چې داسې صدقه کونکی سړی خپل د ګذارې مال را وګرځوي؛ بیا چې کله هغه نور مال وګټي، نو د هغه راګرځول سوی مال په اندازه دې بیرته صدقه کړي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې موږ دا هم مخکې په "فصل فی القضاء بالموریث" کې ذکر کړي دي چې د هغه الفاظ داسې دي: "ثم إذا لم یکن له مال سوٰی ما دخل تحت الإیجاب، یُمسك مِن ذٰلك قُوْتَه، ثم إذا أصاب شیئًا، تصدّق بما أمسك". (هدایه ج:۳، ص:۴۰۷)



# كِتَابُ الْإِجَارَاتِ

(دا) کتاب دا جاراتو (د احکامو په بیان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې يې کتابُ الهبة بيان کړی؛ ځکه چي په هبه کي د اعيانو تمليک کيږي (يعني په هبه کي څوک د عَين شي مالک کول کيږي [شی (مفت) ورکول کيږي])، او اوس اجارة بيانوي؛ ځکه چي په اجاره کي د منافعو تمليک کيږي (يعني په اجاره کي څوک صرف د شي د منفعت مالک کول کيږي)، او اعيان (شيان) له منافعو څخه مخکي وي، نو په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله هبه له اجارې څخه مخکي بيان کړې ده.

**د اجاره لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د "إِجَارَة" لغوي معنیٰ ده: په أجرت (په کرايه) ورکول، منافع خرڅول.

د اجارة اصطلاحي معنیٰ ده: "العَقْدُ عَلَى الْمَنَافِعِ بِعَوَضٍ" (په عوض [أجرت] سره پر منافعو عقد کول) يعني د أجرت او کرايې په عوض کي يو څوک د خپل شي د منافعو مالک جوړول.

مثلاً خالد و زيد ته د اوسېدلو لپاره کور په أجرت يعني په کرايه ورکړي (يا په بله وينا دا چي د کور د منافعو يعني د اوسېدلو مالک يې جوړ کړي [ځکه چي د کور منافع اوسېدل دي])، نو دې ته إجارة وايي، خالد (مالک) ته مُؤْجِر وايي (مُؤَاجِر غلط دی)، زيد ته مُسْتَأْجِر وايي او کور ته مُسْتَأْجَر وايي. يا مثلاً خالد د خپل سامان د نقل کولو لپاره زيد په أجرت (په مزدوري) ونيسي، نو په دې صورت کي خالد ته مستأجِر وايي (ځکه چي هغه زيد په أجرت نيولی دی) او زيد ته أجِيْر (مزدور) وايي.

## د اجارې حقيقت او شرعي حيثيت

الْإِجَارَةُ: عَقْدٌ عَلَى الْمَنَافِعِ بِعِوَضٍ اجاره داسي عقد دی کوم چي په عوض سره پر منافعو واقع کيږي لِأَنَّ الْإِجَارَةَ فِي اللُّغَةِ بَيْعُ الْمَنَافِعِ ځکه چي په لغت کي اجاره د منافعو بيع ده [يعني په لغت کي اجاره د منافعو خرڅولو ته وايي] وَالْقِيَاسُ يَأْبَى جَوَازَهُ او قياس د اجارې د جواز انکار کوي لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ الْمَنْفَعَةُ ځکه چي [په اجاره کي] پر کوم شي عقد واقع کيږي هغه منفعت دی وَهِيَ مَعْدُومَةٌ او هغه

ناموجود دی وَإِضَافَةُ التَّمْلِيكِ إِلَىٰ مَا سَيُوجَدُ لَا يَصِحُّ او داسي شي ته د تمليک اضافت [نسبت] کول کوم چي څه وروسته په وجود کي راځي صحيح نه دي إِلَّا أَنَّا جَوَّزْنَاهُ لِحَاجَةِ النَّاسِ إِلَيْهِ خو موږ موږ څکه اجاره جائز ګرځولي ده چي هغه ته د خلکو ضرورت دی [يعني خلک د اجارې و معاملې ته محتاج دي] وَقَدْ شَهِدَتْ بِصِحَّتِهَا الْآثَارُ او احاديث [هم] د اجارې پر صحيح کېدلو ګواه دي وَهِيَ قَوْلُهُ الْعَلِيلاً: «أَعْطُوا الْأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ»[1] او هغه [يو] د نبي ﷺ دا فرمان دی: "تاسي مزدور ته خپل أجرت [مزدوري] ورکوئ! مخکي تردې چي د هغه خوله [خوېله] وچه سي وَقَوْلُهُ الْعَلِيلاً: «مَنِ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَلْيُعْلِمْهُ أَجْرَهُ»[2] او [بل] د نبي ﷺ دا فرمان دی: "څوک چي په أجرت مزدور ونيسي نو هغه دي په خپل أجرت خبر کړي" [چي زه تا ته دومره أجرت او مزدوري درکوم] وَتَنْعَقِدُ سَاعَةً فَسَاعَةً عَلَىٰ حَسَبِ حُدُوثِ الْمَنْفَعَةِ او اجاره وقتا فوقتا [لږ، لږ] منعقد کيږي د منافعو د پيدا کېدلو [حاصلېدلو] په اعتبار سره [په يوه ځل پر ټولو منافعو نه واقع کيږي؛ ځکه چي منافع د عقد اجاره پر مهال موجود نه وي] وَالدَّارُ أُقِيمَتْ مَقَامَ الْمَنْفَعَةِ فِي حَقِّ إِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَيْهَا او کور د منفعت قائم مقام کړی سوی دی کور ته د عقد د اضافت کولو په حق کي ايعني د کور په اجاره کي به کور د منفعت قائم مقام کول کيږي او هغه ته به د عقد اجاره اضافت (نسبت) کيږي] لِيَرْتَبِطَ الْإِيجَابُ بِالْقَبُولِ د دې لپاره چي ايجاب د قبول سره مرتبط سي [او پر قبول مُرتّب سي] ثُمَّ عَمَلُهُ يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَنْفَعَةِ مِلْكًا وَاسْتِحْقَاقًا حَالَ وُجُودِ الْمَنْفَعَةِ بيا د عقد اجاره عمل د منفعت په حق کي [د مستأجر] د مالک جوړېدلو او مستحق کېدلو په توګه د منفعت د موجود والي په حالت کي ښکاره کيږي وَلَا تَصِحُّ حَتَّىٰ تَكُونَ الْمَنَافِعُ مَعْلُومَةً وَالْأُجْرَةُ مَعْلُومَةً او عقد اجاره نه صحيح کيږي تر دې چي منافع به معلوم او أجرت به معلوم وي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِي الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَبَدَلِهِ تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چي د معقود عليه او د هغه د بدل [يعني د أجرت] جهالت جنګ ته رسول کوي [يعني د اختلاف او جنګ سبب جوړيږي]

---

[1] تخريج: رواه ابن ماجة، رقم الحديث: ۲۴۳۴. والبيهقي، رقم الحديث:۱۱۹۸۸.

[2] تخريج: رواه البيهقي، رقم الحديث: ۱۱۹۸۵. وابن ابي شيبة، رقم الحديث: ۲۱۱۰۹.

كَجَهَالَةِ الثَّمَنِ وَالْمُثَمَّنِ فِي الْبَيْعِ لکه په بیع کي د ثمن او مبیع جهالت [چي دنزاع سبب جوړیږي].

**اللغات:** ﴿یرد﴾ د ضرب مضارع ده: واردېدل، راتلل، ﴿عوض﴾ بدل، ﴿معقود علیه﴾ پر کوم شي چي عقد سوی وي، مبیع ﴿یجف﴾ د ضرب مضارع ده: وچېدل، ﴿عَرَق﴾ (بفتحتین) خوله، جمع: عُرُوْق، ﴿ساعة فساعة﴾ ګړي په ګړي، وقتا فوقتا، ﴿یرتبط﴾ د ضرب مضارع ده: یو شی د بل شي سره تړل کېدل، یو ځای کېدل، منسلک کېدل، ﴿تملك﴾ د تفعّل مصدر دی: مالک کېدل، مالک جوړېدل، ﴿تفضي﴾ د افعال مضارع ده: رسېدل، رسول، سبب جوړېدل، ﴿الثمن﴾ قیمت، پیسې، ﴿المثمن﴾ کوم شی چي د ثمن په عوض کي رانیول سوی وي، یعني مبیع.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په عقد اجاره کي مالک د عوض (اُجرت) په بدله کي بل څوک (مستأجر) د خپل ملکیت د منفعت مالک جوړوي، لېکن څرنګه چي د عقد په وخت کي منفعت یعني معقود علیه نا موجود وي او د معقود علیه نه موجودېدل د عقد له صحت (صحیح کېدلو) څخه مانع دي، نو ځکه قیاساً اجاره صحیح نه ده، لېکن د خلکو د ضرورت او احتیاج په خاطر هغه جائز ګرځول سوې ده؛ ځکه د ضرورت په هکله دا مشهوره قاعده ده "اَلضَّرُوْرَاتُ تُبِيْحُ الْمَحْظُوْرَاتِ"، او بل دا چي په احادیثو کي هم د اجیر او مزدور په هکله څو احکام بیان سوي دي چي له هغه څخه د اجارې جواز او صحت ثابتیږي: ① اول حدیث دا دی: "أَعْطُوْ الْأَجِيْرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَّجِفَّ عَرَقُهُ" یعني د مزدور له خولې وچېدلو څخه مخکي هغه ته خپل مزدوري ورکوئ!. ② په بل حدیث کي نبي ﷺ فرمایلي دي چي څوک مزدور په اُجرت (په مزدوری) ونیسي، نو هغه دي د اُجرت په مقدار خبروي. له دغه دوو روایتونو څخه دا خبره څرګنده سوه چي اجاره صحیح او جائز ده خو دا ضروري ده چي د اجارې په اړه د بیان کړل سوو احکامو رعایت به کیږي.

وينعقد ساعة فساعة إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه (په اجاره کي) په یوه ځل او پر یوه ځای مستأجر ته منفعت نه حاصلیږي، همداسي په یوه ځل به اجاره هم نه ثابتیږي، بلکي د منفعت (نفع) په اعتبار سره به اجاره هم لږ، لږ (په کراره، کراره) ثابتیږي او منعقد کیږي. او له همدې څخه دا قانون اخیستل کېدای سي چي کوم شی په اُجرت اخیستل سوی وي که چیري د هغه منفعت په ډېرو ورځو کي پوره کیږي، نو د هغه پوره (توله) اُجرت به هم په ډېرو ورځو کي واجبیږي او د مؤجر (مالک) لپاره په یوه ورځ د توله اُجرت مطالبه کول مناسب نه دي. (احسن الهدایه)

والدار أقيمت إلخ: كه څوک کور يا بل ځای په أجرت (په کرايه) ونيسي، نو ښکاره خبره ده چې د کور او ځای منفعت (اوسېدل) وقتا فوقتا او په کراره، کراره حاصليږي، نو ځکه خودي کور به د منفعت قائم مقام کول کيږي او د همدې کور وطرف ته به د عقد اجاره اضافت کيږي، چې ايجاب او قبول سره يو ځای او مرتبط سي؛ بيا چې کله منفعت موجود او حاصل سي نو د تملک او استحقاق په توګه د عقد اجاره عمل د منفعت په حق کي ښکاره کيږي، يعني په اجاره کي د عقد له وخت څخه په منفعت کي د مستأجر استحقاق او تملک نه ثابتيږي بلکي د منفعت د موجودېدلو په حالت کي مستأجر ته د هغه استحقاق او ملکيت دواړه يو ځای حاصليږي (يعني کله چې منفعت موجود سي نو بيا په هغه کي د مستأجر استحقاق او ملکيت دواړه يو ځای ثابتيږي)؛ په خلاف د بيع چې په هغه کي په نفس عقد سره په مبيع کي د مشتري ملکيت ثابتيږي لېکن د هغه استحقاق د ثمن اداء کولو تر وخته پوري مؤخر کيږي.

ولا يصح إلخ: فرمايي چې په عقد اجاره کي تر څو منفعت او أجرت دواړه معلوم او متعيّن نه وي، تر هغه وخته عقد اجاره نه صحيح کيږي؛ ځکه په دې حديث "مِنِ اسْتَأْجَرَ أَجِيْرًا فَلْيُعْلِمْهُ أَجْرَهُ" کي د أجرت معلومول لازم ګرځول سوي دي او بل دا چې که معقود عليه مجهول وي يا د هغه بدل يعني أجرت مجهول وي، نو دا جهالت د نزاع او اختلاف سبب ګرځي، او کوم جهالت چې د نزاع او اختلاف سبب ګرځي، په هغه سره عقد فاسديږي، لکه څرنګه چې د مبيع يا ثمن په جهالت سره عقد بيع فاسديږي، نو همداسي به د منفعت يا أجرت جهالت عقد اجاره هم فاسدوي.

## کوم شيان په أجرت (په کرايه) کي ورکول کېدای سي؟

وَمَا جَازَ أَنْ يَكُونَ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ او په بيع کي چې د کوم شي ثمن کېدل جائز دي جَازَ أَنْ يَكُونَ أُجْرَةً فِي الْإِجَارَةِ په اجاره کي د هغه شي أجرت کېدل جائز دي [يعني کوم شی چې ثمن جوړېدای سي، هغه أجرت هم جوړېدای سي] لِأَنَّ الْأُجْرَةَ ثَمَنُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چې أجرت د منفعت ثمن وي فَتُعْتَبَرُ بِثَمَنِ الْمَبِيعِ نو ځکه هغه به د مبيع پر ثمن قياسول کيږي وَمَا لَا يَصْلُحُ ثَمَنًا او کوم شی چې د ثمن جوړېدلو صلاحيت نه لري يَصْلُحُ أُجْرَةً أَيْضًا هغه هم د أجرت جوړېدلو صلاحيت لري كَالْأَعْيَانِ لکه عين شيان فَهٰذَا اللَّفْظُ لَا يَنْفِي صَلَاحِيَّةَ غَيْرِهِ نو دا لفظ [د "ما جاز"] د بل شي [د أجرت جوړېدلو] د صلاحيت لرلو نفي نه کوي لِأَنَّهُ عِوَضٌ مَالِيٌّ ځکه چې أجرت يو مالي عوض دی وَالْمَنَافِعُ تَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً

بِالْمُدَّةِ كَاسْتِئْجَارِ الدُّوَرِ لِلسُّكْنٰى وَالْأَرْضِيْنَ لِلزِّرَاعَةِ او منافع کله په مودت [بيانولو] سره معلوم ګرځي لکه کورونه د اوسېدلو لپاره په أجرت [په کرايه] نيول او ځمکي د کښت ګرۍ لپاره په أجرت نيول [په اجاره اخيستل] فَيَصِحُّ الْعَقْدُ عَلٰى مُدَّةٍ مَعْلُوْمَةٍ أَيِّ مُدَّةٍ كَانَتْ نو دغه عقد اجاره پر معلوم مودت صحيح کيږي هغه که هر مودت وي لِأَنَّ الْمُدَّةَ إِذَا كَانَتْ مَعْلُوْمَةً ځکه کله چي مودت معلوم وي كَانَ قَدْرُ الْمَنْفَعَةِ فِيْهَا مَعْلُوْمًا نو په هغه کي د منفعت مقدار [هم] معلوم وي إِذَا كَانَتِ الْمَنْفَعَةُ لَا تَتَفَاوَتُ [په دې شرط] کله چي منفعت نه متفاوت کيږي [يعني چي په منفعت کي تفاوت او توپير نه راځي] وَقَوْلُهُ أَيِّ مُدَّةٍ كَانَتْ إِشَارَةٌ إِلٰى أَنَّهُ يَجُوْزُ طَالَتِ الْمُدَّةُ أَوْ قَصُرَتْ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "أى مدة" دې خبري ته اشاره ده چي اجاره [په هر صورت کي] جائز ده برابره ده مودت اوږد [ډېر] وي او که مختصر وي لِكَوْنِهَا مَعْلُوْمَةً ځکه چي مودت معلوم دی وَلِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَيْهَا عَسٰى او ځکه چي [په اجاره کي] اوږده مودت ته ضرورت ثابتېدای سي [يعني ځيني وخت په اجاره کي ډېر مودت هم ضرورت پيښيږي] إِلَّا أَنَّ فِي الْأَوْقَافِ لَا تَجُوْزُ الْإِجَارَةُ الطَّوِيْلَةُ لېکن په اوقافو [وقف کړل سوي شيانو] کي د اوږده مودت اجاره جائز نه ده كَيْلَا يَدَّعِيَ الْمُسْتَأْجِرُ مِلْكَهَا د دې لپاره چي په أجرت نيونکی د هغه [وقف کړل سوي شي] د ملکيت دعویٰ نه وکړي [يعني کوم د وقف شی چي يې په أجرت نيولی دی. د هغه د خپل والي دعویٰ نه وکړي چي دا زما خپل شی او خپل ملکيت دی] وَهِيَ مَا زَادَ عَلٰى ثَلَاثِ سِنِيْنَ او [په دې سلسله کي] اوږد مودت هغه دی کوم چي له دريو کالو څخه زيات وي وَهُوَ الْمُخْتَارُ او همدا غوره کړی سوی [قول] دی.

**اللغات:** ﴿جاز﴾ د نصر ماضي ده: جائز کېدل، ممکن کېدل. ﴿الأعيان﴾ عين شيان، مادي شيان. ﴿تارة﴾ کله، يو ځل. ﴿استئجار﴾ او استيجار: د استفعال مصدر دی: په أجرت اخيستل، په کرايه نيول. ﴿الأرضين﴾ جمع د أرض ده: ځمکي (مځکي). ﴿لتتفاوت﴾ د تفاعل مضارع ده: يو له بله مختلف کېدل، متغاير کېدل. ﴿عسٰى﴾ ممکنه ده، کېدای سي.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي په اجاره کي أجرت داسي دی لکه په بيع کي د مبيع ثمن، لهذا کوم شی چي د مبيع ثمن جوړېدای سي. هغه په اجاره کي أجرت جوړېدای سي. لکه نغدي پيسې، وزني او کيلي شيان (مثلاً غنم. وريجي او داسي نور)، همدارنګه کوم شی چي د مبيع ثمن نه سي ګرځېدای، هغه

هم په اجاره کي أجرت جوړېدای سي، لکه منفعت چي ثمن نه سي جوړېدای لېکن هغه أجرت جوړېدای سي، یا لکه هغه شیان کوم چي ذواتُ الامثال نه وي مثلاً حیوان، کپړې او داسې نور چي هغوی ثمن نه سي جوړېدای، لېکن د هغوی په أجرت کېدلو کي هیڅ حرج نسته. په همدې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي دغه لفظ یعني د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "وما جاز أن یکون ثمنًا" صرف د حکم بیانولو لپاره دي او په دې سره دا مقصود نه دي چي کوم شی ثمن نه سي جوړېدای هغه دي أجرت هم نه جوړېږي.

والمنافع إلخ: د تېر عبارت په آخر کي چي کوم دا حکم بیان سوی دی چي د اجارې د صحت لپاره د منافعو معلوم والی (متعيّن والی) ضروري دی، له دې ځایه د هغه تفصیل بیانوي فرمایي چي د منافعو د معلومولو (متعیّنولو) یوه طریقه دا ده چي د اجارې مودت بیان کړی سي چي مثلاً دغه کور د یوه کال لپاره په أجرت (په کرایه) درکوم یا یې اخلم، ښکاره خبره ده چي کله د یوه کال وضاحت وسي، نو منفعت به هم معلوم سي، په دې شرط چي د عمل (کار) په اعتبار سره په منفعت کي تفاوت نه راځي، لېکن که د عمل په أعتبار سره په هغه کي تفاوت او اختلاف (بدلون) راځي، نو د اجارې د مودت سره د عمل د نوعیت وضاحت کول هم ضروري دي، مثلاً که څوک د کښت ګرۍ لپاره تر یوه کاله پوري ځمکه په أجرت واخلي، نو د کښت ګرۍ نوع او قسم بیانول هم ضروري دي چي مثلاً زه غنم پکښې کرم؛ ځکه چي د کښت ګرۍ (زراعت) مختلفه څانګي او اقسام دي او د هري څانګي نفع یو له بل څخه مختلفه ده.

وقوله أی مدة إلخ: د دې حاصل دا دی چي په اجاره کي په مودت بیانولو (وخت ټاکلو) سره منافع معلومېږي او اجاره جائز کېږي، برابره ده د اجارې مودت کم بیان کړی سي او که زیات؛ ځکه چي ځیني وخت د ډېر مودت لپاره هم اجارې ته ضرورت پېښېږي، نو ځکه علی الإطلاق د هر مودت اجاره صحیح کېږي. خو په وقف کي د ډېر مودت یعني له دریو کالو څخه د زائد مودت اجاره صحیح نه ده (مثلا که یو څوک د خپل باغ مېوه د غریبانو لپاره وقف وکړي چي زما د دې باغ مېوه به هر کال پر غریبانو تقسیمول کېږي او دا کار یو سړي ته وسپاري [کوم ته چي متولي وایي] نو د هغه سړي [متولي] لپاره دا جائز دي چي دغه باغ د لږ مودت لپاره په اجاره ورکړي او د هغه أجرت په مسکینانو کي تقسیم کړي. لېکن د هغه لپاره دا جائز نه دي چي له دریو کالو څخه د زائد مودت لپاره دغه باغ په اجاره ورکړي)؛ ځکه چي د وقف په شي کي دا امکان سته

چي مستأجر په هغه د خپل ملکيت دعویٰ وکړي (چي دا باغ خو زما دی)، نو ځکه د وقف د ملکيت د رعايت او حفاظت لپاره به په هغه کي له دريو کالو څخه د زيات وخت اجاره صحيح نه وي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَتَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً بِنَفْسِهِ فرمايي: او کله په نفس عقد سره منافع معلوم ګرځي كَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا عَلٰى صَبْغِ ثَوْبِهِ أَوْ خِيَاطَةٍ لکه څوک چي د خپل کپړې د رنګولو يا ګنډلو [جوړولو] لپاره يو سړی په اُجرت ونيسي أَوِ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا مِقْدَارًا مَعْلُومًا أَوْ يَرْكَبَهَا مَسَافَةً سَمَّاهَا يا يو څاروی د دې لپاره په اُجرت ونيسي چي پر هغه يو معلوم مقدار [والا شی] باروي يا پر هغه دومره مسافه سپرېږي کوم چي ده مُتعيّن کړې وي [يعني د سپرېدلو مسافه او مودت مُتعيّن کړي] لِأَنَّهُ إِذَا بَيَّنَ الثَّوْبَ وَلَوْنَ الصَّبْغِ وَقَدْرَهُ وَجِنْسَ الْخِيَاطَةِ وَالْقَدْرَ الْمَحْمُولَ وَجِنْسَهُ وَالْمَسَافَةَ ځکه کله چي مستأجر کپړه، د رنګولو رنګ او د هغه مقدار، د ګنډلو جنس او د بار کړل سوی شي مقدار، د هغه جنس او مسافه بيان کړل صَارَتِ الْمَنْفَعَةُ مَعْلُومَةً نو منفعت [هم] معلوم وګرځېدی فَيَصِحُّ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد صحيح کيږي وَرُبَّمَا يُقَالُ: الْإِجَارَةُ قَدْ تَكُونُ عَقْدًا عَلَى الْعَمَلِ كَاسْتِئْجَارِ الْقَصَّارِ وَالْخَيَّاطِ او کله داسي ويل کيږي: چي اجاره پر عمل هم منعقد کيږي لکه دوبي [کالي مينځونکی] او خياط [درزي] پر اُجرت نيول وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْعَمَلُ مَعْلُومًا [نو په دې صورت کي] دا ضروري ده چي عمل به معلوم وي وَذٰلِكَ فِي الْأَجِيرِ الْمُشْتَرَكِ او هغه [يعني پر عمل اجاره منعقد کېدل] په مشترک مزدور کي کيږي [يعني د عمل لپاره زياتره عام مزدور په اُجرت نيول کيږي] وَقَدْ تَكُونُ عَقْدًا عَلَى الْمَنْفَعَةِ او ځيني وخت اجاره پر منفعت منعقد کيږي كَمَا فِي أَجِيرِ الْوَحْدِ لکه په يوازيني [خاص] مزدور کي وَلَا بُدَّ مِنْ بَيَانِ الْوَقْتِ او [په دې صورت کي] د وخت بيانول ضروري دي قَالَ: وَتَارَةً تَصِيرُ الْمَنْفَعَةُ مَعْلُومَةً بِالتَّعْيِينِ وَالْإِشَارَةِ فرمايي: او کله په مُتعيّن کولو او اشاره کولو سره [هم] منفعت معلوم ګرځي كَمَنِ اسْتَأْجَرَ

رَجُلًا لِيَنْقُلَ لَهُ هَذَا الطَّعَامَ إِلَى مَوْضِعٍ مَعْلُومٍ لکه څوک چي يو سړی د دې لپاره په أجرت [په مزدوری] ونيسي چي هغه دا غنم معلوم [ټاکل سوي] ځای ته نقل کړي لِأَنَّهُ إِذَا أَرَاهُ مَا يَنْقُلُهُ وَالْمَوْضِعَ الَّذِي يَحْمِلُ إِلَيْهِ ځکه کله چي هغه و مزدور ته د نقل کولو شی [غنم] او د بارولو [نقل کولو] ځای ور وښودی كَانَتِ الْمَنْفَعَةُ مَعْلُومَةً نو منفعت معلوم سو فَيَصِحُّ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد صحيح کيږي.

**اللغات**: ﴿صبغ﴾ د ماضي صيغه ده، له نصر، ضرب او فتح ټولو بابونو څخه راتلای سي: کپړه رنګول (ټوکر ته رنګ ورکول)، ﴿خياطة﴾ کپړه ګنډل او جوړول، خياطي، ﴿دابة﴾ څاروی، چارپای، جمع: دَوَابّ، ﴿مسافة﴾ مُتعيّن ليري والي، واټن، فاصله، ﴿رُبما﴾ کله نا کله، ډېر ځله، کېدای سي (دلغت په کتابو کي درُبما دغه ټوله معناوي ذکر سوي دي)، ﴿القَصّار﴾ دوبي، جامه (کالي) مينځونکی، ﴿الأجير المشترك﴾ عام مزدور کوم چي د يو خاص سړي کار نه کوي بلکي د هر چا لپاره کار کوي (يعني چي هر څوک د کار او مزدورۍ امر ورکړي. نو د هغه لپاره کار کوي، فقط د يوه سړي لپاره کار نه کوي)، الأَجِيرُ الْوَحْد: اجير خاص، کوم چي فقط د يوه سړي لپاره کار کوي او د بل چا سره کار نه کوي، عربي قاموس يې داسي تعريف کړی دی: الأجير المشترك: وهو الذي لا يخص أحدًا بعمله بل يعمل لكل من قدم له العمل. الأجير الخاص: وهو الذي يعمل لواحد ولا يعمل لغيره. ﴿ينقل﴾ د نصر مضارع ده: نقل کول، وړل. ﴿طعام﴾ کله چي دا لفظ مطلق ذکر سي نو معنی يې ده: غله، او د اهل حجاز او عراق په نيز به خاص غنمو ته ويل کېده. (معجم الوسيط)

**تشريح**: د منفعت معلومولو (متعيّن کولو) يوه طريقه په تېر عبارت کي ذکر سوه او په دې عبارت کي هم د هغه څو طريقې ذکر سوي دي، فرمايي ځيني وخت داسي وي چي په نفس عقد (يعني په خودي عقد اجاره کولو) سره منفعت معلوم او مُتعيّن ګرځي او په دې باره کي هيڅ وضاحت او تعيين ته ضرورت نه پرېوځي. مثلاً که څوک د خپلي کپړې د رنګولو لپاره يو سړی په أجرت ونيسي او هغه ته ووايي چي زما دغه کپړې ته دا ډول رنګ او دومره رنګ ورکړه! (يعني لون او مقدار بيان کړي). يا مثلاً د خپل کاليو د جوړولو لپاره خياط په أجرت ونيسي او د جوړولو جنس او نوع ور وښيي چي ما ته دا

پول او داسي ډیزاین والا کالي را جوړ کړه. یا مثلاً د بار وړلو لپاره یو څاروی په کرایه ونیسي او کوم سامان چي پر باروي د هغه جنس (مثلا غنم یا اوربشي دي) او مقدار (مثلا پنځه منه دي) بیان کړي، نو ښکاره خبره ده چي خودي د دغه شیانو په بیانولو او صراحت کولو سره په خپله منفعت معلوم او مُتعیّن ګرځي او د هغه جهالت لیري کیږي او د عقد اجاره د صحت لاره بالکل صفا کیږي.

وربما يقال إلخ: د دې حاصل دا دی چي د اجارې دوه قسمونه نور سته: ① یو قسم اجاره على العمل ده، ② دویم قسم اجاره على المنفعت ده. د اول قسم مثال دا دی چي یو څوک دوبي یا خیاط په اُجرت ونیسي، نو په دې قسم اجاره کي په اُجرت نیول سوی شی دوبي او خیاط نه دی بلکي د هغو عمل (کار) دی، نو ځکه دَ دغه اجارې د صحت لپاره د عمل معلوم او مُتعیّن کېدل شرط دي او دغه قسم اجاره په مشترک اجیر (عام مزدور) کي کیږي یعني په دې قسم کي اجیر عام وي او هر څوک د خپل کار و لپاره عام کاریګر او مزدور په اُجرت نیسي. د دویم قسم مثال دا دی چي یو څوک د یو سړي خاص نوکر او مزدور وي او د ده د ټولو کارونو منفعت هغه سړي (مالک) ته حاصلیږي، په داسي اجاره کي مودت بیانول ضروري دي، د دې لپاره چي د منفعت او اُجرت په حساب کي اختلاف او ستونزه رانه سي.

د منفعت معلومېدلو (متعیّن کېدلو) دریمه طریقه دا ده چي مستأجر (په اُجرت نیونکی) عمل مُتعیّن کړي یا د هغه وطرف ته اشاره وکړي، مثلاً یوه ګونۍ غنم یو مزدور ته په لاس وَرکړي چي دا زما له کور څخه فلانکي ځای ته نقل کړه، نو ښکاره خبره ده چي په دومره وضاحت سره منفعت هم واضح کیږي، او کله چي منفعت واضح او معلوم وګرځي نو اُجرت هم معلوم ګرځي او د جنګ او اختلاف امکان ختمیږي، نو ځکه به عقد صحیح کیږي. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْأَجْرِ مَتٰى يُسْتَحَقُّ

(دا) باب دأجرت د مستحق کېدلو د وخت (په بيان کې) دی

**تشريح:** دأجرت استحقاق تر عقدِ اجاره (اجاره کولو) وروسته ثابتيږي، نو په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دعقدِ اجاره بيان داستحقاقِ أجرت له بيان څخه مخکې کړی دی.

## أجرت کله واجبــيــږي (يعني مؤجر [مالک] کله د أجرت مستحق کيــږي)؟

قَالَ: الْأُجْرَةُ لَا تَجِبُ بِالْعَقْدِ وَتُسْتَحَقُّ بِأَحَدِ مَعَانٍ ثَلَاثَةٍ فرمايي: چې [په اجاره کې] په نفس عقد سره أجرت نه واجبيږي [بلکې] له دريو شيانو څخه د يوه په موجودېدلو سره د اجرات استحقاق ثابتيږي إِمَّا بِشَرْطِ التَّعْجِيلِ يا د أجرت د ژر اداء کولو [مخکې ورکولو] په شرط لګولو سره أَوْ بِالتَّعْجِيلِ مِنْ غَيْرِ شَرْطٍ يا بغير له شرطه په مخکې اداء کولو سره أَوْ بِاسْتِيفَاءِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ يا د معقود عليه [منفعت] په پوره حاصلولو سره وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُمْلَكُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په نفس عقد سره أجرت [د مؤجر] په ملکيت کې داخليږي لِأَنَّ الْمَنَافِعَ الْمَعْدُومَةَ صَارَتْ مَوْجُودَةً حُكْمًا ضَرُورَةَ تَصْحِيحِ الْعَقْدِ ځکه چې د عقد د صحيح ګرځولو د ضرورت په خاطر [په اجاره کې] نا موجوده منافع د حکم په اعتبار سره موجوده ګرځول سوي [شمارل سوي] دي فَيَثْبُتُ الْحُكْمُ فِيمَا يُقَابِلُهُ مِنَ الْبَدَلِ لهذا د هغه په مقابله کې چې کوم بدل [أجرت] دی په هغه کې به هم حکم [ملکيت] ثابتيږي وَلَنَا: أَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ شَيْئًا فَشَيْئًا عَلَى حَسَبِ حُدُوثِ الْمَنَافِعِ زموږ دليل دا دی: چې عقدِ اجاره په کراره، کراره [لږ، لږ] منعقد کيږي د منافعو د پيدا کېدلو [موجودېدلو] په اعتبار سره عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه مخکې چې موږ بيان کړه وَالْعَقْدُ مُعَاوَضَةٌ او [ځرنګه چې] دا عقد د معاوضې عقد دی وَمِنْ قَضِيَّتِهَا الْمُسَاوَاةُ او د معاوضې له تقاضا څخه برابري ده [يعني معاوضه د مساوات تقاضا کوي] فَمِنْ ضَرُورَةِ التَّرَاخِيْ فِيْ جَانِبِ الْمَنْفَعَةِ التَّرَاخِيْ فِي الْبَدَلِ الْآخَرِ نو ځکه د منفعت په طرف کې د تاخير کېدلو په وجه به خامخا په دويم بدل [يعني په أجرت] کې هم تاخير کيږي وَإِذَا

اسْتَوْنَى الْمَنْفَعَةَ [ها!] كله چي مستأجر منفعت پوره حاصل كړي [ترلاسه كړي] يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِي الْأَجْرِ نو [بيا] په أجرت كي ملكيت ثابتيږي لِتَحَقُّقِ التَّسْوِيَةِ د دې لپاره چي برابر والى ثابت سي وَكَذَا إِذَا شَرَطَ التَّعْجِيلَ أَوْ عَجَّلَ مِنْ غَيْرِ شَرْطٍ او همدارنګه كله چي د ژر اداء كولو شرط ولګوي يا بغير له شرطه مستأجر ژر أجرت اداء كړي لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ يَثْبُتُ حَقًّا لَهُ ځكه چي مساوات د مستأجر د حق په توګه ثابتيږي وَقَدْ أَبْطَلَهُ او هغه [په خپله] دا حق باطل كړی وَإِذَا قَبَضَ الْمُسْتَأْجِرُ الدَّارَ او كله چي مستأجر پر كور قبضه وكړي فَعَلَيْهِ الْأَجْرُ وَإِنْ لَمْ يَسْكُنْهَا نو پر هغه أجرت لازم دی كه څه هم هغه [تر اوسه] په كور كي اوسېدلی نه وي لِأَنَّ تَسْلِيمَ عَيْنِ الْمَنْفَعَةِ لَا يُتَصَوَّرُ ځكه چي عَين منفعت ورسپارل ممكن نه دي فَأَقَمْنَا تَسْلِيمَ الْمَحَلِّ مَقَامَهُ نو ځكه موږ د محل ورسپارل د عَين منفعت د ورسپارلو قائم مقام كړي دي إِذِ التَّمَكُّنُ مِنَ الِانْتِفَاعِ يَثْبُتُ بِهِ ځكه چي پر نفع اخيستلو قادر كېدل د محل په ورسپارلو سره ثابتيږي فَإِنْ غَصَبَهَا غَاصِبٌ مِنْ يَدِهِ او كه چيري يو غاصب د مستأجر د لاسه د أجرت شی [مثلا كور] غصب كړي سَقَطَتِ الْأُجْرَةُ نو أجرت ساقطيږي لِأَنَّ تَسْلِيمَ الْمَحَلِّ إِنَّمَا أُقِيمَ مَقَامَ تَسْلِيمِ الْمَنْفَعَةِ لِلتَّمَكُّنِ مِنَ الِانْتِفَاعِ ځكه چي د محل ورسپارل خو پر انتفاع د قادر كېدلو پر بناء د محل قائم مقام كړی سوي دي فَإِذَا فَاتَ التَّمَكُّنُ لهذا كله چي قدرت فوت سو فَاتَ التَّسْلِيمُ نو ورسپارل هم فوت سوه وَانْفَسَخَ الْعَقْدُ او عقد فسخ سو فَيَسْقُطُ الْأَجْرُ نو ځكه أجرت به هم ساقطيږي وَإِنْ وُجِدَ الْغَصْبُ فِي بَعْضِ الْمُدَّةِ او كه چيري غصب [د اجارې] په څه مودت كي موجود سي سَقَطَ الْأَجْرُ بِقَدْرِهِ نو [صرف] د هغه په اندازه أجرت ساقطيږي إِذِ الِانْفِسَاخُ فِي بَعْضِهَا ځكه چي عقد [صرف] په څه مودت كي فسخ سوی دی.

**اللغات**: ﴿تُستحق﴾ د استفعال مضارع مجهوله ده: مستحق كېدل، استحقاق ثابتېدل. ﴿تعجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: يو كار ژر كول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره اخيستل، ترلاسه كول. ﴿قضية﴾ تقاضا، معامله. ﴿مساواة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو د بل سره برابرېدل، برابري. ﴿تراخي﴾ د تفاعل مصدر دی: ځنډېدل، تاخير. ﴿تسوية﴾ د تفعيل مصدر دی: يو د بل سره برابرول.

﴿تمكّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قدرت پيدا کول، قادر کېدل، اختيار لرل، ﴿انفسخ﴾ د انفعال ماضي ده: ماتېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نېز په اجاره کې په نفس عقد (يعني محض په اجاره کولو) سره مؤجر د أجرت نه مستحق کيږي، بلکې له دريو شيانو څخه د يوه شي په موجودېدلو سره د أجرت استحقاق ثابتيږي: ① يو دا چې مؤجر د مخکې ورکولو شرط ولګوي چې ما ته به مخکې أجرت (کرايه) راکوې! او مستأجر دا شرط قبول کړي، ② دويم دا چې له شرط لګولو څخه بغير مستأجر په خپله هغه ته مخکې أجرت ورکړي، ③ دريم دا چې مستأجر پوره نفع حاصله کړي يعني د أجرت له شي څخه خپل کار واخلي او ضرورت پوره کړي، نو په همدغه دريو صورتونو کې مؤجر د أجرت مستحق کيږي او پر مستأجر أجرت ورکول لازميږي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مؤجر په نفس عقد سره د أجرت مستحق کيږي؛ ځکه د عقد منافع که څه هم ظاهرا نا موجوده دي لېکن معنا او د عقد د صحيح کولو د ضرورت پر بناء حکما هغوی موجوده شمارل کيږي، لهذا کله چې منافع حکما موجوده دي نو د منفعت د بدل (أجرت) په حق کې به هم هغوی موجوده ګرځول کيږي او د عقد کولو سره به سمدستي مؤجر د أجرت مستحق کيږي.

ولنا أن العقد إلخ: زموږ دليل دا دی چې په عقد اجاره کې منافع په کراره، کراره حاصليږي، نو ځکه د منافعو په اعتبار سره به أجرت هم په کراره، کراره واجبيږي او په نفس عقد سره به په يوه ځل ټوله أجرت نه واجبيږي. او په دې وجه به هم په يوه ځل أجرت نه واجبيږي چې عقد اجاره عقد معاوضه دی (ځکه دواړو طرفونو ته عوض سته. يعني مؤجر [مالک] او مستأجر ته د أجرت په عوض کې د منفعت ملکيت ورکوي او مستأجر د منفعت په عوض کې أجرت ورکوي)، او په معاوضه کې مساوات ضروري دی، لهذا کله چې منفعت په کراره، کراره حاصليږي نو د مساوات تقاضا دا ده چې د هغه بدل يعني أجرت هم په کراره، کراره حاصل سي او په يوه ځل واجب نه سي. ها! کله چې مستأجر پوره نفع حاصله کړي نو پر هغه به پوره (ټوله) أجرت هم واجبيږي؛ ځکه چې اوس د ټوله أجرت په واجبولو کې مساوات سته. همدارنګه کله چې مؤجر د تعجيل شرط ولګوي (چې ما ته به مخکې أجرت راکوې!) يا بغير له شرطه مستأجر مخکې أجرت ورکړي، نو په دې دواړو صورتونو کې هم پر هغه ټوله أجرت واجبيږي: ځکه چې مساوات د مستأجر حق وو، لېکن هغه د مؤجر د شرط قبلولو يا بغير له شرطه د مخکې أجرت ورکولو په وجه خپل دغه حق ساقط کړی، نو ځکه اوس به هغه په يوه ځل ټوله أجرت ورکوي.

وإذا قبض إلخ: مسئله دا ده چي کله مستأجر په اُجرت اخيستل سوی کور په خپله قبضه کي واخلي، نو سمدستي پر هغه اُجرت واجبيږي او د اُجرت (کرايې) حساب شروع کيږي، برابره ده هغه په دې کور کي اوسېدل شروع کړي، که نه؛ ځکه چي په اجاره کي عموماً د عَين منفعت ورسپارل ناممکن وي نو هلته د منفعت د محل (ځای) ورسپارل د منفعت د ورسپارلو قائم مقام کول کيږي: ځکه چي د محل په ورسپارلو سره پر انتفاع (منفعت اخيستلو) قدرت حاصليږي (يعني کله چي مؤجر و مستأجر ته کور او ځای ور وسپاري نو سمدستي هغه ته د منفعت اخيستلو [يعني د اوسېدلو] اجازت حاصل سي او هغه پر دې قادر سي)، نو ځکه د محل په ورسپارلو سره به مؤجر (مالک) د اُجرت مستحق کيږي.

فإن غصبها إلخ: فرمايي که مستأجر له قبضې څخه د اُجرت شی يو څوک غصب کړي، نو اُجرت ساقطيږي او د اُجرت (کرايې) حساب بنديږي؛ ځکه چي اوس د انتفاع قدرت ختم سو او عقد فسخ سو، نو اُجرت به څنګه پر واجب سي!.

وإن وجد الغصب إلخ: که د مستأجر له قبضې څخه يو څوک د اُجرت شی مثلاً کور غصب کړي او يو څو ورځي يې په خپله قبضه کي وساتي بيا يې بيرته مستأجر ته واپس کړي، نو څومره ورځي چي هغه کور د غاصب په قبضه کي وي، د هغومره ورځو اُجرت ساقطيږي؛ ځکه چي په مغصوبه ورځو کي مستأجر له دغه کور څخه هيڅ نفع نه ده اخيستې، نو ځکه پر هغه به د دې ورځو اُجرت (کرايه) هم نه واجبيږي.

## په کومو صورتونو کي د هري ورځي د اُجرت مطالبه کېدلای سي؟

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَارًا فرمايي: او که څوک يو کور په اُجرت [په کرايه] ونيسي. فَلِلْمُؤَجِّرِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِأُجْرَةِ كُلِّ يَوْمٍ نو اُجرت ورکونکي [مالک] ته دا اختيار سته چي له هغه [مستأجر] څخه د هري ورځي د اُجرت مطالبه وکړي لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنْفَعَةً مَقْصُودَةً ځکه چي مستأجر مقصود منفعت حاصل کړی دی [يعني مستأجر هره ورځ يو مقصود منفعت حاصلوي] إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ وَقْتَ الِاسْتِحْقَاقِ بِالْعَقْدِ مګر دا چي مستأجر په عقد کي د استحقاق وخت بيان کړي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ التَّأْجِيلِ ځکه چي دا د وخت ورکولو [مؤخر کولو] په درجه کي دي [يعني لکه د حق اداء کولو لپاره وخت ورکول او مؤخر کول] وَكَذَلِكَ إِجَارَةُ الْأَرَاضِي او همداسي د ځمکو اجاره ده [يعني ځمکه په اجاره ورکول هم دغه حکم لري] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَمَنِ اسْتَأْجَرَ بَعِيرًا إِلَى مَكَّةَ او که څوک تر مکې پوري اوښ په

أجرت ونيسي فَلِلْجَمَّالِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِأُجْرَةِ كُلِّ مَرْحَلَةٍ نو د اوښ مالک ته دا اختيار سته چې له مستأجر [مسافر] څخه د هر منزل [پړاو] د أجرت مطالبه وکړي لِأَنَّ سَيْرَ كُلِّ مَرْحَلَةٍ مَقْصُودٌ ځکه چې د هر منزل تګ مقصود دی وَكَانَ أَبُوحَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا: لَا يَجِبُ الْأَجْرُ إِلَّا بَعْدَ انْقِضَاءِ الْمُدَّةِ وَانْتِهَاءِ السَّفَرِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله به مخکي فرمايل: چې أجرت نه واجبيږي مګر له مودت تېرېدلو او سفر ختمېدلو څخه وروسته وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ جُمْلَةُ الْمَنَافِعِ فِي الْمُدَّةِ ځکه چې معقود عليه په دې مودت کې ټوله منافع دي [يعني معقود عليه هغه ټوله منافع دي کوم چې د سفر په مودت کې حاصليږي] فَلَا يُتَوَزَّعُ الْأَجْرُ عَلَى أَجْزَائِهَا نو ځکه أجرت به د منافعو پر اجزاؤ نه تقسيميږي كَمَا إِذَا كَانَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ الْعَمَلَ لکه کله چې معقود عليه کار وي وَوَجْهُ الْقَوْلِ الْمَرْجُوعِ إِلَيْهِ أَنَّ الْقِيَاسَ اسْتِحْقَاقُ الْأَجْرِ سَاعَةً فَسَاعَةً او کوم قول ته چې رجوع سوې ده د هغه دليل دا دی چې قياس ګړي په ګړي [وقتاً نوقتاً] د أجرت مستحق کېدل دي لِتَحَقُّقِ الْمُسَاوَاةِ د دې لپاره چې برابري ثابته سي إِلَّا أَنَّ الْمُطَالَبَةَ فِي كُلِّ سَاعَةٍ تُفْضِي إِلَى أَنْ لَا يَتَفَرَّغَ لِغَيْرِهِ لېکن په هر ګړي کې د أجرت مطالبه کول د دې سبب جوړيږي چې مستأجر به بل کار ته فارغ نه سي [يعني د هر ساعت د أجرت په مطالبه کولو سره مستأجر بل کار ته نه سي فارغېدای] فَيَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره به هغه ته ضرر [نقصان] ورسيږي فَقَدَّرْنَاهُ بِمَا ذَكَرْنَا نو ځکه موږ په ذکر سوي مقدار سره هغه اندازه کړی دی [يعني د کور په اجاره کي يوه ورځ او د سفر په اجاره کي يو منزل] قَالَ: وَلَيْسَ لِلْقَصَّارِ وَالْخَيَّاطِ أَنْ يُطَالِبَ بِأُجْرَةٍ حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الْعَمَلِ فرمايي: چې د دوبي او خياط [درزي] لپاره له کار څخه تر فارغېدلو مخکي د أجرت د مطالبه کولو اختيار نسته لِأَنَّ الْعَمَلَ فِي الْبَعْضِ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهِ ځکه چې [د کپړې (جامې)] په څه حصه کي کار کول د انتفاع قابل نه دي فَلَا يَسْتَوْجِبُ الْأَجْرَ بِهِ نو ځکه په څه کار کولو سره به هغه [دوبي او خياط] د أجرت نه مستحق کيږي وَكَذَا إِذَا عَمِلَ فِي بَيْتِ الْمُسْتَأْجِرِ او همدارنګه کله چې هغه [دوبي او خياط] د مستأجر په کور کي کار وکړي لَا يَسْتَوْجِبُ الْأَجْرَ قَبْلَ الْفَرَاغِ نو هم له فارغېدلو څخه مخکي هغه د أجرت نه مستحق کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی قَالَ: إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ

التَّعْجِيلَ مګر دا چي د ژر اداء کولو شرط ولګوي لِمَا مَرَّ أَنَّ الشَّرْطَ فِيهِ لَازِمٌ د هغه دليل په وجه کوم چي مخکي تېر سو چي په عقد اجاره کي شرط لازم ګرځي.

**اللغات**: ﴿تأجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: د حق اداء کولو لپاره وخت ټاکل، وخت ورکول، مؤخر کول (ځنډول)، ﴿يتوزع﴾ د تفعّل مضارع ده: تقسيمېدل، ﴿يتضرّر﴾ مخکنی صيغه ده: تاواني کېدل، ضرر او نقصان ورته پېښېدل، ﴿يتفرّغ﴾ مخکنی صيغه ده: فارغېدل (فارغ کېدل)، ﴿مرحلة﴾ منزل، هغه مسافه کوم چي يې مسافر په يوه ورځ کي پرېکوي (د مسافر د يوې ورځي سفر). (مصباح اللغات، المعجم العربي الميسر)

**تشريح**: په دغه عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که څوک يو کور په اُجرت واخلي، نو مؤجر (د کور مالک) ته دا حق سته چي له مستأجر څخه د هري ورځي د اُجرت (کرايې) مطالبه وکړي؛ ځکه چي د هري ورځي استوګنه په مقصود کي داخله ده (ځکه د يوې ورځي په قصد سره هم ځای د اوسېدلو لپاره په کرايه اخيستل کيږي)، نو مستأجر هره ورځ يو مقصود او مفيد منفعت حاصلوي، نو ځکه پر هغه به د هري ورځي اُجرت واجبيږي. ها! که چيري مستأجر د عقد په وخت کي داسي ووايي چي زه تا ته مياشت په مياشت يا مثلاً هفته په هفته اُجرت (کرايه) درکوم، نو د ټاکل سوي مودت مطابق اُجرت واجبيږي؛ ځکه چي مودت بيانول او د مؤجر له طرفه د هغه قبلول داسي دي لکه استحقاق مؤخر کول (تأجيل)، او په مؤخر کولو سره (په هغه ټاکل سوي مودت کي) د مؤجر استحقاق باطليږي. همدا حکم د ځمکي د اجارې هم دی، يعني په هغه کي هم مؤجر د هري ورځي د اُجرت مستحق کيږي.

(۲)... که څوک مکې مبارکي ته د تللو لپاره اوښ په کرايه واخلي، نو د اوښ مالک ته دا اختيار سته چي له مستأجر څخه د هر، هر منزل کرايه واخلي؛ ځکه چي د هر منزل سفر مقصود سفر دی، نو ځکه د هر منزل کرايه به هم پر واجب وي. همدا زيات صحيح او معتمد قول دی او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مرجوع اليه قول دی، او تر دې مخکي به امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايل چي تر څو سفر ختم نه سي او د اجارې مودت پوره نه سي، تر هغه وخته اُجرت نه واجبيږي. همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی؛ ځکه چي دلته معقود عليه دا دی چي د سفر په ټوله مودت کي منافع (سپرتيا) حاصل سي او د سفر په پوره کېدلو او ختمېدلو سره چي منافع پوره سي نو اُجرت هم پوره واجب سي، نو ځکه اُجرت د منافعو پر اجزاؤ تقسيمول صحيح نه دي. لکه کله چي معقود عليه کار وي (يعني يو څوک د يو کار لپاره په اُجرت نيول سوی وي)، نو له کار پوره کېدلو څخه مخکي اُجرت نه واجبيږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مرجوع الیه قول دلیل دا دی چي د قیاس تقاضا خو همدا ده چي ګړي په ګړي (د هر ګړي) أجرت واجب سي؛ ځکه چي په همدې اعتبار سره منفعت حاصلیږي، لېکن که موږ د هر ګړی او هر ساعت أجرت پر مستأجر واجب وګرځوو او مؤجر ته د هغه د مطالبه کولو حق ورکړو، نو مستأجر به په همدې ورکړه راکړه کي مشغول پاته سي او بل کار به نه سي کولای، لهٰذا غوره صورت همغه دی کوم چي موږ بیان کړی دی چي د هر، هر منزل أجرت ورکول سي.

وليس للقصار إلخ: (۳)... دریمه مسئله دا ده که څوک یو دوبي یا خیاط په أجرت ونیسي، نو تر څو چي دوی له خپل کار څخه فارغ نه سي، تر هغه وخته دوی ته د خپل أجرت د مطالبه کولو حق او اختیار نسته؛ ځکه چي د دوی څه (لږ) کار کول د انتفاع قابل نه دي، مثلاً که خیاط صرف پر توګ جوړ کړی وي او کالي یې تر اوسه جوړ کړي نه وي یا مثلاً لستوڼي او جېبونه پاته وي، نو ښکاره خبره ده چي له دې کالیو څخه نفع نه سي اخیستل کېدای، نو ځکه أجرت به هم نه واجبیږي، لېکن که کاریګر (دوبي او خیاط) یا مستأجر (مالک) د مخکي اداء کولو شرط ولګوي؛ نو بیا شرط پوره کول یعني مخکي أجرت ورکول لازم دي.

## ډوډۍ پخونکی (نانوای) کله د أجرت مستحق کیږي؟

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ خَبَّازًا لِيَخْبِزَ لَهُ فِي بَيْتِهِ قَفِيزًا مِنْ دَقِيقٍ بِدِرْهَمٍ فرمایي: او که څوک ډوډۍ پخونکی [نانوای] په أجرت ونیسي د دې لپاره چي هغه د ده په کور کي دیوه قفیز اوړو ډوډۍ پخې کړي دیوه درهم په عوض کي لَمْ يَسْتَحِقَّ الْأَجْرَ حَتَّى يُخْرِجَ الْخُبْزَ مِنَ التَّنُّورِ نو هغه د أجرت نه مستحق کیږي تر دې چي له تنور څخه ډوډۍ را وباسي لِأَنَّ تَمَامَ الْعَمَلِ بِالْإِخْرَاجِ ځکه چي [د نانوای] د کار بشپړ والی [د ډوډۍ] په را ایستلو سره دی [یعني د ډوډۍ په را ایستلو سره د هغه کار پوره کیږي] فَلَوِ احْتَرَقَ أَوْ سَقَطَ مِنْ يَدِهِ قَبْلَ الْإِخْرَاجِ نو که له را ایستلو څخه مخکي ډوډۍ وسوځي یا د هغه د لاسه ایله سي فَلَا أَجْرَ لَهُ نو د هغه لپاره أجرت نسته [یعني أجرت به نه ورکول کیږي] لِلْهَلَاكِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ له ورسپارلو څخه مخکي د منفعت د هلاکېدلو په وجه فَإِنْ أَخْرَجَهُ ثُمَّ احْتَرَقَ مِنْ غَيْرِ فِعْلِهِ لېکن که خباز [نانوای] ډوډۍ را وباسي بیا د ده له عمل څخه بغیر هغه وسوځي فَلَهُ الْأُجْرَةُ نو د هغه لپاره أجرت سته لِأَنَّهُ صَارَ

مُسَلِّمًا بِالْوَضْعِ فِي بَيْتِهِ ځکه چې د مستأجر په کور کې په ايښوولو سره هغه [مستأجر ته] ورسپارونکى وګرځېدى وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ او پر هغه ضمان [تاوان] نسته لِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ مِنْهُ الْجِنَايَةُ ځکه چې د هغه له طرفه جرم موجود نه سو قَالَ رضي الله عنه: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځکه چې ډوډۍ د خباز په قبضه کې امانت دي وَعِنْدَهُمَا يُضَمِّنُ مِثْلَ دَقِيقِهِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به مستأجر [له خباز څخه] د خپل اوړو په مثل سره ضمان اخلي وَلَا أَجْرَ لَهُ او د هغه لپاره أجرت نسته لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځکه چې د ډوډۍ ضمان پر هغه لازم دی [يعني د صاحبينو په نيز ډوډۍ د هغه په قبضه کې امانت نه دي بلکې د هغه په ضمان او ذمه واري کې دي يعني د ضايع کېدلو په صورت کې يې ضمان پر لازميږي] فَلَا يَبْرَأُ إِلَّا بَعْدَ حَقِيقَةِ التَّسْلِيمِ نو ځکه له حقيقي ورسپارلو څخه بغير به خباز [له ضمان څخه] نه بري کيږي وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ الْخُبْزَ وَأَعْطَاهُ الْأَجْرَ او که د مستأجر خوښه وي نو له خباز څخه دي د ډوډيو ضمان واخلي او هغه ته دي أجرت ورکړي قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ طَبَّاخًا لِيَطْبُخَ لَهُ طَعَامًا لِلْوَلِيمَةِ فرمايي: او که څوک د وليمې [دعوت] د خوراک پخولو لپاره اشپز په أجرت ونيسي فَالْغَرْفُ عَلَيْهِ نو خوراک را ايستل [په کاسو کې اچول] پر هغه اشپز لازم دي اِعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ د عُرف په اعتبار کولو سره.

**اللغات:** ﴿خباز﴾ ډوډۍ پخونکى، نانواى (نانوايي)، ﴿قفيز﴾ دا پخوا يو ډول پيمانه وه چې په هغه کې به شيان اندازه کېدل، او په يوه او بل ښار کې به د هغې مقدار سره مختلف وو، د مصر د اوسني مقدار مطابق تقريبا هغه شپاړس کېلو کيږي، او شرعي قفيز دوولس صاعه کيږي، ﴿التنور﴾ تنور، تنلور، د ډوډۍ پخولو ځاى، ﴿إخراج﴾ د افعال مصدر دی: را ايستل (را باسل)، ﴿الجناية﴾ جرم، تعدى، قصور (کوتاهي)، ﴿يضمّن﴾ د تفعيل مضارع ده: ضامن ګرځول، ضمان (تاوان) څخني اخيستل، ﴿طباخ﴾ خوراک پخونکى، اشپز، ﴿الغَرْف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: کله چې د دې

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله قول المتون، كما ذكر في القدوري، ملتقى الأبحر، كنـز الدقائق وغيرها.

[القول الراجح ج:٢، ص:٢٢٢]

باب په صله کې طعام يعني خوراک او سالن ذکر سي نو معنىٰ يې ده: سالن (په کاچوغه) را ايستل، چې زمونږ په عامه اصطلاح کاسې ډکول ورته وايي، او که دې باب په صله کې اوبه ذکر سي نو معنىٰ يې ده: اوبه په لاس (په لپه کې) را اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د ډوډيو (روټيو) د پخولو لپاره نانوای په أجرت ونيسي، نو تر څو چې هغه له تنور څخه ټوله ډوډۍ صحيح سالمه را نه وباسي، تر هغه وخته د أجرت نه مستحق کيږي؛ ځکه چې له تنور څخه تر را ايستلو وروسته ډوډۍ د خوړلو قابل ګرځي او په همدغه وخت کې د خباز (نانوای) کار پای ته رسيږي، همدارنګه که تر را ايستلو مخکې ډوډۍ (ډوډياني) په تنور کې وسوځي يا د خباز د لاس څخه ايله سي، نو هغه ته به أجرت (مزدوري) نه ورکول کيږي؛ ځکه چې منفعت له ورسپارلو څخه مخکې هلاک سو، حال دا چې أجرت د منفعت اخيستلو بدل دی، لهذا تر څو چې هغه مستأجر ته صحيح سالم نه ورسيږي، تر هغه وخته به پر مستأجر بدل هم نه واجبيږي.

فإن أخرجه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که خباز له تنور څخه ډوډۍ را وباسي بيا په خپله هغه وسوځي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې خباز ته به خپل أجرت ورکول کيږي او پر هغه ضمان (تاوان) نه لازميږي؛ ځکه چې د ډوډيو په را ايستلو او د مستأجر په کور کې په ايښوولو سره خباز مستأجر ته ورسپارونکی وګرځېدی او د ډوډيو په سوځلو کې د هغه د عمل هيڅ دخل نسته همدارنګه ډوډۍ او د هغوی اوړه د خباز په قبضه کې امانت وي (او تاسو ته معلومه ده چې که امانت ضايع سي نو پر امين د هغه ضمان نه لازميږي)، نو ځکه خباز به نه ضامن کيږي. د دې په خلاف د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د خباز سره چې کوم څه وي هغه د ده په ذمه واري کې وي يعني که ضايع سي نو ضمان (تاوان) يې پر لازميږي، لهذا تر څو چې خباز کما حقهٗ ټوله ډوډۍ مستأجر ته حواله نه کړي، تر هغه وخته هغه له ضمان څخه نه بري کيږي او په داسې صورت کې مستأجر ته دوه اختيارات حاصليږي: (۱) يا له خباز څخه دې د خپل اوړو په برابر اوړه واخلي او د پخولو أجرت دې نه ورکوي، (۲) يا د پخولو أجرت دې ورکړي او له هغه څخه دې نوري پخې ډوډۍ واخلي (يا مثلاً ديوې ډوډۍ د سوځولو په صورت کې دې يوه بله پخه (سالمه) ډوډۍ ځني واخلي).

دويمه مسئله واضحه او آسانه ده.

# د خبنتو جوړونکی کله د اُجرت مستحق کیږي؟

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ إِنْسَانًا لِيَضْرِبَ لَهُ لِبْنًا فرمايي: او كه څوک يو انسان د خبنتو جوړولو لپاره په اُجرت [په مزدورۍ] ونيسي اسْتَحَقَّ الْأَجْرَ إِذَا أَقَامَهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو دا مزدور [هغه وخت] د اُجرت مستحق کیږي کله چي [د وچېدلو پر مهال] خبنتي ودروي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا[*]: لَا يَسْتَحِقُّهَا حَتَّى يُشَرِّجَهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د اُجرت نه مستحق کیږي تر دې چي [له وچېدلو څخه وروسته] خبنتي سره ووډي [يعني د صاحبينو په نېز هغه وخت د اُجرت مستحق کیږي کله چي خبنتي پوره وچي سي او مزدور هغوی يو پربل په ترتيب سره کښېږدي او سره جمع يې کړي] لِأَنَّ التَّشْرِيجَ مِنْ تَمَامِ عَمَلِهِ ځکه چي ووډل [يوځای سره ايښودل او جمع کول] د دغه مزدور د کار بشپړوالی دی [يعني د داسي مزدو کار هغه وخت پوره کیږي (خلاصيږي) کله چي تر وچېدلو وروسته ټوله خبنتي سره يوځای کړي] إِذْ لَا يُؤْمَنُ مِنَ الْفَسَادِ قَبْلَهُ ځکه چي تر هغه مخکي خبنتي له خرابېدلو څخه په امن [خوندي] نه وي فَصَارَ كَإِخْرَاجِ الْخُبْزِ مِنَ التَّنُّورِ نو دا له تنور څخه د ډوډۍ را ايستلو په څېر سو وَلِأَنَّ الْأَجِيرَ هُوَ الَّذِي يَتَوَلَّاهُ عُرْفًا او ځکه چي عرفاً همدا مزدور د دغه کار [يعني د خبنتو ووډلو] ذمه واري اخلي وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِيمَا لَمْ يَنُصَّ عَلَيْهِ او همدا عُرف معتبر دی په هغه [کار] کي چي د هغه په باره کي صراحت سوی نه وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْعَمَلَ قَدْ تَمَّ بِالْإِقَامَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [د دغه مزدور] کار د خبنتو په درولو سره پوره سو وَالتَّشْرِيجُ عَمَلٌ زَائِدٌ او ووډل [ترتيبا سره ايښول او جمع کول] يو اضافي کار دی كَالنَّقْلِ لکه [د خبنتو] نقل کول [چي يو اضافي (زياتکي) کار دی] أَلَا تَرَى أَنَّهُ يُنْتَفَعُ بِهِ قَبْلَ التَّشْرِيجِ بِالنَّقْلِ إِلَى مَوْضِعِ الْعَمَلِ آيا ته نه ګورې! چي تر ووډلو مخکي د کار ځای ته په نقل

---

[*] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما استحسان والاستحسان مقدم على القياس، كذا ذكر في البدائع (ج:۴، ص:۲۰۵)، والهندية (ج:۴، ص:۴۳۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲۵]

کولو سره هم له دغه خښتو څخه نفع اخيستل کېدای سي بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْإِقَامَةِ په خلاف [د خښتو] تر درولو مخکي لِأَنَّهُ طِينٌ مُنْتَشِرٌ ځکه چي هغوی [تر درولو مخکي] خوروېدونکې خټه وي وَبِخِلَافِ الْخُبْزِ او په خلاف د ډوډۍ لِأَنَّهُ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهِ قَبْلَ الْإِخْرَاجِ ځکه چي هغه له تنور څخه تر را ايستلو مخکي د انتفاع قابل نه وي [يعني په دې وخت کي له هغه څخه نفع نه سي اخيستل کېدای].

**اللغات:** ﴿يضرب﴾ د دې باب څو معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: خښتي وهل، په غالب کي جوړول. ﴿لِبْن﴾ او لَبِن جمع ده، واحد يې لِبْنَةٌ او لَبِنَةٌ راځي: کچه خښتي، ﴿يشرج﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، شَرَّجَ يُشَرِّجُ تَشْرِيْجًا: خواره شيان يو د بل سره ضمول (سره جمع کول)، ووړول، په ترتيب سره ايښوول، ﴿لا يؤمن﴾ د سمع له بابه د نفي مجهول صيغه ده: په امن کېدل، خوندي کېدل، محفوظه کېدل، ﴿يتولاه﴾ يَتَوَلّٰى، په آخر کي يې ضمير د غائب دی، د تفعّل مضارع ده: ذمه وار کېدل، ديو کار ذمه واري (په خپله غاړه) اخيستل، ﴿لم ينص﴾ د تفعيل له بابه د جحد صيغه ده: وضاحت او صراحت کول، په ښکاره لفظو کي ذکر کول، ﴿طين﴾ خټي.

**تشريح: مسئله:** دا ده که څوک د خښتو (يا مثلاً د بلاکونو) د جوړولو لپاره مزدور ونيسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز داسي مزدور هغه وخت د أجرت (مزدورۍ) مستحق کيږي کله چي خښتي له غالب څخه را وباسي او ويې ودروي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز محض په درولو سره هغه د أجرت نه مستحق کيږي، بلکي تر درولو (او وچېدلو) وروسته چي کله هغوی ووړي يعني په ترتيب سره يې يو ځای کښېږدي، نو بيا د أجرت مستحق کيږي؛ ځکه چي (تر وچېدلو وروسته) خښتي ووړل هم د داسي مزدور کار دی او له دغه کار څخه مخکي د خښتو د خرابېدلو او خټه کېدلو امکان پاته وي، نو ځکه څرنګه چي له تنور څخه د ډوډيو تر را ايستلو مخکي د خباز (نانوای) کار نه پوره کيږي، همداسي به د خښتو تر ووړلو او ترتيبا ايښوولو او جمع کولو مخکي د دغه مزدور کار هم نه پوره کيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دا دی چي په عُرف عام کي هم داسي مزدور د خښتو د ووړلو ذمه واري اخلي يعني ترتيبا د خښتو ايښوول او جمع کول د هغه پر ذمه لازم وي، او څرنګه چي په دې سلسله کي هيڅ صريح نص نسته، نو ځکه فيصله به د عُرف مطابق کيږي او د همدې عُرف اعتبار به کيږي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د خبنتو جوړېدلو کار له غالب څخه په رايستلو او درولو سره پوره کيږي؛ ځکه چي په همدې حالت کي هغه خبنتي د نفع اخيستلو قابل گرځي او د مستأجر مقصود منفعت حاصليږي، او تاسو ته معلومه ده چي أجرت د مقصود منفعت په حاصلولو سره واجبيږي، نو ځکه له غالب څخه د خبنتو را ايستلو او درولو وروسته به مزدور د خپل أجرت مستحق گرځي. پاته سوه د تشريح مسئله، نو تشريح يو زائد عمل دی او د زائد عمل پر اداء کولو او پوره کولو د أجرت استحقاق نه موقوف کيږي.

د دې په خلاف له غالب څخه د خبنتو تر را ايستلو او درولو مخکي هغوی د خورېدونکو (منتشره) ختو حيثيت لري او په دغه حالت کي د هغوی د خرابېدلو او ضايع کېدلو قوي خطره وي، همدارنگه ډوډۍ له تنور څخه تر را ايستلو مخکي د انتفاع قابل نه وي، لهذا د انتفاع قابل شی او نا قابلِ انتفاع شي په حکم کي سره برابرول صحيح نه دي (لېکن راجح قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی؛ ځکه چي هغه استحسان دی).

## کوم کاريگر (مزدور) د خپل أجرت اخيستلو په غرض عين شی را گرځولای سي؟

قَالَ: وَكُلُّ صَانِعٍ لِعَمَلِهِ أَثَرٌ فِي الْعَيْنِ كَالْقَصَّارِ وَالصَّبَّاغِ فرمايي: او هر هغه کاريگر چي په [أجرت والا] شي کي د هغه د کار اثر موجود وي لکه دوبي او رنگرېز [ځکه چي د دوی د کار اثر په کپړه کي پاتيږي] فَلَهُ أَنْ يَحْبِسَ الْعَيْنَ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْأَجْرَ نو هغه ته دا اختيار سته چي هغه شی [کپړه] راوگرځوي تر دې چي خپل أجرت ترلاسه کړي لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ وَصْفٌ قَائِمٌ فِي الثَّوْبِ ځکه چي معقود عليه داسي وصف دی کوم چي په کپړه کي موجود [پاته] دی فَلَهُ حَقُّ الْحَبْسِ لِاسْتِيفَاءِ الْبَدَلِ نو ځکه د بدل [أجرت] ترلاسه کولو لپاره به هغه ته [د کپړې] راگرځولو حق وي كَمَا فِي الْمَبِيعِ لکه څرنگه چي په مبيع کي کيږي وَلَوْ حَبَسَهُ فَضَاعَ فِي يَدِهِ او که چيري کاريگر عين شی [کپړه] راوگرځوي بيا هغه د ده په قبضه کي ضايع سي لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر کاريگر ضمان نسته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِي الْحَبْسِ ځکه چي هغه په راگرځولو کي تجاوز کونکی نه دی فَبَقِيَ أَمَانَةً كَمَا كَانَ عِنْدَهُ نو [تر راگرځولو وروسته] هغه د ده سره امانت پاته سو لکه څرنگه چي [تر راگرځولو مخکي] د ده سره امانت وو وَلَا أَجْرَ لَهُ او د هغه لپاره أجرت نسته [يعني د خپل کار أجرت (مزدوري) به نه

ورکول کیږي؛ لِهَلَاكِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ ځکه چي معقود عليه له ورسپارلو څخه مخکي ضايع سوى دى وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ*: الْعَيْنُ كَانَتْ مَضْمُونَةً قَبْلَ الْحَبْسِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا شى [کپړه] تر راګرځولو مخکي ضمان والا وو [يعني په ضايع کېدلو سره يې د دوى په نيز ضمان (تاوان) لازميدى] فَكَذَا بَعْدَهُ نو همداسي به تر راګرځولو وروسته هم هغه ضمان والا وي لَكِنَّهُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ غَيْرَ مَعْمُولٍ لېکن مالک ته اختيار دى که وغواړي نو کاريګر دي دنا تيار کړى سوي شي [کپړې] د قيمت ضامن وګرځوي [يعني له هغه څخه دي دنا رنګول سوي او نا مينځل سوي کپړې د قيمت ضمان (تاوان) واخلي] وَلَا أَجْرَ لَهُ او اُجرت دي نه ورکوي وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ مَعْمُولًا وَلَهُ الْأَجْرُ او که وغواړي نو هغه دي د تيار کړى سوي شي [کپړې] ضامن ګرځوي او اُجرت دي ورکړي وَسَنُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او وروسته به موږ انشاء الله تعالىٰ د دې بيان وکړو.

**اللغات:** ﴿صانع﴾ د فتح اسم فاعل دى: کاريګر، په لاس سره کارکونکى، کسبګر، ﴿القصار﴾ دوبي، کالي مينځونکى، ﴿الصباغ﴾ د کپړې رنګرېز، ټوکر رنګونکى، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دى: اخيستل، ترلاسه کول، ﴿يحبس﴾ د ضرب مضارع ده، حَبَسَ يَحْبِسُ حَبْسًا: بندول، منع کول، راګرځول، ﴿ضاع﴾ د ضرب ماضي ده: ضايع کېدل، تلف کېدل، ﴿متعد﴾ د تفعّل اسم فاعل دى: تعدىٰ کونکى، متجاوز، نا حقه تصرفِ کونکى.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي کاريګر (مزدور) چي په کوم شي کي کار کوي که چيري په هغه شي کي د ده د کار اثر باقي پاتيږي لکه د رنګرېز رنګول چي په ښکاره توګه په کپړه کي موجود پاتيږي يا لکه دوبي چي د کپړې او کاليو په پرېولو کي يو شى استعمال کړي او استري يې کړي نو د هغه د کار اثر په کپړه کي پاتيږي، نو داسي کاريګر ته شريعت دا اختيار ورکړى دى چي تر څو هغه ته د خپل کار ټوله اُجرت (مزدوري) نه ورکول سي، تر هغه وخته کاريګر هغه شى د خپل ځان سره راګرځولاى سي؛ ځکه چي دلته معقود عليه يو وصف دى او دغه وصف په هغه شي (کپړه) کي

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۵، ص:۱۲)، رسائل ابن عابدين (ج:۱، ص:۴۴). قال المفتي غلام قادر النعماني: لكن العُرف يؤيد قولهما، فالعمل بقولهما أولى في هذا الزمان، لأن كثيراً من الصانعين الخداعون، كما رأينا في ديارنا، والعمل على قول الإمام مفقود في هذا الزمان، لأن العين هو مضمون في يد الصانع، مثلاً في خياطة الثوب مضمون هي يد الخياط، فإن هلك في يد الخياط، فهو ضامن كما هو ظاهر من العادة والعرف، وللعرف أثر في الأحكام كما هو ظاهر من بيان العلّامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله...إلخ. [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲۶]

موجود دی، نو ځکه کاریګر ته به دا حق او اختیار وي چې د بدل (اجرت) اخیستلو په غرض هغه شی راوګرځوي، لکه څرنګه چې بائع ته دا اختیار سته چې د ثمن اخیستلو په غرض له مشتري څخه مبیع راوګرځوي، همداسې به دغه کاریګر ته هم د شي راګرځولو حق او اختیار حاصل وي، د دې لپاره چې مساوات او برابري ثابته سي. او د دغه راګرځولو په دوران کي که هغه شی د کاریګر په قبضه کي هلاک سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز پر کاریګر د هغه ضمان (تاوان) نه لازمیږي؛ ځکه چې هغه خو د خپل حق تر لاسه کولو لپاره هغه شی راګرځولی دی او د تجاوز او تعدی په توګه یې نه دی راګرځولی، لهذا څرنګه چې تر راګرځولو مخکې هغه شی د کاریګر سره امانت وو، همداسې به تر راګرځولو وروسته هم هغه د کاریګر سره امانت وي، او امانت که بغیر له تعدی هلاک سي، نو نه مضمون کیږي (یعني ضمان یې نه لازمیږي).

د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز کاریګر ضامن کیږي؛ ځکه چې دا شی تر راګرځولو مخکې (قبل الحبس) هم د کاریګر په قبضه کي مضمون وو، نو ځکه تر راګرځولو وروسته به هم هغه مضمون پاتیږي خو مالک ته دوه اختیارات حاصلیږي: ① یا دې له کاریګر څخه د نا رنګول سوي او نا مینځل سوي کپړې (غیر مصبوغ، غیر مقصور ثوب) د قیمت ضمان واخلي او هغه ته دې اُجرت نه ورکوي، ② یا هغه ته دې اُجرت ورکړي او له هغه څخه دې د خپل کپړې په څېر رنګول سوې او مینځل سوې کپړه واخلي. په "باب ضمان الأجیر" کي به انشاء الله د دې نور تفصیل بیان سي.

## کوم کاریګر یې نه سي راګرځولای؟

قَالَ: وَكُلُّ صَانِعٍ لَيْسَ لِعَمَلِهِ أَثَرٌ فِي الْعَيْنِ او هر هغه کاریګر چې د هغه د کار اثر په شي کي موجود نه وي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَ الْعَيْنَ لِلْأَجْرِ نو هغه ته دا اختیار نسته چې د اُجرت [تر لاسه کولو] لپاره شی را وګرځوي كَالْحَمَّالِ وَالْمَلَّاحِ لکه بار وړونکی [پلندي] او کښتۍ چلونکی لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ نَفْسُ الْعَمَلِ ځکه چې معقود علیه خودي عمل دی وَهُوَ غَيْرُ قَائِمٍ فِي الْعَيْنِ او هغه په شي کي موجود نه دی فَلَا يُتَصَوَّرُ حَبْسُهُ نو د هغه راګرځول متصور [او ممکن] نه دي فَلَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الْحَبْسِ نو ځکه هغه ته به د راګرځولو ولایت [اختیار] نه وي وَغَسْلُ الثَّوْبِ نَظِيرُ الْحَمْلِ او د جامې پرېولل د بار پورته کولو په څېر دي وَهٰذَا بِخِلَافِ الْآبِقِ او دا حکم د آبق [تښتېدونکي غلام] په خلاف دی حَيْثُ يَكُونُ لِلرَّادِّ حَقُّ

حَبْسِهِ لِاسْتِيفَاءِ الْجُعْلِ ځکه [د آبق] واپس راوستونکي کس ته د خپل حق الزحمه [مزدورئ] ترلاسه کولو لپاره د هغه د راګرځولو حق سته وَلَا أَثَرَ لِعَمَلِهِ حال دا چې [په آبق کې] د واپس راوستونکی کس د عمل اثر نسته لِأَنَّهُ كَانَ عَلَى شَرَفِ الْهَلَاكِ وَقَدْ أَحْيَاهُ ځکه چې آبق هلاکېدلو ته نژدې وو او ده هغه ژوندی کړی [وبې ژغوری] فَكَأَنَّهُ بَاعَهُ مِنْهُ نو ګواکې هغه دغه آبق پر مالک خرڅ کړی فَلَهُ حَقُّ الْحَبْسِ نو ځکه هغه ته به د راګرځولو حق وي وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَا مَذْهَبُ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ او دا کوم څه چې موږ ذکر کړه زموږ د دریو علماؤ مذهب دی وَقَالَ زُفَرُ: لَيْسَ لَهُ حَقُّ الْحَبْسِ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو کې کاريګر ته د راګرځولو حق نسته لِأَنَّهُ وَقَعَ التَّسْلِيمُ بِاتِّصَالِ الْمَبِيعِ بِمِلْكِهِ ځکه چې ورسپارل واقع سوه د مستأجر د ملکيت سره د مبيع [معقود عليه] په متصل کېدلو سره فَيَسْقُطُ حَقُّ الْحَبْسِ نو ځکه د راګرځولو حق به ساقطيږي وَلَنَا: أَنَّ الِاتِّصَالَ بِالْمَحَلِّ ضَرُورَةُ إِقَامَةِ الْعَمَلِ زموږ دليل دا دی: چې د محل [يعني د مستأجر د ملکيت] سره [د کاريګر د کار] متصل کېدل د کار د صحيح کولو د ضرورت په وجه دي فَلَمْ يَكُنْ هُوَ رَاضِيًا بِهِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ تَسْلِيمٌ نو کاريګر په هغه سره په دې معنیٰ راضي نه سو چې هغه دي ورسپارل وي [يعني په دې راضي نه دی چې هغه دي ورسپارل وشمېرل سي] فَلَا يَسْقُطُ حَقُّ الْحَبْسِ نو ځکه [د هغه] د راګرځولو حق به نه ساقطيږي كَمَا إِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِي بِغَيْرِ رِضَاءِ الْبَائِعِ لکه کله چې مشتري د بائع له رضا څخه بغير پر مبيع قبضه وکړي [نو بائع ته د راګرځولو حق حاصليږي].

**اللغات**: ﴿حَمَّال﴾ بار وړونکی (پلنده پورته کونکی)، پلنډي، غوري، ﴿مَلَّاح﴾ کښتۍ چلونکی (کښتۍ وان)، ﴿الآبق﴾ تښتېدونکی غلام، هغه غلام چې تښتېدل د هغه عادت وي، ﴿شرف الهلاک﴾ د هلاکت پر څنډه (د هلاکېدلو پر ژۍ)، يعني هلاکت ته نژدې.

**تشريح**: په دې عبارت کې ذکر سوې مسئله د مخکنۍ مسئلې برعکس ده، يعني که کاريګر داسې کار وکړي چې د هغه اثر په شي کې موجود نه پاتيږي، نو دغه کاريګر ته دا حق او اختيار نسته چې د أجرت اخيستلو لپاره هغه شی راوګرځوي، لکه بار وړونکی او کښتۍ چلونکی چې کوم کار کوي، د هغه اثر موجود نه پاتيږي بلکې تر کار ختمېدلو وروسته سمدستي د دوی د کار اثر ختميږي، نو

ځکه دوی ته به د مبيع راګرځولو حق نه وي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي محض کپړه پرېولل د بار پورته کولو او وړلو په څېر دي، يعني که چيري دوبي صرف کپړه پرېولي او هيڅ شی استعمال نه کړي او هغه استري نه کړي، نو په دې صورت کي هغه د خپل أجرت اخيستلو په غرض کپړه نه سي راګرځولای.

وهذا بخلاف الآبق إلخ: دا ديو سوال جواب دی. سوال دا دی چي که ديو مالک غلام وتښتيږي او بل څوک مثلاً خالد هغه ونيسي او مالک ته يې واپس راولي نو هغه ته دا اختيار سته چي د خپل أجرت او حق الزحمه ترلاسه کولو په غرض هغه غلام له مالک څخه راوګرځوي، حال دا چي د هغه د کار (يعني د واپس راوستلو) اثر په غلام کي موجود نه پاتيږي.

جواب يې دا دی چي واپس راوستونکي (خالد) ته ځکه د راګرځولو حق حاصليږي چي دغه غلام ضايع کېدلو او هلاکېدلو ته نژدې وو، او واپس راوستونکي هغه (په واپس راوستلو سره) وژغوری او ګواکي هغه يې ژوندی کړی (ځکه له بنده څخه چي کومه احياء متصور کيږي، هغه صرف همدا ده چي له هلاکته يې وژغوري)، نو دا داسي سوه لکه هغه چي دغه غلام پر مالک خرڅ کړی، لهذا څرنګه چي بائع (خرڅونکي) ته د ثمن اخيستلو په غرض د مبيع راګرځولو حق سته، همداسي به دغه واپس راوستونکي کس ته هم د أجرت اخيستلو په غرض د غلام راګرځولو حق حاصل وي.

وهذا الذي ذكرناه إلخ: کومه قاعدهٔ کليه چي څه مخکي ذکر سوه چي که د کاريګر د کار اثر په شي کي موجود پاتيږي، نو هغه د خپل أجرت (مزدورۍ) اخيستلو په غرض هغه شی راګرځولای سي، کنې هغه نه سي راګرځولای، دا زموږ د دريو علماؤ (امام صاحب، امام ابو يوسف او امام محمد) رَحِمَهُمُ الله قول او مسلک دی، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي برابره ده په شي کي د کاريګر د عمل اثر پاتيږي، که نه، په دواړو صورتونو کي هغه ته د شي راګرځولو حق نه حاصليږي؛ ځکه کله چي کاريګر په هغه شي کي کار وکړي، نو په دې سره مستأجر ته ورسپارل ثابت سي (يعني ګواکي هغه مستأجر ته خپل شی وسپاری)، مثلاً کله چي رنګرېز د مستأجر کپړه څه ورنګوي او د رنګرېز رنګ د هغه د کپړې سره متصل سي، نو مستأجر ته هغه کپړه وسپارل سوه، او تاسو ته معلومه ده چي تر ورسپارلو وروسته د راګرځولو حق نه پاتيږي.

ولنا أن الاتصال إلخ: زموږ دليل دا دی چي د محل سره د هغه متصل کېدل خو فقط د کار د صحيح ګرځولو د ضرورت په وجه دي، نو کاريګر په دغه متصل کېدلو سره په دې معنیٰ راضي نه دی چي دا ورسپارل دي، نو ځکه به د هغه د راګرځولو حق نه ساقطيږي، لکه مشتري چي کله د بائع له رضا

شخه بغير پر مبيع قبضه وکړي، نو بائع ته دا اختيار حاصليږي چي هغه واپس ځني واخلي او د ثمن اخيستلو تر وخته پوري يې را وګرځوي. لنډه دا چي که رنګرېز د مستأجر کپړه ورنګوي او د هغې سره خپل رنګ ولګوي نو هغه يې په دې مقصد سره نه رنګوي چي زه د کپړې په ذريعه دا رنګ مستأجر ته وسپارم، بلکي د دې لپاره يې رنګوي چي دئ د دغه کار دأجرت مستحق سي او ده ته أجرت (مزدوري) حاصله سي، لهذا دأجرت په حق کي ورسپارل لازم نه سوه. (اشرف الهدايه)

## پر کاريګر د کار د شرط لګولو حکم

قَالَ: وَإِذَا شَرَطَ عَلَى الصَّانِعِ أَنْ يَعْمَلَ بِنَفْسِهِ فرمايي: او که چيري مستأجر پر کاريګر دا شرط ولګوي چي هغه به په خپله کار کوي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَعْمِلَ غَيْرَهُ نو هغه ته دا اختيار نسته چي په بل چا کار وکړي لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ اِتِّصَالُ الْعَمَلِ فِي مَحَلٍّ بِعَيْنِهِ ځکه چي معقود عليه د عمل متصل کېدل دي د خاص محل [کاريګر] سره [يعني دلته معقود عليه دا دی چي کار به د مُتعيّن سوي محل (کاريګر) سره متصل وي] فَيَسْتَحِقُّ عَيْنَهُ نو ځکه مستأجر خاص د همده مستحق کيږي كَالْمَنْفَعَةِ فِي مَحَلٍّ بِعَيْنِهِ لکه د خاص [متعيّن سوي] محل سره چي منفعت متعلق کيږي وَإِنْ أَطْلَقَ لَهُ الْعَمَلَ او که مستأجر د کاريګر [صانع] لپاره کار مطلق کړي [يعني پر هغه د کار کولو شرط نه ولګوي] فَلَهُ أَنْ يَسْتَأْجِرَ مَنْ يَعْمَلُهُ نو کاريګر ته دا اختيار سته چي داسي څوک په أجرت ونيسي چي هغه د ده کار وکړي [يعني په دې صورت کي هغه په بل چا کار کولای سي] لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ عَمَلٌ فِي ذِمَّتِهِ ځکه پر کاريګر [صرف] د عمل پوره کول لازم کړی سوي دي [يا ترجمه دا چي: د کاريګر پر غاړه صرف د کار استحقاق دی] وَيُمْكِنُ إِيفَاؤُهُ بِنَفْسِهِ وَبِالِاسْتِعَانَةِ بِغَيْرِهِ او د کاريګر لپاره په خپله هم د هغه پوره کول ممکن دي او له بل چا شخه په مرسته غوښتلو سره هم [د هغه پوره کول ممکن دي] بِمَنْزِلَةِ إِيفَاءِ الدَّيْنِ د قرض اداء کولو په څېر.

**اللغات**: ﴿يستعمل﴾ د استفعال مضارع ده: مستعملول، له بل چا څخه کار اخيستل، ﴿محل بعينه﴾ خاص هغه ځای، مُتعيّن ځای، ﴿ايفاء﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول،

﴿جُعْل﴾ ما يجعل على العمل من اجر، هغه أجرت او مزدوري کوم چي د يو کار په عوض کي ټاکل کيږي، حق الزحمه. ﴿الاستعانة﴾ د استفعال مصدر دی: مرسته او کومک غوښتل (په بل چا خپل کار کول).

**تشريح**: صورت د مسئلې خو ښکاره دی چي که مستأجر دا شرط لګولی وي چي کاريګر او مزدور به په خپله زما کار کوي، نو کاريګر ته دا اختيار نسته چي د هغه کار په بل چا وکړي؛ ځکه دلته چي پر کوم شي عقد سوی دی هغه دا دی چي کار به د يو خاص محل (کاريګر) سره متصل وي يعني معقود عليه په خپله د کاريګر فعل دی (چي کاريګر به په خپله زما کار کوي)، نو ځکه هغه به د دې مستحق وي. لکه کله چي مستأجر يو څاروی خاص د سپرتيا لپاره په کرايه ونيسي، نو هغه د همدغه خاص منفعت (سپرتيا) مستحق کيږي، همدا وجه ده که چيري مؤجر (مالک) هغه ته داسي څاروی ورکړئ کوم چي صرف بار وړلای سي او د سپرتيا منفعت حتى اخيستل کېدای نه سي، نو پر مستأجر هيڅ شی نه لازميږي، ځکه چي مستأجر د سپرتيا مستحق سوی دی، لنډه دا چي څرنګه منفعت مخصوص کول (خاص ګرځول) صحيح دي، همداسي د عمل (کار) مخصوص کول هم صحيح دي.

وإن أطلق إلخ: ها! که چيري مستأجر مطلق معامله وکړي او د کاريګر د کار کولو شرط نه ولګوي (چي خاص هغه به زما کار کوي)، نو په دې صورت کي کاريګر ته اختيار دی، په خپله هم کار کولای سي او په بل کاريګر يې هم کولای سي؛ ځکه چي پر کاريګر فقط د کار پوره کول او سر ته رسول لازم دي، او کار چي څرنګه هغه په خپله کولای سي، همداسي يې په بل چا هم کولای سي، لکه څرنګه چي د قرض اداء کول هم داسي دي چي که مقروض (پور وړی) په خپله هغه اداء کړي يا يې د خپل وکيل په ذريعه اداء کړي (يا يې بل څوک د هغه له طرفه تبرعاً اداء کړي)، په هر صورت کي قرض اداء کيږي.



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ اِسْتِحْقَاقِ بَعْضِ الْأَجْرِ)

(دا) فصل (د أجرت د څه حصې د مستحق کېدلو په بيان کې) دی

## د جزئي عمل د أجرت بيان

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا لِيَذْهَبَ إِلَى الْبَصْرَةِ فَيَجِيْءَ بِعِيَالِهِ فرمايي: او که څوک يو سړی د دې لپاره په أجرت ونيسي چې هغه بصرې ته ولاړ سي او د ده عيال راولي فَذَهَبَ وَوَجَدَ بَعْضُهُمْ قَدْ مَاتَ نو هغه [اجير] بصرې ته ولاړ سي او هلته د ده [مستأجر] بعضي عيال په داسي حال کي ومومندي چې هغوی مړه سوي وي فَجَاءَ بِمَنْ بَقِيَ نو هغه باقي مانده عيال راولي فَلَهُ الْأَجْرُ بِحِسَابِهِ نو د هغه لپاره په همغه حساب سره أجرت دی [يعني دغه اجير ته به د هغه باقي مانده عيال په حساب سره أجرت (مزدوري) ورکول کيږي] لِأَنَّهُ أَوْفَى بَعْضَ الْمَعْقُوْدِ عَلَيْهِ ځکه چې دغه اجير د معقود عليه بعضي حصه پوره کړې ده فَيَسْتَحِقُّ الْعِوَضَ بِقَدْرِهِ نو ځکه دئ به د هغه په اندازه د بدل مستحق وي وَمُرَادُهُ إِذَا كَانُوْا مَعْلُوْمِيْنَ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد دا دی چې کله عيال معلوم وي [يعني شمېر يې معلوم او مُتعيّن وي] وَإِنِ اسْتَأْجَرَهُ لِيَذْهَبَ بِكِتَابِهِ إِلَى فُلَانٍ بِالْبَصْرَةِ وَيَجِيْءَ بِجَوَابِهِ او که د دې لپاره يې په أجرت ونيسي چې هغه د ده خط په بصره کي فلانکي ته يوسي او د هغه جواب راوړي فَذَهَبَ فَوَجَدَ فُلَانًا مَيِّتًا فَرَدَّهُ نو هغه بصرې ته ولاړ سي او فلانکی مړ ومومندي نو خط واپس راوړي فَلَا أَجْرَ لَهُ نو د هغه لپاره أجرت نسته وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ●: لَهُ الْأَجْرُ فِي

---

● القول الراجح: هو تطبيق بين القولين؛ لأن قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله قول المتون، والعرف يؤيد قول محمد رَحِمَهُ الله. قال المفتي علام قادر النعماني: إن كان المعقود عليه نقل الكتاب والرجوع بالجواب، فالعمل على قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، وإن كان المعقود عليه هو الذهاب والرجوع، فالعمل على قول محمد رَحِمَهُ الله. [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲۷]

الذَّهَابِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لپاره د تللو أجرت سته [يعني بصرې ته د تللو أجرت به ورکول کيږي] لِأَنَّهُ أَوْفَى بَعْضَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَهُوَ قَطْعُ الْمَسَافَةِ ځکه چي هغه د معقود عليه بعضي حصه پوره کړې ده او هغه [د تللو] مسافه پرېکول دي وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَجْرَ مُقَابَلٌ بِهِ او دا [حکم] ځکه دی چي أجرت د مسافه پرېکولو په مقابله کي دي لِمَا فِيهِ مِنَ الْمَشَقَّةِ دُونَ حَمْلِ الْكِتَابِ ځکه په مسافه پرېکولو [سفر کولو] کي مشقت دی، نه د خط په وړلو کي [يعني د خط په وړلو کي هيڅ مشقت او ستونزه نسته] لِخِفَّةِ مُؤْنَتِهِ ځکه چي د هغه بوج [او وزن] سپک دی وَلَهُمَا: أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ نَقْلُ الْكِتَابِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي معقود عليه د خط نقل کول [وړل راوړل] دي لِأَنَّهُ هُوَ الْمَقْصُودُ ځکه چي [په دغه اجاره کي] همدا مقصود دي أَوْ وَسِيلَةٌ إِلَيْهِ يا د مقصود وسيله ده وَهُوَ الْعِلْمُ بِمَا فِي الْكِتَابِ او مقصود په هغه څه خبرېدل دي کوم چي په خط کي دي لٰكِنَّ الْحُكْمَ مُعَلَّقٌ بِهِ لېکن [د أجرت واجبېدلو] حکم د خط نقل کولو سره متعلق دی وَقَدْ نَقَضَهُ حال دا چي اجير [د خط] نقل کول مات کړي دي [ځکه چي هغه مستأجر ته خط واپس کړی دی] فَيَسْقُطُ الْأَجْرُ نو ځکه به أجرت ساقطيږي كَمَا فِي الطَّعَامِ لکه څرنګه چي د غلې د نقل کولو په مسئله کي دي وَهِيَ الْمَسْأَلَةُ الَّتِي تَلِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةَ او هغه مسئله د دغه مسئلې سره متصل ده [يعني تر دغه خط والا مسئلې وروسته سمدستي هغه مسئله ده]

وَإِنْ تَرَكَ الْكِتَابَ فِي ذٰلِكَ الْمَكَانِ وَعَادَ اوکه اجير په هغه ځای کي خط پرېږدي او واپس راسي يَسْتَحِقُّ الْأَجْرَ بِالذَّهَابِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق هغه د تللو د أجرت مستحق کيږي لِأَنَّ الْحَمْلَ لَمْ يَنْتَقِضْ ځکه چي [په دې صورت کي] د خط وړل مات سوي نه دي وَإِنِ اسْتَأْجَرَهُ لِيَذْهَبَ بِطَعَامٍ إِلَى فُلَانٍ بِالْبَصْرَةِ او که د دې لپاره يې په أجرت ونيسي چي هغه په بصره کي فلانکي ته غله يووسي فَذَهَبَ فَوَجَدَ فُلَانًا مَيِّتًا فَرَدَّهُ نو هغه ولاړ سي او فلانکی مړ ومومي او غله واپس راوړي فَلَا أَجْرَ لَهُ فِي قَوْلِهِمْ

جَمِيعًا نو د ټولو د قول مطابق هغه لره أجرت نسته لِأَنَّهُ نَقَضَ تَسْلِيمَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَهُوَ حَمْلُ الطَّعَامِ ځکه چي [دلته] اجير د معقود عليه ورسپارل مات کړي دي او هغه د غلې وړل دي بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول د خط د مسئلې لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ هُنَاكَ قَطْعُ الْمَسَافَةِ ځکه چي هلته معقود عليه مسافه پرېکول دي عَلَى مَا مَرَّ لکه [څه مخکي] چي تېر سوه.

**اللغات**: ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په أجرت (په کرايه) نيول، په مزدوري نيول. ﴿عيال﴾ کورنۍ والا، اهل وعيال. ﴿أوفى﴾ د افعال ماضي ده: پوره اداء کول. ﴿مشقة﴾ تکليف، محنت، ستونزه. ﴿مؤنة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغه څخه ځيني دا دي: بوج، مشقت، ذمه واري، ﴿تَلِيَ﴾ د ضرب مضارع ده: يو شی د بل شي سره متصل کېدل (ورپسې کېدل)، يو ځای کېدل. ﴿طعام﴾ کله چي دا لفظ مطلق ذکر سي نو معنیٰ يې ده: غله (يعني غنم، اوربشي او داسي نور)، او د اهل حجاز او عراق په نيز به خاص غنمو ته ويل کېده. ﴿نقض﴾ د نصر ماضي ده: ماتول، ختمول. ﴿قطع المسافة﴾ مسافه پرېکول (تاکل سوې فاصله ګټنول).

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که ادريس و زيد (اجير) ته مثلاً څلور سوه روپۍ أجرت ورکړي او هغه ته ووايي چي "په بصره کي زما څلور ځامن دي، ته! هلته ولاړ سه او هغوی له بصرې څخه دلته راوله!"، او زيد روان سي او بصرې ته ورسيږي نو که ګوري د ادريس له ځامنو څخه دوه مړه سوي وي او زيد ما بقي دوه ځامن هغه ته راولي، نو په دې صورت کي به زيد ته فقط د همدې ما بقي دوو ځامنو أجرت يعني دوه سوه روپۍ ورکول کيږي؛ ځکه چي مستأجر (ادريس) صرف د هغه په اندازه منافع حاصل کړي دي (يعني هغه ته صرف دوه ځامن راوستل سوي دي)، نو ځکه أجرت به هم د هغه مطابق واجبيږي. لېکن دا حکم تر هغه وخته پوري دی کله چي د مستأجر د ځامنو (کورنۍ والا) شمېر معلوم وي، او که د هغوی شمېر معلوم نه وي يا مستأجر دا وضاحت نه وي کړی او د هغو د شمېر (عدد رؤس) مطابق يې د هغوی عوض نه وي مقرر کړی، نو اجير ته به مطلقاً ټوله أجرت ورکول کيږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که ادريس وزيد ته د دوه سوه روپو په عوض کي دا کار وسپاري چي هغه په بصره کي خالد ته د ده (ادريس) خط ورسوي او د خط جواب راوړي، نو زيد د ادريس خط را واخلي بصرې ته روان سي او کله چي بصرې ته ورسيږي نو معلومه سي چي مکتوب إليه يعني خالد مړ سوی دی او زيد بير ته هغه خط ادريس ته واپس کړي، نو په دې صورت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چي زيد ته به هيڅ (لږ غوندي هم) أجرت نه ورکول کيږي، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي هغه ته به د تللو أجرت ورکول کيږي؛ ځکه چي بصرې ته په تللو او د دومره مسافه په پرېکولو سره هغه د معقود عليه بعضې حصه اداء کړې ده، او څرنګه چي أجرت د همدې مسافه پرېکولو مقابل او بدل دی، ځکه چي صرف په همدې کي مشقت او زحمت پرېوځي، لهذا څومره مقدار چي ده مشقت زغملی وي، د هغه مطابق به ده ته أجرت هم ورکول کيږي.

(۳)... که ادريس د دې لپاره زيد په أجرت ونيسي چي په بصره کي خالد ته غنم ورسوي، لېکن کله چي زيد هلته غنم ورسوي، نو عمر مړ سوی وي او زيد هغه غنم ادريس ته واپس راوړي، نو د امام محمد او شيخينو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نيز حکم دا دی چي هغه ته به أجرت نه ورکول کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د هر يوه په نيز معقود عليه او اصل مقصود غنم رسول دي، حال دا چي اجير (زيد) هغه واپس راوړي دي، نو معقود عليه په هيڅ مقدار سره پوره سو، نو ځکه أجرت به هم په هيڅ مقدار سره نه واجبيږي، او د خط والا په مسئله کي هم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز اصل مقصود د خط رسول دي لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله په هغه صورت کي مسافه پرېکول (قطعُ المسافه) اصل مقصود ګرځوي، نو په همدې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله هلته اجير د تللو د أجرت مستحق ګرځوي او شيخين رَحِمَهُمَا الله هغه د څه غوندي أجرت هم مستحق نه ګڼي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ مَا يَجُوْزُ مِنَ الْإِجَارَةِ وَمَا يَكُوْنُ خِلَافًا فِيْهَا

(دا) باب د هغه څه (په بيان کې) دی کوم چې له اجارې څخه جائز دی او کوم چې په اجاره کې خلاف دی (يعنی د جائزو او مختلف فيها اجارو په بيان کې دی)

## کورونه او دوکانونه په کرایه نیول او ورکول (حکم او وضاحت)

قَالَ: وَيَجُوْزُ اسْتِئْجَارُ الدُّوْرِ وَالْحَوَانِيْتِ لِلسُّكْنٰى فرمايي: کورونه او دوکانونه په کرايه نيول جائز دي وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ مَا يَعْمَلُ فِيْهَا که څه هم هغه کار بيان نه کړي کوم چې يې په هغوی کې کوي لِأَنَّ الْعَمَلَ الْمُتَعَارَفَ فِيْهَا السُّكْنٰى ځکه متعارف عمل په هغوی کې اوسېدل دي فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِ نو ځکه مطلق عقد اجاره به د هغه وطرف ته ګرځول کيږي وَأَنَّهُ لَا يَتَفَاوَتُ او [ځرنګه چې] په اوسېدلو کې هيڅ تفاوت نه وي فَصَحَّ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد صحيح وي وَلَهُ أَنْ يَعْمَلَ كُلَّ شَيْءٍ او دغه مستأجر ته د هر کار کولو اختيار سته لِلْإِطْلَاقِ ځکه چې [دا عقد اجاره] مطلق دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يُسْكِنُ حَدَّادًا وَلَا قَصَّارًا وَلَا طَحَّانًا ليکن مستأجر په هغه کې آهنګر [اوسپنه جوړونکی]، دوبي، اُوړه ميدونکی [ژرندي والا] نه سي اوسولای لِأَنَّ فِيْهِ ضَرَرًا ظَاهِرًا ځکه چې په دې کې ښکاره ضرر دی لِأَنَّهُ يُوْهِنُ الْبِنَاءَ ځکه چې دا شيان عمارت [ودانۍ] کمزوري کوي فَيَتَقَيَّدُ الْعَقْدُ بِمَا وَرَاءَهَا دَلَالَةً نو ځکه مطلق عقد اجاره به دلالتاً د هغوی په ماسوا سره مقيد کيږي.

**اللغات**: ﴿الحوانيت﴾ جمع د حَانُوْتٌ ده: دوکان (دکان)، پلورنځی، ﴿المتعارف﴾ په عُرف کې مشهوره، رائج، ﴿حداد﴾ د اوسپنو جوړونکی او سمونکی، اهنګر، پښ (او په اوسني وخت کې ويلډ والا)، ﴿طحان﴾ د غلې (غنمو او داسي نور) ميده کونکی، اُوړه کونکی، ژرندي والا، ﴿يُوهن﴾ د تفعيل مضارع ده: کمزوري کول، خرابول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د استوګنې او تجارت په غرض سره کور او دوکان په کرايه نيول او ورکول جائز دي، برابره ده په کرايه نيول سوي کور يا دوکان کې د کار وضاحت وسي او که نه وسي (يعني برابره ده داسي ووايي چې زه دا کور د اوسېدلو يا د خپل سامان محفوظه کولو لپاره يا مثلاً دا دوکان د پرچون

لپاره په کرایه نیسم یا یې در کوم، او که نه وایي)؛ ځکه چي عموماً او عرفاً دغه ځایونه د اوسېدلو (وخت پکښي تېرولو) لپاره په کرایه نیول کیږي، او په اوسېدلو کي تفاوت هم نه وي، نو ځکه د کار له وضاحت څخه بغیر به هم عقد صحیح کیږي. او مستأجر ته په هغه کي هر ډول اختیار سته برابره ده په خپله پکښي اوسي یا بل څوک پکښي اوسوي یا یې د بل کار لپاره یو چا ته ورکوي (په دې شرط چي په هغه کار سره عمارت او د هغه بنیادو او داسي نورو ته زیان نه رسیږي)، خو مستأجر هغه آهنګر (پښ)، دوبي او ژرندي والا ته نه سي ورکولای؛ ځکه چي په دې کارونو سره ځای او عمارت کمزوري کیږي او هغوی ته زیان رسیږي، نو ځکه د دلالت حال او د عُرف و رواج په وجه به دغه امور په اجاره کي نه شاملیږي.

## د کښت ګرۍ (زراعت) لپاره ځمکه په اجاره نیول او ورکول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الْأَرَاضِيْ لِلزِّرَاعَةِ فرمایي: او د کښت ګرۍ لپاره ځمکي په اجاره [په ټېکه] اخیستل جائز دي لِأَنَّهَا مَنْفَعَةٌ مَقْصُودَةٌ مَعْهُودَةٌ فِيهَا ځکه چي کښت ګري په ځمکو کي یو مقصود او معروف [متعارف] منفعت دی وَلِلْمُسْتَأْجِرِ الشِّرْبُ وَالطَّرِيقُ وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطْ او [د ځمکي په اجاره کي] مستأجر ته د اوبو حصه او لاره [دواړه] حاصلیږي که څه هم د هغه شرط نه وي لګول سوی لِأَنَّ الْإِجَارَةَ تُعْقَدُ لِلِانْتِفَاعِ ځکه چي اجاره د انتفاع [نفع اخیستلو] لپاره منعقد کیږي وَلَا انْتِفَاعَ إِلَّا بِهِمَا او د اوبو له حصې او لاري څخه بغیر انتفاع نه سي کېدای فَيَدْخُلَانِ فِي مُطْلَقِ الْعَقْدِ نو ځکه دا دواړه به په مطلق عقد اجاره کي داخلیږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهُ مِلْكُ الرَّقَبَةِ لَا الِانْتِفَاعُ فِي الْحَالِ ځکه چي له بیع څخه د رقبې [مبیع] ملکیت مقصود وي، نه في الحاله نفع اخیستل حَتَّى يَجُوزَ بَيْعُ الْجَحْشِ وَالْأَرْضِ السَّبْخَةِ دُونَ الْإِجَارَةِ همدا وجه ده چي د خره د بچي او د تروې ځمکي بیع [خرڅول] جائز دي، نه په اجاره ورکول [یعني د دې شیانو خرڅول جائز دي لېکن په اجرت ورکول یې جائز نه دي] فَلَا يَدْخُلَانِ فِيهِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِ الْحُقُوقِ نو ځکه د حقوقو له ذکر کولو څخه بغیر به د اوبو حصه او لاره په بیع کي نه داخلیږي وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوعِ او په کتاب البیوع کي دا [مسئله] تېره سوې ده وَلَا يَصِحُّ الْعَقْدُ حَتَّى يُسَمِّيَ مَا يَزْرَعُ فِيهَا او عقد نه صحیح کیږي تر دې چي بیان کړي هغه څه کوم چي په ځمکه کي کري [یعني تر څو چي په ځمکه کي کرل کېدونکی شی مُتعیّن نه کړی سي تر هغه وخته عقد اجاره نه صحیح کیږي] لِأَنَّهَا قَدْ تُسْتَأْجَرُ لِلزِّرَاعَةِ وَلِغَيْرِهَا ځکه چي ځمکه د زراعت او

غير زراعت دواړو لپاره په اجاره اخيستل كيږي وَمَايُزْرَعُ فِيهَا مُتَفَاوِتٌ او كوم څه چي په ځمكه كي كرل كيږي په هغه كي تفاوت [توپير] سته فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعْيِينِ نو ځكه مُتعيّن كول ضروري دي كَيْلَا يَقَعَ الْمُنَازَعَةُ د دې لپاره چي جنګ [او اختلاف] واقع نه سي أَوْ يَقُولَ: عَلَى أَنْ يَزْرَعَ فِيهَا مَا شَاءَ يا ووايي: پر دې شرط چي كوم څه د ده خوښه وي هغه دي وكري [يعني مالك ووايي چي دا ځمكه مطلق وركوم او د مستأجر چي كوم څه خوښه وي هغه دي پكښي وكري] لِأَنَّهُ لَمَّا فَوَّضَ الْخِيَرَةَ إِلَيْهِ ځكه كله چي مالك مستأجر ته اختيار وسپارى اِرْتَفَعَتِ الْجَهَالَةُ الْمُفْضِيَةُ إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو جنګ ته رسونكى جهالت ختم سو [يعني په اختيار وركولو سره هغه جهالت ختم سو كوم چي د جنګ او اختلاف سبب ګرځي]

قَالَ: وَيَجُوزُ أَنْ يَسْتَأْجِرَ السَّاحَةَ لِيَبْنِيَ فِيهَا أَوْ لِيَغْرِسَ فِيهَا نَخْلًا أَوْ شَجَرًا فرمايي: او دا [هم] جائز دي چي څوک خالي ځمكه د دې لپاره په اجاره واخلي چي په هغه كي ځاى جوړ كړي يا د خرما درختي يا نوري درختي پكښي ولګوي [شنې كړي] لِأَنَّهَا مَنْفَعَةٌ تُقْصَدُ بِالْأَرَاضِيْ ځكه چي دا [يعني ځاى پكښي جوړول او درختي لګول] هم داسي منفعت دى كوم چي په ځمكو سره يې قصد كيږي ثُمَّ إِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْإِجَارَةِ بيا چي كله د اجارې مودت ختم سي لَزِمَهُ أَنْ يَقْلَعَ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ وَيُسَلِّمَهَا إِلَيْهِ فَارِغَةً نو پر مستأجر لازم دي چي جوړ سوى ځاى او لګول سوي [شنه كړل سوي] درختي وكاږي او مالك ته ځمكه فارغه وسپاري لِأَنَّهُ لَا نِهَايَةَ لَهَا ځكه چي د بناء او درختو هيڅ حد نسته [لكه څرنګه چي د كښت رسېدلو حدّ او وخت مُتعيّن دى] فَفِيْ إِبْقَائِهَا إِضْرَارًا بِصَاحِبِ الْأَرْضِ نو ځكه [په ځمكه كي] د هغوى په پرېښوولو كي د ځمكي مالك ته ضرر رسول سته بِخِلَافِ مَا إِذَا انْقَضَتِ الْمُدَّةُ وَالزَّرْعُ بَقْلٌ په خلاف د هغه صورت كله چي د اجارې مودت ختم سي او كښت زرغون [اوم] وي [يعني كښت تر اوسه رسېدلى نه وي] حَيْثُ يُتْرَكُ بِأَجْرِ الْمِثْلِ إِلَى زَمَانِ الْإِدْرَاكِ نو [په دې صورت كي] به كښت د رسېدلو [پخېدلو] تر وخته پوري د أجرتِ مثلي په عوض كي پرېښوول كيږي لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُومَةً ځكه چي كښت رسېدلو لره يو معلومه انتهاء ده [يعني د هغه مودت معلوم دى] فَأَمْكَنَ رِعَايَةُ الْجَانِبَيْنِ نو [پر أجرتِ مثلي په پرېښوولو كي] د دواړو طرفونو رعايت ممكن دى [يعني د أجرتِ مثلي په عوض كي د رسېدلو تر وخته پوري د كښت په پرېښوولو سره د مالك او مستأجر دواړو د حق رعايت كيږي].

**اللغات:** ﴿معهودة﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: معروف او مشهوره، معلوم، مروج، ﴿الشِرْب﴾ د اوبو حصه، د اوبو واری (نوبت) کوم چې د ځمکې د اوبه کولو لپاره تاکل سوی وي، ﴿الرقبة﴾ غاړه، ذات، ﴿الجحش﴾ د خره بچی، ﴿السَّبْخَة﴾ او السِبْخَة: ښورناکه ځمکه (تروه ځمکه) کوم چې د کښت کرلو صلاحيت نه لري، ﴿فَوَّض﴾ د تفعيل ماضي ده: ورسپارل، حواله کول، ﴿الساحة﴾ خالي ميدان (چې له عمارت او درختو څخه خالي وي)، ﴿يقلع﴾ د فتح مضارع ده: له بېخه کښل، له خپل ځايه لېرې کول، ختمول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې څرنګه د اوسېدلو لپاره کور په کرايه نيول جائز دي، همدارنګه د کښت ګرۍ (کښت کرلو) لپاره ځمکه په اجاره نيول جائز او صحيح دي؛ ځکه چې په ځمکه کې همدا عمل هم متعارف او مروج دی چې په هغې کې کښت و کرل سي او د کښت ګرۍ منفعت ځني حاصل کړی سي او له ځمکو څخه مقصود همدا منفعت وي، نو ځکه د دې په جواز کې هيڅ شبهه نسته، او څرنګه چې د کښت کرلو لپاره لاري او اوبو ته ضرورت سته، نو ځکه د ځمکې په اجاره کې د اوبو واری (نوبت) او د تګ راتګ لاره په خپله داخلېږي، برابره ده د دغه شيانو وضاحت وکړی سي، که نه؛ ځکه چې د اجارې مقصد منفعت حاصلول دي او له دغه شيانو څخه بغير منفعت حاصلول ناممکن دي، نو ځکه تر مطلق عقد لاندي به دا دواړه شيان په اجاره کې شامليږي. لېکن په بيع کې له وضاحت او بيانولو څخه بغير د اوبو واری او لاره نه داخليږي؛ ځکه چې په بيع سره د ملکيت حاصلول مقصود وي او په هغه سره في الحاله نفع حاصلول مقصود نه وي، په همدې وجه خو د خره يا آس د کوچني بچي او د ښورناکه ځمکې بيع صحيح ده؛ ځکه که څه هم هغوی في الحاله د انتفاع (نفع اخيستلو) قابل نه وي لېکن مشتري ته د هغوی ملکيت حاصليږي او په بيع سره ملکيت حاصلول مقصود وي، لېکن د هغوی اجاره صحيح نه ده؛ ځکه چې هغوی دواړه في الحاله د انتفاع قابل نه وي، نو ځکه په بيع کې له وضاحت او بيان څخه بغير د اوبو واری او لاره نه داخليږي.

**ولا يصح العقد إلخ:** فرمايي چې د کښت ګرۍ لپاره په اجاره د ځمکې اخيستلو يو شرط دا هم دی چې په ځمکه کې د کوم شي کښت کرل کيږي، د هغه وضاحت به کيږي، يعني دا به بيانوي چې په دې ځمکه کې مثلاً غنم کري، يا اوربشي کري، يا وريجي پکښې کري او داسي نور؛ ځکه چې د ځمکې اجاره د مختلفو شيانو لپاره کيږي يعني کله د زراعت لپاره کيږي او کله د ځای جوړولو، درختو شنه کولو، خېمو درولو او داسي نورو لپاره هم کيږي، او بل دا چې په ځمکه کې مختلفه شيان کرل کيږي، چې له هغوی څخه ځيني د ځمکې لپاره ضررمن وي او ځيني غير مضر وي همدارنګه د ماليت په اعتبار يو له بل څخه جلا وي، نو ځکه د هغوی وضاحت کول او بيانول ضروري دي، د دې

لپاره چې وروسته جنګ او اختلاف پېښ نه سي. ها! كه چيري مالک داسي ووايي چې كوم شی ستا خوښه وي، هغه پکښې وکره!، نو په دې صورت كي مستأجر د هر شي كښت كرلای سي؛ ځكه كله چې مالک مستأجر ته اختيار وركړي، نو د جهالت او ناخبرۍ په وجه چې د جنګ او اختلاف پېښېدلو كومه خطره وه، هغه ليري سوه، همدا د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مذهب هم دی.

ويجوز أن يستأجر الخ: د دې حاصل دا دی چې د ځای جوړولو او درختو ابښوولو لپاره هم ځمكه په كرايه نيول جائز دي؛ ځكه چې دا هم مقصود منفعت دی، خو كله چې د اجارې مودت پوره سي، نو پر مستأجر لازم دي چې له ځمكي څخه خپل ځای او درختي ليري كړي او مالک (مؤجر) ته خالي ځمكه وسپاري، يعني هغه به پر دې مجبورول كيږي؛ ځكه عموماً د ځای او درختو د ليري كولو (كښلو) لپاره هيڅ مودت نه وي نو ځكه د اجارې تر مودت وروسته په ځمكه كي د هغوی په پرېښوولو كي د ځمكي د مالک ضرر او نقصان دی، او چا ته نقصان رسول جائز نه دي. ها! كه چيري د درختو پر ځای په ځمكه كي كښت كرل سوی وي او د اجارې مودت په داسي حالت كي پوره سي چې هغه كښت تر اوسه رسېدلی او پوخ سوی نه وي، نو په دې صورت كي حكم دا دی چې كښت به د رسېدلو تر وخته پوري پرېښوول كيږي؛ ځكه د كښت رسېدلو او پخېدلو انتهاء او مودت معلوم دی، او د اجارې تر مودت وروسته چې د كښت رسېدلو تر وخته پوري د ځمكي څومره كرايه راځي، هغه به مالک (مؤجر) ته وركول كيږي؛ ځكه چې په داسي كولو سره د مالک د حق رعايت هم كيږي چې هغه ته به كرايه حاصله سي او د مستأجر د حق رعايت هم كيږي چې هغه ته به خپل كښت پوخ حاصل سي او محنت به يې ضايع نه سي.

## د مخكني مسئلې نور وضاحت او خارويان په كرايه نيول او وركول (حكم او تفصيل)

قَالَ: إِلَّا أَنْ يَخْتَارَ صَاحِبُ الْأَرْضِ أَنْ يَغْرَمَ لَهُ قِيمَةَ ذَلِكَ مَقْلُوعًا وَيَتَمَلَّكَهُ فرمايي: مګر دا چې د ځمكي مالک دا وغواړي چې مستأجر ته د كښل سوو درختو او بناء د قيمت تاوان وركړي او د هغوی [درختو او بناء] مالک سي فَلَهُ ذَلِكَ نو هغه ته د دې اختيار سته وَهٰذَا بِرِضَاءِ صَاحِبِ الْغَرْسِ وَالشَّجَرِ او دا به د بوټو او درختوو والا [مستأجر] په رضا سره وي إِلَّا أَنْ تَنْقُصَ الْأَرْضُ بِقَلْعِهَا مګر دا چې د هغوی په كښلو سره ځمكه ناقصه [كمزورې] كيږي [يعني په كښلو سره ځمكي ته زيان رسيږي] فَحِينَئِذٍ يَتَمَلَّكُهَا بِغَيْرِ رِضَاهُ نو په دې صورت كي د مستأجر له رضا څخه بغير هم مالک [مؤجر] د مذكوره شيانو مالک كيږي قَالَ: أَوْ يَرْضَى بِتَرْكِهِ عَلَى حَالِهِ فرمايي: يا دا چې مالک پر خپل حالت د

بناء او درختو په پرېښوولو راضي سي فَيَكُونَ الْبِنَاءُ لِهٰذَا وَالْأَرْضُ لِهٰذَا نو بناء [جوړ سوی ځای] به د ده وي او ځمکه به د هغه وي [يعني بناء به د بناء والا (مستأجر) وي او ځمکه به د ځمکي والا (مالک) وي] لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ ځکه چي [د کښلو] حق ده لره دی [يعني د بناء او درختو د کښلو حق د مالک دی] فَلَهُ أَنْ لَا يَسْتَوْفِيَهُ نو ځکه ده ته به دا اختيار [هم] وي چي خپل دغه حق حاصل نه کړي قَالَ: وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: إِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْإِجَارَةِ وَفِي الْأَرْضِ رَطْبَةٌ فرمايي: او په جامع صغير کي دي: کله چي د اجارې موودت تېر سي او په ځمکه کي داسي ګياه [او بوټي] وي چي بېخونه يې په ځمکه کي پاتيږي فَإِنَّهَا تُقْلَعُ نو هغوی به [هم] کښل کيږي لِأَنَّ الرِّطَابَ لَا نِهَايَةَ لَهَا ځکه چي داسي ګياه [او بوټو] لره هيڅ انتهاء [موودت] نسته [يعني له ځمکي څخه د هغوی د کښتلو او ختمېدلو موودت معلوم نه دی لکه څرنګه چي د زردکي، مولي او داسي نورو موودت معلوم دی] فَأَشْبَهَ الشَّجَرَ نو هغوی د درختو سره مشابه سوه

قَالَ: وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الدَّوَابِّ لِلرُّكُوبِ وَالْحَمْلِ فرمايي: او جائز دي څارويان په کرايه نيول [په أجرت اخيستل] د سپرېدلو او بار وړلو لپاره لِأَنَّهُ مَنْفَعَةٌ مَعْلُومَةٌ مَعْهُودَةٌ ځکه چي دا [يعني سپرېدل او بار وړل] يو معلوم او معروف منفعت دی فَإِنْ أَطْلَقَ الرُّكُوبَ او که چيري مالک سپرتيا مطلق وساتي [يعني د مطلق سپرتيا اجازت ورکړي] جَازَ لَهُ أَنْ يُرْكِبَ مَنْ شَاءَ نو مستأجر ته جائز دي چي پر سپور کړي هغه کس چي د ده خوښه وي عَمَلًا بِالْإِطْلَاقِ په مطلق والي باندي په عمل کولو سره وَلٰكِنْ إِذَا رَكِبَ بِنَفْسِهِ أَوْ أَرْكَبَ وَاحِدًا لَيْسَ لَهُ أَنْ يُرْكِبَ غَيْرَهُ لېکن کله چي په خپله پر سپور سي يا يو کس پر سپور کړي نو [بيا] هغه ته دا حق نسته چي بل څوک پر سپور کړي لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ مُرَادًا مِنَ الْأَصْلِ ځکه چي دا [يعني په خپله يا بل څوک پر سپرول] له اصل اطلاق څخه د مقصود په توګه مُتعيّن سوه [يعني له مطلقوالي څخه همدا (په خپله يا بل څوک پر سپرول) مراد مُتعيّن سو] وَالنَّاسُ يَتَفَاوَتُونَ فِي الرُّكُوبِ او خلک په سپرتيا کي متفاوت [مختلف] وي [يعني په سپرتيا کي د خلکو حالت مختلف دی] فَصَارَ كَأَنَّهُ نَصَّ عَلَىٰ رُكُوبِهِ نو [د مستأجر دا فعل] داسي سو ګواکي ده ابتداءً د هغه د سپرتيا صراحت کړی وو وَكَذٰلِكَ إِذَا اسْتَأْجَرَ ثَوْبًا لِلُّبْسِ وَأَطْلَقَ او همدارنګه کله چي هغه د اغوستلو لپاره کپړه په أجرت

واخلي او اغوستل مطلق وساتي فِيمَا ذَكَرْنَا [نو هم ده ته حق حاصل دی] زموږ په ذکر سوي حکم [عموم] کي [يعني په دې صورت کي هم ده ته دا جواز او اختيار سته چي هغه کپړه په خپله واغوندي يا يې په بل چا واغوندي] لِإِطْلَاقِ اللَّفْظِ وَتَفَاوُتِ النَّاسِ فِي اللُّبْسِ ځکه چي لفظ مطلق دی او [ځکه چي] په اغوستلو کي خلک متفاوت وي وَإِنْ قَالَ: عَلَى أَنْ يَرْكَبَهَا فُلَانٌ أَوْ يَلْبَسَ الثَّوْبَ فُلَانٌ او که ووايي: پر دې شرط چي فلانکی به پر سپربږي يا فلانکی به کپړه اغوندي فَأَرْكَبَهَا غَيْرَهُ أَوْ أَلْبَسَهُ غَيْرَهُ لېکن هغه بل څوک پر سپور کړي يا په بل چا کپړه واغوندي فَعَطِبَ بيا هغه څاروی يا کپړه هلاک سي كَانَ ضَامِنًا نو مستأجر ضامن کيږي [يعني ضمان (تاوان) به ورکوي] لِأَنَّ النَّاسَ يَتَفَاوَتُونَ فِي الرُّكُوبِ وَاللُّبْسِ ځکه چي خلک په سپربدلو او اغوستلو کي متفاوت [مختلف] وي فَصَحَّ التَّعْيِينُ وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَعَدَّاهُ نو ځکه [د سپربدلو او اغوستلو لپاره يو کس] متعيّن کول صحيح دي او مستأجر ته له هغه څخه تجاوز کول صحيح نه دي وَكَذَلِكَ كُلُّ مَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ و همدارنګه هر هغه شی کوم چي د استعمالونکي په اختلاف [تفاوت] سره مختلف کيږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَأَمَّا الْعَقَارُ وَمَا لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ پاته سو جايداد [ځمکه او داسي نور] او هغه شی کوم چي د استعمالونکي په اختلاف سره نه مختلف کيږي إِذَا شَرَطَ سُكْنَى وَاحِدٍ نو [په هغه کي] که ديوه کس اوسېدل شرط کړي [چي فلانکی به پکښې اوسيږي] فَلَهُ أَنْ يُسْكِنَ غَيْرَهُ نو مستأجر ته دا اختيار سته چي بل څوک پکښې و اوسوي لِأَنَّ التَّقْيِيدَ غَيْرُ مُفِيدٍ ځکه چي [دلته] د يوه کس قيد لګول مفيد نه دي لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ د تفاوت د نشتوالي په وجه [يعني ځکه چي په اوسېدلو کي تفاوت او فرق نه وي] وَالَّذِي يَضُرُّ بِالْبِنَاءِ او کوم څه چي ځای [عمارت] ته زيان رسوي [يعني آهنګر، ژرندي والا او داسي نور پکښې اوسول] خَارِجٌ نو [هغه له دغه حکم څخه] وتلي دي عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چي موږ [مخکي] ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿يغرم﴾ د سمع مضارع ده: تاوان پورته کول، تاوان ورکول، ﴿مقلوع﴾ د فتح د باب مفعول دی: کښل سوی، کاږل سوی، ليري کړل سوی، ﴿الغرس﴾ بوټي (دا لفظ له شجر څخه عام دی، ځکه چي شجر هغه څه ته ويل کيږي کوم چي تنه لري او بغير له تنې بوټي ته شجر نه ويل کيږي، او غرس دواړو ته ويل کيږي)، ﴿رَطْبَةٌ﴾ دا لفظ رُطْبَةٌ او رُطَبَةٌ نه دی بلکي رَطْبَةٌ دی، ځکه چي رُطْبَةٌ شنه او تازه وښو ته

وړيـل كيـږي او رُطَبَـةٌ خرما ته وړيـل كيـږي، او د "رَطْبَـةٌ" دوې معناوي سوي دي: ① هغـه سابه (سبزيجات) كوم چي تـر و تـازه خوړل كيـږي، ② د شپېشتو او غـاټې په څېـر يـو ډول بوټى دى كوم چي تر كلو، كلو پوري په ځمكه كي ولاړ وي او كله چي هم پرېكړل سي نو بيـا راپورته سي، په عربي ژبه كي هغه ته "فِصْفِصة" هم ويل كيـږي او تر پرېكولو او وچولو وروسته "القتّ" ورته وايي، په فارسي ژبه كي "اسپست" او "سپست" ورته وايي او په انګريزي ژبه كي (medicago sativa) ورته وايي او په پښتو قاموسونو كي د دغه انګرېزي لفظ پښتو نوم داسي ښودل سوى دى: شوركى، ګل خرېنګه، والله اعلم، او شپېشتي هم دا خاصيت لري چي د هغوى بېخونه تر څو كالو پوري په ځمكه كي پاتيږي او كله چي هم ورېبل سي نو دوېم ځل را پورته سي، او دلته ځني مراد هر هغه بوټى دى چي بېخ يې په ځمكه كي د ډېر مودت لپاره پاتيږي او صرف پاڼي يا ګلان يې پرېكول كيـږي، كوم چي داسي نه وي لكه زردكى، مولى او داسي نور، ځكه دا شيان په كښت (زَرْع) كي داخل دي لكه څرنګه چي په حاشيه كي ليكل سوي دي، او د رَطبة او رُطبة ټولو جمع رِطَاب راځي(معجم لغة الفقهاء، معجم الوسيط، مصباح المنير)، ﴿دواب﴾ جمع د دَابَّـةٌ ده: چارپـاى، څـاروى، ﴿عَطِـبَ﴾ د سـمع ماضـي ده: هلاكېدل (خصوصاً د څاروي هلاكېدل)، ﴿عقار﴾ غير منقوله جايداد لكه ځمكه، كور او داسي نور.

**تشريح**: په دغه عبارت كي پنځه مسئلې ذكر سوي دي:

(۱)... مځكي چي كوم دا حكم بيان سو چي مستأجر به پر دې مجبورول كيـږي چي له ځمكي څخه خپل ځاى (بناء) او درختي ليري كړي او مالك ته خالي ځمكه وسپاري، لېكن كه مالك دا نه غواړي بلكي د هغه خوښه دا وي چي بناء او درختي ليري نه كړى سي، نو بيا دي هغه نه ليـري كول كيـږي او مالك دي مستأجر ته دومره قيمت وركړي كوم چي په ليري كړل سوي (كښل سوي) حالت كي د دې شيانو قيمت وي، په دې شرط چي مستأجر هم په دې راضي وي او د ځاى او درختو په ليري كولو سره ځمكي ته زيان نه رسيږي، او كه چيري د هغوى په ليري كولو سره ځمكي ته زيان رسيږي، نو په دې صورت كي مالك ته دا اختيار سته چي د مستأجر له رضا څخه بغير هغه ته د مقلوعه درختو او بناء قيمت وركړي. يا كه چيري مالك په دې خوښ او راضي وي چي د مستأجر بناء او درختي په خپله ځمكه كي پرېږدي او ځمكه د ده په ملكيت كي پاته سي او بناء او درختي د هغه (مستأجر) په ملكيت كي پاته سي، نو مالك ته د دې اختيـار هم سته؛ ځكه چي كښل او ليري كول د ځمكي د مالك حق دى او مالك ته د خپل حق ساقطولو پوره اختيار سته.

وفي الأرض رطبة إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چي که داجارې په ځمکه کي داسي ګياه او بوټي کرل سوي وي چي د هغوی بېخونه تر ډېر وخته په ځمکه کي پاتيږي (مثلاً شپيستي، خواږه ولني او داسي نور)، نو په دې صورت کي هم پر مستأجر دا لازم دي چي هغوی به له بېخه کاږي او مالک ته به خپله ځمکه خالي او فارغه سپاري؛ ځکه چي داسي ګياه او بوټو لر هم ټاکلی مودت نه وي، نو هغوی د درختو په څېر سول. لهذا د درختو په ډول به هغوی هم داجارې تر مودت وروسته له ځمکي څخه ليري کول کيږي.

ويجوز استئجار إلخ: (۳)... فرمايي چي څارويان (لکه اوبن، آس او داسي نور) هم په اُجرت او کرايه نيول جائز دي؛ ځکه چي دا هم په دوی کي يو مقصود او متعارف منفعت دی، او همدارنګه کپړه په اُجرت اخيستل هم جائز دي. بيا که چيري عقد مطلق سوی وي يعني مالک د يو خاص کس د سپرېدلو يا اغوستلو شرط نه وي لګولی، نو د عقد د مطلق والي په وجه مستأجر ته اختيار دی، خپله هم پر سپرېدلای سي او که وغواړي نو بل کس ته يې هم د سپرتيا لپاره ورکولای سي، لېکن که هغه په خپله پر سپور سي يا بل کس پر سپور کړي (يعني بل چا ته يې د سپرتيا لپاره ورکړي)، نو تر دې وروسته مستأجر بل دريېم کس نه سي پر سپرولای؛ ځکه چي له اصل مطلقوالي څخه همدغه مراد مُتعيّن سو، او څرنګه چي په سپرتيا کي د خلکو حالت مختلف او متفاوت وي، نو ګواکي هغه په سپرتيا کي همدغه (سپرېدونکي) کس صريحاً بيان کړی وو.

او که چيري مالک د يو مُتعيّن کس د استعمال شرط لګولی وي چي خاص فلانکی به پر دغه څاروي سپريږي يا فلانکی به دا کپړه اغوندي، نو بيا د هغه پر شرط عمل کول ضروري دي. لهذا که له مُتعيّن کس څخه بغير بل څوک هغه څاروی او کپړه استعمال کړي او هغه هلاک سي، نو مستأجر ضامن کيږي (يعني مستأجر به د هغه څاروي او کپړې تاوان مالک ته ورکوي)؛ ځکه چي په استعمالولو کي د خلکو حالت او عادت مختلف وي او کېدای سي مالک په دې وجه د هغه مُتعيّن کس د استعمال شرط لګولی وي چي هغه به يو شريف او غوره انسان وي او هغه به د بل چا د شي ډېر خيال ساتي (مثلاً څاروی تېز او بې ځايه نه ځغلوي او په سپرتيا کي مهارت لري يا مثلاً کپړه بې ځايه نه استعمالوي او هر ځای يې نه غورځوي)، نو ځکه وويل سوه چي که د هغه پر ځای مستأجر بل (غيرِ مُتعيّن) کس ته د مالک شی ورکړي او هغه هلاک سي، نو مستأجر به د هغه ضمان (تاوان) ورکوي.

وكذلك كل ما يختلف إلخ: (۴)... د دې حاصل دا دی چي کوم شی د استعمالونکي کس په استعمال سره بدليږي، د هغه حکم هم د پورتني حکم په څېر دی، لېکن ځمکه او داسي نور شيان کوم چي د استعمالونکي په استعمال سره نه بدليږي، په هغوی کي د مُتعيّن کس استعمالول ضروري نه دي؛

بلکې که بل څوک (غیرِ مُتعیّن کس) هغه استعمال کړي، نو هیڅ حرج نسته؛ ځکه چې په داسې شیانو کې تفاوت نه وي او په استعمال سره د هغوی د خرابېدلو خطره کمه وي.

والذی یضر بالبناء إلخ: د دې حاصل دا دی چې کوم کارونه د ځای او کور لپاره ضررمن وي، لکه د آهنګر (پښ) کار، یا د دوبي او ژرندي والا کار، نو هغه له مطلق عقد شخه وتلي دي، او مستأجر مذکوره ځای دغه ډول کسانو ته د اوسېدلو لپاره نه سي ورکولای او نه څاروی او داسې نور د ضررمنو کارونو لپاره استعمالولای سي. (احسن الهدایه)

## د بار د مقدار او نوعیت معلومولو حکم

قَالَ: وَإِنْ سَمّٰی نَوْعًا وَقَدْرًا مَعْلُوْمًا يَحْمِلُهُ عَلَى الدَّابَّةِ فرمایي: او که مستأجر معلوم قسم او مقدار مُتعیّن کړي چې پر څاروي یې باروي مِثْلُ أَنْ يَقُوْلَ: خَمْسَةُ أَقْفِزَةِ حِنْطَةٍ مثلاً داسې ووایي: چې پنځه قفیزه غنم [پر باروم] فَلَهُ أَنْ يَحْمِلَ مَا هُوَ مِثْلُ الْحِنْطَةِ فِي الضَّرَرِ أَوْ أَقَلَّ نو هغه ته دا اختیار سته چې پر بار کړي داسې شی کوم چې په ضرر [او په وزن او بوج] کې د غنمو په څېر وي یا تر هغه کم وي كَالشَّعِيْرِ وَالسِّمْسِمِ لکه اوربشي او کونجتي لِأَنَّهُ دَخَلَ تَحْتَ الْإِذْنِ لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ ځکه چې د تفاوت د نشتوالي په وجه دا شیان هم تر اجازت [او رضا] لاندې داخل دي أَوْ لِكَوْنِهٖ خَيْرًا مِنَ الْأَوَّلِ یا ځکه [داخل دي] چې دا له اول [غنمو] څخه ښه دي [یعني کله چې یې وزن کم وي] وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْمِلَ مَا هُوَ أَضَرُّ مِنَ الْحِنْطَةِ او هغه ته دا اختیار نسته چې پر بار کړي هغه شی کوم چې له غنمو څخه زیات ضررمن وي كَالْمِلْحِ وَالْحَدِيْدِ لکه مالګه او اوسپنه لِانْعِدَامِ الرِّضَاءِ بِهٖ ځکه چې مالک [مؤجر] په دې راضي نه دی وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا قُطْنًا سَمَّاهُ او که د دې لپاره څاروی په کرایه ونیسي چې پر هغه په مُتعیّن کرده مقدار سره پمبه باروي [مثلا داسې ووایي چې زه پنځه منه پمبه پر وړم] فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا مِثْلَ وَزْنِهٖ حَدِيْدًا نو هغه ته دا اختیار نسته چې د هغومره وزن والا اوسپنه پر بار کړي لِأَنَّهُ رُبَّمَا يَكُوْنُ أَضَرَّ بِالدَّابَّةِ ځکه چې کله اوسپنه د څاروي لپاره زیاته ضررمنه وي فَإِنَّ الْحَدِيْدَ يَجْتَمِعُ فِيْ مَوْضِعٍ مِنْ ظَهْرِهَا ځکه اوسپنه د څاروي د ملا پر یوه ځای جمع [مجتمع] وي وَالْقُطْنُ يَنْبَسِطُ عَلٰى ظَهْرِهٖ او پمبه د هغه پر ملا خوره [هواره] وي.

**اللغات**: ﴿سوى﴾ د تفعيل ماضي ده: نومول، بيانول، مُتعيّنول (ټاکل)، ﴿أقفزة﴾ جمع د قَفِيْزٌ ده: قفيز يو ډول پېمانه ده چي په هغه کي به شيان اندازه کېدل، او په يوه او بل ښار کي به د هغې مقدار سره مختلف وو، د مصر د اوسني مقدار مطابق تقريبا هغه شپاړس کېلو کيږي، او شرعي قفيز دوولس صاعه کيږي (لکه مخکي چي هم ذکر سوه)، ﴿حديد﴾ اوسپنه (وسپنه)، ﴿قطن﴾ پمبه، ﴿ينبسط﴾ د انفعال مضارع ده: خورېدل (غوړېدل)، هوارېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د بار وړلو لپاره يو څاروی مثلاً خر په کرايه ونيسي، او پر هغه چي کوم شی باروي د هغه نوع او مقدار هم بيان کړي، مثلاً داسي ووايي چي زه پر دغه خره پنځه منه غنم وړم، نو په دې صورت کي مستأجر پر هغه د غنمو په څېر بل شی هم پنځه منه وړلای سي، مثلاً اوربشي؛ ځکه چي په اوربشو او غنمو کي فرق او تفاوت کم دی، همدارنګه کوم شی چي له غنمو څخه په وزن او ضرر کي سپک وي، هغه هم پنځه منه پر وړلای سي. لېکن کوم شی چي د څاروي (خره) لپاره ضررمن وي، نو مستأجر هغه پر دغه څاروي نه سي وړلای، مثلاً مالګه او اوسپنه، چي په دوی سره د څاروي د ملا خورېدلو او زخمي کېدلو خطره سته؛ ځکه چي مالک (مؤجر) په دې راضي نه دی او پر څاروي دا ډول مضر شيان وړل د مالک تر مطلق اجازت لاندي داخل نه دي، لکه څرنګه چي د کور په اجاره کي کور آهنګر (پښ)، ژرندي والا او داسي نورو ته ورکول داخل نه دي. همدا حال د دويمي مسئلې هم دی.

## که په کرايه نيول سوی څاروی (چارپای) هلاک سي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَرْكَبَهَا فرمايي: او که [يو څوک] د سپرېدلو لپاره څاروی په کرايه ونيسي [چي زه پر سپرېږم] فَأَرْدَفَ مَعَهُ رَجُلًا بيا خپل شا ته يو سړی سپور کړي فَعَطِبَتْا او هغه څاروی هلاک سي ضَمِنَ نِصْفَ قِيمَتِهَا نو مستأجر د څاروي د نصف قيمت ضامن کيږي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالثِّقَلِ او بوج [وزن] لره اعتبار نسته لِأَنَّ الدَّابَّةَ قَدْ يَعْقِرُهَا جَهْلُ الرَّاكِبِ الْخَفِيفِ ځکه ځيني وخت د سپک سپرېدونکي ناپوهي څاروی زخمي کوي وَيَخِفُّ عَلَيْهَا رُكُوبُ الثَّقِيلِ لِعِلْمِهِ بِالْفُرُوسِيَّةِ او [ځيني وخت] پر څاروي د درانه کس سپرتيا سپکه وي، په شهسوارۍ سره د خبرېدلو په وجه [يعني ځکه چي هغه د سپرېدلو او د څاروي بيولو په طريقه پوه او ماهر وي] وَلِأَنَّ الْآدَمِيَّ غَيْرُ مَوْزُونٍ او ځکه چي انسان وزن کېدونکي شی نه دی [يعني عموماً هغه نه تلل کيږي] فَلَا يُمْكِنُ مَعْرِفَةُ الْوَزْنِ نو [د هغه] د وزن معلومېدل ممکن نه دي فَاعْتُبِرَ عَدَدُ الرَّاكِبِ كَعَدَدِ الْجُنَاةِ فِي الْجِنَايَاتِ نو ځکه د سپرېدونکو [سپاريانو] د شمېر

اعتبار به کیږي لکه په جرمونو کي چي د مجرمانو د شمېر اعتبار کیږي قَالَ: وَإِنْ اسْتَأْجَرَهَا لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا مِقْدَارًا مِنَ الْحِنْطَةِ فرمايي: او که د دې لپاره څاروی په کرايه ونيسي چي پر هغه په يو [معلوم] مقدار سره غنم باروي فَحَمَلَ عَلَيْهَا أَكْثَرَ مِنْهُ بيا مستأجر تر هغه مقدار زيات غنم پر بار کړي فَعَطِبَتْ او څاروی هلاک سي ضَمِنَ مَا زَادَ الثِّقَلُ نو مستأجر د زائد بوج [بار] ضامن کیږي لِأَنَّهَا عَطِبَتْ بِمَا هُوَ مَأْذُونٌ فِيهِ وَمَا هُوَ غَيْرُ مَأْذُونٍ فِيهِ ځکه چي دا څاروی په هغه بوج سره هلاک سوی دی چي ده [مستأجر] ته د هغه اجازت ورکول سوی دی او په هغه بوج سره چي اجازت يې نه دی ورکول سوی [يعني ځکه چي څاروي په مأذون او غير مأذون دواړو بوجونو (بارونو) سره هلاک سوی دی] وَالسَّبَبُ الثِّقَلُ او [د هلاکېدلو] سبب همدا بوج دی فَانْقَسَمَ عَلَيْهِمَا نو ځکه به ضمان [تاوان] پر دواړو تقسيمیږي إِلَّا إِذَا كَانَ حَمْلًا لَا يُطِيقُهُ مِثْلُ تِلْكَ الدَّابَّةِ لېکن که هغه دومره [زيات] بار وي چي دا ډول څاروی د هغه [د وړلو] طاقت نه لري فَحِينَئِذٍ يَضْمَنُ كُلَّ قِيمَتِهَا نو په دې صورت کي مستأجر د څاروي د ټوله قيمت ضامن کیږي لِعَدَمِ الْإِذْنِ فِيهَا أَصْلًا ځکه چي په دې کي [د مالک له طرفه] بالکل اجازت نسته لِخُرُوجِهِ عَنِ الْعَادَةِ ځکه دا [يعني دومره بار پر وړل] له عُرف څخه وتلي دي [يعني د خلکو تر عُرف او عادت لاندي داخل نه دي] قَالَ: وَإِنْ كَبَحَ الدَّابَّةَ بِلِجَامِهَا أَوْ ضَرَبَهَا فَعَطِبَتْ او که مستأجر [په زوره] د څاروي قيزه راکش کړي يا هغه ووهي او هغه هلاک سي ضَمِنَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه ضامن کیږئ وَقَالَا[*]: لَا يَضْمَنُ إِذَا فَعَلَ فِعْلًا مُتَعَارَفًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نه ضامن کیږيَ کله چي هغه د عُرف مطابق کار کړی وي [يعني کله چي هغه د عامو خلکو د عادت په شېر د څاروي قيزه راکش کړې يا وهلی وي] لِأَنَّ الْمُتَعَارَفَ مِمَّا يَدْخُلُ تَحْتَ مُطْلَقِ الْعَقْدِ ځکه چي د عُرف مطابق کار تر مطلق عقد لاندي داخليږي فَكَانَ حَاصِلًا بِإِذْنِهِ نو دا کار به د مالک په اجازت سره حاصل سوی [واقع سوی] وي فَلَا يَضْمَنُهُ نو ځکه مستأجر به د هغه نه ضامن

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن المتون على قوله، وكذا في مجمع الأنهر (ج:٣، ص:٥٢)، و رد المحتار (ج:٥، ص:٢٧). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٢٨]

کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْإِذْنَ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي اجازت د سلامتی [سالم والي] په شرط سره مقيد وي إِذْ يَتَحَقَّقُ السَّوْقُ بِدُونِهِمَا ځکه چي بېول [روانول] له راکشولو او وهلو څخه بغير هم کېدای سي [يعني د وهلو او د قيزي له راکشولو څخه بغير هم د ښاروي بېول ممکن دي] وَإِنَّمَا هُمَا لِلْمُبَالَغَةِ او دا دواړه کارونه خو د مبالغې [تېز بېولو (ځغلولو)] لپاره وي فَيُقَيَّدُ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ نو ځکه اجازت به د سالمتی [سالم والي] په وصف سره مقيد وي كَالْمُرُورِ فِي الطَّرِيقِ لکه په لاره کي تېرېدل [چي د سالم والي په وصف سره مقيد دي].

**اللغات**: ﴿أردف﴾ د افعال ماضي ده: خپل شا ته سپرول، ﴿عطب﴾ د سمع ماضي ده: هلاکېدل، ﴿ثِقَل﴾ درونـد والی، بوج، وزن، (لوړ)، ﴿يعقر﴾ د ضرب مضارع ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه يوه معنىٰ ده: ښاروی زخمي کول، ژوبلول، زيان ور رسول، ﴿الفروسية﴾ شهسواري، د آس په سپرتيا کي ماهر کېدل، ﴿جُنَاة﴾ جمع د جَانِي ده: جنايت کونکی، مجرم، ګناهکار، ﴿كبح﴾ د فتح مصدر دی: د ښاروي قيزه (لګام) راکشول، د ښاروي سر په قيزه سره راکشول، ﴿السَّوْق﴾ د نصر مصدر دی، سَاقَ يَسُوْقُ سَوْقًا: بېول (هشه کول)، چلول، روانول.

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که څوک د سپرېدلو لپاره ښاروی په کرايه ونيسي او بيا يو کس خپل شا ته سپور کړي چي د هغه په وجه ښاروی مړ سي، نو په دې صورت کي د نيم قيمت ضمان (تاوان) پر مستأجر لازمېږي او د نيم قيمت ضمان د شا پر کس (رديف) لازمېږي، يعني دلته به ضمان د دواړو سپاريانو پر وزن او بوج نه تقسيمول کيږي، بلکي دغه ضمان به د عدد رؤس مطابق (يعني پر هر سپاري) لازمول کيږي؛ ځکه ځيني وخت داسي وي چي يو سړی سپک وزن والا وي لېکن هغه پر ښاروي د سپرېدلو او د ښاروي د بېولو او ځغلولو په باره کي هيڅ پوهه او مهارت نه لري چي د هغه په وجه ښاروي ته زخم او زحمت رسيږي، او کله داسي وي چي سپاري وزن داره وي لېکن هغه د ښاروي د سپرېدلو او د ښاروي د بېولو په طريقه پوه او ماهر وي چي د هغه په وجه پر ښاروي د ده هيڅ بوج نه وي او ښاروي ته د ده وزن ډېر سپک محسوسيږي، نو ځکه د ضمان په واجبېدلو کي به د بوج او وزن اعتبار نه کيږي، بلکي د فرد په اعتبار سره به پر دواړو نصف، نصف ضمان لازمېږي. لکه کله چي دوه خلک يو سړی زخمي کړي او د زخم په وجه هغه سړی مړ سي، نو په دې صورت کي هم پر دواړو مجرمانو نصف، نصف ديت واجبيږي، برابره ده هغوی دواړو برابر زخمي کړی وي يا يوه کم او بل زيات او ژور زخمي کړی وي

(يعني كوم يوه چي زيات زخم پكښي جوړ كړى وي، پر هغه زيات ديت نه لازميږي)، همداسي به په پورتنۍ مسئله كي هم پر دواړو سپاريانو برابر ضمان لازميږي.

وإن استأجرها ليحمل عليها مقدرًا إلخ: (۲)... كه خالد مثلاً د پنځه منه غنمو د وړلو لپاره څاروى په كرايه ونيسي، او خالد پر هغه اته منه غنم وسي او په داسي څاروي كي داته منه غنمو د وړلو طاقت وي، لېكن بيا هم د هغه تاب نه راوړي او هلاک سي، نو مستأجر (خالد) چي كوم درې منه زيات غنم پر بار كړي دي، د هغه ضمان (تاوان) پر لازميږي، يعني د څاروي ټوله قيمت به اته حصې كيږي او پر هغه به د دريو حصو ضمان لازمول كيږي؛ ځكه چي په دې صورت كي د پنځه منو بوج (بار) مأذون دى او د دريو منو بوج غير مأذون دى، او هلاكت د بوج په وجه واقع سوى دى، نو ځكه ضمان به پر مأذون او غير مأذون دواړو بوجونو تقسيمول كيږي او پر مستأجر به د غير مأذون بوج ضمان لازمول كيږي. لېكن كه مستأجر پر دغه څاروي دومره زيات غنم بار كړي وي چي څاروى د هغه د وړلو تاب او طاقت بالكل نه لري، نو په دې صورت كي د څاروي په هلاكېدلو سره پر مستأجر د هغه د ټوله قيمت ضمان لازميږي؛ ځكه چي پر څاروي دومره بار وړل له عُرف او عادت څخه خارج دي او په دې فعل سره مستأجر متعدي او تجاوز كونكى دى، نو ځكه هغه به د څاروي د ټوله قيمت ضامن كيږي.

وإن كبح الدابة إلخ: (۳)... كه مستأجر د څاروي قيزه دومره په زوره كش كړي چي هغه هلاک سي يا څاروى په زوره ووهي او هغه هلاک سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مستأجر ضامن كيږي (يعني پر هغه د څاروي د قيمت ضمان [تاوان] لازميږي)، لېكن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي كه مستأجر د څاروي قيزه په دومره زور سره كش كړې وي، څومره چي په عُرف كي د څاروي د بيولو پر مهال كشول كيږي، نو بيا هغه نه ضامن كيږي؛ ځكه كوم كار چي د عُرف مطابق وي، هغه تر مطلق عقد لاندي داخليږي، نو ځكه دا فعل (كشول او وهل) به مالک په اجازت سره وي، او په اجازت والا كار كولو سره مستأجر نه ضامن كيږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي د مالک له طرفه اجازت د سلامتۍ په شرط سره مقيد دى او دلته مستأجر د هغه مخالفت كړى دى؛ ځكه چي د داسي وهلو او قيزه كشولو څخه بغير هم د څاروي بيول ممكن وه، ځكه وهل او قيزه كشول خو د څاروي د تېز بيولو او ځغلولو لپاره وي، گواكي دا په هغه كي زائد فعل دى، نو ځكه په دې كي به اجازت د سلامتۍ په شرط سره مقيد وي، نو كه په دې فعل سره څاروى هلاک سي، نو مستأجر به ضامن كيږي، لكه په لاره كي تلل چي د سلامتۍ په وصف سره مقيد دى، مثلاً كه په لاره كي د تېرېدونكي كس د چال او تک په وجه بل چا ته نقصان ورسيږي، نو تېرېدونكى كس ضامن كيږي، همداسي په دغه مسئله كي به هم وهل او د قيزې را

کښول د سلامتۍ په وصف سره مقيد وي او که د دوی په وجه څاروی هلاک سي، نو مستأجر به ضامن کيږي.

## په کرايه د اخيستل سوي څاروي هلاکېدل (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا إِلَى الْحِيْرَةِ فرمايي: او که څوک تر "حيره" پوري څاروی په کرايه ونيسي فَجَاوَزَ بِهَا إِلَى الْقَادِسِيَّةِ [لېکن] له "حيره" څخه هغه تېر کړي و "قادسيه" ته ثُمَّ رَدَّهَا إِلَى الْحِيْرَةِ ثُمَّ نَفَقَتْ بيا يې "حيره" ته واپس راولي بيا هغه هلاک سي فَهُوَضَامِنٌ نو مستأجر ضامن دی وَكَذٰلِكَ الْعَارِيَّةُ او همدا حکم د عاريت هم دی وَقِيْلَ: تَأْوِيْلُ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ إِذَا اسْتَأْجَرَهَا ذَاهِبًا لَا جَائِيًا لِيَنْتَهِيَ الْعَقْدُ بِالْوُصُوْلِ إِلَى الْحِيْرَةِ او ويل سوي دي: د دغه مسئلې تأويل دا دی چي کله مستأجر هغه څاروی د تللو لپاره په کرايه نيولی وي [نه د راتللو لپاره]، چي و حيره ته په رسېدلو سره عقد ختم سي فَلَا يَصِيْرُ بِالْعَوْدِ مَرْدُوْدًا إِلَى يَدِ الْمَالِكِ مَعْنًى نو ځکه [له قادسيه څخه] په واپس راتللو سره به هغه معناً د مالک لاس ته واپس کړی سوی نه وګرځي وَأَمَّا إِذَا اسْتَأْجَرَهَا ذَاهِبًا وَجَائِيًا لېکن که هغه د تللو او راتللو دواړو لپاره څاروی په کرايه نيولی وي فَيَكُوْنُ بِمَنْزِلَةِ الْمُوْدَعِ إِذَا خَالَفَ ثُمَّ عَادَ إِلَى الْوِفَاقِ نو [په دې صورت کي] مستأجر د هغه مودَع په څېر دی کوم چي [د مالک (مودِع) د حکم] مخالفت وکړي او بيا موافقت ته راوګرځي [يعني بيا مخالفت پرېږدي] وَقِيْلَ: اَلْجَوَابُ مَجْرًى عَلَى الْإِطْلَاقِ او ويل سوي دي: چي دا حکم على الإطلاق جاري دی [يعني مطلق حکم دی] وَالْفَرْقُ أَنَّ الْمُوْدَعَ مَأْمُوْرٌ بِالْحِفْظِ مَقْصُوْدًا او [په وديعت او اجاره کي] فرق دا دی چي مودَع [د امانت] په حفاظت کولو سره بالقصد امر کړی سوی وي فَبَقِيَ الْأَمْرُ بِالْحِفْظِ بَعْدَ الْعَوْدِ إِلَى الْوِفَاقِ نو موافقت ته په راګرځېدلو [مخالفت پرېښوولو] سره د حفاظت کولو امر [پر خپل حال] باقي پاته سو فَحَصَلَ الرَّدُّ إِلَى يَدِ نَائِبِ الْمَالِكِ نو د مالک د نائب [يعني د مودِع] لاس ته واپس کول حاصل سوه وَفِي الْإِجَارَةِ وَالْعَارِيَّةِ يَصِيْرُ الْحِفْظُ مَأْمُوْرًا بِهٖ تَبَعًا لِلْاِسْتِعْمَالِ لَا مَقْصُوْدًا لېکن [په اجاره او عاريت کي حفاظت کول د استعمال د تابع په توګه مامور بهٖ ګرځي، نه د مقصود په توګه [په بله وينا دا چي په اجاره او عاريت کي د حفاظت مأمور بهٖ کېدل د استعمال تابع دي، مقصود بالذات نه دي] فَإِذَا انْقَطَعَ الْاِسْتِعْمَالُ لهذا کله چي استعمال ختم سي لَمْ يَبْقَ هُوَ نَائِبًا نو د مستأجر د

مالک نائب پاتې نه سي فَلَا يَبْرَأُ بِالْعَوْدِ نو ځکه په راګرځېدلو [واپس کېدلو] سره به له ضمان څخه نه بري کيږي وَهٰذَا أَصَحُّ او همدا صحيح قول دی.

**اللغات:** ﴿حِيرة﴾ له کوفې څخه ديوه مېل پر فاصله ليري يو ښار دی چي په هغه کي به شاه نعمان بن منذر اوسېدی، ﴿قادسية﴾ دا هم ديو ځای نوم دی چي د هغه او کوفې په مينځ کي پنځلس ميله مسافه ده، ﴿نفقت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده، نَفَقَ يَنْفُقُ نُفُوْقًا: مړه کېدل، روح وتل، ﴿ذاهبًا﴾ د فتح له بابه د فاعل صيغه ده: تلونکي، ﴿جائيًا﴾ د ضرب له بابه مخکني صيغه ده: راتلونکی، ﴿الوفاق﴾ موافقت، ﴿يبرأ﴾ د سمع له بابه د مضارع صيغه ده: بري کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک تر "حيره" نومي ځايه د تللو لپاره يو څاروی په کرايه ونيسي لېکن بيا هغه څاروی "قادسيه" ته بوزي کوم چي له "حيره" څخه ډېر ليري دی، بيا واپس "حيره" ته راسي او په همدې واپس راتللو کي هغه څاروی هلاک سي، نو مستأجر د هغه د قيمت ضامن کيږي (يعني مالک ته به په تاوان کي د هغه څاروي قيمت ورکوي)، همدا د حکم د عاريت هم دی (يعني که څوک په خواست له يو چا څخه تر "حيره" نومي ځايه د تللو لپاره څاروی واخلي... إلخ). او په دې مسئله کي د مشايخو رَحِمَهُمُ الله دوه نور قولونه هم سته:

(۱)... د ځيني حضراتو رايه دا ده چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي مستأجر محض تر "حيره" پوري د تللو لپاره څاروی په کرايه نيولی وي؛ ځکه چي په دې صورت کي "حيره" ته په رسېدلو سره عقد پوره کيږي او نور سفر او واپس راتلل له عقد څخه خالي کيږي، نو مستأجر به د متعدي او متجاوز کېدلو په وجه ضامن کيږي.

همدارنګه "حيره" ته په واپس راتللو سره مستأجر حکماً او معناً مالک ته يا يې نائب ته د هغه څاروي واپس کونکی نه ګرځي؛ ځکه چي هغه مودَع نه دی چي د مالک نائب جوړ سي. ها! که چيري مستأجر د تګ او راتګ دواړو لپاره څاروی په کرايه نيولی وي، نو هغه د مودَع په حکم سره دی او څرنګه چي مودَع که چيري د مودِع (مالک) د حکم له مخالفت کولو څخه وروسته موافقت وکړي، نو هغه نه ضامن کيږي، همداسي به دغه مستأجر هم له ضمان څخه خلاصيږي.

(۲)... د ځيني نورو مشايخو رايه دا ده چي په دغه مسئله کي پر مستأجر د ضمان واجبېدلو حکم مطلق دی، يعني برابره ده هغه صرف د تللو لپاره څاروی په کرايه نيولی وي يا يې د تګ او راتګ دواړو لپاره نيولی وي، په هر صورت کي پر هغه ضمان لازميږي. او هغه پر مودَع قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي په اجاره او وديعت و عاريت کي فرق دی او هغه دا دی چي په وديعت کي بالقصد (د مقصود

بالذات په توګه) مودَع د امانت حفاظت کوي او هغه د مالک نائب وي، په همدې وجه تر مخالفت وروسته د هغه په موافقت (مخالفت پرېښوولو) سره ضمان ساقطیږي؛ ځکه چي په موافقت کولو سره د مالک د نائب (یعني په خپله د مودَع) وطرف ته د امانت ورسپارل ثابتیږي او د حفاظت کولو امر (حکم) د مخکي په شېر راګرځي. د دې په خلاف په اجاره او عاریت کي حفاظت د استعمال تابع وي، مقصود بالذات نه وي، او له مُتعیّن سوي مقام یعني له "حیره" څخه د تېرېدلو په وجه استعمال ختمیږي او مستأجر د مالک نائب نه پاتیږي، نو په همدې وجه به تر واپس کېدلو وروسته هم هغه له ضمان څخه نه خلاصیږي، همدا صحیح او معتمد قول دی. (احسن الهدایه)

## د خاروي د زین بدلولو حکم

قَالَ: وَمَنِ اكْتَرَىٰ حِمَارًا بِسَرْجٍ فرمايي: او که څوک یو خَر د زین سره په کرایه ونیسي فَنَزَعَ السَّرْجَ وَأَسْرَجَهُ بِسَرْجٍ يُسْرَجُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ بیا زین [له خره څخه] لیري کړي او پر هغه داسي زین کښیږدي چي پر خرونو د همغه په شېر زین ایښوول کیږي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر مستأجر تاوان نسته لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ يُمَاثِلُ الْأَوَّلَ ځکه کله چي دویم زین د اول زین په شېر دی يَتَنَاوَلُهُ إِذْنُ الْمَالِكِ نو دویم زین ته به [هم] د مالک اجازت شامل وي إِذْ لَا فَائِدَةَ فِي التَّقْيِيدِ بِغَيْرِهِ ځکه چي له دغه [اول] زین څخه بغیر په بل زین سره په مقید کولو کي هیڅ فایده نسته [مطلب دا چي د دې ویلو هیڅ فایده نسته چي دا په دې سره مقیّد دی چي له دغه اول زین څخه بغیر بل زین به پر خره نه ایښوول کیږي (کله چي دا بل [دویم] زین د هغه په شېر وي. حاشیه)] إِلَّا إِذَا كَانَ زَائِدًا عَلَيْهِ فِي الْوَزْنِ مګر دا چي کله دویم زین له اول زین څخه په وزن کي زیات وي فَحِينَئِذٍ يَضْمَنُ الزِّيَادَةَ نو په دې صورت کي مستأجر د زیاتوب [زائد مقدار] ضامن کیږي وَإِنْ كَانَ لَا يُسْرَجُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ او که چیري د هغه په شېر زین پر خرونو نه ایښوول کیږي ضَمِنَ نو مستأجر ضامن کیږي لِأَنَّهُ لَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْإِذْنُ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي هغه ته د مالک له طرفه اجازت شامل نه دی فَصَارَ مُخَالِفًا نو مستأجر [د مالک د حکم] مخالفت کونکی وګرځېدی وَإِنْ أَوْكَفَهُ بِإِكَافٍ لَا يُوكَفُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ او که مستأجر [زین لیري کړي او] پر هغه خره داسي زل [ځل] واچوي چي د هغه په شېر زل پر خرونو نه اچول کیږي يَضْمَنُ نو مستأجر ضامن کیږي [یعني پر هغه ضمان (تاوان) واجبیږي] لِمَا قُلْنَا فِي السَّرْجِ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ د زین په باره کي ذکر کړی وَهٰذَا أَوْلَىٰ

نو دا خو به په درجه اولیٰ [موجب د ضمان] وي وَإِنْ أَوْكَفَهُ بِإِكَافٍ يُوكَفُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ او که پر هغه خره داسي زل واچوي چي د هغه په څېر زل پر خرونو ايښوول کيږي يَضْمَنُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ضامن کيږي وَقَالَا ۞ : يَضْمَنُ بِحِسَابِهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د هغه [زائد مساحت] په حساب سره ضامن کيږي [مثلا که زين د خره د ملا دوې لوېشتي ځای نيولی وي او زل څلور لوېشتي ځای ونيسي، نو د نصف قيمت ضامن کيږي •] لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ يُوكَفُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ ځکه کله چي د هغه په څېر زل پر خرونو ايښوول کيږي كَانَ هُوَ وَالسَّرْجُ سَوَاءً نو هغه او زين سره برابر دي فَيَكُونُ الْمَالِكُ رَاضِيًا بِهِ نو ځکه مالک به په هغه [هم] راضي وي إِلَّا إِذَا كَانَ زَائِدًا عَلَى السَّرْجِ فِي الْوَزْنِ مګر دا چي زل له زين څخه په وزن کي زيات وي فَيَضْمَنُ الزِّيَادَةَ نو مستأجر د زياتوب [زائد مقدار] ضامن کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَرْضَ بِالزِّيَادَةِ ځکه چي مالک په زياتوب راضي نه دی فَصَارَ كَالزِّيَادَةِ فِي الْحَمْلِ الْمُسَمَّى إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِهِ نو دا په ټاکلي [متعين کړی سوي] بار کي د زياتوب کولو په څېر سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْإِكَافَ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ السَّرْجِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي زل د زين له جنس څخه نه دی لِأَنَّهُ لِلْحَمْلِ ځکه چي هغه د بار لپاره وي [يعني د بار وړلو لپاره پر خره اچول کيږي] وَالسَّرْجُ لِلرُّكُوبِ او زين د سپرېدلو لپاره وي وَكَذَا يَنْبَسِطُ أَحَدُهُمَا عَلَى ظَهْرِ الدَّابَّةِ مَا لَا يَنْبَسِطُ عَلَيْهِ الْآخَرُ او همدارنګه له دوی څخه يو [يعني زل] د څاروي پر ملا دومره قدر سره غوړېږي چي زين هغومره قدر نه غوړېږي فَكَانَ مُخَالِفًا نو مستأجر [د مالک د حکم] مخالفت کوونکی سو كَمَا إِذَا حَمَلَ الْحَدِيدَ وَقَدْ شَرَطَ لَهُ الْحِنْطَةَ لکه کله چي [پر څاروي] اوسپنه بار کړي حال دا چي مالک [مؤجر] پر

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:۷، ص:۳۱۰)، ومجمع الأنهر (ج:۳، ص:۵۲۷د). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۳۰]

• توضيح: قال صاحب العناية رَحِمَهُ الله في تشريح هذه العبارة "يضمن بحسابه": ... منهم من قال: المراد المساحة حتى إذا كان السرج يأخذ من ظهر الدابة قدر شبرين والإكاف قدر أربعة أشبار، يضمن نصف قيمتها. ومنهم من قال: معناه بحسابه في الثقل والخفة، حتى إذا كان وزن السرج منوين والإكاف ستة أمناء، يضمن ثلثي قيمتها، وإليه أشار المصنف رَحِمَهُ الله في الدليل حيث قال: لأنه إذا كان يوكف بمثله الحمر كان هو والسرج سواء، فيكون المالك راضيا به، إلا إذا كان زائدا على السرج في الوزن، فيضمن الزيادة... إلخ. [العناية ج:۸، ص:۳۲]

هغه د غنمو د بارولو شرط لګولی وي.

**اللغات**: ﴿اکترٰی﴾ د افتعال د باب ماضي ده: په کرایه نیول (په کرایه اخیستل)، ﴿سرج﴾ د آس زین، ځین، د لرګي او څرمنې څخه جوړه سوې هغه آله چې د انسان د سپرېدلو لپاره د آس په ملا باندې اېښوول کیږي، ﴿نزع﴾ د فتح ماضي ده: کښل، لیري کول، ﴿أسرج﴾ د افعال د باب ماضي ده: زین پر اېښوول، ﴿الحمر﴾ جمع د حِمَارٌ ده: خرونه، ﴿يماثل﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: همځیره کېدل، مشابه کېدل، ﴿إكاف﴾ زل، ځل، د ټوکرانو پوښ چې د څارویو په شا باندې اچول کیږي، پالان، ﴿أوكف﴾ د افعال ماضي ده: زل پر اچول، ﴿ينبسط﴾ د انفعال مضارع ده: غوړېدل، هوارېدل.

**تشريح**: په دغه عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی د زين سره خر په کرايه ونيسي، بيا هغه زين ليري کړي او بل داسې زين پر کښېږدي کوم چې پر خرونو اېښوول کيږي او دا دويم زين د اول زين هموزنه وي (يعني دواړه په وزن کې سره برابر وي) بيا هغه خر هلاک سي، نو د دغه بدلون (زين بدلولو) په وجه پر مستأجر هيڅ ضمان (تاوان) نه لازميږي؛ ځکه کله چې دواړه زينونه يو د بل په څېر او هموزنه دي نو په دغه بدلون سره مستأجر متعدي (تجاوز کونکی) نه سو او دغه بدلون د مالک په اجازت او رضا سره واقع سو، او تاسو ته معلومه ده چې کوم کار د مالک (مؤجر) په اجازت سره وسي، په هغه کې ضمان نه لازميږي. ها! که چيري د هغه په څېر زين پر خرونو نه اېښوول کيږي، نو په دې صورت کې د خره په هلاکېدلو پر مستأجر ضمان لازميږي؛ ځکه چې اوس دغه بدلون لره د مالک اجازت او رضا نه شامليږي او مستأجر د هغه د حکم مخالفت کونکی ګرځي، نو ځکه پر هغه به ضمان لازميږي.

(۲)... که مستأجر له خره څخه زين ليري کړي او پر هغه داسې زل واچوي چې د هغه په څېر زل پر خرونو نه اچول کيږي، نو ښکاره خبره ده چې هغه لره د مالک (مؤجر) اجازت نه شامليږي، نو مستأجر به د مالک د حکم د مخالفت کولو په وجه ضامن کيږي؛ ځکه کله چې په هغه صورت کې هم هموزنه او همځيره نه کېدل د ضمان مُوجب دي کله چې زين په هغسې زين سره بدل کړی سي، نو په جلا جنس سره د بدلولو په صورت کې خو به په درجه اولیٰ هموزنه او همځيره نه کېدل د ضمان مُوجب وي.

(۳)... که مستأجر زين ليري کړي او داسې زل پر واچوي چې پر خرونو هم د هغه په څېر زل اچول کيږي، بيا په دې سره خر هلاک سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مستأجر د ټوله قيمت ضامن

کيږي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي څومره مقدار چي زل زيات وي (يعني څومره اندازه چي هغه زيات ځای نيولی وي يا څومره قدر چي هغه زيات درونډ وي) په هغه حساب سره پر مستأجر ضمان لازميږي او تولهٔ قيمت نه پر لازميږي؛ ځکه کله چي پر خرونو هم د هغه په څېر زل اېښوول کيږي (اچول کيږي)، نو زېن او زل دواړه سره برابر سول، نو مالک به د زېن په څېر د هغه زل په اېښوولو هم راضي وي او مستأجر به صرف د هغه مقدار ضامن وي کوم مقدار چي په مساحت او وزن کي له زېن څخه زائد (زيات) وي؛ ځکه چي مالک په زائد مقدار راضي نه دی، نو ځکه دا زائد مقدار به د ضمان مُوجِب وي.

د دې مثال داسي دی لکه مستأجر چي د پنځه منه غنمو د وړلو لپاره څاروی په کرايه ونيسي او بيا پر هغه اته منه غنم يووسي چي د دې په وجه هغه څاروی مړ سي، نو پر مستأجر د زائد مقدار په حساب سره (يعني د دريو منو) ضمان لازميږي، همداسي به دلته هم پر هغه د زائد مقدار ضمان لازميږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي زېن او زل دواړه جلا شيان دي؛ ځکه چي زل عموماً د يو شي د وړلو او بارولو لپاره پر څاروي اېښوول کيږي، حال دا چي زېن د سپرېدلو لپاره پر اېښوول کيږي، همدارنګه زل د زېن په مقابله کي د څاروي پر ملا زيات غوړېږي، لهذا د زېن پر ځای د زل په اېښوولو سره مستأجر د مالک د حکم مخالفت کړی دی او د همدې مخالفت په وجه څاروی هلاک سوی دی، نو ځکه به مستأجر د تولهٔ قيمت ضامن کيږي او صرف د زائد مقدار په ضمان ورکولو سره به هغه نه خلاصيږي. (احسن الهدايه)

## که مزدور لاره بدله کړي (حکم او وضاحت)

وَإِنِ اسْتَأْجَرَ حَمَّالًا لِيَحْمِلَ لَهُ طَعَامًا فِي طَرِيقٍ كَذَا او که څوک يو بار وړونکی مزدور [پلنډي] د دې لپاره په أجرت ونيسي چي هغه پر فلانکۍ لاره د ده غله يووسي فَأَخَذَ فِي طَرِيقٍ غَيْرِهِ يَسْلُكُهُ النَّاسُ لېکن حمال له هغه څخه بغير پر بله داسي لاره غله يووسي چي خلک پکښي ځي فَهَلَكَ الْمَتَاعُ بيا سامان [غله] ضايع سي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر حمال ضمان نسته وَإِنْ بَلَغَ او که سامان [متعين ځای ته] ورسيږي [يعني حمال هغه سامان (غله) خپل ځای ته ورسوي] فَلَهُ الْأَجْرُ نو د حمال لپاره أجرت سته [يعني هغه ته به خپل أجرت (مزدوري) ورکول کيږي] وَهٰذَا إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ الطَّرِيقَيْنِ تَفَاوُتٌ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي د دواړو لارو په مينځ کي تفاوت [توپير] نه وي لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ التَّقْيِيدَ غَيْرُ مُفِيدٍ ځکه چي په دې صورت [يعني د تفاوت د نشتوالي په صورت] کي د لاري قيد لګول مفيد نه دي

أَمَّا إِذَا كَانَ تَفَاوُتٌ لېکن که چیري [د دواړو لارو په مینځ کې] تفاوت وي يَضْمَنُ نو حمال ضامن کیږي لِصِحَّةِ التَّقْيِيدِ د قید لګولو د صحیح والي په وجه فَإِنَّ التَّقْيِيدَ مُفِيدٌ ځکه چي [اوس] قید لګول مفید دي إِلَّا أَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ التَّفَاوُتِ إِذَا كَانَ طَرِيقًا يَسْلُكُهُ النَّاسُ مګر دا چي ښکاره د تفاوت نشتوالي دی کله چي هغه داسي لاره وي چي خلک پکښي ځي [یعني تګ راتګ پکښي کوي] فَلَمْ يُفَصِّلْ نو ځکه ماتن رَحِمَهُ الله [په حکم کې] هیڅ تفصیل نه دی کړی وَإِنْ كَانَ طَرِيقًا لَا يَسْلُكُهُ النَّاسُ او که هغه داسي لاره وي چي خلک نه پکښي ځي فَهَلَكَ بیا سامان ضایع سي ضَمِنَ نو حمال ضامن کیږي لِأَنَّهُ صَحَّ التَّقْيِيدُ ځکه چي [د لاري] قید لګول صحیح سوه فَصَارَ مُخَالِفًا نو حمال مخالفت کونکی وګرځېدی وَإِنْ بَلَغَ لېکن که سامان [متعین ځای] ته ورسیږي فَلَهُ الْأَجْرُ نو د هغه لپاره أجرت [مزدوري] سته لِأَنَّهُ ارْتَفَعَ الْخِلَافُ مَعْنًى وَإِنْ بَقِيَ صُورَةً ځکه چي د معنیٰ په اعتبار سره اختلاف ختم سو که څه هم د صورت په اعتبار سره پاته دی قَالَ: وَإِنْ حَمَلَهُ فِي الْبَحْرِ فِيمَا يَحْمِلُهُ النَّاسُ فِي الْبَرِّ فرمایي: او که حمال داسي سامان په سمندر کې [د سمندر د لاري] یووسي کوم چي خلک په وچه کې وړي ضَمِنَ نو [د سامان ضایع کېدلو صورت کې] هغه ضامن کیږي لِفُحْشِ التَّفَاوُتِ بَيْنَ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ځکه چي په بر او بحر کې ډېر تفاوت [توپیر] سته وَإِنْ بَلَغَ لېکن که هغه سامان [خپل ځای ته] ورسیږي فَلَهُ الْأَجْرُ نو د حمال لپاره أجرت [مزدوري] سته لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ وَارْتِفَاعِ الْخِلَافِ مَعْنًى ځکه چي [د مستأجر] مقصد حاصل سو او معناً اختلاف ختم سو.

**اللغات:** ﴿حمّال﴾ بار وړونکی کس، پلنډي، ﴿طعام﴾ مخکي موږ ذکر کړه چي که دا لفظ مطلق ذکر سي، نو مراد ځني غله ده، یعني غنم، اوربشي او داسي نور، او د اهل حجاز او اهل عراق په نېز صرف غنم ځني مرادیږي (معجم الوسیط)، ﴿متاع﴾ هر هغه څه چي نفع ځني اخیستل ما سوا له سرو او سپینو زرو څخه. لکه غله، کورنی سامان او داسي، صاحب د معجم العربي یې داسي تعریف کړی دی: ''كُلُّ مَا يُنْتَفَعُ بِهِ مِنَ الحَاجَاتِ كَالطَّعَامِ وَأَثَاثِ الْبَيْتِ وَالأَدَوَاتِ وَالسِّلَعِ وَغَيْرِهَا سِوَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ''. ﴿يسلك﴾ د نصر د باب مضارع ده: تلل، تګ کول. ﴿تفاوت﴾ د تفاعل اسمِ مصدر

دی: توپیر، اختلاف (بېل والی)، فرق. ﴿ارتفع﴾ دافتعال ماضي ده: پورته کېدل، لیري کېدل، ختمېدل. ﴿البحر﴾ سمندر، سمندري لاره. ﴿البَرّ﴾ وچه، ځمکنۍ (زمیني) لاره.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید (مثلاً) حمال وي یعني د خلکو سامانونه او بارونه له یوه ځایه بل ځای ته وړي، بیا یو سړی مثلاً ادریس هغه ته ووایي چې "ته! زما دغه سامان پر فلانکۍ لاره زما کور ته ورسوه!"، لېکن زید هغه سامان پر بله لاره یووسي او هغه هم عامه لاره وي چې خلک پکښې ځي راځي یعني دواړي لاري په امن وي او هیڅ تفاوت پکښې نه وي، نو که په دې صورت کې هغه سامان په لاره کې هلاک سي، نو پر مستأجر ضمان نه لازمیږي؛ ځکه کله چې په دواړو لارو کې هیڅ تفاوت او فرق نسته نو د ادریس (مالک) له طرفه دیوې لاري مُتعیّن کول او قید لګول هیڅ فایده نه کوي، نو ځکه محض د لاري بدلولو په وجه به زید نه ضامن کیږي. د دې په خلاف که زید پر ناعامه او نا معتبره لاره هغه سامان یووسي یا یې پر داسي لاره یووسي چې د هغې او مُتعیّن کرده لاري په مینځ کې زیات فرق وي، نو په دې دواړو صورتونو کې د سامان په هلاکېدلو سره پر هغه ضمان لازمیږي؛ ځکه چې اوس د مُتعیّنه لاري قید لګول مفید دي نو د هغه مُتعیّني لاري د بدلولو په وجه حمال (زید) په هر اعتبار سره د مالک د حکم مخالفت کونکی ګرځي، نو ځکه به هغه ضامن کیږي، خو بیا هم که مستأجر پر دغه دویمه (نا عامه او متفاوته) لاره د ادریس کور ته سامان ورسوي، نو هغه ته به خپل ټاکل سوی أجرت او مزدوري ورکول کیږي؛ ځکه چې د مالک (ادریس) مقصد حاصل سو او سامان د هغه تر کوره ورسېدی، نو ځکه په دې حواله سره معناً اختلاف ختم سو، که څه هم ظاهرا دا اختلاف پاته دی چې حمال د مالک د حکم مخالفت کړی دی، همدا حال د بحري او بري لاري د بدلولو هم دی چې د هغه صورت مسئله د پورتنۍ مسئلې په څېر دی.

## د غنمو پر ځای سابه (سبزیجات) کرل

قَالَ: وَمَنْ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا لِيَزْرَعَهَا حِنْطَةً فرمايي: او که څوک ځمکه د دې لپاره په اجاره ونیسي چې په هغې کې غنم وکري فَزَرَعَهَا رَطْبَةً بیا په هغې کې یو سبزي وکري ضَمِنَ مَا نَقَصَهَا نو ضامن کیږي د هغه نقصان کوم چې ځمکي ته رسېدلی وي لِأَنَّ الرِّطَابَ أَضَرُّ بِالْأَرْضِ مِنَ الْحِنْطَةِ ځکه د ځمکي لپاره سبزیجات له غنمو څخه زیات نقصان من دي لِانْتِشَارِ عُرُوقِهَا فِيهَا وَكَثْرَةِ الْحَاجَةِ إِلَى سَقْيِهَا ځکه چې د هغوی ریښې په ځمکه کې زیات خپرېږي او د هغوی اوبه کولو ته زیات ضرورت پیښیږي فَكَانَ خِلَافًا إِلَى شَرٍّ نو دا دبدۍ وطرف ته مخالفت کول دي [یعني دا داسي مخالفت

دی چي په هغه سره د ځمکي مالک ته د نېکی پر ځای بدي رسيږي] فَيَضْمَنُ مَا نَقَصَهَا نو ځکه مستأجر به د هغه نقصان ضامن کيږي کوم چي ځمکې ته رسېدلی وي وَلَا أَجْرَلَهُ او د مالک لپاره [د ځمکي] أُجرت نسته [يعني مالک ته به هم د ځمکي کرايه نه ورکول کيږي] لِأَنَّهُ غَاصِبٌ لِلْأَرْضِ عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ ځکه چي زموږ د بيان سوي دليل [لأن الرطاب أضر إلخ] پر بناء مستأجر د ځمکي غصب کونکی دی.

**اللغات**: ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په اجاره نيول، په کرايه نيول، ﴿يزرع﴾ کرل، کښت کول، ﴿رَطبة﴾ مخکي موږ ذکر کړه چي د دغه لفظ دوې معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: سبزيجات يعني بانجن، توری، ختکي و هندوانې او داسي نور، ﴿أضرّ﴾ ډېر ضرر من، زيات نقصان من، ﴿عروق﴾ جمع د عِرْقٌ ده: رېښه، بېخ، ﴿سَقْي﴾ د ضرب مصدر دی: اوبه کول، اوبه ورکول.

**تشريح**: صورت د مسئلې خوښکاره دی چي که څوک د غنمو د کرلو لپاره ځمکه په کرايه ونيسي او بيا په هغې کي سبزيجات او منتشره ريښنو والا شيان وکري چي د هغوی کښت د ځمکي لپاره نقصان من وي، نو ښکاره ده خبره ده چي په دې صورت کي مستأجر د ټاکل سوي شي (غنمو) او ځمکي د مالک د حکم مخالفت کونکی دی او مخالفت هم داسي دی چي په هغه سره د ځمکي مالک ته د ښېګڼې پر ځای نقصان او بدي رسيږي، نو په دې اعتبار سره هغه مستأجر نه دی بلکي د ځمکي غاصب (غصبونکی) دی، نو ځکه پر هغه به د ځمکي أُجرت او کرايه لازم نه وي بلکي هغه به د ځمکي مالک ته د واقع سوي نقصان پوره ضمان (تاوان) ورکوي. (احسن الهدايه)

## که خياط د متعيّن شده جامې پر ځای بله جامه جوړه کړه (حکم او وضاحت)

قَالَ: وَمَنْ دَفَعَ إِلَىٰ خَيَّاطٍ ثَوْبًا لِيَخِيطَهُ قَمِيصًا بِدِرْهَمٍ فرمايي: او که څوک خياط [درزي] ته يوه کپړه ورکړي چي له هغه څخه کميس جوړ کړي په يوه درهم [يعني يو درهم مزدوري وټاکي] فَخَاطَهُ قَبَاءً [لېکن] خياط له هغه کپړې څخه چوغه جوړه کړي فَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ الثَّوْبِ نو که مالک وغواړي نو له هغه [خياط] څخه دي د کپړې د قيمت ضمان [تاوان] واخلي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْقَبَاءَ وَأَعْطَاهُ أَجْرَ مِثْلِهِ او که وغواړي نو قبا دي واخلي او هغه ته دي خپل أُجرتِ مثلي ورکړي وَلَا يُجَاوِزُ بِهِ دِرْهَمًا او هغه [أجرت مثلي] به تر يوه درهم نه زياتوي قِيلَ: مَعْنَاهُ الْقُرْطُقُ الَّذِي هُوَ ذُو طَاقٍ وَاحِدٍ ويل سوي دي: چي له قبا څخه مراد هغه [د چپني په څير] اوږده جامه ده کوم چي يو غبرګ والا [يوه ورستوې]

وي لِأَنَّهُ يُسْتَعْمَلُ اسْتِعْمَالَ الْقَبَاءِ ځکه چي هغه د قبا په څېر استعماليږي وَقِيلَ: هُوَ مَجْرَى عَلَى إِطْلَاقِهِ او ويل سوي دي چي [دلته] قبا پر خپل اطلاق جاري ده لِأَنَّهُمَا يَتَقَارَبَانِ فِي الْمَنْفَعَةِ ځکه چي دواړه په منفعت کي سره نژدې دي [يعني له قباء او قرطق دواړو څخه يو ډول کار اخيستل کېږي] وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يُضَمِّنُ مِنْ غَيْرِ خِيَارٍ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي مالک به [له خياط څخه] ضمان واخلي، بغير له اختياره [يعني مالک ته به د ضمان اخيستلو او قبا اخيستلو تر مينځ اختيار نه ورکول کيږي. بلکي مالک به صرف ضمان (د کپړې د قيمت تاوان) څني اخلي] لِأَنَّ الْقَبَاءَ خِلَافُ جِنْسِ الْقَمِيصِ ځکه چي قبا د کميس د جنس په خلاف ده وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ قَمِيصٌ مِنْ وَجْهٍ د ظاهر روايت دليل دا دی چي قبا هم په يوه اعتبار سره کميس دی لِأَنَّهُ يُشَدُّ وَسَطُهُ ځکه چي د هغه مينځ تړل کيږي وَيُنْتَفَعُ بِهِ انْتِفَاعَ الْقَمِيصِ او د کميس په څېر له هغه څخه نفع اخيستل کيږي فَجَاءَتِ الْمُوَافَقَةُ وَالْمُخَالَفَةُ نو موافقت او مخالفت دواړه موجود سوه فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّ الْجِهَتَيْنِ شَاءَ نو ځکه مالک چي په دواړو طرفونو کي کوم ته طرف وغواړي ميلان دي وکړي إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ مګر [پر هغه] أجرتِ مثلي واجبيږي لِقُصُورِ جِهَةِ الْمُوَافَقَةِ د موافقت په جهت کي د قصور په وجه [يعني ځکه چي د موافقت جهت ناقص او کمزوری دی] وَلَا يُجَاوِزُ بِهِ الدِّرْهَمَ الْمُسَمَّى او دا أجرت به له ټاکلي [بيان کرده] درهم څخه نه زياتوي كَمَا هُوَ الْحُكْمُ فِي سَائِرِ الْإِجَارَاتِ الْفَاسِدَةِ لکه څرنګه چي د ټولو فاسده اجاراتو همدغه حکم دی عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ فِي بَابِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چي هغه به موږ انشاء الله تعالیٰ په خپل باب کي بيان کړو وَلَوْ خَاطَهُ سَرَاوِيلَ وَقَدْ أَمَرَ بِالْقَبَاءِ او که خياط له کپړې څخه پرتوګ جوړ کړي حال دا چي مالک هغه ته د قبا [چوغې] حکم کړی وي قِيلَ: يُضَمِّنُ مِنْ غَيْرِ خِيَارٍ نو ويل سوي دي: چي مالک به [له خياط څخه] ضمان اخلي، بغير له اختياره لِلتَّفَاوُتِ فِي الْمَنْفَعَةِ ځکه چي په منفعت کي تفاوت سته وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُخَيَّرُ او زياته صحيح دا ده چي هغه ته به اختيار ورکول کيږي لِلِاتِّحَادِ فِي أَصْلِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي په اصل منفعت کي اتحاد سته وَصَارَ كَمَا إِذَا أُمِرَ بِضَرْبِ طَسْتٍ مِنْ شَبَهٍ او دا داسي سوه لکه يو کاريګر ته چي له مسو څخه د تال جوړولو حکم سوی وي فَضَرَبَ مِنْهُ كُوزًا لېکن هغه له مسو څخه کوزه جوړه کړي فَإِنَّهُ يُخَيَّرُ نو [په دې صورت کي هم] مالک ته اختيار ورکول کيږي كَذَا هٰذَا نو همداسي به دا هم وي.

**اللغات**: ﴿خياط﴾ خياط (درزي)، کپړه کنډونکي، کالي او جامه جوړونکی، ﴿يخيطه﴾ د ضرب مضارع ده: کپړه ګنډل، کالي او جامه جوړول، ﴿قباء﴾ (د قاف په فتحه سره): قبا، اوږده چوغه، يو ډول چپنه، عربي

قاموسونو يې داسي تعريف کړی دی: "ثَوْبٌ يُلْبَسُ فَوْقَ الثِّيَابِ أَوِ الْقَمِيصِ وَيَتَمَنْطَقُ عَلَيْهِ" (هغه کپړه کوم چي د جامو [کاليو] د پاسه اغوستل کيږي او د هغې مينځ په تسمه [پټۍ] سره تړل کيږي)، او قُبَاء (د قاف په ضمه او الفِ ممدوده سره): مدينې منورې ته نژدې يو علاقه ده چي په هغه کي اول مسجد نبي کريم ﷺ د "مسجد قباء" په نامه سره جوړ کړی دی، ﴿قرطق﴾ صاحب د مصباح المنير ويلي دي چي دا لفظ د جَعْفَر په شکل يعني قَرْطَق دی او هغه يې داسي تعريف کړی دی: "مَلْبُوسٌ يُشْبِهُ الْقَبَاءَ، وَهُوَ مِنْ مَلَابِسِ الْعَجَمِ" (يعني قرطق د قبا په څېر يوه جامه ده، او دا د عجمو له جامو څخه ده)، ﴿يتقاربان﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: يو بل ته نژدې کېدل (سره نژدې کېدل)، ﴿يُشَدّ﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: تړل، ټينګول، ﴿سراويل﴾ پرتوګ، ﴿طست﴾ تال، عربي قاموسونو يې داسي تعريف کړی دی "إِنَاءٌ كَبِيرٌ مُسْتَدِيرٌ يُوضَعُ فِيهِ لِلْغُسْلِ وَنَحْوِهِ" کوم ته چي زموږ په اصطلاح لګن ويل کيږي، ﴿الشَّبَه﴾ (د شين او باء په فتحه سره): مس، ژړ (ځکه چي دوی د سرو زرو سره مشابه وي)، په حاشيه کي ليکل سوي دي چي دا د مسو يو قسم دی کوم چي د سرو زرو سره مشابه دی چي له هغه څخه به بتان جوړول کېدل، ﴿کُوز﴾ کوزه، هغه لاستي لرونکی لوښی چي د چيښلو او داسي نورو لپاره وبه پکښي خوندي کيږي.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که څوک خياط (درزي) ته يو کپړه ورکړي او هغه ته داسي ووايي چي "ته! له دغه کپړې څخه د يوه درهم په عوض کي زما کميس جوړ کړه!"، لېکن خياط د مالک د حکم مخالفت وکړي او له هغه څخه قبا (چوغه) جوړه کړي، نو په ظاهر روايت کي مالک ته په دې صورت کي د دوو شيانو اختيار ورکول سوی دی: ① يو دا چي هغه دي چي له دغه خياط څخه د خپلي کپړې ټوله قيمت د ضمان (تاوان) په توګه واخلي (يعني د کپړې قيمت چي څومره وي، هغومره پيسې دي ځني واخلي او کپړه دي نه ځني اخلي). ② يا دا چي له خياط څخه دي جوړه سوې قبا واخلي او هغه ته دي خپل أجرتِ مثلي ورکړي (يعني څومره مزدوري چي په عامه توګه پر داسي کار ورکول کيږي، هغومره مزدوري دي ورکړي)، لېکن دغه أجرت (مزدوري) به له يوه درهم څخه اضافه نه وي؛ ځکه چي په عقد کي يو درهم ټاکل سوی دی، نو ځکه أجرت به له هغه څخه نه اضافه کيږي.

قيل إلخ: له دې ځايه د قباء مصداق او مراد بيان سوی دی، فرمايي چي ځيني حضرت له دغه قباء څخه د چوغې او چپنې په څېر هغه اوږده جامه مرادوي کوم چي صرف يو غبرګ ده او د قباء په څېر استعماليږي (لکه څرنګه چي د ترک خلک هغه د کميس پر ځای استعمالوي)؛ او د ځيني حضراتو رايه دا ده چي له قباء څخه مطلقاً قبا او چوغه مراد ده او له هغه څخه خاص د قرطق مرادولو هيڅ ضرورت نسته؛ ځکه چي قبا او هغه دواړ قريب المنفعت دي او په دواړو سره د ستر پټول، له يخ څخه حفاظت او داسي نور مقاصد حاصلول کيږي.

وعن أبي حنيفة إلخ: له امام صاحب رَحِمَهُ الله د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی چي په پورتنۍ مسئله کي د جامې مالک له خياط څخه صرف د کپړې ضمان (تاوان) اخيستلای سي او هغه ته د قبا اخيستلو اختيار نسته؛ ځکه چي کميس او قبا دواړه جلا جنسونه دي نو خياط په هر اعتبار سره د مالک د حکم او رضا مخالفت کونکي دی، نو ځکه هغه د غاصب په څېر دی، او پر غاصب د ټوله مغصوب شي ضمان لازميږي، نو ځکه پر دغه خياط به هم د ټولې کپړې ضمان لازميږي.

د ظاهر روايت دليل دا دی چي دلته (په قبا او کميس) موافقت او مخالفت دواړه سره جمع دي، مخالفت خو په دې توګه دی چي په قباء او کميس کي د نوم، جوړ (جوړښت) او ډيزاين په اعتبار سره فرق دی او موافقت په دې توګه دی چي د کار او منفعت په اعتبار سره دواړه متحد (يو) دي يعني له دواړو څخه يو ډول کار اخيستل کيږي او قبا هم د کميس په څېر تړل کېدای سي، نو ځکه مورږ مالک ته اختيار ورکړی دی چي که هغه وغواړي نو د مخالفت والا اړخ دي اختيار کړي او له خياط څخه دي د کپړې قيمت واخلي او که وغواړي نو د موافقت والا اړخ په اختيارولو سره دي قبا ځني واخلي او أُجرتِ مثلي دي ورکړي چي هغه به له ټاکل سوي أجرت (يوه درهم) څخه نه زياتول کيږي.

(٢)... دويمه مسئله دا ده چي يو سړی و خياط ته کپړه ورکړي او هغه ته د قبا جوړولو حکم وکړي، لېکن خياط له هغه کپړې څخه پرتوګ جوړ کړي، نو په دې صورت کي د ځيني حضراتو رايه دا ده چي پرتوګ او قبا د نامه او جوړ په اعتبار سره جلا دي، نو ځکه مالک به له خياط څخه د خپلې کپړې قيمت اخلي، بله چاره نسته. لېکن صحيح او معتمد قول دا دی چي په دې صورت کي به هم د مخکنۍ مسئلې په څېر مالک ته دواړه اختياره ورکول کيږي يعني که هغه وغواړي نو له خياط څخه دي د کپړې قيمت واخلي او که وغواړي نو جوړ سوی پرتوګ دي ځني واخلي او أُجرتِ مثلي دي ورکړي؛ ځکه چي دلته هم د منفعت او کار په اعتبار سره په دواړو کي يو والی (اتحاد) سته، او اصل شی منفعت دی، لهذا کله چي دوی په منفعت کي سره يو دي، نو د نوم او جوړ په مختلف کېدلو سره به پروا نه کيږي. د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي آهنګر (پښ) ته يوه ټوټه مس ورکړي او هغه ته ووايي چي "ما ته له دغه مسو څخه تال را جوړ کړه!"، لېکن آهنګر د تال پر ځای له هغه څخه کوزه جوړه کړي، نو څرنګه چي تال او کوزه په منفعت کي سره نژدې دي، نو ځکه مالک ته اختيار ورکول کيږي چي که هغه وغواړي نو له خياط څخه دي جوړه سوې کوزه واخلي او هغه ته دي خپل أجرت مثلي ورکړي او که وغواړي نو له هغه څخه دي د ضمان (تاوان) په توګه د مسو د ټوټې قيمت واخلي.

والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الإِجَارَةِ الفَاسِدَةِ

(دا) باب د فاسدي اجارې (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: مخکې تر دې د اجارۀ صحیحه بیان وو، او اوس د اجارۀ فاسده بیان کېږي او دا بالکل ښکاره خبره ده چې فاسد له صحیح څخه مؤخر (وروسته) وي.

## په کومو شیانو سره اجاره فاسدېږي؟

قَالَ: الْإِجَارَةُ تُفْسِدُهَا الشُّرُوطُ فرمايي: [د عقد د مقتضا مخالف] شرطونه اجاره فاسدوي كَمَا تُفْسِدُ الْبَيْعَ لکه څرنګه چې بیع فاسدوي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَتِهِ ځکه چې اجاره د بیع په درجه کې ده أَلَا تَرَى أَنَّهُ عَقْدٌ يُقَالُ وَيُفْسَخُ آیا ته نه ګورې! چې اجاره داسې عقد دی چې د هغه هم اقاله او فسخ کول کېږي وَالْوَاجِبُ فِي الْإِجَارَةِ الْفَاسِدَةِ أَجْرُ الْمِثْلِ لَا يُجَاوِزُ بِهِ الْمُسَمَّى او په اجارۀ فاسده [فاسده شوې اجاره] کې واجب أجرتِ مثلي دی چې هغه به له ټاکل شوي أجرت څخه نه اضافه کوي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: يَجِبُ بَالِغًا مَا بَلَغَ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې أُجرتِ مثلي واجبېږي تر کومه ځایه چې هغه ورسېږي [يعني هغه که هر څومره وي يعني که څه هم تر ټاکل شوي أُجرت اضافه سي] اعْتِبَارًا بِبَيْعِ الْأَعْيَانِ داعیانو پر بیع په قیاس کولو سره وَلَنَا: أَنَّ الْمَنَافِعَ لَا تَتَقَوَّمُ بِنَفْسِهَا او زموږ دلیل دا دی چې منافع بذات خود متقوّم [قیمت لرونکي] نه وي بَلْ بِالْعَقْدِ لِحَاجَةِ النَّاسِ بلکې په عقد سره د خلکو د ضرورت په وجه متقوّم ګرځي فَيُكْتَفَى بِالضَّرُورَةِ فِي الصَّحِيحِ مِنْهَا نو ځکه د ضرورت په خاطر به [صرف] د اجارې پر صحیح عقد اکتفاء کېږي إِلَّا أَنَّ الْفَاسِدَ تَبَعٌ لَهُ مګر [څرنګه چې] اجارۀ فاسده د اجارۀ صحیحه تابع ده فَيُعْتَبَرُ مَا يُجْعَلُ بَدَلًا فِي الصَّحِيحِ عَادَةً نو ځکه په اجارۀ صحیحه کې چې عادتاً [او عموماً] کوم شی بدل ګرځول کېږي په اجارۀ فاسده کې به هغه معتبر وي [او هغه أجرتِ مثلي دی] لَكِنَّهُمَا إِذَا اتَّفَقَا عَلَى مِقْدَارٍ فِي الْفَاسِدِ لیکن کله چې په اجارۀ فاسده کې دواړه عاقدین پر یو مقدار متفق سول فَقَدْ أَسْقَطَا الزِّيَادَةَ نو هغوی زیاتوب [زائد مقدار] ساقط کړی وَإِذَا

نَقَصَ أَجْرُ الْمِثْلِ او كله چي أُجرتِ مثلي [له ټاکل سوي أجرت څخه] کم وي لَمْ يَجِبْ زِيَادَةُ الْمُسَمّٰى نو ټاکل سوی زائد أجرت به نه واجبيږي [يعني له ټاکل سوي أجرت څخه به زيات أجرت نه واجبيږي] لِفَسَادِ التَّسْمِيَةِ ځکه چي [أجرت] ټاکل فاسد سوه بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّ الْعَيْنَ مُتَقَوِّمَةٌ فِي نَفْسِهَا ځکه چي عَين شی بذات خود متقوّم وي وَهُوَ الْمُوجَبُ الْأَصْلِيُّ او همدا قيمت [متقوّم کېدل] اصلي مُوجب دی فَإِنْ صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ نو که چيري [په بيع کي] تسميه صحيح وي اِنْتَقَلَ عَنْهُ نو له اصلي مُوجب څخه به [د ټاکل سوي ثمن وطرف ته] منتقل کيږي وَإِلَّا فَلَا کنې نه به منتقل کيږي

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَارًا كُلَّ شَهْرٍ بِدِرْهَمٍ او که څوک يو کور په کرايه ونيسي هره مياشته په يوه درهم فَالْعَقْدُ صَحِيحٌ فِي شَهْرٍ وَاحِدٍ فَاسِدٌ فِي بَقِيَّةِ الشُّهُورِ نو دا عقد [فقط] په يوه مياشته کي صحيح او پاته مياشتو کي فاسد دی إِلَّا أَنْ يُسَمِّيَ جُمْلَةَ الشُّهُورِ مَعْلُومَةً مګر دا چي ټوله مياشتي په معلومه توګه بيان کړي لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ كَلِمَةَ كُلٍّ إِذَا دَخَلَتْ فِيمَا لَا نِهَايَةَ لَهُ ځکه اصل دا دی چي کله کلمه د "كُلّ" کله پر داسي شي داخله سي چي هغه لره انتهاء نه وي [يعني انتهاء يې معلومه نه وي] تَنْصَرِفُ إِلَى الْوَاحِدِ نو هغه [فقط] ديوه وطرف ته راجع کيږي لِتَعَذُّرِ الْعَمَلِ بِالْعُمُومِ ځکه چي [په دې صورت کي] پر عموم عمل کول ناممکن دي وَكَانَ الشَّهْرُ الْوَاحِدُ مَعْلُومًا او [څرنګه چي] يوه مياشته معلومه ده فَصَحَّ الْعَقْدُ فِيهِ نو ځکه په هغه [يوه مياشته] کي به عقد صحيح وي وَإِذَا تَمَّ او کله چي يوه مياشته پوره سي كَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَنْقُضَ الْإِجَارَةَ نو له هغوی دواړو څخه هر يوه ته دا اختيار دی چي اجاره ماته کړي لِانْتِهَاءِ الْعَقْدِ الصَّحِيحِ ځکه چي صحيح عقد [پر يوه مياشته] پوره سو فَلَوْ سَمّٰى جُمْلَةَ شُهُورٍ مَعْلُومَةٍ خو که چيري ټوله مياشتي معلومه بيان کړي جَازَ نو [په مابقي مياشتو کي هم] عقد جائز کيږي لِأَنَّ الْمُدَّةَ صَارَتْ مَعْلُومَةً ځکه چي [اوس] مودت معلوم وګرځېدی.

**اللغات:** ﴿أجر المثل﴾ أجرت مثلي، عمومي کرايه او مزدوري (يعني دعمومي رېتي او عُرف مطابق چي د يو کور يا ديو مزدور څومره أجرت او کرايه وي يا په عمومي توګه چي پر يو کار څومره مزدوري ورکول کيږي، هغه ته أجرتِ مثلي وايي)، ﴿أعيان﴾ مُتعيّن شيان، ﴿لا تتقوم﴾ د تفعّل د باب نفي صيغه ده: متقوّم (قيمتداره) کېدل، قيمتي کېدل، ﴿لايجاوز﴾ د مفاعلې د باب نفي ده: تجاوز کول، تېرېدل، مخته

تلل، ﴿تسمية﴾ د تفعيل مصدر دی: ټاکل، مُتعيّن کول، بيانول (ذکر کول)، ﴿تنصرف﴾ دانفعال مضارع ده: راجع کېدل، ګرځېدل، متعلق کېدل، ﴿ينقض﴾ د نصر مضارع ده: ماتول، ختمول، ﴿سمّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: ټاکل، بيانول (ذکر کول).

**تشريح**: په عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي څرنګه په داسي شرطونو سره بيع فاسديږي کوم چي د عقد د مقتضا خلاف وي، همداسي په هغه شرطونو سره اجاره هم فاسديږي، نو که څوک پر دې شرط مستأجر ته کور ورکړي چي مستأجر به د دغه کور مات ځايونه جوړوي او دا خرچه به له کرايې څخه نه اخلي (بلکي کرايه به پوره راکوي)، نو ښکاره خبره ده چي دا شرط د عقد اجاره د مقتضا خلاف دی نو په دې سره اجاره فاسديږي، او کله چي اجاره فاسده سي نو په هغې کي اُجرتِ مثلي واجبيږي او عاقدَينو چي په خپل مينځ کي کوم اُجرت ټاکلی وي، هغه نه واجبيږي او دغه اُجرتِ مثلي به د عاقدَينو له ټاکل سوي اُجرت څخه نه اضافه کيږي، او د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز هم اُجرتِ مثلي واجبيږي ليکن هغه په مطلق توګه واجبيږي يعني په هغه کي به دا قيد او شرط نه وي چي هغه به له ټاکل سوي اُجرت څخه نه اضافه کيږي؛ ځکه چي د دغه حضراتو په نيز منافع د اعيانو په څېر متقوّم دي (يعني د دوی په نيز د شيانو منافع د شيانو په څېر قيمتداره [قيمت لرونکي] دي) او د اعيانو په معامله کي که عقد فاسد سي نو اُجرتِ مثلي واجبيږي برابره ده هغه که هر څومره وي، يعني په هغه کي دا شرط نه دي چي هغه به له ټاکل سوي اُجرت څخه نه اضافه کيږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم پوره اُجرتِ مثلي واجبيږي او په هغه کي به هيڅ قيد او شرط نه لګول کيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي په اعيانو او منافعو کي فرق سته نو دواړه يو ډول ګرځول صحيح نه دي، فرق يې دا دی چي اعيان خو بذاتِ خود متقوّم او قيمتداره دي ليکن په منافعو کي تقوّم (متقوّم کېدل) معلوم او نا موجوده وي؛ ځکه چي د تقوّم لپاره احراز ضروري دی (يعني د شي د متقوّم کېدلو لپاره دا ضروري ده چي هغه به محفوظ او خوندي کېدای سي) حال دا چي منافع بې ثباته او نا قائمه وي او د هغوی احراز (خوندي کول) نا ممکن وي (ځکه چي هغوی سمدستي استعماليږي او ختميږي)، نو په همدې وجه په هره زمانه کي فقهاؤ عقد اجاره فقط د خلکو د ضرورت او حاجت په وجه جائز ګرځولې ده، او ضرورت په اجارهٔ صحيحه سره پوره کيږي، لهذا اولاً خو اجارهٔ فاسده ته زموږ هيڅ ضرورت نسته او که په يو درجه کي د هغه ضرورت سته نو دا ضرورت د اصل يعني د اجارهٔ صحيحه د تابعوالي په توګه دی، او څرنګه چي په اجارهٔ صحيحه کي عموماً اُجرتِ مثلي بدل ګرځول کيږي، نو ځکه په اجارهٔ فاسده کي به هم اُجرتِ مثلي بدل او عوض ګرځول کيږي او دغه اُجرتِ مثلي به له ټاکل سوي

أجرت څخه نه اضافه کيږي؛ ځکه چي دأجرت په تاکل کېدلو او متعين کېدلو سره دأجرت د نور اضافه کولو دروازه بنده سوه، لهذا د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله د بالغًا مَا بلغ خبره پر همدغه ځای ختم سوه، اوس که چيري أجرت مثلي له تاکل سوي أجرت څخه کم وي نو هغه به له تاکل سوي أجرت څخه نه اضافه کول کيږي؛ ځکه چي دا د اجارۀ فاسده معامله ده او په اجارۀ فاسده کي چي کله خودي عقد فاسد او باطل دی، نو ښکاره خبره ده چي تاکل سوی أجرت به هم فاسد وي نو په اجارۀ فاسده کي چي کوم اصلي مُوجب دی يعني أجرت مثلي هغه به واپس راګرځي او همغه به واجبيږي.

بخلاف البيع إلخ: په دې سره د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي دا مسئله د اعيانو پر بيع قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي اعيان بذات خود متقوم وي او په هغوی کي اصلي موجوب قيمت وي، اوس که چيري په هغوی کي تسميه يعني ثمن تاکل صحيح وي، نو ښکاره ده چي له اصلي مُوجب يعني له قيمت څخه به د تاکل سوي ثمن ته وطرف ته رجوع کيږي او که چيري تسميه باطله وي مثلاً شراب او خنزير په ثمن کي تاکل سوي نو د اصلي مُوجب يعني د قيمت لاره به خپلول کيږي او قيمت به پوره (بالغةً ما بلغت) واجبيږي.

(۲)... که يو سړی د ډېر مودت لپاره کور يا بل ځای په کرايه ونيسي لېکن د مودت وضاحت نه وکړي او فقط داسي ووايي چي ”كُلُّ شَهْرٍ بِدِرْهَمٍ“ (يعني هره مياشت يو درهم کرايه درکوم) او مثلاً داسي نه ووايي چي ”عَشَرَةُ شُهُوْرٍ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ“ نو په داسي صورت کي فقط د يوې مياشتي اجاره صحيح کيږي او په ما بقي مياشتو کي اجاره فاسديږي، ها! که چيري هغه ما بقي مياشتي هم بيان کړي، نو د اجارې د مودت معلومېدلو په وجه په ټولو مياشتو کي اجاره صحيح کيږي، لېکن څرنګه چي دلته د عاقدينو له طرفه د مياشتو وضاحت نه دی سوی، نو ځکه صرف په يوه مياشته کي به عقد صحيح کيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې سلسله کي يوه قاعدۀ کليه بيانوي فرمايي چي کلمه د ”کُل“ که چيري پر داسي لفظ داخله سي چي هغه لره هيڅ انتهاء نه وي لکه څرنګه چي دلته دي، نو په داسي صورت کي د ”کُل“ له مدخول څخه فقط يو (واحد) مُتعين کيږي او فقط پر همدې يوه عمل کيږي؛ ځکه چي د عموم په وجه پر ټولو عمل کول نا ممکن وي او صرف پر يوه عمل کول ممکن وي، نو ځکه په دغه مسئله کي مورږ فقط پر يوه (يوې مياشتي) عمل کول صحيح ګرځولي دي او د يوې مياشتي له پوره کېدلو څخه وروسته هر عاقد ته د عقد فسخ کولو اختيار حاصليږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ سَكَنَ سَاعَةً مِنَ الشَّهْرِ الثَّانِي فرمايي: که چيرې مستأجر د دويمې مياشتې يو ګړۍ هم [په هغه کور کې] اوو سيږي صَحَّ الْعَقْدُ فِيهِ نو په دويمه مياشته کې [هم] عقد صحيح کيږي وَلَيْسَ لِلْمُؤَاجِرِ أَنْ يُخْرِجَهُ إِلَى أَنْ يَنْقَضِيَ او په کرايه ورکونکي [مالک] ته دا اختيار نسته چې مستأجر له کور څخه وباسي تر دې چې دويمه مياشته تيره سي وَكَذَلِكَ كُلُّ شَهْرٍ سَكَنَ فِي أَوَّلِهِ او همدا حکم د هرې هغه مياشتې دی چې مستأجر د هغې په شروع کې [په کور کې] اوو سيږي لِأَنَّهُ تَمَّ الْعَقْدُ بِتَرَاضِيهِمَا بِالسُّكْنَى فِي الشَّهْرِ الثَّانِي ځکه چې د دويمې مياشتې په اوسېدلو باندې د عاقدينو [مستأجر او مؤجر] په راضي کېدلو سره عقد پوره سو إِلَّا أَنَّ الَّذِي ذَكَرَهُ فِي الْكِتَابِ هُوَ الْقِيَاسُ ليکن کوم حکم چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په قدوري [متن] کې بيان کړی دی، هغه قياس دی وَقَدْ مَالَ إِلَيْهِ بَعْضُ الْمَشَايِخِ او همدې ته ځيني مشايخو ميلان کړی دی وَظَاهِرُ الرِّوَايَةِ أَنْ يَبْقَى الْخِيَارُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي اللَّيْلَةِ الْأُولَى مِنَ الشَّهْرِ الثَّانِي وَيَوْمِهَا او ظاهر روايت دا دی چې د دويمې مياشتې په اوله ورځ او اوله شپه کې له دوی دواړو څخه د هر يوه لپاره [د اجارې فسخ کولو] اختيار باقي پاتيږي لِأَنَّ فِي اعْتِبَارِ الْأَوَّلِ بَعْضَ الْحَرَجِ ځکه چې د اول [يعني ديوه ګړي] په اعتبار کولو کې څه مشقت سته.

**اللغات:** ﴿ساعة﴾ يو ګړی، لږ غوندي وخت. ﴿المؤاجر﴾ په اُجرت ورکونکی، په کرايه ورکونکی. صاحب د مصباحُ المنير او داسي نورو لغتپوهانو ليکلي دي چې د دغه لفظ صحيح تلفظ مُؤْجِر دی؛ ځکه چې دا دإفعال له بابه دی، ځکه آجَرَ په اصل کې أأجَرَ دی پر وزن د أَفْعَلَ. نو د دې باب فاعلَ د مفاعلې له بابه استعمالول خطاء ده (مصباح المنير، مصباح اللغات). ﴿ينقضي﴾ د انفعال مضارع ده: تېرېدل، ختمېدل. ﴿تراضي﴾ د تفاعل مصدر دی: يو تر بله راضي کېدل، په يو شي د دواړو عاقدينو راضي کېدل. ﴿الحرج﴾ تکليف، مشقت، ستونزه.

**تشريح:** دا عبارت د مخکنۍ مسئلې سره متعلق دی، يعني هلته خو صرف په يوه مياشته کې عقد صحيح ګرځول سوی دی، لېکن که ديوې مياشتې له پوره کېدلو څخه وروسته په دويمه مياشته کې مستأجر څه غوندي وخت په هغه کور کې او وسيږي او مؤجر (مالک) په دغه دوران کې د اجارې ماتولو معامله نه وکړي بلکي خاموش پاته وي، نو بيا په دويمه مياشته کې هم اجاره صحيح کيږي

او د مؤجر د فسخ کولو (ماتولو) حق ختميږي او تر دې وروسته مستأجر له کوره نه سي ايستلای؛ ځکه چي خاموشي او د مستأجر سکونت د دې دليل دی چي مؤجر او مستأجر دواړه په دې راضي دي چي په دغه دويمه مياشته کي هم د دوی تر مينځ عقدِ اجاره باقي پاته سي.

او پاته سوه دا مسئله چي په متن کي کوم د "سَاعَةً" لفظ ذکر سوی دی، له هغه څه مراد دي، په دې سلسله کي دامام قدوري رَحِمَهُ الله او د بعضي مشايخو رايه دا ده چي د دويمي مياشتي د سپوږمۍ تر راختلو وروسته صرف د يوه او دوو ساعتو (يوه او دوو گهنټو) وخت ځني مراد دی او همدا د قياس تقاضا ده؛ ځکه چي د سپوږمۍ تر راختلو وروسته سمدستي دويمه مياشته شروع کيږي. د دې په خلاف ظاهر روايت دا دی چي له "ساعةً" څخه مراد د مياشتي راختلو اوله شپه او اوله ورځ ده؛ ځکه چي په عُرفِ عام کي همدغه وخت ته راس الشهر (د مياشتي سر او د شروع حصه) ويل کيږي، نو ځکه تر همدغه وخته به هر عاقد ته د فسخ کولو حق حاصل وي او که چيري له "ساعةً" څخه لږ غوندي وخت مراد کړی سي، نو د دې نتيجه به ښه نه وي او دا به د مشقت، فتنې او فساد سبب وگرځي. (احسن الهدايه)

## د يوه کال لپاره کور په کرايه نيول او د کرايې مودت له کومه وخته شروع کيږي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنِ اسْتَأْجَرَ دَارًا سَنَةً بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ فرمايي: او که څوک د يوه کال لپاره يو کور د لسو درهمو په عوض کي په کرايه ونيسي جَازَ وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ قِسْطَ كُلِّ شَهْرٍ مِنَ الْأُجْرَةِ نو جائز دي که څه هم د هري مياشتي د کرايې حصه بيان کړي لِأَنَّ الْمُدَّةَ مَعْلُومَةٌ بِدُونِ التَّقْسِيمِ ځکه چي له تقسيم څخه بغير هم مودت معلوم دی فَصَارَ كَإِجَارَةِ شَهْرٍ وَاحِدٍ نو دا د يوې مياشتي د اجارې په څېر سوه فَإِنَّهُ جَائِزٌ وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ قِسْطَ كُلِّ يَوْمٍ ځکه د يوې مياشتي اجاره جائز ده که څه هم د هري ورځي [د کرايې] حصه بيان نه کړي ثُمَّ يُعْتَبَرُ ابْتِدَاءُ الْمُدَّةِ مِمَّا سَمّٰى بيا د مودت شروع له هغه وخت څخه معتبره ده [يعني له هغه وخت څخه به شمارل کيږي] کوم چي يې تاکلی وي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ شَيْئًا او که هيڅ وخت يې تاکلی نه وي فَهُوَ مِنَ الْوَقْتِ الَّذِي اسْتَأْجَرَهُ نو دا به له هغه وخت څخه وي [يعني له هغه وخته به مودت شمارل کيږي] له کومه وخته چي مستأجر په کرايه نيولی وي لِأَنَّ الْأَوْقَاتَ كُلَّهَا فِي حَقِّ الْإِجَارَةِ عَلَى السَّوَاءِ

ځکه چي د اجارې په حق کي ټوله وختونه سره برابر دي فَأَشْبَهَ الْيَمِينَ نو دا د قسم سره مشابه سوه بِخِلَافِ الصَّوْمِ په خلاف د روژې لِأَنَّ اللَّيَالِيَ لَيْسَتْ بِمَحَلٍّ لَهُ ځکه چي شپې د روژې محل نه دي ثُمَّ إِنْ كَانَ الْعَقْدُ حِينَ يُهِلُّ الْهِلَالُ بيا که چيري عقد اجاره هغه وخت وسي کله چي سپوږمۍ [نوې مياشته] راوخيږي فَشُهُورُ السَّنَةِ كُلِّهَا بِالْأَهِلَّةِ نو د کال د ټولو مياشتو حساب به په سپوږميو [يعني په مياشتو] سره کيږي لِأَنَّهَا هِيَ الْأَصْلُ ځکه چي همدوی اصل دي وَإِنْ كَانَ فِي أَثْنَاءِ الشَّهْرِ او که چيري د مياشتي په مينځ کي عقد اجاره وسي فَالْكُلُّ بِالْأَيَّامِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د ټولو مياشتو حساب به په ورځو سره کيږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ (وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ) الْأَوَّلُ بِالْأَيَّامِ وَالْبَاقِي بِالْأَهِلَّةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز (او همدا يو روايت دی له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه) چي د اولي مياشتي حساب به په ورځو سره کيږي او د پاتو مياشتو حساب به په سپوږميو سره کيږي لِأَنَّ الْأَيَّامَ يُصَارُ إِلَيْهَا ضَرُورَةً ځکه چي ورځو ته د ضرورت پر بناء رجوع کيږي وَالضَّرُورَةُ فِي الْأَوَّلِ مِنْهَا او ضرورت صرف په اوله مياشته کي دی وَلَهُ: أَنَّهُ مَتَى تَمَّ الْأَوَّلُ بِالْأَيَّامِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي کله اوله مياشته په ورځو سره پوره سوه [يعني کله چي د اولي مياشتي حساب او شمار په ورځو سره وسو چي په هغه کي د دويمي مياشتي ورځي هم راغلې] اِبْتَدَأَ الثَّانِي بِالْأَيَّامِ ضَرُورَةً نو خامخا به د دويمي مياشتي حساب هم په ورځو سره شروع کيږي وَهَكَذَا إِلَى آخِرِ السَّنَةِ او همداسي به د کال تر آخره کيږي وَنَظِيرُهُ الْعِدَّةُ وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ او د دې مثال عدت دی چي هغه په کتاب الطلاق کي تېر سو.

**اللغات**: ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په أجرت اخيستل، په کرايه نيول. ﴿قسط﴾ حصه، برخه، مقدار. ﴿يُهِلُّ﴾ د افعال له بابه د مضارع صيغه ده: مياشته (سپوږمۍ) راختل، مياشته شروع کېدل، مياشته (سپوږمۍ) ښکاره کېدل، مياشتي ته کتل، د نصر له بابه هم د اولو دريو معناوو لپاره راځي. ﴿الهلال﴾ نوې سپوږمۍ، نوې مياشته، له اولي ورځي څخه تر دريمي يا اوومي ورځي پوري مياشتي او سپوږمۍ ته "هلال" ويل کيږي او له هغه څخه بغير په نورو ورځو کي "قمر"

ورته ويل کيږي، او يو قول دا دی چې مطلق مياشتې ته هم "هِلَال" ويل کيږي، جمع: أَهِلَّة (معجم لغة الفقهاء، مصباح المنير)، ﴿يُصار﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: ګرځېدل، رجوع کول، ﴿نظير﴾ مثال، نمونه، مشابه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی ديوه کال لپاره دلسو درهمو په عوض کې يو کور په کرايه ونيسي، نو دا عقد اجاره جائز او صحيح دی، برابره ده مستأجر د هرې مياشتې حصه او کرايه جلا بيان کړي، که نه؛ ځکه چې د عقد د صحيح کېدو لپاره داجارې د مودت تعيين او معلوم والی ضروري دی او دلته داجارې مودت معلوم دی او په مجموعي توګه د هغه کرايه هم معلومه ده، نو ځکه به دا عقد اجاره جائز وي.

ثم يعتبر ابتداء المدة إلخ: ددې حاصل دا دی چې که عاقدَينو (مؤجر او مستأجر) داجارې د وخت د ابتداء او شروع لپاره يو مودت ټاکلی وي، مثلاً داسې يې ويلي وي چې زما او ستا معامله او د کرايې حساب د اختر د مياشتې د لسمې ورځې څخه شروع دی، نو له همدغه ورځې (د اختر د لسمې ورځې) څخه اجاره او د کرايې حساب شروع کيږي، او که چيرې عاقدَينو وخت او مودت ټاکلی نه وي، نو هغه داجاره کولو له وخت څخه شروع کيږي يعني څه وخت چې کور په کرايه ونيسي، نو سمدستي د کرايې حساب شروع کيږي او پر مستأجر لازميږي؛ ځکه چې داجارې او داجارې د مودت په حق کې ټوله وختونه سره برابر دي (لکه څرنګه چې د قسم په حق کې ټوله وختونه سره برابر دي)، او کله چې د عاقدَينو له طرفه هيڅ وخت نه وي ټاکل سوی، نو د سبب له منعقد کېدلو يعني له معامله کولو څخه وروسته سمدستي د هغه مودت شمارل کيږي.

ددې مثال دا دی لکه يو څوک چې داسې قسم واخلي چې "زه به د فلانکي سره يوه مياشته خبرې نه کوم"، لېکن د هغه د شروع مودت بيان نه کړي (چې له کومه وخته به يوه مياشته خبرې نه ورسره کوم)، نو د دغه قسم د مودت ابتداء د سبب تر منعقد کېدلو يعني تر قسم اخيستلو وروسته شمارل کيږي (يعني له کومه وخته چې يې قسم اخيستی وي، له همغه وخت څخه مياشته شروع کيږي)، همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم داجارې د مودت ابتداء تر معامله کولو وروسته شمارل کيږي.

ددې په خلاف که څوک دا نذر ومني چې "زه به يوه مياشتې روژې نيسم"، نو د نذر منلو له وخت څخه روژې نيول ضروري نه دي، بلکې په دې صورت کې ديوې مياشتې تعيين ضروري دی، له تعيين څخه بغير د هغه د روژو ابتداء او انتهاء په حتمي توګه نه معلوميږي؛ ځکه چې د روژو په

حق کې ټوله وختونه سره برابر نه دي، ځکه شپې خو د روژې محل نه دي، لهذا تر څو چې د نذر منونکي له طرفه د میاشتې تعیین نه وسي، تر هغه وخته به د هغوی ابتداء هم محسوب او معتبر نه وي.

ثم إن كان إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د اجارې (په کرایه نیولو) معامله د میاشتې راختلو په خت کې یعني د میاشتې په اوله شپه یا اوله ورځ وسي، نو بالاتفاق د ټولو میاشتو حساب (شمار) به په سپوږمۍ یعني په میاشتې سره کیږي او د همدې سپوږمۍ (میاشتې) مطابق به کرایه ورکول کیږي او اخیستل کیږي، لیکن که د اجارې معامله د میاشتې په مینځ کې وسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز حکم دا دی چې د هرې میاشتې حساب و کتاب به په ورځو سره کیږي (مثلا که د یوې میاشتې په لسمه ورځ د اجارې معامله وسي نو د بلې میاشتې په لسمه ورځ به کرایه ځنې اخیستل کیږي)، لیکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز به د اولې میاشتې حساب په ورځو سره کیږي او د ما بقي میاشتو حساب به په سپوږمۍ (میاشتې) سره کیږي؛ ځکه چې په ورځو سره حساب و کتاب کول د ضرورت پر بناء وي او دا ضرورت صرف په اوله میاشته کې دی، نو ځکه د اولې میاشتې حساب خو به په ورځو سره کیږي، او د ما بقي میاشتو حساب به په سپوږمۍ سره کیږي. امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په یوه روایت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی او په بل روایت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې کله د اولې میاشتې حساب په ورځو سره وسي، نو ضرورتاً به د نورو میاشتو حساب هم په ورځو سره کیږي؛ ځکه که د دې خلاف وسي، نو بیا به ټاکل سوې کرایه (لس درهمه) په همدې حساب سره تقسیمول کیږي کوم چې مشکل دي او د جنګ او جنجال سبب ګرځي. په کتاب الطلاق کې د عدت والا په مسئله کې دا بحث تېر سوی دی، یعني که چیرې د میاشتې په اوله شپه یا اوله ورځ طلاق ورکړي، نو په سپوږمۍ (میاشتې) سره به عدت شمارل کیږي او که د میاشتې په مینځ کې طلاق ورکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به په ورځو سره عدت شمارل کیږي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز به اوله میاشته په ورځو سره شمارل کیږي او د ما بقي ورځو حساب به په سپوږمۍ (میاشتې) سره کیږي. (احسن الهدایه)

## د حمام او ښکر لګونکي د أجرت اخیستلو حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ أَخْذُ أُجْرَةِ الْحَمَّامِ وَالْحَجَّامِ فرمایي: چي د حمام أجرت اخیستل او د ښکر لګونکي أجرت اخیستل جائز دي أَمَّا الْحَمَّامُ فَلِتَعَارُفِ النَّاسِ کوم چي [أجرت د] حمام دی نو د خلکو د تعارف [او عادت] په وجه وَلَمْ تُعْتَبَرِ الْجَهَالَةُ لِإِجْمَاعِ الْمُسْلِمِينَ او د مسلمانانو د اجماع په وجه جهالت لره اعتبار نسته قَالَ ﷺ [1]: «مَا رَآهُ الْمُسْلِمُونَ حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَ اللهِ حَسَنٌ» نبي ﷺ فرمایلي دي: "کوم څه چي مسلمانان ښه وګڼي نو هغه د الله په نېز هم ښه دي" وَأَمَّا الْحَجَّامُ فَلِمَا رُوِيَ [2] «أَنَّهُ ﷺ احْتَجَمَ وَأَعْطَى الْحَجَّامَ الْأُجْرَةَ» او کوم چي [أجرت د] ښکر لګونکي دی نو ځکه چي روایت سوی دی "چي نبي کریم ﷺ ښکر ولګوی او ښکر لګونکي ته یې أجرت ورکړی" وَلِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى عَمَلٍ مَعْلُومٍ بِأَجْرٍ مَعْلُومٍ او ځکه چي دا پر معلوم کار [یعني د معلوم کار لپاره] د معلوم أجرت په عوض کي په أجرت نیول دي فَيَقَعُ جَائِزًا نو ځکه به جائز واقع کیږي قَالَ: وَلَا يَجُوزُ أَخْذُ أُجْرَةِ عَسْبِ التَّيْسِ فرمایي: او [پر ماده حیوان] د مینده خېږلو أجرت اخیستل جائز نه دي وَهُوَ أَنْ يُؤَاجِرَ فَحْلًا لِيَنْزُوَ عَلَى الْإِنَاثِ او هغه [عسب التیس] دا دی چي نر حیوان د دې لپاره په کرایه ونیسي چي پر مادیانو وخېږي لِقَوْلِهِ ﷺ [3]: «إِنَّ مِنَ السُّحْتِ عَسْبَ التَّيْسِ» ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "چي له حرام مال څخه [پر ماده] د مینده خېږول [أجرت اخیستل] دي وَالْمُرَادُ أَخْذُ الْأُجْرَةِ عَلَيْهِ او مراد ځني پر هغه أجرت اخیستل دي.

**اللغات:** ﴿الحمّام﴾ غټه غسل خانه چي په هغه کي به حوض جوړ وو او خلکو به په مجموعي توګه د هغه په اوبو سره غسلونه کول، ﴿الحجّام﴾ ښکر لګونکی، ﴿استئجار﴾ او استیجار: د استفعال مصدر دی: په أجرت نیول (په مزدوري نیول)، په کرایه نیول، ﴿عَسْب﴾ د ضرب د باب مصدر

---

[1] تخریج: رواه الإمام احمد بن حنبل موقوفًا على ابن مسعود، رقم الحدیث: ٣٦٠٠.

[2] تخریج: رواه البخاری فی الصحیح، رقم الحدیث: ٥٣٦٧. ومسلم، رقم الحدیث:٦٥.

[3] تخریج: رواه النسائي في سننه الكبرى، رقم الحدیث: ٤٦٩٨. و كذا ذُكر فی البخاري والترمذي و أبي داؤد: أن النبي ﷺ نهى عن عسب الفحل. و ذكر فی مسند بزار: نهى عن ثمن الكلب وعسب التيس. (اشرف الهدایه)

دی. عَسْبُ الفَحْل: نر حیوان پر ماده خېژول. ﴿التَّيْس﴾ وزګړی، مینده (سېرلی)، د وزو (بزو) نر چې د هغه یو کال پوره سوی وي او تریوه کال مخکې "جَذْي" ورته وايي، دلته ځنې مراد مطلق مینده او نر حیوان دی لکه څرنګه چې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "فَحْلٌ" سره د هغه تشریح کړې ده. ﴿فحل﴾ د هر حیوان نر ته وايي، مینده. ﴿لينزو﴾ د نصر مضارع ده. نَزَا يَنْزُوْ نَزْوًا: نر پر ماده غور ځېدل (ختل). ﴿إناث﴾ جمع د أُنْثٰی ده: ماده، مادینه، ښځینه. ﴿السحت﴾ حرام مال، خبیثه او قبیحه ګټه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د متعمد او محقق قول پر بنیاد د حمام او ښکر لګولو اُجرت اخیستل جائز او صحیح دي او دلته له حمام څخه هغه حمام مراد دی چې په هغه کې د پردې پوره انتظام سوی وي او بې پردګي پکښې نه وي او د حمام په اوبو او داسې نورو کې جهالت دی (یعني په حمام کې چې اوبه او داسې نور څومره قدر مصرفول کیږي او څومره وخت هلته تېرول کیږي، د هغه مقدار مجهول دی)، نو د دغه جهالت په وجه د قیاس تقاضا دا ده چې اجاره نه جائز کیږي، لېکن څرنګه چې د خلکو عُرف او عمل پر همدې جاري دی، نو ځکه قیاس لره اعتبار نسته؛ ځکه چې پر دې د مسلمانانو خلکو اجماع ده او اجماع د نبي کریم ﷺ په دې فرمان سره مزینه ده "مَا رَاٰهُ الْمُسْلِمُوْنَ حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَ اللهِ حَسَنٌ"، لنډه دا چې مذکوره جهالت د مسلمانانو د اجماعي عمل پر بناء معاف کړی سوی دی.

د ښکر لګولو د اُجرت دلیل دا دی چې په خپله نبي کریم ﷺ تر ښکر لګولو وروسته ښکر لګونکي ته د هغه اُجرت او مزدوري ورکړې ده، او دا د ښکر لګولو د اُجرت اخیستلو د جواز په باره کې څرګند او ښکاره دلیل دی.

او د هغه د جواز عقلي دلیل دا دی چې د اجارې د جواز لپاره د عمل او اُجرت معلومېدل (متعین کېدل) شرط دي، او په دغه مسئله کې دواړه شیان معلوم دي، نو په دې وجه هم دغه اجاره او اُجرت اخیستل جائز دي.

ولايجوز أخذ أجرة عسب: دویمه مسئله دا ده چې پر ماده حیوان د نر حیوان خېژولو پر کار اُجرت اخیستل (مثلاً د بل چا پر وزې د خپل وزګړي خېژولو په عوض کې اُجرت اخیستل) د زیاتره فقهاؤ په نېز ناجائز او حرام دي؛ ځکه په حدیث کې په ښکاره توګه له دې څخه منع سوې ده (ځکه دا نا معلومه او مشکوکه ده چې آیا په دې سره به ماده بلاربه سي، که نه؟)، او نفس کار یعني نر پر ماده خېژول حرام نه دي؛ ځکه چې دا خو د نسل زیاتولو ذریعه ده، حرام صرف پر هغه اُجرت او عوض اخیستل دي. (ها! که چیري د ماده حیوان مالک د بخشش او احسان (تبرع) په توګه څه خوشې ورکړي، نو د دې اجازت سته، او

مجوزينو علماؤ چي کوم حديث پېش کړی دی، له هغه څخه هم دغه مراد دي، ځکه په هغه حديث کي د "نَكْرُمُ" لفظ ذکر سوی دی چي د هغه معنیٰ ده: د کرامت يعني د بخشش او احسان په توګه ورکول او اخيستل، او په کرامت او أُجرت کي فرق دی؛ ځکه چي أُجرت په عقد کي شرط وي او کرامت محض تبرّع ده).

## پر ديني کارونو د أجرت اخيستلو حکم

قَالَ: وَلَا الِاسْتِئْجَارُ عَلَى الْأَذَانِ وَالْحَجِّ فرمايي: او نه پر اذان او حج کولو په أُجرت نيول [او نه أُجرت پر اخيستل] جائز دي وَكَذَا الْإِمَامَةِ وَتَعْلِيمِ الْقُرْآنِ وَالْفِقْهِ او همدارنګه پر امامت کولو او د قرآن او فقه پر ښوونې په أُجرت نيول [او أُجرت پر اخيستل هم جائز نه دي] وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ طَاعَةٍ يَخْتَصُّ بِهَا الْمُسْلِمُ لَا يَجُوزُ الِاسْتِئْجَارُ عَلَيْهِ عِنْدَنَا او اصل [قاعده] دا ده چي هر هغه عبادت کوم چي د مسلمان سره خاص وي، زموږ په نيز پر هغه په أُجرت نيول جائز نه دي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يَصِحُّ فِي كُلِّ مَا لَا يَتَعَيَّنُ عَلَى الْأَجِيرِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په هر هغه کار کي په أُجرت نيول صحيح دي کوم چي پر أُجرت نيول سوي سړي مُتعيّن نه وي [يعني کوم چي پر اجير په مُتعيّنه توګه واجب (واجب عين) نه وي، د "مالا يتعيّن" په قيد له هغه اجير څخه احتراز دی کوم چي د کار لپاره مُتعيّن (ټاکل سوي) وي، مثلاً که يو امام پر يو ځای د امامت لپاره مُتعيّن وي چي له هغه څخه بغير بل انسان د امامت لايق نه وي، نو په دې صورت کي بالاتفاق په أُجرت نيول جائز نه دی (ځکه چي په دې صورت کي امامت پر هغه واجب دی) همدارنګه که څوک د فقه او قرآن د تعليم لپاره مُتعيّن وي، نو بيا هم بالاتفاق استئجار ناجائز دي، لېکن د غيرِ مُتعيّن عليه کار لپاره په أُجرت نيول جائز دي] لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى عَمَلٍ مَعْلُومٍ غَيْرِ مُتَعَيِّنٍ عَلَيْهِ ځکه چي دا پر داسي عمل په أُجرت نيول دي کوم چي پر هغه مُتعيّن نه دی [يعني د داسي مُتعيّن کار لپاره په أُجرت نيول دي کوم چي پر هغه واجب نه دی] فَيَجُوزُ نو ځکه به جائز وي وَلَنَا: قَوْلُهُ عليه السلام: «اِقْرَءُوا الْقُرْآنَ وَلَا تَأْكُلُوا بِهِ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: "قران واياست او د هغه په ذريعه خوراک مه کوئ! [يعني هغه د خورک ترلاسه کولو او مال ګټلو ذريعه جوړوئ!] وَفِي آخِرِ مَا عَهِدَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِلَى عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ: «وَإِنِ اتُّخِذْتَ مُؤَذِّنًا فَلَا تَأْخُذْ عَلَى الْأَذَانِ أَجْرًا» [همدارنګه] نبي کريم ﷺ چي حضرت عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه ته کوم وصيت کړی وو د هغه په آخر کي دي: "او که چيري ته مؤذن جوړ کړی سې! نو پر اذان أُجرت مه اخله" وَلِأَنَّ الْقُرْبَةَ مَتَى حَصَلَتْ وَقَعَتْ عَنِ الْعَامِلِ او ځکه کله چي يو عبادت وسي نو هغه

د عامل [کونکي] له طرفه واقع کیږي وَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ أَهْلِيَّتُهُ او په همدې وجه [په عبادت کې] د عامل د اهل کېدلو اعتبار کیږي فَلَا يَجُوزُ لَهُ أَخْذُ الْأَجْرِ مِنْ غَيْرِهٖ نو ځکه د هغه لپاره به له بل شخصه أجرت اخيستل جائز نه وي كَمَا فِي الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ لکه څرنګه چې په روژه او لمانځه کې دي [يعني لکه څرنګه چې پر خپل روژه نيولو او لمونځ کولو أجرت نه اخيستل کيږي] وَلِأَنَّ التَّعْلِيمَ مِمَّا لَا يَقْدِرُ الْمُعَلِّمُ عَلَيْهِ إِلَّا بِمَعْنًى مِنْ قِبَلِ الْمُتَعَلِّمِ او ځکه چې تعليم داسي شی دی چې معلم پر هغه قادر نه دی مګر په داسي معنىٰ [اهليت او ذهانت] سره کوم چې د متعلم له طرفه دي [يعني د شاګرد له اهل کېدلو (قابلِ تعليم کېدلو) او ذهين کېدلو څخه بغير أستاذ هغه ته پر تعليم ورکولو قدرت نه لري] فَيَكُونُ مُلْتَزِمًا مَا لَا يَقْدِرُ عَلٰى تَسْلِيمِهٖ نو معلم به پر ځان د داسي شي لازمونکی وي چې د هغه پر وسپارلو قدرت نه لري فَلَا يَصِحُّ نو ځکه به [د تعليم لپاره] په أجرت نيول صحيح نه وي وَبَعْضُ مَشَايِخِنَا اسْتَحْسَنُوا الِاسْتِئْجَارَ عَلٰى تَعْلِيمِ الْقُرْآنِ الْيَوْمَ او ځيني مشايخو نننه ورځ د قرآن پر تعليم [يعني د قرآن د ورښوولو لپاره] په أجرت نيول مستحسن ګرځولي دي لِأَنَّهُ ظَهَرَ التَّوَانِي فِي الْأُمُورِ الدِّينِيَّةِ ځکه چې په ديني معاملاتو کي سستي [او غفلت] ښکاره سوی دی فَفِي الِامْتِنَاعِ تَضْيِيعُ حِفْظِ الْقُرْآنِ نو [له أجرت څخه] په منع کېدلو د قرآن يادولو [او زده کولو] ضايع کول سته [يعني که د قرآن پر تعليم أجرت منع کړی سي نو د حفظ قرآن د ضايع کېدلو خطره سته] وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او پر همدې فتوىٰ ده.

**اللغات:** ﴿طاعة﴾ فرمانبرداري (حکم او فرمان پر ځای کونه، عبادت کونه)، ﴿أُتُّخِذْتَ﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر مخاطب ماضي صيغه ده: تاکل کېدل، جوړېدل، ﴿عَهِدَ﴾ د سمع د باب ماضي ده، تاسو ته به معلومه وي چې د صلې په بدلون سره د لفظ معنىٰ هم بدليږي، نو کله چې د دغه باب په صله کي "إلى" راسي لکه دلته، نو معنىٰ يې ده: يو چا ته وصيت کول، ذمه وار جوړول (معجم الوسيط، مصباح اللغات)، ﴿القُربة﴾ طاعت، عبادت (هر هغه طاعت چې په هغه سره د الله نژدېکت حاصلول کيږي)، ﴿المُعَلِّم﴾ د تفعيل د باب اسم فاعل دی: ښوونکی (استاذ)، ﴿مُتَعَلِّم﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: زده کونکی (شاګرد)، ﴿متلزم﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: پر ځان لازمونکی، په خپله ذمه اخيستونکی، ﴿التواني﴾ د تفاعل د باب اسمِ مصدر دی: سستي، کوتاهي، غفلت.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې د مخکينو مشايخو او متقدمينو علماؤ په نيز پر اذان، حج، امامت، د قرآن او فقهي پر تعليم اُجرت او مزدوري اخيستل ناجائز وه، لېکن متأخرينو علماؤ پر دې کارانو اُجرت اخيستل جائز گرځولي دي؛ د متقدمينو علماؤ دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ د "اِقْرَؤُا الْقُرْآنَ وَلَا تَأْكُلُوْا بِهٖ" په حديث کي له دې څخه منع کړې ده چې قرآن د مال گټلو او خوراک ترلاسه کولو ذريعه جوړه کړی سي، همدارنگه نبي ﷺ چي و حضرت عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه ته کوم وصيت کړی وو (کله چي يې هغه د خپل قوم امام جوړ کړی وو)، په هغه وصيت کي دا فرمان هم شامل وو چي "که چيري ته مؤذن جوړ کړی سې!، نو پر اذان اُجرت مه اخله"، له دغه دواړو فرمانونو څخه دا خبره ښکاره سوه چي پر هغه ديني امورو کوم چي د مسلمانانو سره خاص وي، اُجرت اخيستل جائز او صحيح نه دي.

په دې باره کي عقلي دليل دا دی چي دا د عبادت معامله ده، او عبادت د عامل او عابد (عبادت کونکي) له طرفه د ثواب په توگه واقع کيږي، په همدې وجه خو په ديني اُمورو کي د عامل اهل کېدل شرط دي او د نا اهله کس عبادت مقبول نه دی، لهذا کله چي عبادت د عامل له طرفه د ثواب په توگه واقع کيږي، نو د عامل لپاره پر هغه اُجرت اخيستل څنگه صحيح کېدای سي!، او څرنگه چي د لمونځ گذار لپاره پر خپل لمانځه اُجرت اخيستل او د روژتي لپاره پر خپل روژه اُجرت اخيستل صحيح نه دي، همدارنگه د عبادت کونکي لپاره پر خپل عبادت اُجرت اخيستل هم صحيح نه دي.

د تعليم د اُجرت نه جائز کېدلو په هکله عقلي دليل دا دی چي تعليم داسي شی دی کوم چي د مُعلم (ښوونکي) په قدرت او اختيار کي نه دی مگر هغه وخت کله چي شاگرد هم د زده کولو اهل (قابل) او ځيرک وي (ځکه تر څو چي شاگرد د مُعلم په ښوونه نه پوهيږي، تر هغه وخته د مُعلم د تعليم هيڅ اثر او فايده نه ښکاره کيږي) او دا شيان د مُعلم په وس او قدرت کي نه دي، نو د قرآن او فقه پر تعليم اُجرت اخيستل گواکي مُعلم پر خپل ځان داسي شی لازموي چي د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی، حال دا چي داجارې د صحت لپاره د مستأجر شي پر ورسپارلو قادر کېدل ضروري دي او دلته اجير (مُعلم) پر هغه قادر نه دی، نو ځکه دا اجاره صحيح نه ده.

وبعض مشائخنا إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر امامت، اذان، د قرآن، حديث او فقه پر تعليم د اُجرت اخيستلو د نا جائز کېدلو فتوىٰ او فيصله د متقدمينو په علماؤ په زمانه کي وه؛ ځکه چي هغه خيرُ القرون ته نژدې وه او په هغه زمانه کي خلگ د تعليم او تعلم زيات شوقيان او لېواله وه، لېکن اوس په خلگو کي له ديني امورو څخه غفلت او بې زاري پيدا سوې ده او په دغه زمانه کي بلا عوضه او بېله اُجرته د داسي ديني مسائلو حلّ نا ممکن دی، په همدې وجه د دغه زمانې د حالاتو او

مجبوريو په خاطر متأخرينو علماؤ او د بلخ مشايخو په دغه کارونو کې أجرت اخيستل حلال او جائز ګرځولي دي، کنې د ديني علم اشاعت به وهريږي او د قرآن وحديث د حفاظت هيڅ مستحکمه او قوي ذريعه به پاتـه نه سي، په اوسني زمانه کې همدغه قول راجح او مفتىٰ به دى. (کفايه و بنايه ج:۹، ص: ۳۲۲، نقل از احسن الهدايه)

## پر سروز، نوحه او د ګناه پر آلاتو د أجرت اخيستلو حکم

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ الِاسْتِئْجَارُ عَلَى الْغِنَاءِ وَالنَّوْحِ فرمايي: پر سروز [او سندره] ويلو او پر نوحه کولو په أجرت نيول جائز نه دي وَكَذَا سَائِرِ الْمَلَاهِي او همدارنګه د لهو ولعب پر ټولو آلاتو [په أجرت نيول جائز نه دي] لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ ځکه چي دا پر نا فرماني په أجرت نيول دي وَالْمَعْصِيَةُ لَا تُسْتَحَقُّ بِالْعَقْدِ او د نافرمانۍ استحقاق په عقد سره نه سي کېداى.

**اللغات:** ﴿الغِنَاء﴾ سروز او سندره ويـل، ﴿نَـوْح﴾ د نصر د باب مصدر دى: نَـاحَ تَنُـوْحُ نَوْحًا و نِيَاحَةً: پر مړي ژړل او افسوس کول، لکه پخوا چي به پر مړي د غم او ژړا جوړولو لپاره ښځه په کرايه نيول کېدل چي د هغې کسب او پېشه به همدا ژړا وه، نو ر به د هغې هيڅ غم او مصيبت نه وو، داسي نوحه خواني ګناه کبيره ده، او د هغه لپاره په أجرت نيول او أجرت پر اخيستل نا جائز دي، ﴿ملاهي﴾ د لهو ولعب او د موسيقۍ آلات، د راجح قول مطابق د دې مفرد مَلْهَاةٌ دى.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي پر سروز، موسيقي او سندره ويلو، نوحه کولو او د رباب، باجه او داسي نورو آلاتو پر ږغولو او جوړولو أجرت اخيستل جائز نه دي بلکي دغه اجاره باطله ده او هيڅ أجرت نه واجبيږي، زموږ د دريو امامانو او د امام مالک، امام احمد او ابو ثور رَحِمَهُمُ الله همدغه قول دى (د امام شافعي او براهيم نخعي رحمهما الله په نېز دغه اجاره خو جائز ده لېکن مکروه ده).

(د جمهورو دليل) دا دى چي دا کارونه د ګناه او معصيت په فهرس کي داخل دي او د ګناه پر کار أجرت اخيستل جـائز نـه دي، او بـل دا چـي د عقـد اجـاره پـه ذريعـه شـرعا د معقـود عليـه ورسپارل واجبيږي (يعني پر کوم شي چي اجاره وسي، د هغه ورسپارل پر انسان واجبيږي)، حال دا چي پر يو انسان د داسي شي واجبېدل جائز نه دي چي د هغه په وجه انسان ګنهګاره کيـږي، کنې دا به د شرع ومعصيت ته مضاف او منسوب وي کوم چي باطل دي. (شيخُ الاسلام اسبيجابي په شرح کافي کي ليکلي دي چي د هيڅ لهو ولعب، غزل ويلو او داسي نورو اجاره جائز نه ده او بالاتفاق أجرت نه واجبيږي).

## مشترک شی په أجرت ورکول

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ إِجَارَةُ الْمُشَاعِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا مِنَ الشَّرِيكِ فرمايي: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د نا تقسيم سوي مشترک شي په أجرت ورکول جائز نه دي مګر خپل شريک ته وَقَالَا*: إِجَارَةُ الْمُشَاعِ جَائِزَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي مُشاع شی په أجرت ورکول جائز دي وَصُورَتُهُ أَنْ يُؤَاجِرَ نَصِيبًا مِنْ دَارِهِ أَوْ نَصِيبَهُ مِنْ دَارٍ مُشْتَرَكَةٍ مِنْ غَيْرِ الشَّرِيكِ او د دې صورت دا دی چي څوک د خپل کور يوه حصه يا په مشترک کور کي خپله حصه له شريک شخه بغير بل چا ته په أجرت ورکړي لَهُمَا: أَنَّ لِلْمُشَاعِ مَنْفَعَةً د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مُشاع شي لره هم منفعت سته [يعني له هغه شخه هم نفع اخيستل کېدای سي] وَلِهَذَا يَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ او په همدې وجه [د هغه] أجرتِ مثلي واجبيږي وَالتَّسْلِيمُ مُمْكِنٌ بِالتَّخْلِيَةِ أَوْ بِالتَّهَايُؤِ او ورسپارل ممکن دي په تخليه کولو يا په نوبت تاکلو سره فَصَارَ كَمَا إِذَا آجَرَ مِنْ شَرِيكِهِ أَوْ مِنْ رَجُلَيْنِ نو دا داسي سوه لکه څرنګه چي يې خپل شريک ته يا دوو خلکو ته په أجرت ورکړي وَصَارَ كَالْبَيْعِ او د بيع په څېر سوه وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ آجَرَ مَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ او د مام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مؤجر [دلته] داسي شی په أجرت ورکړی دی چي د هغه پر ورسپارلو قدرت نه لري فَلَا يَجُوزُ نو ځکه به [دا اجاره] جائز نه وي وَهَذَا لِأَنَّ تَسْلِيمَ الْمُشَاعِ وَحْدَهُ لَا يُتَصَوَّرُ او دا [حکم] ځکه دی چي نا تقسيم سوی مشترک شی تنها ورسپارل ممکن نه دي وَالتَّخْلِيَةُ اُعْتُبِرَتْ تَسْلِيمًا لِوُقُوعِهِ تَمْكِينًا او تخليه په دې وجه ورسپارل شمارل سوي دي ځکه چي هغه تمکين واقع کيږي [يعني هغه داسي دي لکه (مُستأجِر ته پر مستأجر شي) قدرت او اختيار ورکول] وَهُوَ الْفِعْلُ الَّذِي يَحْصُلُ بِهِ التَّمَكُّنُ او تمکين [قدرت ورکول] هغه فعل دی چي په هغه سره [مستأجِر ته] قدرت حاصليږي [مطلب دا چي په تمکين او تخليه سره (د مستأجر لپاره) نفع حاصلول ممکن کيږي] وَلَا تَمَكُّنَ فِي الْمُشَاعِ حال دا چي په مُشاع شي کي قدرت نسته [يعني په مشاع

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، نقل بعض الكتب الفتوىٰ على قولهما كالكفاية، لكن رده العلماء، وفي الخانية وغيرها: الفتوىٰ على قول الإمام وبه جزم أصحاب المتون والشروح، فكان هو المذهب أفاده المصنف رَحِمَهُ الله، وعليه العمل اليوم (الخانية ج:۳، ص:۲۳، رد المحتار ج:۵، ص:۳۳، مجمع الأنهر ج:۳، ص:۵۳۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۳۱]

او مشترک شي کي په تخليه (تمکين) سره هم د مستأجر لپاره نفع حاصلول ممکن نه دي] بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِحُصُولِ التَّمَكُّنِ فِيهِ ځکه چي په هغه کي قدرت حاصليږي [يعني په بيع کي په تخليه سره نفع حاصلول ممکن کيږي] وَأَمَّا التَّهَايُؤُ فَإِنَّمَا يَسْتَحِقُّ حُكْمًا لِلْعَقْدِ بِوَاسِطَةِ الْمِلْكِ او کوم چي واري تاکل دي نو هغه د ملکيت په واسطه سره د عقد حکم ګرځي وَحُكْمُ الْعَقْدِ يَعْقُبُهُ او د عقد حکم تر عقد وروسته وي [يعني د عقد تر منعقد کېدلو وروسته ثابتيږي] وَالْقُدْرَةُ عَلَى التَّسْلِيمِ شَرْطُ الْعَقْدِ حال دا چي پر وسپارلو قدرت لرل د عقد لپاره شرط دي وَشَرْطُ الشَّيْءِ يَسْبِقُهُ او د شي شرط [همېشه] تر هغه مخکي وي وَلَا يُعْتَبَرُ الْمُتَرَاخِيُ سَابِقًا او وروستنی شی مخکني نه سي شمارل کېدای [يعني وروسته ثابتېدونکی شی (تهايؤ) د مخکني ثابتېدونکي شي په حکم سره نه سي کېدای] وَأَمَّا إِذَا آجَرَ مِنْ شَرِيكِهِ او پاته سو کله چي يې شريک ته په أجرت ورکړي فَالْكُلُّ يَحْدُثُ عَلَى مِلْكِهِ نو ټوله [نفع] د هغه پر ملکيت حاصليږي فَلَا شُيُوعَ نو ځکه شيوع به نه وي وَالِاخْتِلَافُ فِي النِّسْبَةِ لَا يَضُرُّهُ او د نسبت اختلاف د هغه [يعني د حدوث کل الانتفاع على ملكه] لپاره مضر نه دی عَلَى أَنَّهُ لَا يَصِحُّ فِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْهُ سره د دې چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد په روايت کي دا [يعني خپل شريک ته په أجرت ورکول] جائز نه دي وَبِخِلَافِ الشُّيُوعِ الطَّارِئِ او په خلاف د وروسته واقع سوي شيوع لِأَنَّ الْقُدْرَةَ عَلَى التَّسْلِيمِ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ لِلْبَقَاءِ ځکه چي [د عقد اجاره] د بقاء لپاره پر ورسپارلو قادر کېدل شرط نه دي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا آجَرَ مِنْ رَجُلَيْنِ او په خلاف د هغه صورت کله چي يې دوو خلکو ته په أجرت ورکړي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ يَقَعُ جُمْلَةً ځکه چي [په دې صورت کي] ورسپارل پر يوه ځای واقع کيږي ثُمَّ الشُّيُوعُ بِتَفَرُّقِ الْمِلْكِ فِيمَا بَيْنَهُمَا طَارِئٌ بيا د دوی په مينځ کي د ملکيت په متفرق کېدلو سره شيوع وروسته واقع کيږي.

**اللغات**: ﴿المشاع﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر اسم مفعول صيغه ده، د دې لفظ څو معناوي دي: مشترک شی کوم چي تر اوسه تقسيم سوی نه وي (يعني د هر شريک حصه پکښي معلومه نه وي)، غيرِ مقسوم شی، شائع او منتشر (کوم چي په ټولو اجزاؤ کي خپور وي)، لکه څرنګه چي ويل کيږي: سَهْمٌ مُشَاعٌ، مشترکه حصه، داسي حصه کوم چي د مشترک شي په ټولو اجزاؤ کي منتشره وي او

مُتعيّنه نه وي، ﴿تخلية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب هم څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ بدليږي چې له هغه څخه يوه معنیٰ ده: دوه شيان يا دوه کسان په خپل مينځ کې سره پرېښوول، کله چې د دې باب په صِله کې مبيع يا داسې بل شی مثلاً مستأجر شی ذکر سي (لکه دلته چې ذکر سوی دی)، نو معنیٰ يې دا ده چې له شي څخه خپل قبضه ختمول او د مشتري يا مستأجر په قدرت او اختيار کې ورکول (د مشتري يا مستأجر لپاره په هغه کې تصرف مباح کول) په بله وينا دا چې هغه ته ورسپارل. ﴿التهايؤ﴾ د تفاعل مصدر دی: يو تر بله موافقت سره کول (پر يو کار د دو کسانو مجتمع کېدل)، په واري او نوبت سره يو کار کول (په واري او نوبت سره نفع حاصلول)، ﴿تمکين﴾ د تفعيل مصدر دی: قدرت ورکول (اختيار ورکول)، قادر جوړول. ﴿التمکن﴾ د تفعّل اسم مصدر دی: قدرت، اختيار. ﴿يعقبه﴾ د مضارع صيغه ده: له نصر او ضرب دواړو بابونو څخه راتلای سي: شاته راتلل، وروسته راتلل. ﴿يسبق﴾ دا هم له نصر او ضرب دواړو څخه راتلای سي: مخکې کېدل، مخکې راتلل. ﴿شيوع﴾ شرکت (نا تقسيم سوی شرکت، غير مقسوم اشتراک). ﴿طارئ﴾ د فتح د باب فاعل دی: طاري کېدونکی، وروسته واقع کېدونکی (وروسته پېښېدونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې هغه شی کوم چې د دوو خلکو په مينځ کې مشترک وي او دوی تر اوسه په خپل مينځ کې تقسيم کړی نه وی، داسې شی له خپل شريکه بغير بل چا ته په اُجرت ورکول جائز نه دي، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مُشاع شي اجاره مطلقاً جائز ده، يعني شريک او غير شريک دواړو ته هغه په اُجرت ورکول جائز دي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې د غيرِ مُشاع په څېر مُشاع شی هم د انتفاع (نفع اخيستلو) قابل وي او که له هغه څخه يو مستأجر نفع حاصله کړي، نو بالاتفاق پر هغه اُجرت مثلي واجبيږي، نو د اُجرتِ مثلي وجوب د دې خبرې علامت او دليل دی چې مُشاع شی د انتفاع قابل وي او د هغه اجاره جائز ده. (احسن الهدايه)

پاته سو دا اعتراض چې له تقسيمولو څخه مخکې د مُشاع شي ورسپارل نا ممکن دي او بغير له ورسپارلو اجاره نه صحيح کيږي؟ نو جواب يې دا دی چې د مُشاع شي ورسپارل هم ممکن دي او دا ورسپارل (تسليم) په دوو طريقه سره کېدای سي: ① يو دا چې مُشاع شی او مستأجر سره پرېښوول سي (د دوی ترمينځ تخليه وکړی سي) يعني له مشاع شي څخه خپله قبضه ختم کړی سي او د مستأجر په قبضه او قدرت کې ورکول سي او مستأجر د مؤجر له حصې څخه نفع (منفعت) حاصلوي، ① دويم دا چې مؤجر شريک خپل ځای او واری (نوبت) مستأجر ته ورکړي او د ده په واري کې مستأجر د

ده له حصې څخه نفع حاصلوي، لهذا کله چي ورسپارل ممکن دي، نو په دې هکله اعتراض کول صحيح نه دي. او څرنګه چي په بيع کي که بائع د مبيع او مشتري تر مينځ تخليه وکړي يعني دوی سره پرېږدي يعني بائع د مشتري مختـه لـه مبيع څخه خپله قبضه ختمه کړي نو دا تخليـه کـول "تسليم" (ورسپارل) شمارل کيږي، همداسي به په اجاره کي هم تخليـه کـول "تسليم" شمارل کيږي. او لکه څرنګه چي يو کور دوو خلکو ته په اُجرت (په کرايه) ورکول صحيح دي او په هغه کي شيوع (اشتراک) مانع نه دی، همداسي به په دغه مسئله کي هم د مُشاع شي اجاره صحيح او جائز وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي اجاره د منفعت عقد ته وايي (يعني په اجاره کي له شي څخه نفع حاصلول مقصود وي، نه د نفسِ شي حاصلول) او د منفعت حاصلول د معقود عليـه (يعني د مستأجر شي) پر ورسپارلو موقوف دي يعني کله چي مؤجر معقود عليه (مُستأجَر شی) مستأجر ته وسپاري، نو بيا مستأجر له هغه څخه نفع حاصلولای سي، حال دا چي په دغه مسئله کي مؤجر د معقود عليـه پر وسپارلو قادر نه دی؛ ځکه چي دلته معقود عليه مشترک او نا تقسيم سوی شی دی او د مؤجر لپاره کما حقهٗ خپله حصه ورسپارل ممکن نه دي، نو ځکه دا اجاره صحيح نه ده. او صاحبين رَحِمَهُمَا الله چي تخليـه "تسليم" (ورسپارل) ګرځولي دي، دا ممکن نه دي؛ ځکه چي په تخليـه سره صرف قدرت على الانتفاع (د نفع اخيستلو قدرت) حاصليږي او په مُشاع شي کي له تخليه څخه وروسته هم قدرت على الانتفاع معدوم پاتيږي؛ ځکه چي شرکت له انتفاع څخه مانع وي، نو ځکه موږ (امام صاحب) تخليـه "تسليم" نه ګرځوو او تهايؤ يعني په واري او نوبت سره نفع حاصلول هم "تسليم" نه ګرځوو، ځکه دا مرحله د عقد له منعقد کېدلو څخه وروسته ده؛ ځکه چي تهايؤ د ملکيت په واسطه سره د عقد حکم جوړيږي او د عقد حکم د عقد تر منعقد کېدلو وروسته ثابتيږي، حال دا چي زموږ کلام د نفس عقد په هکله دی، لهذا کوم شی چي وروسته ثابتيږي، هغه به له ابتدائي او انعقادي مرحلې څخه کفايت نه کوي، نو ځکه په تهايؤ سره هم تسليم نه ثابتيږي.

د دې په خلاف که يو شريک مُشاع (مشترک شی) خپل شريک تـه په اُجرت ورکړي، نو جائز دي: ځکه په دې صورت کي که څه هم شيوع (اشتراک) سته خو دغه شيوع نه له تسليم څخه مانع دی او نه له انتفاع څخه؛ ځکه چي مستأجر له مخکي څخه د نصف شي د نفعي مستحق دی او اوس په اجاره سره د نصف نفعي مستحق کيږي، ګواکي ټوله نفع هغه په خپله حاصلوي او څرنګه چي (په اجاره کي) مقصود نفع حاصلول دي. لهذا کله چي دا مقصود حاصليږي، نو اجاره به هم صحيح کيږي او د حاصلولو د طريقې په مختلف کېدلو سره به د اجارې پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي.

همدارنګه که شیوع له مخکي څخه نه وي بلکي وروسته پیدا سوی (یعني طاري) وي، مثلاً یو څوک دوو خلګو ته داوسېدلو لپاره کور په کرایه ورکړي او څه وخت وروسته له هغه دوو خلګو څخه یو سړی (یو مستأجر) مړ سي، نو هم داجارې پر صحت هیڅ اثر نه پرېوځي (بلکي دژوندي مستأجر اجاره مُشاع باقي پاتېږي)، ځکه چي دا شیوع طاري دی یعني وروسته پیدا سوی دی او په طاري شیوع سره عقد نه باطلېږي؛ ځکه چي قدرت علی التسلیم (پر وسپارلو قادر کېدل) د عقد منعقد کېدلو په وخت کي ضروري دی او وروسته د هغه بقاء (باقي پاتېدل) ضروري نه دي (لکه څرنګه چي د لمانځه د ابتداء [شروع] لپاره تکبیرِ افتتاح شرط دی او د لمانځه د بقاء لپاره شرط نه دی)، همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي مؤجر (په اُجرت ورکونکي) دوه کسان وي او مستأجر یو کس وي؛ ځکه چي دلته هم مستأجر په یوه عقد (صفقه واحده) سره او په یوه ځل له دواړو څخه شی په اُجرت اخیستی دی او له هغه څخه یې نفع حاصله کړې ده، بیا د دوی دواړو په مینځ کي حاصلېدونکی شیوع وروسته واقع سوی دی، نو دا شیوع طاري سو، نه ابتدائي او طاري شیوع بالاتفاق جائز دی. او بل دا چي که فکر او غور وسي نو په دې صورت کي د اجارې په اُجرت کي شیوع (اشتراک) سته، نه په معقود علیه کي، یعني په مستأجر شي کي شیوع نسته بلکي د هغه په امدن (کرایه) کي شیوع سته، او د امدن شیوع عقد لره مضر نه دی. (احسن الهدایه)

## د بچي د شیدو لپاره ښځه په أجرت نیول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الظِّئْرِ بِأُجْرَةٍ مَعْلُومَةٍ فرمایي: او [بچي ته] شیدې ورکونکې ښځه په أجرت نیول جائز دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ [الطلاق:۶] ځکه چي الله تعالیٰ فرمایلي دي: "که چیري ستاسو مطلقه ښځې ستاسو لپاره [بچیانو ته] شیدې ورکړي نو هغوی ته خپل اُجرت ورکړئ!" وَلِأَنَّ التَّعَامُلَ بِهِ كَانَ جَارِيًا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ ﷺ وَقَبْلَهُ او ځکه چي د نبي ﷺ په زمانه کي او تر هغه مخکي پر دې عمل جاري وو وَأَقَرَّهُمْ عَلَيْهِ او نبي کریم ﷺ هغوی پر دې [تعامل] باقي پرېښوول ثُمَّ قِيلَ: إِنَّ الْعَقْدَ يَقَعُ عَلَى الْمَنَافِعِ بیا ویل سوي دي: چي دا عقد پر منافعو واقع کېږي وَهِيَ خِدْمَتُهَا لِلصَّبِيِّ وَالْقِيَامُ بِهِ او منافع [یعني له منافعو څخه مراد] د بچي خدمت کول او د هغه پالل دي وَاللَّبَنُ يُسْتَحَقُّ عَلَى طَرِيقِ التَّبَعِ او د شیدو استحقاق د تابع په توګه کېږي [یعني په دغه عقد اجاره کي د شیدې ورکولو استحقاق تبعاً ثابتېږي] بِمَنْزِلَةِ الصَّبْغِ فِي الثَّوْبِ لکه څرنګه چي

په کپړه کې رنګ دی وَقِيْلَ: إِنَّ الْعَقْدَ يَقَعُ عَلَى اللَّبَنِ وَالْخِدْمَةُ تَابِعَةٌ او ویل سوي دي: چې دا عقد پر شیدو اورکولو] منعقد کیږي او خدمت د هغه تابع دی وَلِهٰذَا لَوْ أَرْضَعَتْهُ بِلَبَنِ شَاةٍ همدا وجه ده که دا ښځه بچي ته د بزې [وزې] شیدې ورکړي لَا تَسْتَحِقُّ الْأَجْرَ نو د أجرت نه حقداره کیږي وَالْأَوَّلُ أَقْرَبُ إِلَى الْفِقْهِ او اول قول [أصولو د] فقه ته زیات نژدې دی لِأَنَّ عَقْدَ الْإِجَارَةِ لَا يَنْعَقِدُ عَلَى إِتْلَافِ الْأَعْيَانِ مَقْصُودًا ځکه چې عقد اجاره بالذات د اعیانو [شیانو] پر تلف کولو نه منعقد کیږي كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ بَقَرَةً لِيَشْرَبَ لَبَنَهَا لکه یو شوک چې غوا د دې لپاره په أجرت ونیسي چې د هغې شیدې به چیښي [یعني مثلاً که یو شوک خاص د دې لپاره غوا په کرایه ونیسي چې زه د هغې شیدې خورم، نو دا جائز نه دي] وَسَنُبَيِّنُ الْعُذْرَ عَنِ الْإِرْضَاعِ بِلَبَنِ الشَّاةِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى او د بزې د شیدې ورکولو په باره کې [یعني بچي ته د بزې په شیدې ورکولو سره د أجرت نه حقداره کېدلو په هکله] چې کوم عذر دی هغه به موږ څه وروسته بیان کړو وَإِذَا ثَبَتَ مَا ذَكَرْنَا او کله چې هغه څه ثابت سوه کوم چې موږ ذکر کړه [یعني جواز الإجارة بأحد الطريقين] يَصِحُّ إِذَا كَانَتِ الْأُجْرَةُ مَعْلُومَةً نو دا اجاره به [هغه وخت] صحیح کیږي کله چې أجرت معلوم وي اعْتِبَارًا بِالِاسْتِئْجَارِ عَلَى الْخِدْمَةِ د خدمت لپاره په أجرت نیولو باندې په قیاس کولو سره.

**اللغات:** ﴿الظئر﴾ هغه ښځه چې د بل چا ځوی ته شیدې ورکوي، الْمُرْضِعَةُ لِغَيْرِ وَلَدِهَا، جمع: أَظْآر، ﴿تَعَامُل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل سره معامله کول (با همي عمل)، ﴿قيام﴾ د نصرد باب مصدر دی: دريدل، کله چې د دې باب په صله کې باء راسي لکه دلته چې "بِه" راغلی دي، نو معنیٰ یې ده: انتظام کول، ساتنه او پالنه کول، ﴿أَقَرّ﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: باقي پرېښوول، برقرار ساتل، ﴿الصِّبْغ﴾ او الصَّبَغ: رنګ (په کوم سره چې کپړه رنګول کیږي)، ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضايع کول، ختمول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې بچي ته د شیدو ورکولو او د هغه د پاللو او ساتلو لپاره یو ښځه (مُرضعه) په أجرت نیول جائز دي، او د داسې اجارې معامله په قرآن وحدیث سره ثابته ده، په قرآن کریم کې خو په واضحه توګه داسې ذکر سوي دي ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ یعني که ستاسې مطلقه ښځې ستاسو بچیانو ته شیدې ورکوي، نو تاسې هغوی ته خپل أجرت او مزدور

ورکوئ!. له دې څخه معلومه سوه چې مرضعه (شیدې ورکونکي) ښځې ته اُجرت ورکول جائز دي، او کله چې اُجرت ورکول جائز دي، نو ښکاره خبره ده چې هغه په اُجرت نیول هم جائز دي. او په حدیث سره په دې توګه دا ثابته ده چې د نبي کریم ﷺ له پیغمبر کېدلو څخه مخکې او وروسته په خلکو کې د دې تعامل جاري وو (په خپله نبي کریم ﷺ ته بي بي حلیمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا شیدې ورکړې وې). او نبي ﷺ پر دې هیڅ نکیر او نیوکړه نه وکړه بلکې خلک یې پر دې باقي پرېښوول. نو د دغه کار د جواز او ثبوت په هکله دا ښکاره دلیل دی.

ثم قيل إلخ: په دې باره کې د علماؤ او فقهاؤ اختلاف دی چې دغه اجاره پر شیدو ورکولو منعقد کیږي یا د بچي پر خدمت او پالنه کولو منعقد کیږي؟ په دې سلسله کې د مشایخو دوې رایې دي:

① د صاحب ایضاح، صاحب ذخیره او داسې نورو رایه دا ده چې دغه اجاره اصلاً د بچي پر خدمت منعقد کیږي او د شیدو ورکولو پر کار تبعاً او ضمناً منعقد کیږي، لکه یو سړی چې د خپل ټوکر او کپړې رنګولو لپاره رنګرېز په کرایه ونیسي، نو معقود علیه د هغه فعل وي (یعني عقد د هغه پر کار واقع کیږي) او رنګ په هغه کې تبعاً داخلیږي، همداسې دلته هم معقود علیه د بچي خدمت وي او شیدې ورکول په هغه کې په ضمني توګه داخلیږي.

② دویم قول د شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله دی او هغه دا چې معقود علیه شیدې ورکول دي او خدمت په هغه کې ضمناً داخلیږي، همدا وجه ده که مرضعه ښځه و بچي ته شیدې نه ورکوي او نور شپه و ورځ د هغه خدمت کوي یا هغه ته د بزې شیدې ورکوي، نو هغه د اُجرت نه حقداره کیږي، نو د شیدې ورکولو سره د اُجرت متعلق کېدل د دې خبرې دلیل دی چې معقود علیه اصلاً شیدې ورکول دي.

د علامه مرغیناني (صاحب د هدایې) رَحِمَهُ الله په نېز اول قول راجح او اقراب الی الفقه دی، وجه یې دا ده چې په شیدې ورکولو کې د عَین شي یعني د شیدو اتلاف سته (یعني په شیدې ورکولو سره موجوده شیدې له منځه ځي، ځکه چې بچي یې رودي)، او اجاره د عَین د اتلاف لپاره نه منعقد کیږي بلکې د منفعت حاصلولو لپاره منعقد کیږي. لېکن د بنایه او نهایه د مصنفینو په نېزدویم قول راجح دی او صاحب د احسن الهدایې فرمایي چې زما رایه هم دغه ده (چې دویم قول راجح دی)؛ ځکه چې د هر ډول منفعت په حاصلولو کې خامخا د یو شي اتلاف راځي او بغیر له اتلافه د منفعت حاصلولو تصور هم ممکن نه دی. که چیرې څوک له دې بیرې ډوډۍ نه پخوي چې که اُور بل کړی سي نو بوټي او لرګي به تلف سي، نو ښکاره ده چې هغه به د خوراک له منفعت او لذت څخه محروم سي، همدارنګه که مرضعه په دې سوچ او فکر سره بچي ته شیدې نه ورکوي چې زما شیدې به تلف سي، نو په دې سره خو به بچی

مرسي، لهذا اصل معقود عليه شيدې وركول (ارضاعِ لبن) دي او همدا دويم قول اقرب الى الفقه دى، بس لږ غوندي فكر او غور كولو ته ضرورت دى، د نور تفصيل لپاره وګورئ! (بنايه ج:٩، ٣٥٠)

وسنبين العذر إلخ: دا داول قول د قائلينو له طرفه د دويم قول قائلينو ته جواب دى، حاصل يې دا دى چې په دويم قول كې چې كوم دا خبره سوې ده چې كه مرضعه ښځه (ظئر) بچي ته د بزې يا بل څا شيدې وركوي نو هغه دأجرت نه مستحقه كيږي، د دې وجه او تفصيل به څه وروسته (په دې قول "لأنها لم تأت بعمل مستحق عليها" سره) بيان سي كوم چې له را روان عبارت څخه په وروسته عبارت كې بيان سوى دى. لنډه دا چې دا خبره د ټولو په نيز مسلمه ده چې د بچي د رضاعت او خدمت لپاره ښځه په أجرت نيول صحيح او جائز دي. (احسن الهدايه)

## د خوراک او جامې په عوض کې مُرضعه ښځه په أجرت نيول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَيَجُوزُ بِطَعَامِهَا وَكِسْوَتِهَا اسْتِحْسَانًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: او د دې مرضعې ښځې د خوراک او جامې په عوض کې هغه په أجرت نيول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز استحساناً جائز دي وَقَالَا ۞: لَا يَجُوزُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې جائز نه دي لِأَنَّ الْأُجْرَةَ مَجْهُولَةٌ ځکه چې أجرت مجهول دى فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَهَا لِلْخُبْزِ وَالطَّبْخِ نو داسي سو لکه د ډوډۍ پخولو يا خوراک پخولو لپاره چې هغه په أجرت ونيسي وَلَهُ: أَنَّ الْجَهَالَةَ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې دغه جهالت جنګ ته رسول نه کوي [يعني د جنجال او جنګ سبب نه جوړيږي] لِأَنَّ فِي الْعَادَةِ التَّوْسِعَةَ عَلَى الْأَظْآرِ شَفَقَةً عَلَى الْأَوْلَادِ ځکه عادت همدا دى چې پر شيدو ورکونکو ښځو پراخي کيږي پر بچيانو د شفقت کولو په خاطر [يعني پر خپل بچي د شفقت او مهرباني کولو په وجه عموماً مستأجر د شيدې ورکونکي ښځي سره آساني او د پراخ لاسي څرګندونه کوي] فَصَارَ كَبَيْعِ قَفِيزٍ مِنْ صُبْرَةٍ نو دا داسي سو لکه [د غلې] له کوړي څخه يو قفيز خرڅول بِخِلَافِ الْخُبْزِ وَالطَّبْخِ په خلاف د ډوډۍ او خوراک پخولو لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهِ تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چې په هغه کې جهالت جنګ ته رسول کوي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: فَإِنْ سَمَّى الطَّعَامَ دَرَاهِمَ او په جامع صغير کې دي: چې که د خوراک دراهم

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:٣، ص:٥٣۶)، والدر المنتقى (ج:٣، ص:٥٣٧). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٣٢]

مُتعيّن کړي وَوَصَفَ جِنسَ الْكِسْوَةِ وَأَجَلَهَا وَذُرُوْعَهَا او د جامې جنس، د هغې [د ورکولو] مودت او د هغې گزونه بیان کړي فَهُوَ جَائِزٌ يَعْنِي بِالْإِجْمَاعِ نو دا جائز دي يعني بالاجماع [يعني د ټولو په اتفاق سره جائز دي] وَمَعْنَى تَسْمِيَةِ الطَّعَامِ دَرَاهِمَ أَنْ يَجْعَلَ الْأُجْرَةَ دَرَاهِمَ ثُمَّ يَدْفَعُ الطَّعَامَ مَكَانَهُ او د خوراک د دراهمو د مُتعيّن کولو مطلب دا دی چې [اول] په اُجرت کې دراهم وټاکي بیا د هغه پر ځای خوراک [يعني غله] ورکړي وَهٰذَا لَا جَهَالَةَ فِيهِ او په دې کې هیڅ جهالت نسته وَلَوْ سَمَّى الطَّعَامَ وَبَيَّنَ قَدْرَهُ او که چیرې طعام [غله] مُتعيّن کړي او د هغه مقدار بیان کړي جَازَ أَيْضًا نو هم جائز دي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په کوم چې موږ ذکر کړی وَلَا يُشْتَرَطُ تَأْجِيلُهُ او د طعام [اداء کولو لپاره] مودت ټاکل شرط نه دي لِأَنَّ أَوْصَافَهَا أَثْمَانٌ ځکه چې د طعام اوصاف خو ثمنونه دي [يعني کوم طعام چې مُعيّن او مشارإليه نه وي بلکې صرف د هغه وصف بیان کړی سوي وي، نو هغه ثمن دي، مبيع نه دي] وَيُشْتَرَطُ بَيَانُ مَكَانِ الْإِيفَاءِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د طعام] د داء کولو ځای بیانول شرط دي [کله چې په هغه کې حمل (بارول) او د هغه پر بارولو خرچه پرېوځي] خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او موږ دا په کتاب البيوع کې ذکر کړي دي وَفِي الْكِسْوَةِ يُشْتَرَطُ بَيَانُ الْأَجَلِ أَيْضًا مَعَ بَيَانِ الْقَدْرِ وَالْجِنْسِ او په جامه ورکولو کې د مقدار او جنس د بیانولو سره د مودت بیانول هم شرط دي لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَصِيرُ دَيْنًا فِي الذِّمَّةِ إِذَا صَارَ مَبِيعًا ځکه چې جامه هغه وخت پر ذمه قرض گرځي کله چې هغه مبيع وگرځي وَإِنَّمَا يَصِيرُ مَبِيعًا عِنْدَ الْأَجَلِ او هغه صرف د مودت بیانولو [وخت ټاکلو] په صورت کې مبيع گرځي كَمَا فِي السَّلَمِ لکه څرنگه چې په بیع سَلَم کې کیږي.

**اللغات:** ﴿طعام﴾ خوراک، او د اطلاق په وخت کې غله (يعني غنم، وريجې، اوربشې او داسې نورو دانو) ته ویل کیږي، لکه مخکې چې موږ ذکر کړه، ﴿كِسْوَة﴾ لباس، جامه، کالي، اللِّبَاسُ الَّذِي يُسْتَتَرُ بِهِ وَيُتَجَمَّلُ بِهِ. ﴿خَبْز﴾ (د خاء فتحه سره) د ضرب د باب مصدر دی: ډوډۍ (روټی) پخول، او خُبْز ډوډۍ ته ویل کیږي، ﴿طَبْخ﴾ د فتح د باب مصدر دی: خوراک پخول (سالن او کټغ پخول)، ﴿توسعة﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، وَسَّعَ يُوَسِّعُ تَوْسِيعًا و تَوْسِعَةً: پراخي کول (پراخ لاسي کول)، پراخ

ګرځول، ﴿أَظْآر﴾ جمع د ظِئْرٌ ده لکه د حِمْلٌ جمع چې أَحْمَال راځي: بل چا ته شیدې ورکونکې ښځه (المرضعة لغیر ولدها)، ﴿صُبْرَة﴾ کوړه، کوټه، خره، دلۍ، راغونډ کړل سوي شیان او غله، ﴿قفیز﴾ دا پخوا یو ډول پیمانه او لوښی وو چې په هغه سره به شیان اندازه کېدل، او په یوه او بل ښار کې به د هغې مقدار مختلف وو، د مصر د اوسني مقدار مطابق تقریبا هغه شپاړس کېلو کیږي، او شرعي قفیز دوولس صاعه کیږي، ﴿ذروع﴾ جمع د ذِرَاعٌ ده: ګز، لیکن د لغت په کتابو کې د ذِرَاعٌ جمع أَذْرُعٌ ذکر سوې ده، والله اعلم.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د خوراک او جامې په عوض کې د خپل بچي لپاره مرضعه (شیدې ورکونکې) ښځه په أجرت ونیسي (یعني هغې ته ووایې چې زه په أجرت کې تا ته خوراک او لباس درکوم)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دغه اجاره جائز ده او همدا استحسان دی، لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا اجاره صحیح نه ده؛ ځکه چې د خوراک او جامې جنس، مقدار او وصف مجهول دی نو د دغه جهالت په وجه أجرت هم مجهول دی، حال دا چې د اجارې د صحت لپاره د أجرت د مقدار معلوم او مُتعیّن کېدل ضروري دي. دا داسې سوه لکه د ډوډیو یا د خوراک پخولو لپاره چې یو څوک په أجرت ونیسي او أجرت معلوم نه کړي، نو اجاره باطله ده، همداسې په دغه پورتنۍ مسئله کې هم د خوراک او جامې په عوض کې د مرضعې اجاره جائز نه ده.

**وله: أن الجهالة إلخ**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې دلته أجرت که څه هم مجهول دی لیکن دغه جهالت مُفضِي الی النزاع نه دی، ځکه عموماً په دغه ډول معاملاتو کې خلک د پراخ لاسی څرګندونه کوي او د خپل بچي د ښه تربیت او پالنې لپاره مرضعې ته زیات أجرت ورکړي او په دې هکله نزاع او جنجال نه کوي، نو ځکه په دغه صورت کې به اجاره جائز وي. د دې مثال داسې دی لکه یو څوک چې د غنمو له کوړې (کوټې) څخه یو قفیز غنم خرڅ کړي او د هغه طرف مُتعیّن نه کړي چې د کوړې له کومه طرفه یې درکوم، نو که څه هم په دې صورت کې جهالت سته لیکن دا جهالت مُفضِي الی النزاع نه دی. نو ځکه د دغه جهالت باوجود هم عقد جائز دی، همداسې په پورتنۍ مسئله کې هم د جهالت باوجود عقد جائز دی.

دغه اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې د خوراک او جامې جنس، مقدار او وصف بیان کړل سوي نه وي لیکن که چیرې دا شیان بیان او واضح کړل سي، نو د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نېز دغه عقد اجاره جائز ده. او د "فَإِنْ سَمَّى الطَّعَامَ دَرَاهِمَ" مطلب دا دی چې اول معامله پر دراهمو وسي او بیا د دراهمو پر ځای خوراک وټاکل سي، نو هم جائز دي؛ ځکه د دراهمو په بدله

چي کوم خوراک او غله ورکول کیږي هغه به د همغه ټاکل سوو دراهمو په حساب سره وي او هیڅ ډول جهالت به منځ ته نه راځي.

ولو سمّى الطعام إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مستأجر خوراک او د هغه مقدار مُتعیّن کړي چي مثلاً لس منه غنم اُجرت درکوم، نو دا هم جائز دي؛ ځکه چي په داسي وضاحت سره جهالت ختمیږي. په همدې وجه فقهاؤ د دغه اُجرت اداء کولو لپاره د وخت ټاکلو شرط نه دي لګولي؛ ځکه چي غیر مُعیّن طعام د ثمن په حکم کي وي او څرنګه چي د نورو اثمانو لپاره د اداء کولو وخت او میعاد ټاکل ضروري نه دي، همداسي د مذکوره ثمن د اداء کولو لپاره هم وخت ټاکل ضروري نه دي. هاً! که چیري د طعام پر ځای جامه په اُجرت کي وټاکي، نو د هغې جنس، مقدار او د اداء کولو وخت ټوله بیانول ضروري دي؛ ځکه جامه همغه وخت پر ذمه واجبیږي کله چي هغه مبیع جوړه سي او دا د وخت او مودت په ټاکلو سره مبیع جوړیږي، نو ځکه د جنس او مقدار د بیانولو سره به د وخت بیانول او ټاکل هم ضروري وي، لکه څرنګه چي په بیع سَلم کي د دغه ټولو شیانو بیانول ضروري دي. او په بله وینا داسي هم ویل کېدای سي چي دلته د جامې مبیع کېدل خلاف قیاس دي او کوم شی چي خلاف قیاس ثابت وي، هغه د شرع پر مورد منحصر وي (یعني په شریعت کي چي کوم څه وارد سوي وي، تر هغه پوري محدود وي)، او په شرع کي په دغه ډول مسئلو کي د بیع سَلم طریقه موروده او مسلمه ده، نو ځکه په پورتني صورت کي به هم د بیع سَلم شرطونه مراعات کیږي او تاسو ته معلومه ده چي په بیع سَلم کي وخت ټاکل (میاد ټاکل) شرط دي، نو ځکه دلته به هم وخت ټاکل شرط وي.

## د مُرضعه ښځي ذمه واریاني

قَالَ: وَلَيْسَ لِلْمُسْتَأْجِرِ أَنْ يَمْنَعَ زَوْجَهَا مِنْ وَطْئِهَا فرمايي: او مستأجر ته دا اختیار نسته چي د دغه مرضعه ښځي خاوند د هغې له وطي کولو څخه منع کړي لِأَنَّ الْوَطْءَ حَقُّ الزَّوْجِ ځکه چي وطي د خاوند حق دی فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِ نو ځکه مستأجر به د هغه د حق باطلولو قدرت [او اختیار] نه لري أَلَا تَرَى أَنَّ لَهُ أَنْ يَفْسَخَ الْإِجَارَةَ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ صِيَانَةً لِحَقِّهِ آیا ته نه ګورې! چي که خاوند د ښځي په اجاره کولو خبر نه وي نو د خپل حق د حفاظت کولو پر بناء خاوند ته د اجارې فسخ کولو حق هم سته إِلَّا أَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ يَمْنَعُهُ عَنْ غِشْيَانِهَا فِي مَنْزِلِهِ خو مستأجر ته دا اختیار سته چي په خپل کور کي خاوند د هغې له جماع کولو څخه منع کړي لِأَنَّ الْمَنْزِلَ حَقُّهُ ځکه چي کور خو د مستأجر خپل حق دی فَإِنْ حَبِلَتْ او که چیري دا مرضعه ښځه حامله سي كَانَ لَهُمْ أَنْ يَفْسَخُوا الْإِجَارَةَ إِذَا خَافُوا عَلَى

الصَّبِيِّ مِنْ لَبَنِهَا نو د کوچني کورنی والا ته [یعني مستأجر او داسي نورو ته] دا اختیار سته چي دغه اجاره ماته کړي کله چي دوی ته د کوچني په هکله د هغې له شیدو څخه [د ضرر] بېره وي [یعني که دا مُرضعه ښځه حملداره سي او دا بېره او خطره وي چي د هغې شیدې به کوچني ته ضرر ورسوي، نو په دې صورت کي د کوچني پلار یعني مستأجر او د هغه کورنی والا ته د اجارې فسخ کولو حق سته] لِأَنَّ لَبَنَ الْحَامِلِ يُفْسِدُ الصَّبِيَّ ځکه چي د حامله ښځي شیدې کوچنی خرابوي [یعني د هغه لپاره ضررمني دي] وَلِهٰذَا كَانَ لَهُمُ الْفَسْخُ إِذَا مَرِضَتْ أَيْضًا او په همدې وجه دوی ته هغه وخت هم د اجارې ماتولو اختیار سته کله چي دا مرضعه ښځه ناروغه سي وَعَلَيْهَا أَنْ تُصْلِحَ طَعَامَ الصَّبِيِّ او پر دغه مرضعې لازم دي چي د کوچني د خوراک اصلاح [سمون او انتظام] به کوي [یعني د هغه لپاره به لائق او نافع خوراک تیاروي] لِأَنَّ الْعَمَلَ عَلَيْهَا ځکه چي [نافع او مفید] کار د هغې پر ذمه لازم دی وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ فِيمَا لَا نَصَّ عَلَيْهِ الْعُرْفُ فِي مِثْلِ هٰذَا الْبَابِ خلاصه دا چي د کوم کار په باره کي نص وارد سوی نه وي په هغه کي عُرف معتبر دی په دا ډول باب کي فَمَا جَرَى بِهِ الْعُرْفُ مِنْ غَسْلِ ثِيَابِ الصَّبِيِّ وَإِصْلَاحِ الطَّعَامِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ نو پر کوم کار چي عُرف جاري وي لکه د کوچني کالي پرېولل او د هغه د خوراک اصلاح [او انتظام] کول او داسي نور فَهُوَ عَلَى الظِّئْرِ نو هغه د دغه مرضعې [شیدې ورکونکي] ښځي پر ذمه لازم دی أَمَّا الطَّعَامُ فَعَلَى وَالِدِ الْوَلَدِ او پاته سو خوراک نو هغه د کوچني پر پلار لازم دي [یعني د کوچني لپاره خوراک راوړل یا د خوراک خرچه ورکول پر پلار لازم دي او د خوراک تیارول او سمول پر مُرضعې لازم دي؛ ځکه چي په عُرف کي همداسي کیږي] وَمَا ذَكَرَ مُحَمَّدٌ أَنَّ الدُّهْنَ وَالرَّيْحَانَ عَلَى الظِّئْرِ او امام محمد رَحِمَهُ الله چي کوم دا خبره ذکر کړې ده چي روغن او خوشبویي پر مرضعې لازم دي [یعني د کوچني د مالش لپاره تېل او د خوشبویۍ شی مثلاً په اوسني وخت کي خوشبویي پوډر پر مُرضعې لازم دي] فَذٰلِكَ مِنْ عَادَةِ أَهْلِ الْكُوفَةِ نو دا د کوفې د خلکو له عادت [عُرف] څخه دي وَإِنْ أَرْضَعَتْهُ فِي الْمُدَّةِ بِلَبَنِ شَاةٍ او که مرضعه د رضاعت په مودت کي کوچني ته د بزې شیدې ورکړي فَلَا أَجْرَ لَهَا نو د هغې لپاره أجرت نسته [یعني په دې صورت کي به هغې ته اجرت او مزدوري نه ورکول کیږي] لِأَنَّهَا لَمْ تَأْتِ بِعَمَلٍ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهَا وَهُوَ الْإِرْضَاعُ ځکه پر مرضعې چي کوم کار لازم وو، هغې هغه کار نه وکړی او هغه کوچني ته له خپلي سینې څخه

شيدې ورکول دي فَإِنَّ هٰذَا إِيْجَارٌ وَلَيْسَ بِإِرْضَاعٍ ځکه دا په خوله کې عليحده شيدې ورکول دي، نه له خپلې سينې ځخه شيدې ورکول [مطلب دا چې د بزې شيدې ورکول له خپلې سينې ځخه شيدې ورکول نه دي بلکې دا جلا کار دی] وَإِنَّمَا لَمْ يَجِبِ الْأَجْرُ لِهٰذَا الْمَعْنٰى أَنَّهُ اخْتَلَفَ الْعَمَلُ او [دلته] د همدې معنیٰ په وجه أجرت واجب نه سو چې کار بدل سو [يعني په همدې وجه به أجرت نه ورکول کيږي چې هغې خپل کار بدل کړی].

**اللغات**: ﴿يتمكّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قدرت لرل (اختيار لرل). ﴿غِشْيان﴾ او غَشَيان د سمع مصدر دی: يو ځا ته راتلل، مراد ځنې کور والي او جماع کول دي، ﴿صيانة﴾ د نصر مصدر دی: حفاظت کول، خوندي کول، ساتل، ﴿حَبِلَت﴾ د سمع ماضي ده: حامله کېدل، بلاربېدل، ﴿تُصْلِح﴾ د افعال د باب مضارع ده: اصلاح او سمون کول، نافع (فايده من) کار کول، ﴿أرضعته﴾ د افعال د باب ماضي ده: شيدې ورکول (له خپل سينې [تيو] ځخه بچي ته شيدې ورکول)، ﴿الريحان﴾ هر ښه بوی لرونکي واښه او بوټي ته وايي، لېکن کله چې د عامو په نېز مطلق ذکر سي نو مخصوص ګل او بوټي ځنې مرادول کيږي چې هغه ته زموږ په اصطلاح هم ريحان وايي، ﴿إِيْجَار﴾ د افعال د باب مصدر دی، أَوْجَرْتُ الْمَرِيْضَ إِيْجَارًا: په خوله کې دواء ور اچول (په خوله کې دواء يا داسي بل شی ځخول).

**تشريح**: صورت د مسئلې خو له ترجمې ځخه هم ښکاري، د ما بقي عبارت حاصل دا دی چې په عُرف او رواج کې چې کوم کار د مرضعه (ظئر) پر ذمه وي، پر مرضعې د هغه کار کول او سر ته رسول لازم دي او په عُرف او عادت کې چې کوم کار د هغې پر ذمه نه وي، هغه کار يا د هغه کار خرچه به د بچي مور و پلار او سرپرست په غاړه اخلي، او د مرضعې اصل کار شيدې ورکول دي، نو که چيري مرضعه د بزې يا د بل ځا شيدې و بچي ته ورکوي، نو هغه ځکه د أجرت نه حقداره کيږي؛ چې أجرت د کار عوض دی او کله چې هغې کار کړی نه دی نو ښکاره ده چې هغه به حقداره د أجرت هم نه وي. (احسن الهدايه)

## د قفيز الطحان په شان مسئله

قَالَ: وَمَنْ دَفَعَ إِلَى حَائِكٍ غَزْلًا لِيَنْسِجَهُ بِالنِّصْفِ فرمايي: که ځوک يو جولا ته د دې لپاره تارونه ورکړي چې هغه پر نصف أجرت له هغه ځخه کپړه ووډي [توکر جوړ کړي] فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ نو د هغه لپاره أجرتِ مثلي دی [يعني په دې صورت کې به هغه ته نيمه کپړه نه ورکول کيږي بلکې أجرتِ مثلي به ورکول کيږي] وَكَذَا إِذَا اسْتَأْجَرَ حِمَارًا لِيَحْمِلَ طَعَامًا بِقَفِيزٍ مِنْهُ او همدارنګه که ځوک يو خر د دې لپاره

په كرايه ونيسي چي پر هغه غله يووسي د يوه قفيز په عوض كي له هغه غلې څخه [يعني د غرد د مالک لپاره له همدې غلې څخه يو قفيز په اُجرت كي وټاكي] فَالْإِجَارَةُ فَاسِدَةٌ نو دا اجاره فاسده ده لِأَنَّهُ جَعَلَ الْأَجْرَ بَعْضَ مَا يَخْرُجُ مِنْ عَمَلِهِ ځكه چي [دلته] مستأجر اُجرت د هغه شي يو جزء ټاكلى دى كوم چي د ده له عمل څخه حاصليږي [په بله وينا: ځكه چي مستأجر د اجير د كار له پيداوار څخه بعضي مقدار په اُجرت كي ټاكلى دى] فَيَصِيرُ فِي مَعْنَى قَفِيزِ الطَّحَّانِ نو دا د قفيز طحان د مسئلې په څېر سوه وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ حال دا چي نبي كريم ﷺ له قفيز طحان څخه منع كړې ده وَهُوَ أَنْ يَسْتَأْجِرَ ثَوْرًا لِيَطْحَنَ لَهُ حِنْطَةً بِقَفِيزٍ مِنْ دَقِيقِهِ او د هغه صورت دا دى چي يو څوک د دې لپاره غويى په اُجرت ونيسي چي د ده لپاره غنم ميده كړي [اوړه كړي] د همدې غنمو د اوړو د يوه قفيز په عوض كي وَهٰذَا أَصْلٌ كَبِيرٌ يُعْرَفُ بِهِ فَسَادُ كَثِيرٍ مِنَ الْإِجَارَاتِ او دا يو غټ اصل دى چي په هغه سره د ډېرو اجارو فاسدېدل معلوميږي لَا سِيَّمَا فِي دِيَارِنَا خصوصا زموږ په علاقو [فرغانه او داسي نورو] كي وَالْمَعْنٰى فِيهِ أَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ عَاجِزٌ عَنْ تَسْلِيمِ الْأَجْرِ او په دې كي [د اجارې نه جائز كېدلو] وجه [او فقهي راز] دا دى چي دلته مستأجر د اُجرت له وسپارلو څخه عاجز دى وَهُوَ بَعْضُ الْمَنْسُوجِ أَوِ الْمَحْمُولِ او اُجرت [دلته] د وودل سول كپړې يا بار كړل سوي غلې بعضي حصه ده وَحُصُولُهُ بِفِعْلِ الْأَجِيرِ چي د هغه حصول د اجير په فعل سره كيږي [يعني د اجير په كار او عمل سره په وجود كي رائحي (موجوديږي)] فَلَا يُعَدُّ هُوَ قَادِرًا بِقُدْرَةِ غَيْرِهِ نو ځكه مستأجر به د بل چا په قدرت سره قادر [قدرت لرونكى] نه شمارل كيږي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتَأْجَرَهُ لِيَحْمِلَ نِصْفَ طَعَامِهِ بِالنِّصْفِ الْآخَرِ او دا حكم د هغه صورت په خلاف دى كله چي د دې لپاره يو څوک په اُجرت ونيسي چي هغه د ده نيمه غله د پاته نيمي غلې په عوض كي يووسي حَيْثُ لَا يَجِبُ لَهُ الْأَجْرُ نو د دغه اجير لپاره اُجرت نه واجبيږي لِأَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ مَلَّكَ الْأَجْرَ فِي الْحَالِ بِالتَّعْجِيلِ ځكه چي مستأجر في الحاله هغه د پېشكي اُجرت مالک كړى دى [يعني مستأجر دغه اجير ته مخكي له هغه غنمو څخه (نغده) مزدوري وركړې ده] فَصَارَ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا نو ځكه هغه غله د دوى په مينځ كي مشتركه وګرځېده وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا لِحَمْلِ طَعَامٍ مُشْتَرَكٍ بَيْنَهُمَا او كه څوک يو سړى [يعني كه يو شريک بل شريک] د مشتركي غلې د وړلو لپاره په اُجرت ونيسي لَا

يَجِبُ الْأَجْرُ نو اُجرت نه واجبيږي [يعني وړونكي شريک ته به اُجرت او مزدوري نه ورکول کيږي] لِأَنَّ مَا مِنْ جُزْءٍ يَحْمِلُهُ إِلَّا وَهُوَ عَامِلٌ لِنَفْسِهِ فِيهِ ځکه هغه چي کوم جزء [او مقدار] هم وړي په هغه کي د خپل ځان لپاره هم کار کونکی دی فَلَا يَتَحَقَّقُ تَسْلِيمُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ نو د معقود عليه ورسپارل به ثابت نه سي قَالَ: وَلَا يُجَاوَزُ بِالْأَجْرِ قَفِيزًا او اُجرت به تريوه قفيز نه اضافه کول کيږي [يعني په پورتني صورت کي به د خره مالک ته تريوه قفيز زيات اُجرتِ مثلي نه ورکول کيږي] لِأَنَّهُ لَمَّا فَسَدَتِ الْإِجَارَةُ ځکه کله چي اجاره فاسده سوه فَالْوَاجِبُ الْأَقَلُّ مِمَّا سُمِّيَ وَمِنْ أَجْرِ الْمِثْلِ نو له ټاکل سوي اُجرت او اُجرتِ مثلي څخه چي کوم يو کم [لږ] وي هغه به واجب وي لِأَنَّهُ رَضِيَ بِحَطِّ الزِّيَادَةِ ځکه چي مالک په خپله د زياتوب [زائد مقدار] په ساقطولو راضي سوی دی وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَكَا فِي الْاِحْتِطَابِ او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چي دوه خلک د بوټو [لرګيو] په جمع کولو کي شرکت وکړي حَيْثُ يَجِبُ الْأَجْرُ بَالِغًا مَا بَلَغَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو [په هغه صورت کي د بوټو د ټرونکي او غونډونکي شريک لپاره] اُجرتِ مثلي واجبيږي هغه که هر څو ته ورسيږي لِأَنَّ الْمُسَمّٰى هُنَاكَ غَيْرُ مَعْلُومٍ ځکه چي هلته ټاکل سوی اُجرت معلوم نه دی فَلَمْ يَصِحَّ الْحَطُّ نو ځکه [د اُجرت مثلي] کمول صحيح نه دي.

**اللغات:** ﴿حائك﴾ له تارو څخه کپړه ودونکی، ټوکر اوبدونکی (ټوکر جوړونکی) چي په پښتو کي به هغه ته جولا ويل کېدل، ﴿غزل﴾ په معنیٰ سره د مَغْزُوْل: يعني هغه تارونه او سپنسيان کوم چي له پمبې او وړی څخه جوړ سوي وي، لکه پخوا چي به د لاسي څرخې په ذريعه له پمبې څخه تارونه جوړېدل بيا به له هغه تارونو څخه ټوکر او کپړه جوړول کېده، ﴿ينسج﴾ د ضرب مضارع ده (له نصر څخه هم راتلای سي): له تارونو څخه ټوکر ودل (اوبدل)، کپړه (ټوکر) جوړول، ﴿أجر مثل﴾ اُجرت مثلي، عمومي کرايه او مزدوري (يعني د عمومي رېت او عُرف مطابق چي پريو کار څومره اُجرت او مزدوري ورکول کيږي، هغه ته اُجرت مثلي وايي)، ﴿قفيز الطحان﴾ د قفيز تعريف مخکي تېر سو چي دا يو پېمانه ده او د طَحَّان ده معنیٰ ده: د غنمو ميده کونکی، اوړونکی (ژرندي والا)، قفيز الطحان يو فقهي اصطلاح ده چي د هغه يو صورت په عبارت کي بيان سو او بل صورت يې دا دی چي يو څوک طحان مثلاً ژرندي والا ته د اُوړه کولو لپاره غنم ورکړي او هغه ته په اُجرت کي له همدې اُوړو څخه يو قفيز اُوړه يا مثلاً شل سېره يا پنځويشت سېره اُوړه ورکړي (معجم لغة الفقهاء، مصباح المنير)، ﴿المنسوج﴾ د ضرب اسم مفعول دی: ودل سوی ټوکر، جوړه

کړل سوې کېږه، ﴿سوّی﴾ د تفعیل ماضي ده: نومول، بیانول، ټاکل، ﴿حطّ﴾ د نصر مصدر دی: کمول، ساقطول، ﴿احتطاب﴾ دافتعال مصدر دی: بوټي او لرګي جمع کول (یعني وچ بوټي او لرګي پرېکول او سره ټولول).

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو شوک جولا ته د تارونو بنډل ورکړي او هغه ته ووایي چي "ته له دغه تارونو څخه زما لپاره کپړه (ټوکر) جوړ کړه او له هغه کپړې څخه نیمه کپړه ته په اُجرت کي واخله! او نیمه ما ته راکړه!"، یا یو شوک د غلې (مثلا د غنمو) د وړلو لپاره یو خر په اُجرت ونیسي او له هغه غلې څخه یو قفیز یا مثلاً شل سېره غله د خره د مالک لپاره په اُجرت کي مُتعیّن کړي، مثلاً داسي ورته ووایي چي "زه پر دې خره پنځوس منه غنم باروم او له همدې غنمو څخه یو قفیز غنم تا ته په کرایه کي درکوم"، نو په دې صورت کي اجاره فاسدېږي او اجیر د اُجرتِ مثلي حقداره کیږي. لکه څرنګه چي د قفیز طحان په مسئله کي کیږي یعني که یو شوک د غوبي مالک ته یا مثلاً په اوسني وخت کي ژرندي والا ته ووایي چي "ته زما دغه دوه منه غنم اُوړه کړه او زه تا ته په اُجرت کي له همدې اُوړو څخه یو قفیز اُوړه یا مثلاً پنځویشت سېره اُوړه درکوم"، نو دغه اجاره فاسدېږي او اجیر (غوبي او ژرندي والا) ته اُجرتِ مثلي ورکول کیږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم اجیر د اُجرتِ مثلي مستحق کیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د قفیزِ طحان مسئله یو غټ اصل دی چي پر هغه د اجارهٔ فاسده ډېر صور تونه مُرتّب کیږي؛ او په هغه ټوله صورتونو کي د اجارې د فاسدېدلو او نه جائز کېدلو دلیل دا دی چي مستأجر داسي شی په اُجرت او کرایه کي ټاکلی دی چي د عقد کولو پر مهال مستأجر د هغه پر ورسپارلو قدرت نه لري؛ ځکه چي في الحاله کپړه جوړه کړل سوې نه ده او نه غنم بار کړل سوي دي او نه غنم اُوړه کړل سوي دي، بلکي دغه ټوله امور د اجیر پر فعل موقوف دي او کوم کار چي د بل چا پر فعل موقوف وي، د هغه وجود معدوم او په شک و خطره کي وي (چي هغه به موجود او صادر سي، که نه؟)، او معدوم و شکمن شی په اُجرت کي ټاکل صحیح نه دي.

وهذا بخلاف إلخ: څه مخکي چي کوم دا حکم ذکر سو (وکذا إذا استأجر حمارًا) چي که یو شوک د خپل غلې د وړلو لپاره خر په اُجرت (په کرایه) ونیسي او له هغه غلې څخه د مالک لپاره په اُجرت کي یو قفیز یا مثلاً شل سېره غنم مُتعیّن کړي نو اجاره فاسدېږي، دغه حکم د دې صورت په خلاف دی چي که یو شوک په دې توګه بار وړونکی مزدور (حمّال) په اُجرت ونیسي چي له دغه غلې (یا بل شي) څخه نصف د نصف په عوض کي د هغه کور ته یووسي، مثلاً داسي ورته ووایي چي "ته دغه دوه منه غنم زما کور ته ورسوه او له هغه څخه یو من غنم ته په اُجرت او عوض کي واخله!"، نو په دې

صورت کي هيڅ أجرت نه واجبيږي يعني اجير (حمال) ته به نه ټاکل سوی أجرت (يو من غنم) ورکول کيږي او نه أجرت مثلي؛ ځکه چي دلته مستأجر و اجير ته في الحاله پېشکي أجرت ورکړی دی، نو هغه غنم د دوی دواړو په مينځ کي مشترک سول، ګواکي دواړه د هغه د نصف، نصف مالکان سول (يعني ګواکي يو من غنم د مستأجر سوه او بل من د اجير سوه)، لهذا اجير چي کوم غنم وړي، په هغه کي به د خپل ځان لپاره هم کار کونکی وي او انسان چي کله د خپل ځان لپاره کار کوي، نو أجرت نه سي اخيستلای؛ ځکه چي په دې صورت کي د هغه له طرفه د معقود عليه ورسپارل نه موجوديږي بلکي هغه په خپله د وړلو او بارولو فايده اخلي، يا په بله وينا دا چي که د دوو شريکانو په مينځ کي غنم مشترک وي او بيا له هغو څخه يو شريک د دغه مشترکه غنمو د وړلو لپاره بل شريک په أجرت ونيسي، نو هيڅ أجرت نه واجبيږي؛ ځکه د غنمو د هر جزء او حصې په وړلو کي به هغه د خپل ځان لپاره هم کار کونکی وي، نو د معقود عليه تسليم (ورسپارل) به متحقق نه سي؛ ځکه چي اجير خپل ذاتي منفعت مستأجر ته نه سپاری، لکه څرنګه چي په "ومن استأجر رجلًا لحمل طعام مشترك" سره همدغه صورت بيان سوی دی.

ولايجاوز بالأجرالخ: د دې عبارت تعلق هم د مخکني صورت "وكذا إذا استأجر حمارًا ليحمل طعامًا بقفيز منه" سره دی چي په هغه کي اجاره فاسديږي او أجرت مثلي واجبيږي، حاصل يې دا دی چي دغه أجرت مثلي به له يوه قفيز (ټاکل سوي أجرت) څخه زيات نه ورکول کيږي، يعني څومره أجرت مثلي چي واجب سي، که چيري هغه يو قفيز وي يا له يوه قفيز څخه کم وي، نو همغه به ورکول کيږي او که له يوه قفيز څخه زيات وي، نو زائد مقدار به نه ورکول کيږي؛ ځکه کله چي اجاره فاسده سوه ، نو په ټاکل سوي أجرت او أجرت مثلي کي چي کوم يو لږ وي، هغه واجبيږي، زائد مقدار والا نه واجبيږي؛ ځکه چي د خره مالک په خپله له يوه قفيز څخه د زائد مقدار په ساقطېدلو راضي سوی دی (يعني هغه په شروع کي په يوه قفيز غنمو راضي سوي دی، نو د دې مطلب دا دی چي هغه له يوه قفيز څخه د زائد مقدار په ساقطېدلو راضي دی).

وهذا بخلاف ما إذا شتركا إلخ: مذکوره حکم د دې صورت په خلاف دی چي که دوه خلک دا ډول شراکت سره وکړي چي ما او تا به په صحرا کي بوټي او لرګي سره جمع کوو (يعني بوټي به پرېکوو او سره ټولوو)، او ګټه به زما او ستا په مينځ کي مشترکه وي، نو که چيري دوی دواړه په ګډه (په مشترکه توګه) بوټي سره جمع کړي، نو ښکاره خبره ده چي د لرګيو او بوټو ګټه د دواړو په مينځ کي مشترکه کيږي، لېکن که له دوی څخه يو بوټي جمع کړي وي او بل صرف سره غونډ کړي او تړلي وي (يا په بله وينا دا چي يوه بوټي پرېکړي وي او بل صرف سره غونډ کړي او تړلي وي)، نو په دې صورت کي د بوټو اصل

مالک جمع کونکی دی، او تړونکي وغونډونکي ته به صرف أجرتِ مثلي ورکول کیږي لیکن دغه أجرت چي هر څومره وي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز به پوره ورکول کیږي یعني که څه هم دغه أجرتِ مثلي د جمع کړل سوو بوټو له نصف قیمت څخه زیات وي نو هم به ورکول کیږي، لیکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز دا أجرتِ مثلي د نصف قیمت سره برابرېدل شرط دي (یعني تړونکي شریک ته به د جمع کړل سوو بوټو د نیم قیمت په اندازه یا تر هغه کم أجرت ورکول کیږي) او له هغه څخه زائد جائز نه دی. د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي کله دلته د أجرت مقدارِ معلوم نه دی، نو أجرتِ مثلي به بشپړ واجبیږي او په هغه کي به هیڅ کمي و کمبوت نه کول کیږي. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د دواړو په ګډه کار کول د دې خبري دلیل دی چي دویم شریک تر نصف قیمته پوري د أجرت په اخیستلو راضي دی او له هغه څخه د زیات أجرت خواهش من نه دی، نو ځکه هغه ته به د بوټو او لرګیو له نصف قیمت څخه زیات أجرتِ مثلي نه ورکول کیږي. (بنایه ج:٩، ص:٣٦٣)

## یو سړی (نان وای) د دې لپاره په أجرت نیول چي هغه به ننه ورځ د لسو صاعو اوړو ډوډۍ پخوي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا لِيَخْبِزَ لَهُ هٰذِهِ الْعَشَرَةَ الْمَخَاتِيمَ مِنَ الدَّقِيقِ الْيَوْمَ بِدِرْهَمٍ او که څوک د دې لپاره یو سړی په أجرت ونیسي چي هغه د ده لپاره د یوه درهم په عوض کي همدا ننه ورځ د لسو صاعو اوړو ډوډۍ پخه کړي فَهُوَ فَاسِدٌ نو دا عقد اجاره فاسد دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ❁ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ فِي الْإِجَارَاتِ هُوَ جَائِزٌ او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله [د مبسوط] په کتاب الاجارات کي ویلي دي: چي دا عقد جائز دی لِأَنَّهُ يُجْعَلُ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ عَمَلًا وَيُجْعَلُ ذِكْرُ الْوَقْتِ لِلِاسْتِعْجَالِ تَصْحِيحًا لِلْعَقْدِ ځکه د عقد صحیح ګرځولو لپاره به عمل معقود علیه ګرځول کیږي او د وخت ذکر کول به د استعجال [د کار د ژر غوښتلو] لپاره ګرځول کیږي فَتَرْتَفِعُ الْجَهَالَةُ نو جهالت به ختم سي وَلَهُ: أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ مَجْهُولٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي [دلته] معقود علیه مجهول دی لِأَنَّ ذِكْرَ الْوَقْتِ يُوجِبُ كَوْنَ الْمَنْفَعَةِ مَعْقُودًا عَلَيْهَا ځکه چي د وخت ذکر کول د منفعت معقود علیه کېدل لازموي وَذِكْرَ الْعَمَلِ يُوجِبُ كَوْنَهُ مَعْقُودًا عَلَيْهِ او د عمل

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله. [القول الراجح ج:٢، ص:٢٣٣]

ذکر کول د عمل معقود علیه کېدل لازموي وَلَا تَرْجِيحَ او [یوه لره هم] ترجیح نسته وَنَفْعُ الْمُسْتَأْجِرِ فِي الثَّانِي وَنَفْعُ الْأَجِيرِ فِي الْأَوَّلِ او په دویم صورت کې د مستأجر فایده ده او په اول صورت کې د اجیر [ډوډۍ پخونکي] فایده ده فَيُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو ځکه دا به جنګ ته رسول وکړي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَصِحُّ الْإِجَارَةُ إِذَا قَالَ فِي الْيَوْمِ وَقَدْ سَمَّى عَمَلًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې اجاره صحیح کیږي که چیري مستأجر "فِي الْيَوْمِ" ویلي وي او عمل یې مُتعیّن کړی وي لِأَنَّهُ لِلظَّرْفِ ځکه "فِي" د ظرف لپاره ده فَكَانَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ الْعَمَلَ نو ځکه معقود علیه به عمل وي بِخِلَافِ قَوْلِهِ الْيَوْمَ په خلاف د مستأجر د دې قول "الْيَوْمَ" وَقَدْ مَرَّ مِثْلُهُ فِي الطَّلَاقِ او د دې مثل په کتاب الطلاق کې تېر سوی دی.

**اللغات:** ﴿الْيَوْمَ﴾ نن ورځ (همدا نن ورځ)، ﴿المخاتیم﴾ جمع د مَخْتُوْمٌ ده چې د هغه یوه معنیٰ ده صاع، او دلته یې همدا معنیٰ مراد ده، صاع ته ځکه مختوم ویل کیږي چې پر هغه به د باچا له طرفه مهر لګول سوی وو چې کمي وزیاتوب پکښې نه وسي، صاع تقریبا درې نیم کېلو کیږي، نو په دې اعتبار سره لس صاعه پنځه دېرش کېلو کیږي، ﴿استعجال﴾ د استفعال مصدر دی: دیو کار د ژر کولو غوښتنه کول، د ژر کولو طلب ځنې کول (د تلوار تقاضا کول)، ﴿ترتفع﴾ د افتعال د باب مضارع ده: پورته کېدل، لیري کېدل، ختمېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک خباز (نان وای) په اُجرت ونیسي او پر هغه دا شرط ولګوي چې "ته به همدا نن ورځ د دغه لسو صاعو اُوړو ډوډۍ پخوې!"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا اجاره فاسده ده او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز ده، همدا د ائمه ثلاثه وو قول هم دی؛ صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلته عمل یعني کار (ډوډۍ پخول) معقود علیه ګرځولی دی او د دوی په نېز د "الْيَوْمَ" تذکره د دغه عمل د ژر پوره کولو د غوښتنې لپاره ده (یعني دا به ویل کیږي چې په دې سره د مستأجر غوښتنه او اراده دا ده چې خباز تلوار او چسپاندي وکړي او ژر تر ژره توله ډوډۍ پخه کړي) کنې "الْيَوْمَ" نه د عقد مقصود دی او نه معقود علیه دی، بلکې دلته معقود علیه صرف عمل (ډوډۍ پخول) ده او هغه مُتعیّن او معلوم دي، نو ځکه به دا اجاره جائز او صحیح وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دلته معقود عليه مجهول دی؛ ځکه د "اليَوْمَ" په ذکر کولو سره د "اليَوْمَ" معقود عليه کېدل لازميږي او د عمل په ذکر کولو سره د عمل معقود عليه کېدل لازميږي او دلته يوه لره هم هيڅ د ترجيح وجه نسته، نو ځکه معقود عليه مجهول دی او د معقود عليه جهالتِ عقد فاسدوي، ځکه چي هغه مُفضي الی النزاع دی په دې توګه چي د ورځې د تېرېدلو او ماښام کېدلو په وخت کي به اجير (نان وای) د خپل ټوله اُجرت غوښتنه کوي که څه هم د لسو صاعو اُوړو څخه د ډوډۍ پخولو کار پوره سوی نه وي، لېکن مستأجر به کار (يعني د ډوډۍ پخول) معقود عليه ګرځوي او تر کار پوره کېدلو مخکي به له اُجرت ورکولو څخه انکار کوي نتيجتا به د دواړو په مينځ کي جنجال او جنګ پېښ سي، نو ځکه موږ دا فيصله کړې ده چي په دغه پورتني صورت کي عقدِ اجاره فاسديږي. په دې سلسله کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي که مستأجر "فِي اليَوْم" ويلي وي او د عمل صراحت يې کړی وي، نو بيا خو عقد صحيح کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي به معقود عليه عمل وي او يَوْم (ورځ) به معقود عليه نه وي؛ ځکه چي "فِي" د ظرفيت لپاره مُتعيّنه ده او ظرف مظروف لره نه مستغرق کيږي (يعني ظرف د دې تقاضا نه کوي چي هغه دې ټوله په مظروف سره ونيول سي)، لهذا په مخکني صورت کي چي د يَوْم او د عمل دواړو د معقود عليه کېدلو کوم امکان وو، هغه په دې صورت کي معدوم سو، نو ځکه په دې صورت کي به اجاره جائز کيږي، لېکن که مستأجر د "فِي اليَوْم" پر ځای يې "اليَوْمَ" ويلي وي، نو اجاره نه صحيح کيږي؛ ځکه چي "اليَوْمَ" (ننه ورځ) د مودت لپاره استعمالول کيږي او په هغه کي ظرف د مظروف د استيعاب او استغراق تقاضا کوي چي په دې سره هغه هم معقود عليه ګرځي، نو ځکه به عقد نه صحيح کيږي.

## ځمکه د اړولو، کرلو او اُوبه کولو پر شرط په اُجرت نيول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا عَلَى أَنْ يَكْرُبَهَا وَيَزْرَعَهَا وَيَسْقِيَهَا فرمايي: او که څوک [مستأجِر] د دې لپاره ځمکه په اُجرت ونيسي چي هغه [مستأجِر] دا ځمکه سره اړوي او کښت پکښي کري او اوبه کوي يې فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّ الزِّرَاعَةَ مُسْتَحَقَّةٌ بِالْعَقْدِ ځکه چي په عقدِ اجاره سره د کښت ګری استحقاق سوی دی [په بله وينا: ځکه چي په دې عقدِ اجاره سره کښت ګري کول ثابت سوي دي] وَلَا يَتَأَتَّى الزِّرَاعَةُ إِلَّا بِالسَّقْيِ وَالْكِرَابِ او کښت ګري [کښت کرل] د ځمکي له اوبه کولو او د ځمکي له اړولو څخه بغير نه سي کېدای فَكَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُسْتَحَقًّا نو ځکه له دواړو څخه به هر يو په عقد سره

مستحق [او ثابت] وي وَكُلُّ شَرْطٍ هٰذِهِ صِفَتُهُ يَكُونُ مِنْ مُقْتَضَيَاتِ الْعَقْدِ او هر هغه شرط چي د هغه دا صفت وي، هغه شرط د عقد له مقتضياتو څخه دی [يعني هغه د عقد د مقتضا موافق شرط دی] فَذِكْرُهُ لَا يُوجِبُ الْفَسَادَ نو د هغه ذکر کول فاسدېدل نه واجبوي [يعني د عقد فاسدېدلو موجب او سبب نه ګرځي] فَإِنِ اشْتَرَطَ أَنْ يُثَنِّيَهَا أَوْ يَكْرِيَ أَنْهَارَهَا أَوْ يُسَرْقِنَهَا او که مستأجر دا شرط ولګوي چي هغه دوباره ځمکه اړوي او کري يا د ځمکي نهرونه [والې] غوچوي يا ځمکي ته امبار [خوشايي او کاد] ورکوي فَهُوَ فَاسِدٌ نو دا عقد اجاره فاسد دی لِأَنَّهُ يَبْقَى أَثَرُهُ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْمُدَّةِ ځکه چي د دې شيانو اثر [د اجارې] له مودت تېرېدلو څخه وروسته هم باقي پاتيږي وَأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ مُقْتَضَيَاتِ الْعَقْدِ او دا [شرطونه] د عقد له مقتضيانو څخه [هم] نه دي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په دې کي د يوه عاقد [يعني د ځمکي د مالک] فايده هم ده وَمَا هٰذَا حَالُهُ يُوجِبُ الْفَسَادَ او د کوم شرط چي دا حال وي هغه [د عقد] فاسدېدل واجبوي وَلِأَنَّ مُؤَاجِرَ الْأَرْضِ يَصِيرُ مُسْتَأْجِرًا مَنَافِعَ الْأَجِيرِ عَلَىٰ وَجْهٍ يَبْقَى بَعْدَ الْمُدَّةِ او ځکه چي د ځمکي مالک د اجير د منافعو په أجرت اخيستونکی ګرځي، په داسي طريقه سره چي تر مودت وروسته هم د هغه منفعت باقي پاتيږي [په بله وينا: او ځکه چي د دې شرطونو په وجه د ځمکي مالک له اجير څخه د داسي منافعو په أجرت اخيستونکی ګرځي چي د اجارې د مودت له ختمېدلو څخه وروسته هم هغه منافع (يا د هغوی اثرات) باقي پاتيږي] فَيَصِيرُ صَفْقَتَانِ فِي صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ نو دا به په يوه عقد کي دوه عقدونه وګرځي وَهِيَ مَنْهِيٌّ عَنْهُ حالانکي له دې څخه [په حديث کي] منع سوې ده ثُمَّ قِيلَ: الْمُرَادُ بِالتَّثْنِيَةِ أَنْ يَرُدَّهَا مَكْرُوبَةً بيا ويل سوي دي: چي د دوباره کولو مطلب دا دی چي مستأجر دا ځمکه په اړول سوي حالت کي د ځمکي مالک ته واپس کړي [يعني مالک ته د ځمکي د واپس کولو په وخت کي ځمکه دوباره واړوي او مالک ته يې وسپاري] وَلَا شُبْهَةَ فِي فَسَادِهِ او د دې شرط په فاسدېدلو کي هيڅ شک نسته وَقِيلَ: أَنْ يَكْرِيَهَا مَرَّتَيْنِ او ويل سوي دي: چي [مطلب يې دا دی چي] مستأجر دا ځمکه دوه ځله واړوي او کرل پکښې وکړي] وَهٰذَا فِي مَوْضِعٍ يُخْرِجُ الْأَرْضُ الرِّيعَ بِالْكِرَابِ مَرَّةً وَاحِدَةً وَالْمُدَّةُ سَنَةٌ وَاحِدَةٌ او دا په هغه ځای کي [يعني دا شرط په هغه ځای کي فاسد ګرځي] چي هلته په يوه ځل اړولو سره ځمکه فصل راباسي او د اجارې مودت [هم] يو کال وي وَإِنْ كَانَتْ ثَلَاثَ سِنِينَ او که

چیري د اجارې مودت درې کاله [تاکل سوی] وي لَا يَبْقَى مَنْفَعَتُهُ نو د هغه [دویم ځل اړولو] منفعت باقي نه پاتېږي [نو ځکه به اجاره نه فاسدېږي] وَلَيْسَ الْمُرَادُ بِكَرْيِ الْأَنْهَارِ الْجَدَاوِلَ بَلِ الْمُرَادُ مِنْهَا الْأَنْهَارُ الْعِظَامُ او د نهرونو په غوچولو سره لښتیان [یعني د لښتیانو غوچول] مراد نه دي بلکي له هغه څخه غټ نهرونه مراد دي [یعني دغټو والو غوچول ځني مراد دي] هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح ده لِأَنَّهُ يَبْقَى مَنْفَعَتُهُ فِي الْعَامِ الْقَابِلِ ځکه چي د هغه منفعت په آینده کال کي [هم] باقي پاتېږي.

**اللغات:** ﴿یکرب﴾ د نصر د مضارع ده، كَرَبَ يَكْرُبُ كِرَابًا: ځمکه اړول چي د کښت کرلو لپاره تیاره سي، ﴿الزراعة﴾ کښت ګري، کښت کرنه، ﴿یسقي﴾ د ضرب مضارع ده: اوبه کول، اوبه ورکول، ﴿مؤاجر﴾ په اُجرت او مزدورۍ ورکونکی، په کرایه ورکونکی. صاحب د مصباحُ المنیر او داسي نورو لغتپوهانو لیکلي دي چي د دغه لفظ صحیح تلفظ مُؤْجِر دی؛ ځکه چي دا د إفعال له بابه دی، ځکه آجَرَ په اصل کي أَأْجَرَ دی پر وزن د أَفْعَلَ، نو د دې باب فاعل د مفاعلې له بابه استعمالول خطاء ده، ﴿لا یتأتی﴾ د تفعّل د باب نفي صیغه ده: تیارېدل، حاصلېدل، ﴿مقتضیات العقد﴾ د عقد تقاضې او لوازمات، ﴿یُثنّیها﴾ د تفعیل مضارع ده، ثَنّٰى يُثَنِّيْ تَثْنِيَةً: دویم ځل کول (دوباره کول)، د یوه کار سره بل کار یو ځای کول، ﴿یُسَرْقِنُ﴾ د فعللة د باب مضارع ده، سَرْقَنَ يُسَرْقِنُ سَرْقَنَةً: ځمکي ته سِرْقِيْن ورکول (یعني ځمکي ته خوشايي یا کاد ورکول)، د سِرْقِيْن دوې معناوي دي: د څارویو فضله یعني خوشايي او داسي نورو، امبار او کاد (کود)، ﴿صفقة﴾ عقد، معامله، ﴿الریع﴾ فصل، غله، پیداوار، ﴿کری الأنهار﴾ د ضرب مصدر دی، كَرٰى يَكْرِيْ كَرْيًا، کله چي د دې باب په صله کي "نهر" راسي، نو معنی یې ده: په واله کي نوې کنده کښل او واله صفا کول، یعني واله غوچول (ژورول)، (معجم الوسیط، معجم لغة الفقهاء)، ﴿الجداول﴾ جمع د جَدْوَلٌ ده: کوچنۍ نرۍ واله، لښتی، ﴿القابل﴾ اسم فاعل دی: آینده (را روان کال).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک پر دې شرط ځمکه په اجاره (په ټېکه) واخلي چي زه د خپل کښت کرني لپاره دا ځمکه اړوم را اړوم، تخم پکښې کرم او اوبه ورته را تېروم او هغه اوبه کوم، نو د دغه شرط سره اجاره جائز ده؛ ځکه چي دا شرط د عقد د مقتضا موافق دی او له دغه شیانو څخه بغیر کښت کرل ممکن نه دي، نو ځکه په دې شرطونو سره به اجاره نه فاسدېږي. د دې په خلاف که دا

شرط ولګوي چې له يوه ځل اړولو او کښت کرلو څخه وروسته دا ځمکه دوباره اړوم يا د دې ځمکې نهرونه (والې) نور غوچوم يا په دې ځمکه کې کاد او امبار اچوم، نو په دې شرطونو سره اجاره فاسديږي؛ ځکه چې دا شرطونه د عقد د مقتضاء خلاف دي او بل دا چې په دې کې د ځمکې د مالک منفعت او فايده ده، په دې توګه چې د اجارې د مودت تر ختمېدلو وروسته به هم د مېستأجر د دغه کارونو اثرات باقي پاته وي او په دې توګه به مؤجر (مالک) له مستأجر څخه د هغه د منفعت اجارتاً اخيستونکی وګرځي او په يوه عقد کې به دوه عقدونه لازم سي، حال دا چې نبي کريم ﷺ له "صفقه فی الصفقتين" څخه منع کړې ده. لنډه دا چې په دغه شرطونو کې څو خرابۍ لازميږي، نو ځکه د دغه شرطونو په وجه به اجاره فاسديږي.

ثم قيل المراد إلخ: فرمايي په "أن يثنّيها" کې چې کوم د دوباره کولو شرط دی، د ځينې حضراتو په نېز د هغه مراد او مطلب دا دی چې مستأجر تر کښت کرلو وروسته دوباره ځمکه واړوي او مالک ته يې وسپاري، او ښکاره خبره ده چې دا شرط د عقد د مقتضا خلاف دی او په دې کې د مؤجر (مالک) نفع ده، نو ځکه به فاسد وي. او د ځينې حضراتو په نېز د هغه مطلب دا دی چې مستأجر دا ځمکه دوه ځله واړوي او کښت پکښې وکړي، لېکن ښکاره دي وي چې د دغه قول پر بنياد اجاره هغه وخت فاسديږي کله چې عُرف همدا وي چې مذکوره ځمکه په کال کې يو ځل اړول کيږي او صرف په يوه ځل اړولو سره ځمکه خپل فصل را پورته کوي او اجاره هم د يوه کال لپاره وي، لېکن که دا معامله په داسې ځای کې وي چې هلته په کال کې دوه ځله ځمکه اړول او کرل کيږي، نو په دې صورت کې اجاره نه فاسديږي. همدارنګه که د اجارې مودت درې کاله وي، نو هم په مذکوره شرط سره اجاره نه فاسديږي؛ ځکه چې تر درېو کالو پورې د هغه منفعت باقي نه پاتيږي او په دې صورت کې چې کوم شرط دی، هغه د عقد د مقتضا خلاف هم نه دی. او له نهر غوچولو څخه د غټو نهرونو (غټو والو) غوچول مراد دي، د کوچنيو نهرونو يعني د لښتيانو غوچول ځني مراد نه دي؛ ځکه چې د غټو نهرونو منفعت تر را روان کاله پورې باقي پاتيږي او لښتيان څه وخت وروسته په مټ او خاورو سره ډکيږي. (احسن الهدايه)

## ځمکه د ځمکې په عوض کې په اجاره اخيستل او د کرلو شرط لګول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَزْرَعَهَا بِزِرَاعَةِ أَرْضٍ أُخْرَى [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: که څوک يو ځمکه په اجاره واخلي د دې لپاره چې په هغې کې کښت وکړي د بلې ځمکې د کښت کرولو په عوض کې ايعني که څوک د بلې ځمکې (مثلاً د خپلې ځمکې) د کښت کرې په عوض کې ديو چا ځمکه د کښت کرې لپاره په اجرت واخلي] فَلَا خَيْرَ فِيهِ نو په دې کې هيڅ خير [او ښېګڼه] نسته وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: هُوَ جَائِزٌ او امام

شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا جائز دي وَعَلَىٰ هٰذَا إِجَارَةُ السُّكْنَىٰ بِالسُّكْنَىٰ وَاللُّبْسِ بِاللُّبْسِ وَالرُّكُوبِ بِالرُّكُوبِ او پر همدغه اختلاف دي د استوګني [اوسېدلو] په عوض کي د استوګني اجاره او د اغوستلو په عوض کي د اغوستلو اجاره او د سپرېدلو په عوض کي د سپرېدلو اجاره لَهُ: أَنَّ الْمَنَافِعَ بِمَنْزِلَةِ الْأَعْيَانِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي منافع د اعيانو په درجه کي دي حَتَّىٰ جَازَتِ الْإِجَارَةُ بِأُجْرَةٍ دَيْنٍ همدا وجه ده چي د قرض والا اُجرت په عوض کي اجاره جائز ده وَلَا يَصِيرُ دَيْنًا بِدَيْنٍ او دا اجاره د قرض په عوض کي قرض نه ګرځي وَلَنَا: أَنَّ الْجِنْسَ بِانْفِرَادِهِ يُحَرِّمُ النَّسَاءَ عِنْدَنَا او زموږ دليل دا دی: چي يوازي جنس هم قرض حراموي فَصَارَ كَبَيْعِ الْقُوهِيِّ بِالْقُوهِيِّ نَسِيئَةً نو دا داسي سوه لکه قوهستاني کپړه د قوهستاني کپړې په عوض کي په قرض سره خرڅول وَإِلَىٰ هٰذَا أَشَارَ مُحَمَّدٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله همدې ته اشاره کړې ده وَلِأَنَّ الْإِجَارَةَ جُوِّزَتْ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ لِلْحَاجَةِ او ځکه چي اجاره صرف د حاجت په وجه خلاف القياس جائز ګرځول سوې ده وَلَا حَاجَةَ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ او د جنس د يو والي په صورت کي حاجت [ضرورت] نشته بِخِلَافِ مَا إِذَا اخْتَلَفَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ په خلاف د هغه صورت کله چي د منفعت جنس مختلف وي.

**اللغات**: ﴿السكنى﴾ استوګنه، اوسېدنه، ﴿اللُّبس﴾ د سمع د باب مصدر دی: اغوستل، ﴿الركوب﴾ مخکنی صيغه ده: سپرېدل، ﴿الأعيان﴾ جمع د عَيْنٌ ده: مُتعيّن شيان، مادي او حسي شيان، - ﴿النَّساء﴾ په قرض يو معامله کول (په پور ورکول او اخيستل)، ﴿نسيئة﴾ په تاخير (په ځنډ) سره يعني په قرض سره، ﴿قُوهيّ﴾ د قوهستان وطرف ته منسوب شي ته قُوهيّ ويل کيږي، قوهستان تعريب د کوهستان دی يعني غرنی علاقې، پخوا په دې نامه سره د هرات او نيشاپور تر مينځ موجوده سيمي او غرونه مشهوره وه. (معجم البلدان)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زيد د کښت کرلو لپاره د خالد ځمکه په دې شرط په اُجرت واخلي چي د دې په عوض کي به خالد زما په ځمکه کي کښت کري، نو په دې کي هيڅ خير نشته، يعني ناجائز دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي، همدا حکم د هر متحد الجنس شي دي، مثلاً که زيد خپل کور خالد ته په دې شرط په کرايه ورکړي چي خالد به خپل کور ما ته په کرايه راکوي (يعني اُجرت دا وتاکي چي د دې په عوض کي به خالد خپل کور په کرايه راکوي)، يا مثلاً يو

څوک دیوې جامې اغوستل د بلې جامې داغوستولو په عوض کې په اُجرت واخلي یا یو څاروی د سپرېدلو لپاره د بل څاروي د سپرېدلو په عوض کې په اُجرت واخلي، نو زموږ په نېز په دغه صورتونو کې اجاره جائز نه ده (ځکه دواړو طرفونو ته یو شی دی خو دیوه طرف شی نغد دی او د بل طرف شی په قرض یعنې په تأخیر سره دی، مثلاً مستأجر [زید] د کښت کرلو لپاره اوس څمکه په اُجرت اخلي بیا تر کښت کرلو او حاصلولو وروسته دهغه په عوض کې مؤجر [خالد] ته د کښت کرلو لپاره خپله څمکه په اُجرت ورکوي، حال دا چې په دوه متحدُ الجنس شیانو کې دیوه قرض کېدل زموږ په نېز حرام دي)، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دغه صورتونو کې اجاره جائز ده.

**د امام شافعي دلیــل:** دا دی چې منافع د عَین شي په حکم سره دي او منافع دَین نه دي، ځکه که چیرې منافع دَین (قرض) وای نو د قرض په عوض کې به اجاره نه صحیح کېدای، حال دا چې د قرض او دَین په عوض کې اجاره صحیح کیږي، لنډه دا چې منافع د دَین په حکم سره نه دي، نو دلته د دَین په عوض کې دَین نه راځي، لهذا د دغه اجارې د منع کېدلو هیڅ وجه نسته.

**زموږ دلیل:** دا دی چې که فقط جنسیت موجود وي یعنې دوه شیان صرف متحد الجنس وي، نو هم زموږ په نېز دیوه شي قرض کېدل (مؤخر کېدل) حرامیږي؛ ځکه چې په دې کې د ربوا (سود) شبهه راځي او د ربوا په شېر د ربوا شبهه هم حرامه ده، لکه څرنګه چې قوهستاني کپړه د خپل همجنس قوهستاني کپړې په عوض کې په قرض سره خرڅول او رانیول جائز نه دي، همدغه ډول یو منفعت د بل همجنس منفعت په عوض کې ورکول او اخیستل هم ناجائز دي.

دویم دلیل دا دی چې شریعت د خلکو د ضرورت او حاجت په خاطر اجاره جائز ګرځولې ده (لکه مخکې چې ذکر سوه) او د اتحاد الجنس په صورت کې ضرورت نسته؛ ځکه کله چې د مستأجر سره په خپله څمکه، جامه او څاروی وي، نو بیا هغه ته څه ضرورت سته چې د دې شیانو په عوض کې خاص دهملوی په شېر شیان د کرلو، اغوستلو او سپرېدلو لپاره په اُجرت اخلي. ها! که چیرې جنس مختلف وي، مثلاً د خره په عوض کې آس په اُجرت (په کرایه) واخیستل سي یا د جامې اغوستلو په عوض کې د څاروي سپرېدل په اُجرت واخیستل سي، نو بیا اجاره جائز کیږي؛ لتحقق الحاجة.

## آیا یو شریک د بل شریک اجیر جوړېدای سي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الطَّعَامُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ فرمایي: او که چیرې غله د دوو خلکو په مینځ کې مشترکه وي فَاسْتَأْجَرَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ أَوْ حِمَارَ صَاحِبِهِ عَلَى أَنْ يَحْمِلَ نَصِيبَهُ بیا له دوی څخه یو شریک خپل ملګری یا د هغه خر د دې لپاره په اُجرت ونیسي چې هغه د ده حصه ایو ځای ته ایووسي فَحَمَلَ الطَّعَامَ كُلَّهُ او

هغه [اجير شريک] ټوله غله يوسي فَلَا أَجْرَلَهُ نو د هغه لپاره أجرت نسته [يعني مزدوري او کرايه به نه ورکول کيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ الْمُسَمّٰى او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لپاره ټاکل سوی أجرت دی لِأَنَّ الْمَنْفَعَةَ عَيْنٌ عِنْدَهُ ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز منفعت عين دی وَبَيْعُ الْعَيْنِ شَائِعًا جَائِزٌ او د مشترک [غير مقسوم] عين بيع جائز ده فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ دَارًا مُشْتَرَكَةً بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ لِيَضَعَ فِيهَا الطَّعَامَ نو دا داسي سوه لکه څوک چي داسي مشترک کور په کرايه ونيسي چي هغه د ده او د بل چا په مينځ کي مشترک وي، د دې لپاره چي په هغه کي غله کښيږدي أَوْ عَبْدًا مُشْتَرَكًا لِيَخِيطَ لَهُ الثِّيَابَ يا مشترک غلام په أجرت ونيسي چي هغه د ده لپاره جامې وګنډي وَلَنَا: أَنَّهُ اسْتَأْجَرَهُ لِعَمَلٍ لَا وُجُودَ لَهُ زموږ دليل دا دی: چي [دلته] هغه خپل شريک [يا د هغه خر] د داسي کار لپاره په أجرت نيولی دی چي هغه لره وجود نسته لِأَنَّ الْحَمْلَ فِعْلٌ حِسِّيٌّ لَا يُتَصَوَّرُ فِي الشَّائِعِ ځکه چي وړل [باروړل] يو حسي فعل دی چي په مشترک [غير مقسوم] کي هغه ممکن نه دی بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ حُكْمِيٌّ ځکه چي هغه يو حکمي تصرف دی وَإِذَا لَمْ يُتَصَوَّرْ تَسْلِيمُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او کله چي [د اجير له طرفه و مستأجر ته] د معقود عليه ورسپارل ممکن نه دي لَا يَجِبُ الْأَجْرُ نو أجرت به هم نه واجبيږي وَلِأَنَّ مَا مِنْ جُزْءٍ يَحْمِلُهُ إِلَّا وَهُوَ شَرِيكٌ فِيهِ او ځکه [دلته] چي اجير کوم جزء هم وړي په هغه کي دئ [د مستأجر] شريک دی فَيَكُونُ عَامِلًا لِنَفْسِهِ نو هغه به د خپل ځان لپاره هم کار کونکی وي فَلَا يَتَحَقَّقُ التَّسْلِيمُ نو ځکه [د معقود عليه] ورسپارل به ثابت نه سي بِخِلَافِ الدَّارِ الْمُشْتَرَكَةِ په خلاف د مشترک کور لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ هُنَالِكَ الْمَنَافِعُ ځکه چي هلته منافع معقود عليه وي وَيَتَحَقَّقُ تَسْلِيمُهَا بِدُونِ وَضْعِ الطَّعَامِ او [په کور کي] د غلې له ايښوولو څخه بغير هم د منافعو ورسپارل ثابتيږي وَبِخِلَافِ الْعَبْدِ او په خلاف د غلام لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ إِنَّمَا هُوَ مِلْكُ نَصِيبِ صَاحِبِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] معقود عليه د هغه د ملګري [دويم شريک] د حصې ملکيت دی وَأَنَّهُ أَمْرٌ حُكْمِيٌّ يُمْكِنُ إِيقَاعُهُ فِي الشَّائِعِ او ملکيت حکمي شی دی چي په مشترک [غير مقسوم] کي د هغه واقع کول [ثابتول] ممکن دي.

**اللغات**: ﴿نصيب﴾ حصه، حق، ﴿مسمیٰ﴾ ټاکل سوی مقدار، ﴿يخيط﴾ د ضرب مضارع ده: کپړه ګنډل (کالي جوړول)، ﴿شائع﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی چي د هغه خپله معنیٰ ده: منتشر، خپور، د شائع اصطلاحي معنیٰ ده: مشترک او مُشاع (غیرِ مقسوم)، مشترکه او نا تقسیم سوې حصه (نا جلا کړل سوې حصه)، داسي حصې ته ځکه شائع ویل کیږي چي هغه په ټوله مشترک شي کي منتشره (خپره) او نا معلومه وي (ځکه تر څو چي مشترکه حصه متميّزه او جلا کړل سوې نه وي، تر هغه وخته د مشترک شي په هر، هر جزء کي هغه وجود لري).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي مثلاً یوه ګونی غنم د دوو خلګو په مینځ کي مشترک وي او له دوی څخه یو شریک خپل ملګری شریک یا د هغه خَر د دې لپاره په أُجرت (په کرایه) ونیسي چي د هغه په ذريعه خپله حصه مثلاً خپل کور ته یووسي او اجیر شریک ټوله غنم هلته یووسي (یعني اجیر شریک خپله حصه [نیمه ګونی] له هغه څخه جلا نه کړي بلکي دواړي حصې [پوره ګونی] یو ځای د شریک کور ته یووسي او هلته خپله حصه جلا کړي)، نو زموږ په نیز د هغه لپاره أُجرت نسته یعني دغه اجیر شریک ته به هيڅ أُجرت نه ورکول کیږي، لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دوی په خپل مینځ کي کوم أُجرت ټاکلی وي، هغه به ده ته ورکول کیږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي منفعت عَین دی (دَین نه دی)، او د مشترک عَین یعني د مشترک شي بیع جائز ده، نو ځکه د مشترک عَین اجاره به هم جائز کیږي او اجیر به د ټاکل سوي أُجرت (اجرِ مسمیٰ) حقداره کیږي. د دې مثال داسي دی لکه مشترک کور یا مشترک غلام چي په أُجرت نیول جائز دي او په دې صورتونو کي أُجرت ورکول کیږي، نو همداسي به په پورتنی مسئله کي هم اجیر د أُجرت مستحق کیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چي دلته یوه شریک بل شریک د داسي عمل لپاره په أُجرت نیولی دی چي د هغه د وجود تمییز نه سي کېدلای، او بار پورته کول او وړل حسي فعل دی او په مشترک نا تقسیم سوي شي (غنمو) کي حسي فعل ممکن نه دی (ځکه په مشترک غنمو کي د یوه غنم د بل په غنمو کي شایع او خپاره دي او د یوه حصه معلومه او مُعیّنه نه وي، او حمل [پورته کول او وړل] پر معلومه حصه واقع کېدلای سي)، لهذا دلته د اجیر شریک له طرفه مستأجر شریک ته د معقود علیه ورسپارل نا ممکن سوه، او ښکاره خبره ده چي کله د معقود علیه ورسپارل ممکن نه دي، نو اجیر د أُجرت مستحق کېدل هم ممکن نه دي؛ ځکه چي د معقود علیه له ورسپارلو څخه بغیر بالکل أُجرت نه واجبیږي.

داجیر د مستحق أُجرت نه کېدلو یو دلیل دا هم دی چي غنم د اجیر او مستأجر په مینځ کي مشترک دي او دغه اشتراک د غنمو په هر، هر جزء کي دی، نو اجیر شریک به د هر جزء په وړلو کي د

خپل ځان لپاره هم ورونکی او کار کونکی وي، او دا شی هم له ورسپارلو څخه مانع دی، لهذا کله چي داجير شريک له طرفه ورسپارل ناممکن او ممنوع دي، نو هغه ته به اُجرت هم نه ورکول کيږي.

بخلاف الدار إلخ: دا دامام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، حاصل يې دا دی چي پورتنی مسئله د مشترک کور پر اجارې قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي په کور کي معقود عليه منافع وي (يعني د کور په اجاره کي معقود عليه په هغه کي اوسېدل او داسي نور وي) او د غنمو له ايښوولو څخه بغير هم د کور د منافعو ورسپارل ممکن دي او په ورسپارلو سره اُجرت واجبيږي، نو ځکه په دې صورت کي اُجرت واجبيږي. همدارنګه د مشترک غلام والا په صورت کي معقود عليه د دويم شريک د حصې ملکيت (مالک کېدل) دي او ملکيت (مالک کېدل) حکمي امر دی، لهذا په مشترک شي او مشترک غلام کي هغه ثابتول کېدای سي او په دې حواله سره د معقود عليه ورسپارل هم ممکن دي، نو ځکه په دې صورت کي هم اجير د اُجرت مستحق کيږي او اُجرت واجبيږي، او په پورتنی مسئله کي هغه ځکه د اُجرت نه مستحق کيږي چي په هغه صورت کي معقود عليه داجير عمل دی او هغه حسي فعل دی او په "شايع غيرِ مقسوم شي" کي حسي فعل په جلا توګه نه ثابتيږي، نو ځکه په پورتنی مسئله کي د معقود عليه ورسپارل ناممکن دي، او کله چي د معقود عليه ورسپارل ناممکن دي، نو بيا اُجرت څنګه واجبېدای سي! او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا مسئله د مشترک کور او مشترک غلام پر اجاره قياسول څنګه صحيح کېدای سي!؟.

### په مطلقه توګه ځمکه په اجاره اخيستل (يعني د کښت کرلو او داسي نورو تذکره نه کول)

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا وَلَمْ يَذْكُرْ أَنَّهُ يَزْرَعُهَا أَوْ أَيَّ شَيْءٍ يَزْرَعُهَا او که څوک ځمکه په اجاره واخلي او دا ذکر نه کړي چي هغه دا ځمکه کري يا هغه کوم شی پکښې کري فَالْإِجَارَةُ فَاسِدَةٌ نو اجاره فاسده ده لِأَنَّ الْأَرْضَ تُسْتَأْجَرُ لِلزِّرَاعَةِ وَلِغَيْرِهَا ځکه چي ځمکه د کښت کرۍ او غيرِ کښت کرۍ دواړو لپاره په اجاره اخيستل کيږي وَكَذَا مَا يُزْرَعُ فِيهَا مُخْتَلِفٌ او همدارنګه کوم شيان چي په ځمکه کي کرل کيږي هغه هم څو ډوله وي فَمِنْهُ مَا يَضُرُّ بِالْأَرْضِ وَ مَا لَا يَضُرُّ بِهَا غَيْرُهُ چي له هغوی څخه بعضي ځمکي ته نقصان رسوي او نور بيا ځمکي ته نقصان نه رسوي فَلَمْ يَكُنِ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ مَعْلُومًا نو ځکه معقود عليه به معلوم نه وي فَإِنْ زَرَعَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ بيا که چيري مستأجِر په دې ځمکه کي کښت وکري او [د اجارې] مودت تېر سي فَلَهُ الْمُسَمَّى نو د مالک لپاره ټاکل سوی اُجرت

دی[یعني د ځمکي مالک ته به ټاکل سوی اُجرت ورکول کیږي] وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوْزُ او په قیاس کي دغه عقدِ اجاره جائز نه ده وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ وَقَعَ فَاسِدًا ځکه چي دا عقدِ اجاره فاسد واقع سوی دی فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا نو ځکه هغه جائز نه سي ګرځېدای وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ الْجَهَالَةَ ارْتَفَعَتْ قَبْلَ تَمَامِ الْعَقْدِ د استحسان دلیل دا دی: چي [دلته] د عقد له پوره کېدلو څخه مخکي جهالت ختم سو فَيَنْعَقِدُ جَائِزًا نو ځکه به دا عقد جائز ګرځي كَمَا إِذَا ارْتَفَعَتْ فِي حَالَةِ الْعَقْدِ لکه کله چي د عقد په حالت [یعني د عقدِ اجاره کولو په دوران کي] جهالت ختم سي وَصَارَ كَمَا إِذَا أَسْقَطَ الْأَجَلَ الْمَجْهُولَ قَبْلَ مُضِيِّهِ او دا داسي سوه لکه مجهول مودت چي له تېرېدلو [پوره کېدلو] څخه مخکي ساقط کړي وَالْخِيَارَ الزَّائِدَ فِي الْمُدَّةِ او [لکه] زائد خیار شرط چي په مودت کي دننه ساقط کړي.

**اللغات**: ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په اُجرت (په کرایه) نیول، په اجاره (په ټیکه) اخیستل، ﴿یضرّ﴾ د نصر مضارع ده: ضرر او نقصان رسول، مضر کېدل، ﴿مَضَی﴾ د ضرب ماضي ده، مَضَی يَمْضِيْ مُضِيًّا: وخت تېرېدل (پوره کېدل)، ﴿ارتفعت﴾ د افتعال ماضي ده: پورته کېدل (له منځه تلل)، ختمېدل، ﴿ینقلب﴾ د انفعال مضارع ده: اوښتل، ګرځېدل (له یوه حالت څخه په بل حالت بدلېدل).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک ځمکه په اجاره واخلي لېکن دا ښکاره نه وکړي چي د کوم مقصد لپاره یې اخلي، یا دا خبره خو بیان کړي چي زه د کښت ګرۍ لپاره ځمکه اخلم مګر دا بیان نه کړي چي د کوم شي کښت پکښې کرم، نو څرنګه چي په دغه دواړو صورتونو کي معقود علیه معلوم او نا معلوم دی؛ ځکه چي ځمکه د کښت ګرۍ او نا کښت ګرۍ دواړو لپاره په اجاره اخیستل کیږي، همدارنګه په ځمکه کي بېلا بېل شیان کرل کیږي چي له هغوی څخه ځیني د ځمکي لپاره څه ضرر من وي لکه هغه سبزیجات او بوټي چي ریښې یې په ځمکه کي ډېر غوړېږي، او ځیني شیان ځمکي ته ضرر نه رسوي، لهذا تر څو چي ګښت ګري او د کښت ګرۍ نوعیت پوره بیان نه کړی سي، تر هغه وخته معقود علیه مجهول پاتیږي، او د معقود علیه جهالت عقد فاسدوي، نو ځکه په پورتنۍ مسئله کي عقد فاسدیږي. او که چیري په همدې حالت کي مستأجر په دغه ځمکه کي کښت وکړي او بیا د اجارې مودت ختم سي، نو استحساناً دغه عقدِ اجاره صحیح ګرځي او مالک(مؤجر) ته به ټاکل سوی اُجرت ورکول کیږي، لېکن قیاساً دا عقد نه صحیح کیږي؛ ځکه چي

په ابتداء کې هغه فاسد سوی دی، نو ځکه وروسته به جائز نه ګرځي. همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی.

د استحسان دلیل دا دی چې کله مستأجر د اجارې په موودت کې دننه په دغه ځمکه کې کښت وکړی، نو د معقود علیه جهالت ختم سو، نو د فقهي قاعدې "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوْعُ" پر بناء د عقد اجارې فساد هم ختم سو او اجاره جائز او صحیح وګرځېده؛ ځکه چې په اجاره کې په کراره کراره (ساعةً فساعةً) منفعت حاصلیږي او د هغه هر جزء د عقد د ابتداء په څېر وي، نو ځکه د مانع او فاسد په ختمېدلو سره به سمدستي عقد اجاره جائز او صحیح ګرځي.

د دې مثال داسي دی لکه څوک چې تر مجهول موودته پوري مثلاً د کښت (فصل) پخېدلو او د هغه د رېبل کېدلو تر موودته پوري بیع او شراء وکړي (مثلاً بائع و مشتري ته ووایي چې کله غنم ورسیږي او ورېبل سي یا کله چې غنم غوبل کړل سي، نو بیا زه دا شی (مبیع) تا ته درکوم یا مثلاً مشتري ووایي چې کله کښتونه ورسیږي او ورېبل سي، نو بیا زه ثمن درکوم) لېکن بیا د دغه موودت له راتللو څخه مخکې دا موودت ساقط کړي او في الحاله عقد وکړي (یعني بائع في الحاله مبیع ورکړي یا مشتري في الحاله ثمن ورکړي)، یا مثلاً په عقد کې له دریو څخه د زیاتو ورځو خیار شرط ولګوي، لېکن بیا په دریو ورځو کې دننه دا شرط ساقط کړي، نو په دغه دواړو صورتونو کې عقد که څه هم ابتداءً فاسد دی لېکن وروسته (یعني د موودت یا شرط په ساقطولو سره) هغه جائز وګرځېدی، همدغه ډول په پورتنی مسئله کې که څه هم عقد اجاره ابتداءً فاسد دی، لکه د فساد د وجهي په ختمېدلو سره سمدستي هغه جائز ګرځي.

## په مطلقه توګه خاروی په اجاره (په کرایه) نیول

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ حِمَارًا إِلَى بَغْدَادَ بِدِرْهَمٍ او که څوک یو خر په یوه درهم تر بغداده پوري په کرایه ونیسي وَلَمْ يُسَمِّ مَا يَحْمِلُ عَلَيْهِ [لېکن] کوم شی چې پر خره باروي [اوړي] هغه مُتعیّن نه کړي فَحَمَلَ مَا يَحْمِلُ النَّاسُ او بیا مستأجر [پر خره] هغومره شی بار کړي کوم چې یې خلک پر باروي فَنَفَقَ فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ او خر په لاره کې مړ سي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر مستأجر ضمان [تاوان] نسته لِأَنَّ الْعَيْنَ الْمُسْتَأْجَرَةَ أَمَانَةٌ فِي يَدِ الْمُسْتَأْجِرِ وَإِنْ كَانَتِ الْإِجَارَةُ فَاسِدَةً ځکه چې په اُجرت نیول سوی شی د مستأجر په لاس کې امانت وي که څه هم اجاره فاسده وي فَإِنْ بَلَغَ بَغْدَادَ بیا که بغداد ته د مستأجر سامان ورسیږي فَلَهُ الْأَجْرُ الْمُسَمَّى اِسْتِحْسَانًا نو د مالک لپاره ټاکل سوی اُجرت دی استحساناً [یعني استحساناً حکم دا دی چې په دې صورت کې به د خره مالک ته خپل ټاکل سوی اُجرت ورکول

کيږي] عَلٰى مَا ذَكَرْنَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُوْلٰى لکه څرنګه چي موږ په اوله مسئله کي ذکر کړه وَإِنِ اخْتَصَمَا قَبْلَ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهِ او که پر خره له سامان بارولو [وړلو] څخه مخکي مؤجر او مستأجر جنګ [اختلاف] سره وکړي وَفِي الْمَسْأَلَةِ الْأُوْلٰى قَبْلَ أَنْ يَزْرَعَ او په اوله مسئله کي له کښت کرلو څخه مخکي [اختلاف او جنجال سره وکړي] نُقِضَتْ الْإِجَارَةُ دَفْعًا لِلْفَسَادِ نو د فساد ليري کولو لپاره به دا اجاره ماتول کيږي إِذْ الْفَسَادُ قَائِمٌ بَعْدُ ځکه چي فساد تر اوسه موجود دي.

**اللغات**: ﴿لم يسمّ﴾ د تفعيل د باب جحد صيغه ده: نومول، مُتعيّن کول (ټاکل)، بيانول، ﴿يحمل﴾ د ضرب مضارع ده: پورته کول، بار وړل، ﴿نفق﴾ د نصر له بابه د ماضي صيغه ده، نَفَقَ يَنْفُقُ نُفُوْقًا: مړ کېدل (مردار بدل)، روح وتل، ﴿العين المستأجَرة﴾ په أجرت نيول سوی شی (په کرايه اخيستل سوی شی)، ﴿اختصما﴾ د افتعال له باب د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: جنګ او دعویٰ کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو ښکاره دی چي د کرايې پر څاروي چي کوم سامان وړل کيږي، که هغه معلوم او مُتعيّن نه کړی سي (چي څومره او څنګه سامان پر وړي)، نو په عقد اجاره کي جهالت پـاتيږي او دا جهالت مُفضي الی النزاع ګرځي، نو ځکه به عقد فاسديږي، لېکن که مستأجَر پر دغه څاروي د خلکو د عُرف او عادت مطابق سامان بار کړي (يعني خلک چي څومره سامان د کرايې پر څاروي باروي [يعني نه ډېر دروند، نه ډېر سپک]، مستأجر هم هغومره سامان پر بار کړي)، لېکن د دې باوجود څاروی په لاره کي مړ سني، نو پر مستأجر ضمان نه لازميږي؛ ځکه چي مستأجر شی (څاروی) د مستأجر سره امانت وي او مخکي ذکر سوه چي که امانت بغير له تعدی هلاک سي، نو د هغه ضمان نه لازميږي، او څرنګه چي په پورتني صورت کي مستأجر هيڅ تعدی او تجاوز نه دی کړيل ځکه چي هغه د عُرف او عادت مطابق سامان پر بار کړی دی، نو ځکه د څاروي د هلاکت ضمان به پر مستأجر نه لازميږي. او بيا که د مستأجر سامان د هغه مقصود ځای (بغداد) ته ورسيږي نو د څاروي مالک ته به ټاکل سوی أجرت (اجر مسمیٰ) ورکول کيږي.

وإن اختصما إلخ: د دې حاصل دا دی چي که په مخکنی مسئله کي له کښت کرلو څخه مخکي او په دغه پورتنی مسئله کي پر څاروي له سامان بارولو څخه مخکي د مالک او مستأجر تر مينځ اختلاف او جنجال واقع سي، نو له سره به عقد فاسد او باطل ګرځول کيږي؛ ځکه چي استحساناً هغه جائز ګرځول سوی وو، لېکن د دواړو په نزاع او اختلاف سره استحسان په انتشار بدل سو، نو ځکه غوره دا ده چي عقد ختم کړی سي چي د اينده لپاره د دوی په مينځ کي د جنګ او جنجال دروازه بنده سي. والله أعلم وعلمهٗ أتمّ



# بَابُ ضَمَانِ الْأَجِيْرِ

(دا) باب د اجير (په مزدورۍ نيول سوي کس) د ضامن کېدلو (په بيان کې) دی

## د اجير قسمونه او اجيرِ مشترک کله د أجرت مستحق کيږي؟

قَالَ: الْأُجَرَاءُ عَلٰى ضَرْبَيْنِ: أَجِيْرٌ مُشْتَرَكٌ وَأَجِيْرٌ خَاصٌّ فرمايي: اجيران [يعني د يو کار لپاره په أجرت نيول سوي کسان] پر دوه قسمه دي: ① اجير مشترک ② اجير خاص فَالْمُشْتَرَكُ مَنْ لَا يَسْتَحِقُّ الْأُجْرَةَ حَتّٰى يَعْمَلَ اجير مشترک هغه مزدور دی چي د أجرت نه مستحق کيږي تر دې چي کار وکړي [يعني اجيرِ مشترک هغه مزدور ته وايي چي د کار له پوره کولو څخه مخکي د مزدورۍ نه مستحق کيږي] كَالصَّبَّاغِ وَالْقَصَّارِ لکه د کپړې رنګونکی او دوبي [او لکه ښځګر مزدور، مستري او داسي نور] لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ إِذَا كَانَ هُوَ الْعَمَلَ أَوْ أَثَرَهُ ځکه کله چي معقود عليه نفس عمل يا د هغه اثر وي [يعني کله چي خاص د مزدور پر کار يا د کار پر اثر عقدِ اجاره واقع کيږي (لکه په قصار کي چي د هغه پر کار [پرېولو] او په صباغ کي چي د هغه د کار [رنګولو] پر اثر يعني پر رنګ عقد واقع کيږي] كَانَ لَهُ أَنْ يَعْمَلَ لِلْعَامَّةِ نو دغه اجير ته اختيار دی چي د عامو خلکو لپاره کار وکړي لِأَنَّ مَنَافِعَهُ لَمْ تَصِرْ مُسْتَحَقَّةً لِوَاحِدٍ ځکه چي د هغه منافع د يوه کس لپاره خاص نه سول فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ يُسَمّٰى مُشْتَرَكًا نو په همدې وجه هغه په اجير مشترک سره نومول کيږي [چي د هغه منافع د يوه کس سره خاص نه وي بلکي د ټولو په مينځ کي مشترک وي يعني هغه د هر چا لپاره کار کولای سي او هر څوک يې د کار لپاره په أجرت نيولای سي].

**اللغات**: ﴿الأجراء﴾ جمع د أَجِيْرٌ ده: په أجرت او په مزدورۍ نيول سوی کس، يعني مزدور، کاريګر او داسي نور. ﴿الأجير المشترك﴾ د دې يو تعريف خو د أجرت د استحقاق په اعتبار سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذکر کړی. عربي قاموسونو يې داسي تعريف کړی دی چي اجير مشترک عام مزدور ته وايي کوم چي د يو خاص سړي لپاره کار نه کوي بلکي د هر چا لپاره کار کوي (يعني چي هر څوک د کار او مزدورۍ اېر ورکړي. نو ده ته اختيار سته چي د هغه لپاره کار وکړي)، داسي مزدور تر کار کولو وروسته د

اُجرت او مزدورۍ مستحق کيږي. **الأجير الخاص**: کوم چې ترڅو مُتعيّن وخته پورې فقط د يوه سړي لپاره کار کوي، دا اجير په هغه مُتعيّن مودت کې د بل چا سره کار نه سي کولای، او دغه اجير هغه وخت د اُجرت مستحق کيږي کله چې په هغه مودت کې خپل ځان د کار لپاره پېش کړي (يعني د عقد په مودت کې د ځان په پېشولو سره سمدستي د مزدورۍ مستحق کيږي)، برابره ده کار وکړي، که نه، اجير خاص ته أَجِيرِ وَحْد (اجير واحد) هم ويل کيږي، د دواړو احکام را روان دي، ﴿صباغ﴾ رنګرېز، کپړه رنګونکی، ﴿قصار﴾ دوبي، جامه پرېولونکی، کالي مينځونکی.

**تشريح**: عبارت په ترجمه او لغاتو کې تشريح سو.

## د اجير قبضه کې مال هلاکېدل (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَالْمَتَاعُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ فرمايي: او [د مستأجر] سامان د اجير مشترک په قبضه کې امانت دی إِنْ هَلَكَ لَمْ يَضْمَنْ شَيْئًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ که چيرې هغه هلاک سي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه د هيڅ شي نه ضامن کيږي [يعني هيڅ ضمان (تاوان) نه پر لازميږي] وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی وَيَضْمَنُهُ عِنْدَهُمَا إِلَّا مِنْ شَيْءٍ غَالِبٍ كَالْحَرِيقِ الْغَالِبِ وَالْعَدُوِّ الْمُكَابِرِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه [اجيرِ مشترک] ضامن کيږي مګر له غالب آفت څخه لکه غالب [نه مړ کېدونکی] اُور او غلبه کونکی دښمن لَهُمَا: مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُمَا كَانَا يُضَمِّنَانِ الْأَجِيرَ الْمُشْتَرَكَ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې حضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا به مشترک اجير ضامن ګرځوی وَلِأَنَّ الْحِفْظَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ او په دې وجه هم [هغه ضامن کيږي] چې [د سامان] حفاظت کول پر هغه واجب دي إِذْ لَا يُمْكِنُهُ الْعَمَلُ إِلَّا بِهِ ځکه چې له حفاظت څخه بغير د هغه لپاره کار کول ممکن نه دي فَإِذَا هَلَكَ بِسَبَبٍ يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ كَالْغَصْبِ وَالسَّرِقَةِ لهذا که په يو داسې سبب سره هغه سامان هلاک سي چې له هغه څخه بچ کېدل ممکن وي لکه غصب او غلا كَانَ التَّقْصِيرُ مِنْ جِهَتِهِ نو کوتاهي به د هغه له

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة فخر الدين قاضيخان رَحِمَهُ الله: والمختار في الأجير المشترك قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، وقيل: هو قول محمد رَحِمَهُ الله أيضا (الخانية ج:۳، ص:۲۶). وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وبه (اى بقول الإمام) يفتٰى، كما في عامة المعتبرات، وبه جزم أصحاب المتون، فكان هو المذهب (رد المحتار ج:۵، ص:۴۵). قال المفتي غلام قادر النعماني: قد صرّح الماتن والشارح يعني صاحبُ الهداية أن محل الخلاف هو ما يمكن الاحتراز عنه، وأما في صورة ما لا يمكن الاحتراز عنه فهو على الاتفاق يعني لا يضمن الاجير المشترک مطلقاً؛ لأن ما في يده أمانة...إلخ. [القول الراجح ج:۲، ص:۲۳۴]

طرفه وي [يعني دا به د اجير له طرفه کوتاهي او لا پروايي شمارل کيږي] فَيَضْمَنُهُ كَالْوَدِيعَةِ إِذَا كَانَتْ بِأَجْرٍ نو ځکه اجير به د هغه ضامن کيږي لکه وديعت [امانت شی] چي کله په اُجرت سره اخيستل سوی وي [او هغه هلاک سي نو مودَع ضامن کيږي] بِخِلَافِ مَا لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ په خلاف د هغه سبب چي له هغه څخه بچ کېدل نا ممکن وي كَالْمَوْتِ حَتْفَ أَنْفِهِ وَالْحَرِيقِ الْغَالِبِ وَغَيْرِهِ لکه په خپل مرګ مړ کېدل او غالب اُور او داسي نور لِأَنَّهُ لَا تَقْصِيرَ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي په دې [صورتونو] کي د هغه له طرفه هيڅ کوتاهي نسته وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الْعَيْنَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [د مستأجِر] شی د اجير مشترک په لاس کي امانت دی لِأَنَّ الْقَبْضَ حَصَلَ بِإِذْنِهِ ځکه چي قبضه د مستأجر په اجازت سره سوې ده [يعني اجير د مستأجر په اجازت سره پر هغه شي قبضه کونکی وي] وَلِهَذَا لَوْ هَلَكَ بِسَبَبٍ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ لَمْ يَضْمَنْهُ همدا وجه ده چي که هغه شی په داسي سبب سره هلاک سي چي له هغه څخه بچ کېدل ممکن نه وي نو اجير د هغه نه ضامن کيږي [يعني ضمان (تاوان) نه پر لازميږي] وَلَوْ كَانَ مَضْمُونًا حال دا چي که د هغه ضمان لازمېدای يَضْمَنُهُ نو [په دې صورت کي] به هغه ضامن کېدای كَمَا فِي الْمَغْصُوبِ لکه په غصب کړی سوي شي کي [چي همدا حکم دی] وَالْحِفْظُ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ تَبَعًا لَا مَقْصُودًا او [د شي (سامان)] حفاظت کول پر هغه د تابع په توګه واجب دي، نه د مقصود په توګه وَلِهَذَا لَا يُقَابِلُهُ الْأَجْرُ په همدې وجه د دغه حفاظت په مقابله کي اُجرت نسته بِخِلَافِ الْمُودَعِ بِالْأَجْرِ په خلاف د هغه کس چي د اُجرت په عوض کي وديعت ورته اېښوول سوی وي لِأَنَّ الْحِفْظَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ مَقْصُودًا ځکه چي پر هغه د مقصود په توګه [د وديعت] حفاظت کول واجب دي حَتَّى يُقَابِلَهُ الْأَجْرُ همدا وجه ده چي د دې حفاظت په مقابله کي اُجرت سته.

**اللغات:** ﴿المتاع﴾ سامان، هر هغه شی چي يو کار او نفع ځني اخيستل کېدای سي، ﴿الحريق﴾ اور، ﴿الاحتراز﴾ د افتعال مصدر دی: بچ کېدل (ساتل کېدل)، ځان ساتل، همدا د تَحرُّز معنیٰ ده، ﴿مکابر﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی، د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغه څخه يوه معنیٰ ده: غلبه کونکی، ﴿غصب﴾ د ضرب مصدر دی: په زوره يو شی اخيستل (جبراً اخيستل)، د لاسه کښل، ﴿التقصير﴾ د تفعيل مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه يوه معنیٰ ده: کوتاهي

کول، دوس او قدرت لرلو باوجود لازم شُده کار نه کول. ﴿حتف﴾ مرګ، ﴿حتف أنفه﴾ په خپل مرګ (په خدايي مرګ).

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې اجير مشترک ته چې مستأجر کوم شی ورکړی وي، هغه دده سره امانت دی (مثلاً د رنګریز او دُوبي په لاس کي کپړه او جامه امانت ده)، او که چيري هغه شی دده له تعدی او تجاوز څخه بغير هلاک سي برابره ده په خپله هلاک سي يا د ناګهانه آفت او پيښي په وجه هلاک سي، په دواړو صورتونو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر اجير د هغه ضمان نه لازميږي وبه قال زفر رَحِمَهُ الله. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که هغه شی په يو داسي سبب سره هلاک او ضايع سي چي له هغه څخه د شي ساتل او بچ کېدل ممکن وي لکه غصب او غلا، نو اجير ضامن کيږي او که په يو داسي سبب سره هلاک سي چي له هغه څخه ساتل او حفاظت ممکن نه وي لکه يو څوک چي جبرا هغه شي ته اُور واچوي يا د داسي عمومي غټ اُور په وجه هغه شي وسوځي چي د هغه مړ کول ممکن نه وي يا د دښمنانو فوج حمله او غلبه وکړي او هغه شی يووسي، نو په دې صورت کي اجير نه ضامن کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې په خلفاء راشدينو کي له حضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه د اجير مشترک ضامن ګرځول ثابت دي، نو ځکه موږ به هم هغه ضامن ګرځوو. د صاحبينو عقلي دليل دا دی چې پر اجير د دغه شي حفاظت کول واجب دي؛ ځکه چي له حفاظت کولو څخه بغير د اجير لپاره پر هغه کار کول ناممکن دي او ښکاره خبره ده چې غصب او غلا دومره غټ واردات هم نه دي چي له هغه څخه شی ساتل کېدای نه سي، نو ځکه په ممکن الاحتراز سبب سره د شي په هلاکېدلو کي به د اجير د کوتاهۍ دخل هم وي، نو ځکه هغه به په ضمان (تاوان) ورکولو سره د دغه کمۍ تلافي کوي، د دې مثال دا دی لکه زيد چي په اُجرت سره د وديعت په توګه د خالد سامان د ځان سره ايښی وي (يعني خالد و زيد ته پر خپل وديعت والا سامان اُجرت ورکوي)، بيا هغه سامان هلاک سي يا غصب کړی سي، نو مودَع (زيد) ضامن کيږي، همداسي به دلته اجير هم ضامن کيږي. ها! که چيري په ناګهانه آفت سره يا د دښمن په غالبېدلو او حمله کولو سره هغه شی ضايع سي، نو په دې صورت اجير نه ضامن کيږي؛ ځکه چي اوس د هغه له طرفه هيڅ کوتاهي او لاپروايي نه ده سوې.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي ورووره! د اجير سره چي د مستأجر کوم شی موجود وي، هغه د امانت په توګه وي، ځکه چي هغه د مستأجر په اجازت او رضا سره پر هغه قبضه کړې وي او دا خبره فيصله سوې ده چي که د امين له تعدی او ناحقه تصرف څخه بغير د امانت شی هلاک سي، نو پر امين ضمان نه لازميږي، نو دلته به هم پر امين يعني پر اجير ضمان نه لازميږي، برابره ده که په هره توګه

هغه شی هلاک سوی وي، کنې له مخکې څخه دي مستأجر و اجير ته دا تفصيل او وضاحت بيان کړي چې که په غصب او غلا سره زما سامان ضايع سو، نو ته به ضمان (تاوان) راکوې!، ځکه که چيري دامانت پر شي ضمان لازمېدای، نو د غالب اُور او حمله کونکي دښمن په وجه په هلاکېدلو سره به پر اجير ضمان لازمېدی، لکه څرنګه چې په غصب کړی سوي شي کې په هر حالت کې ضمان لازميږي برابره ده هغه په غلا سره هلاک سي يا په آسماني او ناګهانه آفت سره، لهذا صاحبين چې په غصب او غلا سره د هلاکېدلو په وجه پر اجير ضمان لازموي، دا موږ نه تسليموو او د صاحبينو دا دليل هم موږ ته منظور نه دی چې داجير د کوتاهۍ او غفلت په وجه د دغه هلاکېدلو ضمان پر هغه لازميږي؛ ځکه چې اجير امين دی او د شي حفاظت او ساتنه کول د هغه له طرفه احسان دی او د هغه د کار تابع دي، مقصود بالذات نه دي، يعني هغه قصداً د محافظ او چوکيدار په توګه د شي پر حفاظت کولو نه دی ټاکل سوی؛ ځکه چې د حفاظت په عوض کې هغه هيڅ اُجرت نه اخلي (لکه څرنګه چې چوکيدار پر دې کار اُجرت اخلي)، لهذا په دې کار کې په کوتاهي کولو سره به هغه ضامن کيږي هم نه.

بخلاف المودَع إلخ: د دې حاصل دا دی چې پورتنۍ مسئله د مودَع بالأجر پر مسئلې قياسول هم صحيح نه دي؛ ځکه چې مودَع بالأجر قصداً د وديعت پر حفاظت ټاکل سوی وي، په همدې وجه خو هغه اُجرت اخلي، او ښکاره خبره ده چې په قصداً او تبعاً کې د ځمکې و آسمان فرق دی، نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

## د هلاکېدلو مختلف صورتونه او د هغوی حکم

قَالَ: وَمَا تَلِفَ بِعَمَلِهِ كَتَخْرِيْقِ الثَّوْبِ مِنْ دَقِّهِ وَزَلَقِ الْحَمَّالِ وَانْقِطَاعِ الْحَبْلِ الَّذِيْ يَشُدُّ بِهِ الْمُكَارِي الْحِمْلَ وَغَرَقِ السَّفِيْنَةِ مِنْ مَدِّهِ مَضْمُوْنٌ عَلَيْهِ فرمايي: او کوم څه چې د اجير د خپل کار په وجه ضايع سي لکه د دوبي په ټکولو س د کپړې څيرل، د بار وړونکي مزدور ښويېدل او هغه رسۍ پرېکېدل چې په هغه سره په کرايه ورکونکی [د څاروي مالک] بار تړي او د کښتۍ چلونکي [ملاح] د کشولو په وجه د کښتۍ غرقېدل، د دې [ټولو شيانو] ضمان پر اجير لازم دی وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې [په دې صورتونو کې هم] پر هغه ضمان نسته لِأَنَّهُ أَمَرَهُ بِالْفِعْلِ مُطْلَقًا ځکه چې مالک هغه ته د مطلقاً کار کولو حکم کړی دی فَيَنْتَظِمُهُ بِنَوْعَيْهِ الْمَعِيْبِ وَالسَّلِيْمِ نو ځکه دا حکم د کار دواړو قسمونو يعني عيبداره او سالم لره شامليږي

وَصَارَ كَأَجِيرِ الْوَحْدِ وَمُعِينِ الْقَصَّارِ او دا د اجير خاص او د دوبي د مرسته کونکي کس په شان سو
وَلَنَا: أَنَّ الدَّاخِلَ تَحْتَ الْإِذْنِ مَا هُوَ الدَّاخِلُ تَحْتَ الْعَقْدِ زموږ دليل دا دی: چي تر اجازت لاندي
همغه شی داخل وي کوم چي تر عقد لاندي داخل وي وَهُوَ الْعَمَلُ الصَّالِحُ او هغه سالم ابې عيبه
(مُصلِح)] کار دی لِأَنَّهُ هُوَ الْوَسِيلَةُ إِلَى الْأَثَرِ وَهُوَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ حَقِيقَةً ځکه چي همدا سالم کار د اثر يعني
د حقيقي معقود عليه [د حاصلېدلو] ذريعه ده حَتَّى لَوْ حَصَلَ بِفِعْلِ الْغَيْرِ حتی که د بل چا په فعل سره
معقود عليه حاصل سي يَجِبُ الْأَجْرُ نو [هم پر مستأجر] اُجرت واجبيږي فَلَمْ يَكُنِ الْمُفْسِدُ مَأْذُونًا فِيهِ
نو ځکه په دې کي به د خراب کار کولو اجازت نه وي بِخِلَافِ الْمُعِينِ په خلاف د مرسته کونکي
لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ ځکه چي هغه متبرع [احساناً کار کونکی] وي فَلَا يُمْكِنُ تَقْيِيدُهُ بِالْمُصْلِحِ نو په صحيح
سالم کار سره د هغه د کار مقيد کول ممکن نه دي لِأَنَّهُ يَمْتَنِعُ عَنِ التَّبَرُّعِ ځکه چي دا [يعني په سالم کار
سره د هغه د کار مقيد کول] له تبرع څخه مانع دي وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ يَعْمَلُ بِالْأَجْرِ او په کومه مسئله کي چي
موږ يو، په هغه کي اجير په اُجرت [په پيسو] سره کار کوي [نه د تبرع او احسان په توګه] فَأَمْكَنَ
تَقْيِيدُهُ نو ځکه د هغه مقيد کول ممکن دي وَبِخِلَافِ أَجِيرِ الْوَحْدِ او په خلاف د اجير خاص عَلَى مَا
نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چي هغه به موږ انشاء الله [څه وروسته] ذکر کړو وَانْقِطَاعُ الْحَبْلِ مِنْ قِلَّةِ
اهْتِمَامِهِ او د رسۍ پرېکېدل د اجير د توجه د کموالي په وجه وي فَكَانَ مِنْ صَنِيعِهِ نو ځکه د رسۍ
پرېکېدل به د هغه د خپل فعل په وجه وي قَالَ: إِلَّا أَنَّهُ لَا يَضْمَنُ بِهِ بَنِي آدَمَ مِمَّنْ غَرِقَ فِي السَّفِينَةِ أَوْ
سَقَطَ مِنَ الدَّابَّةِ وَإِنْ كَانَ بِسَوْقِهِ وَقَوْدِهِ فرمايي: مګر اجير د هغه انسان نه ضامن کيږي کوم چي په
کښتۍ کي غرق سي يا له څاروي څخه ايله سي که څه هم د هغه د [بې قاعده] بېولو او کشولو په
وجه وي [يعني که په کښتۍ کي يو سړی مړ سي يا له سپارلي څخه را ايله سي نو کښتۍ چلونکی او د سپارلي
څغلونکي نه ضامن کيږي که څه هم د دوی د خپل فعل او د دوی د بې قاعدګۍ په وجه هغه مړ سي] لِأَنَّ الْوَاجِبَ
ضَمَانُ الْآدَمِيِّ ځکه چي [په دې صورت کي] د انسان ضمان واجب دی وَأَنَّهُ لَا يَجِبُ بِالْعَقْدِ وَإِنَّمَا يَجِبُ
بِالْجِنَايَةِ او د انسان ضمان په عقد سره نه واجبيږي بلکي په جرم کولو سره واجبيږي وَلِهَذَا يَجِبُ

عَلَى الْعَاقِلَةِ او په همدې وجه دا ضمان پر عاقله واجبیږي وَضَمَانُ الْعُقُودِ لَا تَتَحَمَّلُهُ الْعَاقِلَةُ حال دا چې د عقدونو ضمان عاقله نه زغمي [یعني عاقله یې نه اداء کوي].

**اللغات**: ﴿تَلِف﴾ د سمع ماضي ده: ضایع کېدل، هلاکېدل، ﴿تخریق﴾ د تفعیل مصدر دی: څیرل (څیرول)، ﴿دقّ﴾ د نصر مصدر دی: ټکول، وهل، پخوا چې به خلکو کالي پرېولل نو د ډېر صفا کولو لپاره به یې هغه په لرګیو سره ټکول یا به یې د ډبرې سره وهل، لکه زموږ په سیمو کې چې هم د سوډا صابون او ماشینونو له ایجاد څخه مخکې دا رواج وو چې پر کالیو او جامو به د بروزه په نامه غرنی بوټی اچول کېدی او بیا به کالي په لرګیو سره ټکول کېدل، ﴿زَلَق﴾ (بفتح اللام) د سمع او نصر د باب مصدر دی: ښویېدل (پښه ښویېدل)، او زَلْق (بسکون اللام) د ضرب د باب مصدر دی: ښویول، یعني زَلَق د لازمي باب مصدر دی او زَلْق د متعدي باب مصدر دی (مصباح اللغات)، ﴿انقطاع﴾ د انفعال مصدر دی: پرېکېدل، شکېدل، ﴿حمّال﴾ بار پورته کونکی (له یوه ځایه بل ځای ته د بار او سامان نقلونکی)، پلنډي، ﴿المُکَارِيْ﴾ د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: په کرایه ورکونکي (عموماً د هغه کس لپاره استعمالیږي کوم چې څارویان یعني خر، غاتره او داسې نور په کرایه ورکوي)، کَارَیٰ یُکَارِيْ مُکَارَاةً: په کرایه ورکول، ﴿حِمْل﴾ (د حاء په کسره): بار، بوج، بار کړل سوی سامان، ﴿ینتظم﴾ د افتعال مضارع ده: دلته ځنې مراد شاملېدل دي (احسن الهدایه، اشرف الهدایه)، ﴿المعیب﴾ عیبداره، عیبجن، ﴿السلیم﴾ سالم (صحیح سالم)، روغ، ﴿سَوْق﴾ د نصر مصدر دی: څاروی بیول، څاروی د شا لخوا هشه کول، ﴿قَوْد﴾ د نصر مصدر دی: کشول، څاروی د مخ لخوا (د رسۍ په ذریعه) کشول، ﴿تتحمل﴾ د تفعّل مضارع ده: زغمل، برداشت کول، ﴿العاقلة﴾ د قاتل قریبان او د هغه نژدې قومیان (خاندان والا) او هغه کسان چې قاتل په تجارت او کاروبار کې ور سره شریک وي، دغه خلکو ته "عاقله" وایي. (أثمار الهدایه)

**تشریح**: مخکې تر دې دا بیان سوه چې دا جیر په قبضه کې چې (د مستأجر) کوم سامان وي، هغه امانت وي او د هغه په ضایع کېدلو سره پر اجیر ضمان نه لازمیږي، په دغه عبارت کې دا بیانیږي چې داجیر په کار او عمل سره چې کوم نقصان وسي، پر اجیر د هغه ضمان واجبیږي، مثلاً که هغه دوبي وي او د هغه د ټکولو په وجه کپړه څیرې سي، یا اجیر حمال او پلنډي وي او په لاره کې ښوی او غوځار سي چې د هغه په وجه سامان ضایع سي، یا په کومه رسۍ سره چې بار او سامان تړل کیږي، هغه رسۍ وشکیږي او سامان ضایع سي، یا اجیر د کښتۍ چلونکی (ملاح) وي او د هغه د کشولو په وجه کښتۍ او په کښتۍ کې موجوده سامان غرق سي، نو په دغه ټولو صورتونو کې (زموږ په نېز)

اجير د نقصان ضامن کيږي، لېکن د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز پر هغه ضمان نه لازميږي؛ د دوی دليل دا دی چي اجير د مستأجر خادم او نوکر دی او د مستأجر په حکم او د هغه په رضا سره د مستأجر کار کوي، او څرنګه چي د مستأجر دغه حکم مطلق دی، نو ځکه په هغه کي به د کار دواړه قسمونه داخليږي، يعني اجير ته به د صحيح او ناسم دواړه کارونو د کولو اختيار وي او څرنګه چي په صحيح سالم کار کولو سره هغه نه ضامن کيږي، همداسي به په ناسم کار او ګړبړ کولو سره هم هغه نه ضامن کيږي، لکه د اجير خاص او دوبي له مُعيّن (مرسته کونکي) شخخه که غلطي وسي، نو پر هغوی ضمان نه لازميږي، همداسي به پر اجير مشترک هم ضمان نه لازميږي.

ولنا أن الداخل إلخ: زموږ دليل دا دی چي انسان عموماً د سالم او ښه کار کولو لپاره يو شوک په أجرت نيسي او صرف سالم کار تر عقد او اجازت لاندي داخليږي؛ ځکه چي د مستأجر مقصد په همدې سالم او سم کار کولو سره حاصليږي، همدا وجه ده که له خياط شخخه کپړه خرابه سي يا له دوبي شخخه کپړه شيري سي، نو خلک له هغه شخخه ضمان (تاوان) اخلي (يعني په خلګو کي همدا عُرف او عادت چي د داسي نقصان تاوان اخلي)، نو ځکه د اجير په کار سره چي نقصان واقع سي، نو پر هغه به ضمان واجبيږي. پاته سو امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله چي هغه پر اجير خاص او مُعيّن قياسوي، دا صحيح نه دي؛ ځکه چي اجير خاص د کور ديو فرد په شير وي او د هغه شه ناشه ګړبړ هم زغمل کيږي، همدارنګه مُعيّن د تبرّع (احسان) په توګه بلا أجرته کار کوي او د متبرّع کار په سمون او ښه والي سره مقيد کول صحيح او ممکن نه دي؛ ځکه چي دا له تبرّع شخخه مانع دي، حال دا چي په پورتنۍ مسئله کي اجير د أجرت په عوض کي کار کوي او د هغه کار په سمون او سالم والي سره مقيد کول صحيح او ممکن دي.

قال إلا أنه لا يضمن إلخ: د دې حاصل دا دی چي د کښتۍ غرقېدلو او په داسي نورو صورتونو کي اجير صرف د مالي نقصان ضامن کيږي، لېکن د جاني نقصان نه ضامن کيږي، او که شوک مړ سي نو له اجير شخخه به د هغه ضمان نه اخيستل کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د انسان ضمان واجبيږي، حال دا چي د عقد په وجه دغه ضمان نه واجبيږي؛ ځکه چي دا ضمان خو په جنايت سره واجبيږي او دلته جنايت معدوم دی، په همدې وجه د اجير عاقله دغه ضمان نه اداء کوي، حالانکي که دا ضمان جنايت وای، نو عاقله وو به هغه خامخا اداء کولای، معلومه سوه چي دغه ضمان پر اجير هم واجب نه دی. (احسن الهدايه)

## د ضمان يو اختياري صورت

قَالَ: وَإِذَا اسْتَأْجَرَ مَنْ يَحْمِلُ لَهُ دَنًّا مِنَ الْفُرَاتِ فرمايي: او کله چې يو سړی [د دې لپاره] يو څوک په أجرت ونيسي چې هغه له فرات دریاب څخه د ده لپاره يو خم اوبه راوړي فَوَقَعَ فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ فَانْكَسَرَ خو منګی په لاره کې يو ځای ايله سي او مات سي فَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ فِي الْمَكَانِ الَّذِي حَمَلَهُ وَلَا أَجْرَ لَهُ نو مستأجر [ته اختيار دی] که وغواړي نو اجير دې د هغه ځای د قيمت ضامن وګرځوي په کوم ځای کې چې اجير خم را پورته کړی وي او هغه ته دې أجرت [مزدوري] نه ورکوي وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي انْكَسَرَ وَأَعْطَاهُ الْأَجْرَ بِحِسَابِهِ او که وغواړي نو د هغه ځای د قيمت ضامن دې يې وګرځوي چيري چې خم مات سوی وي او په هغه حساب سره دې أجرت ورکړي أَمَّا الضَّمَانُ فَلِمَا قُلْنَا کوم چې [واجبېدل د] ضمان دي نو د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَالسُّقُوطُ بِالْعِثَارِ أَوْ بِانْقِطَاعِ الْحَبْلِ وَكُلُّ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيعِهِ او د غوځارېدلو په وجه [د خُم ايله کېدل يا د رسی پرېکېدلو په وجه [د خُم] ايله کېدل دا ټوله د هغه د خپل فعل په وجه دي وَأَمَّا الْخِيَارُ فَلِأَنَّهُ إِذَا انْكَسَرَ فِي الطَّرِيقِ وَالْحَمْلُ شَيْءٌ وَاحِدٌ او [مستأجر ته] اختيار ځکه سته چې کله خم په لاره کې مات سو حال دا چې حمل [له شروع څخه تر آخره] يو شي دی تَبَيَّنَ أَنَّهُ وَقَعَ تَعَدِّيًا مِنَ الِابْتِدَاءِ مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ نو ښکاره سوه چې دا حمل [پورته کول او راوړل] له شروع څخه زياتوب [او نا حقه تصرف] واقع سو، د دغه وجهي له کبله [يعني له دې وجهي چې حمل شيء واحد دی، نو په لاره کې د هغه ماتېدل داسې دي لکه په شروع کې د هغه ماتېدل] وَلَهُ وَجْهٌ آخَرُ او د دې تعدی او ضامن کېدلو بله وجه [او صورت] هم سته وَهُوَ أَنَّ ابْتِدَاءَ الْحَمْلِ حَصَلَ بِإِذْنِهِ او هغه دا چې د حمل [پورته کولو او راوړلو] شروع د مستأجر په اجازت سره سوې ده فَلَمْ يَكُنْ مِنَ الِابْتِدَاءِ تَعَدِّيًا نو ځکه هغه له شروع څخه تعدی واقع نه سو وَإِنَّمَا صَارَ تَعَدِّيًا عِنْدَ الْكَسْرِ بلکې د ماتېدلو په وخت کې تعدی وګرځېدی فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّ الْوَجْهَيْنِ شَاءَ نو ځکه په دغه دوو صورتونو کې چې د کوم يوه طرف ته د مستأجر خوښه وي، ميلان دې وکړي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي لَهُ الْأَجْرُ بِقَدْرِ مَا اسْتَوْفَى او په دويم صورت کې به اجير ته دومره اندازه أجرت ورکوي څومره چې مستأجر د هغه کار ترلاسه کړی وي [يعني تر کومه ځايه چې يې خم

رسولی وي! وَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَا أَجْرَلَهُ او په اول صورت کي به هغه ته أجرت نه ورکوي لِأَنَّهُ مَا اسْتَوْفَى أَصْلًا ځکه چي مستأجر د هغه هيڅ کار نه دی ترلاسه کړی.

**اللغات**: ﴿دَنّ﴾ خم، غټ منګی، جمع: دِنَان. ﴿فُرات﴾ ديو مشهوره درياب نوم دی کوم چي په عراق او داسي نورو ډيرو هيوادنو کي تېر سوی دی. ﴿انکسر﴾ د انفعال ماضي ده: ماتېدل. ﴿السقوط﴾ د نصر مصدر دی: ايله کېدل، لوېدل. ﴿العثار﴾ د نصر، ضرب او کرم د باب مصدر دی: غوځارېدل، ښوېېدل. ﴿صنيع﴾ عمل، فعل، کړنه. ﴿يميل﴾ د ضرب مضارع ده: ميلان کول، مائل کېدل. ﴿استوفى﴾ د استفعال ماضي ده: ترلاسه کول، حاصلول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک له دريائي فرات څخه تر خپل کوره ديوه خم اوبو د راوړلو لپاره يو مزدور په أجرت ونيسي او د کور او فرات په مينځ کي مثلاً لس کېلو متره فاصله وي، لېکن هغه خم په لاره کي يو ځای ولوېږي او مات سي، برابره ده دا جير (مزدور) د ښوېېدلو په وجه ولوېږي يا د هغه د رسۍ شکېدلو په وجه ولوېږي، په دواړو صورتونو کي اجير د هغه ضامن کېږي او مستأجر ته له دغه دوو اختياراتو څخه يو اختيار حاصلېږي: ① يو دا چي په فرات کي د خم څومره قيمت وي، اجير دي د هغه ضامن وګرځوي او هغه ته دي أجرت نه ورکوي، ② دويم دا چي اجير تر کومه ځايه خم راوړی وي، په هغه مقام کي چي د خم کوم قيمت وي د هغه ضمان (تاوان) دي ځني واخلي او اجير چي څومره فاصله او مسافه پرېکړې وي، په هغه حساب سره دي ده ته مزدوري ورکړي، مثلاً که هغه پنځه کيلو متره فاصله پرېکړې او ګټنت کړې وي، نو مستأجر دي و اجير ته پنځه درهمه ورکړي او که فاصله له دې څخه کمه يا زياته وي، نو په هغه حساب سره دي أجرت او مزدوري ورکړي.

وأما الخيار الخ: فرمايي دا جير ضامن کېدل خو ښکاره دي؛ ځکه چي د هغه د کار او فعل په وجه د مستأجر نقصان سوی دی، خو مستأجر ته چي موږ کوم دوه اختيارات ورکړي دي، د هغه دليل دا دی چي کله له پورته کولو او راوړلو څخه وروسته خم په لاره کي مات سو، نو دا ښکاره سوه چي په هغه کي له شروع څخه تعدي او تجاوز واقع سوی دی او ګواکي خم په شروع کي مات سوی دی، نو په دې وجه به مستأجر ته د خم را پورته کولو له ځای (فرات) څخه د ضمان اخيستلو اختيار وي. لېکن څرنګه چي په شروع کي دغه حمل (پورته کول او راوړل) د مستأجر په اجازت سره سوي دي، نو په دې وجه بيا په شروع کي اجير متعدي او تجاوز کونکی نه ګڼل کېږي، بلکي کله چي خم ځني ايله او مات سي نو بيا هغه متعدي ګرځي، نو په دې حواله سره به مستأجر ته د خم لوېدلو د مقام د قيمت

اخيستلو اختيار وي، خو څرنګه چي په دغه دويم صورت کي اجير د مستأجر څه کار کړی دی، نو ځکه هغه ته به د هغه د کار په اندازه اُجرت ورکول کيږي. او څرنګه چي په اول صورت کي هغه حقيقتاً د مستأجر کار نه دی کړی، نو ځکه هغه ته به اُجرت هم نه ورکول کيږي.

## د رګ وهونکی او نشتر لګونکي د ضمان نه لازمېدلو صورت

قَالَ: وَإِذَا فَصَدَ الْفَصَّادُ أَوْ بَزَغَ الْبَزَّاغُ وَلَمْ يَتَجَاوَزِ الْمَوْضِعَ الْمُعْتَادَ فرمايي: او که رګ وهونکی د چا رګ ووهي يا نشتر لګونکی څاروي ته نشتر ولګوي او له معتاد ځای څخه تېر نه سي [يعني عادتاً او عرفاً چي د بدن په کوم ځای او پر څومره ځای دغه کار کيږي، له هغه څخه تجاوز نه وکړي] فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِيمَا عَطِبَ مِنْ ذٰلِكَ نو پر ده ضمان نسته د هغه کوم چي د دې کار په وجه هلاک سي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: بَيْطَارٌ بَزَغَ دَابَّةً بِدَانِقٍ فَنَفَقَتْ او په جامع صغير کي دي: که د څارويو ډاکټر د يوه دانق په عوض کي څاروي ته نشتر ولګوي او هغه څاروی مړ [مردار] سي أَوْ حَجَّامٌ حَجَمَ عَبْدًا بِأَمْرِ مَوْلَاهُ فَمَاتَ يا ښکر لګونکی کس غلام ته د هغه د مالک په حکم سره ښکر ولګوي او غلام مړ سي لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر هغه ضمان [تاوان] نسته وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْعِبَارَتَيْنِ نَوْعُ بَيَانٍ او له دغه دواړو عبارتونو څخه په هر عبارت کي يو ډول بيان دی وَوَجْهُهُ أَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنِ السِّرَايَةِ او د دې وجه دا ده چي [د زخم] له سرايت کولو څخه بچ کېدل ممکن نه دي لِأَنَّهُ يَبْتَنِي عَلَى قُوَّةِ الطِّبَاعِ وَضُعْفِهَا فِي تَحَمُّلِ الْأَلَمِ ځکه چي دا د درد [او تکليف] زغملو په هکله د طبيعتونو پر قوت او کمزوری مبني دي فَلَا يُمْكِنُ التَّقْيِيدُ بِالْمُصْلِحِ مِنَ الْعَمَلِ نو ځکه [دلته] د سالم کار قيد لګول ممکن نه دي وَلَا كَذٰلِكَ دَقُّ الثَّوْبِ وَنَحْوُهُ مِمَّا قَدَّمْنَاهُ او داسي نه دي کپړه ټکول او د هغه په څېر نور کارونه کوم چي مخکي موږ ذکر کړل لِأَنَّ قُوَّةَ الثَّوْبِ وَرِقَّتَهُ تُعْرَفُ بِالِاجْتِهَادِ ځکه چي د کپړې مضبوطي او باريکي [کمزور والی] په خپل کوشش سره معلومېدای سي فَأَمْكَنَ الْقَوْلُ بِالتَّقْيِيدِ نو [هلته] د قيد لګولو وينا ممکنه ده [يعني هلته د سالم کار قيد لګول ممکن دي].

**اللغات**: ﴿فصد﴾ د ضرب ماضي ده: رګ وهل، د علاج او درملني په قصد د يو تېره شي (نشتر) په ذريعه له رګ څخه وينه را ايستل. ﴿فصاد﴾ رګزن، رګ وهونکی. ﴿بزغ﴾ د نصر ماضي ده: نشتر لګول، د تېره شي (نشتر) په ذريعه د پوست څه حصه پرېکول (څيرل). "نشتر" د بدن او زخم څيرلو

الې ته وايي، ﴿بزاغ﴾ نشتر لګونکی، ﴿عطب﴾ د سمع ماضي ده: هلاکېدل، مړ کېدل، ﴿ضُعف﴾ او ضَعْف: کمزوري، کمزور والی (ضعیف والی)، ﴿بيطار﴾ د څارویو ډاکټر، د حیوانانو طبیب او معالج، ﴿دا نق﴾ د یوه درهم شپږمه حصه، جمع: دوانِق، دَوانيق، ﴿حَجَمَ﴾ د نصر ماضي ده: ښکر لګول، دیو الې په ذریعه له بدن څخه وینه راکښل، ﴿ألم﴾ درد، خوږ.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که رګ وهونکی طبیب دیو چا رګ ووهي یا د څارویو طبیب یو څاروي ته نشتر ولګوي او له معتاد ځای څخه تجاوز نه وکړي، بیا د هغه د زخم په وجه انسان یا څاروی مړ سي، نو پر طبیب (رګزن او نشترلګونکي) ضمان نه لازمیږي، همدا مسئله په جامع صغیر کې هم بیان سوې ده او د قدوري او جامع صغیر د عبارت مطلب یو دی چې پر طبیب او ډاکټر ضمان نه لازمیږي؛ ځکه چې داسې زخم له سرایت کولو څخه منع کول ممکن نه دي؛ ځکه کوم انسان چې مضبوط وي او د هغه په بدن او اعصابو (پلو) کې قوت وي، نو د هغه زخم سرایت نه کوي او هغه د خوږ او درد تکیف زغملای سي، او کوم څوک چې په بدن او اعصابو کې کمزوري وي، نو د هغه په بدن کې زخم ژر سرایت کوي او د هغه بدن د زخم د تکلیف او سرایت تاب نه سي راوړلای، نو ځکه په داسې اعمالو او افعالو کې به د طبیب او ډاکټر فعل په سمون او سالم والي (نا مضر والي) سره مقید کول صحیح نه وي، او د زخم د سرایت کولو په وجه د مریض او مجروح په مړ کېدلو سره به طبیب د هغه نه ضامن کیږي.

ددې په خلاف د کپړې د پرېولو او ټکولو معامله ده، نو هغه د دُوبي په لاس کې ده او دوبي په خپل کوشش او کتنه سره د کپړې مضبوطي او کمزوري معلومولای سي او د هغه په وس او قدرت کې داسته چې کپړه په صحیح سالمه توګه صفا کړي، نو ځکه موږ د هغه کار په سمون او سالم والي سره مقید کړی دی.

## اجیرِ خاص او د هغه احکام

قَالَ: وَالْأَجِيرُ الْخَاصُّ الَّذِيْ يَسْتَحِقُّ الْأُجْرَةَ بِتَسْلِيمِ نَفْسِهِ فِي الْمُدَّةِ وَإِنْ لَمْ يَعْمَلْ او اجیر خاص هغه مزدور دی کوم چې [د عقد اجاره] په وخت کې د ځان په ورسپارلو سره د اُجرت مستحق کیږي که څه هم هغه کار نه وکړي كَمَنِ اسْتُؤْجِرَ شَهْرًا لِلْخِدْمَةِ أَوْ لِرَعْيِ الْغَنَمِ لکه هغه کس کوم چې د خدمت کولو یا د پسونو د پوولو [بیولو او کتلو] لپاره یوه میاشت په اُجرت نیول سوی وي وَإِنَّمَا سُمِّيَ أَجِيْرَ وَحْدٍ لِأَنَّهُ لَايُمْكِنُهُ أَنْ يَعْمَلَ لِغَيْرِهِ او هغه ته ځکه یوازینی اجیر [اجیر خاص] ویل کیږي چې د هغه لپاره دا

ممکن نه دي چي [د عقد په مودت کي] د بل چا لپاره کار وکړي لِأَنَّ مَنَافِعَهُ فِي الْمُدَّةِ صَارَتْ مُسْتَحَقَّةً لَهُ ځکه چي [د عقد] په مودت کي د هغه منافع د مستأجر لپاره مستحق [او خاص] وګرځيدل وَالْأَجْرُ مُقَابَلٌ بِالْمَنَافِعِ او أجرت د منافعو په مقابله کي دی وَلِهٰذَا يَبْقَى الْأَجْرُ مُسْتَحَقًّا وَإِنْ نُقِضَ الْعَمَلُ او په همدې وجه أجرت مستحق [او ثابت] پاتيږي که څه هم عمل ختم کړی سي قَالَ: وَلَا ضَمَانَ عَلَى الْأَجِيرِ الْخَاصِّ فِيمَا تَلِفَ فِي يَدِهِ وَلَا مَا تَلِفَ مِنْ عَمَلِهِ فرمايي: او د اجير خاص په قبضه کي يا د هغه د خپل کار په وجه چي [د مستأجر] کوم شی ضايع سي د هغه ضمان پر اجير نسته أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ الْعَيْنَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ کوم چي اول صورت دی [يعني چي د مستأجر شی د اجيرِ خاص په قبضه کي ضايع سي] نو ځکه چي د مستأجر شی د ده [اجيرِ خاص] په قبضهٔ کي امانت دی لِأَنَّهُ قَبَضَ بِإِذْنِهِ ځکه چي ده د مستأجر په اجازت سره پر هغه قبضه کړې ده وَهٰذَا ظَاهِرٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ښکاره دی وَكَذَا عِنْدَهُمَا او همداسي د صاحبينو په نيز هم [دا حکم] دی لِأَنَّ تَضْمِينَ الْأَجِيرِ الْمُشْتَرَكِ نَوْعُ اسْتِحْسَانٍ عِنْدَهُمَا ځکه چي مشترک اجير ضامن ګرځول [ضمان ځني اخيستل] د دوی په نيز يو قسم استحسان دی لِصِيَانَةِ أَمْوَالِ النَّاسِ د خلګو د مالونو د محفوظ ساتلو لپاره وَالْأَجِيرُ الْوَحْدُ لَا يَتَقَبَّلُ الْأَعْمَالَ او اجير خاص [د نورو خلګو] کارونه نه قبلوي فَتَكُونُ السَّلَامَةُ غَالِبَةً نو [د هغه په هکله] سلامتيا غالب ده [يعني عموماً د هغه سره د مستأجر سامان او شی سالم پاتيږي] فَيُؤْخَذُ فِيهِ الْقِيَاسُ نو ځکه د هغه په هکله به پر قياس عمل کيږي [او قياس دا دی چي هغه نه ضامن کيږي] وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ مَتَى صَارَتْ مَمْلُوكَةً لِلْمُسْتَأْجِرِ او کوم چي دويم صورت دی [يعني چي د مستأجر شی د اجير خاص د خپل کار په وجه ضايع سي] نو ځکه کله چي [د ده] منافع د مستأجر مملوک وګرځيدل فَإِذَا أَمَرَهُ بِالتَّصَرُّفِ فِي مِلْكِهِ صَحَّ نو کله چي مستأجر ده ته په خپل ملکيت کي د تصرف حکم وکړی نو دا حکم صحيح سو [په بله وينا: او کوم چي دويم صورت دی نو (په هغه کي په دې وجه اجير خاص نه ضامن کيږي) ځکه کله چي د ده منافع د مستأجر مملوک وګرځيدل نو د مستأجر له طرفه ده ته په خپل ملکيت کي د تصرف حکم کول صحيح دي] وَيَصِيرُ نَائِبًا مَنَابَهُ او دا اجير د مستأجر قائم مقام ګرځي فَصَارَ فِعْلُهُ مَنْقُولًا إِلَيْهِ كَأَنَّهُ فَعَلَ بِنَفْسِهِ نو د ده کار د مستأجر وطرف ته منتقل سو، ګواکي

مستأجر په خپله دا کار کړی دی فَلِهٰذَا لَا يَضْمَنُهُ نو په همدې وجه به دا اجير د هغه نه ضامن کيږي [او که يضمنه د تفعيل له بابه يعني "يُضَمِّنُهُ" وي نو معنىٰ يې ده: فلهذا مستأجر به دغه اجير ضامن نه ګرځوي].

**اللغات**: ﴿تسليم﴾ د تفعيل مصدر دی: ورسپارل، ﴿رَعْي﴾ مصدر دی، رَعٰی يَرْعٰی رَعْيًا: څارويان پوول (پېول)، څارويان د وښو ځای (څرځای) ته بېول، رمه کتل، رَاعِي له همدې باب څخه د فاعل صيغه ده چې د هغه معنىٰ ده: شپانه، ﴿الغنم﴾ د "غنم" لفظ د پسه، ميږې، سېرلي او بزې ټولو لپاره استعماليږي، ﴿نقض﴾ د نصر مصدر دی: ماتول، ختمول، ﴿صيانة﴾ دا هم د نصر مصدر دی: ساتل، محفوظه کول، ﴿مَنَابَهُ﴾ يعني مَقَامَهُ (د هغه پر ځای).

**تشريح**: په دې عبارت کې د اجير خاص تعريف او پر هغه د ضمان واجبېدلو حکم او تفصيل بيان سوی دی. د اجير خاص تعريف مخکي تېر سو چې هغه مزدور او هغه کس ته وايي کوم چې د مُتعيّن مودت لپاره يو چا په أجرت نيولی وي، او دغه اجير صرف د نفس په ورسپارلو يعني محض د ځان په حاضرولو سره د أجرت مستحق کيږي، برابره ده کار وکړي، که نه؛ ځکه تر نفس سپارلو وروسته له هغه څخه کار اخيستل د مالک کار دی، اوس که مالک کار نه په کوي نو دا خو د مالک قصور دی، اجير خو خپل ځان هغه ته سپارلی او خپل کار يې پوره کړی دی. او دغه اجير ته د اجير خاص ويلو وجه دا ده چې هغه د اجارې په مودت کي له مستأجر (مالک) څخه بغير د بل چا کار نه سي کولای، بلکي په ټوله مُتعيّن کړده مودت کي د ده منافع صرف د مستأجر لپاره خاص او د هغه مستحق دي، او څرنګه چې أُجرت د منافعو بدل او عوض دی، نو ځکه دغه اجير به له کار څخه بغير هم د أجرت مستحق کيږي.

**ولا ضمان عليه إلخ**: فرمايي که د اجير خاص په قبضه کي د مالک (مستأجر) يو شی ضايع سي، مثلاً مستأجر ده ته يو شی په لاس ورکړی وي يا ده بل چا ته د مالک شی ورکړی وي او هغه شی غلا يا غصب کړی سي يا مثلاً اجير خاص شپانه وي او له ده څخه پُسه غلا يا غصب کړی سي، نو هم پر ده ضمان نه لازميږي او که چيري د ده د کار او عمل په وجه يو شی ضايع سي مثلاً اجير خاص اشپز وي او له هغه څخه سالن (کتغ) وسوځي يا هغه دوبي وي او د پرېوللو او ټکولو په وجه کپړه څيري کړي،

نو د دې ضمان هم پر هغه نه لازمېږي؛ د هغه په قبضه کې د ضايع کېدونکي شي ضمان ځکه نه پر لازمېږي چې د اجير سره د مستأجر مال امانت وي او د امانت مال په هلاکېدلو سره ضمان نه لازمېږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز چې کله پر اجير مشترک ضمان نسته، نو پر اجير خاص به خو په درجه اولیٰ ضمان نه وي؛ ځکه چې اجير خاص صرف د يوه مستأجر کار کوي او د اجارې په مودت کې د بل چا کار ته لاس هم نه ور وړي، نو ځکه د هغه په کارو کې د سمون او سالم والي د غالبېدلو په وجه هغه له ضمان څخه بري کړی سوی دی، له "فَيُؤخذ بالقياس" څخه "بَرِئ عنِ الضمان" مراد دي (يعني قياس دا دی چې هغه نه ضامن کيږي او له ضمان څخه بري کيږي)، د دې په خلاف اجير مشترک په يوه وخت کې د څو خلکو کار کوي او د هغه په کار کې د نا سموالي او ګډېږ امکان زيات وي، نو ځکه موږ (صاحبينو رَحِمَهُمَا الله ) هغه ضامن ګرځولی دی.

وأما الثاني إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د اجير خاص د کار او عمل په وجه يو شی ضايع سوی وي، نو اجير په دې وجه د هغه نه ضامن کيږي؛ ځکه چې د ده ټوله منافع د مستأجر په ملکيت کې وي او د مستأجر له طرفه ده ته په خپل ملکيت کې د تصرف حکم کېدل په خپله د مستأجر د تصرف کولو په څېر دي او اجير خاص په تصرف او عمل کې د مستأجر نائب دی او ښکاره ده چې که د مستأجر په عمل سره د هغه خپل شی ضايع سي، نو پر مستأجر د هغه ضمان نه لازمېږي، نو ځکه د هغه پر اجير خاص به هم ضمان نه لازمېږي؛ ځکه پر اجير خاص ضمان واجبول داسې دي لکه پر مستأجر (مالک) واجبول، حال دا چې پر مستأجر ضمان واجبول ممکن نه دي، نو ځکه پر دغه اجير به هم ضمان واجبول کېدای نه سي. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْإِجَارَةِ عَلٰى أَحَدِ الشَّرْطَيْنِ

(دا) باب له دوو شرطونو څخه پر یوه شرط د اجاره کولو (په بیان کې) دی

**تشريح**: مخکي تر دې پر شرطِ واحد د اجاره کولو بیان وو، اوس له دې ځایه په دوو شرطونو کې پر یوه شرط د اجاره کولو احکام بیانول کېږي، او دا خو تاسو ته معلومه ده چې اَلْوَاحِدُ يَقْدُمُ الْإِثْنَيْنِ. (بنايه ج:۹، ص:۳۸۹).

## له دوو شرطونو څخه پر يوه شرط اجاره کول (مثال، حکم او تفصيل)

وَإِذَا قَالَ لِلْخَيَّاطِ: إِنْ خِطْتَ هٰذَا الثَّوْبَ فَارِسِيًّا او کله چې يو څوک خياط ته [داسې] ووايي: که چيري ته دغه کپړه په فارسي طرز جوړه کړې! فَبِدِرْهَمٍ نو په يوه درهم [يعني: نو ستا أجرت يو درهم دی (يو درهم مزدوري درکوم)] وَإِنْ خِطْتَهُ رُومِيًّا او که په رومي طرز يې جوړه کړې فَبِدِرْهَمَيْنِ نو په دوو درهمو جَازَ نو دا جائز دي [يعني داسي اجاره جائز ده] وَأَيَّ عَمَلٍ مِنْ هٰذَيْنِ الْعَمَلَيْنِ عَمِلَ او خياط چې له دغه دوو کانو څخه کوم کار هم وکړي اسْتَحَقَّ الْأَجْرَ بِهِ نو د هغه د أجرت مستحق کيږي وَكَذَا إِذَا قَالَ لِلصَّبَّاغِ: إِنْ صَبَغْتَه بِعُصْفُرٍ فَبِدِرْهَمٍ همدارنګه که يو څوک د کپړې رنګرېز ته ووايي: که چيري ته دغه کپړه د عصفر [په سُور] رنګ ورنګوې نو په يوه درهم وَإِنْ صَبَغْتَهُ بِزَعْفَرَانٍ فَبِدِرْهَمَيْنِ او که د زعفران په رنګ يې ورنګوې نو په دوو درهمو وَكَذَا إِذَا خَيَّرَهُ بَيْنَ شَيْئَيْنِ بِأَنْ قَالَ: آجَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّارَ شَهْرًا بِخَمْسَةٍ أَوْ هٰذِهِ الدَّارَ الْأُخْرٰى بِعَشَرَةٍ او همدارنګه کله چې مؤجر [مالک] و مستأجر ته په دوو شيانو کي اختيار ورکړي مثلاً داسي ووايي: زه دا کور د مياشتي په پنځه درهمه درکوم او دا بل کور [د مياشتي] په لس درهمه درکوم وَكَذَا إِذَا خَيَّرَهُ بَيْنَ مَسَافَتَيْنِ مُخْتَلِفَتَيْنِ بِأَنْ قَالَ: آجَرْتُكَ هٰذِهِ الدَّابَّةَ إِلَى الْكُوفَةِ بِكَذَا أَوْ إِلٰى وَاسِطَ بِكَذَا او همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چې مؤجر و مستأجر ته په دوو جلا مسافتونو کي اختيار ورکړي مثلاً داسي ووايي: زه دغه

څاروی تر کوفې پورې په دومره درهمو درکوم او تر واسطه پورې يې په دومره درهمو درکوم وَكَذَا إِذَا خَيَّرَهُ بَيْنَ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ او همدارنګه کله چې په دريو شيانو کې اختيار ورکړي [نو هم جائز دي] وَإِنْ خَيَّرَهُ بَيْنَ أَرْبَعَةٍ [لېکن] که چېرې په څلورو شيانو کې اختيار ورکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي وَالْمُعْتَبَرُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ الْبَيْعُ او معتبر په دې ټولو کې بيع ده [يعني دا ټوله صورتونه پر بيع قياس کړل سوي دي] وَالْجَامِعُ دَفْعُ الْحَاجَةِ او علت جامعه د ضرورت دفع کول دي غَيْرَ أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ اِشْتِرَاطِ الْخِيَارِ فِي الْبَيْعِ خو په بيع کې د خيار تعيين شرط لګول ضروري دي وَفِي الْإِجَارَةِ لَا يُشْتَرَطُ ذٰلِكَ او په اجاره کې دا شرط نه دي لِأَنَّ الْأَجْرَ إِنَّمَا يَجِبُ بِالْعَمَلِ ځکه چې أجرت په کار [پوره کېدلو] سره واجبيږي وَعِنْدَ ذٰلِكَ يَصِيرُ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ مَعْلُومًا او په همدې وخت کې [يعني د کار پوره کېدلو په وخت کې] معقود عليه معلوم ګرځي وَفِي الْبَيْعِ يَجِبُ الثَّمَنُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او په بيع کې په نفس عقد سره ثمن واجبيږي فَيَتَحَقَّقُ الْجَهَالَةُ عَلىٰ وَجْهٍ لَا تَرْتَفِعُ الْمُنَازَعَةُ إِلَّا بِإِثْبَاتِ الْخِيَارِ نو جهالت به ثابت سي په داسي توګه چې جنګ [او اختلاف] به ليرې نه سي مګر د خيار په ثابتولو سره [په بله وينا: نو ځکه د خيار په نه شرط کولو سره به جهالت په داسي توګه ثابت سي چې له خيار څخه بغير به نزاع نه ختميږي].

**اللغات:** ﴿خِطْتَّ﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر مخاطب ماضي صيغه ده: کپړه ګنډل، کالي (جامه) جوړول. ﴿عُصْفر﴾ يو بوټی دی چې له هغه څخه سور رنګ را ايستل کيږي او په هغه سره رېښمي کپړه او داسي نوري کپړې رنګول کيږي (معجم الوسيط). ﴿مسافة﴾ فاصله، واټن. ﴿آجرتُ﴾ د افعال له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: په أجرت ورکول (په کرايه ورکول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که مؤجر و مستأجر ته يا مستأجر و اجير ته له دوو يا دريو کارونو څخه د يوه اختيار ورکړي او د هر کار لپاره جلا أجرت مُتعيّن کړي، نو داسي اجاره هم جائز ده، لکه څرنګه چې دا جائز دي چې که بائع (دوکاندار) يو چا ته دوې يا درې کپړې ورکړي او هغه ته ووايي چې که ته دا کپړه اخلې، نو په پنځه درهمه ده او که دا اخلې، نو په لس درهمه ده او که دا بله اخلې، نو په پنځلس درهمه ده، نو ښکاره خبره ده چې داسي بيع وشراء جائز دي، نو ځکه په داسي اختيار ورکولو سره به اجاره هم جائز وي او د اجارې دغه جواز په حقيقت کې پر همدې بيع قياس کړی سوی دی. او د قياس وجه د ضرورت دفع کول دي؛ ځکه عموماً هر سامان پر درې قسمه وي: ① اعلیٰ، ② اوسط، ③ ادنیٰ، نو ځکه موږ هم بيع او اجاره پر همدغه دريو قسمونو منحصر او

محدود کړې ده، د دې لپاره چې امير (مالدار)، متوسط او غريب هره طبقه د خپل وس او حساب مطابق رانيول او په اُجرت سره اخيستل وکړي، او څرنګه چې له دغه دريو قسمونو او صورتونو څخه بغير په بل صورت کې د خلګو ضرورت معدوم دی، نو ځکه له دوی څخه بغير په بل صورت کې مو بيع نه په بيع کې خيار جائز ګرځولی دی او نه مو په اجاره کې جائز ګرځولی دی؛ ځکه د ضرورت په هکله دا قاعده مشهوره ده چې "اَلضَّرُوْرَةُ تُقَدَّرُ بِقَدَرِهَا".

غيرأنه إلخ: فرمايي چې په بيع او اجاره کې لږ څه فرق سته او هغه فرق دا دی چې په بيع کې د دوو يا دريو شيانو اختيار په همغه وخت کې صحيح کيږي، کله چې بائع د مشتري لپاره د خيار تعيين شرط ولګوي يعني هغه ته د تعيين (متعيّنولو) اختيار ورکړي، ځکه چې په بيع په کې په نفس عقد سره ثمن واجبيږي، نو ښکاره خبره ده چې که مشتري د خپل خوښ شي له مُتعيّنولو څخه بغير يا د خيار تعيين له شرط لګولو څخه بغير ثمن ورکړي او معامله وکړي، نو د بائع او مشتري ترمينځ به اختلاف او جنجال واقع سي، ځکه چې مشتري به د اوسط قيمت په عوض کې د اعلیٰ درجې شی غواړي او بائع به هغه ته د ادنیٰ درجې شی ورکوي، نو ځکه دلته دا ضروري ده چې بائع مشتري ته د خيار تعيين حق ورکړي چې وروسته د جنګ او جنجال نوبت رانه سي. د دې په خلاف په اجاره کې داسې خيار ورکول شرط نه دي؛ ځکه چې په اجاره کې له کار پوره کېدلو څخه وروسته اُجرت واجبيږي او له کار پوره کېدلو څخه وروسته معقود عليه په ښکاره توګه معلوم ګرځي چې د جنګ او جنجال هيڅ امکان نه پاتيږي. (احسن الهدايه)

## د دوو ختونو اجاره (حکم او تفصيل)

وَلَوْقَالَ: إِنْ خِطْتَهُ الْيَوْمَ او که [خياط ته داسې] ووايي: که چيرې ته نن دغه کپړه جوړه کړې فَبِدِرْهَمٍ نو په يوه درهم [يعني: نو ستا اُجرت يو درهم دی (يو درهم درکوم)] وَإِنْ خِطْتَهُ غَدًا او که سبا يې جوړه کړې فَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ نو په نيم درهم فَإِنْ خَاطَهُ الْيَوْمَ اوس که چيرې خياط دا کپړه نن جوړه کړي فَلَهُ دِرْهَمٌ نو د هغه لپاره يو درهم دی [يعني يو درهم اُجرت به ورکول کيږي] وَإِنْ خَاطَهُ غَدًا او که سبا يې جوړه کړي فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د هغه لپاره اُجرت مثلي دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [يعني اُجرت مثلي به ورکول کيږي] لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ دِرْهَمٍ او دا اُجرت مثلي به تر نيم درهم نه اضافه کول کيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: لَا يُنْقَصُ مِنْ نِصْفِ دِرْهَمٍ وَلَا يُزَادُ عَلَى دِرْهَمٍ او په جامع صغير کې [ذکر سوي] دي: چې دا اُجرت مثلي به تر نيم درهم نه کمول کيږي او پر يوه درهم به نه زياتول کيږي

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞: الشَّرْطَانِ جَائِزَانِ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دواړه شرطونه جائز دي وَقَالَ زُفَرُ: الشَّرْطَانِ فَاسِدَانِ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دواړه شرطونه فاسد دي لِأَنَّ الْخِيَاطَةَ شَيْءٌ وَاحِدٌ ځکه چي د کپړې جوړولو کار [له اول څخه ترآخره] يو شی دی [يعني ديوه کار په حکم کي دی] وَقَدْ ذُكِرَ بِمُقَابَلَتِهِ بَدَلَانِ عَلَى الْبَدَلِ او [دلته] د هغه په مقابله کي د بدل [عوض] په توګه دوه بدلونه ذکر کړل سوي دي فَيَكُونُ مَجْهُولًا نو ځکه حقيقي بدل [عوض] به مجهول وي وَهٰذَا لِأَنَّ ذِكْرَ الْيَوْمِ لِلتَّعْجِيلِ او دا [حکم] ځکه دی چي د يَوْم [نن ورځي] ذکر کول د کار ژر کولو لپاره دي [يعني چي خياط ژر کپړه جوړه کړي] وَذِكْرَ الْغَدِ لِلتَّرْفِيهِ او د غَد [سبا] ذکر کول د آساني پيدا کولو [او مهلت ورکولو] لپاره دي فَيَجْتَمِعُ فِي كُلِّ يَوْمٍ تَسْمِيَتَانِ نو ځکه په هره ورځ کي به دوې تسيمې جمع سي وَلَهُمَا: أَنَّ ذِكْرَ الْيَوْمِ لِلتَّأْقِيتِ وَذِكْرَ الْغَدِ لِلتَّعْلِيقِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د يَوْم ذکر د وخت ټاکلو لپاره دی او د غَد ذکر د معلق کولو [اضافت کولو] لپاره دی فَلَا يَجْتَمِعُ فِي كُلِّ يَوْمٍ تَسْمِيَتَانِ نو ځکه په هر ورځ کي به دوې تسميې جمع نه سي وَلِأَنَّ التَّعْجِيلَ وَالتَّأْخِيرَ مَقْصُودٌ او ځکه چي [دلته] تعجيل او تاخير دواړه مقصود دي فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ اخْتِلَافِ النَّوْعَيْنِ نو دا د دوو نوعو د اختلاف په درجه کي سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ ذِكْرَ الْغَدِ لِلتَّعْلِيقِ حَقِيقَةً او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د غَد ذکر خو حقيقتاً د تعليق لپاره دی وَلَا يُمْكِنُ حَمْلُ الْيَوْمِ عَلَى التَّأْقِيتِ او يَوْم پر تاقيت حمل کول ممکن نه دي لِأَنَّ فِيهِ فَسَادَ الْعَقْدِ لِاجْتِمَاعِ الْوَقْتِ وَالْعَمَلِ ځکه په دې کي د عقد فساد سته د وخت او کار د جمع کېدلو له کبله [يعني په داسي کولو سره د وقت او عمل د جمع کېدلو په وجه عقد فاسديږي] وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ او کله چي خبره داسي يَجْتَمِعُ فِي الْغَدِ تَسْمِيَتَانِ دُونَ الْيَوْمِ نو په غَد [سباورځ] کي به دوې تسميې جمع سي، نه په يَوْم [نن ورځ] کي فَيَصِحُّ الْيَوْمُ الْأَوَّلُ وَيَجِبُ الْمُسَمّٰى نو ځکه اول شرط [او د يَوْم ورځي ذکر] به صحيح کيږي او ټاکل سوی اُجرت به واجبيږي وَيَفْسُدُ

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۵۵۰)، و رد المحتار (ج:۵، ص:۴۹، ۵۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵]

الثَّانِي وَيَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ دِرْهَمٍ او دويم شرط [او د دويمي ورځې ذکر] به فاسديږي او أجرت مثلي به واجبيږي چې هغه به له نيم درهم څخه نه اضافه کول کيږي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُسَمّٰى فِي الْيَوْمِ الثَّانِي ځکه چې همدا نيم درهم په دويمه ورځ کې ټاکل سوی أجرت دی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: لَا يُزَادُ عَلٰى دِرْهَمٍ وَلَا يُنْقَصُ مِنْ نِصْفِ دِرْهَمٍ او په جامع صغير کې [دا ځکه ذکر سوي] دي: چې پر يوه درهم به نه زياتول کيږي او له نيم درهم څخه به نه کمول کيږي لِأَنَّ التَّسْمِيَةَ الْأُولٰى لَا تَنْعَدِمُ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي ځکه چې اوله تسميه په دويمه ورځ [غد] کې نه معدوم کيږي فَيُعْتَبَرُ لِمَنْعِ الزِّيَادَةِ وَتُعْتَبَرُ التَّسْمِيَةُ الثَّانِيَةُ لِمَنْعِ النُّقْصَانِ نو ځکه د زياتوب منع کولو لپاره به د هغه [اولي تسميې] اعتبار کيږي او د کمښت منع کولو لپاره به د دويمي تسميې اعتبار کيږي فَإِنْ خَاطَهُ فِي الْيَوْمِ الثَّالِثِ او که خياط هغه کپړه په درېيمه ورځ جوړه کړي لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ دِرْهَمٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د هغه أجرت به تر نيم درهم نه اضافه کول کيږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَرْضَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَى الْغَدِ ځکه کله چې مستأجر تر سبا ورځې پوري د کار په ځنډولو [تر نيم درهم په زيات أجرت] راضي نه دی [بلکي په سبار ورځ کي يې د کار پوره کولو (کپړه جوړولو) لپاره صرف نيم درهم أجرت ټاکلی دی] فَبِالزِّيَادَةِ عَلَيْهِ إِلٰى مَا بَعْدَ الْغَدِ أَوْلٰى نو تر بل سبا ورځې به په درجه اولیٰ تر نيم درهم په زيات أجرت راضي نه وي.

**اللغات**: ﴿تعجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: کار ژر کول، تلوار کول. ﴿الغد﴾ سبا، سبا ورځ، ﴿تسمية﴾ د تفعيل مصدر دی: نومول، مُتعيّن کول (ټاکل)، مقرر کول. ﴿تأقيت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل. ﴿الترفيه﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب څلور معناوي دي: (يو څوک) خوشاله او بې غمه کرځول، غم سپکول، آساني او پراخي کول، مهلت ورکول. دلته درېيمه او آخري معنیٰ مراد ده چې د هغوی دواړو مطلب يو دی. ﴿تنعدم﴾ د انفعال مضارع ده: نيستي کېدل (نه موجودېدل)، ختمېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی خياط ته کپړه ورکړي او هغه ته ووايي چې که ته همدا نن ورځ دا کپړه جوړه کړې (يا مثلاً داسي ورته ووايي چې که ته په همدې يوه نن ورځ له دغه کپړې څخه زما کالی [يا داسي بله جامه] جوړه کړې)، نو زه تا ته يو درهم أجرت (مزدوري) درکوم او که ته سبا ته هغه جوړه

کړي، نيم درهم اُجرت درکوم، نو د داسي اختيار ورکولو سره اجاره صحيح ده، بيا که خياط نن ورځ (اليَوْمَ) کپړه جوړه کړي، نو هغه ته به يو درهم ورکول کيږي او که سبا يې جوړه کړي، نو هغه ته به اُجرتِ مثلي ورکول کيږي، لېکن دغه اُجرت به له نيم درهم څخه نه زياتول کيږي (بلکي نيم درهم يا تر هغه به کم وي)، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. او په جامع صغير له هغه (امام صاحب رَحِمَهُ الله) څخه دا روايت نقل سوی دی چي دا اُجرتِ مثلي به له نيم درهم څخه نه کمول کيږي او له يوه درهم څخه به نه زياتول کيږي، لېکن اول روايت زيات صحيح دی، يعني اُجرتِ مثلي به له نيم درهم څخه نه زياتول کيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي په دغه مسئله کي مطلقاً اجاره صحيح ده او دواړه شرطونه جائز دي يعني که خياط نن ورځ کپړه جوړه کړي، نو هغه ته به يو درهم ورکول کيږي او که سبا يې جوړه کړي، نو هغه ته به نيم درهم ورکول کيږي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي دواړه شرطونه فاسد دي او دغه اجاره بالکل صحيح نه ده، وَبِهٖ قَالَ أحمد و الشافعي رَحِمَهُمَا الله. (بنايه ج:۹، ص:۳۹۲)

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دلته مستأجر د خياط سره (د کپړې جوړولو) مطلق معامله کړې ده او دغه کار (کپړه ګنډل او جوړول) فقط يو دی، فرق صرف د وخت دی، او دلته د دغه يوه کار په مقابله کي دوه عوضونه ذکر کړل سوي دي: ① يو درهم، ② نصف درهم، او څرنګه چي له دواړو څخه يې يو عوض مُتعيّن کړی نه دی، نو ځکه په عوض او اُجرت کي جهالت دی او تاسو ته معلومه ده چي د اُجرت جهالت د اجارې لپاره مُبطِل او مُفسِد دی. د دې نور تفصيل دا دی چي امام زفر رَحِمَهُ الله د يَوْم ذکر پر تعجيل حمل کوي او د غَد ذکر پر ترفيه يعني پر آسانۍ او مهلت ورکولو حمل کوي او دليل دا بيانوي چي که هغه سړي (مستأجر) داسي ويلي وای چي "إنْ خِطْتَه غَدًا فَلَكَ نِصْفُ دِرْهَمٍ" او اليَوْمَ يې ذکر کړي نه وای بيا خياط هغه کپړه په اليَوْمَ (نن ورځ [اوله ورځ]) کي جوړه کړې وای، نو هم به هغه ته ټاکل سوی اُجرت يعني نيم درهم ورکول کېدای، نو څرنګه چي په يَوْم کي درهم او نصف درهم دواړه تسميې جمع دي، همداسي به په غَد کي هم دواړه جمع وي او د اُجرت نه مُتعيّن کېدلو په وجه به عقد فاسديږي.

ولهما إلخ: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د يَوْم ذكر د تعجيل لپاره نه دی بلكي د تاقيت لپاره دی يعني د كار د مودت بيانولو او وخت ټاكلو لپاره دی او د غَد ذكر د شرط او تعليق لپاره دی او دلته له تعليق څخه اضافت مراد دی او د عبارت مطلب دا دی چي "كه ته نن دغه كار وكړي، نو يو درهم اُجرت دركوم او كه نن يې نه وكړي، نو ننه ورځ معامله ختم ده او په سبا ورځ پر كار كولو تا ته نيم اُجرت دركوم"، ګواكي په يَوْم كي اجاره مؤقته ده او په غَد كي د غَد وطرف ته مضاف او منسوبه ده، نو له دغه وضاحت او تفصيل څخه وروسته به په يَوْم او غَد كي د دوو تسميوو اجتماع نه راځي او دواړه شرطونه به صحيح وي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دا دی چي اصل مقصود عليه عمل دی او دلته په معقود عليه كي تعجيل او تاخير دواړه شيان مقصود دي، لهذا څرنګه چي په فارسي او رومي طرز دواړه ډوله خياطت مقصود وي او په دوی كي په فرق كولو سره په اُجرت كي فرق كول ممكن دي او صحيح دي، همداسي دلته هم په يَوْم او غَد دواړو كي صرف كار مقصود دی او د يَوْم او غَد په فرق سره په اُجرت كي فرق كول ممكن دي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي مالك دلته يَوْم او غَد دواړه تر يوه عقد لاندي بيان كړي دي او دا تسليم سوې خبره ده چي غَد په حقيقت كي د تعليق لپاره دی حال دا چي اجاره تعليق نه قبلوي؛ ځكه چي په غَد كي به دوې تسميې جمع سي نو د غَد والا اجاره فاسده سوه، او په يَوْم كي اجاره صحيح كيږي، هغه هم په دې توګه چي يَوْم به پر تعجيل حمل كيږي، نه پر تاقيت؛ ځكه چي پر تاقيت د هغه د حمل كولو په صورت كي د وخت او عمل دواړو اجتماع لازميږي په دې توګه چي د عمل (كار) په اعتبار سره به خياط اجير مشترك وي او مؤقت (ټاكل سوي) وخت په اعتبار سره به اجير خاص وي نو په يوه اعتبار سره به بغير له عمله هغه د اُجرت نه مستحق كيږي او په بل اعتبار سره به هغه صرف د نفس په ورسپارلو سره د اُجرت مستحق كيږي (لكه مخكي چي ذكر سوه چي اجيرِ خاص فقط مستأجر ته د خپل ځان په ورسپارلو سره د اُجرت مستحق كيږي، كه څه هم كار نه وكړي، لنډه دا چي د تأقيت مرادولو په صورت كي به اجير (خياط) په يوه اعتبار سره بغير له كار كولو د اُجرت مستحق وي او په بل اعتبار سره به نه وي)، حال دا چي په يوه عقد (عقدِ واحد) كي د دې شيانو جمع كېدل متعذر او ستونزمن دي او له دغه ستونزې څخه د بچ كېدلو لپاره موږ (امام صاحب رَحِمَهُ الله) دلته يَوْم پر تعجيل حمل كړی دی او په يَوْم كي مو پر كار كولو اجير (خياط) د ټاكل سوي اُجرت (يوه درهم) مستحق ګرځولی دی؛ ځكه

چي په يَوْم کي عقد صحيح دی، او په غَد کي مو پر کار کولو هغه دأجرتِ مثلي حقدار ګرځولی دی؛ ځکه چي په غَد کي عقد فاسد دی (او تاسو ته معلومه چي دعقدِ اجاره دفاسدېدلو په صورت کي أجرتِ مثلي واجبيږي).

وفي الجامع الصغير الخ: فرمايي: په جامع صغير کي چي دأجرتِ مثلي په هکله کوم داصراحت سوی دی چي هغه به له يوه درهم څخه نه زياتول کيږي او له نصف درهم څخه به نه کمول کيږي، دهغه وجه او دليل دا دی چي په يَوْم کي يو درهم أجرت تاکل سوی دی او په غَد کي دغه أجرت موجود دی (معدوم نه دی)، نو ځکه له يوه درهم څخه دزائد أجرتِ مثلي لپاره به دا مانع وي يعني له يوه درهم څخه به اضافه کېدل منع کوي او څرنګه چي په غَد کي نيم درهم تاکل سوی دی، نو دا به له نصف درهم څخه کمېدل منع کوي. په همدي وجه صاحب دهدايې رَحِمَهُ الله دامام صاحب رَحِمَهُ الله په حواله سره دا مسئله هم بيان کړې ده چي که خياط په درېيمه ورځ هغه کپړه جوړه کړي، نو هم به هغه ته له نيم درهم څخه زيات أجرت نه ورکول کيږي، ځکه کله چي مالک په غَد کي تر نيم درهم په زيات أجرت ورکولو راضي نه دی، نو بَعد الغَد خو به هغه بيخي په دې راضي نه وي. (احسن الهدايه)

## د کار د نوعيت په لحاظ سره اجاره کول

وَلَوْقَالَ: إِنْ أَسْكَنْتَ فِي هٰذَا الدُّكَّانِ عَطَّارًا او که مالک ومستاجر ته ووايي: که چيري ته په دغه دوکان کي عطر فروش و اوسوې! فَبِدِرْهَمٍ فِي الشَّهْرِ نو په يوه درهم په يوه مياشته کي [يعني: نو د مياشتي يو درهم أجرت او کرايه غواړم] وَإِنْ أَسْكَنْتَهُ حَدَّادًا او که چيري ته په دغه دوکان کي آهنګر [پښ] و اوسوې! فَبِدِرْهَمَيْنِ نو په دوو درهمو جَازَ نو دا جائز دي [يعني دا عقدِ اجاره جائز دی] وَأَيَّ الْأَمْرَيْنِ فَعَلَ او مستأجر چي له [دغه] دوو کارو څخه کوم کار هم وکړي اسْتَحَقَّ الْأَجْرَ الْمُسَمّٰى فِيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو په هغه کار کي د تاکل سوي أجرت حقداره کيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا❁: الْإِجَارَةُ فَاسِدَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي اجاره فاسده ده وَكَذَا إِذَا اسْتَأْجَرَبَيْتًا عَلٰى أَنَّهُ إِنْ سَكَنَ فِيْهِ فَبِدِرْهَمٍ او همدارنګه کله چي مستأجر پر دې شرط کور په کرايه واخلي چي

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في ملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۵۵۱)، والزيلعي (ج:۵، ص:۱۴۰). [القول الراجح ج:۰، ص:۲۳۶]

که مستأجر په خپله په هغه کور کي و اوسيږي نو په يوه درهم وَإِنْ سَكَّنَ فِيهِ حَدَّادًا فَبِدِرْهَمَيْنِ او
که په هغه کي آهنګر [پښ] و اوسوي نو په دوو درهمو فَهُوَ جَائِزٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو دا د امام صاحب
رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي وَقَالَا: لَا يَجُوزُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي جائز نه دي وَمَنِ اسْتَأْجَرَ
دَابَّةً إِلَى الْحِيرَةِ بِدِرْهَمٍ او که څوک تر "حيره" نومي ځايه پوري يو څاروی په کرايه ونيسي په يوه
درهم وَإِنْ جَاوَزَ بِهَا إِلَى الْقَادِسِيَّةِ فَبِدِرْهَمَيْنِ [لېکن] که هغه له "حيره" څخه و "قادسيه" ته دا
څاروی تېر کړي نو په دوو درهمو فَهُوَ جَائِزٌ نو دا هم جائز دي وَيَحْتَمِلُ الْخِلَافَ [لېکن] دا صورت د
اختلاف احتمال لري وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا إِلَى الْحِيرَةِ عَلَى أَنَّهُ إِنْ حَمَلَ عَلَيْهَا كُرَّ شَعِيرٍ فَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ او که
څوک تر "حيره" پوري پر دې شرط څاروی په کرايه ونيسي چي که پر هغه يو کر اوربشي بار
کړي نو په نيم درهم وَإِنْ حَمَلَ عَلَيْهَا كُرَّ حِنْطَةٍ فَبِدِرْهَمٍ او که پر هغه يو کر غنم بار کړي نو په يوه
درهم فَهُوَ جَائِزٌ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ نو دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول جائز دي وَقَالَا: لَا يَجُوزُ او
صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دا جائز نه دي وَجْهُ قَوْلِهِمَا: أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ مَجْهُولٌ د صاحبينو
رَحِمَهُمَا الله د قول دليل دا دی: چي معقود عليه مجهول دی وَكَذَا الْأَجْرُ أَحَدُ الشَّيْئَيْنِ وَهُوَ مَجْهُولٌ او
همدارنګه [دلته] أجرت هم له دوو شيانو څخه يو شی دی او هغه مجهول دی وَالْجَهَالَةُ تُوجِبُ الْفَسَادَ
او جهالت فساد واجبوي بِخِلَافِ الْخِيَاطَةِ الرُّومِيَّةِ وَالْفَارِسِيَّةِ په خلاف په رومي او فارسي طرز سره
د کپړې جوړولو لِأَنَّ الْأَجْرَ يَجِبُ بِالْعَمَلِ ځکه چي هلته په کار [پوره کېدلو] سره أجرت واجبيږي
[يعني د خياطة په مسئله کي د کپړې له جوړېدلو څخه وروسته د خياط مزدوري واجبيږي] وَعِنْدَهُ تَرْتَفِعُ
الْجَهَالَةُ او په دې [يعني د کار پوره کېدلو] په وخت کي جهالت ختميږي أَمَّا فِي هٰذِهِ الْمَسَائِلِ يَجِبُ
الْأَجْرُ بِالتَّخْلِيَةِ وَالتَّسْلِيمِ لېکن په دغه مسئلو کي په تخليه کولو او ورسپارلو سره أجرت
واجبيږي فَيَبْقَى الْجَهَالَةُ نو ځکه جهالت به باقي پاته سي وَهٰذَا الْحَرْفُ هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُمَا او همدا
اړخ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اصل دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ خَيَّرَهُ بَيْنَ عَقْدَيْنِ صَحِيحَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ او د
امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مؤجر و مستأجر ته د دوو صحيح او مختلفه عقدونو په

مینځ کي اختیار ورکړی دی فَيَصِحُّ نو ځکه دا اختیار به صحیح وي كَمَا فِي مَسْأَلَةِ الرُّومِيَّةِ وَالْفَارِسِيَّةِ لکه د رومي او فارسي طرز والا کپړې [د جوړولو] په مسئله کي چي صحیح دی وَهٰذَا لِأَنَّ سُكْنَاهُ بِنَفْسِهِ يُخَالِفُ إِسْكَانَهُ الْحَدَّادَ او دا حکم ځکه دی چي په کور کي د مستأجر خپله اوسېدل د آهنګر [پښ] له اوسولو څخه مختلف [او علیحده] دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ ذٰلِكَ فِي مُطْلَقِ الْعَقْدِ آیا ته نه ګورې! چي دا په مطلق عقد اجاره کي نه داخلیږي وَكَذَا فِي أَخَوَاتِهَا او همداسي د اجارې په نورو صورتونو کي وَالْإِجَارَةُ تُعْقَدُ لِلِانْتِفَاعِ او اجارات د نفع حاصلولو لپاره منعقد کیږي [مثلا یو کور چي په اجاره (یعني په کرایه) نیول کیږي، نو هغه د اوسېدلو د نفعي حاصلولو (یعني د اوسېدلو) لپاره په اجاره نیول کیږي] وَعِنْدَهُ يَرْتَفِعُ الْجَهَالَةُ او د نفع حاصلولو په وخت کي جهالت ختمیږي وَلَوْ احْتِيجَ إِلَى الْإِيجَابِ بِمُجَرَّدِ التَّسْلِيمِ او که چیري محض په ورسپارلو سره د اُجرت واجبولو ته ضرورت وي يَجِبُ أَقَلُّ الْأَجْرَيْنِ نو په دواړو اُجرتونو کي چي کوم اُجرت کم وي هغه به واجبیږي لِلتَّيَقُّنِ بِهِ ځکه چي دا أقل اُجرت متیقن [او متعیّن] دی.

**اللغات:** ﴿أسکنت﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر مخاطب صیغه ده: اوسول، یعني کور، دوکان یا داسي بل ځای د اوسېدلو او استعمالولو لپاره ورکول. ﴿عطار﴾ عطر فروش، د عطرو خرڅونکی، ﴿حداد﴾ اهنګر، پښ، د اوسپنو جوړونکی او سمونکی ﴿الحیرة﴾ له کوفې څخه د یوه مېل پر فاصله لیري یو ښار دی چي په هغه کي به شاه نعمان بن منذر اوسېدی، ﴿قادسیة﴾ دا هم د یو ځای نوم دی چي د هغه او کوفې په مینځ کي پنځلس میله مسافه ده. ﴿تخلیة﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي د صلې په بدلون سره یې معنیٰ بدلیږي چي له هغه څخه یوه معنیٰ ده: دوه شیان یا دوه کسان په خپل مینځ کي سره پرېښوول، کله چي د دې باب په صله کي مبیع یا داسي بل شی مثلاً مستأجر شی ذکر سي (لکه دلته چي دوکان او کور)، نو معنیٰ یې دا ده چي له شي څخه خپل قبضه ختمول او د مشتري یا مستأجر په قدرت او اختیار کي ورکول (د مشتري یا مستأجر لپاره په هغه کي تصرف مباح کول) په بله وینا دا چي هغه ته ورسپارل. لنده دا چي د تخلیه او تسلیم په معنیٰ کي ډېر فرق نسته. ﴿کُرّ﴾ دا په عربو کي د یو غټي پیمانې نوم وو چي په هغه سره به وریجي، غنم او داسي نور پیمانه کېدل، مخکي چي د هدایې په حاشیه کي د دې کوم مقدار لیکل سوی دی، د هغه په

اعتبار سره يو کر تقريبا (۲۵۴۷) کېلو کيږي، ﴿التيقن﴾ د تفعّل مصدر دی: متقين کېدل (يقيني کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زيد د خالد دوکان په اجاره (په ټيکه) واخيستی او خالد هغه ته وويل چي که ته دا دوکان عطر فروش ته ورکړې، نو د مياشتي يو درهم کرايه غواړم او که پښن او آهنګر ته يې ورکړې، نو دوه درهمه کرايه غواړم، نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا عقد اجاره جائز او صحيح دی او مستأجر (زيد) چي کوم يوه ته هم هغه دوکان ورکړي، د هغه په حساب سره پر ده کرايه لازميږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا عقد اجاره فاسد دی، همدغه حکم او اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي پر دې شرط کور او خونه په کرايه ونيول سي چي که په هغه کي مستأجر په خپله اوسيږي نو په يوه درهم او که بل چا ته يې ورکوي، نو په دوو درهمو، يعني دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا عقد اجاره هم جائز دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه دی.

د دې په خلاف که څوک يو څاروی تر "حيره" پوري په يوه درهم په کرايه ونيسي او د مؤجر (مالک) له طرفه دا شرط ولګول سي چي که هغه له "حيره" څخه دا څاروی تېر کړي او "قادسيه" ته ولاړ سي، نو کرايه به يو درهم نه بلکي دوه درهمه به راکوي، نو دا عقد اجاره هم جائز دی؛ ځرنګه چي په جامع صغير کي دا حکم مطلق بيان سوی دی، نو ځکه دلته په هغه کي صراحتاً اختلاف نه دی ذکر سوی، او علامه فخر الاسلام بزدوي رَحِمَهُ الله د مخکنيو مسئلو اختلاف ته په کتلو سره دلته هم اختلاف پيدا کړی دی.

وإن استأجرها إلى الحيرة إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مستأجر پر دې شرط يو څاروی په کرايه ونيسي چي که مستأجر پر هغه يو من اوربشي يووسي، نو کرايه نيم درهم ده او که يو من غنم پر يووسي، نو کرايه يو درهم ده، نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دلته هم اجاره جائز ده او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه ده.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي په پورتني مسئلو کي نه معقود عليه مُتعيّن دی او نه اُجرت (کرايه) مُتعيّن ده، نو په دواړو کي جهالت سته، او تاسو ته معلومه ده چي له دغه دوو څخه ديوه شي په جهالت سره هم عقد فاسديږي، نو د دواړو په جهالت سره خو به په درجه اولیٰ فاسديږي، او په دې وينا سره دغه عقد صحيح نه سي ګرځول کېدای چي اُجرت خو تر کار (عمل) وروسته واجبيږي او په کار کولو سره معقود عليه او اُجرت دواړه معلوم او مُتعيّن ګرځي لهذا د رومي او فارسي طرز والا خياطت د مسئلې په څېر په دغه مسئلو کي هم عقد جائز ګرځول پکار دي (داسي نه سي کېدای)، ځکه چي د

خياطت والا په مسئله کي د خياطت (کپړه ګنډلو او جوړولو) تر کار وروسته اُجرت واجبيږي او د عقد اجاره تر پوره کېدلو مخکي جهالت ختميږي، لېکن په دغه مسئلو کي په تخليه او تسليم يعني دَ مستأجر او معقود عليه تر مينځ په تخليه کولو او مستأجر ته په ورسپارلو سره هم اُجرت واجبيږي، او ښکاره خبره ده چي که د تسليم او تخليه پر مهال معقود عليه مجهول وي، نو هم عقد فاسديږي، نو ځکه دلته د عقد صحيح ګرځولو هيڅ لاره نسته.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي دلته مؤجر (مالک) چي ومستاجر ته د کومو دوو عقدونو په مينځ کي اختيار ورکړی دی، هغه دواړه صحيح دي او يو له بل څخه جلا دي؛ ځکه چي په هغه کور کي د مستأجر خپله اوسېدل د آهنګر له اوسولو څخه مختلف دي، او په دوو مختلفو عقدونو کي داسي اختيار ورکول صحيح دي او د داسي اختيار ورکولو سره عقد کول هم صحيح دي. پاتـه سو دا اعتراض چي په داسي کولو سره په معقود عليه او اُجرت دواړو کي جهالت پاتيږي او د جهالت پاتېدلو په صورت کي عقد څنګه صحيح کېدای سي؟ نو د هغه جواب دا دی چي د اجارې د منعقد کېدلو مقصد انتفاع (نفع اخيستل) دي او اجاره همغه وخت شروع کيږي کله چي انتفاع (نفع اخيستل) شروع سي ، او ښکاره خبره ده چي کله انتفاع حاصله سي (يعني له مستأجر شي څخه نفع واخيستل سي) نو خود بخوده معقود عليه او اُجرت دواړه معلوم ګرځي او هيڅ ډول جهالت باقي نه پاتيږي.

او که چيري محض په ورسپارلو سره د اُجرت واجبولو ته ضرورت پېښ سي په دې توګه چي مستأجر شی و مستأجر ته وسپارل سي لېکن مستأجر تر اوسه له هغه څخه منفعت اخيستل شروع کړي نه وي چي منفعت (يعني معقود عليه) معلوم وګرځي، نو په دې صورت کي هم اُجرت مجهول نه پاتيږي؛ ځکه چي دلته دوه اُجرتونه تاکل سوي دي او د نه مُتعيّن کېدلو په صورت کي چي کوم اُجرت کم وي هغه د متيقن کېدلو په وجه مُتعيّن کيږي او واجبيږي، نو د داسي اُجرت د جهالت معامله بـه هم ختم سي. او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي د تخليه او تسليم په صورت کي د اُجرت واجبېدل دليل ګرځولي دي او د هغه پر بناء يې په دغه مسئلو کي اجاره فاسد ګرځولې ده، دا صحيح نه دي؛ ځکه حکم پر غالب او اکثر لګول کيږي، نه پر شاذ ونادر. او دلته غالب همدا دی چي اجاره له انتفاع څخه شروع کيږي او د انتفاع (نفع اخيستلو) پر مهال د اُجرت او معقود عليه دواړو جهالت ختميږي. (احسن الهدايه ج:۱۲، ص:۹۰)



# بَابُ إِجَارَةِ الْعَبْدِ

## (دا) باب د غلام د اجارې (د احكامو په بيان كې) دی

**تشريح:** څرنګه چې شيان (اعيان) په اجاره او په كرايه نيول كيږي، همداسې غلامان هم په اجاره او په مزدورۍ نيول كيږي، ليكن څرنګه چې غلام له آزاد كس څخه د كمې درجې دی، نو ځكه د غلام د اجارې احكام د آزاد او د هغه د اعيانو له احكامو څخه وروسته بيان كړل سوي دي. (بنايه ج:۹، ص:۴۰۰)

**كه غلام په أجرت ونيول سي نو آيا هغه د ځان سره بېولای سي، كه نه؟**

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا لِيَخْدِمَهُ او كه څوک د دې لپاره يو غلام په أجرت [په مزدورۍ] ونيسي چې هغه د ده خدمت وكړي [يعني د خپل خدمت لپاره يو غلام ونيسي] فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ بِهِ نو ده [مستأجر] ته دا حق نسته چې په هغه غلام سره سفر وكړي [يعني چې د خپل خدمت لپاره يې په سفر كې د ځان سره بوځي] إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ ذَلِكَ مګر دا چې مستأجر [د عقد كولو په وخت] د سفر شرط ولګوي لِأَنَّ خِدْمَةَ السَّفَرِ اشْتَمَلَتْ عَلَى زِيَادَةِ مَشَقَّةٍ ځكه چې د سفر خدمت پر زيات مشقت مشتمل وي فَلَا يَنْتَظِمُهَا الْإِطْلَاقُ نو ځكه مطقوالي [مطلق عقد] به دغه خدمت لره نه شامليږي [يعني په مطلق عقد اجاره به كې د سفر خدمت نه داخليږي] وَلِهَذَا جُعِلَ السَّفَرُ عُذْرًا او په همدې وجه [د اجارې فسخ كولو لپاره] سفر عذر ګرځول سوی دی فَلَا بُدَّ مِنِ اشْتِرَاطِهِ نو ځكه د سفر شرط لګول ضروري دي كَإِسْكَانِ الْحَدَّادِ وَالْقَصَّارِ فِي الدَّارِ لكه په [كرايه نيول سوي] كور كې آهنګر او دوبي اوسول [يعني لكه څرنګه چې د كور د اجارې په صورت كې د پښې او دُوبي د اوسولو شرط لګول ضروري دي. او بغير له شرط لګولو په هغه كور كې د دوی اوسول جائز نه دي] وَلِأَنَّ التَّفَاوُتَ بَيْنَ الْخِدْمَتَيْنِ ظَاهِرٌ او ځكه چې د سفر او غير سفر په خدمتونو كې ښكاره توپير دی فَإِذَا تَعَيَّنَ الْخِدْمَةُ فِي الْحَضَرِ لهذا كله چې په غير سفر كې خدمت مُتعيَن سو لَا يَبْقَى غَيْرُهُ دَاخِلًا نو له هغه څخه بغير بل خدمت به [په دغه عقد اجاره كې] داخل نه پاتيږي كَمَا فِي الرُّكُوبِ لكه څرنګه چې په سپرتيا كې كيږي [مثلا كه يو وار مستأجر د كرايې پر آس بل څوک سپور كړي يا په خپله پر سپور سي، نو بيا بل څوک نه سي پر سپرولای] وَمَنِ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا مَحْجُورًا عَلَيْهِ شَهْرًا وَأَعْطَاهُ

الْأَجْرَ او که څوک داسي غلام په اُجرت ونيسي چي پر هغه د تصرف [او کاروبار] کولو بنديز لګول سوی وي او هغه ته اُجرت ورکړي فَلَيْسَ لِلْمُسْتَأْجِرِ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ الْأَجْرَ نو په اُجرت نيونکي کس ته دا اختيار نسته چي له هغه څخه دا اُجرت واپس واخلي وَأَصْلُهُ أَنَّ الْإِجَارَةَ صَحِيحَةٌ اسْتِحْسَانًا إِذَا فَرَغَ مِنَ الْعَمَلِ او د دې اصل دا دی چي دغه اجاره استحساناً صحيح ده کله چي هغه [غلام] له کار څخه فارغ سي [يعني کله چي محجور غلام له کار څخه فارغ سي، نو استحساناً اجاره جائز کيږي] وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ او قياس دا دی چي دا اجاره نه جائز کيږي لِانْعِدَامِ إِذْنِ الْمَوْلَى وَقِيَامِ الْحَجْرِ ځکه چي [د محجور غلام د اجارې په هکله] د مالک اجازت نسته او بنديز موجود دی فَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ الْعَبْدُ نو دا داسي سوه لکه غلام چي [د مستأجر په قبضه کي] هلاک سي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ التَّصَرُّفَ نَافِعٌ عَلَى اعْتِبَارِ الْفَرَاغِ سَالِمًا ضَارٌّ عَلَى اعْتِبَارِ هَلَاكِ الْعَبْدِ د استحسان دليل دا دی: چي د غلام تصرف نفع من دی په سلامتۍ سره د فارغېدلو په اعتبار سره او د هغه تصرف ضرر من دی د غلام هلاکېدلو په اعتبار سره [يعني که غلام له کار څخه صحيح سالم فارغ سي نو د مالک په حق کي دا يو نفع من تصرّف دی لېکن که غلام مړ او ضايع سي نو دا تصرّف د مولیٰ لپاره ضررمن او تاواني ثابتيږي] وَالنَّافِعُ مَأْذُونٌ فِيهِ كَقَبُولِ الْهِبَةِ او د نفع من تصرف په هکله [غلام ته] اجازت سته لکه هبه قبلول وَإِذَا جَازَ ذَٰلِكَ او کله چي دا عقد اجاره جائز سو لَمْ يَكُنْ لِلْمُسْتَأْجِرِ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ الْأَجْرَ نو [ښکاره خبره ده چي] مستأجر ته دا اختيار نسته چي له غلام څخه اُجرت واپس واخلي.

**اللغات**: ﴿اشتملت﴾ د افتعال ماضي ده: مشتمل کېدل. ﴿يـنـتظم﴾ د افتعال مضارع ده: شاملېدل (احسن الهدايه). ﴿التفاوت﴾ د تفاعل اسمِ مصدر دی: توپير، فرق، اختلاف. ﴿محجور عليه﴾ هغه غلام چي مالک پر هغه د تجارت او کاروبار يا د بل تصرف کولو بنديز او پابندي لګول سوې وي. ﴿ضارّ﴾ ضرر من (نقصان من)، تاواني.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی د خدمت لپاره يو غلام په اُجرت ونيسي او د عقد په وخت کي دا شرط نه ولګوي چي زه دغه غلام پر دې شرط په اُجرت نيسم چي په سفر کي به هم د خپل خدمت لپاره د ځان سره بيايم. بلکي هغه سړی د مطلق خدمت لپاره غلام په اُجرت ونيسي، نو وروسته هغه سړي (مستأجر)

ته دا اختيار نسته چي دغه غلام د ځان سره په سفر بوځي؛ ځکه د سفر په خدمت کي تکليف او مشقت زيات وي او دا خدمت د حضر (غير سفر) له خدمت څخه مختلف وي، او څرنګه چي دلته د عقد د مطلق کېدلو او د عقد د مقام او حالت په قرينه او دلالت سره د حضر خدمت مُتعين کيږي. نو ځکه بغير له شرط لګولو به د خدمت سفر په دغه عقد کي نه داخليږي. لکه مستأجر چي د اوسېدلو لپاره يو کور په کرايه ونيسي، نو هغه خو په خپله په هغه کور کي اوسېدلای سي لېکن که مستأجر هغه کور آهنګر (پښ) يا دوبي ته ورکوي، نو د عقد په وخت کي د دې شرط لګول يا له مؤجر (مالک) څخه اجازت اخيستل ضروري دي او بغير له شرط لګولو مستأجر هغه کور دوی ته نه سي ورکولای. يا مثلاً که مستأجر د سپرېدلو لپاره يو څاروی په کرايه ونيسي، نو له شرط لګولو يا اجازت اخيستلو څخه بغير مستأجر پر هغه څاروي بل څوک نه سي سپرولای؛ ځکه چي د دواړو په سپرتياوو (او چلولو) کي فرق سته. همدا وجه ده که مستأجر پر دې تېنګار کوي چي زه د ځان سره په سفر خامخا غلام بيايم او غلام پر نه تللو تېنګار کوي (چي زه نه ځم)، نو اجاره هم فسخ کېدای سي. او ښکاره خبره ده چي په کوم شي سره بالکل عقد فسخ کيږي، هغه به قوي وي او په هغه کي به دومره اثر وي چي بغير له شرط لګولو به هغه په عقد کي نه داخليږي.

ومن استأجرعبدا محجوراً إلخ: (٢)... که څوک يو محجور غلام د يوې مياشتي د خدمت لپاره په أجرت ونيسي او هغه ته أجرت هم ورکړي، نو استحساناً دغه اجاره صحيح ده او وروسته مستأجر له غلام څخه هغه أجرت واپس نه سي اخيستلای کوم چي يې دغه غلام ته ورکړی دی، لېکن قياساً دا اجاره فاسده ده؛ ځکه چي غلام محجور دی او د هغه په دغه عمل کي د مالک اجازت معدوم دی او که چيري غلام د کار کولو په دوران کي هلاک سي، نو مستأجر د هغه د قيمت ضامن کيږي. همداسي به دلته هم د مالک د اجازت په معدوم کېدلو سره اجاره فاسديږي او مستأجر به غاصب شمارل کيږي، نو ځکه پر هغه به د دغه غلام قيمت واجب وي.

د دې په خلاف د استحسان دليل دا دی چي دلته د دغه غلام د خدمت دوه اړخه دي: ① يو دا چي غلام يوه مياشته خدمت وکړي او صحيح سالم فارغ سي. ② دويم دا چي د خدمت په دوران کي هغه مړ سي. او له دغه دواړو څخه اول اړخ او تصرف د مالک په حق کي نفع مند دی چي غلام به هم محفوظ او سالم پاته سي او څه چي يې ګټلي دي هغه به هم مالک ته حاصل سي. او محجور غلام ته (دلالتاً) د داسي کار کولو اجازت وي چي په هغه کي د مالک نفع وي لکه څرنګه چي هغه هديه قبلولای سي. لنډه دا چي څرنګه په پورتني صورت کي د مالک نفع ده. نو ځکه دا اجاره صحيح ده. او کله چي اجاره صحيح ده. نو پر مستاجر أجرت ور کول ضروري دي او بېر ته د هغه واپس اخيستل صحيح نه دي.

## د غصب کړی سوي غلام د أجرت حکم

وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا او که څوک غلام غصب کړي فَآجَرَ الْعَبْدُ نَفْسَهُ او غلام یو چا ته خپل ځان په أجرت [په مزدورۍ] ورکړي [یعني د یو چا سره مزدور سي] فَأَخَذَ الْغَاصِبُ الْأَجْرَ فَأَكَلَهُ او غاصب د هغه أجرت [مزدوري] واخلي او ویې خوري فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر غاصب د هغه أجرت ضمان [تاوان] نسته وَقَالَا❁: هُوَ ضَامِنٌ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي هغه د دې ضامن دی لِأَنَّهُ أَكَلَ مَالَ الْمَالِكِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ ځکه چي هغه د مالک مال د هغه له اجازت څخه بغیر خوړلی دی إِذِ الْإِجَارَةُ قَدْ صَحَّتْ عَلَى مَا مَرَّ ځکه دا اجاره صحیح سوه بناء پر هغه کوم چي مخکي تېر سوه وَلَهُ: أَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا يَجِبُ بِإِتْلَافِ مَالٍ مُحْرَزٍ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي ضمان د محفوظ کړی سوي مال په هلاکولو [ضایع کولو] سره واجبیږي لِأَنَّ التَّقَوُّمَ بِهِ ځکه چي متقوّم کېدل په همدې احراز [محفوظ کولو] سره ثابتیږي وَهٰذَا غَيْرُ مُحْرَزٍ فِي حَقِّ الْغَاصِبِ او دا مال د غاصب په حق کي محفوظ کړی سوی نه دی لِأَنَّ الْعَبْدَ لَا يُحْرِزُ نَفْسَهُ عَنْهُ فَكَيْفَ يُحْرِزُ مَا فِي يَدِهِ ځکه [کله] چي هغه خپل ځان نه محفوظه کولای نه سي له غاصب څخه نو خپل په لاس کي موجود مال به څنګه محفوظ کړی سي وَإِنْ وَجَدَ الْمَوْلَى الْأَجْرَ قَائِمًا بِعَيْنِهِ او که چیري مالک هغه أجرت بعینهٖ موجود ومومندي أَخَذَهُ نو هغه دي واخلي لِأَنَّهُ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ ځکه چي مالک خپل عَین مال وموندی وَيَجُوزُ قَبْضُ الْعَبْدِ الْأَجْرَ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا او پر هغه أجرت د غلام قبضه کول د ټولو پر قول جائز دي لِأَنَّهُ مَأْذُونٌ لَهُ فِي التَّصَرُّفِ عَلَى اعْتِبَارِ الْفَرَاغِ ځکه چي له کار څخه [د صحیح سالم] فارغېدلو پر اعتبار هغه ته د تصرف کولو اجازت سته عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سوه.

**اللغات**: ﴿غصب﴾ د ضرب ماضي ده: غصبول، په جبر او زور سره اخیستل، لاندي کول. ﴿ضمان﴾ تاوان. ﴿اتلاف﴾ د افعال مصدر دی: تلفول، ضایع کول، هلاکول. ﴿محرز﴾ د افعال مصدر

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٥، ص:٥١). قال المفتي غلام قادر النعماني: القول الراجح هو قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لكن الأنسب أن يفتىٰ في هذا الزمان بقول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، سدًا لباب الجور، لأنه إن افتى بقول الإمام، لفتح باب الجور، لفساد الزمان. [القول الراجح ج:٢، ص:٢٣٧]

دی: محفوظ کړی سوی (خوندي کړی سوی)، ﴿یحرز﴾ د افعال د باب مضارع ده، أَحْرَزَ يُحْرِزُ إِحْرَازًا: حفاظت کول، ذخیره کول، جمع کول، ﴿تقوّم﴾ د تفعّل مصدر دی: متقوّم کېدل، قیمتداره کېدل (قیمت لرل)، ﴿التصرّف﴾ هر داسي کار او قول چي هغه یو فقهي اثر او حکم لري.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید د خالد غلام غصب کړي او هغه د خپل ځان سره وساتي او بیا غلام په خپله دیو چا سره مزدور سي او څه پیسې هم وګټي، لېکن که غاصب (زید) هغه پیسې ځني واخلي او خرچ یې کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا غاصب نه ضامن کیږي، لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه ضامن کیږي.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي استحساناً دغه اجاره صحیح ده او غلام او د هغه ګټه ټوله د مالک (خالد) ده او غاصب د مالک له اجازت څخه بغیر دا ګټه خرچ کړې ده، نو ځکه به پر غاصب د هغه ضمان لازمیږي، لکه څرنګه چي که دا غلام مړ سي، نو د هغه ضمان هم پر غاصب لازمیږي، همداسي به د هغه د ګټې د خوړلو او خرچ کولو ضمان هم پر غاصب لازمیږي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي ضمان خو په هغه صورت کي واجبیږي کله چي محفوظ او محرز مال ضایع کړی سي؛ ځکه چي په همدې احراز سره د مال تقوّم (قیمتداره کېدل) ثابتیږي او دلته صورت حال دا دی چي په خپله د غلام ذات له غاصب څخه محفوظ نه دی، نو د هغه مال به څنګه محفوظ وي، معلومه سوه چي دا غیر محرز مال دی او د غیر محرز مال په خرچ کولو او استعمالولو سره ضمان نه واجبیږي.

وإن وجد المولى إلخ: فرمایي که د غلام ګټه غاصب ته په لاس نه ورسي او مالک هغه صحیح سالم ومومي، نو مالک ته پکار دی چي هغه واخلي؛ ځکه دا د هغه خپل ملکیت دی او د هغه په حق کي زیاتوب او اضافه ده وَهُوَ أَحَقُّ بِهِ. او څرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي استحساناً اجاره صحیح ګرځول سوې ده او غلام خپله خپل ځان په اُجرت (په مزدورۍ) ور کړی دی، نو ځکه که غلام په خپله پر خپل اُجرت قبضه وکړي، نو دا هم جائز دي؛ ځکه چي د دغه اجارې د صحیح کېدلو په حواله سره مو دا غلام مأذون لهٗ تسلیم کړی دی او د مأذون لهٗ غلام تصرفات صحیح دي.

## د دوو میاشتو لپاره غلام په اجرت نیول، یوه میاشت د څلورو درهمو او بله میاشت د پنځو درهمو په عوض کې (حکم او تفصیل)

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا هٰذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ شَهْرًا بِأَرْبَعَةٍ وَشَهْرًا بِخَمْسَةٍ او که څوک غلام په أجرت [په مزدوری] ونیسي د دې دوو میاشتو لپاره، یوه میاشت په څلورو درهمو [یعني د یوې میاشتي أجرت او مزدوري څلور درهمه] او یوه میاشت په پنځو درهمو فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَالْأَوَّلُ مِنْهُمَا بِأَرْبَعَةٍ او له دغه دوو میاشتو څخه أوله په څلورو درهمو ده [یعني د اولي میاشتي أجرت څلور درهمه دی، لکه څرنګه چي ویل سوي دي] لِأَنَّ الشَّهْرَ الْمَذْكُورَ أَوَّلًا يَنْصَرِفُ إِلَىٰ مَا يَلِي الْعَقْدَ ځکه کومه میاشته چي اول ذکر سوې ده هغه د عقد سره د متصل میاشتي وطرف ته راجع کیږي تَحَرِّيًا لِلْجَوَازِ وَنَظَرًا إِلَىٰ تَنَجُّزِ الْحَاجَةِ د عقد د جائز ګرځولو او [د مستأجر] د حاجت د پوره کېدلو په غرض سره [او کله چي اوله میاشته د عقد سره متصل میاشتي راجع سوه] فَيَنْصَرِفُ الثَّانِي إِلَىٰ مَا يَلِي الْأَوَّلَ ضَرُورَةً نو دویمه میاشت به ضرورتاً [خامخا] د اولي میاشتي سره د متصل عقد وطرف ته راجع کیږي وَمَنِ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا شَهْرًا بِدِرْهَمٍ او که څوک غلام د میاشتي په یوه درهم په أجرت ونیسي فَقَبَضَهُ فِي أَوَّلِ الشَّهْرِ او د میاشتي په شروع کي پر هغه قبضه وکړي [یعني په شروع کي هغه له مالک څخه واخلي] ثُمَّ جَاءَ آخِرَ الشَّهْرِ وَهُوَ آبِقٌ أَوْ مَرِيضٌ بیا چي [کله] د میاشتي آخر راسي نو هغه غلام تښتېدلی یا مریض وي فَقَالَ الْمُسْتَأْجِرُ: أَبَقَ أَوْ مَرِضَ حِينَ أَخَذْتُهُ نو مستأجر ووایي: چي دا غلام له هغه وخته تښتېدلی یا مریض سوی دی له کومه وخته چي ما هغه [له مالک څخه] اخیستی دی وَقَالَ الْمَوْلَىٰ: لَمْ يَكُنْ ذٰلِكَ إِلَّا قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَنِي بِسَاعَةٍ او مالک ووایي: چي داسي نه دي سوي مګر ستا له راتګ څخه څه وخت مخکي [یعني مالک ورته ووایي چي داسي نه ده. بلکي ستا له راتګ څخه لږ وخت مخکي هغه تښتېدلی یا مریض سوی دی] فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُسْتَأْجِرِ نو قول د مستأجر معتبر دی وَإِنْ جَاءَ بِهِ وَهُوَ صَحِيحٌ او که مستأجر هغه غلام په داسي حال کي [مالک ته] راولي چي هغه صحیح سالم وي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُؤَاجِرِ نو قول د مؤجر [مالک] معتبر دی لِأَنَّهُمَا اخْتَلَفَا

فِي أَمْرٍ مُحْتَمَلٍ ځکه چې دوی دواړو په احتمال لرونکي خبره کي اختلاف کړی دی [چي د هغه د وقوع ممکن ده] فَيَتَرَجَّحُ بِحُكْمِ الْحَالِ نو هغه ته به د حالت [استصحابُ الحال] په حکم سره ترجيح ورکول کيږي [يعني کوم قول چې د موجوده حالت موافق وي، هغه به مرجح وي] إِذْ هُوَ دَلِيلٌ عَلَى قِيَامِهِ مِنْ قَبْلُ ځکه دا پر دې خبره دليل دی چې دغه حالت له مخکي څخه [يعني تر اختلاف مخکي] موجود دی وَهُوَ يَصْلُحُ مُرَجِّحًا او دا موجوده حالت د مرجح جوړېدلو صلاحيت لري [يعني راجح جوړېدای سي] إِنْ لَمْ يَصْلُحْ حُجَّةً فِي نَفْسِهِ که څه هم في نفسه د حجت جوړېدلو صلاحيت نه لري أَصْلُهُ الِاخْتِلَافُ فِي جَرَيَانِ مَاءِ الطَّاحُونَةِ وَانْقِطَاعِهِ د دغه اختلاف اصل هغه اختلاف دی کوم چې د ژرندي د اوبو بهېدلو او درېدلو په باره کي دی.

**اللغات**: ﴿ينصرف﴾ د انفعال مضارع ده: ګرځېدل، راجع کېدل (متعلق کېدل)، ﴿يلي﴾ د ضرب مضارع ده: متصل کېدل، ور سره يو ځای کېدل، ﴿تحرّي﴾ د تفعّل مصدر دی: طلب او لټون کول، اصل معنیٰ يې ده: طلب الاحریٰ (يعني د زيات مناسب او لائق شي طلب کول)، ﴿تنجّز﴾ د تفعّل مصدر دی: ضرورت ژر پوره کېدل، ﴿أَبَقَ﴾ د ماضي صيغه ده، له ضرب، نصر او سمع ټولو بابونو څخه راتلای سي: د غلام تېښتېدل، ﴿يترجّح﴾ د تفعّل مضارع ده: راجح او متعبر کېدل، غالب کېدل، ﴿الطاحونة﴾ هغه ژرنده چې د اوبو په ذريعه ګرځول کيږي (چلول کيږي)، لکه مخکي چې د داسي ژرندو عادت هم وو. ﴿انقطاع﴾ د انفعال مصدر دی، کله چې د دې په صله کي او به ذکر سي نو معنیٰ يې ده: درېدل، بندېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که زيد يو غلام په اُجرت ونيسي او داسي ووايي چې "زه دا غلام د همدغه دوو مياشتو لپاره په اُجرت نيسم چې له هغوی څخه د اولي مياشتي کرايه څلور درهمه ده او د دويمي مياشتي کرايه پنځه درهمه ده". نو دا عقد صحيح او جائز دی. که څه هم په دغه عقد کي دوې مياشتي د نکره په شکل ذکر سوي دي چې د هغوی وخت معلوم نه دی، يعني د مستأجر (زيد) په دې قول اِسْتَأْجَرْتُ

مِنْكَ هٰذَا الْعَبْدَ هٰذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ شَهْرًا بِأَرْبَعةٍ وَشَهْرًا بِخَمْسَةٍ" کي دواړه شَهْرًا نکره دي او داجارې د مودت د مجهول والي تقاضا کوي، حال دا چې داجارې د مودت په مجهول والي سره عقد فاسديږي، خو څرنګه چې د عاقل بالغ کلام له ضايع کېدلو څخه ساتل ضروري دي، نو ځکه حتى الامکان د دغه عقد د جائز ګرځولو په خاطر به داسي کيږي چې کومه مياشت اول ذکر سوې ده، هغه به د دې عقد سره متصل مياشت ګرځول کيږي يعني کومه مياشت چې تر عقد وروسته شروع کيږي، هغه به اوله مياشت شمارل کيږي او ټاکل سوی أجرت يعني څلور درهمه کرايه به (غلام او د هغه مالک ته) ورکول کيږي، او که داسي نه وسي، نو په عقد کي به مجهوله مياشت داخله سي، حالانکي عقد اجاره د مودت په جهالت سره فاسديږي. او بل دا چې کله انسان يو شی په أجرت ونيسي، نو هغه يې د خپل ضرورت او حاجت د پوره کولو لپاره په أجرت نيسي، او ښکاره خبره ده چې ضرورت د عقد په وخت کي واقع کيږي، نو ځکه کومه مياشته چې د عقد پر مهال شروع وي، هغه به اوله مياشت ګرځول کيږي، او کله چې هغه اوله مياشت وګرځول سوه، نو اوس به دويمه مياشت خامخا هغه وي کوم چې تر هغې (اولي مياشتي) وروسته راځي، او په دويمه مياشت کي پر کار کولو به پنځه درهمه أجرت ورکول کيږي.

(۲)... که زيد ديوه درهم په عوض کي غلام په أجرت ونيسي او پر هغه قبضه هم وکړي، لېکن د مياشتي په آخر کي غلام وتښتيږي يا مريض سي، او مستأجر يعني زيد د مؤجر (مالک) مخته دعوی وکړي او ووايي چې "له کومي ورځې څخه ما هغه غلام ستا څخه اخيستی دی، له هغه را ايسي غلام تښتېدلی يا مريض سوی دی" او مالک ووايي چې "نه! بلکي هغه په همدې نن ورځ تښتېدلی يا مريض سوی دی"، نو په دې صورت کي به استصحاب الحال دليل ګرځول کيږي، يعني که د دغه اختلاف او دعوې په وخت کي غلام مريض وي يا تښتېدلی وي (موجود نه وي)، نو د مستأجر خبره معتبر ده (يعني د هغه خبره به منل کيږي) او پر هغه أجرت نه واجبيږي، او که چيري غلام روغ رمټ او موجود وي، نو د مؤجر يعني د مالک خبره معتبره ده او پر مستأجر أجرت واجبيږي؛ ځکه دغه اختلاف د داسي شي په باره کي دی چې د هغه د کېدلو او نه کېدلو دواړو احتمال سته او له دواړو څخه يو احتمال په استصحاب الحال سره قوي او راجح کيږي، لهذا د کوم يوه خبره چې د استصحاب الحال موافقه وي، صرف د هغه قول به راجح او معتبر وي.

(فايده: استصحابُ الحال دې ته وايي چي کوم حالت اوس روان دی نو هغه به په ماضي [تېر وخت] کي هم ثابت او موجود شمارل کيږي، په بله وينا دا چي کوم حالت په اوس وخت کي جاري وي، له اوس وخت څخه په مخکي وخت کي به هم د هغه مطابق فيصله کيږي، لکه مخکي چي موږ په "فصل في القضاء بالمواريث" کي ذکر کړه)

وهويصلح مرجحا إلخ: د دې مطلب دا دی چي په استصحابُ الحال سره د اُجرت استحقاق خو ختمېدای سي، لېکن په مستقله توګه په هغه سره دا استحقاق نه سي ثابتول کېدای (لکه مخکي چي موږ ذکر کړه چي استصحابُ الحال زموږ په نېز حجتِ دافعه، دی او حجتِ مثبته نه دی)، نو که عقدِ اجاره له مخکي څخه فيصله سوې نه وي، نو محض په استصحابُ الحال سره پر مستأجر اُجرت نه سي واجبول کېدای. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د مالک او مستأجر د دغه اختلاف اصل او بنياد هغه اختلاف دی کوم چي د اوبو د ژرندي په هکله دی، يعني که څوک مثلاً د لسو ورځو لپاره د اوبو ژرنده په کرايه ونيسي او بيا د اجارې د مودت (لسو ورځو) تر ختمېدلو يوه ورځ مخکي يا د اجارې تر مودت وروسته مستأجر ووايي چي "له کومه وخته ما دغه ژرنده په کرايه نيولې ده، له هغه وخته اوبه بهېدلې نه دي او ژرنده بنده ده، يا مثلاً له يوې ورځي څخه او به بهېدلې نه دي او ژرنده ما استعمال کړې نه ده"، او مؤجر (مالک) ووايي چي "دغه اوبه او ژرنده خو هيڅکله نه بنديږي يا مثلاً داسي ووايي چي د دغه اوبو او ژرندي د درېدلو او بندېدلو لږ وخت کيږي، نه ټوله مودت يا نه يوه ورځ"، نو دلته هم پر استصحابُ الحال فيصله کيږي، يعني که د اختلاف او دعوې په وخت کي اوبه ولاړې وي او ژرنده بنده وي، نو د مستأجر قول معتبر دی، او که په دې وخت کي اوبه بهيږي او ژرنده چالو وي، نو د مؤجر (مالک) خبره معتبره ده، نو همدغه ډول به په پورتنۍ مسئله کي هم استصحابُ الحال دليل ګرځول کيږي او پر هغه به فيصله کيږي. (احسن الهدايه ج: ۱۲، ص: ۹۴)



# بَابُ الِاخْتِلَافِ

(دا) باب (په بیان کي د مؤجر او مستأجر) د اختلاف دی

**تشریح:** اتفاق اصل دی او اختلاف فرع ده، نو ځکه د اصل له بیان څخه وروسته اوس صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرع بیانوي؛ ځکه دا ښکاره خبره ده چي فرع له اصل څخه مؤخره وي.

## په اجاره کي د عاقدَینو د اختلاف پر مهال د کوم عاقد قول معتبر دی؟

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ الْخَيَّاطُ وَرَبُّ الثَّوْبِ فرمايي: او کله چي خياط [درزي] او د کپړې مالک اختلاف وکړي فَقَالَ رَبُّ الثَّوْبِ: أَمَرْتُكَ أَنْ تَعْمَلَهُ قَبَاءً نو د کپړې مالک ووایي: ما تا ته دا حکم کړی وو چي ته به له دغه کپړې څخه چوغه جوړوې وَقَالَ الْخَيَّاطُ: بَلْ قَمِيصًا او خياط ووايي: بلکي [تا راته] د کميس جوړولو حکم کړی وو أَوْ قَالَ صَاحِبُ الثَّوْبِ لِلصَّبَّاغِ: أَمَرْتُكَ أَنْ تَصْبُغَهُ أَحْمَرَ فَصَبَغْتَهُ أَصْفَرَ يا د کپړې مالک د کپړې رنګونکي ته ووايي: ما تا ته دا حکم کړی وو چي ته به دغه کپړه په سور رنګ سره رنګوې او تا هغه په ژړ رنګ سره رنګ کړې ده وَقَالَ الصَّبَّاغُ: لَا بَلْ أَمَرْتَنِي أَصْفَرَ او رنګرېز ووايي: چي نه تا ما ته د ژړ رنګ حکم کړی وو فَالْقَوْلُ لِصَاحِبِ الثَّوْبِ نو قول د کپړې د مالک معتبر دی لِأَنَّ الْإِذْنَ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي اجازت د هغه له طرفه حاصلېږي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ أَنْكَرَ أَصْلَ الْإِذْنِ آيا ته نه ګورې! چي که هغه بالکل د اجازت انکار وکړي كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو قول د هغه معتبر دی فَكَذَا إِذَا أَنْكَرَ صِفَتَهُ نو همدارنګه کله چي د کپړې مالک د اجازت د صفت انکار وکړي [نو هم به قول د ده معتبر وي] لَكِنْ يُحَلَّفُ لېکن له ده څخه به قسم اخيستل کيږي لِأَنَّهُ أَنْكَرَ شَيْئًا لَوْ أَقَرَّ بِهِ ځکه ده د داسي شي انکار کړی دی چي که د هغه اقرار وکړي لَزِمَهُ نو هغه به پر ده لازم سي قَالَ: وَإِذَا حَلَفَ فرمايي: او کله چي مالک قسم واخلي فَالْخَيَّاطُ ضَامِنٌ نو خياط ضامن دی [يعني پر هغه د کپړې ضمان (تاوان) لازميږي] وَمَعْنَاهُ مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ أَنَّهُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ او د دې

مطلب هغه دی کوم چي مخکي تېر سو چي مالک ته اختيار دی که وغواړي نو خياط دي اد کپړې ا ضامن وګرځوي [يعني د کپړې قيمت دي د تاوان په توګه ځني واخلي] وَإِنْ شَاءَ أَخَذَهُ وَأَعْطَاهُ أَجْرَ مِثْلِهِ او که وغواړي نو هغه [جوړه کړل سوې کپړه] دي واخلي او خياط ته دي أجرتِ مثلي ورکړي وَكَذَا يُخَيَّرُ فِي مَسْأَلَةِ الصَّبْغِ إِذَا حَلَفَ او همداسي د کپړې رنګولو په مسئله کي چي کله مالک [ربُ الثوب] قسم واخلي نو هم به هغه ته اختيار ورکول کيږي إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ الثَّوْبِ أَبْيَضَ چي که هغه وغواړي نو رنګرېز دي د سپيني کپړې د قيمت ضامن وګرځوي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الثَّوْبَ وَأَعْطَاهُ أَجْرَ مِثْلِهِ لَا يُجَاوَزُ بِهِ الْمُسَمّٰى او که وغواړي [نو ژړه] کپړه دي واخلي او رنګرېز ته دي أجرتِ مثلي ورکړي چي هغه به تر ټاکل سوي أجرت نه اضافه کوي وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: يَضْمَنُهُ مَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ او [د قدوري] په ځيني نسخو کي ذکر سوي دي: چي په رنګ سره د کپړې په قيمت کي څومره زياتوب راغلی وي، مالک د هغه ضامن کيږي [يعني زائد شُده قيمت به رنګرېز ته ورکوي] لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْغَاصِبِ ځکه چي رنګرېز د غاصب په درجه کي دی. [يعني ګواکي هغه د کپړې غصبونکی دی، ځکه هغه د رنګ په وصف کي د مالک د حکم مخالفت کړی دی].

**اللغات:** ﴿خياط﴾ درزي، کپړه ګنډونکی، کالي جوړونکی، ﴿قباء﴾ (د قاف په فتحه سره): قبا، اوږده چوغه، يو ډول چپنه، عربي قاموسونو يې داسي تعريف کړی دی: ”ثَوْبٌ يُلْبَسُ فَوْقَ الثِّيَابِ أَوِ الْقَمِيْصِ وَيَتَمَنْطَقُ عَلَيْهِ“ (هغه کپړه کوم چي د جامو [کاليو] د پاسه اغوستل کيږي او د هغې مينځ په تسمه [پټۍ] سره تړل کيږي)، او قُبَاء (د قاف په ضمه او الف ممدوده سره): مديني منورې ته نژدې يو علاقه ده چي په هغه کي اول مسجد نبي کريم ﷺ د ”مسجد قباء“ په نامه سره جوړ کړی دی، ﴿صباغ﴾ د کپړې رنګرېز (د ټوکرانو رنګونکی)، ﴿يستفاد﴾ د استفعال مضارع مجهوله ده: حاصلېدل، ترلاسه کېدل، ﴿تصبغه﴾ د مضارع صيغه ده، له نصر، ضرب او فتح ټولو بابونو څخه راتلای سي: کپړه رنګول (ټوکر ته رنګ ورکول)، ﴿يُخيّر﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: اختيار ورکول، ﴿الصبغ﴾ رنګ، چي په هغه سره کپړه رنګول کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که مستأجر او مزدور (په بله وينا مالک او مزدور) اختلاف وکړي، مثلاً مالک ووايي چي ما تا ته د فلانکي شي جوړلو حکم کړی وو او اجير ووايي چي نه! تا ما ته د همدغه

شي جوړولو حکم کړی وو، یا مثلاً کپړې ته د سور او ژړ رنګ ور کولو په هکله اختلاف راسي، نو د داسي اختلاف په صورت کي د مالک قول معتبر دی؛ ځکه دلته چي کومه معامله سوې ده، هغه د مالک په اجازت سره سوې ده، همدا وجه ده که مالک د اصل اجازت او اصل عقد انکار وکړي، نو د هغه قول معتبر دی، نو ځکه د عقد د صفاتو او لوازماتو په هکله به هم د مالک قول معتبر وي، لېکن له هغه شخخه به قسم اخیستل کیږي، نو که هغه قسم واخلي چي "په الله قسم! ما اجیر (خیاط) ته د همدغه کار حکم کړی وو"، نو د هغه خبره به منل کیږي؛ ځکه که د مالک خبره دلته نه ومنل سي بلکي مالک چي د کوم شي انکار کړی دی، د هغه اقرار وکړي، نو پر مالک هغه شی لازمیږي، نو ځکه د قسم سره به د مالک انکار مقبول او معتبر وي.

قال وإذا حلف إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله مالک قسم واخلي نو پر اجیر (خیاط) ضمان لازمیږي او د ضمان معامله به مالک ته سپارل کیږي چي که مالک وغواړي نو اجیر دي د توله شي (کپړې) ضامن وګرځوي او له هغه شخخه دي د ضمان په توګه د هغه شی (کپړې) قیمت واخلي او اُجرت دي نه ورکوي او که وغواړي نو جوړ سوی شي دي واخلي او اجیر ته دي خپل اُجرت مثلي ورکړي. لېکن دا خبره دي ستاسو په یاد وي چي دأجرت مثلي به له ټاکل سوي أجرت شخخه نه اضافه کیږي. همداسي د کپړې په رنګ کي د اختلاف کولو په صورت کي به هم مالک ته اختیار ورکول کیږي چي که مالک وغواړي نو له اجیر (رنګریز) شخخه دي د ضمان په توګه د سپیني (نا رنګول سوي) کپړې قیمت واخلي او که وغواړي نو (په ژړ رنګ سره) رنګول سوې کپړه دي ځني واخلي او هغه ته دي خپل اُجرت مثلي ورکړي لا یجاز به المسٰی. د قدوري په ځیني نسخو کي دا حکم ذکر سوی دی چي څرنګه دلته رنګریز د مالک د حکم مخالفت کړی دی نو هغه د غاصب په درجه کي دی، نو ځکه کله چي مالک له هغه شخخه رنګول سوې کپړه واخلي، نو د هغه د رنګ په وجه چي د کپړې په قیمت کي څومره زیاتوب راغلی وي، هغومره پیسې دي مالک هغه ته ورکړي او اُجرت دي نه ورکوي.

## په أجرت او غیرِ أجرت سره د کار کولو په هکله اختلاف

وَإِنْ قَالَ صَاحِبُ الثَّوْبِ: عَمِلْتَهُ لِيْ بِغَيْرِ أَجْرٍ او که چیري د کپړې مالک ووایي: چي تا دا کپړه زما لپاره بلا أجرته [مفت] جوړه کړې ده وَقَالَ الصَّانِعُ: بِأَجْرٍ او جوړونکی [خیاط] ووایي: چي په أجرت سره مي جوړه کړې ده فَالْقَوْلُ قَوْلُ صَاحِبِ الثَّوْبِ نو قول د کپړې د مالک معتبر دی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ تَقَوُّمَ عَمَلِهِ ځکه مالک د هغه د کار د قیمتي والي انکار کوي إِذْ هُوَ يَتَقَوَّمُ بِالْعَقْدِ ځکه چي کار په عقد سره

قېمتي [قېمتداره] کيږي وَيُنْكِرُ الضَّمَانَ [همدارنګه] مالک ضمان انکار کوي وَالصَّانِعُ يَدَّعِيهِ او جوړونکی د هغه دعویٰ کوي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر وي وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ: إِنْ كَانَ الرَّجُلُ حَرِيْفًا لَهُ أَيْ خَلِيْطًا لَهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري د کپړې مالک د صانع [خياط] سره شريک وي فَلَهُ الْأَجْرُ وَإِلَّا فَلَا نو د هغه لپاره أجرت سته، کنې نسته لِأَنَّ سَبْقَ مَا بَيْنَهُمَا يُعَيِّنُ جِهَةَ الطَّلَبِ بِأَجْرٍ جَرْيًا عَلَى مُعْتَادِهِمَا ځکه د دوی مخکنی خپل مېنځوی معامله په أجرت سره د طلب جهت مُعيّن کوي، د دوی د خپل معمول مطابق [په بله وينا: ځکه چي د دوی په مېنځ کي کومه طريقه له مخکي څخه جاري ده، هغه ته په کتلو سره د أجرت جهت مُتعيّن دی (احسن الهدايه)] وَقَالَ مُحَمَّدٌ: إِنْ كَانَ الصَّانِعُ مَعْرُوفًا بِهٰذِهِ الصَّنْعَةِ بِالْأَجْرِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري جوړونکی په دغه پېشه کي په أجرت سره په کار کولو مشهوره وي [يعني دا مشهوره او معروفه وي چي دغه کاريګر دا کار په أجرت سره کوي] فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول د هغه معتبر دی لِأَنَّهُ لَمَّا فَتَحَ الْحَانُوتَ لِأَجْلِهِ ځکه کله چي هغه د همدي لپاره دوکان خلاص کړی دی جَرَى ذٰلِكَ مَجْرَى التَّنْصِيصِ عَلَى الْأَجْرِ اعْتِبَارًا لِلظَّاهِرِ نو دا [دوکان خلاصول] د أجرت د صراحت کولو قائم مقام سوه، د ظاهري حالت په اعتبار کولو سره وَالْقِيَاسُ مَا قَالَهُ أَبُوْحَنِيْفَةَ او قياس هغه دی کوم څه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي دي لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ ځکه چي مالک منکر دی وَالْجَوَابُ عَنِ اسْتِحْسَانِهِمَا أَنَّ الظَّاهِرَ لِلدَّفْعِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د استحسان جواب دا دی چي ظاهري حالت د دفع کولو لپاره وي وَالْحَاجَةُ هٰهُنَا إِلَى الِاسْتِحْقَاقِ حال دا چي دلته استحقاق [ثابتولو] ته ضرورت دی.

**اللغات:** ﴿بغير أجر﴾ بغير له أجرته، يعني مفت (موت)، ﴿الصانع﴾ د فتح د باب اسم فاعل دی: کاريګر (يو کار کونکی)، جوړونکی، ﴿تقوّم﴾ د تفعّل مصدر دی: متقوّم کېدل، قيمتداره کېدل (قيمتي کېدل). ﴿ضمان﴾ تاوان، ﴿حَرِيف﴾ معامله کونکی، صاحب د هدايې د دې لفظ معنیٰ په "خليط" سره کړې ده، د خَلِيْط څو معناوي دي چي له هغه څخه يوه معنیٰ ده: شريک، د انسان سره په ګډه کار کونکی، (معجم الوسيط، معجم لغة الفقهاء)، ﴿حانوت﴾ دوکان، پلورنځی، ﴿التنصيص﴾ د تفعيل مصدر دی: صراحت کول، وضاحت کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله خياط د کپړې له جوړولو څخه فارغه سي نو مالک هغه ته ووايي چې "تا دا کپړه زما لپاره مفت (موته) جوړه کړې ده" او خياط ووايي چې "نه! بلکي ما دا اُجرت او مزدورۍ په عوض کي جوړه کړې ده"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مالک قول معتبر دی او پر هغه اُجرت ورکول واجب نه دي؛ ځکه چې مالک د اُجرت واجبېدلو انکار هم کوي او د خياط د کار (کپړه جوړولو) د متقوّم کېدلو انکار هم کوي، او دويم طرف ته کاريګر (خياط) د دې دعویٰ کوي او د "القَوْلُ قَوْلُ المُنْكِر" والا قاعدې پر بناء قول د منکر معتبر وي، نو ځکه دلته به هم د منکر يعني د مالک قول معتبر دی.

په دې سلسله کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې که مالک د کاريګر (خياط) خليط وي يعني که د دوی په مېنځ کي (له مخکي څخه) ورکړه راکړه او معامله کېږي، نو د هغه مطابق به فيصله کېږي، يعني که مخکي د دوی په مېنځ کي مفت او بلا اُجرت ته معاسوي وي، نو د مالک قول معتبر دی، او که مخکي د دوی په مېنځ کي په اُجرت سره ورکړه راکړه سوې وي، نو د کاريګر (خياط) قول معتبر دی او پر مالک لازم دي چې هغه ته اُجرت ورکړي؛ ځکه مخکي چې د دوی په مېنځ کي کومه معامله سوې ده، هغه د دې خبري تائيد کوي چې دغه اوسنۍ معامله هم د دوی د معمول (عملي عادت) مطابق پر اُجرت واقع سوې ده.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي که چيري کاريګر د دغه کسب او پېشې لپاره دوکان خلاص کړی وي او په اُجرت سره په کار کولو مشهوره وي، نو د هغه قول معتبر دی، کنې د مالک قول معتبر دی؛ ځکه کله چې هغه د همدې کار لپاره دوکان خلاص کړی دی، نو ظاهري حالت (استصحابُ الحال) ته په کتلو سره دا داسي دي لکه کاريګر چې په صراحت سره ويلي وي چې زه د اُجرت په عوض کي کار کوم (ځکه هر څوک د مال او پيسو ګټلو لپاره دوکان خلاصوي). صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د امام صاحب قول د قياس مطابق دی؛ ځکه چې مالک د اُجرت واجبېدلو او د کار متقوّم کېدلو منکر دی، او قول د منکر معتبر وي. پاته سوه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د استحسان مسئله، نو د هغه جواب دا دی چې په ظاهري حالت (استصحابُ الحال) سره يو شی خو دفع کېدای سي لېکن په هغه سره يو شی او حکم ثابتول کېدای نه سي (لأنه حُجة دافعة لا مُثبِتة)، حال دا چې دلته کاريګر ته د دې ضرورت سته چې خپل استحقاق ثابت کړي (چې زه د اُجرت مستحق يم)، نو داسي دليل پېښول پکار دي چې په هغه سره استحقاق ثابتېدای سي او هغه شرعي ګواهي ده. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ فَسْخِ الْإِجَارَةِ

(دا) باب د اجارې فسخ کولو (په بيان کې) دی

**تشريح**: دا خو ښکاره خبره ده چې فسخ له وقوع او وجود څخه وروسته کيږي (يعني اول عقد واقع کيږي او تر هغه وروسته د عقد فسخ [ماتېدل] واقع کيږي)، نو په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د اجارې له ټولو مباحثو څخه تر فارغېدلو وروسته په آخر کې "فسخ الاجاره" بيانوي.

## د اجارې ماتولو (ختمولو) بيان

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَارًا فَوَجَدَ بِهَا عَيْبًا يَضُرُّ بِالسُّكْنٰى فرمايي: او که څوک يو کور په کرايه ونيسي بيا په هغه کې داسې عيب ومومي کوم چې د استوګنې [اوسېدلو] لپاره تاواني وي فَلَهُ الْفَسْخُ نو هغه [مستأجر] ته [د اجارې فسخ کولو] اختيار سته لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ الْمَنَافِعُ ځکه چې [په اجاره کې] پر منافعو [اوسېدلو] عقد واقع کيږي وَأَنَّهَا تُوجَدُ شَيْئًا فَشَيْئًا او منافع په لږ، لږ توګه موجوديږي [ټوله په يوه ځل نه موجوديږي] فَكَانَ هٰذَا عَيْبًا حَادِثًا قَبْلَ الْقَبْضِ نو ځکه دا موجوده عيب به له قبضه کولو څخه مخکې پيدا کېدونکی عيب وي [يعني دا به داسې عيب وي لکه د منفعت له قبضه کولو څخه مخکې پيدا سوی عيب] فَيُوْجِبُ الْخِيَارَ نو ځکه به دا [د مستأجر لپاره] اختيار واجبوي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چې په بيع کيږي ثُمَّ الْمُسْتَأْجِرُ إِذَا اسْتَوْفَى الْمَنْفَعَةَ بيا چې کله مستأجر منفعت حاصل کړي فَقَدْ رَضِيَ بِالْعَيْبِ نو هغه په عيب راضي سو فَيَلْزَمُهُ جَمِيعُ الْبَدَلِ نو ځکه پر هغه به ټوله عوض لازميږي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چې په بيع کيږي وَإِنْ فَعَلَ الْمُؤَاجِرُ مَا أَزَالَ بِهِ الْعَيْبَ او که چيرې مؤجر [په کور کې] داسې کار [ترميم او اصطلاح] وکړي چې په هغه سره موجوده عيب زائل کړي فَلَا خِيَارَ لِلْمُسْتَأْجِرِ نو بيا مستأجر لره [د اجارې فسخ کولو] اختيار نسته لِزَوَالِ سَبَبِهِ ځکه چې د اختيار سبب ختم سو.

**اللغات**: ﴿وجد﴾ د ضرب ماضي ده: پيدا کول، موندل. ﴿يضرّ﴾ د نصر مضارع ده: ضرر او نقصان رسول، ضرر من او تاواني کېدل. ﴿المعقود عليه﴾ پر کوم څه چې عقد (معامله) کيږي. ﴿شيئا

فشيئا﴾ په کراره، کراره، په لږ، لږ سره. ﴿استوفى﴾ د استفعال ماضي ده: حاصلول، ترلاسه کول.
﴿بدل﴾ عوض. ﴿زوال﴾ د نصر مصدر دی: زائلېدل، ليري کېدل، ختمېدل.

**تشريح: مسئله**: دا ده چې څرنګه په بيع کې د عيب ليدلو په صورت کې مشتري ته د بيع د فسخ کولو (سودا ماتولو) حق او اختيار حاصلېږي، همداسې که د اجارې (کرايې) په کور يا د اجارې په بل شي کې مستأجر ته يو عيب په نظر راسي او دغه عيب له اوسېدلو څخه مانع وي، نو مستأجر ته هم د فسخ کولو حق حاصلېږي؛ ځکه چې په اجاره کې معقود عليه منافع وي او منافع په لږ، لږ توګه او په تدريج سره حاصلېږي (ټوله يو ځل په قبضه کې نه راځي)، نو د اجارې په کور يا داسې بل شي کې عيب پيدا کېدل داسې سو لکه له قبضې څخه مخکې پيدا سوی عيب، او په داسې عيب سره د فسخ کولو حق حاصلېږي، نو ځکه مستأجر ته به هم د فسخ کولو حق حاصلېږي. ها! که چېرې مستأجر د دغه عيب د ليدلو باوجود منفعت حاصل کړي (يعني په کور کې واوسېږي)، نو دا د هغه له طرفه په عيب د راضي کېدلو دليل دی او په دې سره د هغه د فسخ حق ختمېږي او پر هغه ټوله کرايه لازمېږي.

او که چېرې د اجارې له فسخ کولو (ماتولو) څخه مخکې مؤجر په يو طريقه او ذريعه سره دغه عيب ختم کړي، نو د مستأجر د فسخ حق ختمېږي او پر هغه کرايه لازمېږي؛ ځکه هغه ته چې په کوم سبب سره د فسخ حق او اختيار حاصل وو، هغه ختم سو.

## هغه صورتونه چې اجاره خپله ټکښي فسخ کيږي

قَالَ: وَإِذَا خَرِبَتِ الدَّارُ فرمايي: او که چې [په أجرت نيول سوی] کور خراب سي أَوِ انْقَطَعَ شِرْبُ الضَّيْعَةِ يا د فصل داره ځمکې اوبه بندي سي أَوِ انْقَطَعَ الْمَاءُ عَنِ الرَّحٰى يا [د اوبو] له ژرندې څخه اوبه بندي سي اِنْفَسَخَتِ الْإِجَارَةُ نو اجاره فسخ کيږي لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ قَدْ فَاتَ ځکه چې معقود عليه فوت سو وَهِيَ الْمَنَافِعُ الْمَخْصُوصَةُ قَبْلَ الْقَبْضِ يعني له قبضې څخه مخکې مخصوص منافع فوت سول فَشَابَهُ فَوْتَ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ وَمَوْتَ الْعَبْدِ الْمُسْتَأْجَرِ نو دا تر قبضه کولو مخکې د مبيع فوتېدلو او د مستأجر [په أجرت نيول سوي] غلام د مړه کېدلو په څېر سو وَمِنْ أَصْحَابِنَا مَنْ قَالَ: إِنَّ الْعَقْدَ لَا يَنْفَسِخُ او زموږ له مشايخو څخه ځيني فرمايي: چې [په دغه صورتونو کې] عقد نه فسخ کيږي لِأَنَّ الْمَنَافِعَ قَدْ فَاتَتْ عَلَى وَجْهٍ يُتَصَوَّرُ عَوْدُهَا ځکه چې [دلته] منافع په داسې توګه فوت سوي دي چې د هغوی راګرځېدل [دوباره بحاله کېدل] ممکن دي فَأَشْبَهَ الْإِبَاقَ فِي الْبَيْعِ قَبْلَ الْقَبْضِ نو دا په

بیع کي تر قبضې مخکې د مبیع غلام د تښتېدلو په څېر سو وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّ الْآجِرَ لَوْ بَنَاهَا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې که مؤجر [مالک] هغه خراب سوی کور جوړ کړي لَيْسَ لِلْمُسْتَأْجِرِ أَنْ يَمْتَنِعَ وَلَا لِلْآجِرِ نو بیا مستأجر ته [له اخیستلو څخه] او مؤجر ته [له ورکولو څخه] د منع کېدلو اختیار نسته وَهٰذَا تَنْصِيصٌ مِنْهُ عَلٰى أَنَّهُ لَمْ يَنْفَسِخْ لٰكِنَّهُ يُفْسَخُ او دا روایت د امام محمد رَحِمَهُ الله له طرفه د دې خبرې صراحت کول دي چې دغه عقد اجاره په خپله نه فسخ کیږي لېکن هغه فسخ کول کېدای سي وَلَوِ انْقَطَعَ مَاءُ الرَّحٰى وَالْبَيْتُ مِمَّا يُنْتَفَعُ بِهِ لِغَيْرِ الطَّحْنِ او که چیري د ژرندې اوبه بندې سي لېکن د ژرندې کور داسي وي چې له میده کولو [اوړه جوړولو] څخه بغیر په هغه سره نوره نفع اخیستل کېدای سي فَعَلَيْهِ مِنَ الْأَجْرِ بِحِصَّتِهِ نو پر مستأجر د هغه په حساب سره اُجرت واجبیږي لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ ځکه چې [دلته] کور هم د معقود علیه یوه حصه ده.

**اللغات**: ﴿خربت﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: خرابېدل، ویجاړېدل، د نفع اخیستلو (اوسېدلو) قابل نه پاتېدل، ﴿شِرْب﴾ د اوبو واری، مراد ځني د اوبه کولو (سېرابولو) اوبه دي، ﴿الضیعة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغه څخه یوه معنیٰ ده: غله داره ځمکه، فصل داره ځمکه، صاحب د احسن الهدایې په کښت (کیتی) سره معنیٰ کړې ده، ﴿الرحیٰ﴾ ژرنده، ﴿شابه﴾ د مفاعلې ماضي ده: مشابه کېدل، ورته کېدل، په څېر کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که د اجارې په شي کې یو داسي عیب پیدا سي چې په هغه سره بالکل منفعت فوت سي، لکه کور خرابېدل، د اوبو د ژرندې یا د فصل داره (کښت لرونکي) ځمکې اوبه بندېدل او داسي نور (ځکه که کور خراب او ویران سي، نو هغه د منفعت حاصلولو [اوسېدلو] قابل نه پاتیږي، همدارنګه که د اوبو له ژرندې څخه اوبه بندې سي نو هغه د منفعت حاصلولو [چلولو او اوړه جوړولو] قابله نه پاتیږي، او که له فصل داره ځمکې څخه اوبه بندې سي نو هغه د منفعت حاصلولو [غله او فصل ترلاسه کولو] قابله نه پاتیږي)، نو په داسي صورت کې د عامو مشایخو په نیز او په ظاهر روایت کې عقد اجاره خود بخود فسخ کیږي؛ ځکه چې په اجاره کې معقود علیه منافع حاصلول وي او په دغه وجوهاتو سره په منافعو کې خرابي راځي او هغوی فوتیږي، نو څرنګه چې پر مبیع له قبضه کولو څخه مخکې که مبیع فوت (ضایع) سي یا په اُجرت اخیستل سوی غلام مړ سي، نو اجاره فسخ کیږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کې هم د معقود علیه یعني د منافعو په فوتېدلو سره اجاره فسخ کیږي.

ومن أصحابنا إلخ: د شمس الائمه سرخسي او داسي نورو مشايخو رايه دا ده چې د منافعو په فوتېدلو سره اجاره خود بخوده نه فسخ کيږي، بلکې کله چې هغه فسخ کړل سي نو بيا فسخ کيږي او له فسخ کولو څخه مخکې مستأجر ته دا اختيار حاصليږي چې هغه د منافعو دوباره بحاله کېدلو ته انتظار وکړي (لېکن که هغه انتظار نه کوي او اجاره فسخ کړي، نو بيا اجاره فسخ کيږي)؛ لکه کله چې مبيع غلام وتښتيږي، نو بيع په خپله نه فسخ کيږي او مشتري ته د انتظار اختيار ورکول کيږي، همداسي به دلته هم مستأجر ته اختيار ورکول کيږي؛ ځکه چې دلته دوباره د منافعو د پيدا کېدلو امکان او توقع سته، همدا وجه ده که مؤجر (مالک) په يو طريقه او ذريعه سره خرابي او عيب ليري کړي او د منافعو د پيدا کېدلو لاره هواره کړي مثلاً خراب سوی کور جوړ کړي، نو د مؤجر د فسخ حق ختميږي، له دې څخه هم معلومه سوه چې د منافعو په فوتېدلو سره د اجارې پر فسخ کېدلو مهر لګول او هغه په حتمي توګه فسخ ګرځول جائز نه دي. ها! که چيري عيب او خرابي ليري نه کړی سي، نو بيا به هغه فسخ کول کيږي.

ولو انقطع ماء الرحی إلخ: د دې حاصل دا دی که يو چا اوبو ژرنده د کور يا خوني سره په کرايه اخيستې وي، بيا د اوبو د ژرندي اوبه بندي سي او ژرنده ټپه ودريږي، لېکن له هغه څخه بغير هم کور يا خونه د اوسېدلو قابله وي، نو مستأجر دي د اجارې اُجرت (کرايه) تقسيم کړي او د ژرندي په مقابله کي چي کوم اُجرت راځي هغه دي وضع (کاټ) کړي او پاته اُجرت دي مؤجر ته ورکړي او اجاره دي نه فسخ کوي؛ ځکه چي دلته کور يا خونه هم د معقود عليه يو حصه ده او دا حصه صحيح سالمه ده، نو ځکه په دې حصه کي به اجاره صحيح کيږي. (احسن الهدايه)

## د يوه عاقد په مرګ سره د اجارې فسخ کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ وَقَدْ عَقَدَ الْإِجَارَةَ لِنَفْسِهِ فرمايي: او کله چي له دواړو عاقدينو [مؤجر او مستأجر] څخه يو مړ سي حال دا چي هغه د خپل ځان لپاره اجاره کړې وي اِنْفَسَخَتِ الْإِجَارَةُ نو اجاره فسخ کيږي لِأَنَّهُ لَوْ بَقِيَ الْعَقْدُ ځکه که دا عقد اجاره باقي پاته سي تَصِيرُ الْمَنْفَعَةُ الْمَمْلُوكَةُ لَهُ أَوِ الْأُجْرَةُ الْمَمْلُوكَةُ لَهُ لِغَيْرِ الْعَاقِدِ مُسْتَحَقَّةً بِالْعَقْدِ نو د مؤجر مملوکه منفعت يا د مستأجر مملوکه اُجرت به په دغه عقد سره د داسي کس مستحق وګرځي کوم چي عاقد نه دی لِأَنَّهُ يَنْتَقِلُ بِالْمَوْتِ إِلَى الْوَارِثِ ځکه چي د عاقد په مرګ سره د هغه ټوله ترکه [ميراث] د وارث وطرف ته منتقل کيږي وَذٰلِكَ لَا يَجُوزُ او دا جائز نه دي وَإِنْ عَقَدَهَا لِغَيْرِهِ [ها!] که چيري مړه عاقد د بل چا لپاره عقد کړی وي

لَمْ تَنْفَسِخْ نو اجاره نه فسخ كيږي مِثْلُ الْوَكِيلِ وَالْوَصِيِّ وَالْمُتَوَلِّي فِي الْوَقْفِ لکه وکيل، وصي او د وقف متولي لِانْعِدَامِ مَا أَشَرْنَا إِلَيْهِ مِنَ الْمَعْنَى ځکه کوم سبب ته چې موږ اشاره وکړه هغه [دلته] نسته [يعني په دې صورت کې د مستأجر مملوکه منفعت د غير عاقد مستحق ګرځېدل معدوم دي].

**اللغات:** ﴿المتعاقدين﴾ د تفاعل له بابه تثنيه اسم فاعل دی؛ دوه کسان کوم چې يوه د بل سره عقد او معامله کړې وي، ﴿انفسخ﴾ فسخ کېدل، ماتېدل ختمېدل، ﴿وصي﴾ چا ته چې مړي د يو شي وصيت کړی وي، څوک چې مړي د يو کار ذمه وار ګرځولی وي، ﴿مملوکة﴾ کوم شی چې د يو چا په خپل ملکيت کې وي (تر ملکيت لاندې شی)، ﴿المتولي﴾ سرپرست، هغه کس چې د وقف شُده ځمکې يا داسې بل شي اختيار د هغه په لاس کې وي، ﴿انعدام﴾ د انفعال مصدر دی: نيستي کېدل (نه موجودېدل)، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مؤجر (مالک) يا مستأجر مړ سي او هغه خاص د خپل ځان لپاره عقد اجاره کړی وي يعني د يو چا له طرفه يې د وکيل او وصي په توګه اجاره نه وي کړې، نو د هغه په مرګ سره سمدستي اجاره فسخ کيږي او دا معامله د هغه د وارثانو وطرف ته نه منتقل کيږي؛ ځکه که چيري مړ کېدونکی کس مؤجر (مالک) وي او اجاره باقي پرېښوول سي (يعني د وارث وطرف ته منتقل کړی سي) نو د مؤجر مملوکه منفعت به د هغه وارث (ميراث خور) ته حاصل سي همدارنګه که مړ کېدونکې کس مستأجر وي او اجاره باقي پرېښوول سي نو د هغه مملوکه اُجرت به د هغه وارث ته حاصل سي، او وارث عاقد نه دی، حال دا چې دغه ملکيت په عقد (عقدِ اجاره) سره ثابت سوی دی او د غير عاقد لپاره ثابت بالعقد شی اخيستل جائز نه دي، نو ځکه د عاقد په مرګ سره سمدستي اجاره فسخ کيږي. ها! که چيري مړ کېدونکی عاقد د يو چا له طرفه وکيل يا وصي وي يا د وقف متولي وي او هغه د بل چا لپاره عقد اجاره کړی وي، نو د هغه په مړ کېدلو سره اجاره نه فسخ کيږي بلکې هغه چې د کوم کس لپاره عقد کړی وي، دغه عقد او د عقد لوازمات د هغه کس وطرف ته منتقل کيږي؛ ځکه دلته چې کوم مړ کېدونکی عاقد دی، هغه په حقيقت کې د اصل عاقد ترجمن (خبره نقلونکی) دی او څرنګه چې اصل عاقد ژوندی پاته دی، نو د ترجمن په مړ کېدلو سره دغه عقد او د عقد سره متعلق ټوله امور د اصل عاقد وطرف ته منتقل کيږي او مخکنۍ خرابي دلته نه لازميږي. (احسن الهدايه)

## په اجاره کي خيارِ شرط لګول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَيَصِحُّ شَرْطُ الْخِيَارِ فِي الْإِجَارَةِ فرمايي: چي [زمونږ په نيز] په اجاره کي د خِيار شرط [لګول] صحيح دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَصِحُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي صحيح نه دي لِأَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ لَا يُمْكِنُهُ رَدُّ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ بِكَمَالِهِ لَوْ كَانَ الْخِيَارُ لَهُ ځکه که چيري خِيار د مستأجر لپاره وي نو د هغه لپاره معقود عليه په پوره توګه واپس کول ممکن نه دي لِفَوَاتِ بَعْضِهِ ځکه چي د معقود عليه څه حصه فوتيږي وَلَوْ كَانَ لِلْمُؤَجِّرِ فَلَا يُمْكِنُهُ التَّسْلِيمُ أَيْضًا عَلَى الْكَمَالِ او که چيري خِيار د مؤجر [مالک] لپاره وي نو د هغه لپاره هم په پوره توګه د معقود عليه ورسپارل ممکن نه دي وَكُلُّ ذٰلِكَ يَمْنَعُ الْخِيَارَ او دا هر شی اختيار منع کوي وَلَنَا: أَنَّهُ عَقْدُ مُعَامَلَةٍ لَا يُسْتَحَقُّ الْقَبْضُ فِيهِ فِي الْمَجْلِسِ زمونږ دليل دا دی: چي اجاره د معاوضې عقد دی او په هغه کي په مجلس کي دننه قبضه شرط نه ده فَجَازَ اشْتِرَاطُ الْخِيَارِ فِيهِ كَالْبَيْعِ نو ځکه په هغه کي د خِيار شرط لګول داسي دي لکه په بيع کي د خِيار شرط لګول وي وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا دَفْعُ الْحَاجَةِ او په اجاره او بيع کي علت جامعه د حاجت دفع کول دي وَفَوَاتُ بَعْضِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ فِي الْإِجَارَةِ لَا يَمْنَعُ الرَّدَّ بِخِيَارِ الْعَيْبِ او په اجاره کي د معقود عليه بعضي حصه فوتېدل د خِيار عيب په وجه واپس کول نه منع کوي فَكَذَا بِخِيَارِ الشَّرْطِ نو همداسي به د خِيار شرط په وجه واپس کول [هم نه منع کوي] بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع وَهٰذَا لِأَنَّ رَدَّ الْكُلِّ مُمْكِنٌ فِي الْبَيْعِ دُونَ الْإِجَارَةِ او دا [د اجارې او بيع په مينځ کي فرق] ځکه دی چي په بيع کي د ټوله مبيع واپس کول ممکن دي، نه په اجاره کي فَيُشْتَرَطُ فِيهِ دُونَهَا نو ځکه په بيع کي د ټوله مبيع واپس کول شرط دي، نه په اجاره کي وَلِهٰذَا يُجْبَرُ الْمُسْتَأْجِرُ عَلَى الْقَبْضِ إِذَا سَلَّمَ الْمُؤَاجِرُ بَعْدَ مُضِيِّ بَعْضِ الْمُدَّةِ همدا وجه که د اجارې له څه مودت تېرېدلو څخه وروسته مؤجر [مالک] شی و مستأجر ته وسپاري، نو مستأجر به پر هغه په قبضه کولو باندي مجبورول کېږي.

**اللغات:** ﴿ردّ﴾ د نصر مصدر دی: واپس کول. ﴿فوات﴾ د نصر مصدر دی: فوتېدل، ختمېدل. ﴿يُجبر﴾ د افعال مضارع ده: مجبوره کول، په زوره په کول. ﴿مُضيّ﴾ د ضرب مصدر دی: وخت تېرېدل (پوره کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نيز په اجاره کې خيار شرط لګول صحيح او جائز دي (نو که چيرې د مؤجر يا مستأجر لپاره خيار شرط وي، نو هغه د خپل خيار په موودت [درې ورځو] کې اجاره فسخ کولای سي)، ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په عقدِ اجاره کې خيار شرط لګول صحيح نه دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې په اجاره کې معقود عليه منفعت وي او منفعت شيئًا فشيئًا او يومًا فيومًا حاصليږي، لهذا نه مستأجر هغه کما حقه واپس کولای سي او نه مؤجر په پوره توګه هغه مستأجر ته ورکولای سي، يعني که چيرې خيار شرط د مستأجر لپاره وي، نو د خيار په موودت کې چې کو منافع فوت سي، مستأجر لره دا ممکن نه دي چې هغه منافع مؤجر (مالک) ته واپس کړي، حال دا چې په خيار شرط سره د واپس کولو په صورت کې د ټولو منافعو واپس کول پکار دي. او که چيرې خيار شرط د مؤجر لپاره ثابت وي، نو هغه هم مستأجر ته پوره معقود عليه (منافع) نه سي ورسپارلای؛ ځکه چې د خيار په موودت کې څه منافع تېر او فوت سي، نو ګواکي له ورسپارلو څخه مخکې د بائع په قبضه کې څه مبيع ضايع سوه، او له دغه دوو شيانو څخه هر شی (يعني د واپس کولو يا د ورسپارلو ناممکن کېدل) د خيار له ثابتېدلو څخه مانع دي.

**زموږ دليل**: دا دی چې اجاره د معاوضې عقد دی (يعني هر عاقد يو بل ته عوض ورکوي، ځکه مستأجر اُجرت او کرايه ورکوي او مستأجر هغه ته خپل شی ورکوي، لنډه دا چې اجاره عقد معاوضه دی) چې د هغه لپاره د مجلس قبضه ضروري نه ده (لکه په سَلم او صَرف کې چې ضروري ده)، نو ځکه د بيع په څېر به په اجاره کې هم خيار شرط لګول صحيح وي او په بيع او اجاره کې علت جامعه د ضرورت دفع کول دي چې عاقد دوې، درې ورځې فکر او غور وکړي چې په نقصان او تاوان کې مبتلا نه سي.

وفوات بعض المعقود عليه: او پاته سوه د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وينا چې د خيار شرط په وجه د مقعود عليه (منافعو) څه حصه فوتيږي، نو د هغه جواب دا دی چې کله په اجاره کې د معقود عليه څه حصه فوتېدل بالاتفاق "د خيار عيب په وجه" واپس کول نه منع کوي (يعني د څه منافعو د فوتېدلو په صورت کې مستأجر بالاتفاق د خيار عيب پر بناء مبيع واپس کولای سي)، نو ښکاره خبره ده چې د معقود عليه څه حصه فوتېدل به "د خيار شرط په وجه واپس کول" هم نه منع کوي. د دې په خلاف په بيع کې که د مبيع څه حصه فوت سي نو دا ځکه د خيار شرط له ثابتېدلو څخه مانع دي چې په بيع کې د ټوله مبيع واپس کول ممکن دي؛ ځکه په بيع کې د عقد کولو پر مهال ټوله مبيع موجوده وي، حال دا چې په اجاره کې د عقد کولو پر مهال ټوله معقود عليه (منافع) موجود نه وي، نو ځکه په بيع کې د ټوله مبيع واپس کول شرط کړی سوي دي، نه په اجاره کې. ولهذا يُجبَر المستأجر... إلخ د دې تشريح په حاشيه کې په آسانه توګه ذکر سوې ده.

## د عذر په وجه د اجارې فسخ کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَتُفْسَخُ الْإِجَارَةُ بِالْأَعْذَارِ عِنْدَنَا فرمايي: چي زموږ په نيز د عذرونو په وجه اجاره فسخ کول کېداى سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تُفْسَخُ إِلَّا بِالْعَيْبِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي صرف د عيب په وجه اجاره فسخ کول کېداى سي لِأَنَّ الْمَنَافِعَ عِنْدَهُ بِمَنْزِلَةِ الْأَعْيَانِ حَتَّى يَجُوزَ الْعَقْدُ عَلَيْهَا ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز منافع د اعيانو [شيانو] په درجه کي دي، تر دې چي پر منافعو عقد کول جائز دي فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو [عقد اجاره] د بيع سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّ الْمَنَافِعَ غَيْرُ مَقْبُوضَةٍ وَهِيَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهَا زموږ دليل دا دی: چي پر منافعو قبضه نه کيږي حال دا چي [په اجاره کي] پر هغوی عقد واقع کيږي فَصَارَ الْعُذْرُ فِي الْإِجَارَةِ كَالْعَيْبِ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْبَيْعِ نو په اجاره کي عذر [پيدا کېدل] داسي وګرځېدی لکه په بيع کي له قبضې څخه مخکي عيب [پيدا کېدل] فَتَفْسُخُ بِهِ نو ځکه د عذر په وجه به اجاره فسخ کيږي إِذِ الْمَعْنَى يَجْمَعُهُمَا ځکه سبب دوی دواړو لره جامع [جمع کونکی] دی وَهُوَ عَجْزُ الْعَاقِدِ عَنِ الْمُضِيِّ فِي مُوجَبِهِ إِلَّا بِتَحَمُّلِ ضَرَرٍ زَائِدٍ لَمْ يَسْتَحِقَّ بِهِ او هغه [سبب] د عقد په مُوجب [مقتضا] کي له مدوامت کولو څخه [يعني د عقد د تقاضا له نافذولو څخه] عاجزه کېدل دي مګر د داسي اضافي ضرر په زغملو سره چي هغه په عقد سره مستحق سوی [ثابت سوی] نه دی [په بله وينا: او هغه سبب دا دی چي عاقد د عقد په نافذولو او باقي پرېښوولو سره نور داسي نقصان پورته کوي چي هغه د عقد په وجه ثابت سوی نه دی] وَهَذَا هُوَ مَعْنَى الْعُذْرِ عِنْدَنَا او همدا زموږ په نيز د عذر مطلب دی وَهُوَ كَمَنِ اسْتَأْجَرَ حَدَّادًا لِيَقْلَعَ ضِرْسَهُ لِوَجَعٍ بِهِ او د دې مثال دا دی لکه يو څوک چي غاښ کښونکی ډاکټر په اُجرت ونيسي چي هغه د ده د زامي دردمن غاښ وکاږي فَسَكَنَ الْوَجَعُ بيا [د هغه تر کښلو مخکي] درد ختم سي أَوِ اسْتَأْجَرَ طَبَّاخًا لِيَطْبُخَ لَهُ طَعَامَ الْوَلِيمَةِ يا يو اشپز په اُجرت ونيسي چي هغه د ده د لپاره د واده د مېلمستيا خوراک پوخ کړي فَاخْتَلَعَتْ مِنْهُ بيا [تر هغه مخکي] ښځه د ده سره خلع وکړي تَفْسَخُ الْإِجَارَةُ نو اجاره فسخ کيږي لِأَنَّ فِي الْمُضِيِّ عَلَيْهِ إِلْزَامَ ضَرَرٍ زَائِدٍ لَمْ يَسْتَحِقَّ بِالْعَقْدِ ځکه چي [په دې صورت کي] د عقد اجارې په نافذولو کي [پر عاقد] د داسي ضرر لازمول سته چي هغه په عقد سره مستحق [ثابت] سوی نه دی [يعني د اجارې په نافذولو کي پر عاقد داسي ضرر لازميږي کوم چي په عقد اجاره سره نه دی ثابت سوی].

**اللغات**: ﴿المضيّ﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب په صله کې چې کلمه "فِيْ" يا "عَلیٰ" راسي لکه دلته، نو معنیٰ يې ده: مداومت کول، نافذول، جاري کول (باقي پرېښوول)، پوره کول، ﴿تحمّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: زغمل (برداشت کول)، ضرر زغمل، نقصان او ضرر پر خپل ځان اخيستل (تاوان پورته کول)، ﴿حداد﴾ دا خو په اصل کې آهنګر (پښ) ته وايي کوم چې اوسپنيي جوړوي او سموي، دلته څني مراد هغه ډاکټر دی کوم چې غاښونه کاږي، او د دې وجه دا ده چې د مصنف رَحِمَهُ الله په ښار او هغه ته په څرمه نورو ښارونو کې به د غاښ کښلو کار غالباً حداد کوی، ﴿الضِرْس﴾ جمع يې أضْرَاس راځي لکه د حِمْلٌ جمع چې أحْمَال راځي: د زامي غاښ (چې په هغه سره خوراک ژوول کيږي)، ﴿الوليمة﴾ هغه خوراک او مېلمستيا کوم چې د واده په خوشحالۍ او مبارکۍ کې تيار کړی سي (په جديد عربي کې د عامې مېلمستيا خوراک ته هم وايي لکه مخکې چې موږ ذکر کړه، خو دلته ښکاره خبره ده چې د واده طعام څني مراد دی)، ﴿فاختلعت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: خلع اخيستل، يعني خاوند ته مال ورکول او د مال په عوض کې له هغه څخه طلاق اخيستل.

**تشريح**: د عبارت له حل څخه مخکې په دې ځان پوه کړئ! چې الأعْذَار جمع د عُذْرٌ ده او دلته له عذر څخه مراد هغه ضرر دی کوم چې د عقد کولو پر مهال موجود نه وي بلکې وروسته پيدا سي لېکن د هغه وجود خارجي وي يعني هغه په عقد سره ثابت سوی او موجود سوی نه وي او د عاقد لپاره د دغه ضرر له زغملو څخه بغير د عقد نافذول ممکن نه وي.

د مسئلې حاصل دا دی چې زموږ په نېز د عذر په وجه اجاره فسخ کېدای سي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز صرف د عيب په وجه اجاره فسخ کول جائز دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې منافع د اعيانو په درجه کې دي، يعني لکه څرنګه چې پر شيانو عقد واقع کېدای سي، همداسې د شيانو پر منافعو هم عقد واقع کېدای سي، نو په دې حواله سره اجاره د بيع سره مشابه ده، او بيع د اعذارو په وجه نه سي فسخ کېدای، نو ځکه اجاره به هم د اعذارو په وجه نه سي فسخ کېدای.

**زموږ دليل**: دا دی چې په اجاره کې منافع معقود عليه وي حال دا چې د عقد پر مهال هغوی موجود نه وي او پر هغوی قبضه نه کيږي (ځکه منافع په کراره، کراره حاصلېږي او په لږ، لږ توګه پر هغوی قبضه ثابتېږي)، لهذا په اجاره کې عذر پيدا کېدل داسې دي لکه په بيع کې د مبيع له قبضه کولو څخه مخکې عيب پيدا کېدل، او تاسو ته معلومه ده چې که په بيع کې پر مبيع له قبضه کولو څخه مخکې عيب پيدا سي، نو بيع فسخ کېدای سي، نو ځکه د عذر پيدا کېدلو په وجه به اجاره هم فسخ کېدای

سي؛ ځکه چي د فسخ کېدلو سبب په اجاره او بيع دواړو کي يو دی يعني د زايد ضرر له زغملو څخه بغير د عقد نفاذ ناممکن کېدل (يعني هغه سبب دا دی چي دلته په بيع او اجاره دواړو کي د زايد او اضافي ضرر له تحمل څخه بغير عقد باقي پرېښوول او نافذول ممکن نه دي) او زموږ په نېز د عذر همدغه معنیٰ ده چي که عاقد اجاره باقي پرېږدي نو پر هغه داسي نقصان لازمېږي کوم چي په عقد اجاره سره پر هغه ثابت سوی نه وي (بلکي يو زايد او اضافي نقصان وي). او د دې مثال داسي دی لکه د يو سړي غاښ چي درد شروع کړي او هغه ډاکټر ته ولاړ سي چي په اُجرت (په پيسو) سره د ده غاښ وکاږي، بيا له غاښ کښلو څخه مخکي درد ختم سي، نو اجاره فسخ کيږي؛ ځکه چي اوس د اجارې په باقي پرېښوولو کي د صحيح سالم غاښ کښل لازمېږي او د سالم غاښ کښل د عقد اجاره په وجه پر مستأجر ثابت سوي (لازم سوي) نه دي.

او بل مثال دا چي که يو خاوند (زوم) د وليمې د خوراک پخولو لپاره يو اشپز په اُجرت (په مزدوری) ونيسي، ليکن بيا د وليمې له خوراک پخولو څخه مخکي ښځه د هغه سره خلع وکړي او جلا سي (يعني اشپز تر اوسه د واده دېکونه باندي کړي نه وي چي د خاوند او ناوکۍ په مينځ کي څه شخړه او ستونزه راسي او ناوکۍ خاوند ته څه مال ورکړي او له هغه څخه طلاق واخلي) نو په دې سره د اشپز او خاوند تر مينځ اجاره هم فسخ کيږي؛ ځکه که اجاره فسخ نه سي بلکي پر مستأجر (خاوند) دا لازم کړی سي چي هغه به (تر خلع او د ښځي تر جلا کېدلو وروسته هم) په اشپز خوراک پخوي او اشپز ته به اُجرت ورکوي، نو پر مستأجر (خاوند) به زايد ضرر لازم سي کوم چي په عقد اجاره سره پر هغه ثابت سوی نه دی.

لنډه دا چي څرنګه په دغه دوو صورتونو کي د عذر په وجه اجاره فسخ کيږي؛ ځکه چي دلته هم د زايد ضرر له زغملو څخه بغير د اجارې نافذول (باقي پرېښوول) ممکن نه دي، خاص همدغه ډول د نورو عذرونو (د نورو زايد غيرِ مستحق بالعقد ضررونو) په وجه به هم اجاره فسخ کېدای سي.

## د مال ختمېدلو او کاروبار بندېدلو په صورت کي د اجارې حکم

وَكَذَا مَنِ اسْتَأْجَرَ دُكَّانًا فِي السُّوقِ لِيَتَّجِرَ فِيهِ او که څوک د تجارت [کاروبار] کولو لپاره په بازار کي يو دوکان په کرايه ونيسي فَذَهَبَ مَالُهُ بيا د هغه [ټوله] مال ختم سي وَكَذَا إِذَا أَجَرَ دُكَّانًا أَوْ دَارًا ثُمَّ أَفْلَسَ وَلَزِمَتْهُ دُيُونٌ لَا يَقْدِرُ عَلَى قَضَائِهَا إِلَّا بِثَمَنِ مَا أَجَرَ او همدارنګه که څوک دوکان يا کور [يو چا ته] په کرايه ورکړي بيا دئ مفلسه [دېوالي] سي او پر ده دومره قرضونه لازم سي چي د هغوی پر اداء کولو قدرت نه لري مګر د هغه [دوکان يا کور] په ثمن سره کوم چي يې په اُجرت ورکړي دي فَسَخَ الْقَاضِي الْعَقْدَ وَبَاعَهَا فِي الدُّيُونِ نو قاضي دي عقد فسخ کړي او هغه [کور او دوکان] دي په قرض کي خرڅ

کړي لِأَنَّ فِي الْجَرْيِ عَلَى مُوْجَبِ الْعَقْدِ إِلْزَامَ ضَرَرٍ زَائِدٍ لَمْ يُسْتَحَقَّ بِالْعَقْدِ ځکه چي د عقد پر مُوجب [تقاضا] د عمل کولو په صورت کي [پر ده] د داسي زايد ضرر لازمول سته کوم چي په عقد سره مستحق [ثابت] سوی نه دی وَهُوَ الْحَبْسُ او زايد ضرر [د ده] بندي کېدل دي لِأَنَّهُ قَدْ لَا يُصَدَّقُ عَلَى عَدَمِ مَالٍ آخَرَ ځکه چي ځيني وخت د بل مال پر نشتوالي د ده تصديق نه کيږي ثُمَّ قَوْلُهُ فَسَخَ الْقَاضِي الْعَقْدَ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يَفْتَقِرُ إِلَى قَضَاءِ الْقَاضِي فِي النَّقْضِ بيا د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول چي "قاضي دي عقد فسخ کړي" و دې طرف ته اشاره ده چي د دغه عقد په ماتولو کي د قاضي فيصلې ته ضرورت سته وَهَكَذَا ذَكَرَ فِي الزِّيَادَاتِ فِي عُذْرِ الدَّيْنِ او همداسي امام محمد رَحِمَهُ الله په زيادات کي ذکر کړي دي وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَكُلُّ مَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ عُذْرٌ فَإِنَّ الْإِجَارَةَ فِيهِ تَنْتَقِضُ او په جامع صغير کي يې ويلي دي: چي هغه ټوله امور کوم چي موږ دلته ذکر کړه هغوی عذر دي او په هغوی سره اجاره ماتيږي وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَا يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى قَضَاءِ الْقَاضِي دا [قول] پر دې دلالت کوي چي په ماتولو کي د قاضي فيصلې ته ضرورت نسته وَوَجْهُهُ: أَنَّ هَذَا بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْمَبِيعِ او د دې [قول] دليل دا دی: چي دا په مبيع کي له قبضې څخه مخکي د عيب [پيدا کېدلو] په درجه کي دي عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سوي فَيَتَفَرَّدُ الْعَاقِدُ بِالْفَسْخِ نو ځکه عاقد به د عقد په فسخ کولو کي مستقل [خود مختاره] وي وَوَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّهُ فَصْلٌ مُجْتَهَدٌ فِيهِ او د اول قول دليل دا دی: چي دا مختلف فيه مسئله ده فَلَا بُدَّ مِنْ إِلْزَامِ الْقَاضِي نو ځکه د قاضي له طرفه لازمول ضروري دي وَمِنْهُمْ مَنْ وَفَّقَ فَقَالَ: إِذَا كَانَ الْعُذْرُ ظَاهِرًا او ځيني مشايخو [د دواړو قولونو په مينځ کي] موافقت کړی دی او داسي يې ويلي دي: چي که چيري عذر ښکاره وي لَا يَحْتَاجُ إِلَى الْقَضَاءِ نو د قاضي فيصلې ته ضرورت نسته وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ظَاهِرٍ كَالدَّيْنِ او که چيري عذر ښکاره نه وي لکه قرض يَحْتَاجُ إِلَى الْقَضَاءِ نو د قاضي فيصلې ته ضرورت سته لِظُهُورِ الْعُذْرِ د دې لپاره چي عذر ښکاره سي.

**اللغات**: ﴿يتجر﴾ د افتعال مضارع ده: تجارت کول، ﴿أفلس﴾ د افعال ماضي ده: مفلسه کېدل، دېوالي کېدل، ﴿يفتقر﴾ د افتعال مضارع ده: محتاجه کېدل، ضرورت پېښېدل، ﴿يتفرّد﴾ د تفعّل مضارع ده: منفرد کېدل، تنها کېدل (په يو کار کي يوازينی کېدل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د کاروبار لپاره په بازار او مارکېټ کي یو دوکان په کرایه ونیسي، لېکن له کاروبار کولو څخه مخکي د هغه ټوله سرمایه ضایع او ختم سي، یا یو چا خپل دوکان یا کور بل چا ته په کرایه ورکړی وي، لېکن بیا پر هغه د خلکو دومره قرضونه لازم سي چي د دغه کرایې والا دوکان یا کور له خرڅولو څخه بغیر د هغوی اداء کول ممکن نه وي، نو دغه دواړه صورتونه په عذر کي داخل دي او د دغو په وجه اجاره فسخ کول جائز او صحیح دي؛ ځکه چي د اجارې په نافذولو او باقي پرېښوولو کي پر مستأجر او مؤجر دواړو یعني په اول صورت کي پر مستأجر او په دویم صورت پر مؤجر داسي زاید ضرر لازمیږي کوم په عقد سره پر دوی ثابت سوی (لازم سوی) نه دی، د اول صورت ضرر خو ښکاره دی، او په دویم صورت کي زاید ضرر بندي کېدل (قېد کېدل) دي چي که دغه مؤجر قرضونه اداء نه کړي نو حکم دا دی چي قاضي به هغه نیسي او بندیخانې ته به یې اچوي په دې شرط چي د هغه (مؤجر) سره بل مال هم موجود وي او ځیني وخت پر دې خبره د هغه (مؤجر) تصدیق نه سي کېدای چي زما سر بل مال نسته (ځکه چي ځیني کسانو خپل بعضي مالونه پټ کړي وي چي په هغه یې هیڅوک خبر کړی نه وي).

ثم قوله فسخ القاضي إلخ: یعني امام قدوري رَحِمَهُ الله چي په مختصر القدوري کي دا حکم ذکر کړی دی "فَسَخَ الْقَاضِي الْعَقْدَ" (چي قاضي دي دغه عقدِ اجاره فسخ کړي)، دا ودې خبري ته اشاره ده چي د دغه عقد په فسخ کولو کي د قاضي فیصلې ته ضرورت سته یعني قاضي به د هغه د فسخ کېدلو (ماتېدلو) فیصله کوي (شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله همدې ته صحیح ویلي دي)، همدارنګه د قرض د عذر په هکله په زیادات کي هم دغه حکم ذکر سوی دی. د دې په خلاف په جامع صغیر کي د عذر په هکله د دې خبري صراحت سوی دی چي د عذر په وجه اجاره خود بخوده فسخ کیږي، نو دغه صراحت ته په کتلو سره د اجارې فسخ کولو لپاره د قاضي فیصلې ته ضرورت نسته؛ د دغه قول دلیل دا دی چي په اجاره کي عذر پیدا کېدل داسي دي لکه په مبیع کي له قبضې څخه مخکي عیب پیدا کېدل، او دا ښکاره خبره ده چي که تر قبضې مخکي مبیع عیبداره سي، نو د عقد فسخ کولو لپاره د قاضي فیصلې ته ضرورت نه پرېوځي، نو ځکه د عذر پیدا کېدلو په صورت کي به هم د عقد اجارې فسخ کولو لپاره د قاضي فیصلې ته ضرورت نه وي.

د اول قول یعني کوم چي په زیادات کي ذکر سوی دی، د هغه دلیل دا دی چي د عذر په وجه د اجارې فسخ کېدل مختلف فیه دي ځکه چي د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د اعذارو په وجه اجاره نه فسخ کیږي: نو ځکه دا ضروري سوه چي قاضي په خپل حکم او فیصله سره د اجارې فسخ کول لازم کړي. ځیني مشایخو د زیادات او جامع صغیر په دواړو قولونو کي داسي تطبیق ورکړی دی

چي که عذر بالکل ښکاره وي، نو د قاضي له فيصلې څخه بغير اجاره فسخ کيږي (والعذر الظاهر مثل استيجار الحدّاد لقلع الضرس أو الطّباخ لطبخ طعام الوليمة)، او که عذر ښکاره نه وي، نو په دغه صورت کي د اجارې فسخ کولو لپاره د قاضي فيصلې ته ضرورت پرېوځي د دې لپاره چي عذر څرګند سي او دواړه عاقدين پر دغه فسخ متفق او مطمئن سي.

## د سفر لپاره په کرايه د څاروي نيولو په صورت کي د يو عذر پېښېدلو حکم او تفصيل

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً لِيُسَافِرَ عَلَيْهَا او که څوک د دې لپاره يو څاروی په کرايه ونيسي چي پر هغه سفر وکړي ثُمَّ بَدَا لَهُ مِنَ السَّفَرِ بيا هغه ته له سفر څخه [منع کونکې] يو خبره ښکاره سي [د يو مانع په وجه له سفر څخه د هغه رايه واوړي] فَهُوَ عُذْرٌ نو دا [د اجارې فسخ کېدلو لپاره] عذر دی لِأَنَّهُ لَوْ مَضَى عَلَى مُوجَبِ الْعَقْدِ ځکه که هغه [اوس] د عقد پر مقتضا مداومت وکړي [يعني که هغه اوس هم پر عقدِ اجاره باقي پاته سي او هغه نافذ کړي] يَلْزَمُهُ ضَرَرٌ زَائِدٌ نو پر هغه به اضافي ضرر لازم سي لِأَنَّهُ رُبَّمَا يَذْهَبُ لِلْحَجِّ فَذَهَبَ وَقْتُهُ ځکه کېدای سي چي هغه حج ته ځي ليکن د حج وخت ختم سي أَوْ لِطَلَبِ غَرِيمِهِ فَحَضَرَ يا هغه د خپل مقروض [پور وړي] د لټون لپاره ځي ليکن هغه په خپله حاضر سي أَوْ لِلتِّجَارَةِ فَافْتَقَرَ يا هغه د کاروبار لپاره ځي ليکن هغه غريب سي [مال يې ختم سي] وَإِنْ بَدَا لِلْمُكَارِي او که چيري په کرايه ورکونکي کس [يعني د څاروي مالک] ته [له سفر کولو څخه مانع] يو خبره ښکاره سي [يعني داسي عذر ورته پېښ سي چي د هغه په وجه په سفر نه سي تللای يعني د مستأجر د څاروي سره نه سي تللای] فَلَيْسَ ذَلِكَ بِعُذْرٍ نو دا [د اجارې فسخ کېدلو لپاره] عذر نه دی لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يَقْعُدَ وَيَبْعَثَ الدَّوَابَّ عَلَى يَدِ تِلْمِيذِهِ أَوْ أَجِيرِهِ ځکه د هغه لپاره دا ممکنه ده چي خپله کښېني او د خپل يو شاګرد يا مزدور په لاس څاروي واستوي [يعني هغه داسي کولای سي چي د خپل څاروي د څارني لپاره خپل يو شاګرد يا مزدور د مستأجر سره واستوي، نو ځکه دا عذر نه دی شمارل سوی] وَلَوْ مَرِضَ الْمُؤَاجِرُ فَقَعَدَ او که چيري مؤجر [مکاري] مريض سي او [بالکل له تګ کولو څخه] کښېني فَكَذَا الْجَوَابُ عَلَى رِوَايَةِ الْأَصْلِ نو د مبسوط د روايت مطابق هم دغه حکم دی وَذَكَرَ الْكَرْخِيُّ أَنَّهُ عُذْرٌ ليکن امام کرخي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي دا هم [د اجارې فسخ کېدلو لپاره] عذر دی لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ ضَرَرٍ ځکه چي دا هم له ضرر څخه خالي نه دي [ځکه چي له مؤجر څخه بغير بل څوک (شاګرد او مزدور) د هغه پر څاروي پوره شفقت او د څاروي پوره څارنه

نه کوي] فَيَنْدَفِعُ عَنْهُ عِنْدَ الضَّرُورَةِ دُوْنَ الِاخْتِيَارِ نو ځکه د ضرورت [مرض] په وخت کي به له مؤجر شخصه دا ضرر لیري کول کیږي، نه د اختیار په حالت کي [یعني له ضرورت شخه بغیر په عام حالت کي به له هغه شخصه دا ضرر نه دفع کیږي او دا به عذر نه شمارل کیږي] وَمَنْ آجَرَعَبْدَهُ ثُمَّ بَاعَهُ او که څوک خپل غلام په أُجرت ورکړي بیا هغه خرڅ کړي فَلَيْسَ بِعُذْرٍ نو دا عذر نه دی لِأَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ الضَّرَرُ بِالْمُضِيِّ عَلٰى مُوجِبِ عَقْدٍ ځکه [دلته] د عقد پر مقتضا په مداومت کولو سره [یعني د عقدِ اجاره په باقي پرېښوولو او نافذولو سره] پر مؤجر هیڅ ضرر نه لازمیږي وَإِنَّمَا يَفُوتُهُ الِاسْتِرْبَاحُ بلکي له هغه شخصه د نفعي طلب کول [نفع اخیستل] فوتیږي وَأَنَّهُ أَمْرٌ زَائِدٌ او دا یو زایده خبره ده.

**اللغات**: ﴿دابة﴾ څاروی (چارپای)، سپارلي، ﴿بدا﴾ د نصر ماضي ده: ښکاره کېدل، نا څرګند شی ښکاره کېدل (چا ته داسي وجه او خبره ښکاره کېدل کوم چي مخکي ورته ښکاره نه وي)، ﴿غريم﴾ مقروض، پور وړی، ﴿افتقر﴾ د افتعال ماضي ده: محتاجه کېدل، غریب او مفلسه کېدل، ﴿مُكارِي﴾ د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: په کرایه ورکونکي (عموماً د هغه کس لپاره استعمالیږي کوم چي څارویان یعني خر، غاتره او داسي نور په کرایه ورکوي)، كَارٰى يُكَارِيْ مُكَارَاةً: په کرایه ورکول، ﴿استرباح﴾ د استفعال مصدر دی: د ګټي طلب او لټون کول، ګټه کول، نفع اخیستل.

**تشریح**: ومن استأجر دابة إلخ: د دې عبارت مطلب او د مسئلې حکم له ترجمي شخه هم ښکاره دی، تشریح ته یې ضرورت نسته.

ومن آجره عبده إلخ: فرمايي که یو مالک خپل غلام یو چا ته په أُجرت ورکړي بیا د اجارې له مودت ختمېدلو شخه مخکي هغه غلام پر بل چا خرڅ کړي، نو دا عذر نه دی او بالاتفاق په دې سره اجاره نه سي فسخ کېدای؛ ځکه چي په دې صورت کي د عقدِ اجاره په باقي پرېښوولو کي د مؤجر نقصان نسته، بلکي فقط بالفعل نفع اخیستل فوتیږي کوم چي یو زائد امر دی، که چیري د دې په وجه هم اجاره فسخ کړی سي، نو بیا خو هیڅ اجاره هم صحیح سالم نه سي پاتېدای، نو د خلګو ضرورتونه به نا بشپړ پاته سي.

پاته سوه د دغه مسئلې جواز او عدم جواز چي په پورتني صورت کي مؤجر (مالک) لره خپل غلام خرڅول جائز دي، که نه؟، نو په دې سلسله کي صحیح قول دا دی چي دغه بیع د اجارې تر مودته پوري موقوف پاتیږي او مستأجر دغه بیع نه سي فسخ کولای (همدې طرف ته صدر شهید میلان

کړی دی) تر دې چې مفتي به د دغه مسئلې په جواب کې داسې لیکي چې د مستأجر په حق کې دا بیع جائز نه ده. (اشرف الهدایه)

## د اجارې فسخ کېدلو یو صورت

قَالَ: وَإِذَا اسْتَأْجَرَ الْخَيَّاطُ غُلَامًا فرمایي: او کله چې خیاط یو هلک په اُجرت [په مزدوری] ونیسي فَأَفْلَسَ وَتَرَكَ الْعَمَلَ لیکن بیا هغه مفلسه سي او [د خیاطی] کار پرېږدي فَهُوَ عُذْرٌ نو دا عذر دی لِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ الضَّرَرُ بِالْمُضِيِّ عَلَى مُوجَبِ الْعَقْدِ ځکه چې د عقد پر مقتضا په مداومت کولو سره پر هغه زاید ضرر لازمیږي لِفَوَاتِ مَقْصُودِهِ وَهُوَ رَأْسُ مَالِهِ ځکه چې د هغه مقصود یعني د هغه اصل مال فوت سو وَتَأْوِيلُ الْمَسْأَلَةِ خَيَّاطٌ يَعْمَلُ لِنَفْسِهِ او [د دغه] مسئلې تأویل دا دی چې له خیاط څخه هغه خیاط مراد دی کوم چې د خپل ځان لپاره کوي أَمَّا الَّذِي يَخِيطُ بِأَجْرٍ او پاته سو هغه خیاط چې په اُجرت سره ګنډل [کپړه جوړول] کوي فَرَأْسُ مَالِهِ الْخَيْطُ وَالْمَخِيطُ وَالْمِقْرَاضُ نو د هغه اصل مال تار، ستنه او غچي ده فَلَا يَتَحَقَّقُ الْإِفْلَاسُ فِيهِ نو په هغه کې به مفلس والی نه ثابتیږي وَإِنْ أَرَادَ تَرْكَ الْخِيَاطَةِ وَأَنْ يَعْمَلَ فِي الصَّرْفِ او که خیاط وغواړي چې خپل د خیاطۍ پېشه پرېږدي او صرافي وکړي فَهُوَ لَيْسَ بِعُذْرٍ نو دا عذر نه دی لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُقْعِدَ الْغُلَامَ لِلْخِيَاطَةِ فِي نَاحِيَةٍ وَهُوَ يَعْمَلُ فِي الصَّرْفِ فِي نَاحِيَةٍ ځکه [په دې صورت کې] د هغه لپاره دا ممکنه ده چې په یوه طرف کې هلک د خیاطۍ لپاره کښېنوي او خپله په بل طرف کې صرافي وکړي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتَأْجَرَ دُكَّانًا لِلْخِيَاطَةِ فَأَرَادَ أَنْ يَتْرُكَهَا وَيَشْتَغِلَ بِعَمَلٍ آخَرَ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چې هغه د خیاطۍ لپاره دوکان په کرایه ونیسي بیا د هغه د پرېښودلو او په بل کار د مشغولېدلو اراده وکړي حَيْثُ جَعَلَهُ عُذْرًا ذَكَرَهُ فِي الْأَصْلِ نو امام محمد رَحِمَهُ الله دا عذر ګرځولی دی او دا یې په مبسوط کې ذکر کړي دي لِأَنَّ الْوَاحِدَ لَا يُمْكِنُهُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْعَمَلَيْنِ ځکه چې د یوه کس لپاره دوه کارونه سره جمع کول ممکن نه دي أَمَّا هٰهُنَا

اَلْعَامِلُ شَخْصَانِ پاته سوه دلته [يعني د خياطۍ پرېښودلو او صرافۍ کولو په مسئله کې] دوه کسان کار کونکي دي فَأَمْكَنَهُمَا نو د دوى دواړو لپاره هغه [دوه کارونه سره جمع کول] ممکن دي وَمَنِ اسْتَأْجَرَ غُلَامًا يَخْدُمُهُ فِي الْمِصْرِ او که څوک د دې لپاره يو غلام په اُجرت ونيسي چې هغه به په ښار کې د ده خدمت کوي ثُمَّ سَافَرَ بيا هغه [مستأجر] سفر وکړي فَهُوَ عُذْرٌ نو دا عذر دى لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ إِلْزَامِ ضَرَرٍ زَائِدٍ ځکه چې دا له زايد ضرر لازمولو څخه خالي نه دي لِأَنَّ خِدْمَةَ السَّفَرِ أَشَقُّ ځکه چې د سفر خدمت زيات مشقت والا وي وَفِي الْمَنْعِ مِنَ السَّفَرِ ضَرَرٌ او له سفر څخه په منع کېدلو ضرر سته وَكُلُّ ذٰلِكَ لَمْ يَسْتَحِقَّ بِالْعَقْدِ او له دغو څخه يو شى هم په عقد سره مستحق [ثابت] سوى نه دى فَيَكُونُ عُذْرًا نو ځکه دا به عذر وي وَكَذَا إِذَا أَطْلَقَ او همدارنګه که هغه دغه اجاره مطلق وساتي [يعني مطلقا داسي ووايي چې زه دغه غلام د خپل خدمت لپاره په اُجرت نيسم او داسي نه ووايي چې په حَضَر يا په سفر کې] لِمَا مَرَّ أَنَّهُ يَتَقَيَّدُ بِالْحَضَرِ د هغه دليل په وجه کوم چې مخکې تېر سو چې خدمت په حضر [غير سفر] سره مقيد کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا آجَرَ عَقَارًا ثُمَّ سَافَرَ په خلاف د هغه صورت کله چې يو جايداد [مثلا کور] په کرايه ورکړي بيا هغه [مؤجر] سفر وکړي [نو دغه سفر عذر نه دى] لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ ځکه چې [په دې کې] ضرر نسته إِذِ الْمُسْتَأْجِرُ يُمْكِنُهُ اسْتِيفَاءُ الْمَنْفَعَةِ مِنَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ بَعْدَ غَيْبَتِهِ ځکه د مؤجر تر غائبېدلو [مسافر کېدلو] وروسته هم د مستأجر لپاره له معقود عليه څخه نفع اخيستل ممکن دي حَتّٰى لَوْ أَرَادَ الْمُسْتَأْجِرُ السَّفَرَ حتى که چيرې مستأجر د سفر کولو اراده وکړي فَهُوَ عُذْرٌ نو دا عذر دي لِمَا فِيهِ مِنَ الْمَنْعِ مِنَ السَّفَرِ ځکه چې په دې کې [د عقدِ اجارې د باقي پرېښوولو په صورت کې] له سفر څخه منع کېدل سته أَوْ إِلْزَامُ الْأَجْرِ بِدُونِ السُّكْنٰى يا [په دې کې] بغير له اوسېدلو [پر مستأجر] د کرايې لازمېدل سته وَذٰلِكَ ضَرَرٌ او دا [د مستأجر لپاره] ضرر دى.

**اللغات**: ﴿خياط﴾ درزي، کپړه جوړوونکی (کالي جوړونکی)، ﴿غلام﴾ کوچنی هلک، مجازاً خادم، غلام او مزدور ته هم وايي ﴿أفلس﴾ د افعال د باب ماضي ده: مفلسه (دېوالي) کېدل، له مالدارۍ وروسته غريب کېدل، ﴿مضيّ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: څو عبارت ته مخکي موږ ذکر کړه چي که د دې باب په صلِه کي "عَلٰی" راسي لکه دلته، نو معنیٰ يې ده: مداومت کول، نافذول، جاري کول (باقي پرېښوول)، پوره کول، ﴿موجب العقد﴾ د عقد مقتضا (تقاضا)، ﴿رأس المال﴾ اصل مال، د شي هغه قيمت په کوم سره چي شی پېروت وي، ﴿الخيط﴾ تار، سپنسی (په کوم سره چي ګنډل کيږي)، ﴿المخيط﴾ د ګنډلو اله، ستن، ﴿الخياطة﴾ خياطي، د کپړو او کالو د ګنډلو او جوړولو کار، ﴿الصَّرْف﴾ نغد مال په نغد مال سره بدلول (مبادلة النقد بالنقد)، صرافي، ﴿أشق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مشقت والا، ﴿عقار﴾ جايداد، لکه کور، ځمکه او داسي نور، ﴿اسيتفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره حاصلول (اخيستل)، ترلاسه کول، ﴿السکنٰی﴾ استوګنه، اوسېدنه.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... که يو خياط په خپله کپړه رانيسي او بيا هغه جوړوي او جوړه کپړه يعني تيار سوي کالي خرڅوي، که داسي خياط مثلاً د يوه کال لپاره يو هلک (چوټو) د څلوېښت درهمو په عوض کي په أجرت ونيسي بيا دا خياط مفلسه سي او د هغه ټول مال ختم سي او د خياطۍ کار پرېږدي، نو دا عذر دی او (د هلک او خياط تر مينځ واقع سوې) اجاره فسخ کيږي؛ ځکه چي اوس د عقد اجارې په باقي پرېښوولو کي دغه خياط ته ضرر او نقصان رسيږي؛ ځکه د خياطۍ له کار کولو څخه بغير به پر هغه د هلک مزدوري (څلوېښت درهمه) لازم سي. ښکاره دي وي چي دلته له خياط څخه هغه خياط مراد نه دی کوم چي په أجرت سره د خلګو کپړې جوړوي (لکه زموږ عام خياطان)؛ ځکه په دغه کار کي د هغوی اصل مال صرف ستنه، تارونه (ګيلټان) او غچي دي، دا خو معمولي مال دی او هر څوک داسي شيان لري او که دا ختم سي نو بيرته يې پيدا کول هيڅ مشکل نه دي (بلکي هغه خياط څني مراد دی کوم چي په خپله ډېر تانونه رانيسي او مختلفه کالي جوړوي او بيا تيار سوي کالي خرڅوي، د هغه په اصل مال کي دا تانونه او تيار سوي کالي هم داخل دي)، په همدې وجه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "وتأويلُ المسألة" سره د خياط مصداق مُتعيّن کړی دی چي له هغه څخه کوم خياط مراد دی.

او په پورتنۍ مسئله کي چي کوم خياط مراد دی، که چيري هغه د خياطۍ کار پريږدي او د صرافۍ کار شروع کول وغواړي، نو دا عذر نه شمارل کيږي او په دې سره اجاره نه فسخ کيږي؛ ځکه چي د عقد اجارې په باقي پرېښوولو کي د مستأجر نقصان نسته بلکي د هغه نفع پکښي سته، په دې توګه چي هغه دي خپله په يو طرف کي صرافي کوي او په بل طرف کي دي په هغه هلک سره د خياطۍ کار کوي چي په دې توګه به له دواړو طرفونو څخه ګټه حاصلوي، او څرنګه چي دلته دوه کسان کار کونکي دي، نو ځکه په کار کولو کي به هيڅ ستونزه او تکليف نه وي. د دې په خلاف که څوک د خياطۍ لپاره يو دوکان په کرايه ونيسي، بيا خياطي پريږدي او زړه يې بل کار کول وغواړي، نو امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي دا عذر ګرځولي دی او د دغه عذر په وجه يې د اجارې فسخ کول صحيح ګرځولي دي؛ ځکه چي دلته عامل (کار کونکی) يو دی او کارونه دوه دي او د يوه کس لپاره دوه جلا (عليحده) کارونه کول ستونزمن دي، نو ځکه له دغه ستونزي څخه د بچ کېدلو لپاره دلته اجاره فسخ کول کېداى سي.

قوله ومن استأجرغلاماً إلخ: که يو سړی د دې لپاره يو غلام په اُجرت ونيسي چي زه له هغه څخه په ښار کي خدمت اخلم، بيا دا سړی سفر اختيار کړي، نو سفر د دغه اجارې د فسخ کېدلو لپاره عذر دی؛ ځکه دا اجاره باقي پرېښوول له زايد ضرر څخه خالي نه دي؛ ځکه چي د سفر په خدمت کي مشقت زيات وي او له سفر څخه د مستأجر په منع کېدلو کي ضرر سته، او له دغو څخه هر شی يعني زايد مشقت يا له سفر څخه منع کېدل په عقدِ اجاره سره ثابت سوي (لازم سوي) نه دي، نو ځکه به دا د اجارې د فسخ کېدلو لپاره عذر وي. همدارنګه که مستأجر د مطلق خدمت لپاره غلام په اُجرت ونيسي او د حضر يا سفر قيد نه ولګوي، نو بيا هم په دې صورت کي اجاره فسخ کيږي؛ ځکه مخکي دا خبره تېره سوه چي مطلق اجاره د حضر په خدمت سره مقيد کيږي يعني د سفر د خدمت له شرط لګولو څخه بغير مستأجر د کرايې والا غلام په سفر نه سي بېولای.



# مَسَائِلُ مَنْثُورَةٌ

## خورې (بېلابېلې) مسئلې

**تشريح**: "مَنْثُوْر" د نصر او ضرب د باب مفعول دی، معنیٰ یې ده: خورول سوی (خپور)، نشر کړی سوی.
د مصنفینو او مؤلفینو عادت دا دی چې په تېرو بابونو او فصلونو کې چې کومې مسئلې پاته سوې وي، هغوی په یو جلا باب کې ذکر کوي او هغه باب د "مسائل متفرقه" یا "مسائل شتّیٰ" یا د "مسائل منثورة" په نامه سره نوموي.

### د همسايه والا ځمکې د يو شي د سوځولو حکم

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا أَوِ اسْتَعَارَهَا فرمايي: او که څوک يو ځمکه په اجاره ونيسي يا يو ځمکه عاريتاً واخلي فَأَحْرَقَ الْحَصَائِدَ بيا هغه [د دې ځمکې] زايد پاته سوې بوټې وسوځي فَاحْتَرَقَ شَيْءٌ فِيْ أَرْضٍ أُخْرٰى او [د هغه په وجه] د بلې ځمکې يو شی وسوځي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر هغه ضمان [تاوان] نسته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِيْ هٰذَا التَّسْبِيْبِ ځکه چې هغه په دغه تسبيب [سبب جوړېدلو] کې تعدی کونکی نه دی فَأَشْبَهَ حَافِرَ الْبِئْرِ فِيْ دَارِ نَفْسِهِ نو هغه په خپل کور کې د څاه کښونکي کس سره مشابه سو وَقِيْلَ: هٰذَا إِذَا كَانَتِ الرِّيَاحُ هَادِئَةً ثُمَّ تَغَيَّرَتْ او ويل سوي دي: چې دا حکم په هغه صورت کې دی کله چې [د اُور لګولو په وخت کې] بادونه کرار وي بيا بدل سي [يعني تېزه هوا نه چلېږي بلکې وروسته تېزه سي] أَمَّا إِذَا كَانَتْ مُضْطَرِبَةً لېکن که [د اُور لګولو په وخت کې] بادونه نا کراره [تېز] وي يَضْمَنُ نو هغه [اُور لګونکی] ضامن کېږي لِأَنَّ مُوْقِدَ النَّارِ يَعْلَمُ أَنَّهَا لَا تَسْتَقِرُّ فِيْ أَرْضِهِ ځکه [په دې صورت کې] اُور لګونکی ته دا معلومه ده چې اُور زما په ځمکه کې قرار نه نيسي.

**اللغات**: ﴿استعار﴾ د استفعال ماضي ده: په عاريت اخيستل، په خواست غوښتل (مثلاً يو چا ته خواست کول چې ته! د يو څو وخت لپاره ستا ځمکه امانتاً راکړه!)، ﴿أحرق﴾ د افعال ماضي ده: سوځول، اُور وراچول. ﴿الحصائد﴾ جمع د حَصِيْدٌ او حَصِيْدَةٌ ده، حَصِيْد رېبل سوي کښت ته وايي،

نو د حَصَائِدِ معنیٰ ده: ریبل سوي (پریکړل سوي) کښتونه او فصلونه، دلته ځني مراد د ریبل سوي کښت پاته سوې برخه او بېخونه دي کوم چي په ځمکه کي جګ ولاړ وي، ﴿متعدٍ﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدی کونکی، نا حقه متصرف، تجاوز کونکی، ﴿تسبيب﴾ د تفعیل مصدر دی: سبب جوړول، سبب جوړېدل (سبب ګرځېدل)، ﴿حافر﴾ د ضرب د باب فاعل دی: کیندونکی، کښونکی، ﴿رياح﴾ جمع د رِيْحٌ ده: بادونه، هواوي، ﴿هادئة﴾ د فتح د باب فاعل دی: کرار (ورو)، ﴿مضطربة﴾ د افتعال د باب فاعل دی: نا کراره، تېز، ﴿مُوقِد﴾ د افعال د باب فاعل دی: اُور بلونکی، اُور لګونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک یو ځمکه په اجاره (په ټېکه) یا عاریتاً واخلي او بیا د هغه ځمکي اضافي، باقي مانده بوټي او بېخونه وسوځي (لکه بعضي خلک چي ځمکي ته د امبار ورکولو په قصد سره داسي کوي)، لیکن د هغوی د سوځولو په وجه د بل چا د ځمکي یو شی وسوځي (مثلا د بل چا په ځمکه کي ډېر پروړ یا داسي بل سوځېدونکی شی پروت او هغه وسوځي)، نو په دې صورت کي سوځونکی (مستأجر، مستعیر) نه ضامن کیږي؛ ځکه که څه هم دلته سوځونکی د هغه شي د سوځېدلو سبب جوړ سوی دی، خو هغه په دغه سبیب کي متعدي نه دی (ځکه د خپلي ځمکي حصائد سوځول تعدی نه ده، بلکي مباح دي)، نو ځکه به پر هغه ضمان (تاوان) نه لازمیږي. د دې مثال داسي دی لکه څوک چي په خپل کور کي څاه وکاږي او بیا په هغه کي بل څوک مړ سي، نو پر څاه کښونکي ضمان نه لازمیږي، همداسي په به پورتنۍ مسئله کي پر سوځونکي هم ضمان نه لازمیږي.

شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله فرمايي چي مذکوره حکم یعني د نه ضامن کېدلو حکم هغه وخت دی کله چي د اُور لګولو په وخت کي باد تېز او تند نه وي، کنې سوځونکی ضامن کیږي، ځکه هغه ته معلومه ده چي د تېز او نا کراره باد په صورت کي اُور او لمبې پر یوه ځای قرار نه نیسي.

## د شرکت یو صورت

قَالَ: وَإِذَا أَقْعَدَ الْخَيَّاطُ أَوِ الصَّبَّاغُ فِي حَانُوتِهِ مَنْ يَطْرَحُ عَلَيْهِ الْعَمَلَ بِالنِّصْفِ فرمايي: او که چیري خیاط یا رنګرېز په خپل دوکان کي داسي څوک کښېنوي چي هغه د نصف اُجرت په عوض کي پر خیاط یا رنګرېز کار پېښوي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّ هٰذِهِ شَرِكَةُ الْوُجُوهِ فِي الْحَقِيقَةِ ځکه چي دا په حقیقت کي شرکت وجوه دی فَهٰذَا بِوَجَاهَتِهِ يَقْبَلُ وَهٰذَا بِحَذَاقَتِهِ يَعْمَلُ نو ځکه دا [کار پېښونکی] به په خپل وجاهت سره کار قبلوي او دا [خیاط او رنګرېز] به په خپل مهارت سره کار کوي فَيَنْتَظِمُ

بِذٰلِكَ الْمَصْلَحَةُ نو په دې سره به مصلحت [او نفع] په وجود کې راسسي فَلَا تَضُرُّهُ الْجَهَالَةُ فِيمَا يَحْصُلُ نو کوم څه چې حاصل سي، د هغه مجهول کېدل به عقد ته ضرر نه کوي.

**اللغات:** ﴿أقعد﴾ د افعال ماضي ده: کېښنول، مُتعيّنول. ﴿يطرح﴾ د افعال ماضي ده: د يو چا پر ذمه يو شی او يو کار اچول (پېښول). ﴿شركة الوجوه﴾ د دې تعريف به د عبارت په آخر "يادونه" کې ذکر سي. ﴿وجاهة﴾ عزت او رعب، مخور تيا، مراد: اعتبار او رسوخ، شناخت او پېژندګلوي (تعلقات). ﴿حذاقة﴾ مهارت. ﴿ينتظم﴾ د افتعال مضارع ده: شاملېدل، په نظم کېدل. (احسن، اشرف)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو خياط يا رنګرېز يو کس (چوټو) پر دوکان د دې لپاره کېښنوي چې هغه له خلکو څخه د ګنډلو (جوړولو) يا رنګولو لپاره کپړې اخلي او کاريګر (خياط، رنګرېز) ته يې ورکوي او اُجرت نيم په نيمه وېشي، نو د قياس له رويه دا ناجائز دي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی؛ ځکه کوم شی چې د هغه په عمل سره حاصلېږي، هغه مجهول دی. همدارنګه دلته د خياط يا رنګرېز راسُ المال صرف منفعت دی کوم چې د شرکت راسُ المال نه سي کېدای، لېکن استحساناً دا جائز دي؛ ځکه چې دا په حقيقت کې اجاره نه ده، بلکې شرکت وجوه دی کوم چې جائز دی، نو خياط يا رنګرېز چې کوم کس کېښنولی وي هغه به له خپل وجاهت څخه کار اخلي او خياط يا رنګرېز به له خپل مهارت څخه کار اخلي او پېش کړی سوی کار به پوره کوي، لهذا کوم څه چې حاصل سي، د هغه مجهول والی مضر نه دی. امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چې زما په نېز دلته د استحسان په نسبت قياس اولیٰ دی.

يادونه: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله مذکوره صورت ته شرکت وجوه ويلي دي او شارحينو د دليل استحسان په تعليل کې ويلي دي چې دا شرکت صنائع دی چې هغه ته شرکت تقبل هم ويل کېږي او د عبارت دا جمله "فهذا بوجاهته" د شرکت صنائع سره زيات مناسبه ده.

په کتاب الشرکة کې د شرکت وجوه او شرکت صنائع تعريفونه داسې ذکر سوي وه:

**شرکتِ وجوه:** دا دی چې دوه داسې خلک چې د هغو سره مال نه وي پر دې شرط شرکت وکړي چې په مال او تا کي به هريو په خپل وجاهت او په خپلو تعلقاتو سره د خلکو مالونه په قرض رانيسو او هغه به خرڅوو او کومه ګټه او نفع چې وسي هغه به د هريوه لپاره نصف، نصف يا د عمل مطابق وي.

**شرکتِ صنائع:** دا دی چې دوه کاريګر (کسبګر) خلک پر دې خبره شرکت وکړي چې دواړه به په ګډه کار کوو او کومه نفع (ګټه) چې حاصله سي هغه به زموږ په مېنځ کې مشترکه وي.

## کجاوه په اجاره کي شامليږي، که نه؟

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ جَمَلًا يَحْمِلُ عَلَيْهِ مَحْمَلًا وَرَاكِبَيْنِ إِلَى مَكَّةَ فرمايي: او که څوک [د دې لپاره] يو اوښ په کرايه ونيسي چې پر هغه يووسي يوه کجاوه او دوه سپاريان تر مکې مبارکي جَازَ نو دا جائز دي وَلَهُ الْمَحْمَلُ الْمُعْتَادُ او مستأجر لره د متعارفه کجاوې [د اينبوولو] اختيار سته وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او په قياس کي دا عقد جائز نه دی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِلْجَهَالَةِ ځکه چي په هغه کي جهالت دی وَقَدْ يُفْضِي ذٰلِكَ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او دا جهالت ځيني وخت جنګ [جنجال او اختلاف] ته رسول کوي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الرَّاكِبُ د استحسان دليل دا دی چي اصل مقصود سپاري [سپرېدونکي] دی وَهُوَ مَعْلُومٌ او هغه معلوم دی وَالْمَحْمَلُ تَابِعٌ او کجاوه [د رکوب] تابع ده وَمَا فِيهِ مِنَ الْجَهَالَةِ يَرْتَفِعُ بِالصَّرْفِ إِلَى الْمُتَعَارَفِ او په هغه کي چي کوم جهالت دی هغه د متعارف [معتاد] وطرف ته په ګرځولو سره ختميږي فَلَا يُفْضِي ذٰلِكَ إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو د هغه جهالت به جنګ ته رسول نه کوي وَكَذَا إِذَا لَمْ يَرَ الْوِطَاءَ وَالدُّثُرَ او همدارنګه [عقد اجاره جائز کيږي] کله چي د اوښ مالک فرش او چادرونه نه ويني قَالَ: وَإِنْ شَاهَدَ الْجَمَّالُ الْمَحْمَلَ او که چيري اوښ والا کجاوه وويني فَهُوَ أَجْوَدُ نو دا ډېره ښه ده لِأَنَّهُ أَنْفَى لِلْجَهَالَةِ وَأَقْرَبُ إِلَى تَحْقِيقِ الرِّضَاءِ ځکه چي دا د جهالت زيات ليري کونکی دی او د رضا ثابتولو ته زيات نژدې دی.

**اللغات**: ﴿محمل﴾ کجاوه (هودج)، د لښتو او لرګيو څخه جوړ سوی هغه ځای کوم چي به پر اوښ د سپرېدلو او کښېنستلو لپاره اينبوول کېدی (چي هغه به د کوچنی خوني په ډول وو چي سر به يې د ګومبتې په شېر وو، او غالباً هغه به د ښځو د سپرتيا لپاره وو)، ﴿الوطأ﴾ فرش (ټاټ)، بستره، دلته مراد ځني هغه فرش او هغه شی دی کوم چي په کجاوه کي هوارول کيږي، ﴿الدثر﴾ جمع د دِثَارٌ ده: هغه کپړې ته وايي کوم چي پر کميس او جامې د پاسه پر ځان اچول کيږي لکه چادر (پټو) او داسي نور (مصباح المنير. معجم لغة الفقهاء)، ﴿جمّال﴾ د اوښ خاوند (مالک)، ﴿أجود﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: مراد ځني ډېر غوره دی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک تر مکې مبارکي پوري يو اوښ د کجاوې وړلو او د دوو خلګو د سپرولو لپاره په کرايه ونيسي، نو دا د قياس له رويه جائز نه دي، همدا د امام شافعي او امام

احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی؛ ځکه چي د طول و عرض، دروندوالي و سپکوالي په هر اعتبار سره معقود علیه مجهول دی، او دا داسي جهالت دی کوم چي ځیني وخت د جنګ او جنجال سبب ګرځي. لېکن استحساناً دا جائز دي؛ د استحسان دلیل دا دی چي اصل مقصود خو رَا کِب (سپاري) دی او هغه معلوم دی، یعني د خلکو (سپاریانو) بوج او بار تقریبا سره برابر وي. پاته سوه کجاوه نو هغه تابع ده او د هغې په طول و عرض او داسي نورو کي چي کوم جهالت دی هغه پر متعارفه کجاوه په حمل کولو سره لیري کېدای سي، نو ځکه دا جهالت به د جنګ او جنجال سبب نه ګرځي.

وکذا إذا لم یَر: د دې حاصل دا دی چي مستأجر (په کرایه نیونکي) چي کوم څادران او د هوارېدلو فرشونه د ځان سره وړي، که هغه د اوښ مالک (مؤجر) نه ویني، نو هم دا عقد اجاره جائز دی.

لېکن کجاوه که چیري ویني، نو دا د عقد او عاقدَینو دواړو په حق کي غوره ده؛ ځکه چي په دې سره د کجاوې جهالت هم لیري کېږي او د عاقدَینو رضا هم ثابتیږي او په داسي کولو سره د جنګ او جنجال پیښېدلو او د عقد فاسدېدلو شکوک او شبهات ختمیږي.

## په کرایه د اخیستل سوي خاروي د بار مسئله

قَالَ: وَإِنِ اسْتَأْجَرَ بَعِيرًا لِيَحْمِلَ عَلَيْهِ مِقْدَارًا مِنَ الزَّادِ فرمایي: او که څوک د دې لپاره اوښ په کرایه ونیسي چي پر هغه یو معلوم مقدار د لاري توښه [خورکه] یووسي فَأَكَلَ مِنْهُ فِي الطَّرِيقِ بیا په لاره کي له هغه څخه څه وخوري جَازَ لَهُ أَنْ يَرُدَّ عِوَضَ مَا أَكَلَ نو څومره مقدار چي یې خوړلي وي، د ده لپاره جائز دي چي هغومره مقدار [د خاروي په بار کي] زیات کړي لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِ حِمْلًا مُسَمًّى فِي جَمِيعِ الطَّرِيقِ ځکه چي هغه په ټوله لاره کي پر خاروي د مُتعیّن سوي بار د وړلو مستحق دی فَلَهُ أَنْ يَسْتَوْفِيَهُ نو ځکه هغه ته به د دې اختیار وي چي خپل دغه حق ترلاسه کړي وَكَذَا غَيْرُ الزَّادِ مِنَ الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ او همدارنګه د لاري له توښې څخه بغیر د بل کَیلي یا وزني شي هم دغه حکم دی وَرَدُّ الزَّادِ مُعْتَادٌ عِنْدَ الْبَعْضِ كَرَدِّ الْمَاءِ او [په بار کي] د لاري د توښې واپس کول [زیاتول] د بعضو په نېز د اوبو د واپس کولو [زیاتولو] په څېر دي [یعني هغه هم د اوبو څېر په متعارف او معتاد دي] فَلَا مَانِعَ مِنَ

الْعَمَلِ بِالْإِطْلَاقِ نو [دعقد] پر مطلق والي له عمل كولو څخه هيڅ مانع نسته.

**اللغات**: ﴿بعير﴾ اوښ، ﴿الزاد﴾ توښه، هغه خوركه كوم چې يې انسان په سفر كې د ځان سره وړي (دلاري خوركه او خرچه)، ﴿يستوفي﴾ د استفعال مضارع ده: پوره حاصلول، ترلاسه كول، ﴿معتاد﴾ د افتعال د باب اسم مفعول دى: هغه څه چې په عُرف كې د هغه عادت او رواج وي، رائج (مروج)، ﴿متعارف﴾ د تفاعل د باب مفعول دى: په عُرف كې مشهوره او پېژندل سوى، د عُرف مطابق.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى كه څوك د لاري د توښې د يو مُعيّن مقدار د وړلو لپاره يو اوښ په كرايه ونيسي بيا په لاره كې څه توښه وخوري، نو صرف هغومره توښه زياتولاى سي، يعني په بار كړل سوي توښه كې صرف د خوړل سوي توښې په اندازه توښه اېښولاى سي (مثلا كه د سلو كېلو اُوړو د بارولو لپاره اوښ په كرايه ونيسي او بيا په لاره كې پنځه كېلو اُوړه استعمال كړي، نو هغه ته دا اختيار سته چې پنځه كېلو نور اُوړه يا بل سامان رانيسي او پر اوښ يې كېښېږدي)؛ ځكه چې هغه په ټوله لار كې د يو مُعيّن مقدار د وړلو حقدار دى، نو ځكه كله چې دغه مقدار كم سي، نو ده ته به صرف د هغومره مقدار د پوره كولو اختيار وي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دى. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې كه د لاري له توښې څخه بغير يو بل سامان وي، نو په هغه كې هم دغه حكم دى.

وردُ الزاد معتاد إلخ: دا د يو سوال جواب دى. سوال دا دى چې مسافر خلګ چې د لاري له توښې څخه څومره مقدار وخوري، نو بيا هغومره توښه (په بار كې) نه زياتوي، لهذا له شرطولو څخه بغير به دا زياتول جائز نه وي؟

د جواب حاصل دا دى چې څرنګه په مسافرانو كې د اوبو د مقدار پوره كول (زياتول) متعارف دي (يعني څرنګه چې په هغو كې دا عادت او عُرف وي چې كه هغوى د ځان سره مثلاً د اوبو لس لېټره دبه را اخيستې وي، نو په هر منزل او پړاو كې هغه ډكوي او تشه يې نه پرېږدي)، همداسي د بعضي مسافرانو په نېز د لاري د توښې كمي پوره كول هم متعارف دي، نو دلته عُرف مشترک دى كوم چې د مقيد كېدلو صلاحيت نه لري، نو ځكه (له شرطولو څخه بغير) د عقد پر اطلاق به له عمل كولو څخه هيڅ شى مانع نه وي. ها! كه چيري د څاروي مالک دا شرط ولګوي چې مستأجر به كم سوى مقدار نه پوره كوي، نو په دې صورت كې هغه د شرط په سبب كم سوى مقدار نه سي پوره كولاى او كه چيري دا شرط نه ولګوي، نو بالاتفاق يې پوره كولاى سي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الْمُكَاتَبِ

(دا) كتاب د مكاتب (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح**: له اجارې څخه وروسته د مكاتب د احكامو او مسئلو د بيانولو وجه دا ده چي له دوی څخه د هريوه په ذريعه د غير مال په عوض كي مال حاصلول كيږي، ليكن څرنګه چي د اجارې مسائل د مكاتب له مسائلو څخه زيات دي، نو ځکه يې اجاره له مكاتب څخه مخكي بيان كړې ده.

**د كتابت (مكاتبت) لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د كتابت لغوي معنیٰ ده: ضمول (يو شی يو د بل شي سره يو ځای كول)، جمع كول، په همدې وجه د حروفو جمع كونكي ته مُكاتِب ويل كيږي. (احسن الهدايه)

د كتابت (مكاتبت) اصطلاحي معنیٰ ده: هغه عقد كوم چي د مالک او غلام تر مينځ د كتابت په لفظ سره منعقد سي او په هغه سره في الحاله (غلام ته) د تصرف كولو اختيار حاصل سي او فی الماله (هغه ته) آزادي حاصله سي. (بنايه ج:۹، ص:۴۳۳)

لنډه دا چي مكاتب هغه غلام ته وايي چي خپل مالک ورته ويلي وي: ته ما ته دومره پيسې راوړه! (مثلاً پنځه سوه درهمه راوړه!) نو ته آزاد يې!، او داسي معاملې ته كتابت وايي او دغه غلام چي خپل مالک ته كوم مال (پيسې) وركوي، هغه ته بدل كتابت وايي.

## خپل غلام مكاتب جوړول (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ الْمَوْلَى عَبْدَهُ أَوْ أَمَتَهُ عَلَى مَالٍ شَرَطَهُ عَلَيْهِ فرمايي: او كله چي مالک خپل غلام يا مينځه مكاتب جوړ كړي د داسي مال په عوض كي كوم چي يې پر هغه شرط كړي وَقَبِلَ الْعَبْدُ ذَلِكَ او غلام دا قبول كړي صَارَ مُكَاتَبًا نو هغه مكاتب ګرځي أَمَّا الْجَوَازُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ [سورة النور:۳۳] كوم چي جائز كېدل دي نو د الله پاک د دې فرمان په وجه دي: "او ستاسي كوم غلامان او مينځي چي مكاتب والی غواړي! نو تاسي دوی مكاتب جوړ كړئ! كه چيري تاسو په دوی كي خير وويني" وَهَذَا لَيْسَ أَمْرَ إِيجَابٍ بِإِجْمَاعٍ بَيْنَ الْفُقَهَاءِ او دغه امر د فقهاؤ په اتفاق سره د ايجاب لپاره نه دی وَإِنَّمَا هُوَ أَمْرُ نَدْبٍ بلكي هغه د استحباب لپاره دی هُوَ الصَّحِيحُ

همدا صحيح ده فَفِي الحَمْلِ عَلَى الإِبَاحَةِ إِلْغَاءُ الشَّرْطِ او پر اباحت د هغه په حمل کولو کي د شرط لغو کول ستنه إِذْ هُوَ مُبَاحٌ بِدُونِهِ ځکه چي بغير له شرطه هم کتابت مباح [روا] دی أَمَّا النُّدْبِيَّةُ فَمُعَلَّقَةٌ بِهِ پاته سو استحباب نو هغه په همدې شرط سره معلق دی وَالْمُرَادُ بِالْخَيْرِ الْمَذْكُورِ عَلَى مَا قِيلَ أَنْ لَا يَضُرَّ بِالْمُسْلِمِينَ بَعْدَ الْعِتْقِ او [په قرآن کي] له ذکر سوي خير څخه مراد (لکه څرنګه چي ويل سوي دي) دا دی چي تر ازاديدلو وروسته هغه مکاتب غلام مسلمانانو ته نقصان نه رسوي فَإِنْ كَانَ يَضُرُّ بِهِمْ او که چيري هغه مسلمانانو ته نقصان رسوي [يعني د هغه مکاتب جوړيدل او آزاديدل د مسلمانان لپاره مضر وي] فَالأَفْضَلُ أَنْ لَا يُكَاتِبَهُ نو غوره دا ده چي هغه مکاتب جوړ نه کړي وَإِنْ كَانَ يَصِحُّ لَوْ فَعَلَهُ که څه هم د هغه مکاتب جوړول صحيح دي که مالک داسي وکړي [يعني هغه مکاتب جوړ کړي] وَأَمَّا اشْتِرَاطُ قَبُولِ الْعَبْدِ فَلِأَنَّهُ مَالٌ يَلْزَمُهُ او کوم چي د غلام د قبلولو شرط کېدل دي نو ځکه چي دا [بدلِ کتابت] مال دی کوم چي پر هغه لازميږي فَلَا بُدَّ مِنَ الْتِزَامِهِ نو ځکه د هغه التزام [په خپل رضا سره پر ځان لازمول (قبلول)] ضروري دي وَلَا يَعْتِقُ إِلَّا بِأَدَاءِ كُلِّ الْبَدَلِ او هغه نه آزاديږي مګر د ټوله بدل [بدلِ کتابت] په اداء کولو سره لِقَوْلِهِ ﷺ [1]: «أَيُّمَا عَبْدٍ كُوتِبَ عَلَى مِائَةِ دِينَارٍ فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشَرَةَ دَنَانِيرَ فَهُوَ عَبْدٌ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: کوم غلام چي د سلو دينارو په عوض کي مکاتب جوړ کړی سي او غلام هغه اداء کړي ماسوا له سلو درينارو نو [هم] هغه غلام پاتيږي" وَقَالَ ﷺ [2]: «الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ» وَفِيهِ اخْتِلَافُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او په دې کي د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اختلاف دی وَمَا اخْتَرْنَاهُ قَوْلُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رضي الله عنه او کوم چي موږ اختيار کړی دی هغه د زيد بن ثابت رضي الله عنه قول دی وَيَعْتِقُ بِأَدَائِهِ وَإِنْ لَمْ يَقُلِ الْمَوْلَى: إِذَا أَدَّيْتَهَا فَأَنْتَ حُرٌّ او دغه غلام د بدلِ کتابت په اداء کولو سره آزاديږي که څه هم مالک داسي ويلي نه وي: کله چي ته هغه اداء کړې! نو ته آزاد يې لِأَنَّ مُوجَبَ الْعَقْدِ يَثْبُتُ مِنْ غَيْرِ التَّصْرِيحِ بِهِ ځکه چي د عقد موجب بغير له صراحت کولو

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ٣٩٢٩. والترمذي، رقم الحديث: ١٢٦٠.

[2] تخريج: راوه أبو داؤد، رقم الحديث: ٣٩٢٨.

ثابتيږي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چې په بيع کې کيږي وَلَايَجِبُ حَطُّ شَيْءٍ مِنَ الْبَدَلِ او پر مالک اله بدل کتابت څخه څه کمول ضروري نه دي اِعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ پر بيع په قياس کولو سره.

**اللغات**: ﴿إيجاب﴾ دافعال د باب مصدر دی: واجبول، لازمول. ﴿نُدُب﴾ مستحب، مندوب. ﴿الحمل﴾ د ضرب د باب مصدر دی چې د هغه معنیٰ ده: حمل کول (محمول کول)، ديوه شي حکم پر بل شي لګول. ﴿الإباحة﴾ دافعال د باب مصدر دی: مباح والی (روايښت)، مباح کول. ﴿قَبُوْل﴾او قُبُوْل، د سمع د باب مصدر دی: قبلول، منل، اخيستل، تصديق کول. ﴿إلغاء﴾ دافعال د باب مصدر دی: لغو او باطل ګرځول، ختمول او ضايع کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو له ترجمې څخه ښکاره او معلوم دی چې د مال په عوض کې د خپل غلام يا د خپلې مينځې سره د کتابت معامله کول شرعا جائز او صحيح دي؛ قرآن او حديث پر دې ګواه دي، لکه څرنګه چې په قرآن کريم په ښکاره الفاظو سره داسې ذکر سوي دي: ﴿فَكَاتِبُوْهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيْهِمْ خَيْرًا﴾ يعني که ديو غلام او مينځې آزادي د اسلام او مسلمانانو لپاره ضرر او تاوان نه کوي، نو هغوی مکاتب جوړول جائز او مستحب دي، يعني په "كَاتِبُوْهُمْ" کې چې کوم امر دی هغه داستحباب لپاره دی، د وجوب او اباحت لپاره نه دی، د وجوب لپاره خو ځکه نه دی چې کتابت پر مالک (مولیٰ) لازم او ضروري نه دی، بلکې د هغه پر رضا او خوښه موقوف دی، او د اباحت لپاره دا امر ځکه نه دی چې کتابت في نفسه جائز او صحيح دی او د هغه جواز له دې شرط څخه بغير هم ثابت دی، اوس که چيري مونږ هغه پر اباحت حمل کړو، نو فرمان الهي به له فايدې څخه خالي سي کوم چې يو عيب دی، حال دا چې قرآن کريم له هر ډول عيبونو څخه پاک دی، نو د قرآن کريم فصاحت او بلاغت ته په کتلو سره مونږ هغه پر استحباب حمل کړی دی.

وأما اشتراط إلخ: په متن کې چې کوم د "وَقَبِلَ الْعَبْدُ ذٰلِكَ" شرط ذکر سوی دی، د هغه وجه دا ده چې د عقد کتابت د منعقد کېدلو په صورت کې پر غلام بدل (مال) لازميږي، نو ځکه په عقد کتابت کې د غلام رضا او قبلول لازم دي، د دې لپاره چې تکليف ما لا يطاق لازم نه سي او غلام په خپل رضا او رغبت سره بدل اداء کړی سي. او د بدل په اداء کولو کې دا خبره ياد ساتل پکار دي چې څومره بدل (مال) تماکېل سوی وي، د هغه له اداء کولو څخه وروسته غلام آزاديږي، او د هغه له پوره اداء کولو څخه مخکې غلام نه سي آزادېدای؛ ځکه په حديث کې په ښکاره توګه دا ذکر سوي دي "الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ"، همدارنګه په ابو داؤد شريف کې ذکر سوي دي "أَيُّمَا عَبْدٍ كُوْتِبَ عَلٰى مِائَةِ دِيْنَارٍ

فأدّاها إلّا عَشَرَةَ دَنَانِيرَ فَهُوَ عَبْدٌ"، مطلب دا چي تر څو د بدلِ کتابت ټوله مال اداء نه کړی سي، تر هغه وخته غلام پر خپل غلامتوب پاتېږي او آزاد نه ګرځي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې باره کي د صحابه وو اختلاف هم دی چي د بدلِ کتابت په څومره مقدار اداء کولو سره غلام آزادېږي، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چي د خپل قيمت په اندازه د بدلِ کتابت په اداء کولو سره هغه آزادېږي، ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چي کله دا غلام د عقد کتابت کاغذ او دستاويز (ثبوتي خط) تر لاسه کړي، نو سمدستي هغه آزادېږي، د زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول زموږ د مسلک موافق دی، نو ځکه موږ د هغه پر قول عمل کړی دی.

ويعتق إلخ: فرمايي چي کله غلام ټوله بدلِ کتابت اداء کړي، نو هغه خپله آزادېږي، برابره ده مالک (مولیٰ) هغه ته داسي ويلي وي که نه وي چي "إذَا أدّيتَ البدل فأنت حُرٌّ"، ځکه په عقد کتابت کي د بدل حيثيت داسي دی لکه په بيع کي چي ثمن دی، او کله چي بائع له مشتري څخه ټوله ثمن واخلي، نو سمدستي مشتري ته مبيع حاصلېږي او پر هغه د مشتري حق ثابتېږي، نو همداسي کله چي مالک له غلام څخه ټوله بدل کتابت واخلي، نو غلام ته به هم آزادي حاصلېږي، او څرنګه چي په بيع کي پر مشتري ثمن کمول واجب نه دي، همداسي په عقد کتابت کي پر مالک له بدلِ کتابت څخه څه مال کمول واجب او ضروري نه دي. (احسن الهدايه)

## په عقد کتابت کي د نغد مال يا په قرض سره د اداء کولو شرط لګول

قَالَ: وَيَجُوزُ أَنْ يُشْتَرَطَ الْمَالُ حَالًّا فرمايي: او جائز دي چي د في الحاله مال [نغد بدلِ کتابت] [د اداء کولو] شرط ولګول سي وَيَجُوزُ مُؤَجَّلًا وَمُنَجَّمًا او په اجل [په قرض] او په کښنت سره [د اداء کولو] شرط لګول هم جائز دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ حَالًّا وَلَا بُدَّ مِنْ تَنْجِيمٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د في الحاله [اداء کولو] شرط لګول جائز نه دي [بلکي] په کښنت سره اداء کول ضروري دي لِأَنَّهُ عَاجِزٌ عَنِ التَّسْلِيمِ فِي زَمَانٍ قَلِيلٍ ځکه چي مکاتب په لږ زمانه کي [د بدلِ کتابت] له اداء کولو څخه عاجز دی لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ قَبْلَهُ لِلرِّقِّ ځکه [په هغه کي] تر عقد کتابت مخکي د غلامتوب په وجه [د ملکيت] اهليت نه وي بِخِلَافِ السَّلَمِ عَلَى أَصْلِهِ په خلاف د بيع سَلم د امام شافعي رَحِمَهُ الله پر اصل لِأَنَّهُ أَهْلٌ لِلْمِلْكِ ځکه چي مسلم اليه د ملکيت [مالک کېدلو] اهل وي فَكَانَ احْتِمَالُ الْقُدْرَةِ ثَابِتًا نو [د هغه په

حق كي] د قدرت [قادر كېدلو] احتمال ثابت پاته سو وَقَدْ دَلَّ الْإِقْدَامُ عَلَى الْعَقْدِ عَلَيْهَا او پر عقد كتابت [د هغه] اقدام كول د همدې خبري دليل هم دی فَيَثْبُتُ بِهِ نو ځکه په دې اقدام سره به [د هغه په حق كي] قدرت ثابتيږي وَلَنَا ظَاهِرُ مَا تَلَوْنَا مِنْ غَيْرِ شَرْطِ التَّنْجِيمِ زموږ دليل د هغه آيت ظاهر [ظاهري مفهوم] دی کوم چي موږ تلاوت کړی چي په هغه كي په كښت سره د اداء كولو شرط نسته وَلِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ او ځکه چي مکاتبت عقد معاوضه دی وَالْبَدَلُ مَعْقُودٌ بِهِ او بدل كتابت معقود به دی فَأَشْبَهَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ فِي عَدَمِ اشْتِرَاطِ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ لهذا دا په بيع كي د ثمن سره مشابه سو، پر هغه د قدرت نه شرط كېدلو په اعتبار سره بِخِلَافِ السَّلَمِ عَلَى أَصْلِنَا په خلاف د سَلَم کوم چي زموږ د اصل مطابق وي لِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ مَعْقُودٌ عَلَيْهِ ځکه چي [په بيع سَلَم] كي پر مسلم فيه عقد واقع سوی وي فَلَا بُدَّ مِنَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ نو ځکه پر هغه قدرت [قادر كېدل] ضروري دي وَلِأَنَّ مَبْنَى الْكِتَابَةِ عَلَى الْمُسَاهَلَةِ او ځکه چي د كتابت دار ومدر پر نرمۍ [آساني] دی فَيُمْهِلُهُ الْمَوْلَى ظَاهِرًا نو په ظاهره مالک به مکاتب ته مهلت ورکوي [يعني ښکاره همدا ده چي مالک به د بدل كتابت په اداء کولو کي مکاتب ته مهلت ورکوي] بِخِلَافِ السَّلَمِ په خلاف د بيع سَلَم لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى الْمُضَايَقَةِ ځکه چي د هغه مدار پر تنګۍ [سختۍ] دی وَفِي الْحَالِ كَمَا امْتَنَعَ مِنَ الْأَدَاءِ يُرَدُّ إِلَى الرِّقِّ او د في الحالہ [اداء کولو د شرط لګولو] په صورت کي چي څرنګه مکاتب له اداء کولو څخه منع سي نو سمدستي به هغه د غلاموالي وطرف واپس كول كيږي.

**اللغات:** ﴿حالًا﴾ في الحاله، نقد (نغد) ﴿مؤجل﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: د كوم شي لپاره چي ميعاد (مودت) ټاکل سوی وي، پور والا (په قرض سره اداء کېدونکی)، ﴿منجّم﴾ دا هم د تفعيل د باب مفعول دی: قسطونو والا، کښتونو والا (په کښت سره اداء کېدونکی)، په كښت سره اداء كول دې ته وايي چي قرض يا داسي بل حق پر څو حصو وويشل سي او هره حصه يې په يو ټاکلي مودت کي اداء کړی سي. ﴿تنجيم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: قرض يا داسي بل حق په كښت (په حصه، حصه) سره اداء كول، کښت مقرر كول. ﴿الرق﴾ غلامتوب، غلام والی. ﴿إقدام﴾ د افعال د باب مصدر دی: وړاندېتوب كول، په يو كار لاس پوري كول. ﴿مساهلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: نرمي او آساني كول، ديو چا سره د هغه پر مطلب موافقت كول. ﴿المضايقة﴾ مخکنی صيغه ده: سختي كول (نرمي

نه کول)، ديو چا سره د هغه پر مطلب موافقت نه کول، ﴿السَّلَم﴾ بيع سلم، بيع الاجل بالعاجل، يعني ځنډ من شی د نغد شي په عوض کي خرڅول، مثلاً يو سړی (بائع) له يو چا څخه ثمن في الحاله (نقد) واخلي او ديوې مياشتي پر قرض غنم پر خرڅ کړي چي غنم يوه مياشت وروسته در کوم. په بيع سَلم کي ثمن ورکونکي (مشتري) ته رَبُ السَّلَم وايي او په قرض خرڅونکي (بائع) ته مُسلَم إلَيه وايي او په کوم شي کي چي بيع سَلم وسي لکه په دې مثال کي چي غنم دي، هغه ته مُسلَمٌ فِيه وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز حال، مؤجل او منجم يعني په نغدو، په قرض او په کښت ټولو سره د بدل کتابت اداء کول جائز او صحيح دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د نقد (نغد) بدل پر شرط د کتابت معامله کول جائز نه دي او د هغه په نېز په کښت (په قسط) سره بدل اداء کول شرط او ضروري دي؛ ځکه چي له عقد کتابت څخه مخکنی حالت د غلاموالی حالت وي او په دغه حالت کي مکاتب ته د مال ګټلو او جمع کولو موقع نه حاصلېږي او هغه چي څه ګټي هم، نو د خپل مالک لپاره يې ګټي او تر کتابت سمدستي وروسته هغه پر يوه ځای ډېر مال نه سي ګټلای، نو ځکه بدل کتابت به په کښت سره اخيستل ضروري وي او د نقد (نغد) اخيستلو په شرط سره به عقد فاسدېږي. د دې په خلاف د بيع سَلم معامله ده، نو په بيع سَلم کي که څه هم مبيع (مسلم فيه) معدومه وي او د قرض په عوض کي د نقد معامله وي، لېکن بيا هم دا بيع ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده چي مسلم اليه آزاد وي او په هغه کي في الحاله د مالک جوړېدلو اهليت موجود وي، په همدې وجه خو هغه بيع سَلم کوي او پر بيع سَلم د هغه اقدام کول خپله د دې خبري دليل دی چي هغه د مسلم فيه پر اداء کولو قادر دی، لهذا په دې اړخ سره پر امام شافعي رَحِمَهُ الله اعتراض کول صحيح نه دي.

ولنا ظاهر ما تلونا إلخ: په دې سلسله کي زموږ دليل د قرآن کريم د دغه آيت "فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا" ظاهري مفهوم دی؛ ځکه چي په دې کي على الإطلاق د مکاتبت حکم سوی دی او د قسط (کښت)، نقد او قرض قيد پکښې ذکر سوی نه دی، نو ځکه د تنجيم (په کښت سره د اداء کولو) شرط لګول داسي دي لکه پر دغه نص زياتوب کول او پر نص زياتوب کول جائز نه دي.

زموږ دويم دليل دا دی چي مکاتبت عقد معاوضه دی (يعني کتابت د معاوضې معامله ده) او بدل کتابت معقود به دی يعني د هغه په اداء کولو سره معقود عليه يعني حريت (آزادي) حاصلول کېږي، نو د معقود به کېدلو په حواله سره بدل کتابت د ثمن په څېر دي، او د بيع د صحت (صحيح کېدلو) لپاره

په بیع کې دا ضروري نه ده چې مشتري به پر ثمن قادر وي، لهذا په عقد کتابت کې به هم پر بدل کتابت د غلام قادر کېدل شرط نه وي. (احسن الهدایه)

لېکن د بیع سَلم معامله زموږ په نېز له دې څخه مختلفه ده؛ ځکه چې په هغه کې مسلم فیه معقود علیه وي او څرنګه چې د بیع د صحت لپاره د مبیع پر ورسپارلو د بائع قادر کېدل ضروري دي، همدغه ډول د بیع سَلم د صحت لپاره د مسلم فیه پر ورسپارلو د مسلم الیه قادر کېدل هم ضروري دي.

او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې پر سَلم قیاس کوي، دا صحیح نه دي؛ ځکه چې د کتابت معامله پر نرمۍ او سهولت (آسانۍ) مبني ده او د مالک له طرفه همدا توقع ده چې هغه به د بدل کتابت په اداء کولو کې د مکاتب سره د رعایت کولو په خاطر خامخا هغه ته مهلت ورکوي، نو ځکه بلا وجه تنجیم شرط او ضروري ګرځول صحیح نه دي. د دې په خلاف په بیع سَلم کې سختي کیږي او د مسلم فیه د اداء کولو لپاره چې کوم وخت ټاکل سوی وي، خاص په هغه وخت کې ربُ المال په پوره توګه د خپل پوره حق اخیستلو کوشش کوي او په دې باره کې هغه هیڅ ډول کمي او نرمي نه کوي، نو ځکه په دې حواله سره هم کتابت پر سَلم قیاسول صحیح نه دي، او په کتابت کې په نقدو، په قرض او په کنبت هره توګه سره بدل اخیستل جائز دي، ها! که چیري د نقد بدل یعني د في الحاله اداء کولو شرط لګول سوی وي او مکاتب في الحاله هغه اداء نه کړی سي، نو سمدستي هغه د مخکي په څېر بیرته غلام ګرځي. (احسن الهدایه)

## کوچنی غلام مکاتب جوړول

قَالَ: وَتَجُوزُ كِتَابَةُ الْعَبْدِ الصَّغِيرِ إِذَا كَانَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ فرمایي: او کوچنی غلام مکاتب جوړول هم جائز دي [په دې شرط] کله چې هغه په خرڅولو او رانیولو پوهیږي لِتَحَقُّقِ الْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ ځکه چې [د هغه له طرفه] ایجاب او قبول ثابتېدای سي إِذِ الْعَاقِلُ مِنْ أَهْلِ الْقَبُولِ ځکه عاقل [پوهېدونکی] د قبلولو اهل دی وَالتَّصَرُّفُ نَافِعٌ فِي حَقِّهِ او تصرف [عقد کتابت] د هغه په حق کي مفید هم دی وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِيهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې سلسله کي زموږ مخالف دی وَهُوَ بِنَاءٌ عَلَى مَسْأَلَةِ إِذْنِ الصَّبِيِّ فِي التِّجَارَةِ او دغه اختلاف د تجارت په باره کي د بچي د اجازت پر مسئلې مبني دی وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ لَا يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چي هغه په خرڅولو او رانیولو نه پوهیږي لِأَنَّ الْقَبُولَ لَا يَتَحَقَّقُ مِنْهُ ځکه چي [په دې صورت کي] د هغه له طرفه قبول نه سي ثابتېدای فَلَا يَنْعَقِدُ الْعَقْدُ نو ځکه عقد به نه منعقد کیږي حَتَّى لَوْ أَدَّى عَنْهُ

غَيْرُهُ تر دې كه د هغه له طرفه بل څوک [قبول او بدلِ كتابت] اداء كړي لَا يَعْتِقُ نو هغه نه آزادېږي وَيَسْتَرِدُّ مَا دَفَعَ او دغه بل چا چي [مالک ته] كوم مال وركړى وي هغه به واپس ځني اخلي.

**اللغات**: ﴿يعقل﴾ د ضرب مضارع ده: پوهېدل، پوهه لرل. ﴿تحقق﴾ د تفعّل مصدر دى: ثابتېدل. ﴿الإيجاب والقبول﴾ ايجاب د افعال مصدر دى: واجبول، ثابتول. هغه كلام كوم چي د عقد كولو په باره كي د يوه عاقد له طرفه اول صادر سي او كله چي دويم عاقد دغه اول كلام قبول كړي نو د هغه كلام ته "قبول" وايي، مثلاً زيد و خالد ته ووايي چي "زه دا شي پر تا په دومره خرڅوم" او خالد ووايي چي "زما قبول دى، يا زما خوښه ده او داسي نور"، نو د زيد كلام ته ايجاب وايي او د خالد كلام ته قبول وايي. ﴿التصرّف﴾ عمل، هر داسي كار او قول كوم چي يو فقهي اثر او حكم لري، دلته ځني مراد عقدِ كتابت يعني د كتابتِ معامله كول دي. ﴿ينعقد﴾ د انفعال مضارع ده: منعقد كېدل، د عقد (معاملې) ترون كېدل. ﴿يسترد﴾ د استفعال مضارع ده: واپس اخيستل. ﴿دفع﴾ د فتح ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوى څخه يو معنىٰ ده: وركول، اداء كول.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو ښكاره دي چي څرنگه زموږ په نېز عاقل بچي ته د تجارت او كاروبار اجازت وركول جائز دي، همداسي د كوچني عاقل غلام سره د كتابت معامله كول هم جائز دي، لېكن څرنگه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز عاقل بچي ته د تجارت اجازت وركول صحيح نه دي، نو ځكه د هغه په نېز د كوچني عاقل غلام سره كتابت كول هم صحيح نه دي.

زموږ دليل دا دى چي د عاقل بچي په څېر د عاقل كوچني غلام له طرفه هم د معاملې قبلول ممكن او متحقق دي او د عقد صحيح كېدلو مدار پر همدغه قبلولو دى، لهذا كله چي كوچنى عاقل غلام د عقد قبلولو اهل دى نو د هغه سره به عقدِ كتابت كول هم جائز وي. ها! كه چيري هغه غير عاقل وي او د بيع و شراء (خرڅولو او رانيولو) په مطلب او مراد نه پوهيږي، نو د هغه سره عقد كول جائز نه دي او نه دا جائز دي چي د هغه له طرفه بل څوک عقد قبول كړي او بدل اداء كړي؛ ځكه چي په دې صورت كي د كوچني د نا اهل كېدلو په وجه عقد باطل دى او په باطل عقد كي دخل كول صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

## د مشروط مكاتبت يو صورت

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ: جَعَلْتُ عَلَيْكَ أَلْفًا تُؤَدِّيهَا إِلَيَّ نُجُومًا أَوَّلُ النَّجْمِ كَذَا وَآخِرُهُ كَذَا فرمايي: او كه يو مالک خپل غلام ته ووايي: ما پر تا زر درهمه ټاكلي دي چي ته به هغه ما ته په كښت سره [قسط واره] را كوې! او اول كښت به دومره وي او آخري به دومره وي فَإِذَا أَدَّيْتَهَا فَأَنْتَ حُرٌّ وَإِنْ عَجَزْتَ فَأَنْتَ رَقِيقٌ او كله چي ته هغه [زر درهمه] اداء كړې! نو ته آزاد يې او كه ته [د هغه له اداء كولو څخه] عاجزه سې نو غلام يې فَإِنَّ هٰذِهِ مُكَاتَبَةٌ نو دا مكاتب جوړول [كتابت] دي لِأَنَّهُ أَتَى بِتَفْسِيرِ الْكِتَابَةِ ځكه چي [دلته] مالک د كتابت تفسير [او تفصيل] بيان كړی دی وَلَوْ قَالَ: إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ أَلْفًا كُلَّ شَهْرٍ مِائَةً او كه چيري مالک داسي ووايي: كله چي ته ما ته زر درهمه راكړې! هره مياشته سل درهمه فَأَنْتَ حُرٌّ نو ته آزاد يې فَهٰذِهِ مُكَاتَبَةٌ فِي رِوَايَةِ أَبِي سُلَيْمَانَ نو د ابو سليمان رَحِمَهُ الله په روايت كي دا [هم] مكاتب جوړول دي لِأَنَّ التَّنْجِيمَ يَدُلُّ عَلَى الْوُجُوبِ ځكه چي كښت مقرر كول پر وجوب دلالت كوي وَذٰلِكَ بِالْكِتَابَةِ او وجوب په مكاتب جوړولو سره ثابتيږي [يعني پر غلام هغه وخت مال واجبيږي كله چي هغه مكاتب جوړ كړی سي؛ ځكه چي مالک له بدل كتابت څخه بغير بل شی پر هغه نه واجبوي] وَفِي نُسَخِ أَبِي حَفْصٍ لَا يَكُونُ مُكَاتَبًا او د ابو حفص كبير رَحِمَهُ الله په نسخه كي دا غلام نه مكاتب كيږي اعْتِبَارًا بِالتَّعْلِيقِ بِالْأَدَاءِ مَرَّةً پر يوه ځل اداء كولو [دآزادی] د معلق كولو په اعتبار كولو سره.

**اللغات**: ﴿جعلت﴾ د فتح له بابه د واحد متكلم ماضي صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چي هر ځای جلا معنیٰ وركوي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: گرځول، مقرر كول، ټاكل، شرط كول (شرطول)، ﴿نَجم﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: قسط، كښت، حصه (ټاكل سوې حصه)، ﴿نجومًا﴾ جمع د نَجم ده: په كښت سره، قسط واره (په حصه، حصه سره)، ﴿رقيق﴾ خالص غلام، ﴿تنجيم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: قرض يا داسي بل حق په كښت سره اداء كول. كښت مقرر كول. ﴿تعليق﴾ مخكنۍ صيغه ده: معلق كول (يو شی په بل شي پوري ځوړند كول).

**تشريح**: دعبارت په اول جزء كي عقد كتابت جائز او صحيح دی؛ ځكه چي مالک په پوره وضاحت او تفصيل سره د عقد هر اړخ ښكاره كړی دی او غلام ته يې داسي ويلي دي چي "كه چيري

ته بدل کتابت اداء نه کړی سي، نو ته (د مخکي په څير) غلام يې"، نو ځکه په دې صورت کي بېله شکه مکاتبت صحيح دی.

په دويم صورت کي چي مالک دا ويلي دي چي "که چيري ته ما ته دوه زره درهمه راکړې! په دې توګه چي هره مياشت سل درهمه راکوې! (يعني د مياشتي په سل، سل درهمو سره زر درهمه را پوره کړې!)"، نو له ابو سليمان رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي دغه دويم صورت هم په عقدِ کتابت کي شامل او داخل دی؛ ځکه چي د مالک "كُلَّ شَهْرٍ مِائَةً" ويل او کښښت مقرر کول د دې خبري دليل دی چي هغه د غلام سره د بدلِ کتابت معامله کوي؛ ځکه له بدلِ کتابت څخه بغير مالک پر غلام بل شی نه واجبوي، لېکن ابو حفص کبير رَحِمَهُ الله دغه صورت په کتابت (مکاتبت) کي داخل نه ګڼي، بلکي دا تعليق او شرط ګرځوي؛ د هغه دليل دا دی چي که چيري مالک (د زر درهمو) پر يوه ځل اداء کولو د غلام آزادي معلق کړي، مثلاً داسي ورته ووايي "إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ أَلْفًا فِيْ هٰذَا الشَّهْرِ فَأَنْتَ حُرٌّ"، نو دا کتابت نه ګرځي، نو همداسي به پورتنی قول هم کتابت نه ګرځي، ځکه چي دلته هيڅ داسي لفظ نسته کوم چي د کتابت له خصائصو څخه وي او "كُلّ شَهْرٍ مِائَةً" ويل که څه هم تنجيم دی، خو تنجيم د کتابت له خصائصو څخه نه دی، چي هغه د کتابت تفسير وګرځول سي؛ ځکه تنجيم خو په هر قرض کي کېدای سي او ځيني وخت خو په خودي کتابت کي هم تنجيم نه وي (يعني ځيني وخت کتابت هم په کښښت سره نه اداء کول کيږي، بلکي غلام هغه په يو تاکلي مودت کي په يوه ځل اداء کوي).

## د غلام پر ذات د مکاتبت اثر

قَالَ: وَإِذَا صَحَّتِ الْكِتَابَةُ فرمايي: او کله چي عقدِ کتابت صحيح سو خَرَجَ الْمُكَاتَبُ عَنْ يَدِ الْمَوْلٰى نو مکاتب د مالک له قبضې څخه وځي وَلَمْ يَخْرُجْ عَنْ مِلْكِهِ [لېکن] د هغه له ملکيت څخه نه وځي أَمَّا الْخُرُوجُ مِنْ يَدِهِ فَلِتَحْقِيْقِ مَعْنَى الْكِتَابَةِ کوم چي د مالک له قبضې څخه [د مکاتب] وتل دي نو هغه د دې لپاره چي د کتابت معنیٰ ثابته کړی سي وَهُوَ الضَّمُّ او د کتابت معنیٰ ده: ضمول [ور سره يو ځای کول] فَيَضُمُّ مَالِكِيَّةَ يَدِهِ إِلٰى مَالِكِيَّةِ نَفْسِهِ نو مکاتب د خپل قبضې [او تصرف] ملکيت د خپل ذات د ملکيت سره يو ځای کوي [ملاووي] أَوْ لِتَحْقِيْقِ مَقْصُوْدِ الْكِتَابَةِ يا د دې لپاره چي د کتابت مقصود ثابت کړی سي وَهُوَ أَدَاءُ الْبَدَلِ او هغه د بدلِ کتابت اداء کول دي فَيَمْلِكُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ وَالْخُرُوْجَ إِلٰى

السَّفَرِ وَإِنْ نَهَاهُ الْمَوْلٰى نو مکاتب د خرڅولو، رانیولو او په سفر د وتلو [سفر کولو] مالک کیږي [یعني د دې شیانو ملکیت او اختیار ورته حاصلیږي] که څه هم مالک هغه منع کړي وَأَمَّا عَدَمُ الْخُرُوجِ عَنْ مِلْكِهِ فَلِمَا رَوَيْنَا او کوم چې د مالک له ملکیت څخه [د مکاتب] نه وتل دي نو د هغه حدیث په وجه دي کوم چې موږ روایت کړی وَلِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ او ځکه چې کتابت د معاوضې معامله ده وَمَبْنَاهُ عَلَى الْمُسَاوَاةِ او د هغه مدار پر مساوات [برابری] دی وَيَنْعَدِمُ ذٰلِكَ بِتَنَجُّزِ الْعِتْقِ او د عتق [آزادی] په سمدستي نافذولو سره مساوات فوتیږي وَيَتَحَقَّقُ بِتَأَخُّرِهِ او د هغه په مؤخر کولو [ځنډولو] سره مساوات ثابتیږي لِأَنَّهُ يَثْبُتُ لَهُ نَوْعُ مَالِكِيَّةٍ ځکه چې [په دې صورت کې] د مکاتب جوړ کړی سوي غلام لپاره یو ډول مالک والی ثابتیږي وَيَثْبُتُ لَهُ فِي الذِّمَّةِ حَقٌّ مِنْ وَجْهٍ او په یوه اعتبار سره د مالک لپاره [د دغه غلام] پر ذمه حق هم ثابتیږي فَإِنْ أَعْتَقَهُ او که چیرې [له مکاتب جوړولو څخه وروسته] مالک هغه آزاد کړي عَتَقَ بِإِعْتَاقِهِ نو د مالک د آزادولو په وجه هغه آزادیږي لِأَنَّهُ مَالِكٌ لِرَقَبَتِهِ ځکه چې مالک [اوس هم] د هغه د ذات مالک دی وَيَسْقُطُ عَنْهُ بَدَلُ الْكِتَابَةِ او له هغه څخه بدلِ کتابت ساقطیږي لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَهُ إِلَّا مُقَابَلًا بِحُصُولِ الْعِتْقِ بِهِ ځکه چې هغه فقط د آزادۍ حاصلولو په مقابله کې بدلِ کتابت پر ځان لازم کړی دی وَقَدْ حَصَلَ دُونَهُ او [دلته] له بدلِ کتابت څخه بغیر هغه ته آزادي حاصله سوه.

**اللغات**: ﴿صحّ﴾ د ضرب ماضي ده: صحیح کېدل، معتبر کېدل. ﴿ید المولی﴾ د مالک قبضه، د مالک تصرف اختیار. ﴿ضمّ﴾ د نصر مصدر دی: ضمول، یو شي د بل شي سره یو ځای کول (ملاوول). ﴿معاوضة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو بل ته عوض (مال) ورکول. **عقد معاضه**: داسي معامله چي په هغه کي له دواړو طرفونو څخه عوض وي. ﴿مساواة﴾ مخکنۍ صیغه ده: یو د بل سره برابرېدل، برابر والی (برابري). ﴿ینعدم﴾ د انفعال مضارع ده: نیستي کېدل، ختمېدل. ﴿تنجز﴾ د تفعّل مصدر دی: ژر پوره کېدل، سمدستي واجبُ الاداء کېدل (احسن الهدایه). ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، په خپله ذمه (پر خپله غاړه) اخیستل.

تشريح: صورت د مسئلې: دا دی چې د مخکني تفصيل او تشريح مطابق چې کله عقد کتابت (مکاتبت) جائز او صحيح دی، نو حکم يې دا دی چې په هغه سره مکاتب د مالک له قبضې او تصرف څخه وځي او مکاتب ته د بيع وشراء، سفر کولو او داسي نورو اختيار حاصليږي، لېکن دغه مکاتب اوس هم (يعني د بدل کتابت له اداء کولو څخه مخکي) د مالک په ملکيت کي باقي پاتيږي او د هغه له ملکيته نه وځي.

غلام د مالک له قبضې او تصرف څخه ځکه وځي چې د کتابت لغوي معنیٰ ده: ضمول، او په دغه عقد سره غلام د خپل قبضې او تصرف ملکيت د خپل ذات د ملکيت سره ضموي چې په دې سره د کتابت معنیٰ ثابتيږي، يا د دې لپاره هغه د مالک له تصرف څخه وځي چې د کتابت (مکاتبت) مقصد حاصل سي، يعني چې د دغه وتلو په وجه مکاتب د بدل کتابت د اداء کولو لپاره کوشش او هڅه وکړي او مالک ته د خپل حق عوض او بدل حاصل سي.

وأما عدم الخروج إلخ: د دې حاصل دا دی چې د کتابت له معاملې څخه وروسته (او د بدل کتابت له اداء کولو څخه مخکي) غلام په دې وجه د مالک په ملکيت کي باقي پاتيږي او له بدل اداء کولو څخه بغير نه آزاديږي؛ ځکه چې په حديث کي ذکر سوي دي "المُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ". او عقلي دليل دا دی چې کتابت عقد معاوضه دی او د معاوضې دار ومدار پر مساوات (برابری) دی، او دا ښکاره خبره ده چې که چيري مو پړ د بدل کتابت له اداء کولو څخه مخکي آزادي نافذ کړو، نو مساوات به فوت سي او پر غلام به د مخکي په څېر بدل باقي پاته سي، ها! کله چې د بدل کتابت اداء کوکو تر وخته پوري آزادي مؤخره کړی سي، نو بيا به مساوات ثابت سي او عقد کتابت به کما حقهٗ ثابت وګرځي؛ ځکه چې په داسي فيصله کولو سره به غلام ته د تصرف حق حاصل سي او مالک ته د بدل اخيستلو (ترلاسه کولو) حق حاصل سي.

فإن أعتقه إلخ: فرمايي که چيري د کتابت له معاملې څخه وروسته مالک دا مکاتب غلام آزاد کړي، نو هغه آزاديږي؛ ځکه چې اوس هم هغه د مالک په ملکيت کي دی او مالک ته د آزادولو (اعتاق) حق حاصل دی، لېکن په دې صورت کي پر غلام بدل کتابت نه لازميږي؛ ځکه چې دغه بدل د آزادی حاصلېدلو په مقابله کي وو، حال دا چې له بدل اداء کولو څخه مخکي مالک خپله هغه آزاد کړی، نو کوم شی چې بغير له بدله هغه ته حاصل سو، د هغه لپاره د بدل او عوض ورکولو څه ضرورت سته.

## د مكاتبه مينځې سره د وطي كولو حكم

قَالَ: وَإِذَا وَطِئَ الْمَوْلَى مُكَاتَبَتَهُ فرمايي: او كله چې مالک د خپل مكاتبه مينځې سره وطي وكړي لَزِمَهُ الْعُقْرُ نو پر هغه عقر لازميږي لِأَنَّهَا صَارَتْ أَخَصَّ بِأَجْزَائِهَا ځکه چې مكاتبه [د مولیٰ په نسبت] د خپلو اجزاؤ زياته مستحقه [او مالكه] ګرځېدلې ده تَوَسُّلًا إِلَى الْمَقْصُودِ بِالْكِتَابَةِ د كتابت د مقصود وطرف ته د وسيله جوړېدلو لپاره [او چې د هغه په ذريعه د عقد كتابت مقصود حاصل سي] وَهُوَ الْوُصُولُ إِلَى الْبَدَلِ مِنْ جَانِبِهِ وَإِلَى الْحُرِّيَّةِ مِنْ جَانِبِهَا بِنَاءً عَلَيْهِ يعني د مالک له طرفه بدلِ كتابت ته رسېدل او د مينځې له طرفه آزادۍ ته رسېدل [ترلاسه كول] كوم چې پر همدې بدلِ كتابت مبني دي وَمَنَافِعُ الْبُضْعِ مُلْحَقَةٌ بِالْأَجْزَاءِ وَالْأَعْيَانِ او د بضع منافع د اجزاؤ او اعيانو سره ملحق دي وَإِنْ جَنَى عَلَيْهَا أَوْ عَلَى وَلَدِهَا او كه مالک پر مينځې يا د هغې پر بچي جنايت [جرم] وكړي لَزِمَتْهُ الْجِنَايَةُ نو پر هغه جنايت [جرم] لازميږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړی وَإِنْ أَتْلَفَ مَالًا لَهَا او كه چيري مالک د هغې مال ضايع كړي غَرِمَ نو [هم] ضامن كيږي لِأَنَّ الْمَوْلَى كَالْأَجْنَبِيِّ فِي حَقِّ أَكْسَابِهَا وَنَفْسِهَا ځکه چې مالک د مكاتبه مينځې د ګټو [مال] او ځان په حق كې د اجنبي په شان دی إِذْ لَوْ لَمْ يُجْعَلْ كَذَلِكَ ځکه كه مالک داسي [يعني د اجنبي په شير] نه وګرځول سي لَأَتْلَفَهُ الْمَوْلَى نو مالک به هغه [د مينځې ټوله مال] ضايع كړي فَيَمْتَنِعُ حُصُولُ الْغَرَضِ الْمُبْتَغَى بِالْعَقْدِ نو د هغه مقصد حاصلېدل به فوت سي كوم چې په عقدِ كتابت سره مطلوب دی [چې هغه مينځې ته آزادي حاصلېدل دي].

**اللغات**: ﴿عقر﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه ځيني دا دي: مهر، د وطي جرمانه، هغه مال (مهر) كوم چې د غير صحيح وطي په عوض كې پر وطي كونكي لازم سي، دلته څني مراد د موطوئه مكاتبه مينځې په شير مينځو چې څومره مهر وي، هغومره مهر څني مراد دی لكه څرنګه چې په حاشيه كې ذكر سوي دي، وهو المختار. ﴿أجزاء﴾ جمع د جُزءٌ ده: حصه، برخه. ﴿وصول﴾ د

ضـرب مصـدر دی: رسېدل، ﴿توسـل﴾ د تفعّـل مصـدر دی: وسـيله جوړېـدل، تقـرب حاصـلول، ﴿البضع﴾ د ښځي فرج (شرمگاه)، ﴿الأعيان﴾ مُتعيّن شيان (هر داسي شي ته ويل کيـږي کوم په سترگو ليدل کېدای سي او په لاس سره مسه کېدای سي)، ﴿غـرم﴾ د سمع ماضي ده: ضامن کېدل، تاوان زغمل (ضمان [تاوان] پر لازمېدل)، ﴿المبتغى﴾ د افتعال د باب اسم مفعول دی: غوښتل سوی، مطلوب.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که مالک د مکاتبه مينځي سره وطي وکړي، نو پر هغه د مينځي عُقر لازميږي، يعني د داسي مينځي چي څومره مهر جوړيږي، هغه به ورکوي.

لأنها صارت أخص إلخ: د عُقر لازمېدلو دليل دا دی چي دغه مکاتبه (د عقدِ کتابت په وجه) له خپـل مالک څخه زياتـه د خپـل جسـم او د خپلو اجزاؤ مستحقه سوې ده؛ او څرنګـه مالـک د هغې د بضع منافع استعمال کړي دي، نو ځکه پر مالک به د هغې عُقر لازميـږي، د دې لپاره چي مينځـه پـه دې مال سره بدلِ کتابت اداء کړي او د هغې او مالک دواړو مقصود حاصل سي.

وإن جنى عليها إلخ: که چيري مالک پر خپله مکاتبه مينځه يا د هغې پر بچي يا مال يـو جنايت (جرم) وکړي، نو پر مالک د دغه جنايت (جرم) ضمان لازميږي، يعني د جنايـت نفس (قتـل کولو) پـه صورت کي ديت پر لازميږي او د جنايت مال پـه صورت کـي د مال مثل يا د هغـه قيمـت پـر لازميـږي؛ ځکه مخکي ذکر سوه چي مکاتبه مينځه د خپلو اجزاؤ خپله مستحقه ده او تر عقدِ کتابت وروسته مالک د مکاتبـه مينځـي پـه حق کـي اجنبي گرځېـدلی دی، او تاسـو تـه معلومـه ده چي کـه يـو اجنبي سړی د مينځي نفس يا د هغې مال ته نقصان ورسوي، نو پر هغه ضمان لازميږي، لهذا کله چي مالک د مکاتبه مينځي نفس يا د هغې مال ته نقصان ورسوي، نو پـر هغـه بـه هـم ضمان لازميـږي، او کـه چيري ضمان واجب نه کړی سي، نو د مالک خوله به وخونديږي او په کراره، کراره به د هغې ټوله مال تخته او لاندي کـړي او د عقـد کتابـت مقـصود بـه حاصـل نـه سي، پـه همـدې وجـه شـريعت مالـک ضـامن گرځولی دی. (احسن الهدايه ج: ۱۲، ص: ۱۲۳)



# فَصْلٌ فِي الْكِتَابَةِ الفَاسِدَةِ

(دا) باب د فاسد مکاتبت (په بيان کي) دی

**تشريح**: دا خو تاسو ته معلومه ده چي د کتابت فاسده درجه له کتابت صحيحه څخه کمه ده، ځکه په هر شي کي فاسد له صحيح څخه وروسته او مؤخر وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د کتابت صحيحه دا احکامو او مسائلو له بيان څخه وروسته اوس د کتابت فاسده احکام او مسائل بيانوي.

## د حرامو شيانو په عوض کي کتابت کول

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ الْمُسْلِمُ عَبْدَهُ عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ أَوْ عَلَى قِيمَةِ نَفْسِهِ فرمايي: او که يو مالک خپل غلام د شرابو، خنزير يا د غلام د قيمت په عوض کي مکاتب جوړ کړي فَالْكِتَابَةُ فَاسِدَةٌ نو دا کتابت [مکاتب جوړول] فاسد دي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ الْخَمْرَ وَالْخِنْزِيرَ لَا يَسْتَحِقُّهُ الْمُسْلِمُ کوم چي اول دی [يعني د شراب او خنزير په عوض کي کتابت فاسېدل] نو ځکه چي مسلمان د شراب او خنزير نه مستحق کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ فِي حَقِّهِ ځکه چي دا شيان د مسلمان په حق کي مال نه دي فَلَا يَصْلُحُ بَدَلًا نو دا به د بدل جوړېدلو صلاحيت [هم] نه لري فَيَفْسُدُ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد فاسديږي وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّ الْقِيمَةَ مَجْهُولَةٌ قَدْرًا وَجِنْسًا وَوَصْفًا او کوم چي دويم دی [يعني د غلام د خپل قيمت په عوض کي کتابت فاسېدل] نو ځکه چي [د غلام] قيمت د مقدار، جنس او وصف [ټولو] په اعتبار سره مجهوله دی فَتَفَاحَشَتِ الْجَهَالَةُ نو دا جهالت فاحشه [زيات جهالت] سو وَصَارَ كَمَا إِذَا كَاتَبَ عَلَى ثَوْبٍ أَوْ دَابَّةٍ او دا داسي سوه لکه مالک چي د کپړې يا څاروي په عوض کي غلام مکاتب جوړ کړي وَلِأَنَّهُ تَنْصِيصٌ عَلَى مَا هُوَ مُوجَبُ الْعَقْدِ الْفَاسِدِ او ځکه چي دا [يعني د غلام د قيمت په عوض کي هغه مکاتب جوړول] پر هغه څه صراحت کول دي کوم چي د عقد فاسد حکم دی [يعني د عقد فاسدېدلو په صورت کي چي کوم

شی واجبیږي، دا د هغه شي صراحت کول دي] لِأَنَّهُ مُوجِبٌ لِلْقِيمَةِ ځکه چي فاسد عقد د قیمت واجبونکی دی [یعني د عقد فاسدېدلو په صورت کي قیمت واجبیږي].

**اللغات:** ﴿يستحق﴾ د استفعال مضارع ده: مستحق کېدل، استحقاق لرل. ﴿تفاحشت﴾ د تفاعل ماضي ده: ډېر زیاتېدل. ﴿التنصيص﴾ د تفعیل مصدر دی: وضاحت کول، په صراحت سره ذکر کول (په خوله سره بیانول). ﴿مُوجَب﴾ د افعال اسم مفعول دی: واجب کړی سوی، حکم، مقتضا. ﴿مُوجِب﴾ د افعال اسم فاعل دی: واجبونکی، لازمونکی.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو مالک (مولیٰ) د خپل غلام سره د شراب، خنزیر یا د غلام د قیمت په عوض کي عقد کتابت وکړي (یعني له خپل غلام څخه په بدل کتابت کي خنزیر یا شراب وغواړي یا د دغه غلام چي څومره قیمت وي، هغومره قیمت [پیسې] ځني وغواړي)، نو په دې سره عقد فاسدیږي؛ ځکه مسلمان د خنزیر او شرابو مالک کېدای نه سي؛ ځکه چي د مسلمان په حق کي دا شیان متقوّم (قیمتداره) نه دي، لهذا که دوی په بدل کي وټاکل سي، نو په دې سره عقد کتابت له بدل او عوض څخه خالي کیږي، حال دا چي په دې سره عقد فاسدیږي، نو ځکه د خنزیر او شرابو په بدل ټاکل کېدلو سره به هم عقد فاسدیږي.

او د غلام د قیمت په بدل ټاکل کېدلو سره هم عقد فاسدیږي؛ ځکه چي د مقدار، جنس او وصف په اعتبار سره د هغه قیمت مجهول وي (ځکه د غلام تر خرڅېدلو مخکي په کامله توګه د هغه قیمت نه سي معلومېدای)، د مقدار مطلب دا چي د قیمت شمېریې مجهوله وي چي څومره قیمت یې دی مثلاً آیا زر درهمه او که دوولس سوه درهمه یا داسي نور. د جنس مطلب دا چي د هغه قیمت به دراهم وي او که دنانیر. د وصف مطلب دا چي هغه دراهم یا دنانیر به جید (اصلي) او که ردي (کمزوري)، لنډه دا چي د غلام قیمت د مقدار، جنس او وصف په اعتبار سره مجهول وي، او دا جهالت "جهالت فاحشه" دی او په جهالت فاحشه سره عقد فاسدیږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم عقد فاسدیږي. دویم دلیل دا دی چي کله د تسمیې د باطلېدلو په وجه عقد فاسد سي (یعني په عقد کي چي کوم شی ټاکل سوي وي که د هغه په وجه عقد فاسد سي لکه دلته چي د شراب او خنزیرو د ټاکل کېدلو په وجه عقد فاسد سوی دی) نو بیا د هغه (شي) قیمت واجبیږي، لنډه دا چي د عقد فاسد مُوجَب قیمت دی، لهذا د غلام پر قیمت په عقد کولو سره مالک په خپله د عقد فاسد د مُوجَب صراحت کړی دی، نو په دې صورت کي به په درجه اولیٰ عقد فاسدیږي. د دې مثال دا دی لکه مالک چي پر مطلق څاروي یا کپړه باندي عقد کتابت وکړي، نو څرنګه چي د څاروي او کپړې نوعیت او حالت مجهول دی، نو د دغه جهالت په وجه دا عقد

فاسد دی، نو همداسي په پورتني مسئله کي هم د قدر، وصف او جنس په اعتبار سره د مکاتب د قيمت د مجهول والي په وجه عقد فاسد دی.

## د پورتني مسئلي نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ أَدَّى الْخَمْرَ فرمايي: او که چيري مکاتب شراب اداء کړي عَتَقَ نو [د جمهورو فقهاؤ په نيز] هغه آزاديږي وَقَالَ زُفَرُ[*]: لَا يَعْتِقُ إِلَّا بِأَدَاءِ قِيمَةِ نَفْسِهِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه نه آزاديږي مګر د خپل ځان د قيمت په اداء کولو سره لِأَنَّ الْبَدَلَ هُوَ الْقِيمَةُ ځکه چي بدل [په اصل کي] همدا قيمت دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَعْتِقُ بِأَدَاءِ الْخَمْرِ لِأَنَّهُ بَدَلٌ صُورَةً وَيَعْتِقُ بِأَدَاءِ الْقِيمَةِ أَيْضًا لِأَنَّهُ هُوَ الْبَدَلُ مَعْنًى او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي د شرابو په اداء کولو سره [هم] هغه آزاديږي ځکه چي شراب د صورت په اعتبار سره بدل دی او د قيمت په اداء کولو سره هم هغه آزاديږي ځکه چي قيمت د معنیٰ په اعتبار سره بدل دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ إِنَّمَا يَعْتِقُ بِأَدَاءِ عَيْنِ الْخَمْرِ إِذَا قَالَ: إِنْ أَدَّيْتَهَا فَأَنْتَ حُرٌّ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي د عَين شرابو په اداء کولو سره هغه وخت آزاديږي کله چي مالک داسي ويلي وي: که چيري ته شراب اداء کړې [راکړې]! نو ته آزاد يې لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ الْعِتْقُ بِالشَّرْطِ لَا بِعَقْدِ الْكِتَابَةِ ځکه په دې صورت کي هغه د شرط په وجه آزاديږي، د عقد کتابت په وجه نه آزاديږي وَصَارَ كَمَا إِذَا كَاتَبَ عَلَى مَيْتَةٍ أَوْ دَمٍ او دا داسي ده لکه مالک چي د مردار سوي ځناوري [مړ سوي حيوان] يا د وينو په عوض کي غلام مکاتب جوړ کړي وَلَا فَصْلَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او په ظاهر کي روايت کي [د خنزير او شرابو تر مينځ] هيڅ فرق نه دی سوی [او د خنزير، شرابو او مردار سوي ځناوري تر مينځ فرق پکښي سوی دی] وَوَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الْمَيْتَةِ أَنَّ الْخَمْرَ وَالْخِنْزِيرَ مَالٌ فِي الْجُمْلَةِ او د دوی [خنزير او شرابو] او د مردار سوي ځناوري تر مينځ د فرق وجه دا ده چي شراب او خنزير په يو درجه کي مال دي فَأَمْكَنَ اعْتِبَارُ مَعْنَى الْعَقْدِ فِيهِمَا نو په دوی کي د عقد د معنیٰ اعتبار کول ممکن دي وَمُوجَبُهُ الْعِتْقُ عِنْدَ أَدَاءِ الْعِوَضِ الْمَشْرُوطِ او د عقد مُوجب د مشروط عوض د اداء کولو په وخت کي آزادېدل دي [يعني د عقد حکم او مقتضا دا ده چي د شرط کړی

[*] القول الراجح: قول الجمهور، كما ذكر في رد المحتار ج:۵، ص:۶۹، ومجمع الأنهر ج:۴، ص:۷. [القول الراجح ج:۲، ص:۲۳۸]

سوي [تاکل سوي] عوض د اداء کولو په وخت کې غلام آزاد سي] وَأَمَّا الْمَيْتَةُ فَلَيْسَتْ بِمَالٍ أَصْلًا او کوم چې مردار سوی څاروی دی نو هغه خو بالکل مال نه دی فَلَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ مَعْنَى الْعَقْدِ فِيهِ نو په هغه کې د عقد د معنیٰ اعتبار کول ممکن نه دي فَاعْتُبِرَ فِيهِ مَعْنَى الشَّرْطِ نو ځکه په هغه کې به د شرط د معنیٰ اعتبار کیږي وَذٰلِكَ بِالتَّنْصِيصِ عَلَيْهِ او دا [د شرط د معنیٰ اعتبار] هغه وخت کېدای سي کله چې د شرط [اداء الميتة] صراحت وکړی سي وَإِذَا عَتَقَ بِأَدَاءِ عَيْنِ الْخَمْرِ او کله چې د عَین شرابو په اداء کولو سره مکاتب آزاد سو لَزِمَهُ أَنْ يَسْعٰى فِي قِيمَتِهِ نو پر هغه لازم دي چې د خپل قیمت په اداء کولو کوښښ [کسب او ګټه] وکړي لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ رَدُّ رَقَبَتِهِ لِفَسَادِ الْعَقْدِ ځکه چې د عقد فاسدېدلو په وجه پر هغه د خپل ذات [ځان] واپس کول واجب دي وَقَدْ تَعَذَّرَ بِالْعِتْقِ خو د آزادېدلو په وجه د ذات واپس کول ناممکن سوه فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهِ نو ځکه پر هغه به د خپل قیمت واپس کول واجب وي كَمَا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ إِذَا تَلِفَ الْمَبِيعُ لکه څرنګه چې په بیع فاسد کې کیږي کله چې مبیع ضایع سي [یعني لکه کله چې په بیع فاسد کې مبیع ضایع سي نو د قیمت واپس کول واجبیږي].

**اللغات**: ﴿فصل﴾ فرق، تفصیل، ﴿یسعی﴾ د نصر مضارع ده: هڅه او کوشش کول، ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام ذات، ﴿تلف﴾ د سمع ماضي ده: ضایع کېدل، هلاکېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله مالک خنزیر او شراب په بدل کتابت کې تاکلي وي، نو په داسي صورت کي که مکاتب خنزیر یا شراب اداء کړي، نو د جمهورو فقهاؤ په نېز او په ظاهر روایت کي هغه آزادیږي؛ ځکه چې هغه حقیقتاً بدل اداء کړی دی. د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې دغه غلام د شرابو د قیمت له اداء کولو څخه بغیر نه آزادیږي. دلته دا مسئله څه مشکله ده چې "إلا بأداء قيمة الخمر" صحیح دی یا که د هغه پر ځای "إلا بأداء قيمة نفسه" صحیح دی؟ زیاترو شارحینو د "قيمة الخمر" پر ځای "قيمة نفسه" صحیح ګرځولي دي، لېکن که دا صحیح دي، نو د تولو په نېز همدغه حکم دي، بیا په جلا توګه د امام زفر رَحِمَهُ الله د قول بیانولو هیڅ وجه نسته، نو ځکه غوره همدا ده چې "قيمة الخمر" صحیح وګڼل سي.

له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چې که دغه مکاتب غلام شراب اداء کړي، نو هم آزادیږي او که د شرابو یا د نفس (ځان) قیمت اداء کړي، نو هم آزادیږي؛ ځکه چې یو ځای شراب بدل دی او بل ځای قیمت بدل دی، یا په بله وینا دا چې شراب صورتاً بدل دی او د هغه قیمت معناً بدل دی، دلته هم شارحینو په "ويعتق بأداء القيمة" کې د نفس قیمت مراد کړی دی، خو شارح داحسن الهدایې وایي چې زما په نېز راجح د شرابو قیمت دی؛ ځکه دلته له نفس څخه بحث نه دی او د نفس قیمت خو په خپله مالک بدل گرځولی دی، لهذا هغه ته معناً بدل ویل څنگه صحیح کېدای سي، بهر حال تاسو دا مسئله په غور سره مطالعه کړئ! او خپله فیصله وکړئ! چې څنگه صحیح دي.

په نوادر کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چې که مالک په بدلِ کتابت کې شراب وټاکي او داسې ووایي "إن أدّيتَ الخمر إلخ" یعني "که ته ما ته دومره شراب راکړې، نو ته آزاد یې"، نو په دې صورت کې دغه غلام د شرط په وجه آزادیږي، نه د کتابت په وجه، یعني د مالک دا قول "إن أدّيتَ الخمر إلخ" شرط او تعلیق گرځي او کله چې شرط موجود سي، نو جزاء یعني حریت (آزادي) به هم ثابتیږي، لکه کله چې مالک مردار سوی څاروی یا وینه په بدلِ کتابت کې وټاکي او "إن أدّيتَ إلخ" ووایي، نو دلته هم د شرط په پوره کولو سره غلام آزادیږي، نه د کتابت په وجه. فرمایي چې دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله روایت دی، کنې په ظاهر روایت کې حکم مطلق دی یعني برابره ده مالک "إن إدّيت إلخ" ویلي وي او که نه وي په هر صورت کې د شرابو په اداء کولو سره مکاتب غلام آزادیږي. ها! په ظاهر روایت کې د شرابو او د مردار څاروي په مینځ کې فرق سوی دی، یعني د شرابو او خنزیر په اداء کولو سره مکاتب آزادیږي، لېکن د مردار څاروي او د وینې په اداء کولو سره نه آزادیږي کله چې مالک "إن أدّيت إلخ" ویلي نه وي.

او وجه د فرق یې دا ده چې شراب او خنزیر مال دي، که څه هم د مسلمان په حق کې متقوّم نه دي لېکن په دوی کې مالیت موجود دی، لېکن په مردار څاروي او وینه کې مالیت نسته، نو ځکه شراب او خنزیر عوض گرځول (بدل ټاکل) جائز دي او د عوض د اداء کولو په صورت کې معوض یعني عتق (آزادي) ثابتیږي، او مردار څاروی او وینه عوض گرځول صحیح نه دي، ها! کله چې مالک د "إن أدّيتَ" په وینا سره دوی مشروط کړي وي، نو بیا به د شرط موجودېدلو په صورت کې پر دوی حکم لگول کیږي.

وإذا عتق إلخ: فرمايي چي د شرابو داداء کولو په صورت کي خو غلام آزاديږي، لېکن د عقد فاسدېدلو په وجه د غلام کار دا دی چي خواري وکاږي، نور مال وګټي او مالک ته خپل قيمت يعني د خپل قيمت په اندازه مال ورکړي، د دې لپاره چي مالک ته په بدل کتابت کي متقوّم مال حاصل سي؛ ځکه چي د عتق واپس کول خو متعذر او محال دي، لهذا کله چي غلام د آزادۍ په نعمت سره برخمن سو، نو هغه ته پکار دي چي د خپل ځان د قيمت په ورکولو سره مالک هم خوشاله کړي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَلَا يُنْقَصُ عَنِ الْمُسَمّٰى وَيُزَادُ عَلَيْهِ فرمايي: او له ټاکل سوي مقدار [يعني مالک چي کوم مقدار ټاکلی وي له هغه] څخه به قيمت نه کمول کيږي خو پر هغه زياتوب کېدلای سي لِأَنَّهُ عَقْدٌ فَاسِدٌ ځکه چي دا عقد فاسد دی فَتَجِبُ الْقِيمَةُ عِنْدَ هَلَاكِ الْمُبْدَلِ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ نو ځکه د مبدل د هلاکېدلو په صورت کي به ټوله قيمت واجبيږي که هغه هر څو ته رسيږي [يعني برابره ده قيمت که هر څومره وي] كَمَا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ لکه څرنګه چي په بيع فاسد کي کيږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَوْلٰى مَا رَضِيَ بِالنُّقْصَانِ او دا حکم ځکه دی چي مالک [له ټاکلي عوض څخه] د کم په اخيستلو راضي نه دی وَالْعَبْدُ رَضِيَ بِالزِّيَادَةِ كَيْلَا يَبْطُلَ حَقُّهُ فِي الْعِتْقِ أَصْلًا او غلام په زياتو ورکولو راضي دی، د دې لپاره چي په آزادۍ کي بالکل د هغه حق ختم نه سي فَتَجِبُ الْقِيمَةُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ نو ځکه قيمت به واجبيږي هغه که هر څو ته رسيږي [يعني قيمت که هر څومره وي هغه به پر مکاتب غلام واجب وي] وَفِيمَا إِذَا كَاتَبَهُ عَلٰى قِيمَتِهِ يُعْتَقُ بِأَدَاءِ الْقِيمَةِ او په هغه صورت کي کله چي مالک غلام د هغه د قيمت په عوض کي مکاتب کړی وي نو غلام د قيمت په اداء کولو سره آزاديږي لِأَنَّهُ هُوَ الْبَدَلُ وَأَمْكَنَ اعْتِبَارُ مَعْنَى الْعَقْدِ فِيهِ ځکه چي همدا قيمت بدل دی او په قيمت کي د عقد د معنیٰ اعتبار کول ممکن دي وَأَثَرُ الْجَهَالَةِ فِي الْفَسَادِ او د قيمت د جهالت اثر د عقد په فاسدېدلو کي دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَاتَبَهُ عَلٰى ثَوْبٍ په خلاف د هغه صورت کله چي د کپړې په عوض کي غلام مکاتب جوړ کړي حَيْثُ لَا يُعْتَقُ بِأَدَاءِ ثَوْبٍ نو [په دې صورت کي] غلام د کپړې په اداء کولو سره نه آزاديږي لِأَنَّهُ لَا يُوقَفُ فِيهِ عَلٰى مُرَادِ الْعَاقِدِ ځکه چي په دې صورت کي د عاقد [مالک] پر مراد اګاهي نه سي کېدای [يعني د هغه په مراد واقف

کېدل او پېژندل مشکل دي] لِاخْتِلَافِ أَجْنَاسِ الثَّوْبِ ځکه د کپړې مختلفه جنسونه دي فَلَا يَثْبُتُ الْعِتْقُ بِدُوْنِ إِرَادَتِهِ نو ځکه د هغه له ارادې څخه بغير به آزادي نه ثابتيږي [يعني د مالک په مراد له واقف کېدلو څخه بغير به آزادي نه ثابتيږي (احسن الهدايه)]

**اللغات**: ﴿ينقص﴾ د نصر مضارع ده: کمول، کمي کول. ﴿بالغة ما بالغت﴾ تر کومه چې ورسيږي، يعني څومره چې هم وي. ﴿مبدل﴾ کوم شی چې د بدل په مقابله کې وي (لکه څرنګه چې مبيع ته هم په دې وجه مبدل ويل کيږي چې هغه د بدل يعني د ثمن په مقابله کې وي، يا په بله وينا دا چې د ثمن په بدله کې وي). ﴿يوقف﴾ د ضرب له بابه مضارع مجهوله ده، د دې باب په صِله کې چې "علیٰ" راسي نو معنی يې ده: په خبرېدل، واقف کېدل. ﴿أجناس﴾ مراد ځني انواع دي. (احسن الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د کتابت فاسده په صورت کې چې مکاتب په کوم قيمت کې سعی او کوشش کوي (لکه په تېر عبارت کې چې ذکر سوه چې د شرابو په اداء کولو سره خو هغه آزادیږي، لېکن د عقد فاسدېدلو په وجه به هغه سعی کوي، نور مال به ګټي او د خپل ځان قيمت به مالک ته ورکوي)، دغه قيمت به له هغه مقدار څخه نه کمول کيږي کوم مقدار بدل کتابت چې د مالک له طرفه ټاکل سوی وي (مثلا د مالک له طرفه د ټاکل سوي شرابو چې څومره قيمت وي، له هغه څخه به دا قيمت نه کمول کيږي)، ها! په دې قيمت کې اضافه کېدای سي هغه که هر څومره وي (بالغةً ما بالغت)؛ ځکه چې دا عقد فاسد واقع سوی دی، لکه څرنګه چې په بيع فاسد کې د مبيع ضايع کېدلو په صورت کې قيمت واجبيږي هغه که هر څومره قيمت وي، نو همداسې به دلته هم واجبيږي.

وهذا لأن المولی إلخ: پورته چې کوم دا خبره ذکر سوه چې قيمت به له ټاکل سوي مقدار څخه نه کمول کمول کيږي ها! زياتوب پر کېدای سي، د دې وجه دا ده چې مالک دغه عقد کتابت په ټاکل سوي مقدار سره واجب کړی دی، نو ځکه مالک تر هغه په کم مقدار راضي نه دی، خو غلام په زائد مقدار راضي دی، د دې لپاره چې د هغه د آزادۍ حق فوت نه سي او د لاسه يې د آزادۍ نعمت نه ووځي، نو هغه به له قيمت څخه د زيات مقدار په ورکولو هم راضي وي، نو ځکه موږ دا فيصله کړې ده چې په پورتنۍ مسئله کې به مالک ته بشپړ قيمت ورکول کيږي.

وفيما کاتبه إلخ: دا اصل مسئلې په شروع کې چې تر "علیٰ خمر أو خنزير" وروسته "أو علیٰ قيمته" ذکر سوي دي، دغه عبارت د هغه وطرف ته راجع دی، مطلب يې دا دی چې که مالک خپل غلام د هغه د قيمت په عوض کې مکاتب جوړ کړي، نو په دې صورت کې د خپل قيمت په اداء کولو سره غلام

ځکه آزادیږي، چې قیمت د هغه بدل او عوض دی او په دې کې د عقد د معنیٰ اعتبار کول هم ممکن دي، په دې توګه چې مکاتب دې دومره قیمت اداء کړي چې په هغه کې د قیمت لګونکو خلګو (سوداګرانو) هیڅ اختلاف پاتې نه سي، مثلاً یو سوداګر ووایي چې د دغه غلام قیمت اویا دیناره دی او بل ووایي چې اتیا دیناره دی او دریم سوداګر ووایي چې نیوي (۹۰) دیناره دی، نو د نیوي دینارو په اداء کولو سره مکاتب د خپل قیمت پوره اداء کونکی ګرځي.

وأثر الجهالة إلخ: دا د یو سوال جواب دی، سوال دا دی چې د کپړې (ثَوْب) په څېر دلته خو هم قیمت مجهول دی، نو څرنګه چې پر کپړې د عقد کتابت کولو په صورت کې مکاتب غلام د کپړې په اداء کولو سره نه آزادیږي، نو همداسې د قیمت په اداء کولو سره هغه آزادېدل پکار نه دي، بلکې عقد باطلېدل پکار دي؟

د جواب حاصل دا دی چې دلته د قیمت جهالت صرف د عقد په فاسدېدلو کې دی یعني په هغه سره صرف عقد فاسدیږي، باطلیږي نه، او په فاسد عقد کې همدا قیمت واجبیږي. په خلاف د کپړې چې صرف د کپړې په ویلو سره د مالک مراد نه سي معلومېدای؛ ځکه چې د کپړې مختلفه جنسونه دي، لهذا په اټکل او انداز سره د یو کپړې اداء کولو په صورت کې د آزادۍ فیصله نه سي کېدای، نو ځکه تر څو چې د عاقد یعني د مالک مراد او مطلب واضح نه سي، تر هغه وخته به غلام نه آزادیږي.

## پر یو معیّن شي عقدِ کتابت کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنْ كَاتَبَهُ عَلٰى شَيْءٍ بِعَيْنِهٖ لِغَيْرِهٖ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې] فرمایي: او همدارنګه که چیرې مالک د داسې مُتعیّن شي په عوض کې غلام مکاتب جوړ کړي کوم چې له غلام څخه بغیر د بل چا وي لَمْ يَجُزْ نو دا عقدِ کتابت جائز نه دی لِأَنَّهٗ لَا يَقْدِرُ عَلٰى تَسْلِيْمِهٖ ځکه چې غلام د هغه شي په ورسپارلو قدرت نه لري وَمُرَادُهٗ شَيْءٌ يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ او په "شيء بعينه" سره د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد داسې شی دی کوم چې په مُتعیّنولو سره مُتعیّن کیږي [لکه آس، غلام او داسې نور شیان] حَتّٰى لَوْ قَالَ: كَاتَبْتُكَ عَلٰى هٰذِهِ الْأَلْفِ الدِّرْهَمِ وَهِيَ لِغَيْرِهٖ تر دې که مالک داسې ووایي: ما د دغه زر درهمو په عوض کې ته مکاتب جوړ کړې!، حال دا چې هغه زر درهمه د بل چا وي جَازَ نو دا عقدِ کتابت جائز دی لِأَنَّهَا لَا تَتَعَيَّنُ فِي الْمُعَاوَضَاتِ ځکه چې دراهم په معاوضاتو کې نه مُتعیّن کیږي

فَيَتَعَلَّقُ بِدَرَاهِمِ دَيْنٍ فِي الذِّمَّةِ نو دا عقد کتابت به د داسي درهمو سره متعلق وي کوم چي پر ذمه قرض وي فَيَجُوزُ نو ځکه به جائز وي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَوَاهُ الْحَسَنُ أَنَّهُ يَجُوزُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله روايت دا دی چي دا عقد جائز دی حَتّٰى إِذَا مَلَكَهُ وَسَلَّمَهُ تر دې که غلام د هغه دراهمو مالک سي او هغوی مالک ته وسپاري يَعْتِقُ نو غلام آزادیږي وَإِنْ عَجَزَ او که غلام [د هغوی له اداء کولو څخه] عاجز سي يُرَدُّ فِي الرِّقِّ نو هغه به غلاموالي ته واپس کول کیږي [يعني بيرته غلام ګرځي] لِأَنَّ الْمُسَمّٰى مَالٌ وَالْقُدْرَةَ عَلَى التَّسْلِيمِ مَوْهُومَةٌ ځکه چي ټاکل سوی بدل [زر درهمه] مال دی او [د هغوی] پر ورسپارلو [د غلام] قادر کېدل په شک کي دي فَأَشْبَهَ الصَّدَاقَ نو دا بدل د مهر سره مشابه سو قُلْنَا: إِنَّ الْعَيْنَ فِي الْمُعَاوَضَاتِ مَعْقُودٌ عَلَيْهِ موږ وايو: چي عَين مال په معاوضاتو کي معقود عليه وي وَالْقُدْرَةُ عَلَى الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ شَرْطٌ لِلصِّحَّةِ إِذَا كَانَ الْعَقْدُ يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ او د عقد د صحت [صحيح کېدلو] لپاره پر معقود عليه قادر کېدل شرط دي [په دې شرط] کله چي هغه عقد د فسخ قابل وي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چي په بيع کي دي بِخِلَافِ الصَّدَاقِ فِي النِّكَاحِ په خلاف په نکاح کي د مهر لِأَنَّ الْقُدْرَةَ عَلٰى مَا هُوَ الْمَقْصُودُ بِالنِّكَاحِ لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه کوم څه چي په نکاح سره مقصود وي پر هغه لا قادر کېدل شرط نه دي فَعَلٰى مَا هُوَ تَابِعٌ فِيهِ أَوْلٰى نو کوم څه چي په نکاح کي تابع وي پر هغه خو به په درجه اولیٰ قادر کېدل شرط نه وي فَلَوْ أَجَازَ صَاحِبُ الْعَيْنِ ذٰلِكَ او که چيري د عَين شي مالک د دې عقد کتابت [او د ما قاله المالک لعبده] اجازت ورکړي فَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَجُوزُ نو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي [په دې صورت کي] دا عقد کتابت جائز کیږي لِأَنَّهُ يَجُوزُ الْبَيْعُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ ځکه چي د اجازت په وخت کي بيع لا جائز کیږي فَالْكِتَابَةُ أَوْلٰى نو کتابت خو به په درجه اولیٰ جائز کیږي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ اعْتِبَارًا بِحَالِ عَدَمِ الْإِجَازَةِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي د عدم اجازت پر حالت په قياس کولو سره دا عقد نه جائز کیږي عَلٰى مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ لکه څرنګه چي يې په کتاب [جامع صغير (متن)] کي فرمايلي دي وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا أَنَّهُ لَا يُفِيدُ مِلْكَ الْمَكَاسِبِ او د اجازت او عدم اجازت په مينځ کي جامع علت دا

دى چي داسي اجازت ورکول د ګټو د ملکیت ثابتېدلو فایده نه ورکوي وَهُوَ الْمَقْصُودُ حال دا چي همدا [د ملکیت ثابتېدل] په عقد کتابت سره مقصود دي لِأَنَّهَا تَثْبُتُ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْأَدَاءِ مِنْهَا ځکه چي د مکاسبو [ګټو] ملکیت ثابتیږي له مکاسبو څخه اداء کولو ته د ضرورت په وجه وَلَا حَاجَةَ فِيمَا إِذَا كَانَ الْبَدَلُ عَيْنًا مُعَيَّنًا او کله چي بدلِ کتابت مُعیّن شی وي نو د هغه ضرورت نسته وَالْمَسْأَلَةُ فِيهِ او دا مسئله په همدې کي فرض کړی سوې ده [کله چي بدل مُتعیّن شی وي] عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [څه مخکي] چي موږ بیان کړه [أن مراده شی یتعیّن بالتعیین] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ أَجَازَ ذٰلِكَ أَوْ لَمْ يُجِزْ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چي دا عقد جائز دي برابره ده مالک د دې اجازت ورکړي، که نه غَيْرَ أَنَّهُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ يَجِبُ تَسْلِيمُ عَيْنِهِ خو د اجازت ورکولو په صورت کي د عَین شي ورسپارل واجب دي وَعِنْدَ عَدَمِهَا يَجِبُ تَسْلِيمُ قِيمَتِهِ او د اجازت نه ورکولو په صورت کي د هغه قیمت ورسپارل واجب دي كَمَا فِي النِّكَاحِ لکه څرنګه چي په نکاح کي دي وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا صِحَّةُ التَّسْمِيَةِ او د دوی [کتابت او نکاح] په مینځ کي جامع علت د تسمیې [ټاکلو] صحیح کېدل دي لِكَوْنِهِ مَالًا ځکه چي هغه [ټاکل سوی عَین شی] مال دی وَلَوْ مَلَكَ الْمُكَاتَبُ ذٰلِكَ الْعَيْنَ او که چیري مکاتَب د هغه عَین شي مالک سي فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَوَاهُ أَبُو يُوسُفَ أَنَّهُ إِذَا أَدَّاهُ لَا يَعْتِقُ نو له امام صاحبِ رَحِمَهُ الله څخه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دا دی چي کله مکاتَب هغه اداء کړي نو نه آزادیږي وَعَلَى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ لَمْ يَنْعَقِدِ الْعَقْدُ إِلَّا إِذَا قَالَ لَهُ: إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ فَأَنْتَ حُرٌّ او پر دغه روایت [سابق] عقد منعقد سوی نه دی مګر دا چي مالک و غلام ته ویلي وي: کله چي ته [هغه] ما ته راکړې نو ته آزاد يې فَحِينَئِذٍ يَعْتِقُ بِحُكْمِ الشَّرْطِ نو په دې صورت کي غلام [مکاتب] د شرط په حکم سره آزادیږي وَهٰكَذَا عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همداسي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه هم روایت سوی دی وَعَنْهُ أَنَّهُ يَعْتِقُ قَالَ ذٰلِكَ أَوْ لَمْ يَقُلْ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه بل دا روایت سوی دی چي [د عَین شي په اداء کولو سره] غلام آزادیږي برابره ده مالک دا [إذا أديت إلخ] ویلي وي او که يې ویلي نه وي لِأَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ مَعَ الْفَسَادِ ځکه چي [سابق] عقد کتابت د فساد باوجود منعقد کیږي لِكَوْنِ الْمُسَمّٰى

مَالًا ځکه چي ټاکل سوی شی [بدل] مال دی فَيُعْتَقُ بِأَدَاءِ الْمَشْرُوطِ نو ځکه د شرط کړی سوي [ټاکل سوي] شي په اداء کولو سره به غلام آزادیږي وَلَوْ كَاتَبَهُ عَلَى عَيْنٍ فِي يَدِ الْمُكَاتَبِ او که چیري مالک پر داسي شي د مکاتب سره د کتابت معامله وکړي کوم چي د مکاتب په قبضه کي وي فَفِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې باره کي دوه روایتونه [ذکر سوي] دي وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْكِتَابَةِ عَلَى الْأَعْيَانِ او دا پر مُتعیّن شیانو د کتابت کولو مسئله ده وَقَدْ عُرِفَ ذَلِكَ فِي الْأَصْلِ او دا په مبسوط کي معلومه سوې ده وَقَدْ ذَكَرْنَا وَجْهَ الرِّوَايَتَيْنِ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او د دواړو روایتونو وجه [دلیل] موږ په "کفایة المنتهي" کي ذکر کړی دی.

**اللغات:** ﴿شی بعینه﴾ مُتعیّن شی، ﴿معاوضات﴾ هغه معاملې چي په هغوی کي دواړو طرفونو ته عوض وي، مالي معاملات، ﴿مال﴾ هر هغه څه ته وایي کوم چي د انسان په ملکیت کي داخل وي (المال اسم لجمیع ما یملکه الانسان)، او مال په اصل کي هغه شي ته وایي کوم ته چي فطرت او طبیعت میلان کوي او د هغه ساتل (خوندي کول) ممکن وي، او بل تعریف یې دا سوی دی چي هر هغه شی چي په هغه سره نفع اخیستل ممکن وي (چي شریعت په هغه سره نفع اخیستل روا کړي وي)، او هر هغه شی کوم چي په پیسو رانیول سوی وي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿الرِّق﴾ غلامتوب غلاموالی، ﴿المسمّٰی﴾ د تفعیل اسم مفعول دی: ټاکل سوی، نوم اخیستلی سوی، ﴿موهومة﴾ د ضرب اسم مفعول دی: وهمي، شکمن، غیر حقیقي، ﴿جامع﴾ جمع کونکی، مشترک، ﴿عَین﴾ مُتعیّن شی، هر هغه شی کوم چي موجود وي او په لاس سره مسه کېدای سي او محفوظ کېدای سي، لکه آس، غلام، ځمکه او داسي نور، نو هغه ته "عین" (عین شی) وایي، چي زموږ په اصطلاح هغه ته مطلق شی ویل کیږي، جمع یې "أَعْيَان" راځي.

**تشریح: مسئله:** دا ده که له مکاتب څخه بغیر د یو بل چا په قبضه کي (مثلاً) یو پُسه موجود وي او مالک پر هماغه پُسه د کتابت معامله وکړي، نو دا عقد کتابت جائز نه دی؛ ځکه چي معقود علیه مُعیّن شی دی، لېکن مکاتب د هغه په ور سپارولو قادر نه دی، حال دا چي د عقد د صحت لپاره دا شرط دي چي عاقد به د معقود علیه پر ورسپارلو قادر وي، او دا شرط دلته موجود نه دی، نو ځکه به عقد جائز نه وي.

په دې سلسله کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زیاد رَحِمَهُ الله روایت دا دی چې که مکاتب د دغه عَین شي (پُسه) مالک سي او مالک ته یې وسپاري، نو هغه آزادیږي؛ ځکه چې ټاکل سوی بدل (پُسه) مال دی او د هغه د ورسپارلو قدرت ممکن دی، نو ځکه په دې صورت کې عقد جائز دی. او لکه څرنګه چې د بل چا پر مال نکاح کول جائز دي، همداسې د بل چا پر مال عقد کتابت کول هم جائز دي. او که غلام هغه شی (پُسه) اداء نه کړی سي، نو د مخکې په څېر غلام پاتېږي (احسن الهدايه)، لېکن د ظاهر روایت له طرفه د دې جواب دا دی چې مکاتبت د معاوضې عقد دی او په معاوضاتو کې عَین شی معقود علیه وي او د عقد د صحت لپاره پر معقود علیه قادر کېدل شرط دي، حالانکې دلته عَین شی د بل چا په ملکیت کې دی او مکاتب د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی، نو ځکه به عقد جائز نه وي.

او دا د نکاح پر مهر قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه چې د نکاح مقصود توالد او تناسل دی او پر هغه هم قادر کېدل شرط نه دي، لهذا مهر کوم چې په نکاح کې تابع دی، پر هغه خو به په دجه اولیٰ قادر کېدل شرط نه وي.

فلو أجاز إلخ: د دې حاصل دا دی چې د بل چا پر عَین شي او مال عقد کول جائز نه دي، نو څرنګه چې د بل چا مال خرڅول د مالک پر اجازت موقوف پاتېږي، همداسې به دا عقد هم د مالک پر اجازت موقوف پاته وي، که چېرې مالک اجازت ورکړي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په روایت کې عقد جائز کېږي؛ ځکه په اجازتِ لاحقه (وروستني اجازت) سره بیع هم جائز کېږي، نو مکاتبت خو به په درجه اولیٰ جائز کېږي. له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې برابره ده مالک اجازت ورکړي، که نه، په هر صورت کې عقد نه جائز کېږي، لکه په هغه صورت کې چې نه جائز کېږي، کله چې د مالک په اجازت سره عقد سوی نه وي؛ ځکه چې په دې کې د مکاتب هیڅ فایده نه وي، فایده خو په هغه صورت کې وي کله چې مکاتب د دغه عَین شي مالک سي او په خپله ګټه سره بدل کتابت اداء کړي، حال دا چې دلته بدل معلوم او مُتعیّن دی، نو د هغه د مالک کېدلو ضرورت نسته، لهذا د کتابت د مقصود فوتېدلو په وجه عقد جائز نه دی. (احسن الهدايه)

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې دا عقد په هر حال کې جائز دی، برابره ده مالک اجازت ورکړي، که نه: ځکه چې دلته د بدل تعیین صحیح دی؛ ځکه هغه مال دی او مال هم متقوّم دی، نو ځکه د عقد په جواز او نفاذ کې هیڅ شبهه نسته، خو که مکاتب د همدغه عَین شي پر ورسپارلو قادر وي، نو هغه دې اداء کړي او که د هغه پر وسپارلو قادر نه وي، نو د هغه قیمت دې ورکړي، لکه کله چې یو خاوند د بل چا غلام په مهر کې وټاکي یعني پر غلام نکاح وکړي، نو حکم دا دی چې که د

خاوند لپاره د هغه غلام ورکول ممکن وي (مثلا د غلام مالک خاوند ته هغه غلام ورکوي) نو خاوند دي په مهر کي همغه غلام ورکړي، او که خاوند د غلام پر ورکولو قادر نه وي، نو د هغه قیمت دي ورکړي، همدغه ډول دلته هم که د مکاتب لپاره بعینهٖ د هغه عَین شي ورکول ممکن وي، نو مکاتب دي هغه ورکړي، کنې د هغه قیمت دي ورکړي او آزادي دي حاصله کړي.

ولوملك المكاتب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مکاتب د هغه عَین شي مالک سي، نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دا دی چي د هغه عَین شي په اداء کولو سره مکاتب نه آزادیږي؛ ځکه چي دا عقد په ابتداء کي فاسد واقع سوی دی و الفاسدُ لا ینقلب جائزًا، ها! که چیري د عقد په وخت کي مالک "إذا أدّيتَ إليّ إلخ" ویلي وي، نو په دې صورت کي د هغه عَین شي په اداء کولو سره مکاتب د شرط وجزاء په اعتبار سره آزادیږي، همدا له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دی. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله بل روایت دا دی چي برابره ده مالک "إذا أدّيتَ إلخ" ویلي وي، که نه وي، غلام د هغه عَین په اداء کولو سره آزادیږي؛ ځکه ټاکل سوی بدل مال دی او سابق عقد د فاسدېدلو باوجود منعقد سوی دی، نو ځکه اوس به غلام آزادیږي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دغه روایت مطابق هم دا آزادي د شرط په حکم سره ده، نه د کتابت په حکم سره.

ولوكاتبه إلخ: فرمایي که چیري مالک د مکاتب سره پر داسي شي د کتابت معامله وکړي کوم چي د مکاتب په قبضه کي موجود وي، نو په مبسوط کي په دې هکله دوه روایتونه دي: ① په کتاب الشرب کي ذکر سوي دي چي دا عقد جائز دی، ② په کتاب المکاتب کي ذکر سوي دي چي جائز نه دی. د جائز کېدلو دلیل دا دی چي په دې صورت کي بدل معلوم او مُتعیّن دی او د مکاتب په قبضه کي دی لهذا مکاتب د هغه پر ورسپارلو قادر هم دی، نو ځکه به دا عقد بالکل جائز وي.

د نه جائز کېدلو دلیل دا دی چي د عقد کولو په وخت کي مکاتب د خپل مالک تر ملکیت لاندي دی او د مکاتب ټوله ګټه (ګټل سوي مال) د مالک دی، نو ځکه دا عقد به داسي وي لکه د مالک پر شیانو (اعیانو) عقد کول، او د مالک پر شیانو عقد کول صحیح نه دي. (کفایه)

## پر یو خاص شرط عقدِ کتابت کول

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَهُ عَلٰى مِائَةِ دِينَارٍ عَلٰى أَنْ يَرُدَّ الْمَوْلٰى عَلَيْهِ عَبْدًا بِغَيْرِ عَيْنِهِ فرمایي: که چیري مالک د سلو دینارو په عوض کي غلام پر دې شرط مکاتب جوړ کړي چي مالک به هغه ته یو غیر مُتعیّن غلام هم واپس ورکوي فَالْكِتَابَةُ فَاسِدَةٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا عقد

کتابت فاسد دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ ۞: هِيَ جَائِزَةٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا عقد کتابت جائز دی وَيُقَسَّمُ الْمِائَةُ الدِّيْنَارُ عَلَى قِيمَةِ الْمُكَاتَبِ وَعَلَى قِيمَةِ عَبْدٍ وَسَطٍ او سل دیناره به د مکاتب او د مینځوي درجې والا غلام پر قیمت تقسیمول کیږي فَيَبْطُلُ مِنْهَا حِصَّةُ الْعَبْدِ فَيَكُونُ مُكَاتَبًا بِمَا بَقِيَ نو له هغه سلو دینارو څخه به د غلام د حصې په اندازه دینارونه ساقط [مستثنیٰ] سي نو د ما بقي دینارو په عوض کي به هغه مکاتب وګرځي لِأَنَّ الْعَبْدَ الْمُطْلَقَ يَصْلُحُ بَدَلَ الْكِتَابَةِ وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَسَطِ ځکه چي مطلق غلام د بدلِ کتابت جوړېدلو صلاحیت لري [یعني مطلق غلام بدلِ کتابت جوړېدای سي] او مطلق غلام د مینځوي درجې والا غلام وطرف ته ګرځي فَكَذَا يَصْلُحُ مُسْتَثْنًى مِنْهُ نو همداسي به دا غلام له بدلِ کتابت څخه مستثنیٰ کېدای هم سي وَهُوَ الْأَصْلُ فِي أَبْدَالِ الْعُقُودِ او د عقدونو په عوضونو کي همدا اصل دي وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَا يُسْتَثْنَى الْعَبْدُ مِنَ الدَّنَانِيرِ وَإِنَّمَا يُسْتَثْنَى قِيمَتُهُ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چي له دنانیرو څخه د غلام استثناء نه سي کېدای بلکي د هغه د قیمت استثناء کېدای سي وَالْقِيمَةُ لَا تَصْلُحُ بَدَلًا او [د غلام] قیمت د بدل جوړېدلو صلاحیت نه لري [یعني هغه بدلِ کتابت نه سي جوړېدای] فَكَذَلِكَ مُسْتَثْنًى نو همداسي به هغه د مستثنیٰ کېدلو صلاحیت هم نه لري [یعني مستثنیٰ کېدای به هم نه سي].

**اللغات**: ﴿دينار﴾ د سرو زرو سکه، ﴿بغير عينه﴾ غیر مُتعیّن، نا معلوم کړی سوی، ﴿وسط﴾ مینځوي درجې والا، ﴿ينصرف﴾ د انفعال مضارع ده: راجع کېدل، ګرځېدل. ﴿يصلح﴾ د کَرُم د باب مضارع ده: صلاحیت لرل، قابل کېدل. ﴿أبدال﴾ جمع د بَدل ده: عوض، د معاوضې عوض.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که مالک پر دې شرط د خپل غلام سره عقد کتابت وکړي چي ته به ما ته سل دیناره راکوې (بیا ته زما له طرفه آزادېږې!) او دا هم ورته ووایي چي زه تا ته یو غلام هم واپس کوم یعني د آزادېدلو څخه بغیر یو غلام هم درکوم، لېکن هغه غلام مُتعیّن نه کړي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا عقد فاسد دی، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز دی او سل دیناره به د مکاتب او د مینځوي

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما هو ظاهر من اصول الافتاء، وكذا ذكر في نتائج الأفكار (ج:٨، ص:١٠٥)،
[illegible]

درجې والا غلام پر قیمت تقسیمول کیږي او د غلام حصه به ایستل کیږي، مثلاً که د مکاتب قیمت شپږ سوه (۶۰۰) دیناره وي او د غلام قیمت دوه سوه (۲۰۰) دیناره وي، نو سل دیناره به همداسي پر دواړو تقسیمول کیږي چي له سلو دینارو څخه به شپېته (۶۰) دیناره بدل کتابت لپاره خاصول کیږي او څلوېښت (۴۰) دیناره به له بدل څخه ساقطول کیږي. داسي کول جائز او صحیح دي؛ ځکه چي مطلق غلام په کتابت کي بدل جوړېدای سي، نو ځکه له بدل څخه به مستثنیٰ کېدای هم سي.

د دې په خلاف طرفین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي غلام د دنانیرو له جنس څخه نه دی، نو ځکه له دنانیرو څخه به د غلام مستثنیٰ کول هم صحیح نه وي، ها! د هغه قیمت مستثنی کېدای سي، لېکن په قیمت کي فاحش (زیات) جهالت او تفاوت وي، نو ځکه هغه په عقدِ کتابت کي بدل نه سي جوړېدای، نو هغه به مستثنیٰ کول کېدای هم نه سي، نو ځکه دغه عقد ته له فاسد ویلو څخه بغیر بله هیڅ لاره نسته. (احسن الهدایه)

## پر غیرِ متعیّن څاروي کتابت کول

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَهُ عَلَى حَيَوَانٍ غَيْرِ مَوْصُوفٍ فرمايي: او کله چي مالک د داسي حیوان په عوض کي خپل غلام مکاتب جوړ کړي چي د هغه وصف بیان نه کړي فَالْكِتَابَةُ جَائِزَةٌ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً دا کتابت جائز دی مَعْنَاهُ أَنْ يُبَيِّنَ الْجِنْسَ وَلَا يُبَيِّنَ النَّوْعَ وَالصِّفَةَ د دې مطلب دا دی چي مالک [صرف] د حیوان جنس بیان کړي لېکن د هغه نوع او صفت بیان نه کړي وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَسَطِ او دا [غیرِ موصوف حیوان] د مینځوی درجې والا حیوان وطرف ته ګرځي وَيُجْبَرُ عَلَى قَبُولِ الْقِيمَةِ او مالک به د قیمت پر اخیستلو مجبورول کیږي وَقَدْ مَرَّ فِي النِّكَاحِ او په کتاب النکاح کي دا مسئله تېره سوې ده أَمَّا إِذَا لَمْ يُبَيِّنِ الْجِنْسَ مِثْلَ أَنْ يَقُولَ: دَابَّةٌ لېکن که چیري مالک د حیوان جنس هم بیان نه کړي، مثلاً داسي ووايي: یو څاروی [یعني خپل غلام ته داسي ووايي چي ما دیو څاروي (چارپای) په عوض کي ته مکاتب جوړ کړې!] لَا يَجُوزُ نو [په دې صورت کي] عقد جائز نه دی لِأَنَّهُ يَشْمَلُ أَجْنَاسًا مُخْتَلِفَةً ځکه چي حیوان مختلفه اجناسو لره شاملیږي [یعني د حیوان بېلابېل جنسونه دي] فَيَتَفَاحَشُ الْجَهَالَةُ نو جهالت به فاحشه [زیات] وګرځي وَإِذَا بَيَّنَ الْجِنْسَ كَالْعَبْدِ وَالْوَصْفِ او که چیري جنس بیان کړي لکه غلام او

وصيف [خدمت کونکی غلام] فَالْجَهَالَةُ يَسِيرَةٌ نو جهالت کم [معمولي] پاتيږي وَمِثْلُهَا يُتَحَمَّلُ فِي الْكِتَابَةِ او معمولي جهالت [جهالت يسيره] په کتابت کي زغمل کيږي [يعني داسي جهالت عقد کتابت ته تاوان نه کوي] فَتُعْتَبَرُ جَهَالَةُ الْبَدَلِ بِجَهَالَةِ الْأَجَلِ فِيهِ نو د بدل دغه معمولي جهالت به په عقد کتابت کي د ميعاد پر جهالت قياسول کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [په دې صورت کي هم] عقد نه جائز کيږي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ ځکه چي دا عقد د معاوضې عقد دی فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو د بيع سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّهُ مُعَاوَضَةُ مَالٍ بِغَيْرِ مَالٍ زموږ دليل دا دی: چي دا د غير مال سره د مال معاوضه ده [يعني د غيرِ مال په عوض کي مال ورکول دي] أَوْ بِمَالٍ لَكِنْ عَلَى وَجْهٍ يَسْقُطُ الْمِلْكُ فِيهِ يا د مال سره د مال معاوضه ده لېکن په دې توګه چي په دې کي ملکيت ساقطيږي فَأَشْبَهَ النِّكَاحَ نو دا د نکاح سره مشابه سو وَالْجَامِعُ أَنَّهُ يَبْتَنِي عَلَى الْمُسَامَحَةِ او [د کتابت او نکاح په مينځ کي] علت جامعه دا دی چي له دوی څخه هر پر مسامحت [نرمي او آساني] مبني دی بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّهُ مَبْنِيٌّ عَلَى الْمُمَاكَسَةِ ځکه چي بيع پر مماسکت [سختي او تنګي] مبني ده.

**اللغات**: ﴿حيوان﴾ ساکښ (ژوی)، هر عاقل يا غير عاقل ساکښ موجود، همدارنګه هر غير عاقل ساکښ يعني چارپای او ځناور ته هم ويل کيږي، ﴿غيرِ موصوف﴾ هغه شی چي وصف يې بيان کړی سوی نه وي، غير مُعيّن، ﴿دابة﴾ چارپای، ښاروی، ﴿يتفاحش﴾ د تفاعل مضارع ده: ډير زياتېدل، ﴿يسيرة﴾ لږ، معمولي، ﴿وصيف﴾ هغه غلام کوم چي د خدمت لپاره تياکل سوی وي او پر خدمت قادر وي (احسن الهدايه)، ﴿يتحمّل﴾ د تفعّل مضارع ده: زغمل (برداشتول)، ﴿أشبه﴾ د افعال ماضي ده: مشابه کېدل، په شير کېدل، ﴿المسامحة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: نرمي کول، ديو چا سره د هغه پر مطلب موافقت کول (معجم لغة الفقهاء)، ﴿مماسكة﴾ مخکنی صيغه ده: سختي کول. (احسن الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مالک په بدل کتابت کي داسي حيوان وټاکي چي د هغه وصف او تفصيل بيان نه کړي، لېکن جنس يې بيان کړي، مثلاً فقط داسي ووايي: آس، خر او داسي نور، نو استحساناً دا عقد کتابت جائز دی او قياساً جائز نه دي او له حيوان څخه به د مينځوی درجې حيوان مرادول کيږي، څو که د حيوان پر ځای مالک ته د هغه قيمت ورکول سي، نو پر مالک د هغه اخيستل

لازمي او ضروري دي؛ ځکه چي قيمت هم معناً بدل دی او څرنګه چي په نکاح کي د جنس بيانولو په صورت کي غير موصوف حيوان په مهر کي ټاکل صحيح دي، همداسي په بدل کتابت کي هم د جنس بيانولو په صورت کي غير موصوف حيوان ټاکل صحيح دي. لېکن که مالک د حيوان جنس هم بيان نه کړي او صرف "كَاتَبْتُكَ عَلَى دَابَّةٍ" ووايي، نو عقد نه جائز کيږي؛ ځکه چي د حيوان او چارپای مختلفه جنسونه دي او صرف د "دَابّة" ويلو په صورت کي جهالت زيات (فاحش) پاتېږي او جهالت فاحشه د نزاع او جنجال سبب ګرځي، نو ځکه په دې صورت کي به عقد جائز نه وي.

وإذا بيّن الجنس إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک په بدل کتابت کي د ټاکل سوي ساکښ جنس بيان کړي مثلاً داسي ووايي چي غلام يا وصيف، نو په دې صورت کي که څه هم د غلام وصف مجهول دی، لېکن دغه جهالت معمولي دی او معمولي جهالت په عقد کتابت کي زغمل کيږي، لکه په هغه وخت کي چي هم عقد کتابت صحيح کيږي کله چي د بدل کتابت اداء کولو لپاره يو مجهوله مودت (ميعاد) وټاکل سي مثلاً مالک د کښتونو د رسېدلو او رېبل کېدلو تر وخته پوري عقد کتابت وکړي، نو څرنګه چي په دې صورت کي په ميعاد کي معمولي جهالت پاتېږي، لېکن دا جهالت د معمولي والي په وجه زغمل کيږي (او پروا نه په کيږي)، نو همداسي به د وصف جهالت هم زغمل کيږي. او قياساً دا عقد جائز نه دی، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی؛ ځکه چي دا د معاوضې عقد دی او په دې حواله سره دا عقد د بيع سره مشابه دی، او بيع د ميعاد يا د ثمن د جهالت په صورت کي نه صحيح کيږي، نو ځکه دا عقد به هم د ميعاد يا د بدل د جهالت په صورت کي نه صحيح کيږي.

## که عيسايي د خپل غلام سره پر شرابو کتابت وکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ النَّصْرَانِيُّ عَبْدَهُ عَلَى خَمْرٍ فرمايي: او کله چي نصراني د شرابو په عوض کي خپل غلام مکاتب جوړ کړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ مِقْدَارًا مَعْلُومًا وَالْعَبْدُ كَافِرًا يعني کله چي د شرابو مقدار معلوم وي او غلام کافر وي لِأَنَّهَا مَالٌ فِي حَقِّهِمْ بِمَنْزِلَةِ الْخَلِّ فِي حَقِّنَا ځکه چي شراب د کفارو په حق کي همداسي مال دی لکه څرنګه چي سرکه زموږ په حق کي مال دی وَأَيُّهُمَا أَسْلَمَ او له مالک و غلام څخه چي کوم يو هم اسلام راوړي فَلِلْمَوْلَى قِيمَةُ الْخَمْرِ نو د مالک لپاره د شرابو قيمت دی [يعني په دې صورت کي به مالک ته د شرابو قيمت ورکول کيږي] لِأَنَّ الْمُسْلِمَ مَمْنُوعٌ عَنْ تَمْلِيكِ

الْخَمْرِ وَتَمَلُّكِهَا ځکه چي مسلمان د شرابو له مالک جوړولو او مالک جوړېدلو [دواړو] څخه منع کړی سوی دی وَفِي التَّسْلِيمِ ذٰلِكَ او د شرابو په ورسپارلو [ورکولو] سره همدغه خبره لازميږي إِذِ الْخَمْرُ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ ځکه چي شراب نا مُتعيّن دي [يعني په مُتعيّنولو سره مُتعيّن نه ګرځي] فَيَعْجِزُ عَنْ تَسْلِيمِ الْبَدَلِ نو مکاتب به د بدل له ورسپارلو څخه عاجزه وي فَيَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو ځکه پر هغه به د شرابو قيمت واجب وي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا تَبَايَعَ الذِّمِّيَّانِ خَمْرًا ثُمَّ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چي دوه ذميان په ګډه بيع سره وکړي بيا له دوی څخه يو اسلام راوړي حَيْثُ يَفْسُدُ الْبَيْعُ عَلٰى مَا قَالَهُ الْبَعْضُ نو بيع فاسديږي د بعضي مشايخو د قول مطابق لِأَنَّ الْقِيمَةَ تَصْلُحُ بَدَلًا فِي الْكِتَابَةِ فِي الْجُمْلَةِ ځکه چي قيمت په يو درجه کي د بدلِ کتابت جوړېدلو صلاحيت لري [يعني قيمت في الجمله بدلِ کتابت جوړېدای سي] فَإِنَّهُ لَوْ كَاتَبَ عَلٰى وَصِيفٍ وَأَتٰى بِالْقِيمَةِ ځکه که مالک [د خپل مکاتب غلام سره] پر يو غلام عقدِ کتابت وکړي او مکاتب د هغه قيمت راوړي يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ نو مالک به د هغه قيمت پر قبلولو مجبورول کيږي فَجَازَ أَنْ يَبْقَى الْعَقْدُ عَلَى الْقِيمَةِ نو ځکه پر قيمت به د عقد باقي پاتېدل جائز وي فَأَمَّا الْبَيْعُ فَلَا يَنْعَقِدُ صَحِيحًا عَلَى الْقِيمَةِ لېکن بيع [په داسي صورت کي] د قيمت په عوض کي نه صحيح کيږي فَافْتَرَقَا نو دواړه سره جلا سول [يعني په بيع او کتابت کي فرق ثابت سو] قَالَ: وَإِذَا قَبَضَهَا عَتَقَ فرمايي: او کله چي مالک د شرابو پر قيمت قبضه وکړي نو مکاتب غلام آزاديږي لِأَنَّ فِي الْكِتَابَةِ مَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ ځکه چي په کتابت کي د معاوضې معنیٰ سته فَإِذَا وَصَلَ أَحَدُ الْعِوَضَيْنِ إِلَى الْمَوْلٰى لهذا کله چي مالک ته يو عوض ورسېدی سَلِمَ الْعِوَضُ الْآخَرُ لِلْعَبْدِ نو هغه به غلام ته بل عوض سپاري وَذٰلِكَ بِالْعِتْقِ او دا د غلام په آزادېدلو سره حاصليږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْعَبْدُ مُسْلِمًا په خلاف د هغه صورت کله چي غلام مسلمان وي حَيْثُ لَمْ يَجُزِ الْكِتَابَةُ نو کتابت نه جائز کيږي لِأَنَّ الْمُسْلِمَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الْتِزَامِ الْخَمْرِ ځکه چي مسلمان پر ځان د شرابو لازمولو اهل نه دی وَلَوْ أَدَّاهَا عَتَقَ [خو بيا هم] که چيري هغه شراب اداء کړي نو آزاديږي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ دا مخکي بيان کړي دي.

**اللغات:** ﴿النصراني﴾ عيسايي، ﴿تبايع﴾ د تفاعل ماضي ده: يو د بل سره بيع كول، خرڅول و رانيول كول. ﴿في الجملة﴾ په يو درجه كي، ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مالک جوړول، مالک كول، ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک جوړېدل، مالک کېدل، ﴿افترقا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو له بله جلا كېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو نصراني مالک د خپل كافر غلام سره د شرابو په عوض كي عقد كتابت وكړي او د شرابو مقدار بيان كړي، نو دا عقد جائز دی؛ ځكه څرنګه چي سركه زموږ په حق كي مال دی همداسي د كافرانو او نصارا وو په حق كي شراب مال دی، نو ځكه د شرابو په عوض كي دا كتابت جائز او صحيح دی، لېكن كه چيري له مالک او غلام څخه يو مسلمان سي، نو په دې صورت كي بدل كتابت له عَين شراب څخه په قيمت بدلېږي او اوس به مالک ته صرف د شرابو قيمت وركول كيږي؛ ځكه كه غلام مسلمان سي، نو هغه د مالک په ملكيت كي شراب نه سي وركولای او كه مالک مسلمان سي، نو هغه په خپل ملكيت كي شراب نه سي اخيستلای؛ ځكه چي مسلمان د شرابو له تمليک او تملّک دواړو څخه ممنوع دی. د دې په خلاف كه يو ذمي په بل ذمي شراب خرڅ كړي، بيا له دوی څخه يو ذمي مسلمان سي، نو د ځيني مشايخو په نېز دا بيع فاسدېږي؛ ځكه چي د يوه عاقد په مسلمانېدلو سره د شرابو (كوم چي مبيع يا ثمن دي) پر ځای د هغه قيمت واجبېږي او د قيمت په عوض كي بيع صحيح نه ده، نو ځكه د بيع په صورت كي به د يوه عاقد په مسلمانېدلو سره بيع فاسدېږي. په همدې حواله سره د كتابت او بيع په مينځ كي فرق ثابت سو.

**قال وإذا قبضها إلخ:** فرمايي په پورتني صورتِ مسئله كي چي كله مالک د شرابو پر قيمت قبضه وكړي، نو سمدستي مكاتب آزادېږي؛ ځكه چي دا عقد د معاوضې عقد دی او د معاوضې په عقد كي چي كله يوه عاقد ته عوض حاصل سي نو پر دويم عاقد بل عوض ورسپارل لازمېږي (يعني هغه به هم له خپل طرفه تاكل سوی عوض ورسپاري) او دلته د بل عوض ورسپارل په عتق (آزادېدلو) سره ثابتيږي، نو ځكه د شرابو د قيمت په اداء كولو سره به سمدستي غلام آزادېږي. ها! كه چيري غلام مسلمان سي، نو دا عقد نه جائز كيږي؛ ځكه چي مسلمان د شرابو د التزام اهل نه دی، يعني هغه د بدل او عوض په توګه شراب پر ځان نه سي لازمولای، نو ځكه دا عقد به عقد كتابت پاتې نه سي بلكي تعليق به وګرځي، او كله چي مسلمان غلام (مكاتب) شراب اداء كړي، نو د تعليق (شرط وجزاء) په حكم سره به هغه آزادېږي. (احسن الهدايه)



# بَابُ مَا يَجُوْزُ لِلْمُكَاتَبِ أَنْ يَّفْعَلَهٗ

## (دا) باب د هغه کارونو (په بیان کي) دی چي مکاتب لره د هغوی کول جائز دي

### مکاتب غلام لره د بیع و شراء او سفر کولو حکم

قَالَ: وَيَجُوْزُ لِلْمُكَاتَبِ الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ وَالسَّفَرُ فرمايي: او جائز دي مکاتب لره خرڅول، رانيول او سفر کول لِأَنَّ مُوْجَبَ الْكِتَابَةِ أَنْ يَصِيْرَ حُرًّا يَدًا ځکه د کتابت تقاضا دا ده چي مکاتب د قبضې په اعتبار سره آزاد سي وَذٰلِكَ بِمَالِكِيَّةِ التَّصَرُّفِ مُسْتَبِدًّا بِهِ تَصَرُّفًا يُوْصِلُهٗ إِلٰى مَقْصُوْدِهٖ او دا تقاضا هغه وخت پوره کيږي کله چي مکاتب په مستقله توګه د تصرف مالک وي چي دغه تصرف هغه خپل مقصود ته ورسوي وَهُوَ نَيْلُ الْحُرِّيَّةِ بِأَدَاءِ الْبَدَلِ او مقصود د بدل په اداء کولو سره آزادي حاصلول دي [يعني مقصود دا دی چي هغه بدلِ کتابت اداء کړي او په دې سره د آزادۍ نعمت ترلاسه کړي] وَالْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ مِنْ هٰذَا الْقَبِيْلِ او خرڅول و رانيول د همدغه تصرف له قبيلې څخه دي وَكَذَا السَّفَرُ همداسي سفر هم له دغه قبيلې څخه دی لِأَنَّ التِّجَارَةَ رُبَّمَا لَا تَتَّفِقُ فِي الْحَضَرِ ځکه ځيني وخت په حضر [د مقيم والي په حالت کي] کاروبار نه سي برابرېدلای فَيَحْتَاجُ إِلَى الْمُسَافَرَةِ نو مکاتب سفر کولو ته مجبوره وي وَيَمْلِكُ الْبَيْعَ بِالْمُحَابَاةِ او مکاتب په کم قيمت سره د خرڅولو ملکيت [اختيار] هم لري [يعني په کم او ارزانه قيمت سره هم شی خرڅولای سي] لِأَنَّهٗ مِنْ صَنِيْعِ التُّجَّارِ ځکه چي دا هم د تاجرانو له اعمالو څخه دي فَإِنَّ التَّاجِرَ قَدْ يُحَابِيْ فِيْ صَفْقَةٍ لِيَرْبَحَ فِيْ أُخْرٰى ځکه تاجر [کاروباري] کس ځيني وخت په يو معامله کي قيمت کموي د دې لپاره چي په بله معامله کي ګټه ترلاسه کړي.

**اللغات:** ﴿بيع﴾ د ضرب مصدر دی: خرڅول، ﴿شراء﴾ دا هم د ضرب مصدر دی: رانيول، ﴿موجب﴾ د افعال اسم مفعول دی: حکم، تقاضا، ﴿مستبد﴾ د استفعال اسم فاعل دی: مستقل، ﴿يوصل﴾ د افعال مضارع ده: رسول، ﴿نيل﴾ د فتح مصدر دی: حاصلول، ترلاسه کول،

﴿حضر﴾اقامت، د مقیم والي حالت. ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: یو چا ته میلان کول، یو څوک په مال سره خاصول، د یو چا سره په ثمن (قیمت) یا مبیع کي رعایت کول، یعني یو شی په ډېر کم قیمت سره خرڅول، له عام ربېږ (نرخ) څخه په کمه ورکول.

﴿صنیع﴾ عمل، عادت. (احسن الهدایه)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مکاتب تر عقد کتابت وروسته خرڅول ورانیول یعني کاروبار هم کولای سي او په سفر هم تللای سي؛ ځکه د عقد کتابت مقصد همدا دی چي هغه آزاد سي او هغه ته د هر ډول تصرف آزادي حاصله سي، او دغه آزادي هغه وخت حاصلیږي کله چي هغه په مستقله توګه د تصرف مالک سي او په کاروبار کولو سره بدل کتابت اداء کړي او آزاد سي، ګواکي خرڅول و رانیول (کاروبار) او سفر کول د عقد کتابت د مقصود پوره کولو زینه ده، نو ځکه مکاتب ته به د دغه امورو د کولو حق حاصل وي. او که چیري مکاتب مناسب وګڼي، نو له عام قیمت او بازاري ربېږ څخه په کمه هم خپل سامان خرڅولای سي؛ ځکه د تاجرانو معمول دا دی چي د یو شي د ګران خرڅولو لپاره مخکي بل شی ارزانه خرڅ کړي او په دې توګه په یوه مال کي کمه نفع واخلي او په بل کي بنه ډېره نفع حاصله کړي.

## که مالک پر مکاتب دا شرط ولګوي چي ته به له ښاره نه وځې؟ (حکم او تفصیل)

قَالَ: فَإِنْ شَرَطَ عَلَيْهِ أَنْ لَا يَخْرُجَ مِنَ الْكُوفَةِ فرمایي: که چیري مالک پر مکاتب دا شرط ولګوي چي هغه به [مثلاً] له کوفې څخه نه وځي فَلَهُ أَنْ يَخْرُجَ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً د مکاتب لپاره جائز دي چي ووځي لِأَنَّ هٰذَا الشَّرْطَ مُخَالِفٌ لِمُقْتَضَى الْعَقْدِ ځکه چي دا شرط دعقد د مقتضا مخالف دی وَهُوَ مَالِكِيَّةُ الْيَدِ مِنْ جِهَةِ الِاسْتِبْدَادِ وَثُبُوتِ الِاخْتِصَاصِ او هغه [د مکاتب] په مستقله توګه د قبضې مالک کېدل دي او [د مکاتب] لپاره اختصاص [ځانګړتیا] ثابتېدل دي [یعني د عقد کتابت مقتضا (تقاضا) دا ده چي مکاتب په مستقله توګه د تصرّف مالک وي او د خپل ځان اختیار او خپل ګټي (اکساب) د هغه سره مختص وي] فَبَطَلَ الشَّرْطُ وَصَحَّ الْعَقْدُ نو ځکه به دا شرط باطلیږي او عقد به صحیح کیږي لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَمْ يَتَمَكَّنْ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ ځکه چي دا شرط په اصل عقد [احدُ العوضَین] کي ځای نیولی نه دی [یعني پکښي داخل نه دی] وَبِمِثْلِهِ لَا تَفْسُدُ الْكِتَابَةُ او په داسي شرط سره عقد نه فاسدیږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْكِتَابَةَ تُشْبِهُ الْبَيْعَ وَتُشْبِهُ النِّكَاحَ او دا حکم ځکه دی چي کتابت د بیع سره هم مشابه دی او د نکاح سره

هم مشابه دی فَأَلْحَقْنَاهُ بِالْبَيْعِ فِي شَرْطٍ تَمَكَّنَ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ نو په اصل عقد کي د ځای نيونکي [داخليدونکي] شرط په حق کي موږ کتابت د بيع سره لاحق کړی دی كَمَا إِذَا شَرَطَ خِدْمَةً مَجْهُولَةً لکه کله چي مالک د يو مجهوله خدمت شرط ولګوي لِأَنَّهُ فِي الْبَدَلِ ځکه چي دا شرط په بدل کي دی وَبِالنِّكَاحِ فِي شَرْطٍ لَمْ يَتَمَكَّنْ فِي صُلْبِهِ او په اصل عقد کي د ځلی نه نيونکي [نه داخليدونکي] شرط په حق کي موږ کتابت د نکاح سره لاحق کړی دی هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ همدا [پر دواړو مشابهتونو عمل کول] اصل دی أَوْ نَقُولُ: إِنَّ الْكِتَابَةَ فِي جَانِبِ الْعَبْدِ إِعْتَاقٌ يا موږ وايو: چي د غلام په حق کي کتابت آزادول دي لِأَنَّهُ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ ځکه چي دا [د مالک] د ملکيت ساقطول دي وَهٰذَا الشَّرْطُ يَخْتَصُّ الْعَبْدَ او دغه شرط [د نه وتلو شرط] د غلام سره خاص دی [يعني د هغه سره متعلق دی] فَاعْتُبِرَ إِعْتَاقًا فِي حَقِّ هٰذَا الشَّرْطِ نو د دغه شرط په حق کي کتابت اعتاق [آزادول] ګرځول سوي دي وَالْإِعْتَاقُ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او اعتاق په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي.

**اللغات:** ﴿مقتضی العقد﴾ د عقد تقاضا، ﴿جهة الاستبداد﴾ د مستقل والي جهت، ﴿يتمكّن﴾ د تفعّل مضارع ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: ځای نيول، قرار نيول، ﴿صلب العقد﴾ صلب د ملا هډوکي ته وايي، او د صلب العقد معنیٰ ده: نفس عقد، اصل عقد (د عقد ذات)، د عقد له دواړو عوضونو (بدلونو) څخه يو عوض (مثلا که فاسد شرط د بيع په ذات کي وي يعني په مبيع يا ثمن کي وي، نو دې ته وايي په صلب العقد کي متمکّن شرط)، ﴿الحقنا﴾ د افعال له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: لاحقول، ور سره يو ځای کول، شاملول (يو حکم ورکول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک په عقد کتابت کي داسي شرط ولګوي کوم چي د عقد د مقتضا مخالف وي او له اصل عقد څخه خارج وي، مثلاً پر مکاتب دا شرط لګول چي هغه به د عقد له ښاره بهر نه وځي، نو دا شرط باطليږي او عقد جائز کيږي. او که چيري داسي شرط وي کوم چي په اصل عقد کي داخل وي، نو دا شرط په عقد کي مؤثر کيږي او د هغه په وجه عقد فاسديږي؛ د دې وجه دا ده چي د عقد کتابت دوه حيثيتونه دي: ① په اصل عقد کي د داخل شرط په اعتبار سره کتابت د بيع سره مشابه دی، ② او له اصل عقد څخه د خارج شرط په حواله هغه د نکاح سره مشابه دی، نو په اصل عقد کي د داخل شرط په اعتبار کولو سره موږ هغه د بيع سره مشابه ګرځولی دی او دا فيصله مو کړې ده چي څرنګه په بيع کي د ثمن په جهالت سره عقد فاسديږي، همداسي به په کتابت

کي هم د بدل او معقود علیه په جهالت سره عقد فاسدیږي. او له اصل عقد څخه د خارج شرط وطرف ته په کتلو سره موږ هغه د نکاح سره مشابه ګرځولی دی؛ ځکه چې د نکاح په څېر دا هم د غیر مال په بدله کي د مال معاوضه ده او څرنګه چې خاوند د مور و پلار ملاقات ته له ورتللو څخه ښځه نه سي منع کولای، همداسي په کتابت کي هم مالک مکاتب له وتلو او سفر کولو څخه نه سي منع کولای.

او بل دلیل داسي هم ویل کېدای سي چې عقد کتابت د مکاتب په حق کي اعتاق دی؛ ځکه له هغه څخه د مالک ملکیت ختمیږي او د مالک له طرفه پر غلام له ښار څخه د نه وتلو شرط لګول د هغه سره خاص دي، نو ځکه د دې شرط په حواله سره به مذکوره معامله کتابت او معاوضه نه وي بلکي اعتاق وي، او اعتاق په فاسد شرط سره نه باطلیږي، بلکي په خپله شرط باطلیږي، نو ځکه په پورتنی مسلمان کي به هم شرط باطلیږي او د بدل کتابت په اداء کولو سره به غلام آزادیږي. (احسن الهدایه)

## د مکاتب لپاره د نکاح کولو، صدقه او هبه کولو او داسي نورو کارونو حکم

قَالَ: وَلَا يَتَزَوَّجُ إِلَّا بِإِذْنِ الْمَوْلٰى فرمایي: او مکاتب د مالک له اجازت څخه بغیر خپل نکاح نه سي کولای لِأَنَّ الْكِتَابَةَ فَكُّ الْحَجْرِ مَعَ قِيَامِ الْمِلْكِ ضَرُورَةَ التَّوَسُّلِ إِلَى الْمَقْصُودِ ځکه چې عقد کتابت د بندیز لیري کول دي سره د پاتېدلو [د مالک] د ملکیت، مقصود ته د وسیله جوړېدلو [د مقصود حاصلولو] د ضرورت په خاطر وَالتَّزَوُّجُ لَيْسَ وَسِيلَةً إِلَيْهِ او نکاح کول د مقصود حاصلولو وسیله نه ده وَيَجُوزُ بِإِذْنِ الْمَوْلٰى خو د مالک په اجازت سره نکاح کول جائز دي لِأَنَّ الْمِلْكَ لَهُ ځکه چې [د مکاتب] ملکیت مالک لره حاصل دی وَلَا يَهَبُ وَلَا يَتَصَدَّقُ إِلَّا بِالشَّيْءِ الْيَسِيرِ او مکاتب هبه او صدقه هم نه سي کولای مګر په معمولي شي سره لِأَنَّ الْهِبَةَ وَالصَّدَقَةَ تَبَرُّعٌ ځکه چې هبه او صدقه تبرع ده وَهُوَ غَيْرُ مَالِكٍ لِيُمَلِّكَهُ او مکاتب [د مال] مالک نه دی چې بل څوک د هغه مالک کړي إِلَّا أَنَّ الشَّيْءَ الْيَسِيرَ مِنْ ضَرُورَاتِ التِّجَارَةِ خو معمولي شی ورکول د تجارت [کاروبار] له ضروریاتو څخه دی لِأَنَّهُ لَا يَجِدُ بُدًّا مِنْ ضِيَافَةٍ وَإِعَارَةٍ لِيَجْتَمِعَ عَلَيْهِ الْمُجَاهِزُونَ ځکه چې هغه ته له مېلمستیا او عاریتاً ورکولو څخه چاره نسته د دې لپاره چې کاروباریان [د تجارتي کاروان (قافلې) تاجران] د هغه سره جمع سي [یعني د تجارت کولو او بدل کتابت ګټلو لپاره مکاتب ته کله د دې ضرورت هم پېښیږي چې د کاروباري حضراتو او خلکو د راجلبولو لپاره هغوی ته د مېلمستیا انتظام وکړي یا هغوی ته د څه وخت لپاره یو شی (مثلا څاروی او داسي نور) ورکړي] وَمَنْ مَلَكَ شَيْئًا او کوم کس چې د یو شي مالک سي [یعني کوم کس ته

چي د يو شي ملكيت او اختيار حاصل وي، لكه مكاتب ته چي د تجارت كولو اختيار حاصل دى] يَمْلِكُ مَا هُوَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ وَتَوَابِعِهِ نو هغه كس د هغه شي د ضرورياتو [لوازماتو] او توابعو هم مالک كيږي [نو ځكه به مكاتب ته د تجارت د لوازماتو او توابعو اختيار هم وي] وَلَا يَتَكَفَّلُ او مكاتب [د يو چا] كفيل نه سي جوړېداى لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ ځكه چي كفالت [كفيل كېدل] خالص تبرع ده فَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِ التِّجَارَةِ وَالِاكْتِسَابِ لهذا كفالت د تجارت كولو او مال گټلو له ضرورياتو څخه نه دى فَلَا يَمْلِكُهُ بِنَوْعَيْهِ نَفْسًا وَمَالًا نو ځكه مكاتب لره به د كفالت د دواړو قسمونو يعني [د يو چا] د نفس او مال كفيل كېدلو ملكيت نه وي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ تَبَرُّعٌ ځكه چي دا هريو تبرع ده وَلَا يُقْرِضُ او مكاتب [يو چا ته] قرض هم نه سي وركولاى لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ لَيْسَ مِنْ تَوَابِعِ الِاكْتِسَابِ ځكه چي قرض وركول تبرع ده كوم چي د مال گټلو له توابعو څخه نه ده وَإِنْ وَهَبَ عَلٰى عِوَضٍ او كه مكاتب پر عوض هبه وكړي [يعني مكاتب چي كوم كس ته شى هبه كړي، له هغه څخه د هبې په عوض كي يو شى واخلي] لَمْ يَصِحَّ نو دا هم صحيح نه دي لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً ځكه دا په شروع كي تبرع ده [ځكه چي مكاتب په شروع كي د هبې په توګه بلا عوضه شى وركوي او بيا عوض ځني اخلي] فَإِنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ او كه مكاتب [د يو چا سره] د خپلې مينځي نكاح وكړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ اكْتِسَابٌ لِلْمَالِ ځكه چي دا د مال گټل دي [او د مال گټلو طريقه ده] فَإِنَّهُ يَتَمَلَّكُ بِهِ الْمَهْرَ ځكه \ مكاتب په دې سره [د مينځي] د مهر مالک كيږي فَدَخَلَ تَحْتَ الْعَقْدِ نو ځكه دا به [هم] تر عقد لاندي داخل وي.

**اللغات:** ﴿يتزوج﴾ د تفعّل مضارع ده: نكاح كول، واده كول، ﴿فك﴾ د نصر مصدر دى: آزادول، خلاصول، ليري كول، ﴿الحجر﴾ بنديز، پابندي، ﴿توسّل﴾ وسيله جوړېدل، ﴿اعارة﴾ د افعال مصدر دى: عاريتاً وركول، خواست كونكي ته شى وركول (يعني يو څوک خواست وكړي چي دا شى ما ته امانتاً يو څو وخت راكړه زما ضروري پكار دى، نو كه هغه ته شى وركول سي نو دې ته "اعاره" او "عاريتا وركول" وايي)، ﴿تبرّع﴾ د تفعّل مصدر دى: د تفعّل مصدر دى: نېكي او احسان كول، بلا عوضه (مفت) يو شى وركول يا يو كار كول، ﴿بدّ﴾ چاره، ﴿المجاهزون﴾ مراد ځني د تجارتي قافلې

والا خلک او کاروباريان دي، په حاشيه کي يې پوره تعريف سوی دی، ﴿يتكفل﴾ د تفعّل مضارع ده: کفيل کېدل، ذمه وار کېدل، ﴿الاكتساب﴾ دافتعال مصدر دی: گټه کول، مال گټل.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو له ترجمې څخه هم ښکاره کيږي چي د هغه حاصل او خلاصه دا ده چي هر داسي کار کوم چي د کتابت د مقصود يعني دآزادۍ حاصلولو ذريعه او وسيله جوړيږي، د مکاتب لپاره د هغه کول جائز دي او صحيح دي، او کوم کار چي د کتابت د مقصود حاصلولو سره هيڅ واسطه نه لري او دآزادۍ په حاصلولو کي د هغه هيڅ دخل نه وي، مکاتب هغه کار نه سي کولای.

## که مکاتب د خپل غلام سره د کتابت معامله وکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنْ كَاتَبَ عَبْدَهُ فرمايي: او همدارنگه که مکاتب خپل غلام مکاتب جوړ کړي [نو هم جائز دي] وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ او قياس دا دی چي جائز نه سي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دی لِأَنَّ مَآلَهُ الْعِتْقُ ځکه چي د کتابت انجام [آخر] آزادېدل دي وَالْمُكَاتَبُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او مکاتب د آزادولو اهل نه دی كَالْإِعْتَاقِ عَلٰى مَالٍ لکه د مال په عوض کي آزادول [يعني لکه څرنگه چي هغه د مال په عوض کي د خپل غلام دآزادولو اهل او مالک نه دی] وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ عَقْدُ اكْتِسَابٍ لِلْمَالِ د استحسان دليل دا دی چي دا [يعني خپل غلام مکاتب جوړول] د مال گټلو عقد دی فَيَمْلِكُهُ نو ځکه مکاتب به د هغه مالک وي كَتَزْوِيجِ الْأَمَةِ وَكَالْبَيْعِ لکه د مينځي نکاح کول او بيع کول [يعني لکه څرنگه چي مکاتب د خپلي مينځي د نکاح کولو او د خرڅولو و رانيولو مالک دی] وَقَدْ يَكُونُ هُوَ أَنْفَعَ لَهُ مِنَ الْبَيْعِ او ځيني وخت عقد کتابت د هغه لپاره له بيع څخه زيات گټمن وي لِأَنَّهُ لَا يُزِيلُ الْمِلْكَ إِلَّا بَعْدَ وُصُولِ الْبَدَلِ إِلَيْهِ ځکه چي عقد کتابت [د مالک (اول مکاتب)] ملکيت نه زائلوي مگر هغه ته تر بدل رسېدلو وروسته وَالْبَيْعُ يُزِيلُهُ قَبْلَهُ او بيع تر بدل ور رسيدلو مخکي [د مالک] ملکيت زائلوي وَلِهٰذَا يَمْلِكُهُ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ او په همدې وجه پلار او وصي هم د عقد کتابت ملکيت [اختيار] لري ثُمَّ هُوَ يُوجِبُ لِلْمَمْلُوكِ مِثْلَ مَا هُوَ ثَابِتٌ لَهُ بيا دغه عقد کتابت د غلام [دويم مکاتب] لپاره هغه اختيارات ثابتوي کوم چي د مالک [اول مکاتب] لپاره ثابت دي بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ

عَلٰى مَالٍ په خلاف د مال په عوض کي د آزادولو لِأَنَّهُ يُوْجِبُ فَوْقَ مَا هُوَ ثَابِتٌ لَهُ ځکه چي دغه اعتاق د مالک [اول مکاتب] له اختياراتو څخه زيات اختيارات ثابتوي قَالَ: فَإِنْ أَدَّى الثَّانِيْ قَبْلَ أَنْ يُعْتَقَ الْأَوَّلُ فرمايي: که چيري د اول مکاتب له آزادېدلو څخه مخکي دويم مکاتب بدل کتابت اداء کړي فَوَلَاؤُهُ لِلْمَوْلٰى نو د دويم مکاتب ولاء [د اول مکاتب] د مالک لپاره ده لِأَنَّ لَهُ فِيْهِ نَوْعَ مِلْكٍ ځکه چي په دويم مکاتب کي هم د مالک يو ډول ملکيت سته وَتَصِحُّ إِضَافَةُ الْإِعْتَاقِ إِلَيْهِ فِي الْجُمْلَةِ او د هغه [مالک] وطرف ته په يو درجه کي د آزادولو نسبت کول صحيح دي فَإِذَا تَعَذَّرَ إِضَافَتُهُ إِلٰى مُبَاشِرِ الْعَقْدِ نو کله چي د عقد د کونکي وطرف ته د اول مکاتب نسبت کول [يعني اول مکاتب د کتابت عاقد ګرځول] ستونزمن دي لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ ځکه چي [په هغه کي د آزادولو] اهليت نسته أُضِيْفَ إِلَيْهِ نو ځکه د آزادۍ نسبت به د مالک وطرف ته کيږي كَمَا فِي الْعَبْدِ إِذَا اشْتَرٰى شَيْئًا لکه کله چي مأذون غلام يو شی رانيسي يَثْبُتُ الْمِلْكُ لِلْمَوْلٰى نو ملکيت د مالک لپاره ثابتيږي قَالَ: فَلَوْ أَدَّى الْأَوَّلُ بَعْدَ ذٰلِكَ وَعَتَقَ فرمايي: که چيري اول مکاتب تر دې وروسته [يعني د دويم مکاتب تر بدل کتابت اداء کولو او آزادېدلو وروسته] بدل کتابت اداء کړي او آزاد سي لَا يَنْتَقِلُ الْوَلَاءُ إِلَيْهِ نو د هغه [اول مکاتب] وطرف ته ولاء نه منتقل کيږي لِأَنَّ الْمَوْلٰى جُعِلَ مُعْتِقًا ځکه چي [دلته] مالک آزادونکی ګرځول سوی دی وَالْوَلَاءُ لَا يَنْتَقِلُ عَنِ الْمُعْتِقِ او ولاء له آزادونکي څخه [بل چا ته] نه منتقل کيږي وَإِنْ أَدَّى الثَّانِيْ بَعْدَ عِتْقِ الْأَوَّلِ او که چيري د اول مکاتب له آزادېدلو څخه وروسته دويم مکاتب بدل کتابت اداء کړي فَوَلَاؤُهُ لَهُ نو بيا د هغه ولاء د اول مکاتب لپاره ده لِأَنَّ الْعَاقِدَ مِنْ أَهْلِ ثُبُوْتِ الْوَلَاءِ ځکه چي عاقد [يعني اول مکاتب] د ثبوت ولاء اهل دی [يعني د دې اهل دی چي د هغه لپاره ولاء ثابته کړی سي] وَهُوَ الْأَصْلُ او همدا اصل دي فَيَثْبُتُ لَهُ نو ځکه د هغه لپاره به ولاء ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿اکتساب﴾ د افتعال مصدر دی: مال ګټل، ګټه کول، حاصلول. ﴿تزويج﴾ د تفعيل مصدر دی: نکاح ورکول (نکاح ترل)، واده ورکول. ﴿أنفع﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات نفع من، فايده من. ﴿ولاء﴾ مراد ځني د آزاد سوي غلام ميراث دی، يعني کله چي آزاد شُده غلام مړ سي نو د

هغه پاته سوی میراث د هغه د آزادونکي مالک حق کیږي، همدې ته ولاء وایي. ﴿تعذر﴾ د تفعّل ماضي ده: مشکل کېدل (ستونزمن کېدل)، ناممکن کېدل. ﴿أُصل﴾ بنیاده، قاعدهٔ کلیه.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چي څرنګه د بیع و شراء او د مینځي د نکاح کولو ملکیت او اختیار مکاتب سته، همداسي هغه ته د دې اختیار هم سته چي خپل غلام مکاتب جوړ کړي؛ ځکه چي دا هم د مال ګټلو طریقه ده بلکي له بیع څخه غوره طریقه او ذریعه ده؛ ځکه په دې کي چي تر څو دغه مکاتب (مالک) ته بدل کتابت حاصل نه سي، تر هغه وخته له ده څخه د ده ملکیت (مکاتب غلام) نه زائلیږي، لېکن قیاساً دا عقد جائز نه دی؛ ځکه چي د عقد کتابت مقصد او مال آزادېدل دي او مکاتب د آزادولو (اعتاق) ملکیت نه لري، لکه څرنګه چي هغه د اعتاق علیٰ مال یعني د مال په عوض کي د آزادولو ملکیت نه لري؛ ځکه په آزادولو سره د ده مکاتب غلام آزاد ګرځي، لېکن دئ په خپله مکاتب پاتیږي، کوم چي صحیح نه دي؛ نو ځکه قیاساً دا عقد جائز نه دی.

فإن أدّى الثاني إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د اول مکاتب له آزادېدلو څخه مخکي دویم مکاتب غلام بدل کتابت اداء کړي، نو د دغه دویم مکاتب ولاء هم د اول مکاتب مالک ته حاصلیږي؛ ځکه چي اول مکاتب اوس هم د خپل مالک په ملکیت کي دی او پر هغه د مالک ملکیت ثابت دی او څرنګه چي د اول مکاتب د نا آزادوالي په وجه د هغه وطرف ته د اعتاق نسبت کول متعذر دي او په هغه کي د اعتاق اهلیت معدوم دی، نو ځکه دا نسبت به د هغه د مالک وطرف ته کیږي او همدا مالک به د دویم مکاتب د ولاء مستحق کیږي، لکه مأذون لهٗ غلام چي کله یو شی رانیسي نو د هغه ملکیت د ده د مالک لپاره ثابتیږي، همداسي به په دغه پورتنی مسئله کي هم د اعتاق نسبت د مالک وطرف ته کیږي. د دې په خلاف که د اول مکاتب له آزادېدلو څخه وروسته دویم مکاتب بدل کتابت اداء کړي، نو بیا د هغه ولاء اول مکاتب (یعني د دویم مکاتب مالک) ته حاصلیږي؛ ځکه چي اول مکاتب په دې صورت کي د اعتاق (آزادولو) اهل سوی دی او د هغه وطرف ته د اعتاق نسبت کول صحیح او جائز دي او د عاقد (مباشر) کېدلو په وجه هغه اصل دی او د دې خبري مستحق دی چي د هغه وطرف ته د اعتاق نسبت وکړی سي. (احسن الهدایه)

# د مکاتب لپاره خپل غلام د مال په عوض کي آزادول يا د خپل غلام نکاح کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عَلَىٰ مَالٍ فرمايي: او که مالک د مال په عوض کي خپل غلام آزاد کړي أَوْبَاعَهُ مِنْ نَفْسِهِ يا مکاتب خپل غلام د هغه پر ځان خرڅ کړي [يعني د غلام ځان پر غلام خرڅ کړي] أَوْزَوَّجَ عَبْدَهُ يا مکاتب د خپل غلام نکاح وکړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ لَيْسَتْ مِنَ الْكَسْبِ وَلَا مِنْ تَوَابِعِهِ ځکه چي دا شيان د ګټي کولو او د هغه له توابعو څخه نه دي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهُ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ عَنْ رَقَبَتِهِ وَإِثْبَاتُ الدَّيْنِ فِي ذِمَّةِ الْمُفْلِسِ کوم چي اول شی دی نو ځکه چي هغه د ده له رقبې څخه ملکيت ساقطول دي او د مفلس پر ذمه قرض ثابتول دي فَأَشْبَهَ الزَّوَالَ بِغَيْرِعِوَضٍ نو دا بغير له عوضه [د ملکيت] زائلولو سره مشابه سو [يعني دا داسي سوه لکه بغير له عوضه (مفت) خپل ملکيت زائلول] وَكَذَا الثَّانِي او دويم شی [يعني د غلام ځان پر غلام خرڅول] هم داسي دی لِأَنَّهُ إِعْتَاقٌ عَلَىٰ مَالٍ فِي الْحَقِيقَةِ ځکه چي دا په حقيقت کي د مال په عوض کي آزادول دي وَأَمَّا الثَّالِثُ فَلِأَنَّهُ تَنْقِيصٌ لِلْعَبْدِ وَتَعْيِيبٌ لَهُ وَشَغْلُ رَقَبَتِهِ بِالْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ او کوم چي درېيم شی دی نو ځکه چي هغه د غلام لپاره نقص او عيب ثابتول دي او د هغه غاړه په مهر او نفقه سره مشغولول دي بِخِلَافِ تَزْوِيجِ الْأَمَةِ په خلاف د مينځي د نکاح کولو لِأَنَّهُ اكْتِسَابٌ ځکه چي هغه مال ګټل دي لِاسْتِفَادَتِهِ الْمَهْرَ ځکه چي [د مينځي په نکاح کولو سره] مکاتب ته مهر حاصليږي عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سوه قَالَ: وَكَذَلِكَ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ فِي رَقِيقِ الصَّغِيرِ بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبِ فرمايي: همدارنګه [د يو کوچني هلک] پلار او وصي د کوچني هلک د غلام په حق کي د مکاتب په درجه کي دي لِأَنَّهُمَا يَمْلِكَانِ الِاكْتِسَابَ كَالْمُكَاتَبِ ځکه چي پلار او وصي هم [د کوچني په مال سره] د ګټي کولو ملکيت [اختيار] لري لکه مکاتب [چي د ګټي کولو اختيار لري] وَلِأَنَّ فِي تَزْوِيجِ الْأَمَةِ وَالْكِتَابَةِ نَظَرًا لَهُ او ځکه چي [د کوچني] د مينځي په نکاح کولو او [د کوچني] د غلام په مکاتب جوړولو کي د کوچني لپاره شفقت [او مصلحت] سته وَلَا نَظَرَ فِيمَا سِوَاهُمَا او له دغه دوو کارو څخه بغير په بل کي شفقت [او مصلحت] نسته وَالْوِلَايَةُ نَظَرِيَّةٌ او دا ولايت [يعني د پلار او وصي ولي والی] پر شفقت مبني دی.

**اللغات:** ﴿كَسْب﴾ د ضرب له بابه مصدر او اسمِ مصدر دی: ګټه، ګټه کول، د ځان او اهل وعيال لپاره درزق او روزی طلب کول. ﴿رقبة﴾ غاړه، دغلام ذات. ﴿مفلس﴾ تنګلاسی، محتاجه، غريب. ﴿تنقيص﴾ د تفعيل مصدر دی: کمول، کمي پکښې ثابتول. ﴿تعييب﴾ مخکني صيغه ده: عيبداره کول، عيبجن ګرځول. ﴿نظر﴾ شفقت، مصلحت (ښېګڼه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مکاتب خپل غلام د مال په عوض کې آزاد کړي يا د غلام ځان پر غلام خرڅ کړي يا دېو ښځې سره د هغه نکاح وکړي، نو له دغو څخه يو کار هم جائز او صحيح نه دی؛ ځکه چې دغه کارونه خو نه کسب دي او نه د کسب و ګټې له توابعو او لوازماتو څخه دي؛ ځکه د اعتاق علیٰ مال په صورت کې له غلام څخه د مالک ملکيت ساقطيږي او څرنګه چې د غلام سره في الحاله هيڅ پيسه او نغد مال نسته، نو ځکه د اعتاق عوض به هغه في الحاله نه سي اداء کولای او پر دغه غريب به قرض لازم سي (په بله وينا دا چې د مال په عوض کې د خپل غلام آزادولو مطلب دا دی چې د خپل غلام له ذات څخه خپل ملکيت زائلول او د هغه پر ذمه قرض ثابتول، حال دا چې هغه اوس مفلس او ناداره دی، نو ګواکي مالک هغه مفت آزاد کړی)، همدا حال د بيعُ العبد من نفسهٖ هم دی، يعني که څه هم ظاهرا هغه بيع ده لېکن معناً هغه هم اعتاق علیٰ مال دی او د اول صورت والا خرابي دلته هم موجوده ده.

او درېيم صورت ځکه جائز نه دی چې په غلام او مينځه کې نکاح عيب دی، همدا وجه ده که مشتري يو غلام رانيسي او وروسته هغه ته معلومه سي چې دا غلام خو واده والا دی، نو مشتري ته دا اختيار حاصليږي چې هغه رانيول سوی غلام بيرته واپس کړي. او بل دا چې د دغه عيب سره، سره پر غلام مهر، د ښځې نفقه او خورکه هم لازميږي، لهذا دا له اعتاق علیٰ مال څخه هم زيات خطرناک دي، نو ځکه دا کار هم جائز نه دی. د دې په خلاف مکاتب د خپلې مينځې نکاح کولای سي؛ ځکه چې د مينځې په نکاح کولو سره هغه ته د مهر مال حاصليږي او دا مال د بدلِ کتابت د اداء کولو لپاره معاون او مفيد دی.

وكذلك الأب إلخ: فرمايي د اختياراتو او تصرفاتو په حواله سره چې کوم حکم د مکاتب دی، هغه حکم د کوچني هلک د پلار او وصي هم دی، يعني د مکاتب لپاره چې په غلام او مينځه کې د تصرف کوم تفصيل بيان کړی سو، همغه تفصيل په دغه دوو کسانو کې هم جاري کيږي؛ ځکه چې دوی هم د مکاتب په څېر د اکتساب ملکيت او اختيار لري، او بل دا چې د دوی ولايت مبني بر شفقت او مصلحت دی، نو دوی ته به د کوچني هلک په حق کې صرف د شفقت او ښېګڼې والا کارونو د کولو حق وي. (احسن الهدايه)

## مأذون غلام ته له دغه مخکني کارو څخه د يوه اجازت نسته

قَالَ: فَأَمَّا الْمَأْذُونُ لَهُ فَلَا يَجُوزُ لَهُ شَيْءٌ مِنْ ذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ فرمايي: او پاته سو هغه غلام کوم ته چي [د تصرف] اجازت ورکول سوی وي نو هغه ته له مخکني امورو څخه هيڅ شی جائز نه دی د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: لَهُ أَنْ يُزَوِّجَ أَمَتَهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لپاره د خپلي مينځي نکاح کول جائز دي [يعني چي يو چا ته خپله مينځه په نکاح ورکړي] وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْمُضَارِبُ وَالْمُفَاوِضُ وَالشَّرِيكُ شَرِكَةَ عِنَانٍ او پر همدغه اختلاف دي مضارب. مفاوض او د شرکت عنان شريک هُوَ قَاسَهُ عَلَى الْمُكَاتَبِ وَاعْتَبَرَهُ بِالْإِجَارَةِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا د مکاتب مثل ګرځولی دی او پر اجاره يې قياس کړی دی [يا ترجمه دا چي: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مأذون لهٔ غلام پر مکاتب او د هغه تزويج يې پر اجاره قياس کړی دی] وَلَهُمَا: أَنَّ الْمَأْذُونَ لَهُ يَمْلِكُ التِّجَارَةَ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مأذون لهٔ غلام د تجارت [کاروبار] ملکيت لري وَهَذَا لَيْسَ بِتِجَارَةٍ او دا [تزويج الأمة] تجارت نه دی فَأَمَّا الْمُكَاتَبُ يَمْلِكُ الِاكْتِسَابَ او پاته سو مکاتب نو هغه د ګټي کولو ملکيت لري وَهَذَا اكْتِسَابٌ او دا [تزويج الأمة] ګټه کول دي وَلِأَنَّهُ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِغَيْرِ الْمَالِ او ځکه چي دا په غير مال سره مال بدلول دي فَيُعْتَبَرُ بِالْكِتَابَةِ دُونَ الْإِجَارَةِ نو ځکه هغه به پر کتابت قياسول کيږي، نه پر اجاره إِذْ هِيَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ ځکه اجاره خو مال په مال سره بدلول دي [يعني په اجاره کي دواړو طرفونو ته مال وي] وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ هَؤُلَاءِ كُلُّهُمْ تَزْوِيجَ الْعَبْدِ او په همدې وجه دغه ټوله کسان د غلام د نکاح کولو ملکيت [اختيار] نه لري.

**اللغات**: ﴿مأذون لهٔ﴾ هغه غلام کوم ته چي د مالک له طرفه د تصرف او کاروبار کولو اجازت ورکول سوی وي. ﴿المضارب﴾ د بل چا په پيسو سره کاروبار کونکی چي نفع د دواړو په مينځ کي مشترکه وي، ﴿المفاوض﴾ د شرکت مفاوضه يو شريک. بغير له نفع اخيستلو کاروبار کونکی (احسن الهدايه)، ﴿تزويج﴾ د تفعيل مصدر دی: نکاح ورکول (نکاح تړل). واده ورکول. ﴿قاس﴾ د ضرب ماضي ده: قياسول. ﴿اکتساب﴾ د افتعال مصدر دی: ګټه کول. مال ګټل.

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۵، ص:۱۱۴)، بدائع الصنائع (ج:۷، ص:۱۹۷). [القول الراجح ج:۲، ص: ۲۴۰]

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې څرنګه مکاتب ته د دې اختيار نسته چې خپل غلام د مال په عوض کې آزاد کړي يا د خپل غلام يا خپلې مينځې نکاح ديو چا سره وکړي او داسې نور کارونه، همدغسې مأذون لهٗ غلام هم دا کارونه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه سي کولای. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز مأذون لهٗ غلام ته د تزويج امة (يعني ديو چا سره د خپلې مينځې دنکاح کولو) اختيار سته.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هغه پر مکاتب قياس کړی دی، يعني څرنګه چې مکاتب دا کار کولای سي، همداسې يې مأذون لهٗ غلام هم کولای سي، همدارنګه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا تزويج پر اجاره قياس کړی دی چې د مأذون لهٗ غلام لپاره دا جائز دي چې خپل غلام يا مينځه په اُجرت (په مزدوری او په کرايه) ورکړي، نو همداسې به د هغه لپاره دا هم جائز وي چې د خپلې مينځې نکاح ديو چا سره وکړي.

**ولهما أن المأذون إلخ**: د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دي چې مأذون لهٗ غلام ته صرف د تجارت (کاروبار) اختيار سته، او نکاح کول (تزويج) عبادت دی، تجارت نه دی؛ ځکه چې تزويج مبادلةُ المال بالمال نه دی، ځکه بضع په حقيقت کې مال نه دی، حالانکې تجارت مبادلةُ المال بالمال ته وايي، پاته سو مکاتب نو هغه د اکتساب مالک وي او د مينځې نکاح کول هم د اکتساب يو طريقه ده؛ ځکه اکتساب دې ته وايي چې ديو شي په ذريعه ګټه او مال حاصل کړی سي او دا خبره د مينځې په نکاح کولو کې موجوده ده؛ ځکه د هغه په ذريعه د مينځې مهر حاصلول کيږي.

**ولأنه مبادلة المال إلخ**: دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دی چې تزويج (نکاح ورکول) خو مبادلةُ المال بلا مال دی، نو هغه پر کتابت قياسول پکار دي (ځکه چې کتابت هم ابتداءً مبادلة المال بلا مال وي)، او پر اجاره به نه قياسول کيږي؛ ځکه اجاره مبادلةُ المال بالمال وي؛ ځکه چې په اجاره کې منفعت د عَين شي قائم مقام وي نو هغه د مال په حکم سره سو.

او د دې خبري دليل چې تزويج له تجارت څخه نه دی، دا دی چې مأذون لهٗ غلام، مضارب، مفاوض او داسې نورو ته دا اختيار نسته چې د رانيول سوي غلام نکاح ديو چا سره وکړي، حال دا چې دغه کسانو ته د تجارت او اکتساب پوره اختيار وي، نو معلومه سوه چې دا تجارت او اکتساب نه دی. والله اعلم وعلمهٗ اتم



# فَصْــلٌ

## دا فصل د هغه مسائلو په بيان کې دی کوم چې د تبعيت په توګه په عقد کتابت کې داخل دي

## که مکاتب خپل نژدې قريب (ذو رحم محرم) رانيسي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى الْمُكَاتَبُ أَبَاهُ أَوِ ابْنَهُ فرمايي: او کله چې مکاتب خپل پلار يا خپل ځوی رانيسي دَخَلَ فِي كِتَابَتِهِ نو هغه دده په مکاتبت کې داخليږي لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ أَنْ يُكَاتِبَ ځکه چې مکاتب دده اهل دی چې بل څوک مکاتب جوړ کړي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الْإِعْتَاقِ که څه هم هغه د آزادولو اهل نه دی فَيُجْعَلُ مُكَاتَبًا تَحْقِيقًا لِلصِّلَةِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ نو ځکه حتی الامکان د صله رحمۍ ثابتولو لپاره به هغه مکاتب جوړونکی ګرځول کيږي أَلَا تَرَى أَنَّ الْحُرَّ مَتَى كَانَ يَمْلِكُ الْإِعْتَاقَ يُعْتَقُ عَلَيْهِ آيا ته نه ګورې! چې کله آزاد کس د آزادولو مالک سي نو نژدې قريب پر هغه آزاديږي وَإِنِ اشْتَرَى ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ لَا وِلَادَ لَهُ او که چيرې مکاتب داسې ذو رحم محرم رانيسي چې د هغه سره دده د ولادت رشته نه وي لَمْ يَدْخُلْ فِي كِتَابَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه دده په مکاتبت کې نه داخليږي وَقَالَا: يَدْخُلُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې داخليږي اعْتِبَارًا بِقَرَابَةِ الْوِلَادِ د ولادت والا پر قرابت په قياسولو سره إِذْ وُجُوبُ الصِّلَةِ يَنْتَظِمُهُمَا ځکه چې د صله رحمۍ وجوب د ولادت او غير ولادت دواړو قرابتونو لره شامل دی وَلِهَذَا لَا يَفْتَرِقَانِ فِي الْحُرِّ فِي حَقِّ الْحُرِّيَّةِ او په همدې وجه په دوی دواړو کې فرق نسته د آزاد په صورت کې د آزادۍ په حق کې وَلَهُ: أَنَّ لِلْمُكَاتَبِ كَسْبًا لَا مِلْكًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د مکاتب لپاره صرف ګټه کول دي، نه ملکيت [يعني مکاتب ته صرف د مال ګټلو اختيار سته. او هغه د مالک جوړېدلو اهل نه دی] غَيْرَ أَنَّ الْكَسْبَ يَكْفِي لِلصِّلَةِ فِي الْوِلَادِ خو ګټه کول [او پر مال ګټولو قادر کېدل] په قرابت ولادت کې د صله رحمۍ لپاره کافي دي

حَتّٰى أَنَّ الْقَادِرَ عَلَى الْكَسْبِ يُخَاطَبُ بِنَفَقَةِ الْوَالِدِ وَالْوَلَدِ همدا وجه ده چي څوک پر ګټه کولو قادر وي هغه د مور و پلار په نفقه سره مخاطب کيږي [يعني هغه ته دا حکم کيږي چي مور وپلار ته نفقه ورکړي] وَلَا يَكْفِي فِي غَيْرِهِمَا او له مور وپلار څخه بغير په نورو کي [د صله رحمي کولو لپاره] ګټه کول کافي نه دي حَتّٰى لَا تَجِبَ نَفَقَةُ الْأَخِ إِلَّا عَلَى الْمُوسِرِ همدا وجه ده چي د ورور نفقه صرف پر مالدار ورور واجبيږي وَلِأَنَّ هٰذِهِ قَرَابَةٌ تَوَسَّطَتْ بَيْنَ بَنِي الْأَعْمَامِ وَقَرَابَةِ الْوِلَادِ او ځکه چي دا [غيرِ ولادتي قرابت] داسي قرابت دی کوم چي د اکا د ځامنو او قرابت ولادت په مينځ کي دائر دی فَأَلْحَقْنَاهَا بِالثَّانِي فِي الْعِتْقِ وَبِالْأَوَّلِ فِي الْكِتَابَةِ نو ځکه موږ د عتق په حق کي هغه د اول [قرابتِ ولادت] ولادت سره ملحق کړی دی او د کتابت په حق کي مو هغه د دويم [قرابت غيرِ ولادت] سره ملحق کړی دی وَهٰذَا أَوْلٰى او همدا طريقه زياته غوره ده لِأَنَّ الْعِتْقَ أَسْرَعُ نُفُوذًا مِنَ الْكِتَابَةِ ځکه چي عتق له کتابت څخه ژر نافذيدونکی دی حَتّٰى أَنَّ أَحَدَ الشَّرِيكَيْنِ إِذَا كَاتَبَ همدا وجه ده کله چي له دوو شريکانو څخه يو شريک غلام مکاتب جوړ کړي كَانَ لِلْآخَرِ فَسْخُهُ نو بل شريک ته د هغه د فسخ کولو [ماتولو] اختيار سته وَإِذَا أَعْتَقَ [لېکن] کله چي يو شريک غلام آزاد کړي لَا يَكُونُ لَهُ فَسْخُهُ نو بل شريک ته د هغه د فسخ کولو اختيار نسته.

**اللغات:** ﴿يکاتب﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: د خپل غلام سره د کتابت معامله کول، مکاتب جوړول، ﴿الصلة﴾ مراد ځني صله رحمي ده چي د هغه معنیٰ ده: د قرابت او رشته دارۍ خيال ساتل، د قريبانو سره احسان کول، ﴿ينتظم﴾ د افتعال مضارع ده: شامليدل (احسن الهدايه)، ﴿توسطت﴾ د افتعال ماضي ده: په مينځ کي راتلل، ﴿أسرع﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: تېز (ژر کېدونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دي چي که مکاتب خپل پلار يا ځوی رانيسي، نو د هغه حالت هم د مکاتب د حالت په څېر ګرځي يعني هغه هم مکاتب جوړيږي؛ ځکه چي مشتري په خپله مکاتب دی او هغه ته د آزادولو اختيار نسته، نو ځکه د هغه رانيول سوی کس به هم نه آزاديږي، ها! مکاتب جوړيږي، نو په دې اعتبار سره به د هغه له طرفه صله رحمي ثابته سي. دا حکم په هغه صورت کي متفق عليه دې کله چي رانيول سوی کس د مکاتب پلار يا ځوی وي يعني د هغه سره د مکاتب د ولادت قرابت وي، لېکن که رانيول سوی کس د هغه ليري قريب وي او د هغه سره يې د ولادت قرابت

او رشته نه وي (يعني غيرِ ولادتي قريب وي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه مکاتب نه جوړيږي (مکاتب نه ګرځي). صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که مکاتب غير ولادتي قريب رانيسي لکه ورور، اکا، امه او داسي نور، نو هغه هم مکاتب جوړيږي؛ ځکه چي صله رحمي کول د ولادت او غير ولادت دواړو قرابتونو لره شامله ده او د دواړو سره صله رحمي کول اجر او ثواب لري، لهذا څرنګه چي ولادتي قريب د مکاتب په رانيولو سره مکاتب جوړيږي، همداسي به غير ولادتي قريب هم د مکاتب په رانيولو سره مکاتب جوړيږي. همدا وجه دا ده که آزاد کس خپل نژدې قريب (ذو رحم محرم) رانيسي نو برابره ده رانيول سوی قريب ولادتي وي او که غير ولادتي وي، په هر صورت کي هغه آزاديږي او د هغه له قرابت څخه هيڅ بحث نه کيږي، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم بغير له څه بحث او فرق څخه رانيول سوی قريب مکاتب جوړيږي.

وله أن المكاتب إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي مکاتب ته صرف د مال ګټلو ملکيت او اختيار سته، نور هغه د يو چا مالک کېدای نه سي؛ ځکه غلام والی (غلام کېدل) د تملک (مالک جوړېدلو) منافي دی او په مکاتب جوړولو کي هم يو ډول تملک سته، نو ځکه د غير ولادت والا قريب په رانيولو سره به مکاتب د هغه مکاتب جوړونکی نه کيږي، ها! صله رحمي کول غوره او د ثواب کار دی او موږ هم د هغه اقرار کوو، لېکن په هغه کي هم د مراتبو د تفاوت خيال ساتل سوی دی، مثلاً کوم کس چي پر ګټه کولو (کسب) قادر وي، پر هغه د خپل مور و پلار نفقه واجب ده، برابره ده هغه مالدار وي، که نه وي؛ ځکه چي د مور و پلار او بچي په مينځ کي د ولادت قرابت او رشته ده، لېکن که څوک پر ګټه کولو قادر وي خو مالدار نه وي، نو پر هغه د غير ولادتي قريب نفقه واجب نه ده، ګواکي غير ولادت والا قرابت د قرابت بعيده او قرابت قريبه دواړو په مينځ کي مشترک دی، همدا وجه ده د اکا د ځوی په څېر خپل ورور ته هم زکاة ورکول حلال دي او د هغه له وفات (مړېني) څخه وروسته د هغه د ښځي سره نکاح کول جائز دي، نو دا قرابت د قرابت بعيده سره مشابه دی، لېکن د حقيقي خور او ورور په مينځ کي نکاح کول حرام دي خو صله رحمي کول واجب دي، نو په دې اعتبار سره دا قرابت د قرابت قريبه يعني د قرابت ولادت سره مشابه دی، او موږ پر دواړو مشابهتونو عمل کړی دی، نو ځکه موږ د عتق (آزادېدلو) په حق کي قرابت غير ولادت د قرابت ولادت سره لاحق کړی دی او دا فيصله مو کړې ده چي که آزاد کس يو غير ولادتي قريب (مثلاً ورور) رانيسي، نو هغه پر ده آزاديږي، او د کتابت په حق کي مو هغه د غير ولادتي قرابت (قرابت بني اعمام) سره لاحق کړی دی، نو که يو مکاتب يو غير ولادتي قريب (مثلاً ورور يا د اکا ځوی) رانيسي، نو هغه د ده په کتابت کي نه داخليږي، يعني مکاتب نه جوړيږي.

**وهذا أولى إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د عمل کومه طريقه چې پورته ذکر سوې ده (يعني قرابت غير ولادت [قرابت بعيده] د عتق په حق کي د قرابت ولادت سره او د کتابت په حق کي د قرابت غير ولادت سره لاحقول) دغه طريقه له دې څخه غوره ده چې د دې طريقې برعکس وکړی سي (يعني د عتق په حق کي د قرابت غير ولادت سره او د کتابت په حق کي د قرابت ولادت سره لاحق کړی سي)؛ ځکه که چيري موږ قرابت بعيده د کتابت په حق کي د قرابت ولادت سره لاحق کړو، نو د عتق (آزادېدلو) په حق کي به هم د هغه سره لاحقول لازم سي؛ ځکه چې د کتابت په نسبت عتق په زيات سرعت سره نافذېږي، همدا وجه ده که له شريکينو څخه يو شريک د شراکت غلام مکاتب جوړ کړي، نو بل شريک هغه فسخ کولای سي او که يو شريک دا غلام آزاد کړي، نو بل شريک هغه نه سي فسخ کولای. لنډه دا چې د برعکس عمل کول په صورت کي د يوه مشابهت باطلېدل لازميږي، او دواړو مشابهتونو ته عمل ورکول (پر دواړو عمل کول) غوره دي له دې څخه چې صرف يوه ته عمل ورکړی سي.

## که مکاتب خپل اُمِ ولد مينځه رانيسي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى أُمَّ وَلَدِهِ فرمايي: او کله چې مکاتب خپل اُمِ ولد مينځه رانيسي دَخَلَ وَلَدُهَا فِي الْكِتَابَةِ نو د هغې بچی په کتابت کي داخليږي وَلَمْ يَجُزْ بَيْعُهَا او د هغې خرڅول نه جائز کيږي وَمَعْنَاهُ إِذَا كَانَ مَعَهَا وَلَدُهَا د دې مطلب دا دی چې کله د هغې سره خپل بچی هم وي أَمَّا دُخُولُ الْوَلَدِ فِي الْكِتَابَةِ فَلِمَا ذَكَرْنَاهُ کوم چې په کتابت کي د بچي داخلېدل دي نو د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَأَمَّا امْتِنَاعُ بَيْعِهَا فَلِأَنَّهَا تَبَعٌ لِلْوَلَدِ فِي هٰذَا الْحُكْمِ او کوم چې د مينځي د خرڅولو منع کېدل [نه جايز کېدل] دي نو ځکه چې هغه په دې حکم کي د بچي تابع ده قَالَ عليه السلام: «أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا» نبي ﷺ فرمايلي دي: چې هغه [ماريه قبطيه رض] خپل بچي [ابراهيم] آزاده کړه وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهَا وَلَدُهَا او که چيري د مينځي سره بچی نه وي فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ نو هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دغه حکم دی لِأَنَّهَا أُمُّ وَلَدٍ ځکه چې هغه اُمِ ولد ده خِلَافًا لِأَبِي حَنِيفَةَ په خلاف د امام صاحب رَحِمَهُ الله وَلَهُ: أَنَّ الْقِيَاسَ أَنْ يَجُوزَ بَيْعُهَا وَإِنْ كَانَ مَعَهَا وَلَدٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې قياس خو همدا دی چې د هغې بيع جائز سي که څه هم د هغې سره بچی وي لِأَنَّ كَسْبَ الْمُكَاتَبِ مَوْقُوفٌ ځکه چې د مکاتب ګټه موقوفه [مترددة] ده فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ مَا لَا يَحْتَمِلُ

الْفَسْخَ نو ځکه د هغه سره به داسي حکم نه متعلق کيږي کوم چي د فسخ احتمال نه لري إِلَّا أَنَّهُ يَثْبُتُ هٰذَا الْحَقُّ فِيمَا إِذَا كَانَ مَعَهَا وَلَدٌ تَبَعًا ليکن که د هغې سره بچی وي نو په دې صورت کي دغه [د بيع منع کېدلو] حق تبعاً ثابتيږي لِثُبُوتِهِ فِي الْوَلَدِ بِنَاءً عَلَيْهِ په بچي کي د دغه حق د ثابتېدلو پر بناء وَبِدُونِ الْوَلَدِ لَوْ ثَبَتَ او که چيري بغير له بچي دا حق ثابت سي ثَبَتَ ابْتِدَاءً نو هغه له شروع څخه [مستقلاً] ثابتيږي وَالْقِيَاسُ يَنْفِيهِ حال دا چي قياس د دې نفي کوي وَإِنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ مِنْ أَمَةٍ لَهُ او که د مکاتب له يو مينځي څخه د مکاتب بچی پيدا سي دَخَلَ فِي كِتَابَتِهِ نو هغه [هم] د ده په کتابت کي داخليږي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْمُشْتَرَى د هغه دليل په وجه کوم چي مورږ د رانيول سوي بچي په باره کي بيان کړی دی فَكَانَ حُكْمُهُ كَحُكْمِهِ وَكَسْبُهُ لَهُ نو د دغه بچي حکم به د مکاتب د حکم په څېر وي او د بچي ګټه به د مکاتب لپاره وي لِأَنَّ كَسْبَ الْوَلَدِ كَسْبُ كَسْبِهِ ځکه چي د دغه بچي ګټه د مکاتب د ګټې ګټه ده وَيَكُونُ كَذٰلِكَ قَبْلَ الدَّعْوَةِ او د نسب له دعوې څخه مخکي [هم] د بچي ګټه د هغه لپاره وي فَلَا يَنْقَطِعُ بِالدَّعْوَةِ اخْتِصَاصُهُ نو د نسب په دعوىٰ کولو سره به دغه اختصاص [يعني د مکاتب سره د بچي د ګټې خاص والی به] نه ختميږي وَكَذٰلِكَ إِنْ وَلَدَتِ الْمُكَاتَبَةُ وَلَدًا همدارنګه که مکاتبه مينځه بچی وزېږوي [نو بچی د هغې په کتابت کي داخليږي] لِأَنَّ حَقَّ امْتِنَاعِ الْبَيْعِ ثَابِتٌ فِيهَا مُؤَكَّدًا ځکه چي په مکاتبه مينځه کي د بيع د منع کېدلو [نه جائز کېدلو] حق په تاکيد سره ثابت دی فَيَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ نو ځکه دا حق به د هغې د بچي وطرف ته هم سرايت کوي كَالتَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ لکه څرنګه چي په مُدَبّر جوړولو او اُم ولد جوړولو کي کيږي.

**اللغات:** ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، نه کېدل. ﴿تبع﴾ تابع. ﴿کسب﴾ ګټه. ﴿الدعوة﴾ د نصر د باب مصدر دی: بلل، مراد: دعوىٰ کول. ﴿مؤکد﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: مضبوط، فيصله سوی. ﴿يسري﴾ د ضرب مضارع ده: سرايت کول، تجاوز کول، رسېدل. ﴿تدبير﴾ د تفعيل مصدر دی: مُدبّر جوړول، د خپل غلام آزادي پر خپل مرګ معلق کول، يعني خپل غلام ته ويل چي "زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!". ﴿استيلاد﴾ د استفعال مصدر دی: اُم ولد

جوړول، یعني د بچي پیدا کېدلو په نیت د خپلې مینځې سره وطي کول او بیا د هغه وطي په نتیجه کي بچی پیدا کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که مکاتب خپل اُم ولد مینځه رانیسي نو د هغې بچی د خپل پلار (مکاتب) په شان مکاتب جوړیږي او پلار او ځوی دواړه د پلار د مالک مکاتبین ګرځي (لیکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي د مور له رانیولو څخه مخکي دا بچی پیدا سوی وي)؛ ځکه چي مکاتب خپل ذی رحم محرم نه سي آزادولای، خو مکاتب یې جوړولای سي، او د دې بچي مور یعني اُم ولد خرڅول د مکاتب لپاره جائز نه دي؛ ځکه چي د بیع په نه جائز کېدلو کي دغه مور د خپل بچي تابع ده او څرنګه چي د هغې د بچي بیع ممنوع ده، نو ځکه د هغه د مور خرڅول به هم ممنوع وي؛ ځکه څرنګه چي بچی من وجه آزاد سوی دی، همداسي د هغه په مور کي هم آزادي سرایت کړی دی، لکه ماریه قبطیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چي کله بچی وزېږوی (چي د هغه نوم ابراهیم کښېښوول سو)، نو نبي ﷺ وفرمایل: "أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا" چي ماریه قبطیه خپل بچي (ابراهیم) آزاده کړه، او آزاد کس خرڅول او رانیول ممنوع دي.

وإن لم یکن معها إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د دغه اُم ولد مینځې بچی في الحاله موجود نه وي، نو هم د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغې خرڅول جائز نه دي؛ ځکه چي دا مینځه د مالک اُم ولد جوړه سوې ده او د هغې بیع ممتنع سوې ده، لهذا د "الفَاسِدُ لَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا" د قاعدې پر بناء به د هغې خرڅول جائز نه وي، لیکن د قیاس تقاضا دا ده چي د هغې بیع (خرڅول) جائز سي که څه هم د هغې سره بچی هم وي؛ ځکه چي د مکاتب ګټه موقوفه او متردّده وي یعني دا معلومه نه وي چي هغه به بدل کتابت اداء کړی سي او که نه، آزاد به سي او که بیرته به غلام وګرځي (ځکه چي د بدل کتابت په نه اداء کولو سره هغه بیرته خالص غلام ګرځي)، د دې په خلاف اُم ولد کېدل او د بیع نه جائز کېدل قطعي او یقیني وي او په هغه کي د فسخ احتمال نه وي او د فسخ قابل نه وي، او کوم شی چي د فسخ قابل وي (یعني فسخ کېدای سي) داسي شی له هغه شي څخه ادنیٰ دی کوم چي د فسخ قابل نه وي، نو ادنیٰ به د اعلیٰ سره نه لاحقول کیږي او د بچي په ناموجودیت کي به د اُم ولد بیع جائز کیږي.

ها! کله چي بچی موجود وي نو په دې صورت کي د بچي د تابع والي په توګه په مور کي هم بیع ممتنع کیږي؛ ځکه چي مور د همدې بچي په وجه د آزادي مستحقه سوې ده، نو ځکه د بچي او مور دواړو حکم به یو وي.

که چیري د مکاتب له یو مینځي یا د هغه له مکاتبه مینځي ځخه بچی پیدا سي، نو دا بچی د پلار تابع کیږي او مکاتب ګرځي او د هغه ګټه هم د مکاتب کیږي. باقي عبارت ښکاره دی. (احسن الهدایه)

## د خپل غلام سره د خپلي مینځي نکاح کول او بیا دواړه مکاتب جوړول

قَالَ: وَمَنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ مِنْ عَبْدِهِ ثُمَّ كَاتَبَهُمَا فرمایي: او که څوک د خپل غلام سره د خپلي مینځي نکاح وکړي بیا هغه دوی دواړه مکاتب جوړ کړي فَوَلَدَتْ مِنْهُ وَلَدًا بیا مکاتبه مینځه له هغه غلام ځخه بچی وزیږوي دَخَلَ فِي كِتَابَتِهَا نو دا بچی د هغې په کتابت کي داخلیږي وَكَانَ كَسْبُهُ لَهَا او د بچي ګټه [ګټل سوی مال] به د هغې لپاره وي لِأَنَّ تَبَعِيَّةَ الْأُمِّ أَرْجَحُ ځکه چي د مور تبعیت [تابع کېدل] غالب دی وَلِهٰذَا يَتْبَعُهَا فِي الرِّقِّ وَالْحُرِّيَّةِ او په همدې وجه بچی په غلاموالي او آزاد والي کي د مور تابع کیږي.

**تشریح:** صورت د مسئلې آسانه دی کوم چي له ترجمې ځخه هم ښکاره کیږي، خو دا خبره یاد ساتل پکار دي چي په حریت او رقیت کي خو بچی د مور تابع کیږي، لیکن په نسب کي د پلار تابع کیږي، په همدې وجه دلته بچی د مور تابع ګرځول سوی دی او همدا مور د هغه د ګټې حقداره ګرځول سوې ده.

## د مینځي سره د آزادي ښځي په ګومان د مکاتب نکاح کول

قَالَ: وَإِنْ تَزَوَّجَ الْمُكَاتَبُ بِإِذْنِ مَوْلَاهُ امْرَأَةً زَعَمَتْ أَنَّهَا حُرَّةٌ فرمایي: او که چیري مکاتب د خپل مالک په اجازه د یو داسي ښځي سره نکاح وکړي چي هغه دا ګومان کوي چي زه آزاده یم [یعني د هغې آزاد والی په یقیني توګه معلوم نه وي او هغه پر خپل ګومان او دعویٰ څه حجت نه لري] فَوَلَدَتْ مِنْهُ ثُمَّ اسْتُحِقَّتْ بیا هغه مینځه له دغه مکاتب ځخه بچی وزیږوي او بیا هغه د بل چا مستحقه وخیږي [یعني بل څوک دعویٰ وکړي چي هغه زما مینځه ده او خپله دعویٰ ثابته کړي او مینځه واخلي. لهذا دا مینځه مکاتب ته دوکه او فریب ورکونکې سوه. ځکه د مکاتب خیال دا وو چي دا مینځه به آزاده وي او له هغې ځخه به زما بچیان آزاد پیدا سي، لیکن هغه په دې باره کي دوکه سو] فَأَوْلَادُهَا عَبِيدٌ نو د هغې بچیان غلامان دي وَلَا يَأْخُذُهُمْ بِالْقِيمَةِ او مکاتب [پلار] هغوی په قیمت سره نه سي اخیستلای وَكَذٰلِكَ الْعَبْدُ يَأْذَنُ لَهُ الْمَوْلَى بِالتَّزْوِيجِ او همدا حکم د هغه غلام هم دی کوم ته چي مالک د نکاح کولو اجازت ورکړی وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي

يُوسُفَ او دا حكم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دى وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❁: أَوْلَادُهَا أَحْرَارٌ بِالْقِيمَةِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه [مستحق شده] مينځي بچيان د قيمت په عوض كي آزاد دي لِأَنَّهُ شَارَكَ الْحُرَّ فِي سَبَبِ ثُبُوتِ هٰذَا الْحَقِّ ځكه چي دا مكاتب غلام د دغه حق [يعني د قيمت په عوض كي د بچيانو د آزادى] په ثابتېدلو كي د آزاد كس سره شريک سو وَهُوَ الْغُرُورُ او هغه سبب دوكه [فريب] دى وَهٰذَا لِأَنَّهُ مَا رَغِبَ فِي نِكَاحِهَا إِلَّا لِيَنَالَ حُرِّيَّةَ الْأَوْلَادِ او دا ځكه چي مكاتب صرف په همدې خاطر د هغې په نكاح كي رغبت كړى وو چي د خپلو بچيانو آزاد والى حاصل كړي وَلَهُمَا: أَنَّهُ مَوْلُودٌ بَيْنَ رَقِيقَيْنِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي هغه بچى د دوو غلامانو په مينځ كي پيدا سوى دى [يعني د هغه مور وپلار دواړه غلامان (تر غلامى لاندي) دي] فَيَكُونُ رَقِيقًا نو ځكه هغه به [هم] غلام وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ الْوَلَدَ يَتْبَعُ الْأُمَّ فِي الرِّقِّ وَالْحُرِّيَّةِ او دا ځكه چي اصل همدا دى چي بچى په غلاموالي او آزاد والي كي د مور تابع كيږي وَخَالَفْنَا هٰذَا الْأَصْلَ فِي الْحُرِّ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او د آزاد كس په حق كي موږ د صحابه وو په اجماع سره د دغه اصل مخالفت كړى دى وَهٰذَا لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ او مكاتب د آزاد كس په معنىٰ سره نه دى (احسن الهدايه) [د حاشيې د مراجعو په لحاظ سره د دې جملې معنىٰ ده: او د مكاتب بچى د آزاد مغرور (دوكه كړى سوي) د بچي په معنىٰ سره نه دى (حاشيه)] لِأَنَّ حَقَّ الْمَوْلَى هُنَاكَ مَجْبُورٌ بِقِيمَةٍ نَاجِزَةٍ وَهٰهُنَا بِقِيمَةٍ مُتَأَخِّرَةٍ إِلَى مَا بَعْدَ الْعِتَاقِ ځكه چي هلته [د آزاد كس (مغرور) په صورت كي] په نغد قيمت سره د مالک حق پوره كول كيږي او د لته [د مكاتب او غلام په صورت كي] په داسي قيمت سره پوره كول كيږي كوم چي تر آزادېدلو وروسته دى فَيَبْقَى عَلَى الْأَصْلِ فَلَا يُلْحَقُ بِهِ نو [دلته] به حكم پر اصل باقي پاتيږي او دا [د مكاتب و غلام] به د هغه سره نه لاحقول كيږي.

**اللغات**: ﴿إذن﴾ اجازت، اجازه، ﴿زعمت﴾ د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده، له فتح او نصر دواړو څخه راتلاى سي، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوى څخه يو معنىٰ ده: گومان كول (گومان ساتل)، خيال كول، او دا باب اكثراً د باطل او شكمن گومان لپاره استعماليږي (معجم الوسيط)،

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما قول المتون، انظر كنز الدقائق (ص:۳۲۶)، وملتقى الأبحر (ج:۴، ص:۱۲)، و كذا في رد المحتار (ج:۵، ص:۷۲).

﴿استحقت﴾ د استفعال له بابه مخکنی صيغه ده: مستحق ختل، استحقاق پکښې ثابتېدل، ﴿عَبِيْد﴾ جمع د عَبْدٌ ده: غلامان، ﴿شارك﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: شريک کېدل، ﴿رغب﴾ د سمع ماضي ده: رغبت کول، طمع او ميلان کول، ﴿ينال﴾ د فتح مضارع ده: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿رقيق﴾ مملوک، هغه کس کوم چې د يو چا تر ملکيت او غلامۍ لاندې وي، دا لفظ د واحد او جمع دواړو لپاره استعمالېږي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿مجبور﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی، اصل معنی يې ده: جوړ کړی سوي (اصلاح کړی سوي) هډوکی، پټی کړی سوی، مراد: تلافي کړی سوی، پوره کړی سوی، ﴿ناجزة﴾ او نَاجِز: نقد (نغد)، حاضر، موجود.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مکاتب له خپل مالک څخه اجازت واخلي او د يو داسي ښځې سره نکاح وکړي کوم چې د خپل ځان د آزاد والي نعرې وهي او مکاتب د همدې آزاد والي په خاطر نکاح ور سره وکړي او له دوی څخه بچی پيدا سي، بيا هغه ښځه د يو بل چا (مثلاً د زيد) مستحقه وخيږي او له مکاتب څخه هغه واخلي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغې بچي غلام ګرځي او پلار (مکاتب) داسي نه سي کولای چي مستحق کس (زيد) ته قيمت ورکړي او د قيمت په عوض کي بچی آزاد کړي. امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي پلار د قيمت ورکولو په عوض کي بچی آزادولای سي؛ ځکه چي پلار (مکاتب) ته دوکه ورکول سوې ده؛ ځکه د هغه منکوحه ښځه مينځه ثابته سوه او په نکاح سره د هغه مقصد حاصل نه سو. او څرنګه چي که آزاد کس ته دوکه ورکول سوې وي، نو هغه ته دا حق سته چي خپل بچی (يعني د دوکه ورکونکي ميځي څخه پيدا سوی بچی) د قيمت په عوض کي آزاد وګرځوي، نو همداسي که مکاتب او غلام ته دوکه ورکول سوې وي، نو دوی ته به هم دا حق او اختيار وي چي خپل اولاد د قيمت په عوض کي آزاد وګرځوي.

د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي دلته په دې مسئله کي کوم بچی پيدا سوی دی، د هغه مور و پلار دواړه رقيق او تر غلامۍ لاندي دي او د همدوی له نطفې څخه هغه پيدا سوی دی، نو ځکه هغه به هم غلام وي او بل دا چي په حريت او رقيت کي خو بچی د مور تابع کيږي، نو ځکه د سړي د آزادېدلو په صورت کي هم د هغه بچی غلام کېدل پکار دي، لېکن څرنګه چي د آزاد کس په حق کي موږ د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنۡهُم په اجماع سره هغه ته د قيمت په عوض کي د خپل بچي د آزادولو اجازت ورکړی دی او په مکاتب او غلام کي دغه اجماع نسته، نو ځکه د دوی په حق کي به حکم پر اصل باقي پاتيږي او د مستحق شُده مينځي په متابعت کي به د هغې بچی هم رقيق او غلام ګرځي. د دغه سلسلې عقلي دليل دا دی چي آزاد کس د خپل ګټې او نورو شيانو مالک وي او د هغه لپاره دا

ممکنه وي چې سمدستي د قيمت په اداء کولو سره د مالک يا د مستحق کس د حق بدل ورکړي، حال دا چې د غلام او مکاتب سره في الحاله نغد مال او داسي نور نه وي او دوی که قيمت ورکړي هم، نو تر آزادۍ وروسته به يې ورکړي چې په دې سره به د مالک حق متاخر سي کوم چې د مالک لپاره يو ډول نقصان دی، نو ځکه په دې حواله سره به هم غلام او مکاتب د آزاد کس سره نه لاحقول کيږي (احسن الهدايه) والله أعلم

## د مکاتب مملوکه او موطوئه مينځه د بل چا مستحقه ثابتېدل (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ وَطِئَ الْمُكَاتَبُ أَمَةً عَلَى وَجْهِ الْمِلْكِ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَوْلَى فرمايي: که چيري مکاتب د مالک له اجازت څخه بغير د ملکيت [مالک والي] په توګه د يو مينځي سره وطي وکړي ثُمَّ اسْتَحَقَّهَا رَجُلٌ بيا يو سړی د هغه مينځي مستحق وخيږي فَعَلَيْهِ الْعُقْرُ يُؤْخَذُ بِهِ فِي الْكِتَابَةِ نو پر دغه مکاتب د مينځي مهر واجبيږي او دا مهر به په حالت د کتابت کي له هغه څخه اخيستل کيږي وَإِنْ وَطِئَهَا عَلَى وَجْهِ النِّكَاحِ او که مکاتب د هغې سره د نکاح [خاوند والي] په توګه وطي وکړي لَمْ يُؤْخَذْ بِهِ حَتَّى يُعْتَقَ نو له آزادېدلو څخه مخکي به له دغه مکاتب څخه مهر نه اخيستل کيږي وَكَذَلِكَ الْمَأْذُونُ لَهُ او همدا حکم د مأذون لهٔ غلام دی وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ ظَهَرَ الدَّيْنُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى او وجه د فرق دا ده چي په اول صورت کي [د عقر] قرض د مالک په حق کي ښکاره کيږي لِأَنَّ التِّجَارَةَ وَتَوَابِعَهَا دَاخِلَةٌ تَحْتَ الْكِتَابَةِ ځکه چي تجارت او د هغه توابع [متعلقات] تر عقد کتابت لاندي داخل دي وَهَذَا الْعُقْرُ مِنْ تَوَابِعِهَا او دغه عُقر هم د تجارت له توابعو څخه دی لِأَنَّهُ لَوْلَا الشِّرَاءُ لَمَا سَقَطَ الْحَدُّ ځکه که رانيول نه وای [يعني که مينځه رانيول سوې نه وای] نو له مکاتب څخه به د زنا حد ساقط سوي نه وای وَمَا لَمْ يَسْقُطِ الْحَدُّ لَا يَجِبُ الْعُقْرُ او تر څو چي له هغه څخه حد ساقط سوي نه وای نو پر هغه به عقر هم نه واجبېدای أَمَّا لَمْ يَظْهَرْ فِي الْفَصْلِ الثَّانِي ليکن په دويم صورت کي نه ښکاره کيږي لِأَنَّ النِّكَاحَ لَيْسَ مِنَ الِاكْتِسَابِ فِي شَيْءٍ ځکه چي نکاح په هيڅ شي کي هم له اکتساب څخه نه ده فَلَا يَنْتَظِمُهُ الْكِتَابَةُ نو ځکه کتابت به هغه لره نه شامليږي كَالْكَفَالَةِ لکه کفالت [لره چي نه شامليږي] قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى الْمُكَاتَبُ جَارِيَةً شِرَاءً فَاسِدًا ثُمَّ وَطِئَهَا فَرَدَّهَا فرمايي: او کله چي مکاتب د فاسد رانيولو په

توګه يو مينځه رانيسي بيا د هغې سره وطي وکړي او واپس يې کړي أُخِذَ بِالْعُقْرِ فِي الْمُكَاتَبَةِ نو له هغه شخصه به د کتابت په حالت کي عُقر اخيستل کيږي وَكَذٰلِكَ الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهٗ او همدا حکم د مأذون لهٗ غلام هم دی لِأَنَّهٗ مِنْ بَابِ التِّجَارَةِ ځکه شراء فاسد [په فاسده توګه رانيول] هم د تجارت له باب څخه دي فَإِنَّ التَّصَرُّفَ تَارَةً يَقَعُ صَحِيحًا وَمَرَّةً يَقَعُ فَاسِدًا ځکه تصرف [شراء] کله صحيح واقع کيږي او کله فاسد واقع کيږي وَالْكِتَابَةُ وَالْإِذْنُ يَنْتَظِمَانِهِ بِنَوْعَيْهِ او کتابت او اجازت د تصرف [شراء] دغه دواړو قسمونو لره شامليږي كَالتَّوْكِيلِ لکه وکيل جوړول [چي دواړو لره شامليږي] فَكَانَ ظَاهِرًا فِي حَقِّ الْمَوْلٰى نو ځکه دغه عُقر [دعقر قرض] به د مالک په حق کي ښکاره کيږي

**اللغات**: ﴿وطي﴾ د سمع ماضي ده: وطي کول، کور والی کول (جماع کول)، ﴿عقر﴾ مخکي ذکر سوه چي د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: مهر، د وطي تاوان او جرمانه، هغه مال (مهر) کوم چي د غير صحيح وطي په عوض کي پر وطي کونکي لازم سي، دلته ځني مراد د موطوئه مينځي په څېر مينځو چي څومره مهر وي، هغومره مهر ځني مراد دی لکه څرنګه چي مخکي په حاشيه کي هم ذکر سوه، ﴿مأذون لهٗ﴾ هغه غلام کوم ته چي د مالک له طرفه د تصرف او کاروبار اجازت ورکول سوی وي.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱).... که مکاتب د مالک له اجازت څخه بغير يو مينځه رانيسي او د هغې سره جماع وکړي، بيا يو سړی د هغې د استحقاق دعوىٰ وکړي او له مکاتب څخه يې واخلي، نو له دغه مکاتب څخه به د همدې کتابت په حالت کي د موطوئه مينځي مهر اخيستل کيږي او د هغه د آزادېدلو تر وخته پوري به دا مهر نه ځنډول کيږي. د دې په خلاف که مکاتب د نکاح کولو په ذريعه د دې مينځې سره وطي کړي وي، نو له هغه څخه به في الحاله مهر نه اخيستل کيږي بلکي د هغه تر آزادېدلو پوري به ځنډول کيږي (يعني تر آزادېدلو وروسته به ځني اخيستل کيږي).

په نکاح او شراء کي فرق دا دی چي د شراء يعني د رانيولو او تجارت په ذريعه د يو شي مالک جوړېدل تر عقد کتابت لاندي داخل دي؛ ځکه چي د همدې عقد کتابت په وجه مکاتب ته د شراء حق حاصل دی او د همدې شراء پر بنياد مکاتب د مينځي سره وطي کړي دي او له هغه څخه حد ساقط سوی دی، او څرنګه چي عقد کتابت د مالک په اجازت او رضا سره سوی دی، نو ځکه مذکوره عُقر به هم د مالک په حق کي ښکاره کيږي او له مکاتب څخه به في الحاله د دغه عُقر مطالبه

کيږي (يعني هغه وخت به عُقر نه ځني اخيستل کيږي کله چې هغه آزاد سي او د مالک له ملکيته ووځي بلکې في الحاله د مالک په ملکيت کې به ځني اخيستل کيږي). د دې په خلاف څرنګه چې نکاح کول د تجارت او اکتساب سره متعلق نه دي، نو د نکاح په وطي کې به د کتابت او د مالک هيڅ دخل نه وي، نو ځکه هغه به د غلام تر آزادېدلو پوري ځنډول کيږي، او په کتابت يعني د مالک په حق کې به هيڅ لاسوهنه نه کيږي، لکه کله چې مکاتب د يو چا کفيل سي، نو تر آزادېدلو وروسته له هغه څخه د کفالت مطالبه کيږي (ځکه چې کتابت کفالت لره هم نه شامليږي)، نو همدغسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د مينځې تر آزادۍ وروسته له هغه څخه عُقر اخيستل کيږي.

(۲)... دويمه مسئله د شراء فاسد ده چې که مکاتب يا مأذونٌ لهٗ غلام (يعني هغه غلام کوم ته چې د تجارت اجازت ورکول سوی وي) د شراء فاسد په توګه مينځه رانيسي او د هغې سره وطي وکړي، بيا د عقد فاسدېدلو په وجه هغه مينځه مالک (بائع) ته واپس کړي، نو عُقر في الحاله واجبيږي يعني له دوی څخه به في الحاله د مينځې مهر اخيستل کيږي، ځکه چې فاسد رانيول هم تجارت دی؛ ځکه تصرف کله صحيح واقع کيږي او کله فاسد. او کتابت او د تجارت اجازت د تصرف دغه دواړو قسمونو لره شامل دی لکه څرنګه چې په توکيل کې کيږي چې مطلق وکيل ته د صحيح تصرف او فاسد تصرف دواړو اختيار وي، نو ګواکې مالک د دې اجازت ورکړی دی، نو ځکه دغه عُقر به هم د مالک په حق کې ښکاره کيږي.

## که مکاتبه مينځه د مالک له نطفې څخه بچی وزېږوي (حکم او تفصيل)

(فَصْلٌ) قَالَ: وَإِذَا وَلَدَتِ الْمُكَاتَبَةُ مِنَ الْمَوْلَى فرمايي: او کله چې مکاتبه مينځه له مالک څخه بچی وزېږوي فَهِيَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَتْ مَضَتْ عَلَى الْكِتَابَةِ وَإِنْ شَاءَتْ عَجَّزَتْ نَفْسَهَا وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو هغې ته اختيار دی که وغواړي نو پر عقد کتابت دې قائم پاته سي او که وغواړي نو د بدل کتابت له اداء کولو څخه دې ځان عاجزه وګرځوي او د مالک اُم ولد دې وګرځي لِأَنَّهَا تَلَقَّتْهَا جِهَتَا حُرِّيَّةٍ: عَاجِلَةٌ بِبَدَلٍ وَآجِلَةٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ ځکه چې [دلته] مکاتبه مينځې ته د آزادۍ دوه اړخونه حاصل سوي دي: ① د بدل په اداء کولو سره د سمدستي آزادېدلو اړخ ② او بغير له بدل اداء کولو څخه د مالک تر مرګ وروسته د آزادېدلو اړخ فَتُخَيَّرُ بَيْنَهُمَا نو ځکه هغې ته به د دغه دوو اړخونو په مينځ کې اختيار ورکول کيږي [چې د هغې هر اړخ خوښ وي هغه دې اختيار کړي] وَنَسَبُ وَلَدِهَا ثَابِتٌ مِنَ الْمَوْلَى وَهُوَ حُرٌّ او د هغې [مکاتبه مينځې] د بچي نسب د مالک سره ثابت دی او هغه آزاد دی لِأَنَّ الْمَوْلَى يَمْلِكُ الْإِعْتَاقَ فِي

وَلَدِهَا ځکه چي مالک د هغې د بچي د آزادولو ملکيت [اختيار] لري وَمَا لَهُ مِنَ الْمِلْكِ يَكْفِي لِصِحَّةِ الِاسْتِيلَادِ بِالدَّعْوَةِ او پر هغه چي مالک ته کوم ملکيت حاصل دی هغه د نسب د دعوې لپاره کافي دی وَإِذَا مَضَتْ عَلَى الْكِتَابَةِ او کله چي ښځه پر کتابت قائم پاته سي [يعني د بدل اداء کولو اړخ اختيار کړي] أَخَذَتِ الْعُقْرَ مِنْ مَوْلَاهَا نو هغه به عُقر [خپل مهر] له مالک څخه اخلي لِاخْتِصَاصِهَا بِنَفْسِهَا وَبِمَنَافِعِهَا ځکه چي مکاتبه د خپل نفس او منافعو [ګټو] سره مختصه ده [يعني نفس او منافع د هغې سره خاص دی او هغه يې مالکه ده] عَلَى مَا قَدَّمْنَا لکه مخکي چي موږ ذکر کړه ثُمَّ إِنْ مَاتَ الْمَوْلَى بيا که چيري مالک مړ سي عَتَقَتْ بِالِاسْتِيلَادِ نو د استيلاد [اُم ولد کېدلو په وجه] دا مکاتبه آزاديږي وَسَقَطَ عَنْهَا بَدَلُ الْكِتَابَةِ او له هغې څخه بدل کتابت ساقطيږي وَإِنْ مَاتَتْ هِيَ وَتَرَكَتْ مَالًا او که چيري [اول] دا مکاتبه مړه سي او [په ميراث کي] مال پريږدي تُؤَدَّى مِنْهُ مُكَاتَبَتُهَا نو له هغه مال څخه به بدل کتابت اداء کول کيږي وَمَا بَقِيَ او څومره مال چي پاته سي مِيرَاثٌ لِابْنِهَا نو دا د هغې د بچي لپاره ميراث دی [نو د هغې بچي ته به ورکول کيږي] جَرْيًا عَلَى مُوجَبِ الْكِتَابَةِ د کتابت پر مقتضا په عمل کولو سره وَإِنْ لَمْ تَتْرُكْ مَالًا او که چيري هغه مال نه پريږدي فَلَا سِعَايَةَ عَلَى الْوَلَدِ نو پر بچي خواري کښل [يعني مال ګټل او مالک ته ورکول] لازم نه دي لِأَنَّهُ حُرٌّ ځکه هغه خو آزاد دی وَلَوْ وَلَدَتْ وَلَدًا آخَرَ او که مکاتبه مينځه بل بچي وزيږوي لَمْ يَلْزَمِ الْمَوْلَى إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَ نو هغه بچي [يعني د هغه نسب] پر مالک نه لازميږي مګر دا چي مالک د هغه [د نسب] دعویٰ وکړي لِحُرْمَةِ وَطْئِهَا عَلَيْهِ ځکه چي پر مالک د هغې سره وطي کول حرام دي فَلَوْ لَمْ يَدَّعِ وَمَاتَتْ مِنْ غَيْرِ وَفَاءٍ نو که چيري مالک [د دويم بچي د نسب] دعویٰ نه وکړي او مکاتبه مينځه د بدل کتابت له پوره کولو [اداء کولو] څخه بغير مړه سي سَعَى هٰذَا الْوَلَدُ نو دغه بچی به خواري کاږي لِأَنَّهُ مُكَاتَبٌ تَبَعًا لَهَا ځکه چي هغه د مور د تابع والي په وجه مکاتب دی فَلَوْ مَاتَ الْمَوْلَى بَعْدَ ذٰلِكَ او که چيري تر دې وروسته مالک مړ سي عَتَقَ وَبَطَلَ عَنْهُ السِّعَايَةُ نو دا بچی آزاديږي او له هغه څخه خواري کښل ساقطيږي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أُمِّ الْوَلَدِ ځکه چي اوس دا بچی د اُم ولد په درجه کي دی إِذْ هُوَ وَلَدُهَا ځکه چي هغه د اُم ولد بچی دی فَيَتْبَعُهَا نو ځکه د هغې به د تابع کيږي.

**اللغات:** ﴿الخيار﴾ اختيار، ﴿عجزت﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: ځان عاجزه ښکاره کول، عاجزه ګرځول (د

عاجزي وطرف ته نسبت کول)، ﴿تلقت﴾ د تفعّل له بابه مخکنی صیغه ده: حاصلېدل، ترلاسه کېدل، ور سره مخامخ کېدل، ﴿عاجلة﴾ ژر کېدونکي، سمدستي (فوري)، ﴿استیلاد﴾ داستفعال مصدر دی: خپله مینځه اُم ولد جوړول، ﴿مضت﴾ د ضرب له بابه مخکنی صیغه ده، د دې باب په صله کي چي "عَلٰ" راسي، نو معنیٰ یې ده: جاري کول، نافذول، (باقي پرېښوول)، ﴿عقر﴾ د دې معنیٰ څه مخکي تېره سوه، ﴿يسعٰى﴾ د فتح له بابه د واحد مذکر غائب مضارع صیغه ده: سَعٰى يَسْعٰى سِعَايَةً: کوشش او هڅه کول (دیو چا په حق او حاجت پوره کولو کي کوشش کول)، خواري کښل، مراد ځني کسب او مزدوري کول او د آزادېدلو لپاره مال ګټل او مالک ته ور کول دي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که مکاتبه مینځه د خپل مالک له وطي او نطفې څخه یو بچی وزېږوي نو دغه مکاتبه مینځې ته له دوو اختیاراتو څخه یو اختیار حاصلېږي: ① یو دا چي د بدلِ کتابت په اداء کولو سره دي سمدستي آزادي حاصله کړي. ② او دویم دا چي د بدلِ کتابت له اداء کولو څخه دي عاجزي ښکاره کړي او د خپل مالک اُمِ ولد دي وګرځي او د هغه تر مرګ وروسته دي آزادي حاصله کړي؛ ځکه چي د مکاتبه والي په وجه هغې ته د آزادۍ یو اړخ او جهت له مخکي څخه حاصل وو، او د اُمِ ولد کېدلو په وجه اوس هغې ته د آزادۍ بل اړخ هم حاصل سو، نو ځکه دغه مکاتبه مینځې ته به له پورتني دوو اختیاراتو څخه یو اختیار حاصل وي. او که چیري دغه مینځه کتابت اختیار کړي (یعني د بدلِ کتابت اداء کول اختیار کړي)، نو پر مالک د هغې مهر (عقر) لازمېږي؛ ځکه چي مکاتبه مینځه د خپل ځان او د خپلو ګټو او منافعو مالکه او مختاره ده او څرنګه چي مالک د وطي کولو په وجه د هغې (د بضع) منافع حاصل کړي دي، نو ځکه پر خاوند به د منافعو بدل (د وطي جرمانه) د مهر په شکل سره لازم وي. او د دغه مالک له نطفې څخه چي کوم بچی پیدا سوی دی، هغه آزاد دی؛ ځکه چي د هغه پلار یعني مالک آزاد دی او نسب د پلار له طرفه ثابتېږي، او بل دا چي د مالک له طرفه د نسب دعویٰ کول د دغه بچي د آزادولو په څېر دي، او څرنګه چي دلته له دعوې څخه بغیر دغه بچی د مالک سره ثابتُ النسب دی، نو د دعوې په صورت کي خو به په درجه اولیٰ د هغه سره ثابتُ النسب وي.

ولوولدت ولدًا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که دغه مکاتبه مینځه بل بچی هم وزېږوي، نو د مالک له دعوې څخه بغیر د بچي نسب د هغه سره نه ثابتېږي؛ ځکه چي پورتنۍ مسئله په هغه حالت کي فرض کړی سوې ده چي مکاتبه مینځي کتابت اختیار کړی دی نو اوس د دغه مینځې سره د مالک وطي کول حرام سوي دي، نو ځکه له دعوې څخه بغیر به دا بچی د مالک سره ثابت النسب نه ګرځي، او

که چیري د ده مور له بدل کتابت ورکولو څخه مخکې مړه سي، نو دا بچی د مور په متابعت کې مکاتب ګرځي او د مور بدل کتابت اداء کول د ده پر ذمه لازمیږي. (احسن الهدایه)

## د خپل أم ولد مینځي سره د کتابت معامله کول

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ الْمَوْلَى أُمَّ وَلَدِهِ فرمايي: او کله چي مالک خپله اُم ولد مینځه مکاتبه جوړه کړي جَازَ نو جائز دي لِحَاجَتِهَا إِلَى اسْتِفَادَةِ الْحُرِّيَّةِ قَبْلَ مَوْتِ الْمَوْلَى ځکه چي د مالک له مرګ څخه مخکې هغه د آزادۍ حاصلولو ته محتاجه ده وَذَلِكَ بِالْكِتَابَةِ او دا حاجت په کتابت سره پوره کیږي وَلَا تَنَافِيَ بَيْنَهُمَا او په استیلاد او کتابت کې منافات هم نسته لِأَنَّهُ تَلَقَّتْهَا جِهَتَا حُرِّيَّةٍ ځکه چي دغه مکاتبه اُم ولد مینځي ته د آزادۍ دوه اړخونه حاصل دي فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى بیا که چیري مالک مړ سي عَتَقَتْ بِالِاسْتِيلَادِ نو دا مینځه د استیلاد [اُم ولد کېدلو] په وجه آزادیږي لِتَعَلُّقِ عِتْقِهَا بِمَوْتِ السَّيِّدِ ځکه د هغې آزادي د مالک پر مرګ معلقه وه [ځکه اُم ولد د مالک تر مرګ وروسته خپله آزادیږي] وَسَقَطَ عَنْهَا بَدَلُ الْكِتَابَةِ او له هغې څخه بدل کتابت ساقطیږي لِأَنَّ الْغَرَضَ مِنْ إِيجَابِ الْبَدَلِ الْعِتْقُ عِنْدَ الْأَدَاءِ ځکه چي د بدل واجبولو غرض [د بدل] اداء کولو په وخت کې آزادېدل دي [یعني د هغه مقصد دا دی چي د بدل اداء کولو په وخت کې دغه مینځي ته آزادي حاصله سي] فَإِذَا عَتَقَتْ قَبْلَهُ [لېکن] کله چي هغه له بدل اداء کولو څخه مخکې آزاده سوه لَا يُمْكِنُ تَوْفِيرُ الْغَرَضِ عَلَيْهِ نو پر مالک د دغه غرض تر لاسه کول ممکن پاته نه سوه فَسَقَطَ وَبَطَلَتِ الْكِتَابَةُ نو ځکه بدل [بدل کتابت] به ساقطیږي او کتابت به باطلیږي لِامْتِنَاعِ إِبْقَائِهَا بِغَيْرِ فَائِدَةٍ ځکه بلا فایدې کتابت باقي پرېښوول ممتنع دي غَيْرَ أَنَّهُ تُسَلَّمُ لَهَا الْأَكْسَابُ وَالْأَوْلَادُ خو دغه مکاتبه مینځي ته به خپل بچیان او ګټې ور سپارل کیږي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ انْفَسَخَتْ فِي حَقِّ الْبَدَلِ وَبَقِيَتْ فِي حَقِّ الْأَكْسَابِ وَالْأَوْلَادِ ځکه چي کتابت د بدل په حق کې فسخ سوی دی او د ګټو او بچیانو په حق کې باقي دی لِأَنَّ الْفَسْخَ لِنَظَرِهَا ځکه چي فسخ د هغې د مصلحت [ښېګڼي] لپاره ده [یعني کتابت د همدغه مکاتبه مینځي د مصلحت په خاطر فسخ کړی سوی دی] وَالنَّظَرُ فِيمَا ذَكَرْنَاهُ او مصلحت [ښېګڼه] په همغه صورت کې ده کوم چي موږ ذکر کړی دی وَلَوْ أَدَّتِ الْمُكَاتَبَةُ قَبْلَ مَوْتِ الْمَوْلَى او که چیري د مالک له مرګ څخه مخکې دغه مکاتبه بدل کتابت اداء کړي

عَتَقَتْ بِالْكِتَابَةِ نو هغه د کتابت په واجه آزاديږي لِأَنَّهَا بَاقِيَةٌ ځکه چي [په دې صورت کې] کتابت باقي دی.

**اللغات:** ﴿استفادة﴾ د استفعال مصدر دی: حاصلول، فايده ترلاسه کول. ﴿تنافي﴾ د تفاعل اسمِ مصدر دی: منافات، تضاد. ﴿السيّد﴾ مولیٰ، مالک. ﴿توفير﴾ د تفعيل مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: پوره کول، خوندي کول، پوره ورکول، پوره اخيستل (ترلاسه کول)، (معجم الوسيط، مصباح اللغات). ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل (ممنوع کېدل). ﴿أكساب﴾ جمع د کَسْبٌ ده: ګټې، ګټل سوي مالونه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل اُم ولد مينځه مکاتبه جوړه کړي، نو دا عقد کتابت جائز او صحيح دی، ځکه د مالک له مرګ څخه مخکي اُم ولد نه سي آزادېدلای، او له مرګ څخه مخکي که هغه آزادي حاصلول غواړي نو د دې صرف يوه لاره ده چي هغه کتابت دی، لهذا هغه د بدلِ کتابت په اداء کولو سره آزادېدلای سي. بيا که چيري له بدلِ کتابت اداء کولو څخه مخکي مالک مړ سي، نو دا مکاتبه مينځه د اُم ولد کېدلو په وجه آزاديږي او له هغې څخه کتابت او بدلِ کتابت ساقطيږي؛ ځکه چي دغه مکاتبه مينځې ته د آزادۍ دوې طريقې او دوه اړخونه حاصل دي: ① د استيلاد طريقه کوم چي بغير له بدلِ کتابت څخه ده، ② د مکاتبت طريقه کوم چي د بدل (بدلِ کتابت) سره ده، او له دغو څخه چي کومه طريقه هم موجوده سي، د هغې مطابق دا مينځه آزاديږي، او کله چي هغه د استيلاد په وجه آزاده سي، نو له هغې څخه بدلِ کتابت ساقطيږي؛ ځکه کله چي دلته د بدلِ کتابت له اداء کولو څخه بغير دغه مکاتبه مينځه د استيلاد په وجه آزاده سوه، نو بيا به هغه ولي بلا وجه د بدل اداء کولو مکلفه ګرځول کيږي.

غيرأنه إلخ: د دې حاصل دا دی چي د استيلاد په وجه د دغه مينځې د آزادېدلو په صورت کي له هغې څخه بدلِ کتابت خو ساقطيږي او کتابت فسخ کيږي، لېکن دا کتابت د هغې د اولاد او اکسابو په حق کي باقي پاتيږي او د هغې اولاد او اکساب (ګټې) ټول د هغې کيږي؛ ځکه چي دغه مکاتبه مينځه د خپل نفس او د خپلو مالونو او اکسابو مالکه ګرځېدلې وه، او عقد کتابت صرف د هغې د مصلحت او فايدې لپاره فسخ کړی سوی دی، او د هغې فايده او مصلحت په همغه صورت کي دی کوم چي موږ بيان کړی، يعني چي اولاد او اکساب د هغې په ملکيت کي پاته سي. ها! که چيري د مالک له مرګ څخه مخکي دا مکاتبه مينځه بدلِ کتابت اداء کړي او آزاده سي، نو په دې صورت کي

هغه د عقد كتابت په وجه آزاديږي؛ ځکه چي عقد کتابت اوس هم قائم او باقي دی چي هغه د دغه مينځي په حق کي د آزادۍ له دوو طريقو څخه يوه طريقه ده. (احسن الهدايه)

## د خپل مدبره مينځي سره د كتابت معامله كول (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ كَاتَبَ مُدَبَّرَتَهُ فرمايي: او كه چيري مالك خپل مُدبّره مينځه مكاتبه جوړه كړي جَازَ نو جائز دي لِمَا ذَكَرْنَا مِنَ الْحَاجَةِ د هغه دليل حاجت په وجه كوم چي [ څه مخكي] موږ ذكر كړى وَلَا تَنَافِيَ او په [كتابت او تدبير] كي منافات نسته إِذِ الْحُرِّيَّةُ غَيْرُ ثَابِتَةٍ ځكه چي [په مُدبّر كي فى الحاله] آزادي ثابته نه وي وَإِنَّمَا الثَّابِتُ مُجَرَّدُ الِاسْتِحْقَاقِ بلكي [په هغه كي] محض د آزادۍ استحقاق ثابت وي وَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى وَلَا مَالَ لَهُ غَيْرُهَا او كه چيرې مالک مړ سي او د مالک لپاره مال نه وي له دغه مُدبّره مينځي څخه بغير [يعني مالک په ميراث کي صرف دا مُدبّره مكاتبه مينځه پرېږدي] فَهِيَ بِالْخِيَارِ بَيْنَ أَنْ تَسْعَى فِي ثُلُثَيْ قِيمَتِهَا أَوْ جَمِيعِ مَالِ الْكِتَابَةِ نو هغې ته اختيار دى كه وغواړي نو د خپل قيمت د دوو حصو د اداء كولو لپاره دي خواري وكاږي [يعني دوې حصې قيمت دي په يو كار او مزدورۍ سره وگټي او مالك ته دي يې وركړي] يا دي د ټوله بدل كتابت د اداء كولو لپاره خواري وكاږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا حكم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دى وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: تَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنْهُمَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له دواړو څخه په كم [الېز] يوه كي به خواري كاږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: تَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنْ ثُلُثَيْ قِيمَتِهَا وَثُلُثَيْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د قيمت له دوو حصو او د بدل كتابت له دوو څخه چي كوم يو كم [الېز] وي په هغه كي به خواري كاږي فَالْخِلَافُ فِي الْخِيَارِ وَالْمِقْدَارِ نو دغه اختلاف په اختيار وركولو او مقدار دواړو كي دى فَأَبُو يُوسُفَ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي الْمِقْدَارِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د مقدار په باره كي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دى وَمَعَ مُحَمَّدٍ فِي نَفْيِ الْخِيَارِ او د اختيار نه وركولو په باره كي د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دى أَمَّا الْخِيَارُ فَفَرْعُ تَجَزِّي الْإِعْتَاقِ كوم چي خيار دى نو د اعتاق د متجزي كېدلو فرع ده [يعني د اختيار وركولو اختلاف د اعتاق د

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهندية (ج:۵، ص:۱۱)، و رد المحتار (ج:۵، ص:۷۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۴۲]

متجزي کېدلو د اختلاف فرع ده] وَالْإِعْتَاقُ عِنْدَهُ لَمَّا تَجَزَّأَ نو څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعتاق متجزي کیږي [یعني د هغه په نېز دا جائز دي چې د غلام یا مینځې په یوه جزء (یوه حصه) کې آزادي ثابته سي او بل جزء د مخکې په څېر تر غلامی لاندې پاته سي] بَقِيَ الثُّلُثَانِ رَقِيقًا نو ځکه د دغه مُدبره مینځې دوې حصې به رقیق [تر غلامۍ لاندې] پاته وي وَقَدْ تَلَقَّاهَا جِهَتَا حُرِّيَّةٍ بِبَدَلَيْنِ: مُعَجَّلَةٍ بِالتَّدْبِيرِ وَمُؤَجَّلَةٍ بِالْكِتَابَةِ او دغه مینځې ته د دوو بدلونو په عوض کې د آزادۍ دوه اړخونه حاصل دي: ① یو دا چې د تدبیر په وجه سمدستي هغه آزاده سي ② او دویم دا چې د بدلِ کتابت تر اداء کولو وروسته آزاده سي فَتُخَيَّرُ نو ځکه به هغې ته اختیار ورکول کیږي وَعِنْدَهُمَا لَمَّا عَتَقَ كُلُّهَا بِعِتْقِ بَعْضِهَا او څرنګه چې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغې د بعضې حصې د آزادېدلو په وجه د هغې ټوله حصه آزاده سوې ده [ځکه چې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز اعتاق نه متجزي کیږي] فَهِيَ حُرَّةٌ وَجَبَ عَلَيْهَا أَحَدُ الْمَالَيْنِ نو ځکه هغه به پوره آزاده وي [او] پر هغې به له دواړو مالونو څخه یو مال واجب وي فَتَخْتَارُ الْأَقَلَّ لَا مَحَالَةَ نو خامخا به هغه اقل یو [کمتر مال] اختیاروي فَلَا مَعْنَى لِلتَّخْيِيرِ نو ځکه [هغې ته] د اختیار کولو لپاره هیڅ معنیٰ [او وجهه] نسته وَأَمَّا الْمِقْدَارُ فَلِمُحَمَّدٍ أَنَّهُ قَابَلَ الْبَدَلَ بِالْكُلِّ وَقَدْ سَلِمَ لَهَا الثُّلُثُ بِالتَّدْبِيرِ او کوم چې [اختلاف د] مقدار دی نو د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې مالک [دلته] بدل د ټولې مُدبّره مینځې مقابل ګرځولی دی او حال دا چې د تدبیر [مدبره کېدلو] په وجه د هغې لپاره یوه حصه سالم پاته ده [یعني د تدبیر په وجه هغې ته یوه حصه حاصله سوې ده] فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ يَجِبَ الْبَدَلُ بِمُقَابَلَتِهِ نو د هغه په مقابله کې د بدل واجبېدل نا ممکن دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ سَلِمَ لَهَا الْكُلُّ بِأَنْ خَرَجَتْ مِنَ الثُّلُثِ يَسْقُطُ كُلُّ بَدَلِ الْكِتَابَةِ آیا ته نه ګورې! چې که د هغې لپاره ټوله نفس سلامت پاته سي په دې توګه چې هغه له ثلث څخه ووځي نو ټوله بدلِ کتابت ساقطیږي فَهٰهُنَا يَسْقُطُ الثُّلُثُ نو دلته [چې څرنګه هغه له ثلث څخه نه ده وتلې نو ځکه له بدل څخه] به یو ثلث ساقطیږي فَصَارَ كَمَا إِذَا تَأَخَّرَ التَّدْبِيرُ عَنِ الْكِتَابَةِ نو دا داسي سو لکه مُدبّر جوړول چې تر مکاتب جوړولو وروسته کړی سي وَلَهُمَا: أَنَّ جَمِيعَ الْبَدَلِ مُقَابَلٌ بِثُلُثَيْ رَقَبَتِهَا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې ټوله بدل د دغه مینځې د دوو حصو په مقابله کې دی فَلَا يَسْقُطُ مِنْهُ شَيْءٌ نو

ځکه له بدل ځخه به هيڅ شی هم نه ساقطیږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْبَدَلَ وَإِنْ قُوبِلَ بِالْكُلِّ صُورَةً وَصِيغَةً او دا حکم ځکه دی چي بدل که څه هم لفظاً او صورتاً د مینځي د ټوله ذات په مقابله کي دی لٰكِنَّهُ مُقَيَّدٌ بِمَا ذَكَرْنَا مَعْنًى وَإِرَادَةً لیکن معناً او مراداً هغه زموږ په ذکر کړی سوي صورت سره مقید دی لِأَنَّهَا اسْتَحَقَّتْ حُرِّيَّةَ الثُّلُثِ ظَاهِرًا ځکه چي په ښکاره [د تدبیر په وجه] هغه د یوې حصې د آزادۍ مستحقه سوې ده وَالظَّاهِرُ أَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يَلْتَزِمُ الْمَالَ بِمُقَابَلَةِ مَا يَسْتَحِقُّ حُرِّيَّتَهُ او ښکاره دا ده چي انسان د هغه څه [حصې] په مقابله کي پر ځان مال نه لازموي کوم چي انسان د هغه د آزادۍ مستحق سوی وي وَصَارَ كَمَا إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثِنْتَيْنِ ثُمَّ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا عَلَى أَلْفٍ او دا داسي سوه لکه یو څوک چي خپلي ښځي ته دوه طلاقه ورکړي او بیا د زرو درهمو په عوض کي هغې ته دري طلاقه ورکړي كَانَ جَمِيعُ الْأَلْفِ بِمُقَابَلَةِ الْوَاحِدَةِ الْبَاقِيَةِ نو ټوله زر درهمه د ما بقي یوه طلاق په مقابله کي راځي لِدَلَالَةِ الْإِرَادَةِ ځکه چي اراده [پر همدې] دلالت کوي كَذَا هٰهُنَا نو همداسي به دلته هم وي بِخِلَافِ مَا إِذَا تَقَدَّمَتِ الْكِتَابَةُ په خلاف د هغه صورت کله چي کتابت مخکي سوی وي وَهِيَ الْمَسْأَلَةُ الَّتِي تَلِيهِ او دا هغه مسئله ده کوم چي د دې حکم سره متصله ده [یعني کوم چي د دې عبارت د مسئلې سره متصل ذکر سوې ده، چي هغه به په را روان عبارت کي راسي] لِأَنَّ الْبَدَلَ مُقَابَلٌ بِالْكُلِّ ځکه چي [هلته] بدل د ټولي مینځي په مقابله کي دی إِذْ لَا اسْتِحْقَاقَ عِنْدَهُ فِي شَيْءٍ ځکه د عقد کتابت په وخت کي په هیڅ شي کي هم استحقاق نه ثابتیږي فَافْتَرَقَا نو دواړه سره جلا سول [یعني: اِفْتَرَقَ حُكْمُ تَقَدُّمِ الْكِتَابَةِ عَلَى التَّدْبِيرِ وَحُكْمُ تَأَخُّرِهَا].

**اللغات:** ﴿مدبره﴾ هغه مینځه چي مالک ورته ویلي وي: ته زما تر مرګ وروسته آزاده یې!، یعني د هغې آزادېدل یې پر خپل مرګ معلق کړي وي، د تدبیر حکم دا دی چي مُدبّره مینځه او مُدبّر غلام د مالک تر مرګ وروسته د هغه د مال له یوې حصې (یوه ثلث) څخه آزادیږي، لیکن که چیري مالک له مُدبّر غلام یا مُدبّره مینځي څخه بغیر بل هیڅ مال نه پرېښودي، نو په دې صورت کي د مُدبّر غلام او مُدبّره مینځې صرف یوه حصه (یو ثلث) آزادیږي او د پاته دوو حصو د قیمت لپاره به مُدبّر او مُدبّره مال ګټي (سعایه به کوي) او هغه به د مالک وارثانو ته ورکوي چي هغوی به یې په خپل مینځ کي سره تقسیموي، کله چي مُدبّر او مُدبّره د خپل باقي دوو حصو قیمت اداء کړي، نو بیا آزادیږي، لکه په

باب التدبير کي چي د دې پوره تفصيل تېر سو، دلته مو بړ محض ستاسو د ياد دابنت لپاره په لنډه توګه هغه ذکر کړی دی، ﴿مجرد الاستحقاق﴾ محض مستحق کېدل. ﴿تسعٰی﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده: کوشش او هڅه کول، خواري کښېل، مراد ځني کسب او مزدوري کول او د پاته حصې د آزادولو لپاره مال ګټل دي، ﴿ثُلُثَي﴾ تثنيه د ثُلُثٌ او ثُلْثٌ ده: دوې درېيمي حصې، يو شی چي درې حصې کړل سي، نو د هغه يوې حصې ته ثُلث او دوو حصو ته يې ثُلثان وايي، ﴿تجزئ﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: متجزي کېدل، يعني جزء، جزء کېدل (حصه، حصه کېدل)، پر څو برخو او حصو تقسيمېدل، ﴿سَلِمَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: سالم پاتېدل (خوندي کېدل)، صاحب د اشرف الهدايې دا صيغه د تفعيل له بابه "سُلِّمَ" ذکر کړې ده کوم چي د ورسپارلو معنیٰ ورکوي، ﴿قُوبِل﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: يو شی د بل شي سره مقابله کېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(١)... که مالک خپل مُدبّره مينځه مکاتبه جوړه کړي (او بدلِ کتابت مثلاً نهه سوه [٩٠٠] درهمه وټاکي)، نو د هغه دا فعل جائز او صحيح دی؛ ځکه چي مُدبّره مينځه د مالک تر مړه کېدلو مخکي هم آزادۍ ترلاسه کولو ته محتاجه وي او دغه حاجت صرف د عقد کتابت د لاري پوره کېدای سي، نو ځکه د مالک عقد کتابت کول جائز دي؛ او څرنګه چي د تدبير په وجه دغه مينځه آزاده سوې نه ده، بلکي صرف د آزادۍ مستحقه سوې ده، نو ځکه په کتابت او تدبير کي به منافات هم نه وي او د مکاتبه مينځي په خېر به هغې ته د آزادۍ دوې طريقې حاصله وي: ① عاجلة ببدل، ② آجلة بلا بدل، او په دغه دواړو کي هيڅ منافات نسته، نو ځکه دا عقد جائز او صحيح دی.

وإن مات المولى إلخ: (٢)... که چيري د مُدبّره مينځي تر مکاتبه جوړولو وروسته مالک مړ سي او له دغه مينځي څخه بغير د مالک بل مال پاته سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دغه مينځي ته له دوو طريقو څخه د يوې طريقې اختيار حاصليږي: ① يو دا چي هغه دي د خپل قيمت دوې حصې (دوه ثلثه) اداء کړي او آزادي دي حاصله کړي، ② يا دي د ټوله بدلِ کتابت په اداء کولو سره آزادي حاصله کړي. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هغې ته اختيار نه حاصليږي، بلکي د قيمت په دوو حصو او په بدلِ کتابت کي چي د کوم يوه مقدار کم وي، د هغه په اداء کولو سره دي آزاده سي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم هغې ته اختيار نه حاصليږي، بلکي د قيمت په دوو حصو او د بدلِ کتابت په دوو حصو کي چي د کوم يوه مقدار کم وي، هغه دي وګټي او آزاده دي سي.

دلته چي په اختيار حاصلېدلو او نه حاصلېدلو (اختيار ورکولو او نه ورکولو) کي کوم اختلاف دی، هغه په حقيقت کي د اعتاق د متجزي کېدلو او نه کېدلو پر اختلاف مبني دی، ځرنګه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعتاق متجزي کيږي او دلته د مالک په ميراث کي له دغه مينځي څخه بغير بل هيڅ مال نسته، نو ځکه د مالک تدبير د هغې په يوه حصه (يو ثلث) کي مؤثر کيږي نو د مالک په مرګ سره د هغې يوه حصه آزاده سوه او دوه حصې يې تر غلامۍ لاندي پاته سوې، او د مالک په مرګ سره تدبير د آزادۍ حاصلولو عاجله طريقه جوړه سوه او کتابت مؤجل (وروسته ثابتېدونکی) دی، نو ځکه هغې ته به له دغه دوو څخه د يوه د اختيارولو حق وي، د دې لپاره چي هغه د خپل حالت او حيثيت په اعتبار سره آسانه طريقه خپله کړي او په آسانه طريقه سره آزادي حاصله کړي.

د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اعتاق نه متجزي کيږي (بلکي کله چي په يو جزء او حصه کي آزادي ثابته سي نو د دوی په نېز ټوله اجزاء آزاد ګرځي) نو د مالک په مرګ سره د هغې يوه حصه نه، بلکي هغه په بشپړه توګه آزاده او حره وګرځېده، نو اوس به پر هغې همغه مال لازم وي کوم يو چي له بدل کتابت او د هغې له قيمت څخه کم وي، ځکه دا خبره فيصله سوې ده چي د ورکولو په وخت کي عاقل خامخا همېشه کم مقدار اختياروي، نو ځکه دلته هغې ته اختيار ورکول هيڅ معنیٰ او وجه نه لري. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دې سلسله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی.

د مقدار په سلسله کي چي کوم اختلاف دی، د هغه په هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي مالک د مينځي د ټوله ذات په عوض کي بدل کتابت مثلاً ۹۰۰ درهمه ټاکلي وو، لېکن د مالک په مړه کېدلو سره د تدبير په وجه حقيقتاً د يوې حصې (يوه ثلث) د آزادېدلو په وجه د مينځي ذات ته آزادي حاصله سوه او فقط دوې حصې (دوه ثلثه) باقي پاته سوه، نو ښکاره خبره ده چي د يوې حصې په مقابله کي چي د بدل کوم مقدار دی يعني ۳۰۰ درهمه، هغه به ساقطيږي او په ''دوو حصو قيمت'' او ''دوو حصو بدل کتابت'' کي چي کوم يو کم وي، مينځه به د همهغه د اداء کولو مکلفه کيږي. همدا وجه ده که د مالک په ميراث کي له دغه مُدبّره مينځي څخه بغير بل مال وای او مينځه د مال له يوې حصې (يوه ثلث) څخه وتلې وای، نو له مينځي څخه به ټوله بدل کتابت ساقطېدای، لهذا ځرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي مينځه له يوه ثلث څخه نه وځي (ځکه چي مالک هيڅ مال پرې اينبي نه دی)، نو ځکه د بدل ثلث (يوه حصه) به ساقطيږي، لکه ځرنګه چي که مالک مينځه اول مکاتبه جوړه کړې وای او بيا يې مُدبّره جوړه کړې وای او د هغې له بدل کتابت اداء کولو څخه مخکي مالک مړ سوي وای، نو په دې صورت کي به هم د بدل ثلث ساقطېدای، نو همداسي به دلته هم د بدل ثلث ساقطيږي. دلته په دې باره کي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د امام محمد رَحِمَهُ الله سره نه دی.

د شيخينو دليل دا دی چي له بدل څخه به لږغوندي حصه هم نه ساقطيږي، ځکه چي بدل د مينځي د ټوله ذات په مقابله کي دی او کوم وخت چي دا تقابل سوی دی (يعني کوم وخت چي بدل د هغې د ټوله ذات په مقابله کي تاکل سوی دی)، په هغه وخت کي اصلاً او حقيقتاً دا تقابل د مينځي د دوو ثلثو (دوو حصو) سره سوی دی (ځکه چي تدبير له مخکي څخه موجود وو)، که څه هم په ښکاره دغه تقابل د ټولي مينځي سره سوی دی ليکن معناً (مراداً) او انجاما دا تقابل د مينځي د دوو ثلثو سره دی، نو د مالک د مړه کېدلو په صورت کي د تدبير په وجه د مينځي د يوه ثلث په آزادېدلو سره به دغه تقابل نه مؤثر کيږي او د ټوله بدل کتابت په عوض کي به مينځه آزاديږي او په هغه کي به هيڅ کمي نه کول کيږي. د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي خپلي ښځي ته دوه طلاقه ورکړي، بيا د زرو درهمو په عوض کي هغې ته درې طلاقه ورکړي، نو ټوله عوض يعني زر درهمه د ما بقي يوه طلاق په مقابله کي راځي؛ ځکه چي اوس هغه صنف د يوه طلاق محل ده، نو ځکه له عوض څخه به هيڅ مقدار هم نه ساقطيږي.

د دې په خلاف که د کتابت معامله مخکي سوې وي، نو په دې صورت کي د ظاهر، باطن، صورتاً، ارادتاً په هر اعتبار سره بدل د مينځي د ټوله ذات په مقابله کي دی او وروسته چي کله د مالک په مړه کېدلو سره د تدبير په وجه د مينځي ثلث (يوه حصه) آزاده سي، نو له بدل څخه به هم ثلث ساقطيږي، ليکن په پورتني مسئله کي چي څرنګه تدبير له کتابت څخه مخکي دی، نو ګواکي معناً د هغې يو ثلث آزاد دی، نو ځکه بدل به حقيقتاً د مينځي د دوو ثلثو (دوو حصو) سره متعلق وي او د مالک په مرګ سره به په هغه کي کمي نه کول کيږي. (احسن الهدايه)

## مکاتبه مينځه مدبره جوړول، او مکاتب غلام آزادول

قَالَ: وَإِنْ دَبَّرَ مُكَاتَبَتَهُ فرمايي: او که مالک خپله مکاتبه مينځه مُدبّره جوړه کړي صَحَّ التَّدْبِيرُ نو دغه مُدبّر جوړول صحيح دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَهَا الْخِيَارُ إِنْ شَاءَتْ مَضَتْ عَلَى الْكِتَابَةِ او هغې ته اختيار دی چي که وغواړي نو پر بدلِ کتابت دي قائم پاته سي وَإِنْ شَاءَتْ عَجَّزَتْ نَفْسَهَا وَصَارَتْ مُدَبَّرَةً او که وغواړي نو خپل ځان دي [له بدلِ کتابت اداء کولو څخه] عاجزه ښکاره کړي او مُدبّره دي وګرځي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ لَيْسَتْ بِلَازِمَةٍ فِي جَانِبِ الْمَمْلُوكِ ځکه چي د مملوک په حق کي کتابت لازم نه دی فَإِنْ مَضَتْ عَلَى كِتَابَتِهَا فَمَاتَ الْمَوْلَى وَلَا مَالَ لَهُ غَيْرُهَا نو که دا مينځه پر کتابت باقي پاته سي [يعني مکاتبت اختيار کړي] بيا مالک مړ سي او د مالک لپاره له دغه

مینځې ښځه بغیر بل مال نه وي فَهِيَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَتْ سَعَتْ فِي ثُلُثَيْ مَالِ الْكِتَابَةِ أَوْ ثُلُثَيْ قِيمَتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو هغې ته اختيار چې که وغواړي نو د مال کتابت يا د خپل قيمت په دوو حصو کې دي خواري وکاږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا: تَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنْهُمَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې له دې دواړو ښځه په کمتر [لږ] يوه کې به خواري کاږي فَالْخِلَافُ فِي هٰذَا الْفَصْلِ فِي الْخِيَارِ بِنَاءً عَلَى مَا ذَكَرْنَا په دغه فصل [صورت] کې چې د اختيار په هکله کوم اختلاف دی هغه زموږ پر ذکر کړی سوي اختلاف مبني دی أَمَّا الْمِقْدَارُ فَمُتَّفَقٌ عَلَيْهِ او کوم چې مقدار دی نو هغه [دلته] متفق عليه دی وَوَجْهُهُ مَا بَيَّنَّا او د هغه دليل همغه دی کوم چې موږ بيان کړی قَالَ: وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى مُكَاتَبَهُ فرمايي: او کله چې مالک خپل مکاتب غلام آزاد کړي عَتَقَ بِإِعْتَاقِهِ نو په دې آزادولو سره هغه آزادېږي لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِيهِ ځکه چې په هغه کې د مالک ملکيت قائم [او باقي] دی وَسَقَطَ بَدَلُ الْكِتَابَةِ او بدل کتابت ساقطيږي لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَهُ إِلَّا مُقَابَلًا بِالْعِتْقِ ځکه چې مکاتب صرف د آزادېدلو په مقابله کې پر ځان بددل کتابت لازم کړی وو وَقَدْ حَصَلَ لَهُ دُونَهُ او [دلته] هغه ته له بدل څخه بغير آزادي حاصله سوه فَلَا يَلْزَمُهُ نو ځکه پر هغه به بدل نه لازميږي وَالْكِتَابَةُ وَإِنْ كَانَتْ لَازِمَةً فِي جَانِبِ الْمَوْلَى وَلٰكِنَّهَا تُفْسَخُ بِرِضَاءِ الْعَبْدِ او کتابت که څه هم د مالک په حق کې لازم دی لېکن د غلام په رضا سره هغه فسخ کېدای سي وَالظَّاهِرُ رِضَاهُ تَوَسُّلًا إِلَى عِتْقِهِ بِغَيْرِ بَدَلٍ مَعَ سَلَامَةِ الْأَكْسَابِ لَهُ او ښکاره د هغه رضا ده، بغير له بدله د آزادېدلو د وسيله جوړېدلو لپاره، سره د خپل ګټو د سالم پاتېدلو [يعني ښکاره همدا ده چې غلام به په فسخ راضي وي ځکه چې (د کتابت فسخ کېدلو په صورت کې) هغه بغير له بدل کتابته آزاديږي او ګټه (ګټل سوی مال) د هغه لپاره سلامت پاتيږي] لِأَنَّا نُبْقِي الْكِتَابَةَ فِي حَقِّهِ ځکه چې د ګټي په حق کي موږ د ده کتابت باقي پرېږدو.

**اللغات**: ﴿دبّر﴾ د تفعيل ماضي ده: خپل مینځه يا غلام مُدبّر جوړول، ﴿مملوك﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: هغه کس کوم چې د بل تر ملکيت او غلامتوب لاندې وي، د مذکر او مؤنث يعني د غلام او مینځې دواړو لپاره استعماليږي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿متفق عليه﴾ هغه حکم او مسئله چې پر هغه د

ټولو اتفاق وي، ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، په خپله ذمه اخيستل، ﴿توسّل﴾ د تفعّل مصدر دی: وسيله او ذريعه جوړېدل، ﴿نبقي﴾ د افعال له بابه د جمع متکلم مضارع صيغه ده: باقي پرېښوول، باقي ساتل (پاته کول).

**تشريح**: دا مسئله د مکاتب د مُدبّر جوړولو په هکله ده کوم چې د مخکي بيان سوي مسئلې برعکس ده، حاصل يې دا دی چې څرنګه مُدبّر کس مکاتب جوړول جائز دي، همداسي مکاتب کس مُدبر جوړول هم جائز دي او دلته هم دغه مکاتبه مُدبّره مينځې ته له دوو اختياراتو څخه يو حاصلېږي چې يا د بدل کتابت په اداء کولو سره آزادي حاصله کړي يا د بدل کتابت له اداء کولو څخه خپل ځان عاجزه وګرځوي او د خپل مالک مُدبّره وګرځي، او په دې کي چې کوم اختلاف دی هغه د مخکنۍ مسئلې د اختلاف په څېر دی او پر هغه مبني دی.

وإذا أعتق المولى مكاتبه إلخ: دويمه مسئله دا ده چې که مالک خپل مکاتب غلام آزاد کړي، نو دغه اعتاق (آزادول) جائز او صحيح دي؛ ځکه چې په مکاتب غلام کي د مالک ملکيت باقي پاته وي، نو ځکه د هغه آزادول به صحيح وي، او کله چې هغه آزاد سي، نو د هغه له غاړي څخه بدل کتابت ساقطيږي؛ ځکه بدل کتابت د عتق په عوض کي وو، او کله چې هغه ته بلا عوضه (مفت) عتق حاصل سو، نو بدل اداء کولو ته هيڅ ضرورت پاته نه سو.

والكتابة إلخ: فرمايي چې عقد کتابت که څه هم د مالک په حق کي لازم دی ليکن بيا هم هغه د فسخ قابل دی؛ ځکه چې د فسخ لپاره د مکاتب رضا ضروري ده، او دا ښکاره خبره ده چې کله مکاتب د بدل کتابت په عوض کي په عتق راضي وو، نو له بدل کتابت څخه بغير خو به هغه په درجه اولىٰ په عتق راضي وي (مطلب دا چې د عقد کتابت په فسخ کېدلو خو به هغه په درجه اولىٰ راضي وي). او په دغه صورت کي چې هغه کوم څه مال ګټلی وي، هغه ټول ده په ملکيت کي داخليږي، ځکه چې د هغه د مصلحت لپاره او پر هغه د شفقت په خاطر مونږ کتابت فسخ کړی دی او د هغه ګټه مو د هغه لپاره باقي ګرځولې ده، لهذا په دې حواله سره د عقد پر فسخ کېدلو د مکاتب رضا ښکاره ده. (احسن الهدايه)

## د خپل غلام سره د يوه کال پر وعده کتابت کول او بيا تر هغه مخکې پر نغد او کم بدل کتابت صلح ور سره کول

قَالَ: وَإِنْ كَاتَبَهُ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ إِلَى سَنَةٍ فرمايي: او که مالک د زرو درهمو په عوض کې خپل غلام مکاتب جوړ کړي تر يوه کاله پورې [يعني تر يوه کاله د اداء کولو په وعده سره] فَصَالَحَهُ عَلَى خَمْسِ مِائَةٍ مُعَجَّلَةٍ بيا د هغه سره پر پنځه سوه نغدو درهمو صلح وکړي فَهُوَ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً دا جائز دي وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او قياساً جائز نه دي لِأَنَّهُ اعْتِيَاضٌ عَنِ الْأَجَلِ ځکه چې دا د ميعاد [مياد] عوض اخيستل دي وَهُوَ لَيْسَ بِمَالٍ حال دا چې ميعاد مال نه دی وَالدَّيْنُ مَالٌ او قرض مال دی فَكَانَ رِبًا نو ځکه دا به سود وي وَلِهٰذَا لَا يَجُوزُ مِثْلُهُ فِي الْحُرِّ وَمُكَاتَبِ الْغَيْرِ او په همدې وجه د آزاد کس او د بل چا د مکاتب په صورت کې داسې کول جائز نه دي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْأَجَلَ فِي حَقِّ الْمُكَاتَبِ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ د استحسان دليل دا دی: چې اجل [ميعاد] د مکاتب په حق کې په يوه اعتبار سره مال دی لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْأَدَاءِ إِلَّا بِهِ ځکه چې مکاتب صرف د همدې اجل په ذريعه [د بدلِ کتابت] پر اداء کولو قادر کيږي فَأُعْطِيَ لَهُ حُكْمُ الْمَالِ نو ځکه اجل ته به د مال حکم ورکول کيږي وَبَدَلُ الْكِتَابَةِ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ او بدلِ کتابت په يوه اعتبار سره مال دی حَتّٰى لَا تَصِحَّ الْكَفَالَةُ بِهِ همدا وجه ده چې د بدلِ کتابت کفالت [کفيل کېدل] صحيح نه دي فَاعْتَدَلَا نو اجل او بدلِ کتابت دواړه سره برابر سول فَلَا يَكُونُ رِبًا نو ځکه به ربوا نه وي وَلِأَنَّ عَقْدَ الْكِتَابَةِ عَقْدٌ مِنْ وَجْهٍ دُونَ وَجْهٍ او ځکه چې عقدِ کتابت په يوه اعتبار سره عقد دی او په يوه اعتبار سره عقد نه دی وَالْأَجَلُ رِبًا مِنْ وَجْهٍ او اجل په يوه اعتبار سره سُود دی فَيَكُونُ شُبْهَةَ الشُّبْهَةِ نو د اجل سُود کېدل به د شبهة الشبهه په درجه کې وي بِخِلَافِ الْعَقْدِ بَيْنَ الْحُرَّيْنِ په خلاف د هغه عقد کوم چې د دوو آزادو کسانو په مينځ کې وي لِأَنَّهُ عَقْدٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چې هغه په هره توګه عقد دی فَكَانَ رِبًا نو ځکه هغه به سُود وي وَالْأَجَلُ فِيهِ شُبْهَةٌ او په ميعاد کې [د سُود] شبهه ده.

**اللغات**: ﴿صالح﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: مصالحت کول، صلح کول، (مراد ځني د څه بدلِ کتابت پر معاف کولو او پرېښوولو صلح کول دي). ﴿معجّلة﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث اسم مفعول صيغه ده: د مُؤَجّل ضد دی: نقد (نغد)، چې د هغه لپاره ميعاد (مياد) نه وي تاکل سوی بلکې

في الحاله اداء کړی سي، سمدستي واجبُ الاداء. ﴿اعتياض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: د يو شي عوض اخيستل (د يو شي په بدله کي بل څه اخيستل). ﴿أجل﴾ تاکل سوی موده (نېټه)، ميعاد (ميد). ﴿ربا﴾ او رِبوٰا: سُود. ﴿اعتدلا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: سره برابر بدل (يو بول کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که مالک د زرو درهمو په عوض کي د خپل غلام سره د عقد کتابت معامله وکړي او هغه ته ووايي چي "ته به په يوه کال کي دننه، دننه دغه زر درهمه ما ته راکوې (اداء کوې)"، لېکن بيا له يوه کال څخه مخکي مالک د پنځه سوه نغدو درهمو په عوض کي في الحاله د هغه سره صلح وکړي، نو استحساناً دا صلح جائز ده، قياساً جائز نه ده؛ ځکه د مکاتب پر ذمه چي کوم بدل کتابت واجب دی، هغه مال دی او اجل (ميعاد) مال نه دی، حال دا چي پر پنځه سوه درهمو صلح کول د اجل (ميعاد) عوض دی، نو ځکه (قياساً) دا صلح جائز نه ده؛ ځکه چي په عقد معاوضه کي د مال او غير مال تر مينځ تبادله (مال په نا مال سره بدلول) صحيح نه دي؛ ځکه په دې کي ربوا (سود) راځي او د سُود معامله حرامه ده، لکه کله چي همدا معامله د دوو آزادو خلکو په مينځ کي وسي يعني يو د سړي پر بل چا زر درهمه قرض باندي وي او دا سړی وغواړي چي له هغه څخه صرف پنځه سوه درهمه واخلي او معامله ختمه کړي، نو داسي نه سي کولای؛ ځکه چي پنځه سوه به د پنځو سوو په مقابله کي راسي او ما بقي پنځه سوه به له عوض څخه خالي سي نو دا به ربوا وګرځي.

د استحسان دليل دا دی چي مکاتب له اجل (ميعاد) څخه بغير د بدل کتابت پر اداء کولو قدرت نه لري، نو د مکاتب په حق کي به ضرورتاً اجل مال ګرځول کيږي، او بدل کتابت هم من وجه مال دی، نو ګواکي په دغه صلح کي د دوو مالونو تر مينځ تبادله راغله، نو ځکه دا صلح جائز ده.

د استحسان دويم دليل دا دی چي عقد کتابت په يوه اعتبار سره عقد دی چي هغه اسقاط الملک دی (يعني په کتابت سره مالک خپل ملکيت ساقطوي) او په يوه اعتبار سره هغه عقد نه دی بلکي د عتق د تعليق سره مشابه دی (يعني مالک [د بدل کتابت پر اداء کولو] د غلام آزادي معلقه کړې ده) او په دې حواله سره هغه يمين (شرط او جزاء) دي، او اجل هم من وجه ربوا ده ځکه چي هغه مال نه دی، حال دا چي حقيقي ربوا په مال کي ثابتيږي، نو ځکه د اجل (ميعاد) ربوا کېدل به د شبهة الشبهه په درجه کي وي او په شريعت کي د شبهه اعتبار کيږي او شبهة الشبهه لره اعتبار نسته. او د دوو آزادو خلکو پر عقد پورتنی مسئله قياسول صحيح نه دي؛ ځکه د دوو آزادو خلکو په مينځ کي چي کوم عقد صلح کيږي، هغه مِن کُلّ وجه عقد وي او په هغه کي ربوا ثابتيږي او په اجل (ميعاد) کي د ربوا شبهه وي او

په شريعت کې شبهه معتبره ده، نو ځکه د آزاد کس په صورت کې خو داسې صلح کول د قياس او استحسان دواړو په اعتبار سره جائز نه ده، ليکن د عقد کتابت والا معامله استحساناً جائز ده.

## په مرضُ الموت کې د کتابت يو صورت

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ الْمَرِيضُ عَبْدَهُ عَلَى أَلْفَيْ دِرْهَمٍ إِلَى سَنَةٍ فرمايي: او کله چې مريض کس تر يوه کاله پورې د دوو زرو درهمو په عوض کې خپل غلام مکاتب جوړ کړي وَقِيمَتُهُ أَلْفٌ حال دا چې د غلام قيمت زر درهمه وي ثُمَّ مَاتَ وَلَا مَالَ لَهُ غَيْرُهُ بيا مريض مړ سي او د هغه لپاره له دغه غلام څخه بغير بل مال نه وي وَلَمْ يُجِزِ الْوَرَثَةُ او د هغه وارثان [د دغه عقد] اجازت نه ورکړي فَإِنَّهُ يُؤَدِّي ثُلُثَيِ الْأَلْفَيْنِ حَالًّا وَالْبَاقِيَ إِلَى أَجَلِهِ نو هغه دې د دوه زره درهمو دوه ثلثه [دوې حصې] في الحاله اداء کړي او پاته حصه دې تر خپل ميعاده پورې اداء کړي [يعني ما بقي ثلث دې د ميعاد پوره کېدلو تر وخته پورې چې هر وخت وغواړي، اداء دې يې کړي] أَوْ يُرَدُّ رَقِيقًا يا به بيرته غلام ګرځي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ [دا حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز [دی] وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يُؤَدِّي ثُلُثَيِ الْأَلْفِ حَالًّا وَالْبَاقِيَ إِلَى أَجَلِهِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه غلام دې د زرو درهمو دوه ثلثه نغد اداء کړي او پاته حصه دې تر خپل ميعاده پورې اداء کړي لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَتْرُكَ الزِّيَادَةَ بِأَنْ يُكَاتِبَهُ عَلَى قِيمَتِهِ ځکه [کله چې] مالک ته دا اختيار سته چې زياتوب [زائد مقدار] پرېږدي په دې توګه چې غلام د هغه پر قيمت [زر درهمه] مکاتب جوړ کړي فَلَهُ أَنْ يُؤَخِّرَهَا نو هغه ته به دا اختيار هم وي چې دغه زيادتوب موخر کړي [وځنډوي] فَصَارَ كَمَا إِذَا خَالَعَ الْمَرِيضُ امْرَأَتَهُ عَلَى أَلْفٍ إِلَى سَنَةٍ نو دا داسې سوه لکه مريض کس چې تر يوه کاله پورې د زرو درهمو په عوض کې د خپلې ښځې سره خلع وکړي جَازَ نو دا خلع جائز ده لِأَنَّ لَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا بِغَيْرِ بَدَلٍ ځکه خاوند ته دا اختيار هم سته چې هغې ته بغير له بدله [بلا عوضه] طلاق ورکړي وَلَهُمَا: أَنَّ جَمِيعَ الْمُسَمَّى بَدَلُ الرَّقَبَةِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې ټوله مال د غلام د ذات بدل دی حَتَّى أُجْرِيَ عَلَيْهَا أَحْكَامُ الْأَبْدَالِ همدا وجه ده چې پر هغه د بدلونو احکام جاري کړل سوي دي وَحَقُّ الْوَرَثَةِ مُتَعَلِّقٌ بِالْمُبْدَلِ او د وارثانو حق د مبدل سره متعلق دی فَكَذَا بِالْبَدَلِ نو ځکه د بدل سره به هم متعلق وي وَالتَّأْجِيلُ إِسْقَاطٌ مَعْنًى او مودت ټاکل [تأخير] د معنیٰ په اعتبار

سره ساقطول دي فَيُعْتَبَرُ مِنْ ثُلُثِ الْجَمِيعِ نو ځکه تاجيل به د ټوله بدل له ثلث څخه معتبر وي بِخِلَافِ الْخُلْعِ په خلاف د خلع لِأَنَّ الْبَدَلَ فِيهِ لَا يُقَابِلُ الْمَالَ ځکه چې بدل په هغه کې د مال په مقابله کې نه وي فَلَمْ يَتَعَلَّقْ حَقُّ الْوَرَثَةِ بِالْمُبْدَلِ لهذا په خلع کې د وارثانو حق د مبدل سره متعلق نه سو فَلَا يَتَعَلَّقُ بِالْبَدَلِ نو ځکه د بدل سره به هم نه متعلق کيږي وَنَظِيرُ هٰذَا إِذَا بَاعَ الْمَرِيضُ دَارَهُ بِثَلَاثَةِ آلَافٍ إِلَى سَنَةٍ او د دې مثال دا دی چې مريض ترېوه کاله پورې [يعني د يوه کال پر ميعاد] د درېو زرو درهمو په عوض کې خپل کور خرڅ کړي وَقِيمَتُهَا أَلْفٌ حال دا چې د هغه کور قيمت زر درهمه وي ثُمَّ مَاتَ بيا مريض مړ سي وَلَمْ يُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثان [د دغه بيع] اجازت نه ورکړي فَعِنْدَهُمَا يُقَالُ لِلْمُشْتَرِيْ: أَدِّ ثُلُثَيْ جَمِيعِ الثَّمَنِ حَالًّا وَالثُّلُثَ إِلَى أَجَلِهِ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به مشتري ته ويل کيږي چې: ته د ټوله ثمن دوه ثلثه في الحاله [نغد] اداء کړه! او يو ثلث تر خپل ميعاده پورې اداء کړه! [يعني هغه ته به ويل کيږي: چې ته دوه زره درهمه اوس د مړي (مريض) وارثانو ته ورکړه! او پاته ثلث يعني زر درهمه د ميعاد (يوه کال) پر پوره کېدلو ورکړه!] وَإِلَّا فَانْقُضِ الْبَيْعَ کنې بيع ماته کړه! وَعِنْدَهُ يُعْتَبَرُ الثُّلُثُ بِقَدْرِ الْقِيمَةِ لَا فِيمَا زَادَ عَلَيْهِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د قيمت په اندازه سره د ثلث اعتبار کيږي او له قيمت څخه په زائد مقدار کې به د هغه اعتبار نه کيږي لِمَا بَيَّنَّا مِنَ الْمَعْنَى د هغه معنیٰ [دليل] په وجه کوم چې موږ بيان کړی قَالَ: وَإِنْ كَاتَبَهُ عَلَى أَلْفٍ إِلَى سَنَةٍ فرمايي: که مريض ترېوه کاله پورې د زرو درهمو په عوض کې خپل غلام مکاتب جوړ کړي وَقِيمَتُهُ أَلْفَانِ او د غلام قيمت دوه زره درهمه وي وَلَمْ يُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثان اجازت نه ورکړي يُقَالُ لَهُ: أَدِّ ثُلُثَيِ الْقِيمَةِ حَالًّا أَوْ رُدَّ رَقِيقًا فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د ټولو د قول مطابق به هغه ته ويل کيږي: چې يا ته د قيمت دوه ثلثه في الحاله [نغد] اداء کړه! يا بيرته غلام وګرځه! لِأَنَّ الْمُحَابَاةَ هٰهُنَا فِي الْقَدْرِ وَالتَّأْخِيرِ ځکه چې رعايت کول دلته په مقدار او تاخير دواړو کې دی فَاعْتَبِرِ الثُّلُثُ فِيهِمَا نو ځکه په دواړو کې به ثلث معتبر وي.

**اللغات:** ﴿المريض﴾ ناروغه، مراد ځني قريب الموت مريض دی، ﴿لم يُجِز﴾ د افعال له بابه د جحد صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي، له هغوی څخه ځيني دا دي: اجازت ورکول، جائز ګرځول، نافذول (مصباح اللغات)، ﴿ثُلُثَي﴾ تثنيه د ثُلُثٌ او ثُلْثٌ ده: دوې درېيمي حصې، يو شی چې درې حصې کړل سي، نو د هغه يوې حصې ته ثُلث او دوو حصو ته يې ثُلثان

وايي، ﴿خَالَعَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: خلع کول، د مال په عوض کي خپلي ښځي ته طلاق ورکول (يعني د طلاق ور کولو په عوض کي له خپلي ښځي څخه مال اخيستل)، ﴿تأجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: مودت ټاکل، وخت مقرر کول، مؤجل کول، د يو شي لپاره ميعاد (مياد) ټاکل، ﴿الأبدال﴾ جمع د بَدَلٌ ده: عوضونه، بدلونه، ﴿المبدل﴾ کوم شی چي د بدل په مقابله کي وي، د کوم شي په باره کي چي بدل ورکول سوی وي، ﴿انقُض﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: ماتول (فسخ کول)، ختمول، ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: يو چا ته ميلان کول، د يو چا سره په قيمت او بدل (عوض) کي رعايت کول، د يو چا سره په بدل يا داسي بل شي کي ښه کول، د تبرع (احسان) کولو په قصد په قيمت، بدل يا داسي بل شي کي کمي کول (په کمه ورکول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مريض مالک په مرضُ الموت کي وي او د ده يو غلام وي چي د هغه قيمت زر درهمه وي او دغه مريض د هغه سره د دوو زرو درهمو په عوض کي عقد کتابت وکړي او هغه ته ووايي چي "ته به دا دوه زره درهمه په يوه کال کي اداء کوې!" او بيا هغه مريض مړ سي او د هغه په ميراث کي صرف همدا يو غلام وي، نو دغه عقد د وارثانو پر اجازت موقوف پاتيږي؛ ځکه د دغه غلام سره د وارثانو حق متعلق سوی دی او تر يوه کاله په انتظار کولو کي د هغو ضرر دی، نو ځکه دا عقد به د هغو پر اجازت منحصر وي نو که چيري هغوی اجازت نه ورکوي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دغه غلام ته له دوو اختياراتو څخه يو اختيار حاصليږي: ① يا هغه دې د دوه زره درهمو دوه ثلثه يعني ۱۳۳۳ (ديارلس سوه درو دېرش درهمه [او د يوه درهم درو دېرش حصې]) في الحاله وارثانو ته ورکړي او مابقي يو ثلث دې د اجل (يو کال) تر پوره کېدلو پوري ورکړي، ② يا دې د مخکي په شان بېرته غلام وګرځوي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز هغه ته اختيار نه حاصليږي، بلکي اوس د هغه مخته صرف يوه لاره ده چي هغه دي د خپل قيمت (يعني د زرو درهمو) دوه ثلثه في الحاله ورکړي او مابقي يو ثلث دي د اجل تر پوره کېدلو پوري ورکړي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د وارثانو حق صرف په تاخير کي دی، په زياتوب (زائد مقدار) کي نه دی او مالک ته دا حق حاصل دی چي زياتوب يعني دوه زره درهمه (ألفين) پريږدي او صرف د غلام پر قيمت معامله وکړي، لهذا کله چي هغه ته د زياتوب پرېښوولو حق حاصل دی، نو د زياتوب د تاخير حق خو به په درجه اولیٰ ورته حاصل وي او د غلام پر قيمت چي کوم زياتوب دی، د هغه اعتبار به نه کيږي؛ ځکه چي د هغه سره د وارثانو حق متعلق نه دی بلکي د وارثانو حق په دوو ثلثو کي دی، نو ځکه موږ غلام د دوو ثلثو د اداء کولو مکلف جوړ کړی دی او څرنګه چي دغه تاخير او تاجيل (يو کال ميعاد ټاکل) پر هغه زياتوب واقع سوی دی کوم چي د وارثانو له حق څخه زايد دی ځکه چي د مريض (مرض الموت والا) تصرف د مال په يوه ثلث کي معتبر دی، لهذا په هغه کي به تر ميعاده پوري تاخير جائز وي، نو ځکه مابقي يو ثلث به د ميعاد

تر پوره کېدلو پوري ورکوي. د دې مثال داسي دی لکه يو مريض کس چي په مرضُ الموت کي د خپلي ښځي سره ديوه کال پر ميعاد د زرو درهمو په عوض کي خلع وکړي بيا هغه مړ سي او وارثان په تاجيل راضي نه وي، نو په دې صورت کي هم حکم دا دی چي دغه ښځه به د زرو درهمو دوه ثلثه هغو ته نغد ورکوي او ما بقي يو ثلث به د ميعاد تر پوره کېدلو پوري ورکوي، نو همدغسي به په پورتني مسئله کي هم غلام دوه ثلثه في الحاله ورکوي او ما بقي يو ثلث به تر ميعاده پوري اداء کوي.

د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي کله د مړي په ميراث کي فقط همدا يو غلام دی نو د وارثانو حق د دې غلام سره متعلق دی او د مکاتب کېدلو په وجه د وارثانو حق د هغه د ټوله بدل (بدلِ کتابت) سره متعلق دی او مريض په تاجيل او تاخير سره د وارثانو د حق يو ثلث معناً ساقط کړی دی، نو دغه ثلث به له ټوله بدل څخه ساقطيږي؛ ځکه چي اوس همدا بدل د اصل غلام قائم مقام دی، او کله چي يو ثلث له ټوله بدل څخه ساقطيږي نو ښکاره خبره ده چي ما بقي دوه ثلثه (۱۳۳۳ درهمه) به في الحاله واجبُ الاداء وي. او امام محمد رَحِمَهُ الله چي دا مسئله پر خلع قياسوي، هغه صحيح نه دي؛ ځکه چي په حالت خروج (د خاوند له ملکيته د ښځي د وتلو په حالت) کي يعني د خلع او طلاق په حالت کي د ښځي "ملک بضع" مال نه شمارل کيږي، او د نفس بضع سره د وارثانو حق نه متعلق کيږي، نو ځکه د هغې د بدل سره به هم د وارثانو حق نه متعلق کيږي، حال دا چي په پورتني مسئله کي د نفس عبد سره د وارثانو حق متعلق دی او د هغه په واسطه د غلام د بدل سره هم د وارثانو حق متعلق دی، لهذا په مقيس عليه او مقيس کي د ځمکي و آسمان فرق دی، نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي. د دې مثال د مريض د کور خرڅول دي کوم چي په عبارت کي په واضحه توګه ذکر سوی دی.

قال وإن كاتبه إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د غلام قيمت دوه زره درهمه وي او مريض مالک د هغه سره ديوه کال پر ميعاد د زرو درهمو په عوض کي د کتابت معامله وکړي او وارثان تاجيل منع کړي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي دا غلام دي يا د خپل قيمت (يعني د دوه زره درهمو) دوه ثلثه اداء کړي يا دي ځان بير ته غلام وګرځوي، دا حکم د شيخينو او امام محمد رَحِمَهُمُ الله ټولو په نيز دی؛ ځکه دلته چي مالک کومه تبرّع او رعايت کړی دی هغه په مقدار (يعني په زرو درهمو کي) هم دی او په تاخير کي هم، نو ځکه د مالک تر اختيار او تصرف لاندي چي کوم ثلث دی، هغه به د غلام له ټوله قيمت څخه معتبر کيږي او د ټوله قيمت دوه ثلثه به غلام اداء کوي او څرنګه چي دلته د مالک د حق په وجه يو ثلث ساقط دی، نو د هغه تاجيل او تاخير به هم ساقطيږي. او له ما بقي دوو ثلثو څخه به نه يو درهم ساقطيږي او نه به په هغه کي تاجيل مؤثر کيږي. والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ مَنْ يُكَاتِبُ عَنِ الْعَبْدِ

(دا) باب د هغه کس (په بيان کي) دی کوم چي د غلام له طرفه عقدِ کتابت کولای سي

## که آزاد کس د يو غلام له طرفه د کتابت معامله وکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ الْحُرُّ عَنْ عَبْدٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فرمايي: او کله چي آزاد کس د يو غلام له طرفه د زرو درهمو په عوض کي عقدِ کتابت وکړي فَإِنْ أَدَّى عَنْهُ نو که آزاد کس د هغه له طرفه [بدلِ کتابت] اداء کړي عَتَقَ نو غلام آزاديږي وَإِنْ بَلَغَ الْعَبْدُ او که چيري غلام ته دا [د عقد خبر] ورسيږي فَقَبِلَ او هغه يې قبول کړي فَهُوَ مُكَاتَبٌ نو هغه مکاتب ګرځي وَصُورَةُ الْمَسْأَلَةِ أَنْ يَقُولَ الْحُرُّ لِمَوْلَى الْعَبْدِ: كَاتِبْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ أَلْفًا فَهُوَ حُرٌّ او صورت دمسئلې دا دی چي آزاد کس د غلام مالک ته داسي ووايي: ته د زرو درهمو په عوض کي خپل غلام مکاتب جوړ کړه! پر دې شرط چي که زه دا زر درهمه اداء کړم نو هغه آزاد دی فَكَاتَبَهُ الْمَوْلَى عَلَى هٰذَا او مالک پر همدغه شرط هغه مکاتب جوړ کړي يُعْتَقُ بِأَدَائِهِ بِحُكْمِ الشَّرْطِ نو د آزاد کس [د زرو درهمو] په اداء کولو سره دا غلام آزاديږي د شرط په حکم سره وَإِذَا قَبِلَ الْعَبْدُ او کله چي غلام دا قبول کړي صَارَ مُكَاتَبًا نو هغه مکاتب ګرځي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ كَانَتْ مَوْقُوفَةً عَلَى إِجَازَتِهِ ځکه چي [دلته] کتابت د هغه پر اجازت موقوف دی وَقَبُولُهُ إِجَازَةٌ او د هغه قبلول اجازت دی وَلَوْ لَمْ يَقُلْ عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ أَلْفًا فَهُوَ حُرٌّ او که آزاد کس "على أني إن أدّيتُ إلخ" ويلي نه وي فَأَدَّى بيا [بدلِ کتابت] اداء کړي لَا يُعْتَقُ قِيَاسًا نو د قياس له رويه هغه غلام نه آزاديږي لِأَنَّهُ لَا شَرْطَ وَالْعَقْدُ مَوْقُوفٌ ځکه چي [دلته] شرط نسته او عقد [د غلام پر اجازت] موقوف دی وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يُعْتَقُ او په استحسان کي هغه آزاديږي لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ لِلْعَبْدِ الْغَائِبِ فِي تَعْلِيقِ الْعِتْقِ بِأَدَاءِ الْقَائِلِ ځکه چي د قائل [ويونکي] پر اداء کولو د عتق په معلق کولو

کې د غائب غلام هیڅ نقصان نشته فَيَصِحُّ فِي حَقِّ هٰذَا الْحُكْمِ نو ځکه د دغه حکم په حق کې به عقد صحیح کیږي وَيَتَوَقَّفُ فِي حَقِّ لُزُومِ الْأَلْفِ عَلَى الْعَبْدِ او پر غلام د زرو درهمو د لازمېدلو په حق کې به دا عقد موقوف کیږي وَقِيلَ: هٰذِهِ هِيَ صُورَةُ مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ او ویل سوي دي: چې دا د کتاب [جامع صغیر] د مسئلې صورت دی وَلَوْ أَدَّى الْحُرُّ الْبَدَلَ او که آزاد کس بدلِ کتابت اداء کړي لَا يَرْجِعُ عَلَى الْعَبْدِ نو هغه پر غلام رجوع نه سي کولای [يعني له غلام څخه يې واپس نه اخيستلای] لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ ځکه چې هغه متبرع [احساناً اداء کونکی] دی.

**اللغات**: ﴿قَبِلَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: قبلول، (تر ایجاب وروسته قبول کول)، ﴿إِجازة﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدلیږي، له هغوی څخه ځيني دا دي: اجازت ورکول، جائزګرځول، نافذول، ﴿ضرر﴾ نقصان، تاوان، ﴿تعليق﴾ د تفعيل مصدر دی: معلق کول، مشروط کول، ﴿متبرع﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: د تبرع (احسان) په توګه یو کار کونکی، احساناً کونکی او ورکونکی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د غلام له طرفه که یو آزاد کس نائب جوړ سي او د هغه د مالک سره عقد کتابت وکړي او غلام دا عقد قبول کړي، نو په دې سره هم غلام مکاتب جوړیږي او که چیري هغه آزاد کس د دغه مکاتب غلام له طرفه بدلِ کتابت اداء کړي، نو دا مکاتب غلام آزادیږي هم.

اوس دلته په دې تفصیل ځان پوه کول ضروري دي چې که دغه آزاد کس د غلام مالک ته "كَاتِبْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفٍ عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ أَلْفًا فَهُوَ حُرٌّ" ووایي، نو بیا خو د زرو درهمو په اداء کولو سره غلام د شرط په حکم سره آزادیږي (یعني په دغه صورت کې په دې وجه مکاتب غلام آزادیږي چې آزاد کس خپل شرط [یعني د زرو درهمو اداء کول] پوره کړی)، لیکن که هغه "عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ أَلْفًا فَهُوَ حُرٌّ" نه ووایي. نو د زرو درهمو د اداء کولو باوجود قیاساً دا غلام نه آزادیږي، لیکن استحساناً آزادیږي؛ د قیاس دلیل دا دی چې د " عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ إلخ" د ویلو په صورت کې د شرط په حکم سره غلام آزادیږي لهذا کله چې دا شرط معدوم وي نو غلام به هم نه آزادیږي بلکې عقد به موقوف پاتیږي که چیري غلام دا عقد قبول کړي نو کله چې هغه زر درهمه اداء کړي، نو بیا به آزادیږي.

د استحسان دلیل دا دی چې اصل مقصد د غلام آزادېدل دي او د دغه آزادۍ په عوض کې مالک ته زر درهمه حاصلیږي، لهذا برابره ده آزاد کس " عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ إلخ" ووایي او که يې نه ووایي

کله چي مالک ته داعتاق (آزادولو) عوض حاصل سي نو غلام به آزاديږي او د عتق په حواله سره به بالکل عقد صحيح کيږي، لېکن پر غلام د زرو درهمو د لازمېدلو په هکله به دا عقد موقوف پاتيږي او کله چي غلام هم هغه قبول کړي، نو پر هغه به زر درهمه لازميږي، کنې نه به لازميږي. او ښکاره خبره ده چي کله د غلام له قبلولو څخه بغير هغه ته (مفت) آزادي حاصليږي او د عقد په قبلولو سره پر هغه بلا وجه زر درهمه لازميږي، نو د هغه خو څه دماغ خراب نه دی چي عقد قبول کړي او بلا وجه پر ځان زر درهمه قرض لازم کړي. (احسن الهدايه)

وقيل إلخ: فرمايي د ځيني حضراتو رايه دا ده چي دا عبارت "كَاتِبْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ" د جامع صغير عبارت دی او په هغه کي د "عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إلخ" اضافه نسته. (احسن الهدايه)

ولو أدى الحر إلخ: دا مسئله ښکاره ده چي متبرع (احساناً اداء کونکی) د تبرع مال واپس نه سي اخيستلای.

## د دوو غلامانو عقد کتابت

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَ الْعَبْدُ عَنْ نَفْسِهِ وَعَنْ عَبْدٍ آخَرَ لِمَوْلَاهُ وَهُوَ غَائِبٌ فرمايي: او کله چي غلام له خپل طرفه او د خپل مالک د بل غلام له طرفه عقد کتابت وکړي حال دا چي هغه بل غلام غائب وي فَإِنْ أَدَّى الشَّاهِدُ أَوِ الْغَائِبُ نو که حاضر غلام يا غائب غلام [بدل کتابت] اداء کړي عَتَقَا نو دواړه آزاديږي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ أَنْ يَقُولَ الْعَبْدُ: كَاتِبْنِي بِأَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى نَفْسِي وَعَلَى فُلَانٍ الْغَائِبِ او د مسئلې مطلب دا دی چي حاضر غلام داسي ووايي: ته د زرو درهمو په عوض کي زما سره او د فلانکي غائب سره کتابت وکړه! وَهَذِهِ الْكِتَابَةُ جَائِزَةٌ اِسْتِحْسَانًا او دغه کتابت استحساناً جائز دی وَفِي الْقِيَاسِ يَصِحُّ عَلَى نَفْسِهِ لِوِلَايَتِهِ عَلَيْهَا وَيَتَوَقَّفُ فِي حَقِّ الْغَائِبِ لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ عَلَيْهِ او په قياس کي دا کتابت صرف د حاضر غلام پر نفس صحيح کيږي ځکه چي هغه ته پر خپل ځان لايت حاصل دی او د غائب په حق کي موقوف کيږي ځکه چي [حاضر ته] پر هغه ولايت حاصل نه دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهُ بَدَأَ بِإِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى نَفْسِهِ فَجَعَلَ نَفْسَهُ فِيهِ أَصْلًا وَالْغَائِبَ تَبَعًا د استحسان دليل دا دی: چي حاضر غلام په شروع کي د خپل ځان وطرف ته د عقد په نسبت کولو سره په دغه عقد کي خپل ځان اصل وګرځوی او غائب يې تابع وګرځوی وَالْكِتَابَةُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ مَشْرُوعَةٌ او په دغه

توګه کتابت مشروع [په شریعت کي جائز] دی كَالْأَمَةِ إِذَا كُوتِبَتْ لکه مینځه چي کله مکاتبه جوړه کړل سي دَخَلَ أَوْلَادُهَا فِي كِتَابَتِهَا تَبَعًا نو د هغې بچیان د هغې په کتابت کي [د هغې] د تابع والي په توګه داخلیږي حَتَّى عَتَقُوا بِأَدَائِهَا وَلَيْسَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْبَدَلِ شَيْءٌ تر دي چي بچیان د هغې [د بدل کتابت] په اداء کولو سره آزادیږي او پر هغو د بدل هیڅ حصه نه لازمیږي وَإِذَا أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ عَلَى هٰذَا الْوَجْهِ او کله چي په دغه توګه د عقد صحیح ګرځول ممکن دي يَتَفَرَّدُ بِهِ الْحَاضِرُ نو حاضر غلام به په دې عقد کي منفرد وي [ځکه چي اصل عاقد هغه دی] فَلَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ بِكُلِّ الْبَدَلِ نو مالک ته به دا حق وي چي له هغه شخصه ټوله بدل [بدل کتابت] واخلي لِأَنَّ الْبَدَلَ عَلَيْهِ لِكَوْنِهِ أَصْلًا فِيهِ ځکه چي بدل پر هغه په دې وجه لازم دی چي هغه په دغه عقد کي اصل دی وَلَا يَكُونُ عَلَى الْغَائِبِ مِنَ الْبَدَلِ شَيْءٌ او پر غائب غلام د بدل هیڅ حصه لازمه نه ده لِأَنَّهُ تَبَعٌ فِيهِ ځکه چي هغه په دې عقد کي تابع دی.

**اللغات**: ﴿عتقا﴾ د ضرب له بابه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: آزادېدل. ﴿کاتبني﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده، ن وقایي دی او ي ضمیر د مفعول به دی: مکاتب جوړول، د کتابت معامله کول. ﴿أضافه﴾ د افعال د باب ماضي ده: د یو شي نسبت بل شي ته کول، منسوب کول. ﴿یتفرّد﴾ د تفعّل مضارع ده: منفرد کېدل، یوازېنی کېدل (په یو شي سره مستقل کېدل). ﴿اصیل﴾ اصل کس کوم چي بنیاد وي، اصل عاقد. ﴿تبع﴾ تابع.

**تشریح**: صورت د مسئلې خو ښکاره دی چي که یو غلام د خپل ځان او د خپل غائب ملګري غلام له طرفه د خپل مالک سره عقد کتابت وکړي او داسي ووايي "کَاتِبْنِيْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ إِلَخ" چي "ما او زما غائب ملګری غلام د زرو درهمو په عوض کي مکاتب جوړ کړه!" او مالک دا عقد قبول کړي، نو استحساناً د دواړو په حق کي عقد صحیح او جائز دی او له دواړو شخصه چي کوم یو هم بدل کتابت اداء کړي، آزادي دواړو ته حاصلیږي، قیاساً دغه عقد صرف د حاضر غلام په حق کي صحیح دی او د غائب په حق کي صحیح نه دی؛ ځکه چي حاضر ته خو صرف پر خپل نفس ولایت حاصل دی لیکن پر غائب غلام هغه ته هیڅ ولایت او قدرت نسته، نو ځکه د غائب غلام په حق کي د هغه تصرف صحیح او معتبر نه دی

د استحسان دليل دا دی چي حاضر غلام د "كَاتِبْنِيْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ إلخ" په وينا سره اصل عقد د خپل ځان وطرف ته منسوب کړی دی او خپل ځان يې په دې کي اصل ګرځولی دی او غائب يې تابع ګرځولی دی. او په شريعت کي داسي عقد کتابت کول جائز دي چي يو اصل وي او بل تابع وي، لکه کله چي يوه عيال داره مينځه مکاتبه جوړه کړل سي نو هغه اصلاً مکاتبه کيږي او عيال (اولاد) د هغې د تابع والي په توګه مکاتب کيږي، همداسي به دلته هم حاضر غلام اصلامکاتب کيږي او غائب غلام به تبعاً مکاتب کيږي. او د عقد حقوق د اصيل وطرف ته راجع کيږي، نو ځکه له همدې حاضر غلام څخه به د بدلِ کتابت او داسي نورو مطالبه کيږي او همدا حاضر غلام به د هغه ذمه وار وي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَأَيُّهُمَا أَدَّى فرمايي: او له دوی دواړو څخه چي هر يو هم [بدلِ کتابت] اداء کړي عَتَقَا نو دواړه آزاديږي وَيُجْبَرُ الْمَوْلَى عَلَى الْقَبُوْلِ او مالک به [د بدلِ کتابت] پر اخيستلو مجبورول کيږي أَمَّا الْحَاضِرُ فَلِأَنَّ الْبَدَلَ عَلَيْهِ کوم چي حاضر غلام دی نو ځکه چي بدل پر هغه لازم دی وَأَمَّا الْغَائِبُ فَلِأَنَّهُ يَنَالُ بِهِ شَرَفَ الْحُرِّيَّةِ او کوم چي غائب غلام دی نو ځکه چي هغه په دغه بدل سره د آزادۍ شرافت ترلاسه کوي وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْبَدَلُ عَلَيْهِ که څه هم پر هغه بدل لازم نه دی [بلکي پر حاضر غلام لازم دی] وَصَارَ كَمُعِيْرِ الرَّهْنِ إِذَا أَدَّى الدَّيْنَ او دا داسي سوه لکه د رهن عاريتاً ورکونکی کس چي کله [د مستعير (راهن)] قرض اداء کړي يُجْبَرُ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الْقَبُوْلِ وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الدَّيْنُ عَلَيْهِ نو مرتهن به [د هغه قرض] پر اخيستلو مجبورول کيږي لِحَاجَتِهِ إِلَى اسْتِخْلَاصِ عَيْنِهِ ځکه چي معير د خپل عَين شي [مرهون شي] را خلاصولو محتاج دی که څه هم قرض پر هغه لازم نه دی [بلکي پر مستعير لازم دی] قَالَ: وَأَيُّهُمَا أَدَّى فرمايي: او له دوی دواړو څخه چي هر يو هم [بدلِ کتابت] اداء کړي لَا يَرْجِعُ عَلَى صَاحِبِهِ هغه پر خپل ملګري رجوع نه سي کولای لِأَنَّ الْحَاضِرَ قَضَى دَيْنًا عَلَيْهِ ځکه چي حاضر غلام داسي قرض اداء کوي کوم چي پر هغه لازم دی وَالْغَائِبُ مُتَبَرِّعٌ بِهِ غَيْرُ مُضْطَرٍّ إِلَيْهِ او غائب غلام په دغه اداء کولو کي متبرع دی او دې ته مجبوره نه دی قَالَ: وَلَيْسَ لِلْمَوْلَى أَنْ يَأْخُذَ الْغَائِبَ بِشَيْءٍ فرمايي: او مالک ته دا اختيار نسته چي غائب په يو شي سره ونيسي [يعني مالک له غائب څخه د بدلِ کتابت په نامه هيڅ شی نه اسي اخيستلای] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَإِنْ قَبِلَ الْعَبْدُ الْغَائِبُ أَوْ لَمْ يَقْبَلْ نو [برابره ده] غائب غلام دا قبول کړي او که يې قبول نه کړي فَلَيْسَ ذٰلِكَ مِنْهُ بِشَيْءٍ نو د هغه له طرفه دا هيڅ شی نه دي [يعني د هغه قبلولو او نه قبلولو ته هيڅ اعتبار نسته] وَالْكِتَابَةُ لَازِمَةٌ لِلشَّاهِدِ او دا کتابت د حاضر غلام لپاره لازم دی لِأَنَّ الْكِتَابَةَ نَافِذَةٌ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ قَبُوْلِ الْغَائِبِ ځکه چي د غائب غلام له قبلولو څخه بغير

[هم] دا کتابت پر هغه نافذيږي فَلَا يَتَغَيَّرُ بِقَبُولِهِ نو د غائب غلام په قبلولو سره به دا نه متغير کيږي كَمَنْ كَفَلَ عَنْ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لکه يو څوک چي [مثلا زيد] د بل چا له طرفه [مثلا د خالد له طرفه] د هغه له حکم څخه بغير [د قرض] کفيل سي فَبَلَغَهُ فَأَجَازَهُ بيا مکفول عنه [خالد] ته خبر ورسيږي او هغه د دې اجازت ورکړي لَا يَتَغَيَّرُ حُكْمُهُ نو [د هغه په اجازت ورکولو سره] د دې حکم نه متغير کيږي حَتَّى لَوْ أَدَّى تر دې که هغه يې اداء کړي [يعني کفيل (زيد) دا قرض اداء کړي] لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ نو هغه پر مکفول عنه [خالد] رجوع نه سي کولای [يعني که په دې صورت کي زيد قرض اداء کړي نو هغه له خالد څخه د اداء کړی سوي قرض په اندازه پيسې نه سي اخيستلای] كَذَا هٰذَا نو همداسي به دلته هم وي.

**اللغات**: ﴿شَرَف﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: عزت، لويي، شرافت. ﴿معير﴾ د افعال د باب فاعل دی: عاريتاً ورکونکی، خواست کونکي ته ورکونکی، مثلاً زيد خالد ته خواست وکړي چي فلانکی شی ما ته د يو څو وخت لپاره امانتاً راکړه! او خالد هغه شی ورکړي، نو دې ته عاريتاً ورکول وايي، خالد ته معير وايي او زيد ته مستعير وايي. ﴿رهن﴾ مراد ځني مرهون شی دی، د ګرو په توګه ورکونکی شی. ﴿مرتهن﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: هغه کس کوم ته چي رهن (مرهون شی) اېښوول سوی وي. مثلاً زيد له خالد څخه قرض واخلي او د قرض په بدله کي يو شی خالد ته په ګرو (په رهن) کښېږدي، نو زيد ته رَاهِن وايي او خالد ته مُرتَهِن وايي او کوم شی چي په ګرو اېښوول سوی دی هغه ته مَرْهُوْن وايي. ﴿استخلاص﴾ د استفعال مصدر دی: خلاصول، د بل چا له قبضې څخه اخيستل. ﴿مضطر﴾ د افتعال د باب مفعول دی: مجبور. ﴿يتغيّر﴾ د تفعّل مضارع ده: متغير کېدل، بدلېدل.

**تشريح**: مسئله دا ده چي له حاضر او غائب غلام څخه چي کوم يو هم بدل کتابت اداء کړي، د هغه په اداء کولو سره دواړه غلامان آزاديږي او د هر يوه له طرفه ورکول سوی بدل کتابت به مالک لازماً اخلي، له حاضر څخه به يې ځکه اخلي چي هغه اصل عاقد (اصيل) دی او پر هغه بدل لازم دی، او پر غائب غلام که څه هم بدل لازم نه دی خو هغه ته د بدل په عوض کي د آزادی نعمت حاصليږي، نو ځکه وويل سوه چي که له دواړو څخه هر يو بدل ورکړي، نو پر مالک د هغه قبلول لازم او ضروري دي. د دې مثال داسي دی لکه زيد چي له خالد څخه يو شی د دې لپاره واخلي چي زه دا شی زما قرضخواه (قرض راکونکي [حامد]) ته په رهن کي ږدم. بيا زيد دا شی هغه (حامد) ته په رهن کي کښېږدي. بيا معير يعني خالد په خپله د مستعير (زيد) قرض اداء کړي. نو دغه اداء کول هم معتبر دي او پر مرتهن (حامد) د قرض اخيستل لازم دي؛ ځکه که څه هم دا قرض پر معير باندي نه دی لېکن بيا هم په دې سره د معير شی له رهن څخه خلاصيږي، نو ځکه د هغه له طرفه اداء کړی سوی قرض به مرتهن يعني قرضخواه (حامد) لازماً قبلوي.

وأيهما أدّى لا يرجع إلخ: فرمايي په حاضر او غائب غلام کي چي کوم يو هم بدلِ کتابت اداء کړي، بيا هغه ته دا حق نسته چي له خپل ملکري څخه د هغه حصه واپس واخلي؛ ځکه که چيري حاضر غلام هغه اداء کړي، نو دا پر هغه لازم شُده قرض دی او ټوله بدل پر هغه لازم دی، نو ځکه دوا پس اخيستلو هيڅ وجه او مطلب نسته، او که چيري غائب غلام هغه اداء کړي، نو په دې کي هغه متبرع (احساناً اداء کونکی) دی او د حاضر غلام له طرفه پر هغه هيڅ دباو نسته، نو ځکه هغه هم له حاضر غلام څخه د هغه د حصې مال واپس نه سي اخيستلای.

او برابره ده غائب غلام دغه عقد جائز وګرځوي، که نه، مالک له هغه څخه د بدلِ کتابت په نامه هيڅ شی نه سي اخيستلای؛ ځکه چي اصل عاقد خو حاضر غلام دی او غائب غلام تابع دی او هغه په دغه عقد کي هيڅ کراد او رول نه دی ترسره کړی او د غائب غلام له اجازت او قبوليت څخه بغير هم د دغه عقد د جواز او نفاذ لاره بالکل خلاصه ده (يعني د بدل کتابت د اداء کېدلو په صورت کي د هغه له رضا او قبلولو څخه بغير هم دغه عقد نافذيږي).

## د خپل ځان او بچيانو له طرفه د مينځي عقدِ کتابت کول

قَالَ: وَإِذَا كَاتَبَتِ الْأَمَةُ عَنْ نَفْسِهَا وَعَنِ ابْنَيْنِ لَهَا صَغِيرَيْنِ فرمايي: او کله چي مينځه د خپل ځان او د خپلو دوو کوچنيو بچيانو له طرفه عقد کتابت وکړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَأَيُّهُمْ أَدّٰى او له دغه دريو کسانو څخه چي هر يو هم [بدل کتابت] اداء کړي لَمْ يَرْجِعْ عَلٰى صَاحِبِهِ نو هغه پر خپل ملګکري مکاتب رجوع نه سي کولای [يعني که مثلاً د مينځي يو بچی بدل کتابت اداء کړي نو هغه له خپل مور او ورور څخه د هغو حصه واپس نه سي اخيستلای] وَيُجْبَرُ الْمَوْلٰى عَلَى الْقَبُولِ او مالک به [د دغه بدل کتابت] پر اخيستلو مجبورول کيږي وَيُعْتَقُوْنَ او [د يوه په اداء کولو سره] ټوله آزاديږي [يعني په دوی کي چي هر يو هم بدل اداء کړي، نو ټوله آزاد ګرځي] لِأَنَّهَا جَعَلَتْ نَفْسَهَا أَصْلًا فِي الْكِتَابَةِ وَأَوْلَادَهَا تَبَعًا [د دې عقد د جواز دليل دا دی چي] مينځي خپل ځان په دغه کتابت کي اصل ګرځولی دی او خپل اولاد يې تابع ګرځولي دي عَلٰى مَا بَيَّنَّا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولٰى لکه څرنګه چي په اوله [مخکنۍ] مسئله کي مور د دې بيان وکړی وَهِيَ أَوْلٰى بِذٰلِكَ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ او دا مينځه له اجنبي [پردي کس] څخه زياته د دغه جواز حقداره ده [يعني کله چي يو پردی غلام د بل پردي غلام له طرفه عقد وکړي، نو هم د دواړو په حق کي عقد جائز کيږي، لهذا کله چي مور د خپلو بچيانو له طرفه عقد وکړي، نو دا عقد خو به په درجه اولیٰ جائز کيږي؛ ځکه چي د مور او بچيانو په مينځ کي قرابت وي او د پرديو په مينځ کي خو هيڅ قرابت او رشته نه وي].

**تشريح:** مسئله واضحه او آسانه ده.



# بَابُ كِتَابَةِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ

(دا) باب د مشترک غلام د عقدِ کتابت (په بیان کې) دی

## د مشترک غلام د مکاتب جوړولو حکم

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ أَذِنَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ أَنْ يُكَاتِبَ نَصِيبَهُ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ وَيَقْبِضَ بَدَلَ الْكِتَابَةِ فرمايي: او كله چي غلام د دوو خلكو په مينځ كي مشترک وي چي له هغوى څخه يو شريک خپل ملگري ته د دې اجازه وركړي چي هغه د زرو درهمو په عوض كي خپله حصه مكاتبه جوړه كړي او پر بدلِ كتابت قبضه وكړي فَكَاتَبَ وَقَبَضَ بَعْضَ الْأَلْفِ ثُمَّ عَجَزَ نو هغه [ملگري شريک] خپله حصه مكاتبه جوړ كړي او پر څه بدل قبضه وكړي بيا غلام [له بدلِ كتابت اداء كولو څخه] عاجزه سي فَالْمَالُ لِلَّذِي قَبَضَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د بدلِ كتابت مال] د قبضه كونكي شريک لپاره دى وَقَالَا: هُوَ مُكَاتَبٌ بَيْنَهُمَا صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه د دوى دواړو په مينځ كي مكاتب دى وَمَا أَدَّى او هغه چي كوم څه [بدلِ كتابت] اداء كړي فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو هغه د دواړو په مينځ كي مشترک دى وَأَصْلُهُ أَنَّ الْكِتَابَةَ تَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ خِلَافًا لَهُمَا او د دې [اختلاف] اصل دا دى چي كتابت د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز متجزي كيږي په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ د آزادولو په څېر [چي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز متجزي كيږي. په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله] لِأَنَّهَا تُفِيدُ الْحُرِّيَّةَ مِنْ وَجْهٍ ځكه چي كتابت [هم] من وجه د آزادېدلو فايده وركوي فَتَقْتَصِرُ عَلَى نَصِيبِهِ عِنْدَهُ لِلتَّجَزِّيْ نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د متجزي كېدلو په وجه به كتابت [دلته] صرف د يوه شريک پر حصه منحصر كيږي وَفَائِدَةُ الْإِذْنِ أَنْ لَا يَكُونَ لَهُ حَقُّ الْفَسْخِ او [د دويم شريک ...

---

القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال صاحب العناية: وكان المصنف رَحِمَهُ الله مال إلى قولهما ... أخره (العناية ج:۸، ص:۱۳۳). وانظر للتفصيل (نتائج الأفكار ج:۸، ص:۱۳۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۴۳]

اجازت ورکولو فایده دا ده چې هغه ته د فسخ کولو حق نه حاصلیږي كَمَا يَكُونُ لَهُ إِذَا لَمْ يَأْذَنْ لکه کله چې اجازت نه ورکړي نو بیا هغه ته د فسخ کولو حق حاصلیږي وَإِذْنُهُ لَهُ بِقَبْضِ الْبَدَلِ إِذْنٌ لِلْعَبْدِ بِالْأَدَاءِ او هغه ته پر بدل د قبضه ورکولو اجازت ورکول غلام ته د بدل اداء کولو اجازت ورکول دي فَيَكُونُ مُتَبَرِّعًا بِنَصِيبِهِ عَلَيْهِ نو ځکه اجازت ورکونکی شریک به پر هغه [مکاتب جوړونکي شریک] د خپل حصې [د ګټې] تبرع کونکی وي فَلِهٰذَا كَانَ كُلُّ الْمَقْبُوضِ لَهُ نو په همدې وجه به ټوله قبضه کړی سوی بدل د هغه [مُکاتِب (یعني د مُکاتَب جوړونکي شریک)] لپاره وي وَعِنْدَهُمَا الْإِذْنُ بِكِتَابَةِ نَصِيبِهِ إِذْنٌ بِكِتَابَةِ الْكُلِّ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دیوه شریک د حصې د مکاتب جوړولو اجازت ورکول د ټوله غلام د مکاتب جوړولو اجازت ورکول دي لِعَدَمِ التَّجَزِّيْ ځکه چې [د صاحبینو په نېز] کتابت نه متجزي کیږي فَهُوَ أَصِيلٌ فِي النِّصْفِ وَكِيلٌ فِي النِّصْفِ نو هغه عاقد [مکاتِب جوړونکی] شریک به په نصف حصه کې اصیل وي او په نصف حصه کې به وکیل وي فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو ځکه به بدل د دواړو په مینځ کې مشترک وي وَالْمَقْبُوضُ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا او کوم بدل چې قبضه کړی سوي وي هغه به [هم] د دواړو په مینځ کې مشترک وي فَيَبْقَى كَذٰلِكَ بَعْدَ الْعَجْزِ نو ځکه هغه به [د غلام] تر عاجزه کېدلو وروسته هم دغه ډول [مشترک] پاتیږي.

**اللغات**: ﴿نصيب﴾ حصه (برخه)، حق. ﴿تتجزأ﴾ د تفعّل مضارع ده: متجزي کېدل، یعني جزء، جزء (حصه، حصه) کېدل، پر څو حصو تقسیمدل، ټوکړه، ټوکړه کېدل. ﴿المقبوض﴾ د ضرب د باب مفعول دی: پر کوم څه چې قبضه سوی وي (اخیستل سوی وي). ﴿متبرع﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: د تبرع (احسان او نېکی) په توګه کار کونکی، احساناً ورکونکی.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که یو غلام د دوو خلګو په مینځ کې مشترک وي او له دوی څخه یو شریک خپل ملګري شریک ته د دې اجازت ورکړي چې "ته د خپلې حصې غلام مکاتب جوړ کړه او کله چې بدل کتابت درکړي نو پر هغه هم ته قبضه وکړه!"، نو دغه عقد جائز او صحیح دی، لېکن په دې کې اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز فقط دیوه شریک حصه آزادیږي او فقط هغه د بدل کتابت حقداره کیږي؛ ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز کتابت هم متجزي کیږي (لکه د هغه په نېز چې اعتاق او عتق متجزي کیږي)، او څرنګه چې دلته دویم شریک د اجازت ورکولو په وجه خپل

ملګری عاقد شریک او غلام دواړه خود مختاره ګرځولي دي او د خپل حصې ګټه يې تبرّع ګرځولې ده، نو ځکه د همدې يوه عاقد شریک (مکاتب جوړونکي شریک) حصه به مکاتب کیږي او همدا يو به د ټوله بدلِ کتابت مستحق کیږي.

د دې په خلاف ځرنګه چې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز کتابت نه متجزي کیږي، نو ځکه د یوه ملګري د حصې اجازت ورکول به داسې وي لکه د ټوله غلام د مکاتب جوړولو اجازت ورکول، نو عاقد شریک به په خپله حصه کې اصیل وي او د دویم شریک په حصه کې به وکیل وي او دا غلام به په مشترکه توګه مکاتب کیږي، لهذا قبضه کړې سوې بدلِ کتابت به هم د دواړو په مینځ کې مشترک وي او که چیرې غلام څه بدلِ کتابت اداء کړي او بیا د هغه له اداء کولو څخه عاجزه سي، نو هغه څه اداء کړې سوې بدلِ کتابت به هم مشترک وي. (احسن الهدايه)

## د مشترکه مینځې د مکاتبه جوړولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَإِذَا كَانَتْ جَارِيَةٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ كَاتَبَاهَا فرمايي: او که یوه مینځه د دوو خلکو په مینځ کې مشترکه وي چې هغه دوی دواړه مکاتبه جوړه کړي فَوَطِئَهَا أَحَدُهُمَا بیا له دوی څخه یو شریک د هغې سره وطي وکړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او هغه یو بچی وزېږوي فَادَّعَاهُ او اول [وطي کونکي] شریک د هغه بچي دعویٰ وکړي ثُمَّ وَطِئَهَا الْآخَرُ بیا بل شریک هم د هغې سره وطي وکړي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او هغه [بل] بچی وزېږوي فَادَّعَاهُ او دا بل شریک هم د هغه بچي دعویٰ وکړي ثُمَّ عَجَزَتْ بیا هغه مکاتبه مینځه [د بدلِ کتابت له اداء کولو څخه] عاجزه سي فَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ نو هغه د اول وطي کونکي [اول شریک] اُم ولد کیږي لِأَنَّهُ لَمَّا ادَّعَى أَحَدُهُمَا الْوَلَدَ ځکه کله چې له دوی څخه یوه شریک [اول واطي] د بچي دعویٰ وکړه صَحَّتْ دَعْوَتُهُ نو د هغه دعویٰ صحیح سوه لِقِيَامِ الْمِلْكِ لَهُ فِيهَا ځکه چې په دې مینځه کې د هغه ملکیت موجود دی وَصَارَ نَصِيبُهُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او د هغه حصه د هغه اُم ولده وګرځېده لِأَنَّ الْمُكَاتَبَةَ لَا تَقْبَلُ النَّقْلَ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ ځکه چې مکاتبه مینځه له یوه ملکیت څخه بل ملکیت ته منتقل کېدل نه قبلوي [بل ملکیت ته د منتقل کېدلو قابله نه ده] فَتَقْتَصِرُ أُمُومِيَّةُ الْوَلَدِ عَلَى نَصِيبِهِ نو ځکه اُم ولد کېدل به د مدعي پر حصې منحصر وي كَمَا فِي الْمُدَبَّرَةِ الْمُشْتَرَكَةِ لکه ځرنګه چې په مشترکه مُدبّره مینځه کې کیږي وَإِذَا ادَّعَى الثَّانِي وَلَدَهَا الْأَخِيرَ او کله چې دویم وطي کونکی [دویم

شریک اد بل بچي دعویٰ وکړه صَحَّتْ دَعْوَتُهُ نو د هغه دعویٰ هم صحیح سوه لِقِيَامِ مِلْكِهِ ظَاهِرًا ځکه چي په ښکاره د هغه ملکیت هم قائم [موجود] دی ثُمَّ إِذَا عَجَزَتْ بَعْدَ ذٰلِكَ بیا چي کله تر دې وروسته مینځي [بدلِ کتابت] اداء نه کړی سو جُعِلَتِ الْكِتَابَةُ كَأَنْ لَمْ تَكُنْ نو کتابت داسي وګرځول سو [یعني داسي وګرځیدی] لکه هغه چي سوی نه وي وَتَبَيَّنَ أَنَّ الْجَارِيَةَ كُلَّهَا أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ او دا ښکاره سوه چي ټوله مینځه د اول شریک [اول واطي] اُم ولد ده لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ مِنَ الْاِنْتِقَالِ ځکه د ملکیت له منتقل کېدلو څخه چي کوم څه مانع وو هغه زایل سو وَوَطْئُهُ سَابِقٌ او د اول شریک وطي مخکي [هم] دي وَيَضْمَنُ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ قِيمَتِهَا او دا اول شریک د خپل دویم شریک [دویم واطي] لپاره د مینځي د نصف قیمت ضامن کیږي لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَهُ لَمَّا اسْتَكْمَلَ الْاِسْتِيلَادَ ځکه چي اول شریک [اول واطي] د هغه د حصې مالک جوړ سو کله چي یې استیلاد پوره کړی وَنِصْفَ عُقْرِهَا [همدارنګه] پر اول شریک د مینځي نیم مهر لازمیږي لِوَطْئِهِ جَارِيَةً مُشْتَرَكَةً ځکه چي هغه د مشترکه مینځي سره وطي کړي دي وَيَضْمَنُ شَرِيكُهُ كَمَالَ عُقْرِهَا وَقِيمَةَ الْوَلَدِ او د هغه شریک [دویم شریک] د مینځي د ټوله مهر او د بچي د قیمت ضامن کیږي وَيَكُونُ ابْنَهُ او هغه بچی د ده ځوی کیږي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَغْرُورِ ځکه چي دویم شریک د دوکه کړی سوي [فریب خورده] کس په درجه کي دی لِأَنَّهُ حِينَ وَطِئَهَا ځکه کله چي هغه د مینځي سره وطي کړي وې كَانَ مِلْكُهُ قَائِمًا ظَاهِرًا نو [په مینځه کي] په ښکاره د هغه ملکیت موجود وو وَوَلَدُ الْمَغْرُورِ ثَابِتُ النَّسَبِ مِنْهُ حُرٌّ بِالْقِيمَةِ او د مغرور [دوکه کړی سوي] کس بچي د هغه سره ثابتُ النسب وي [او] د قیمت په عوض کي آزادیږي عَلٰى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي دا [مخکي] پېژندل سوي دي لٰكِنَّهُ وَطِئَ أُمَّ وَلَدِ الْغَيْرِ حَقِيقَةً لیکن دویم شریک په حقیقت کي د بل چا [اول شریک] د اُم ولد سره وطي کړي دي فَيَلْزَمُهُ كَمَالُ الْعُقْرِ نو ځکه پر هغه به پوره عُقر لازمیږي وَأَيُّهُمَا دَفَعَ الْعُقْرَ إِلَى الْمُكَاتَبَةِ او له دوی دواړو څخه چي هر یو دغه مکاتبه مینځي ته عُقر ورکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ مَا دَامَتْ بَاقِيَةً ځکه تر څو چي کتابت موجود وي فَحَقُّ الْقَبْضِ لَهَا تر هغه وخته [پر عقر] د قبضه کولو حق هغې ته حاصل دی لِاخْتِصَاصِهَا بِمَنَافِعِهَا وَأَبْدَالِهَا ځکه

چي هغه په خپلو منافعو او عوضونو [او اکسابو] سره مختصه ده وَإِذَا عَجَزَتْ او کله چي هغه [له بدل کتابت اداء کولو څخه] عاجزه سي تَرُدُّ الْعُقْرَ إِلَى الْمَوْلَى نو عُقر به مالک ته واپس کوي لِظُهُورِ اخْتِصَاصِهِ ځکه چي [اوس د مينځي د منافعو سره] د مالک مختص والي ښکاره سو [يعني ځکه چي اوس مالک د هغې د منافعو او اکسابو مالک او مستحق وګرځېدی] وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَا كُلُّهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ او دا کوم څه چي موږ ذکر کړه دا ټوله د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ[*]: هِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ او صاحبين رحمهما الله فرمايي: چي دا مينځه د اول شريک [اول واطي] اُم ولد کيږي وَلَا يَجُوزُ وَطْءُ الْآخَرِ او [د هغې سره] د دويم شريک وطي کول جائز نه دي لِأَنَّهُ لَمَّا ادَّعَى الْأَوَّلُ الْوَلَدَ ځکه کله چي اول شريک [اول واطي] د بچي دعوىٰ وکړه صَارَتْ كُلُّهَا أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو ټوله مينځه د هغه اُم ولد وګرځېده لِأَنَّ أُمُومِيَّةَ الْوَلَدِ يَجِبُ تَكْمِيلُهَا بِالْإِجْمَاعِ مَا أَمْكَنَ ځکه چي حتى الامکان د اُم ولد کېدلو پوره کول بالاتفاق ضروري دي وَقَدْ أَمْكَنَ بِفَسْخِ الْكِتَابَةِ او د هغه پوره کول د کتابت په فسخ کولو سره ممکن دي لِأَنَّهَا قَابِلَةٌ لِلْفَسْخِ ځکه چي کتابت د فسخ قابل دی فَتُفْسَخُ فِيمَا لَا تَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُكَاتَبَةُ نو په کوم څه کي چي د مکاتبه مينځي ضرر نه وي په هغه کي به کتابت فسخ کول کيږي وَتَبْقَى الْكِتَابَةُ فِيمَا وَرَاءَهُ او له هغه څخه بغير په نور څه کي کتابت باقي پاتيږي بِخِلَافِ التَّدْبِيرِ په خلاف د تدبير لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الْفَسْخَ ځکه چي هغه فسخ نه قبلوي وَبِخِلَافِ بَيْعِ الْمُكَاتَبِ او په خلاف د مکاتب د بيع لِأَنَّ فِي تَجْوِيزِهِ إِبْطَالَ الْكِتَابَةِ ځکه چي د هغه په جائز ګرځولو کي د کتابت باطلول سته إِذِ الْمُشْتَرِي لَا يَرْضَى بِبَقَائِهِ مُكَاتَبًا ځکه مشتري به د هغه په مکاتب پاتېدلو راضي نه وي وَإِذَا صَارَتْ كُلُّهَا أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او کله چي ټوله مينځه د اول شريک [اول واطي] اُم ولد وګرځېده فَالثَّانِي وَطِئَ أُمَّ وَلَدِ الْغَيْرِ نو دويم شريک د بل چا د مينځې سره وطي کونکی سو فَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ الْوَلَدِ مِنْهُ نو ځکه د هغه سره به د بچي نسب نه ثابتيږي وَلَا يَكُونُ حُرًّا عَلَيْهِ بِالْقِيمَةِ او بچی به

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله المذكور في المتون، وكذا في الهندية (ج:٥، ص:١٦). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٤٤]

[هم] د قيمت په عوض کې پر هغه نه آزادیږي غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْحَدُّ عَلَيْهِ لِلشُّبْهَةِ خو پر هغه د شبهې وجه حدّ نه لازمیږي وَيَلْزَمُهُ جَمِيعُ الْعُقْرِ او [نور] پر هغه ټوله عُقر لازمیږي لِأَنَّ الْوَطْءَ لَا يَعْرَى عَنْ إِحْدَى الْغَرَامَتَيْنِ ځکه چې وطې په دغه دوو جرمانو [حدّ او عقر] کې له يوه څخه نه خالي کيږي وَإِذَا بَقِيَتِ الْكِتَابَةُ وَصَارَتْ كُلُّهَا مُكَاتَبَةً لَهُ او کله چې کتابت باقي پاته سو او مينځه ټوله د اول شريک [اول واطي] مکاتبه وګرځېده قِيلَ: يَجِبُ عَلَيْهَا نِصْفُ بَدَلِ الْكِتَابَةِ نو ويل سوي دي: چې پر دغه مينځې نيم بدلِ کتابت واجبيږي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ انْفَسَخَتْ فِيمَا لَا تَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُكَاتَبَةُ ځکه چې کتابت د هغه څه په حق کې فسخ کړی سوی دی چې په هغه سره مينځې ته ضرر [نقصان] نه رسيږي وَلَا تَتَضَرَّرُ بِسُقُوطِ نِصْفِ الْبَدَلِ او د نيم بدلِ کتابت په ساقطېدلو سره هغې ته ضرر نه رسيږي وَقِيلَ: يَجِبُ كُلُّ الْبَدَلِ او ويل سوي دي: چې ټوله بدل واجبيږي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ لَمْ تَنْفَسِخْ إِلَّا فِي حَقِّ التَّمَلُّكِ ضَرُورَةً ځکه چې کتابت صرف د تملک [مالک جوړېدلو] په حق کې ضرورتاً فسخ سوی دی [يعني د دې په حق کې چې اول شريک د دويم شريک د حصې مالک جوړ سوی دی] فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ سُقُوطِ نِصْفِ الْبَدَلِ نو ځکه د نصف بدل په ساقطېدلو کې به دا فسخ نه ښکاره کيږي [نه مؤثر کيږي] وَفِي إِبْقَائِهِ فِي حَقِّهِ نَظَرٌ لِلْمَوْلَى او د نيم بدل په باقي پرېښوولو کې د مالک په حق کې مصلحت [او نفع] ده وَإِنْ كَانَ لَا تَتَضَرَّرُ الْمُكَاتَبَةُ بِسُقُوطِهِ که څه هم د هغه په ساقطېدلو سره مکاتبه مينځې ته ضرر نه رسيږي وَالْمُكَاتَبَةُ هِيَ الَّتِي تُعْطَى الْعُقْرَ او د مکاتبه مينځې عُقر به هغې ته ورکول کيږي لِاخْتِصَاصِهَا بِأَبْدَالِ مَنَافِعِهَا ځکه چې دا مکاتبه د خپلو منافعو په عوضونو سره مختصه [او مالکه يې] ده وَلَوْ عَجَزَتْ وَرُدَّتْ فِي الرِّقِّ [لېکن] که چيري هغه [له بدلِ کتابت اداء کولو څخه] عاجزه سي او بيرته غلامتوب ته واپس کړی سي [يعني بيرته خالص مينځه وګرځول سي] يُرَدُّ إِلَى الْمَوْلَى نو [په دې صورت کې] به عُقر مالک ته واپس کول کيږي لِظُهُورِ اخْتِصَاصِهِ ځکه چې [اوس د مينځې د منافعو سره] د مالک مختص والی ښکاره سو عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چې [د امام صاحب په قول کې] موږ بيان کړه.

**اللغات**: ﴿الأول﴾ مراد ځني اول وطي کونکی او اول مدعي دی، موږ د آسانۍ لپاره "اول شريک" ور سره ليکو. ﴿دعوته﴾ دَعْوَةٌ د نصر د باب مصدر دی: بلل، مطالبه کول. مراد: دعوی کول.

﴿يقتصر﴾ د افتعال مضارع ده، د دې باب څو معناوي سوي دي، چي هغوی دا دي: منحصر کېدل، محدود کېدل (احسن الهدایه)، اکتفاء کېدل، په یو شي اکتفاء کول او له هغه څخه تجاوز (تېرى) نه کول، ﴿أمومية﴾ مور کېدل، مور والی، ﴿اسكيلاد﴾ د استفعال مصدر دی: أم ولد جوړول، أم ولد ګرځول، ﴿مغرور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صيغه ده: دوکه کړی سوی، فرېب خورده (چا ته چي دوکه ورکول سوې وي). "وَلَدُ المَغْرُوْر" (د دوکه کړی سوي پلار بچی) ځکه چي د ده پلار ته د ده مور (مینځې) دوکه ورکړې وي، ﴿أبدال﴾ جمع د بَدَلٌ ده: بدلونه، عوضونه، ﴿عقر﴾ د وطي جرمانه، مراد ځني د مینځې مهر دی (يعني د مذکوره مینځې په څېر د نورو مینځو چي څومره مهر وي، هغومره مهر ځني مراد دی)، ﴿غرامة﴾ تاوان، جرمانه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یوه مینځه د دوو خلکو په مینځ کي مشترکه وي او دواړه هغه مکاتبه جوړه کړي، بیا له دوی څخه یو شریک د هغې سره وطي وکړي او بچی پیدا سي، او واطي (وطي کونکی شریک) د هغه د نسب دعوىٰ وکړي (چي دا زما له نطفې څخه پیدا سوی دی او زما ځوی دی)، نو د هغه دعوىٰ معتبره ده او دا بچی د هغه سره ثابتُ النسب ګرځي (يعني نسب يې د هغه سره ثابتيږي)، خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دویم شریک ته هم د دغه مینځې سره د وطي کولو اختیار دی؛ ځکه چي په دغه مینځه کي د شریک ملکیت باقي دی، اوس که دویم شریک هم وطي ور سره وکړي او بچی پیدا سي، نو د مخکني ملکیت په وجه دا بچی د دغه دویم واطي سره ثابتُ النسب ګرځي، لېکن که د دویم واطي له وطي او بچي پیدا کېدلو څخه وروسته مینځه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزي او ناوسي ښکاره کړي، نو دا مینځه په پوره توګه د اول واطي أم ولد ګرځي او کتابت معدوم ګرځي (ختميږي)، او همدا کتابت د اول شریک په حق کي د استیلاد له تکمیل (پوره أم ولد جوړېدلو) څخه مانع وو، لېکن کله چي کتابت معدوم سو، نو د استیلاد د تکمیل لاره صفا سوه، او څرنګه چي دلته د اول شریک وطي مخکي (مقدم) دي، نو ځکه د هغه استیلاد به هم مخکي وي. ها! پر دغه اول شریک د خپل ملګري (دویم شریک) لپاره د مینځې نصف قیمت لازميږي؛ ځکه چي اول شریک د هغه د حصې هم مالک جوړ سوی دی، نو ځکه د هغه د حصې قیمت به پر اول شریک واجبُ الاداء وي. همدارنګه د مشترکه مینځې سره د وطي کولو په وجه به پر هغه د مینځې نصف عُقر (مهر) هم لازم وي.

ويضمن شريكه إلخ: له دې ځایه دا را ښيي چي د اول شریک سره، سره دویم شریک خو هم د هغې سره وطي کړې دي او د اول شریک د أم ولد کېدلو په وجه دغه شریک په حقیقت کي د اول شریک د أم ولد

مينځې سره وطي كړي دي، نو ځكه پر هغه به ټوله عُقر لازم وي، لېكن پيدا سوى بچى به د هغه سره ثابتُ النسب وي؛ ځكه چي دغه واطي مغرور دى او هغه په دې گومان او خيال د مينځې سره وطي كړي دي چي هغه زما په ملكيت كي ده، لېكن مينځي چي كله ځان (له بدلِ كتابت څخه) عاجزه ښكاره كړي، نو د هغه دا گومان او فهم غلط ثابت سو او هغه دوكه سو (مغرور وگرځېدی)، او د دوكه كړی سوي (مغرور) كس بچى د قيمت په عوض كي آزادېږي (لكه مخكي چي ښو ځله ذكر سوي دي)، نو ځكه كله چي دغه دويم واطي د بچي قيمت وركړي، نو بيا د هغه بچى آزادېږي.

وأيهما دفع العقر إلخ: د دې حاصل دا دى چي تر څو مينځه د بدلِ كتابت له اداء كولو څخه عاجزي ښكاره نه كړي، تر هغه وخته دا مينځه په مشتركه توگه د دواړو شريكانو اُم ولد كيږي او له دواړو شريكانو څخه چي هريو هم عُقر اداء كړي، نو جائز دي؛ ځكه تر څو چي كتابت باقي وي، تر هغه وخته مينځه د خپلو ملكيتونو او منافعو مستحقه پاتېږي، لېكن كله چي هغه د بدل كتابت له اداء كولو څخه عاجزي ښكاره كړي او كتابت ختم سي، نو بيا هغه د مالک مينځه او مملوكه گرځي، لهذا بيا مالک د هغې د منافعو حقداره كيږي. دغه ټوله تفصيلات د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق دي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي كله اول واطي د بچي دعوىٰ وكړي او هغه د ځان سره ثابتُ النسب ومني، نو دا ضروري سوه چي زموږ فوراً كتابت فسخ كړو، د هغه دعوىٰ تسليم كړو او ټوله مينځه د هغه اُم ولد وگرځوو؛ ځكه چي حتى الامكان د استيلاد تكميل (يعني پوره اُم ولد گرځول) ضروري دي او دا تكميل د عقد كتابت په فسخ كولو سره ممكن دی، نو ځكه فوراً به هغه فسخ كول كيږي لهذا ټوله مينځه به د اول واطي اُم ولد گرځي، نو ځكه د دويم شريک لپاره به د هغې سره وطي كول جائز نه وي لېكن كه هغه وطي ور سره كوي، نو دا غلط كار كوي، په همدې وجه موږ (صاحبينو) د هغه له وطي څخه پيدا سوى بچى د هغه سره ثابت النسب هم نه دی گرځولی او نه مو دا بچى د قيمت په عوض كي آزاد گرځولی دی، خو څرنگه چي دا كس (دويم واطي) د خپل فهم او گومان په اعتبار سره په خپل ملكيت كي وطي كونكی دی، نو ځكه دا وطي به وطي بالشبهه وي او د شبهې په وجه خو به پر هغه حد نه لازمېږي، لېكن ټوله عُقر به پر لازمېږي؛ ځكه چي د وطي صرف دوې جرمانې دي: "عُقر" يا "حد".

وإذا بقيت الكتابة إلخ: دا عبارت د "فتنفسخ فيما لا يتضرر إلخ" سره متصل دی (كوم چي د هدايې صفحه: ۳۳۳ په آخري ليكه كي مذكور دی). او د دې عبارت حاصل دا دی چي عقد كتابت فسخ كول ممكن دي او كوم شی چي د مينځي لپاره نقصان من نه وي. په هغه كي عقد فسخ كول كېدلای سي او

ښکاره خبره ده چي د مينځي په أم ولد کېدلو کي د هغې نقصان نسته؛ ځکه چي په أم ولد کېدلو سره د هغې خرڅول، رانيول، هبه کول او داسي نور تړوله ممنوع کيږي او د مالک د مرګ سره سمدستي بلا عوضه (مفته) آزاديږي، نو ځکه په أم ولد کېدلو کي خو به عقد کتابت فسخ کول کيږي. لېکن له دې څخه بغير د منافعو او اکسابو په حق کي به عقد نه فسخ کول کيږي؛ ځکه په دې کي د هغې نقصان دی، نفع يې پکښي نسته، نو ځکه د دغو شيانو (منافعو او اکسابو) په حق کي به عقد باقي پاتيږي، نو په دغو شيانو کي به ټوله مينځه د اول شريک مکاتبه وي او په دغه صورت کي به د دويم شريک د حصې نصف بدل کتابت واجب وي او نصف به ساقطيږي او د نصف بدل کتابت په سقوط کي د هغې ضرر نسته، نو ځکه نصف بدل يعني د اول واطي حصه به ساقطيږي او د دويم واطي حصه به پر هغې واجبُ الاداء وي.

وقيل: د بعضي حضراتو رايه دا ده چي پر دغه مکاتبه مينځي ټوله بدل کتابت واجب دی؛ ځکه چي موږ صرف د استيلاد د تکميل په خاطر ضرورتاً دا عقد فسخ کړی دی، نو ځکه په دغه فسخ سره به نصف بدل نه ساقطيږي، که څه هم د نصف بدل په ساقطېدلو کي د مکاتبه مينځي ضرر نسته، خو د مينځي پر نفع به د مالک نفعي ته ترجيح ورکول کيږي او پر هغې به ټول بدل واجبول کيږي. که چيري مينځه د ټوله بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزي ښکاره نه کړي، نو هغې ته به عُقر ورکول کيږي، او که چيري دا مينځه له هغه څخه عاجزي ښکاره کړي، نو هغه به بيرته د مالک مينځه (رتيقه) ګرځي او بيا به عُقر همدې مالک ته ورکول کيږي. (احسن الهدايه)

## د صاحبينو موقف او تفصيل

قَالَ: وَيَضْمَنُ الْأَوَّلُ لِشَرِيكِهِ فِي قِيَاسِ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ نِصْفَ قِيمَتِهَا مُكَاتَبَةً فرمايي: او اول شريک [اول واطي] د خپل شريک [دويم شريک] لپاره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول په قياس کي د مينځي د نيم قيمت ضامن کيږي د مکاتبه کېدلو په لحاظ سره لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَ شَرِيكِهِ وَهِيَ مُكَاتَبَةٌ ځکه اول شريک په داسي حال کي د خپل شريک د حصې مالک سوی دی چي دا مينځه مکاتبه ده فَيَضْمَنُهُ مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا نو ځکه د نيم قيمت به ضامن کيږي برابره ده هغه مالدار وي او که تنګلاسی وي لِأَنَّهُ ضَمَانُ تَمَلُّكٍ حکه چي دا د تملک [مالک جوړېدلو] ضمان دی وَفِي قَوْلِ مُحَمَّدٍ يَضْمَنُ الْأَقَلَّ مِنْ نِصْفِ قِيمَتِهَا وَمِنْ نِصْفِ مَا بَقِيَ مِنْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مينځي د قيمت او د ما بقي بدل کتابت له نصف چي کوم يو کمتر [لږ] وي اول شريک د هغه ضامن کيږي

لِأَنَّ حَقَّ شَرِيكِهِ فِي نِصْفِ الرَّقَبَةِ عَلَى اعْتِبَارِ الْعَجْزِ ځکه چي د مينځي د عاجزه کېدلو په اعتبار سره د هغه د شريک [دويم شريک] حق په نصف رقبه کي دی وَفِي نِصْفِ الْبَدَلِ عَلَى اعْتِبَارِ الْأَدَاءِ او د [بدل کتابت] اداء کولو په اعتبار سره د هغه حق په نصف بدل کي دی فَلِتَرَدُّدِ بَيْنَهُمَا يَجِبُ أَقَلُّهُمَا نو د دواړو په مينځ کي د تردّد په وجه به کمتريو واجبيږي قَالَ: وَإِذَا كَانَ الثَّانِي لَمْ يَطَأْهَا وَلَكِنْ دَبَّرَهَا ثُمَّ عَجَزَتْ فرمايي: او که چيري دويم شريک د دغه مينځي سره وطي نه وي کړي ليکن هغه دا مينځه مُدبّره جوړه کړې وي بيا مينځه [له بدل اداء کولو څخه] عاجزه سي بَطَلَ التَّدْبِيرُ نو تدبير [مدبره جوړول] باطليږي لِأَنَّهُ لَمْ يُصَادِفُ الْمِلْكَ عِنْدَهُمَا ځکه چي دا تدبير د ملکيت سره متصل سوی [په ملکيت کي واقع سوی] نه دی أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز خو دا عدمِ تصادف [يعني په ملکيت کي د تدبير نه واقع کېدل] ښکاره دي لِأَنَّ الْمُسْتَوْلِدَ تَمَلَّكَهَا قَبْلَ الْعَجْزِ ځکه چي د دوی په نيز اُم ولد جوړونکی [(اول شريک) محض په دعویٰ سره د مينځي] تر عاجزه کېدلو مخکي د دغه مينځي مالک سوی دی وَأَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فَلِأَنَّهُ بِالْعَجْزِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَهُ مِنْ وَقْتِ الْوَطْءِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا عدمِ تصادف ځکه دی چي [د مينځي] په عاجزه کېدلو سره دا ښکاره سوه چي اول شريک د وطي له وخته څخه د دويم شريک د حصې مالک سوی دی فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ مُصَادِفُ مِلْكِ غَيْرِهِ نو ځکه ښکاره سوه چي [د دويم شريک] تدبير د بل چا د ملکيت سره متصل دی [يعني څرګنده سوه چي دا تدبير د اول شريک په ملکيت کي واقع سوی دی] وَالتَّدْبِيرُ يَعْتَمِدُ الْمِلْكَ او تدبير د ملکيت په اعتماد سره کيږي [يعني د تدبير مدار پر ملکيت دی] بِخِلَافِ النَّسَبِ په خلاف د نسب لِأَنَّهُ يَعْتَمِدُ الْغُرُورَ ځکه چي د هغه د غرور [دوکې] په اعتماد سره وي [يعني د نسب مدار پر دوکه کېدلو دی] عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه قَالَ: وَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ فرمايي: او دا مينځه د اول شريک [اول واطي] اُم ولد کيږي لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَ شَرِيكِهِ وَكَمُلَ الِاسْتِيلَادُ ځکه چي هغه د خپل شريک د حصې مالک سوی دی او استيلاد پوره سوی دی عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چي [مخکي] موږ بيان کړه وَيَضْمَنُ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ عُقْرِهَا او دغه اول شريک د خپل شريک لپاره د مينځي د نيم عُقر ضامن کيږي لِوَطْئِهِ

جَارِيَةٌ مُشْتَرَكَةٌ ځکه چې هغه د مشترکه مينځې سره وطې کړې دي وَنِصْفَ قِيمَتِهَا او د هغې د نيم قيمت ضامن کيږي لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نِصْفَهَا بِالِاسْتِيلَادِ ځکه چې هغه [اول شريک] په استيلاد سره د نيمې مينځې مالک سوی دی وَهُوَ تَمَلُّكٌ بِالْقِيمَةِ او دا په قيمت سره مالک کېدل دي [يعني په استيلاد کې په قيمت سره مالک جوړېدای سي] وَالْوَلَدُ وَلَدُ الْأَوَّلِ او بچی د اول شريک [واطي] بچی کيږي لِأَنَّهُ صَحَّتْ دَعْوَتُهُ ځکه چې د هغه دعویٰ صحيح سوې ده لِقِيَامِ الْمُصَحِّحِ ځکه چې [د دعوې] صحيح ګرځونکی شی موجود دی وَهَذَا قَوْلُهُمْ جَمِيعًا او دا د دوی [امام صاحب او صاحبينو] ټولو قول دی وَوَجْهُهُ مَا بَيَّنَّا او د دې دليل [مخه مخکې] موږ بيان کړی دی. [يعني "أما عندهما فظاهر. وأما عند أبي حنيفة فلأنه بالعجز تبيّن... إلخ"].

**اللغات:** ﴿يضمن﴾ د سمع مضارع ده: ضامن کېدل، ضمان (تاوان) پر لازمېدل. ﴿موسر﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: پراخ لاسی، مالدار، شتمن. ﴿معسر﴾ مخکنی صيغه ده: تنګلاسی، محتاج، غريب. ﴿تملّك﴾ د تفعّل مصدر دی: مالک جوړېدل، مالک کېدل. ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام او مينځې ذات. ﴿عجز﴾ د ضرب مصدر دی: عاجزه کېدل، عاجز والی. ﴿يصادف﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: يو شی د بل شي سره يو ځای کېدل، متصل کېدل، لاحق کېدل، واقع کېدل (معجم الوسيط، احسن الهدايه). ﴿مستولد﴾ د استفعال د باب فاعل دی: أم ولد جوړونکی. ﴿يعتمد﴾ د افتعال مضارع ده: اعتماد او بروسه کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي چې له هغوی څخه اوله مسئله د مخکنې عبارت د مسئلې سره متعلق ده. او د هغې حاصل دا دی چې د مخکنې عبارت په مسئله کې چې کله مينځه د اول شريک (اول واطي) أم ولد کيږي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د هغې د مکاتب والي په حالت کې چې د هغې کوم قيمت وي، هغه پر اول شريک (د دويم شريک لپاره) واجبيږي؛ ځکه چې اول شريک د هغې د مکاتب والي په حالت کې د دويم شريک د حصې مالک سوی دی، نو ځکه په ضمان کې به هم د همدغه حالت قيمت لازميږي او برابره ده اول شريک مالدار وي او که تنګلاسی وي. په هر صورت کې پر هغه دا ضمان لازميږي؛ ځکه چې دا د تملّک (مالک جوړېدلو) ضمان دی او د تملک ضمان په يَسَار او إعسار سره نه مختلف کيږي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مينځې په نصف قيمت او نصف بدلِ کتابت کې چې کوم يو کم (أقل) وي، هغه واجبيږي، ځکه که د مينځې د

عجز اړخ ته وکتل سي، نو دويم شريک د نصف رقبه (او د هغې د نصف قيمت) مستحق کيږي او که (پر بدل کتابت) د هغې د قادره کېدلو اړخ ته وکتل سي، نو دويم شريک د نصف بدل مستحق کيږي، او له دغو څخه يو اړخ واضح نه دی، نو ځکه اقل به واجبيږي؛ ځکه چې اقل خو په هر حال کې مُتعيّن وي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې کله اول واطي دا مينځه اُم ولد وګرځوي نو تر دې وروسته دې دويم شريک د هغې سره وطي نه کوي بلکې هغه دې مُدبّره جوړه کړي او بيا که مينځه له بدل اداء کولو څخه عاجزي ښکاره کړي، نو بالاتفاق د ټولو په نېز دا تدبير باطليږي؛ ځکه چې د تدبير د صحت دار ومدار پر ملکيت دی، او دلته د مُدبّر ملکيت معدوم دی (يعني دويم شريک د دغه مينځې مالک نه دی)؛ ځکه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو د اول شريک تر دعوې وروسته او د مينځې تر عاجزه کېدو مخکې اول شريک د ټولې مينځې مالک سوی دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مينځې په عاجزه کېدلو سره دا ښکاره سوه چې هغه د وطي له وخت څخه د دويم شريک حصه خپله کړې ده، نو ځکه د دويم شريک تدبير له ملکيت څخه د خالي کېدلو په وجه باطل دی. ها! که چيرې دويم شريک هم وطي ور سره کړې وای، نو د پيدا سوي بچي نسب به د هغه سره ثابت سوی وای؛ ځکه چې وروسته د مينځې په عاجزه کېدلو سره به هغه مغرور ګرځېدلی وای او د وَلَدُ المغرور نسب د مغرور سره ثابتيږي، نو د ملکيت ضرورت به نه وای، لهذا په استيلاد او تدبير کې فرق دی، د دغه ياد ساتل ضروري دي.

(۳)... فرمايي چې کله دويم شريک دا مينځه مُدبّره جوړه کړي، نو په دې صورت کې مينځه د واطي شريک اُم ولد کيږي؛ ځکه چې واطي د ټولو په نېز د دويم شريک د حصې مالک سوی دی. او د مخکني عبارت د مسئلې په څېر دلته هم پر واطي د دغه مينځې نصف عُقر او د هغې نصف قيمت واجبيږي، او څرنګه چې دويم شريک د هغې سره وطي نه دي کړې، نو ځکه پيدا سوی بچی د اول شريک يعني د واطي بچی کيږي. (احسن الهدايه)

## د مشترکه مکاتبه مينځې آزادول

قَالَ: وَإِنْ كَانَا كَاتَبَاهَا فرمايي: او که چيرې دواړه شريکان خپل مشترکه مينځه مکاتبه جوړه کړي ثُمَّ أَعْتَقَهَا أَحَدُهُمَا وَهُوَ مُوسِرٌ بيا له دوی څخه يو شريک هغه آزاده کړي حال دا چې هغه مالدار وي ثُمَّ عَجَزَتْ بيا مينځه [له بدل کتابت اداء کولو څخه] عاجزه سي يَضْمَنُ الْمُعْتِقُ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ قِيمَتِهَا نو آزادونکی شريک د خپل شريک لپاره د مينځې د نيم قيمت ضامن کيږي [يعني هغه به خپل شريک ته په ضمان (تاوان) کې د مينځې نيم قيمت ورکوي] وَيَرْجِعُ بِذَلِكَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز آزادونکی شريک په دغه قيمت سره پر مينځې رجوع کولای سي [يعني د امام صاحب رَحِمَهُ

الله په نېز مُعتِق ته دا حق سته چي په ضمان کي ور کول سوی قيمت له دغه مينځي څخه واخلي] وَقَالَا: لَا يَرْجِعُ عَلَيْهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي مُعتِق پر هغې رجوع نه سي کولای لِأَنَّهَا لَمَّا عَجَزَتْ وَرُدَّتْ فِي الرِّقِّ ځکه کله چي هغه عاجزه سي او غلامتوب ته واپس کړی سي تَصِيرُ كَأَنَّهَا لَمْ تَزَلْ قِنَّةً نو داسي ګرځي لکه هغه چي له همېشه څخه خالص مينځه ده وَالْجَوَابُ فِيهِ عَلَى الْخِلَافِ فِي الرُّجُوعِ وَفِي الْخِيَارَاتِ وَغَيْرِهَا او حکم په دې مسئله کي پر هغه اختلاف مبني دی کوم چي په رجوع کولو، اختياراتو او داسي نورو کي دی كَمَا هُوَ مَسْأَلَةُ تَجَزِّئِ الْإِعْتَاقِ لکه څرنګه چي دا د اعتاق د متجزي کېدلو مسئله ده [يعني لکه څرنګه چي د اعتاق په متجزي کېدلو کي اختلاف دی] وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي الْإِعْتَاقِ چي په اعتاق کي مورږ د هغه بيان کړی دی فَأَمَّا قَبْلَ الْعَجْزِ لَيْسَ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لېکن [د مکاتبه مينځي] تر عاجزه کېدلو مخکي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز غير مُعتِق [ناآزادونکي شريک] ته دا حق نسته چي مُعتِق ضامن وګرځوي لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ لَمَّا كَانَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ ځکه کله چي اعتاق [آزادول] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز متجزي کيږي كَانَ أَثَرُهُ أَنْ يُجْعَلَ نَصِيبُ غَيْرِ الْمُعْتِقِ كَالْمُكَاتَبِ نو د هغه اثر همدا دی چي د غير مُعتِق حصه د مکاتب په څېر وګرځي فَلَا يَتَغَيَّرُ بِهِ نَصِيبُ صَاحِبِهِ نو په دې [آزادولو] سره به د هغه د ملګري حصه نه متغيّر کيږي لِأَنَّهَا مُكَاتَبَةٌ قَبْلَ ذٰلِكَ ځکه چي هغه له دې څخه مخکي مکاتبه سوې ده وَعِنْدَهُمَا لَمَّا كَانَ لَا يَتَجَزَّأُ او څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اعتاق نه متجزي کيږي يَعْتِقُ الْكُلُّ نو [د يوه شريک په آزادولو سره] به ټوله مينځه آزاديږي فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ مُكَاتَبًا إِنْ كَانَ مُوسِرًا نو ځکه هغه [غير مُعتِق] ته به دا حق وي چي مُعتِق د خپلي حصې د قيمت ضامن وګرځوي د مکاتب کېدلو په حساب سره [يعني د مکاتب والا قيمت ضامن يې وګرځوي] که چيري هغه مالدار وي وَيَسْتَسْعِي الْعَبْدَ إِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که چيري هغه تنګلاسی وي نو په غلام سره دي سعی [او مزدوري] وکړي لِأَنَّهُ ضَمَانُ إِعْتَاقٍ ځکه چي دا د اعتاق ضمان [تاوان] دی فَيَخْتَلِفُ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ نو ځکه [د مُعتِق] په مالدارۍ او تنګلاسۍ سره به مختلف کيږي.

**اللغات**: ﴿موسر﴾ دافعال د باب اسم فاعل دی: پراخ لاسی، مالدار، شتمن، ﴿الرق﴾ غلامتوب، غلام والی، ﴿لم تزل﴾ له افعال ناقصه وو څخه د "مَا زَالَ" د جحد صيغه ده، چې د هغه اصطلاحي معنیٰ ده: همېشه کېدل (له همېشه څخه کېدل)، ﴿قِنّة﴾ خالص مينځه، ﴿تجزئ﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: متجزي کېدل، يعني جزء، جزء (حصه، حصه) کېدل، ﴿يستسعي﴾ د استفعال مضارع ده: په غلام سعي او کوښښ کول، د مال ګټلو لپاره کسب او مزدوري په کول، ﴿اليسار﴾ پراخ لاسي، مالداري، ﴿اعسار﴾ تنګلاسي، غربت او بد حالي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يوه مينځه د دوو خلکو په مينځ کې مشترکه وي او دواړه هغه مکاتبه جوړ کړي، بيا له دوی څخه يو شريک کوم چې مالدار وي خپله حصه آزاده کړي او تر دې وروسته مينځه له بدل کتابت اداء کولو څخه عاجزي (ناوسي) ښکاره کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په حکم دا دی چې په دې صورت کې به مُعتِق (آزادونکي شريک) و ساکت يعني غير مُعتِق (ناآزادونکي شريک) ته د مينځې د نصف قيمت ضمان ورکوي لېکن وروسته به مُعتِق له مينځې څخه هغه قيمت واپس واخلي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز مُعتِق هغه قيمت له مينځې څخه واپس نه سي اخيستلای؛ ځکه کله چې دا مکاتبه مينځه عاجزه سوه او دوباره رقيقه (خالص مينځه) وګرځېده، نو د هغې حالت داسي سو لکه هغه چې له همېشه څخه مينځه ده او مکاتبه سوې نه ده، او څرنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اعتاق نه متجزي کيږي، نو د يوه شريک اعتاق (آزادول) د ټولي مينځې اعتاق دی (يعني د دوی په نېز د يوې حصې آزادول داسي دي لکه ټوله مينځه آزادول)، نو ځکه مُعتِق به د غير مُعتِق د حصې ضامن وي او په دغه ضمان کې به هغه متبرع وي او متبرع د تبرع مال واپس نه سي اخيستلای، نو ځکه دغه مُعتِق ته به هم دا حق او اختيار نه وي چې د بل شريک (غيرِ معتق) په حصه کې ورکول سوی قيمت له مينځې څخه واپس واخلي.

فرمايي: د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کې چې کوم د رجوع او عدم رجوع (واپس اخيستلو او نه اخيستلو) اختلاف دی، همدغه اختلاف په اختيارات ثلاثه وغيرها کې هم دی. له اختيارات ثلاثه وو څخه مراد دا دی چې د يوه شريک له اعتاق څخه وروسته د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دويم شريک ته له دريو اختياراتو څخه يو اختيار حاصلېږي: ① يو دا چې هغه (دويم شريک) دي هم خپله حصه آزاد کړي، ② يا دي په مينځه مزدوري او ګټه وکړي او د خپلي حصې قيمت دي

له هغې څخه واخلي، ③ يا دي مُعتِق د خپلې حصې د قيمت ضامن وګرځوي (يعني له معتق څخه دي د خپلې حصې ضمان [تاوان] واخلي)، د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چې که مُعتِق مالدار وي، نو غير مُعتِق دي له هغه څخه ضمان واخلي، او که مُعتِق تنګلاسی (غريب) وي، نو غير مُعتِق دي په مينځه مزدوري او ګټه کړي، بس همدا دوه کارونه کولاسي (د صاحبينو په نېز)، بل څه نه سي کولای.

او له "وَغَيْرِهَا" څخه ولاء مراد ده، نو که دويم شريک خپله حصه آزاده کړي يا په مينځه کسب او مزدوري وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ولاء د دوی په مينځ کي مشترکه کيږي؛ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعتاق متجزي کيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په هر صورت کي اول مُعتِق ته ولاء حاصلېږي؛ ځکه چي د دوی په نېز اعتاق نه متجزي کيږي.

پورته چي کوم حکم ذکر سوی دی هغه د مينځي د عاجزه کېدلو (عاجزي ښکاره کولو) د حالت سره متعلق دی لېکن که تر عاجزه کېدلو مخکي معامله وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز غير مُعتِق (ساکت) له مُعتِق څخه ضمان نه سي اخيستلای؛ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعتاق متجزي کيږي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د يوه شريک په اعتاق سره به صرف د هغه حصه آزاديږي او د دويم شريک حصه به د مخکي په څېر مکاتبه پاتېږي او په هغه کي به اعتاق نه مؤثر کيږي. د دې په خلاف څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اعتاق نه متجزي کيږي، نو ځکه د قَبْل العَجز او بَعْد العَجز په دواړو صورتونو کي د دوی په نېز حکم سره برابر دی، يعني د يوه شريک په اعتاق سره به ټوله مينځه کي اعتاق ثابتيږي او دويم شريک ته له مُعتِق څخه د ضمان اخيستلو حق او اختيار حاصلېږي، يعني که مُعتِق شريک مالدار وي، نو غير مُعتِق شريک به له هغه څخه ضمان اخلي، او که هغه تنګلاسی وي، نو په مينځي به کسب او مزدوي کوي او له هغې څخه به ضمان اخلي، لکه څرنګه چي د بَعْد العَجز والا په صورت کي مورږ د دې بيان وکړی.

## د مذکوره مسئلې خلاصه

قَالَ: وَإِنْ كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ دَبَّرَهُ أَحَدُهُمَا فرمايي: او که غلام د دوو خلکو په مينځ کې مشترک وي چې له دوی څخه يو شريک هغه مُدبّر جوړ کړي ثُمَّ أَعْتَقَهُ الْآخَرُ وَهُوَ مُوسِرٌ بيا بل شريک هغه آزاد کړي حال دا چې هغه مالدار وي فَإِنْ شَاءَ الَّذِي دَبَّرَهُ ضَمَّنَ الْمُعْتِقَ نِصْفَ قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا نو که مُدبّر جوړونکی شريک وغواړي نو مُعتق [آزادونکي شريک] دې د مُدبّر غلام د نيم قيمت ضامن وګرځوي [يعني د مُدبّر والي په حالت کې چې د دې غلام څومره قيمت وي د هغه نيم قيمت دې په ضمان (تاوان) کې ځني واخلي] وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ او که وغواړي نو په غلام دې سعی [او ګټه] وکړي وَإِنْ شَاءَ أَعْتَقَ او کله وغواړي نو خپله دې هم [هغه] آزاد کړي وَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا ثُمَّ دَبَّرَهُ الْآخَرُ او که له دوی دواړو څخه يو شريک هغه آزاد کړي بيا يې بل شريک مُدبّر جوړ کړي لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ نو [په دې صورت کې] هغه ته دا اختيار نسته چې آزادونکی شريک ضامن وګرځوي [يعني له آزادونکي شريک څخه ضمان واخلي] وَيَسْتَسْعَى الْعَبْدَ أَوْ يُعْتِقَ [بلکې] هغه به يا په غلام سعی [او ګټه] کوي يا هغه به آزادوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ❁ دا حکم دا امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَوَجْهُهُ أَنَّ التَّدْبِيرَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ او د دې دليل دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تدبير متجزي کيږي فَتَدْبِيرُ أَحَدِهِمَا يَقْتَصِرُ عَلٰى نَصِيبِهِ نو ځکه د يوه شريک تدبير [مدبر جوړول] به د هغه پر خپلې حصې منحصر پاتيږي لٰكِنْ يَفْسُدُ بِهِ نَصِيبُ الْآخَرِ لېکن په دغه تدبير سره د دويم شريک حصه فاسديږي [ځکه چې تر تدبير وروسته دويم شريک له دغه مُدبّر غلام څخه کار او خدمت نه سي اخيستلای] فَيَثْبُتُ لَهُ خِيَرَةُ الْإِعْتَاقِ وَالتَّضْمِينِ وَالِاسْتِسْعَاءِ نو ځکه هغه ته به د آزادولو، ضامن ګرځولو او په غلام د سعی کولو اختيار حاصليږي كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ لکه څرنګه چې همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دی فَإِذَا أَعْتَقَ او کله چې دويم شريک [خپله حصه] آزاده کړي لَمْ يَبْقَ لَهُ خِيَارُ التَّضْمِينِ وَالِاسْتِسْعَاءِ نو بيا د هغه لپاره د تضمين او استسعاء اختيار باقي نه پاتيږي [بلکې ساقطيږي] وَإِعْتَاقُهُ يَقْتَصِرُ عَلٰى نَصِيبِهِ

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۵، ص:۷۷)، وفي ملتقى الأبحر (ج:۴، ص:۲۳). [القول الراجح ج: ص:۲۴۵]

او د هغه اعتاق د هغه پر خپلي حصې منحصر كيږي [تر خپل حصې پوري محدود او موقوف پاتيږي] لِأَنَّهُ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعتاق متجزي كيږي وَلَكِنْ يَفْسُدُ بِهِ نَصِيبُ شَرِيكِهِ لېکن د دغه اعتاق په وجه د هغه د شريک [مدبر جوړونكي شريک] حصه فاسديږي فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ وَلَهُ خِيَارُ الْعِتْقِ وَالِاسْتِسْعَاءِ أَيْضًا نو ځکه هغه [مدبر جوړونكي شريک] ته به دا اختيار وي چي مُعتِق [آزادونكى شريک] د خپلي حصې د قيمت ضامن وګرځوي او هغه ته به د غلام د آزادۍ او په غلام د سعى كولو اختيار هم وي كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ لكه څرنګه چي همدا [د غير مُعتِق شريک په هكله] د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دى وَيُضَمِّنُهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ مُدَبَّرًا او مُدبّر جوړونكى شريک به مُعتِق شريک د خپلي حصې د مُدبّر والي د قيمت ضامن ګرځوي لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ صَادَفَ الْمُدَبَّرَ ځکه چي [دلته] آزادول د مُدبّر غلام سره متصل سوي دي [يعني دويم شريک په داسي حال كي خپله حصه آزاده كړې ده چي په بله حصه كي غلام مُدبّر دى. نو ځکه هغه به د مُدبّر والي د حالت والا قيمت ضامن كيږي] ثُمَّ قِيلَ: قِيمَةُ الْمُدَبَّرِ تُعْرَفُ بِتَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ بيا ويل سوي دي: چي د مُدبّر غلام قيمت به د قيمت لګونكو [د قيمت د ماهرينو] په قيمت لګولو سره معلومول كيږي وَقِيلَ: يَجِبُ ثُلُثَا قِيمَتِهِ وَهُوَ قِنٌّ او ويل سوي دي: چي د خالص غلام د قيمت دوه ثلثه واجبيږي [او همدا د غيرِ معتق ضمان دى] لِأَنَّ الْمَنَافِعَ أَنْوَاعٌ ثَلَاثَةٌ ځکه چي منافع درې ډوله [پر درې قسمه] دي الْبَيْعُ وَأَشْبَاهُهُ ① بيع او د بيع سره مشابه عقدونه [يعني د بيع په څېر نور عقود لكه هبه، صدقه، وصيت او داسي نور] وَالِاسْتِخْدَامُ وَأَمْثَالُهُ ② خدمت اخيستل او د هغه په مثل سره نور عقدونه [لكه اجاره او عاريتاً وركول] وَالْإِعْتَاقُ وَتَوَابِعُهُ ③ آزادول او د هغه تابع نور عقدونه [لكه كتابت، تدبير او داسي نور] وَالْفَائِتُ الْبَيْعُ او [په مُدبّر غلام كي] بيع فوت ده [يعني د هغه خرڅول ممنوع دي] فَيَسْقُطُ الثُّلُثُ نو ځکه [د دې يوه منفعت فوتېدلو په وجه به] د قيمت يو ثلث ساقطيږي [او دوه ثلثه به د ضمان په توګه واجبيږي] وَإِذَا ضَمَّنَهُ او كله چي مُدبّر جوړونكى شريک مُعتِق ضامن وګرځوي [يعني كله چي له آزادونكي شريک څخه ضمان واخلي] لَا يَتَمَلَّكُهُ بِالضَّمَانِ، نو مُعتِق په ضمان اداء كولو سره د هغه [يعني د مُدبّر جوړونكي شريک د حصې] نه مالک كيږي [ځکه چي دا ضمانِ حيلوله دی. ضمانِ تملک نه دی] لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الِانْتِقَالَ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ ځکه چي مُدبّر غلام له

يوه ملکيت څخه بل ملکيت ته منتقل کېدل نه قبلوي [يعني بل ملکيت ته د منتقل کېدلو قابل نه دی] كَمَا إِذَا غَصَبَ مُدَبَّرًا فَأَبَقَ لکه کله چي څوک يو مُدبّر غلام غصب کړي بيا هغه غلام [له غاصب څخه] وتښتيږي [نو پر غاصب د هغه قيمت واجبيږي] وَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا أَوَّلًا او که له دوی دواړو څخه يو شريک اول هغه آزاد کړي كَانَ لِلْآخَرِ الْخِيَارَاتُ الثَّلَاثُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دويم شريک ته [مخکني] درې سره اختيارات حاصليږي فَإِذَا دَبَّرَهُ او که چيري دويم شريک [خپله حصه] مُدبّره جوړه کړي لَمْ يَبْقَ لَهُ خِيَارُ التَّضْمِينِ نو د هغه لپاره د تضمين [ضامن ګرځولو] اختيار باقي نه پاتيږي [ساقطيږي] وَبَقِيَ خِيَارُ الْإِعْتَاقِ وَالِاسْتِسْعَاءِ او [د هغه لپاره] [د اعتاق او استسعاء اختيار باقي پاتيږي لِأَنَّ الْمُدَبَّرَ يُعْتَقُ وَيُسْتَسْعَى ځکه چي مُدبّر غلام آزادول کېدای هم سي او په هغه سعی هم کول کېدای سي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: إِذَا دَبَّرَهُ أَحَدُهُمَا صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کله يو شريک هغه مُدبّر جوړ کړي فَعِتْقُ الْآخَرِ بَاطِلٌ نو بيا د بل شريک آزادول باطل دي لِأَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُمَا ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز تدبير [هم] نه متجزي کيږي فَيَتَمَلَّكُ نَصِيبَ صَاحِبِهِ بِالتَّدْبِيرِ نو ځکه هغه [مدبر جوړونکی شريک] به د تدبير په وجه د خپل ملګري [دويم شريک] د حصې مالک سي وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ نو هغه به [د دويم شريک لپاره] د غلام د نيم قيمت ضامن کيږي مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا برابره ده هغه [مدبر جوړونکی شريک] مالدار وي او که تنګلاسی وي لِأَنَّهُ ضَمَانُ تَمَلُّكٍ ځکه چي [د صاحبينو په نېز] دا د تملک ضمان دی [کوم چي په يسار او اعسار سره نه مختلف کيږي] فَلَا يَخْتَلِفُ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ نو ځکه هغه به په مالدارۍ او تنګلاسۍ سره نه مختلف کيږي وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ قِنًّا [همدارنګه] مُدبّر جوړونکی شريک د خالص غلام د نصف قيمت ضامن کيږي لِأَنَّهُ صَادَفَهُ التَّدْبِيرُ وَهُوَ قِنٌّ ځکه چي د دغه غلام سره د خالص غلام والي په حالت کي تدبير متصل سوی دی وَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا او که له دوی دواړو څخه يو شريک [اول] هغه آزاد کړي [خپله حصه آزاده کړي] فَتَدْبِيرُ الْآخَرِ بَاطِلٌ نو [په دې صورت کي هم] د بل شريک مُدبّر جوړول باطل دي لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چي اعتاق [د صاحبينو په نېز] نه متجزي کيږي فَيَعْتِقُ كُلُّهُ نو ځکه ټوله

غلام به آزاد سي فَلَمْ يُصَادِفِ التَّدْبِيْرُ الْمِلْكَ نو تدبير [مدبر جوړول] د ملکيت سره متصل نه سو وَهُوَ يَعْتَمِدُهُ حال دا چي د تدبير اعتماد [مدار] پر ملکيت دی [لکه مخکي چي ذکر سوه] وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيْمَتِهِ إِنْ كَانَ مُوسِرًا [بيا] که چيري مُعتق شريک مالدار وي نو هغه [د خپل ملګري شريک] لپاره د نيم قيمت ضامن کيږي وَيَسْعَى الْعَبْدُ فِي ذٰلِكَ إِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که چيري هغه تنګلاسی وي نو غلام به د دغه نيم قيمت [د ګټلو] لپاره سعی [او مزدوري] کوي لِأَنَّ هٰذَا ضَمَانُ الْإِعْتَاقِ ځکه چي دا د آزادولو ضمان دی فَيَخْتَلِفُ ذٰلِكَ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ عِنْدَهُمَا نو دا به د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په مالداری او تنګلاسی سره مختلف کيږي.

**اللغات**: ﴿دبّر﴾ د تفعيل ماضي ده: مُدبّر جوړول (خپل غلام ته ويل چي زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!)، ﴿يضمن﴾ د تفعيل مضارع ده: ضامن ګرځول، ضمان (تاوان) ځني اخيستل، ضمان پر لازمول، ﴿استسعى﴾ د استفعال ماضي ده، إِسْتَسْعٰى يَسْتَسْعِيْ إِسْتِسْعَاءً: په غلام سعی او کوښښ کول، خواري په کارول، د مال ګټلو لپاره کسب او مزدوري په کول (مال په ګټل)، ﴿خيرة﴾ اختيار، ﴿صادف﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: ورسره يو ځای کېدل، متصل کېدل، واقع کېدل، ﴿قِنّ﴾ خالص غلام.

**تشريح**: د عبارت هر، هر جزء له ترجمې څخه هم ښکاره کيږي، صرف په دې خبره ځان پوه کول ضروري دي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تدبير او اعتاق دواړه متجزي کيږي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه اعتاق متجزي کيږي او نه تدبير. د همدغه فرق او اختلاف په وجه د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په نيز په احکامو کي څه تغيّر راغلی دی.



# بَابُ مَوْتِ الْمُكَاتَبِ وَعَجْزِهٖ وَمَوْتِ الْمَوْلٰى

(دا) باب د مکاتب د مړه کېدلو، د هغه د عاجزه کېدلو او د مالک د مړه کېدلو (په بیان کي) دی

## د قسط (تاکل سوې حصې) په اداء کولو کي د تأخير کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا عَجَزَ الْمُكَاتَبُ عَنْ نَجْمٍ فرمايي: او كله چي مكاتب د يوه قسط له اداء كولو څخه عاجزه سي نَظَرَ الْحَاكِمُ فِي حَالِهٖ نو حاكم [قاضي] دي د هغه په حالت كي غور وكړي فَإِنْ كَانَ لَهُ دَيْنٌ يَقْبِضُهُ أَوْ مَالٌ يَقْدَمُ عَلَيْهِ نو كه چيري د دغه مكاتب لپاره داسي قرض وي چي [نژدې] دغه مكاتب پر هغه قبضه كوي او يا داسي مال وي كوم چي [نژدې] پر هغه راتلونكى وي لَمْ يُعَجِّلْ بِتَعْجِيزِهٖ وَانْتَظَرَ عَلَيْهِ الْيَوْمَيْنِ أَوِ الثَّلَاثَةَ نو قاضي دي د هغه د عاجزۍ په فيصله كولو كي تلوار نه كوي او تر دوو يا دريو ورځو پوري دي انتظار وكړي نَظَرًا لِلْجَانِبَيْنِ د دې لپاره چي د دواړو طرفونو [مالک او مكاتب] په حق كي مصلحت [او رعايت] ثابت سي وَالثَّلَاثُ هِيَ الْمُدَّةُ الَّتِي ضُرِبَتْ لِإِبْلَاءِ الْأَعْذَارِ او درې ورځي داسي مودت دی كوم چي د عذرونو د اظهار [څرګندونو] لپاره ټاكل سوی دی كَإِمْهَالِ الْخَصْمِ لِلدَّفْعِ لكه مدعی عليه ته [د مدعي د دعوې] د دفع كولو لپاره مهلت وركول وَالْمَدْيُونِ لِلْقَضَاءِ او مقروض [پور وړي] ته د قرض اداء كولو لپاره مهت وركول فَلَا يُزَادُ عَلَيْهِ نو څكه پر هغه به زياتوب نه كيږي [يعني تر دريو ورځو به زيات مهلت نه وركول كيږي] فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَجْهٌ بيا كه [تر دريو ورځو وروسته] مكاتب ته [د مال راتللو] هيڅ صورت نه وي وَطَلَبَ الْمَوْلَى تَعْجِيزَهُ او مالک [له قاضي څخه] د دغه مكاتب د عاجز ګرځولو مطالبه وكړي عَجَّزَهُ وَفَسَخَ الْكِتَابَةَ نو قاضي دي هغه عاجز وګرځوي او عقدِ كتابت دي فسخ كړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ دا [حكم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ❁: لَا يُعَجِّزُهُ حَتّٰى يَتَوَالَى عَلَيْهِ نَجْمَانِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المنتقى (ج:۴، ص:۲۴)، والهنديـة (ج:۵، ص:۱۷). [القـول الراجح ج:۲، ص: ۲۴۶]

فرمايي: چي قاضي دي هغه عاجز نه ګرځوي تر دې چي پر هغه دوه قسطونه پرلپسې لازم سي ايعني کله چي هغه پرلپسې دوه قسطه اداء نه کړي، نو بيا دي قاضي هغه عاجز وګرځوي] لِقَوْلِ عَلِيٍّ رضي الله عنه: "إِذَا تَوَالَى عَلَى الْمُكَاتَبِ نَجْمَانِ رُدَّ فِي الرِّقِّ" ځکه حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي دي: "کله چي پر مکاتب دوه قسطونه پرلپسې لازم سي نو هغه به غلامتوب واپس کول کيږي [يعني هغه به د بدلِ کتابت له اداء کولو څخه عاجزه ګڼل کيږي او بيرته به غلام ګرځول کيږي] عَلَّقَهُ بِهٰذَا الشَّرْطِ نو حضرت علي رضي الله عنه هغه [غلامتوب ته واپس کول (عاجزه ګرځول)] پر همدغه شرط معلق کړي دي وَلِأَنَّهُ عَقْدُ إِرْفَاقٍ او ځکه چي کتابت د نرمۍ عقد دی [يعني کتابت داسي عقد دی کوم چي پر مسامحت او نرمۍ مبني دی] حَتّٰى كَانَ أَحْسَنُهُ مُؤَجَّلَهُ همدا وجه ده چي ښه عقد کتابت هغه دی کوم چي مؤخر [ځنډنی] وي [يعني په هغه کي پر غلام في الحاله يا په لږ وخت کي د بدلِ کتابت اداء کول لازم نه وي] وَحَالَةُ الْوُجُوبِ بَعْدَ حُلُولِ نَجْمٍ او [د اداء] د وجوب حالت د قسط د وخت تر راتللو وروسته وي [يعني د قسط (کښت) د وخت په راتللو سره سملستي تاکل سوی قسط واجبيږي] فَلَا بُدَّ مِنْ إِمْهَالِ مُدَّةٍ نو ځکه څه مودت ورکول ضروري دي اِسْتِيْسَارًا دآساني ورکولو لپاره [يعني چي مکاتب په آسانه د بدلِ کتابت قسط اداء کړی سي] وَأَوْلَى الْمُدَدِ مَا تَوَافَقَ عَلَيْهِ الْعَاقِدَانِ او غوره مودت هغه دی چي پر هغه دواړه عقد کونکي [مکاتب او مالک] متفق سي وَلَهُمَا: أَنَّ سَبَبَ الْفَسْخِ قَدْ تَحَقَّقَ وَهُوَ الْعَجْزُ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د فسخ سبب ثابت سوی دی او هغه [د يوه قسط له اداء کولو څخه] عاجزه کېدل دي لِأَنَّ مَنْ عَجَزَ عَنْ أَدَاءِ نَجْمٍ وَاحِدٍ ځکه څوک چي د يوه قسط له اداء کولو څخه عاجزه سي يَكُونُ أَعْجَزَ عَنْ أَدَاءِ نَجْمَيْنِ نو هغه خو به د دوو قسطونو له اداء کولو څخه بيخي عاجزه وي وَهٰذَا لِأَنَّ مَقْصُودَ الْمَوْلَى الْوُصُولُ إِلَى الْمَالِ عِنْدَ حُلُولِ نَجْمٍ او دا [حکم] ځکه دی چي د مالک مقصود دا دی چي د قسط د وخت په راتللو سره مال [تاکل سوی قسط] ترلاسه کړي وَقَدْ فَاتَ حال دا چي [د قسط نه اداء کولو په وجه] د مالک مقصود فوت سو فَيُفْسَخُ إِذَا لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِهِ دُوْنَهُ نو ځکه به عقد فسخ کول کيږي کله چي مالک له قسط اخيستلو څخه بغير په دغه عقد [د عقدِ کتابت په باقي پرېښوولو] راضي نه وي بِخِلَافِ الْيَوْمَيْنِ

وَالثَّلَاثَةِ په خلاف د دوو او دريو ورځو د مهلت ورکولو لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْهَا ځکه چي له هغه څخه هيڅ چاره نسته [يعني تر دومره مودته مهلت ورکول ضروري دي] لِإِمْكَانِ الْأَدَاءِ ځکه چي [په دومره مودت سره] اداء کول ممکن کيږي فَلَمْ يَكُنْ تَأْخِيرًا نو دا به تاخير نه وي [يعني دومره مودت مهلت ورکول به تأخير نه ګرځول کيږي] وَالْآثَارُ مُتَعَارِضَةٌ او د صحابه وو اثار سره متعارض دي [يعني په هغوی کي تعارض او تفاوت دی] فَإِنَّ الْمَرْوِيَّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ مُكَاتَبَةً لَهُ عَجَزَتْ عَنْ أَدَاءِ نَجْمٍ وَاحِدٍ فَرَدَّهَا ځکه له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه دا روايت سوی دی چي د هغه يوه مکاتبه مينځه [د بدلِ کتابت] د يوه قسط له اداء کولو څخه عاجزه سوه نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا مکاتبه [رقيت ته] واپس کړه" [يعني هغه يې واپس خپل رقيقه او خالص مينځه وګرځوله] فَسَقَطَ الِاحْتِجَاجُ بِهَا نو ځکه په متعارضه اثارو سره دليل نيول ساقط سوه [لهذا د حضرت علي ﷺ په اثر سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل نيول معتبر نه سوه] قَالَ: فَإِنْ أَخَلَّ بِنَجْمٍ عِنْدَ غَيْرِ السُّلْطَانِ فرمايي: او که مکاتب له سلطان [قاضي] څخه بغير يو بل ځای [د قسط په اداء کولو کي] کوتاهي وکړي فَعَجَزَ او عاجزه سي فَرَدَّهُ مَوْلَاهُ بِرِضَاهُ بيا د هغه په رضا سره مالک هغه [غلامتوب] ته واپس کړي [يعني دوباره يې خپل رقيق وګرځوي] فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّ الْكِتَابَةَ تُفْسَخُ بِالتَّرَاضِي مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ ځکه [کله چي] بغير له عذره هم يو د بل په رضا سره کتابت فسخ کيږي فَبِالْعُذْرِ أَوْلَى نو د عذر په وجه خو به په درجه اولیٰ فسخ کيږي وَلَوْلَمْ يَرْضَ بِهِ الْعَبْدُ او که غلام په دې [يعني د کتابت په فسخ] راضي نه سي لَا بُدَّ مِنَ الْقَضَاءِ بِالْفَسْخِ نو [په دې صورت کي] د قاضي په فيصله سره فسخ کول ضروري دي لِأَنَّهُ عَقْدٌ لَازِمٌ تَامٌّ ځکه چي عقد کتابت يو لازم او تام عقد دی فَلَا بُدَّ مِنَ الْقَضَاءِ أَوِ الرِّضَاءِ نو ځکه د هغه [د فسخ کولو لپاره] قضاء يا رضا ضروري ده كَالرَّدِّ بِالْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ لکه څرنګه چي تر قبضې وروسته د عيب په وجه د مبيع واپس کولو لپاره قضاء يا رضا ضروري ده قَالَ: وَإِذَا عَجَزَ الْمُكَاتَبُ فرمايي او کله چي مکاتب [د بدلِ کتابت له اداء کولو څخه] عاجزه سي [يعني د قاضي په فيصله سره يا د مکاتب په رضا سره د هغه عجز ثابت سي] عَادَ إِلَى أَحْكَامِ الرِّقِّ نو هغه د غلاموالي احکامو ته واپس راګرځي لِانْفِسَاخِ الْكِتَابَةِ ځکه چي عقد کتابت فسخ

سو وَمَا كَانَ فِي يَدِهِ مِنَ الْأَكْسَابِ او د هغه په قبضه كي چي كوم څه ګټي [ګټل سوی مال] وي فَهُوَ لِمَوْلَاهُ نو [اوس] هغه د ده د مالک لپاره دي لِأَنَّهُ ظَهَرَ أَنَّهُ كَسْبُ عَبْدِهِ ځکه چي [اوس] ښکاره سوه چي دا د هغه د غلام ګټه ده وَهٰذَا لِأَنَّهُ كَانَ مَوْقُوفًا عَلَيْهِ أَوْ عَلَى مَوْلَاهُ او دا [حکم] ځکه دی چي دا ګټه پر ده [يعني پر مکاتب غلام] يا د ده پر مالک موقوفه وه وَقَدْ زَالَ التَّوَقُّفُ او [د عجز په وجه] دا توقف زايل سو.

**اللغات:** ﴿نجم﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: قسط، کښت، ټاکل سوې حصه، (قرض يا داسي بل حق چي پر څو حصو تقسيم کړی سي او د هري حصې د اداء کولو لپاره يې جلا وخت وټاکل سي، نو د هغه هري حصې ته "قسط" ويل کيږي)، ﴿تعجيز﴾ د تفعيل مصدر دی: عاجزه ګرځول، د عاجزۍ وطرف ته نسبت کول، د غلام د عاجزه کېدلو حکم جاري کول، ﴿ضُرِبَت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهوله صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: مقرر کېدل (متعيّن کېدل، ټاکل کېدل)، ﴿ابداء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ښکاره کول، ﴿يتوالى﴾ د تفاعل مضارع ده: پرلپسې کېدل، ﴿ارفاق﴾ مهرباني او نرمي، ﴿أخلّ﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي چي د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: کوتاهي کول، أخلّ بمرکزه: مرکز پرېښوول، غائبېدل، پوره حق نه ورکول، يو کار په سمه توګه نه کول (مصباح اللغات)، ﴿سلطان﴾ باچا، مراد ځني قاضي دی؛ ځکه چي پر قاضي هم د سلطان اطلاق کيږي، بلکي د هغه اطلاق پر هر هغه کس کيږي کوم چي د حکم او فيصلې خاوند وي، ﴿فسخ﴾ د نصر د باب مصدر دی: فسخ کول (ماتول)، ختمول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک بدل کتابت په کښت سره ټاکلی وي يعني پر څو قسطونو (حصو) يې تقسيم کړی وي او بيا مکاتب يو قسط پر خپل وخت اداء نه کړی سي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه ته درې ورځي مهلت ورکول کيږي، د دې لپاره چي که له يو طرفه هغه ته د مال حاصلېدلو (ملاوېدلو) آميد وي، نو هغه به ور ته حاصل سي او عقد به له فسخ کېدلو څخه بچ سي، نو ځکه به مکاتب ته درې ورځي مهلت او رخصت ورکول کيږي او تر دې به زيات مهلت نه ورکول کيږي؛ ځکه چي شريعت د مدعیٰ عليه او مقروض (پوروړي) لپاره هم دغه مودت (درې ورځي) ټاکلی دی (يعني کله چي مدعیٰ عليه د مدعي له دعوې څخه انکار وکړي او د حجت او ګواهۍ په ذريعه

ځان څخه دعویٰ دفع کول وغواړي، نو هغه ته هم د حجت او ګواهي پېښولو او دعویٰ دفع کولو لپاره یوه، دوې یا درې ورځې مهلت ورکول کیږي، همدارنګه کله چې مقروض د قرض اقرار وکړي او د مال راوړلو او قرض اداء کولو لپاره درې ورځې مهلت وغواړي، نو هغه ته هم دومره مهلت ورکول کیږي).

لیکن که د یو چا له طرفه دې غلام ته د مال حاصلېدلو اُمید نه وي او د قسط نه اداء کولو په وجه د هغه مالک له قاضي څخه دا مطالبه وکړي چې قاضي دې هغه عاجز وشمېري او زما او د هغه ترمینځ دې عقد فسخ کړي، نو قاضي ته پکار دي چې د مالک مطالبه پر ځای کړي او عقد فسخ کړي. د دې په خلاف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې صرف د یوه قسط نه اداء کولو په وجه دې قاضي دا غلام عاجز نه ګرځوي، بلکې کله چې هغه پرلپسې دوه قسطونه پر خپل وخت اداء نه کړي، نو بیا دې قاضي هغه عاجز وګرځوي او عقد دې فسخ کړي؛ ځکه چې همداسې له حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت سوی دی، او بل دا چې د دغه عقد مدار پر سهولت او نرمي دی او نرمي په همدې کې ده چې تر دوو قسطونو پورې د غلام د تعجیز فیصله وځنډول سي او محض په دریو ورځو کې د هغه د تعجیز او د فسخ فیصله نه وسي.

د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې کله دغه مکاتب یو قسط اداء نه کړی سو، نو دوه قسطه خو به بېخي نه سي اداء کولای او د مالک مقصود فقط مال دی، نو ځکه محض د یوه قسط په نه اداء کولو سره د فسخ سبب متحقق او موجود سو، او اوس مالک د دغه عقد په باقي پاتېدلو راضي نه دی، نو ځکه اوس د عقد له فسخ کولو څخه چاره نسته. ها! تر دوو او دریو ورځو پورې په مهلت ورکولو کې هیڅ حرج نسته؛ ځکه چې په دوو او دریو ورځو کې به مکاتب هڅه او کوښښ وکړي او په یو ډول به بدل اداء کړی سي. او د حضرت علي رضي الله عنه په فرمان سره د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل نیول صحیح نه دي؛ ځکه له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه دا روایت نقل سوی دی چې د هغه یوه مکاتبه مینځه وه او هغې د بدل کتابت یو قسط اداء نه کړی سو، نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغه بیرته خپل رقیقه وګرځوله. دا د حضرت علي رضي الله عنه د اثر مخالف دی، نو ځکه په هغه سره دلیل نیول صحیح نه دي.

قال فإن أخل إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله د قسط اداء کولو وخت را ورسیږي او مکاتب له قاضي څخه بغیر د بل چا مخته د قسط په اداء کولو کې کوتاهي وکړي یا مکاتب داسې ځای ته ولاړ سي او قسط نه ورکوي چې هلته حاکم او قاضي نه وي، او مکاتب په هغه ځای کې له قسط اداء کولو څخه عاجزي ښکاره کړي او مالک د مکاتب په رضا او خوښې سره عقد فسخ کړي او هغه بیرته غلام وګرځوي، نو دغه فسخ او رد صحیح دی؛ ځکه کله چې له یو عذر څخه بغیر هم یو د بل په رضا سره

عقد فسخ کېدای سي، نو د عذر په صورت کي خو به په درجه اولیٰ هغه فسخ کیږي. لېکن که مکاتب په دې راضي نه وي، نو بیا د قاضي له فیصلې څخه بغیر نه سي فسخ کېدای، او د فسخ کېدلو په صورت کي مکاتب غلام ګرځي او د هغه ګټه (ګټل سوی مال) او داسي نور د هغه د مالک کیږي؛ ځکه چي د ګټي معامله موقوفه وه یعني که مکاتب د بدل کتابت په اداء کولو سره آزادي ترلاسه کړې وای نو د هغه ګټه (ګټل سوی مال) خو به خپله د هغه حق وای او که یې بدل کتابت اداء کړي نه وای، نو هغه به د مالک حق کېدلای، او په پورتني صورت کي د هغه له عاجزه کېدلو او عقد فسخ کېدلو څخه دا خبره ښکاره سوه چي د ګټي (ګټل سوي مال) اصل حقدار مالک دی، نو ځکه همدې مالک ته به د هغه ګټه ورکول کیږي. (احسن الهدایه)

## د عقد کتابت په دوران کي د مکاتب مړه کېدل (حکم او تفصیل)

قَالَ: فَإِنْ مَاتَ الْمُكَاتِبُ وَلَهُ مَالٌ فرمايي: او که مکاتب په داسي حال کي مړ سي چي د هغه سره مال [موجود] وي لَمْ تَنْفَسِخِ الْكِتَابَةُ نو کتابت نه فسخ کیږي وَقُضِيَ مَا عَلَيْهِ مِنْ مَالِهِ او د هغه له مال څخه به [د هغه بدل کتابت] اداء کول کیږي وَحُكِمَ بِعِتْقِهِ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ او د هغه د ژوند په آخري جزء کي به د هغه د آزادېدلو فیصله کیږي وَمَا بَقِيَ او کوم څه مال چي پاته سي فَهُوَ مِيرَاثٌ لِوَرَثَتِهِ نو هغه د ده د وارثانو لپاره میراث دی وَيُعْتَقُ أَوْلَادُهُ او د هغه بچیان آزادیږي وَهٰذَا قَوْلُ عَلِيٍّ وَابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا او دا د حضرت علي او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قول دی وَبِهِ أَخَذَ عُلَمَاؤُنَا رَحِمَهُمُ اللّٰهُ او زموږ علماؤ همدا قول اختیار کړی دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَبْطُلُ الْكِتَابَةُ وَيَمُوتُ عَبْدًا وَمَا تَرَكَهُ لِمَوْلَاهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰه فرمايي: چي کتابت باطلیږي او دغه مکاتب د غلام والي په حالت کي مړ کیږي [یعني د مرګ په حالت کي غلام شمېرل کیږي] او د هغه پرېښوول سوی مال د مالک کیږي وَإِمَامُهُ فِي ذٰلِكَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رضي الله عنه او په دې باره کي د هغه پېشوا حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه دی وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الْكِتَابَةِ عِتْقُهُ او ځکه چي د کتابت مقصود د هغه آزادېدل دي وَقَدْ تَعَذَّرَ إِثْبَاتُهُ حال دا چي [دلته] د آزادۍ ثابتول نا ممکن سوه فَتَبْطُلُ نو ځکه به کتابت باطلیږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا يَخْلُو إِمَّا أَنْ يَثْبُتَ بَعْدَ الْمَمَاتِ مَقْصُورًا أَوْ يَثْبُتَ قَبْلَهُ أَوْ بَعْدَهُ مُسْتَنِدًا او دا حکم ځکه دی چي عتق [له دریو حالو څخه] خالي نه دی یا به هغه تر مرګ وروسته په منحصر کېدلو سره ثابتیږي یا به تر مرګ مخکي ثابتیږي یا به تر مرګ وروسته [د ژوند وحالت ته] په منسوب کېدلو سره

ثابتیږي لَا وَجْهَ إِلَى الْأَوَّلِ د اول حال [د ثابتېدلو] هیڅ وجه [او صورت] نسته لِعَدَمِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چي محل کېدل معدوم دي وَلَا إِلَى الثَّانِي او نه د دويم يوه [د ثابتېدلو] هيڅ وجه سته لِفَقْدِ الشَّرْطِ وَهُوَ الْأَدَاءُ ځکه چي شرط يعني [بدل کتابت] اداء کول موجود نه دي وَلَا إِلَى الثَّالِثِ او نه د درېيم حال [د ثابتېدلو] هيڅ وجه سته لِتَعَذُّرِ الثُّبُوتِ فِي الْحَالِ ځکه چي في الحاله د عتق ثابتېدل نا ممکن دي وَالشَّيْءُ يَثْبُتُ ثُمَّ يَسْتَنِدُ حال دا چي شی [اول] ثابتیږي بيا منسوب کيږي وَلَنَا: أَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ زموږ دليل دا دی چي عقد کتابت د معاوضې عقد دی وَلَا يَبْطُلُ بِمَوْتِ أَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ وَهُوَ الْمَوْلَى او د يوه عاقد يعني د مالک په مرګ سره هغه نه باطليږي فَكَذَا بِمَوْتِ الْآخَرِ نو همداسي به د دويم عاقد په مرګ سره هم نه باطليږي وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا الْحَاجَةُ إِلَى إِبْقَاءِ الْعَقْدِ لِإِحْيَاءِ الْحَقِّ بَلْ أَوْلَى او د دوی په مينځ کي جامع امر ضرورت دی د عقد باقي پرېښوولو ته د حق د ژوندي کولو لپاره بلکي په درجه اولیٰ به باقي پرېښوول کيږي [يعني د غلام او مالک تر مينځ علت جامعه د حق د ژوندي کولو په غرض د عقد د باقي ساتلو ضرورت دی، بلکي د مکاتب په حق کي عقد باقي ساتل زيات ضروري دي] لِأَنَّ حَقَّهُ آكَدُ مِنْ حَقِّ الْمَوْلَى ځکه چي د مکاتب حق د مالک له حق څخه زيات قوي دی حَتَّى لَزِمَ الْعَقْدُ فِي جَانِبِهِ همدا وجه ده چي د هغه په حق کي دا عقد لازم دی وَالْمَوْتُ أَنْفَى لِلْمَالِكِيَّةِ مِنْهُ لِلْمَمْلُوكِيَّةِ او مرګ د مملوکيت په نسبت د مالکيت زيات نفي کونکی دی [په بله وينا: مرګ د ملکيت په مقابله کي مالکيت زيات ختموي] فَيَنْزِلُ حَيًّا تَقْدِيرًا نو ځکه غلام به تقديرا د ژوندي په درجه ګرځول کيږي [يعني غلام به ژوندی فرض کول کيږي] أَوْ يَسْتَنِدُ الْحُرِّيَّةُ بِاسْتِنَادِ سَبَبِ الْأَدَاءِ إِلَى مَا قَبْلَ الْمَوْتِ يا د سبب اداء د منسوب کېدلو په وجه به آزادي هم له مرګ څخه د مخکي حالت وطرف ته منسوب کيږي وَيَكُونُ أَدَاءُ خَلَفِهِ كَأَدَائِهِ او د مکاتب د خليفه [نائب] اداء کول به په خپله د مکاتب د اداء کولو په درجه کي وي وَكُلُّ ذَلِكَ مُمْكِنٌ او دا ټوله ممکن دي عَلَى مَا عُرِفَ تَمَامُهُ فِي الْخِلَافِيَّاتِ لکه څرنګه چي په "خلافياتو" کي د دې بشپړېزه [بشپړ تفصيل] معلوم سوی دی.

**اللغات**: ﴿تعذّر﴾ د تفعّل ماضي ده، د دې باب دوې معناوي دي: مشکل کېدل، نا ممکن کېدل، ﴿ممات﴾ مرګ، مړينه، ﴿مُستنِد﴾ د استفعال اسم فاعل دی: منسوبېدونکی (منسوب کېدونکی)، هغه

شی چي نسبت يې بل شي ته سوی وي، ﴿محلية﴾ محل کېدل، محل والی، ﴿خلافيات﴾ اختلافي فقهي مسائل. (احسن الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مکاتب مړ سي لېکن تر خپل شا (په ميراث کي) مال پرېږدي، نو زموږ په نېز د هغه په مرګ سره عقد کتابت نه فسخ کيږي (نه ختميږي)، بلکي د هغه له پرېښوول سوي مال څخه به بدل کتابت اداء کول کيږي او هغه به د خپل ژوند په آخري حصه او شېبه کي آزاد شمېرل کيږي د دې لپاره چي د هغه اولاد او بچيان د آزادۍ په نعمت سره برخمن سي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د مکاتب په مړه کېدلو سره عقد کتابت باطليږي او هغه د غلام والي په حالت کي مړ شمېرل کيږي او د هغه ميراث (پرېښوول سوی مال) مالک ته حاصليږي.

**د امام شافعي دليل:** د حضرت زيد بن ثابت ﷺ دا قول دی: "الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ لَا يَرِثُ وَلَا يُوْرَثُ" (يعني تر څو چي پر مکاتب د بدل کتابت يو درهم هم پاته وي، تر هغه وخته مکاتب غلام پاتيږي، نه هغه د يو چا وارث کېدای سي او نه بل څوک د هغه وارث کېدای سي [يعني نه بل څوک وارث جوړولای سي])، معلومه سوه چي کله د يوه درهم د پاتېدلو په صورت کي هم هغه غلام پاتيږي، نو د ټوله بدل کتابت د نه اداء کولو په صورت کي به په درجه اولیٰ هغه غلام پاتيږي او د هغه د آزاد والي فيصله به نه کيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي د عقد کتابت مقصد د مکاتب عتق او آزادېدل دي او د هغه د مړه کېدلو په وجه اوس پر هغه عتق (آزادي) ثابتول نا ممکن دي؛ ځکه چي د دغه مکاتب په حق کي په دريو طريقو سره عتق ثابتول کېدای سي، خو له هغوی څخه بالکل په يوه طريقه سره هم عتق ثابتول ممکن نه دي؛ يعني نه د هغه تر مرګ وروسته عتق ثابتول کېدای سي، نه تر مرګ مخکي او نه تر مرګ وروسته د ژوند و حالت ته د عتق په نسبت کولو (منسوب کولو) سره هغه ثابتول کېدای سي.

ځکه چي له مرګ څخه په وروسته والا صورت کي محليت معدوم دی (يعني تر مرګ وروسته مکاتب د آزادېدلو محل نه دی) او له مرګ څخه په مخکي والا صورت کي د عتق شرط يعني د بدل کتابت اداء کول معدوم دي او له مرګ څخه وروسته د حالت حيات و طرف ته په نسبت کولو سره ځکه عتق نه سي ثابتول کېدای چي د نسبت کولو (منسوب کولو) لپاره في الحاله د هغه شي ثابتېدل پکار دي، حال دا چي د مکاتب د مړه کېدلو په وجه في الحاله د عتق ثابتېدل نا ممکن دي، او کله چي ثبوت نا ممکن دی، نو استناد (منسوب کول) به هم نا ممکن کيږي او په مذکوره دريو طريقو کي به په يوه سره هم عتق نه ثابتيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چې عقد کتابت د معاوضې عقد دی کوم چې د يوه عاقد يعنې د مالک په مړه کېدلو سره نه باطليږي، لهذا کله چې د مالک په مرګ سره هم دا عقد نه باطليږي چې هغه د مالکيت او امريت په وصف سره متصف دی، نو د مکاتب په مړه کېدلو سره به په درجه اولیٰ نه باطليږي؛ ځکه مکاتب خو مملوک دی او د مالکيت زوال د مملوکيت له زوال څخه اقویٰ دی، لهذا کله چې د اقویٰ په زوال (زايلېدلو) سره د عقد پر صحت اثر نه لويږي نو د ادنیٰ په زوال سره به څنګه پر هغه اثر ولويږي!. او بل دا چې د مالک په حق کې خو دا عقد لازم هم نه وي بلکې د مکاتب په حق کې لازم وي، نو ځکه په دې حواله سره به هم د مکاتب په مړه کېدلو سره دا عقد نه باطليږي او تر مرګ وروسته به د هغه د عتق (آزادۍ) سبب د هغه تر مرګ لږ څه مخکې ثابتيږي او هغه به تقديرا ژوندی شمېرل کيږي او پر هغه به عتق نافذول کيږي، لکه څرنګه چې مړی (ميت) د قرضونو د اداء کولو او د وصيت نافذولو په حق کې تر مرګ وروسته ژوندی شمېرل کيږي او د هغه د وارثانو عمل او تصرف د هغه خپل عمل او تصرف شمېرل کيږي، همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د مکاتب تر مرګ وروسته د هغه د وارث او نائب په لاس سره د بدل اداء کېدل به د هغه په خپله اداء کول شمېرل کيږي (يعنې داسې به ګرځول کيږي لکه هغه چې په خپله دا بدل اداء کړی دی). ګواکې موږ (صاحبينو) د دغه مکاتب تر مرګ وروسته د هغه د ژوند وحالت ته د عتق په نسبت کولو (د رېيمه طريقه) سره هغه آزاد ګرځولی دی. او د دغه مسئلې نور تفصيل په خلافياتو کې هم ذکر سوی دی. له خلافياتو څخه دلته هغه کتابونه مراد دي چې په هغوی کې (په تفصيلي توګه) مختلف فيها مسائل جمع او مُرتّب کړل سوي دي. (احسن الهدايه).

## که مړ کېدونکی مکاتب لږ مال پرېږدي نو د هغه حکم

قَالَ: وَإِنْ لَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً فرمايي: او که مکاتب [تر خپل شا] د بدل کتابت په اندازه مال نه پرېږدي وَتَرَكَ وَلَدًا مَوْلُودًا فِي الْكِتَابَةِ خو يو داسې بچی پرېږدي کوم چې د کتابت په حالت کې پيدا سوی وي سَعَى فِي كِتَابَةِ أَبِيهِ عَلَى نُجُومِهِ نو هغه به د پلار په بدل کتابت کې د هغه د قسطونو په حساب سره سعی [او ګټه] کوي فَإِذَا أَدَّى بيا چې کله هغه بدل کتابت اداء کړي حَكَمْنَا بِعِتْقِ أَبِيهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَعِتْقِ الْوَلَدِ نو موږ د پلار تر مرګ مخکې د پلار د آزادېدلو او د بچي د آزادېدلو فيصله کوو لِأَنَّ الْوَلَدَ دَاخِلٌ فِي كِتَابَتِهِ ځکه چې بچی د خپل پلار په کتابت کې داخل دی وَكَسْبُهُ كَكَسْبِهِ او د هغه ګټه [ګټل سوی مال] د پلار د ګټې په درجه کې دی فَيَخْلُفُهُ فِي الْأَدَاءِ نو ځکه د بدل کتابت په اداء

کولو کي به بچی د خپل پلار نائب کيږي وَصَارَ كَمَا إِذَا تَرَكَ وَفَاءً او دا به داسي وي لکه مکاتب [پلار] چي د بدلِ کتابت په اندازه مال پرېږي ايښی وي وَإِنْ تَرَكَ وَلَدًا مُشْتَرًى فِي الْكِتَابَةِ او که [مړ سوی] مکاتب د کتابت په حالت کي رانيول سوی هلک پرېږدي قِيلَ لَهُ: إِمَّا أَنْ تُؤَدِّيَ الْكِتَابَةَ حَالَّةً أَوْ تُرَدَّ رَقِيقًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دغه هلک به ته ويل کيږي: چي يا ته في الحاله [سمدستي] بدل کتابت اداء کړه! يا ته به غلام ګرځې وَأَمَّا عِنْدَهُمَا ❁ يُؤَدِّيهِ إِلَى أَجَلِهِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به دا هلک د بدلِ کتابت تر وخته [ميعاده] پوري هغه اداء کوي اعْتِبَارًا بِالْوَلَدِ الْمَوْلُودِ فِي الْكِتَابَةِ په حالت کتابت کي پر پيدا سوي بچي په قياس کولو سره. وَالْجَامِعُ أَنَّهُ مَكَاتَبٌ عَلَيْهِ تَبَعًا لَهُ او [د ولد مشتری او ولد مولد ترمينځ] علت جامعه دا دی چي دا [هريو] د هغه [مکاتب (پلار)] د تابع په توګه پر هغه مکاتب دی وَلِهَذَا يَمْلِكُ الْمَوْلَى إِعْتَاقَهُ او په همدې وجه [د مکاتب (پلار)] مالک د هغه [هريوه] د آزادولو ملکيت لري بِخِلَافِ سَائِرِ أَكْسَابِهِ په خلاف د مکاتب د نورو ګټو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْفَصْلَيْنِ: أَنَّ الْأَجَلَ يَثْبُتُ شَرْطًا فِي الْعَقْدِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل (کوم چي په دواړو صورتونو کي د فرق وجه هم ده) دا دی: چي ميعاد په عقد کي د شرط په توګه ثابتيږي فَيَثْبُتُ فِي حَقِّ مَنْ دَخَلَ تَحْتَ الْعَقْدِ نو ځکه ميعاد به د همغه کس په حق کي ثابتيږي کوم چي تر عقد لاندي داخل وي وَالْمُشْتَرَى لَمْ يَدْخُلْ او ولد مشتری [رانيول سوی هلک] تر عقد لاندي داخل نه وي لِأَنَّهُ لَمْ يُضَفْ إِلَيْهِ الْعَقْدَ ځکه چي د هغه وطرف ته د عقد نسبت سوی نه وي وَلَا سَرَى حُكْمُهُ إِلَيْهِ او نه د هغه وطرف ته د عقد حکم سرايت کړی وي لِانْفِصَالِهِ ځکه چي [د عقد کتابت پر مهال] هغه له مکاتب څخه جلا وي بِخِلَافِ الْمَوْلُودِ فِي الْكِتَابَةِ په خلاف د عقد کتابت په حالت کي د پيدا سوي بچي لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ وَقْتَ الْكِتَابَةِ ځکه چي هغه د عقد کتابت په وخت کي د مکاتب سره متصل وي فَسَرَى الْحُكْمُ إِلَيْهِ نو ځکه د عقد حکم د هغه وطرف ته سرايت کړی وي

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۵، ص:۷۸)، و مجمع الأنهر (ج:۴، ص:۲۶). [القــول الراجح ج:۲، ص:۲۴۷]

وَحَيْثُ دَخَلَ فِي حُكْمِهِ او كله چي هغه د عقد په حكم كي داخل دی سَعٰى فِي نُجُومِهِ نو ځکه هغه به د مكاتب [پلار] د قسطونو په اداء كولو كي سعی کوي فَإِنِ اشْتَرٰى ابْنَهُ ثُمَّ مَاتَ وَتَرَكَ وَفَاءً او كه چيري مكاتب خپل ځوی رانيسي بيا مړ سي او د بدل كتابت په اندازه مال پريږدي وَرِثَهُ ابْنُهُ نو ځوی د هغه وارث کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا حُكِمَ بِحُرِّيَّتِهِ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ ځکه کله چي د مكاتب د ژوند په آخري جزء کي د هغه د آزادۍ فيصله کيږي يُحْكَمُ بِحُرِّيَّةِ ابْنِهِ فِي ذٰلِكَ الْوَقْتِ نو په همغه وخت کي به د هغه د ځوی د آزادۍ فيصله هم کيږي لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِأَبِيهِ فِي الْكِتَابَةِ ځکه چي ځوی په كتابت د خپل پلار تابع دی فَيَكُونُ هٰذَا حُرًّا يَرِثُ عَنْ حُرٍّ نو ځکه دا ځوی به هم آزاد وي چي د آزاد پلار وارث به وي وَكَذٰلِكَ إِنْ كَانَ هُوَ وَابْنُهُ مُكَاتَبَيْنِ كِتَابَةً وَاحِدَةً او همدارنګه کله چي پلار او د هغه ځوی دواړه په يوه عقد كتابت سره مكاتب جوړ کړل سوي وي [نو هم دغه حكم دی] لِأَنَّ الْوَلَدَ إِنْ كَانَ صَغِيرًا ځکه بچی که کوچنی وي فَهُوَ تَبَعٌ لِأَبِيهِ نو هغه د خپل پلار تابع وي وَإِنْ كَانَ كَبِيرًا او که بچی غټ وي جُعِلَا كَشَخْصٍ وَاحِدٍ نو [په دغه صورت کي] بچی او پلار دواړه د يوه كس په حكم ګرځول کيږي فَإِذَا حُكِمَ بِحُرِّيَّةِ الْأَبِ لهذا کله چي [د ژوند په آخري جزء کي] د پلار د آزادۍ فيصله وسي يُحْكَمُ بِحُرِّيَّتِهِ فِي تِلْكَ الْحَالَةِ نو په همغه حالت کي به د بچي د آزادۍ فيصله هم کيږي عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سوه.

**اللغات:** ﴿وفاء﴾ مراد ځني دومره مال دی كوم چي د قرض (او بدل) د اداء كولو لپاره كافي وي (احسن الهدايه)، ﴿سعی﴾ د فتح له بابه د واحد مذكر غائب ماضي صيغه ده: كوشش او هڅه كول، خواري كښل، مراد ځني كسب او مزدوري كول او د آزادېدلو لپاره مال ګټل او مالك ته وركول دي، ﴿نجوم﴾ جمع د نَجْمٌ ده چي د هغه يوه معنیٰ ده: قسط، كښت، د قرض يا بدل كتابت يا داسي بل حق تاكل سوې حصه (لكه څرنګه چي مخكي يې څو ځله تعريف تېر سوی دی)، ﴿يخلف﴾ د نصر مضارع ده: خليفه كېدل، نائب او قائم مقام كېدل، ﴿سری﴾ د ضرب ماضي ده: سرايت كول، جاري كېدل (داخلېدل، حلول كول).

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که مکاتب په خپل میراث کې دومره مال نه پریږدي چې په هغه سره بدل کتابت اداء کړی سي، لېکن هغه تر خپل شا یو داسې هلک (بچی) پرېږدي کوم چې د کتابت په حالت کې پیدا سوی وي، نو ځرنګه چې دغه هلک هم د خپل مکاتب پلار په متابعت کې مکاتب ګرځېدلی دی، نو ځکه پر پلار د لازم شُده بدل کتابت د اداء کولو لپاره به همدا هلک مزدوري او ګټه کوي، او کله چې هغه ګټه وکړي او مالک ته یې ورکړي، نو د هغه د مکاتب پلار د آزادۍ فیصله به کیږي او کله چې پلار آزاد سي نو د هغه تابع یعني هلک هم آزادیږي؛ ځکه کله چې په مکاتبت کې هلک د پلار تابع دی نو په حریت کې به هم د پلار تابع کیږي او د پلار آزادي به د هغه په حق کې هم آزادي شمېرل کیږي.

د دغه مسئلې دویم اړخ دا دی چې که مکاتب تر خپل شا داسې هلک پرېږدي کوم چې یې د کتابت په حالت کې رانیولی وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دغه هلک ته صرف دوه اختیاره ورکول کیږي: ① یو دا چې هغه ته به ویل کیږي چې ته فوراً (سمدستي) د خپل پلار بدلِ کتابت اداء کړه!، ② او که ته بدلِ کتابت نه سې اداء کولای، نو غلام او رقیق وګرځه (غلامتوب ته واپس سه!).

د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چې هغه به فی الفور (سمدستي) د بدلِ کتابت اداء کولو مکلف نه ګرځول کیږي، بلکې د هغه د پلار په حق کې چې د بدل اداء کولو لپاره کوم میعاد (میاد) ټاکل سوی وو، تر هغه میعاده پورې به دا هلک هم د بدل اداء کولو مکلف ګرځول کیږي، لکه ځرنګه چې د کتابت په حالت کې پیدا سوی هلک هم په قسط (په حصه، حصه) سره بدل اداء کوي او هغه د فوراً اداء کولو مکلف نه ګرځول کیږي.

پر پیدا شُده هلک (ولد مولود) د رانیول سوي هلک (ولد مشتریٰ) د قیاسولو وجه او علت دا دی چې دوی دواړه د خپل پلار تابع کیږي، او د پلار مالک چې ځرنګه د پیدا شُده هلک (یعني د مکاتب د بچي) د آزادولو ملکیت لري، همداسې د رانیول سوي هلک د آزادولو ملکیت هم لري.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې کوم اجل (میعاد) چې په عقد کې ټاکل سوی وي، هغه د شرط په درجه کې وي او دا اجل د همغه کس په حق کې ثابتیږي، ځوک چې تر عقد لاندې داخل وي. او ځرنګه چې رانیول سوی هلک د عقد کتابت (مکاتب جوړېدلو) په وخت کې د مکاتب او د هغه د ملکیت سره متصل نه وي، نو ځکه هغه به تر عقد لاندې داخل هم نه وي او د هغه وطرف ته به د عقد حکم سرایت هم نه کوي، نو ځکه د هغه په حق کې به اجل او میعاد نه ثابتیږي او پر هغه به فوراً د بدل اداء کول لازمیږي. د دې په خلاف د عقدِ کتابت په حالت کې پیدا سوی هلک د مکاتب سره متصل

وي او د مکاتب (پلار) جزء او حصه وي، نو ځکه هغه لره به د عقدِ کتابت حکم شاملیږي او د پلار په څېر د هغه په حق کي به هم اجل او میعاد ثابتیږي.

**فإن اشتری ابنه إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که مکاتب خپل ځوی رانیسي، بیا مړ سي او تر خپل شاد بدل کتابت په اندازه مال پریږدي، نو د هغه رانیول سوی هلک (ځوی) د هغه په متابعت کي مکاتب گرځي او د هغه وارث کیږي، بیا چي کله د مړ سوي مکاتب (پلار) له طرفه بدل کتابت اداء کړی سي، نو دا هلک هم د خپل پلار سره آزادیږي او د هغه وارث کیږي، همدا حال او حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي مالک پلار او ځوی دواړه یو ځای مکاتبین جوړ کړي وي. (احسن الهدایه)

## د مکاتب تر مرگ وروسته د هغه د بچي د جنایت کولو حکم او تفصیل

قَالَ: فَإِنْ مَاتَ الْمُكَاتَبُ وَلَهُ وَلَدٌ مِنْ حُرَّةٍ فرمایي: که چیري مکاتب مړ سي او له آزادي ښځي څخه د هغه یو هلک [بچی] وي وَتَرَكَ دَيْنًا وَفَاءً لِمُكَاتَبَتِهِ او دا مکاتب دومره مال پریږدي کوم چي د هغه د بدلِ کتابت لپاره کافي وي فَجَنَى الْوَلَدُ بیا هغه هلک جنایت [جرم] وکړي فَقُضِيَ بِهِ عَلَى عَاقِلَةِ الْأُمِّ او د مور پر عاقله وو د جنایت د تاوان فیصله وکړی سي لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ قَضَاءً بِعَجْزِ الْمُكَاتَبِ نو دا د مکاتب د عاجزه کېدلو فیصله نه ده لِأَنَّ هَذَا الْقَضَاءَ يُقَرِّرُ حُكْمَ الْكِتَابَةِ ځکه چي دا فیصله خو د کتابت حکم نور مضبوطوي لِأَنَّ مِنْ قَضِيَّتِهَا إِلْحَاقُ الْوَلَدِ بِمَوَالِي الْأُمِّ وَإِيجَابِ الْعَقْلِ عَلَيْهِمْ ځکه د عقدِ کتابت تقاضا دا ده چي بچی د مور د موالیو سره لاحق کړی سي او پر هغوی دیت لازم کړی سي لَكِنْ عَلَى وَجْهٍ يَحْتَمِلُ أَنْ يُعْتَقَ لیکن په داسي توگه چي د مکاتب د آزادېدلو احتمال باقي پاته سي فَيَجُرُّ الْوَلَاءَ إِلَى مَوَالِي الْأَبِ نو هغه به د بچي ولاء د پلار د موالیو وطرف ته راکش کړي وَالْقَضَاءُ بِمَا يُقَرِّرُ حُكْمَهُ لَا يَكُونُ تَعْجِيزًا او کوم شی چي د کتابت حکم مضبوطوي د هغه فیصله تعجیز [عاجز گرځول] نه وي [یعني په هغه سره عجز نه ثابتیږي] وَإِنِ اخْتَصَمَ مَوَالِي الْأُمِّ وَمَوَالِي الْأَبِ فِي وَلَائِهِ او که چیري د دغه هلاک د ولاء په هکله د مور او د پلار موالي دعوی [او اختلاف] وکړي فَقُضِيَ بِهِ لِمَوَالِي الْأُمِّ بیا د مور د موالیو لپاره د هغه فیصله وسي فَهُوَ قَضَاءٌ بِالْعَجْزِ نو دا د عاجزه کېدلو فیصله ده لِأَنَّ

هٰذَا الْخِتِلَافُ فِي الْوَلَاءِ مَقْصُودًا ځکه چي دغه اختلاف دی په ولاء کي بالقصد [قصدا] وَذٰلِكَ يَنْبَنِيْ عَلٰى بَقَاءِ الْكِتَابَةِ وَانْتِقَاضِهَا او د ولاء دار ومدار د کتابت پر باقي پاتېدلو او د هغه پر ماتېدلو [فسخ کېدلو] دی فَإِنَّهَا إِذَا فُسِخَتْ ځکه کله چي دا کتابت فسخ سي مَاتَ عَبْدًا نو هغه هلک د غلام والي په حالت کي مړ کيږي [يعني د مړيني په وخت کي به غلام شمېرل کيږي] وَاسْتَقَرَّ الْوَلَاءُ عَلٰى مَوَالِي الْأُمِّ او ولاء د مور پر مواليو قرار نيسي [يعني د مور مواليو ته حاصليږي] وَإِذَا بَقِيَتْ وَاتَّصَلَ بِهَا الْأَدَاءُ او کله چي دا کتابت باقي پاته سي او د هغه سره د بدل اداء کول متصل سي مَاتَ حُرًّا نو هغه هلک د آزاد والي په حالت کي مړ کيږي وَانْتَقَلَ الْوَلَاءُ إِلٰى مَوَالِي الْأَبِ او ولاء د پلار د مواليو وطرف ته منتقل کيږي وَهٰذَا فَصْلٌ مُجْتَهَدٌ فِيهِ او دا يو مختلف فيه صورت [مسئله] ده فَيَنْفُذُ مَا يُلَاقِيهِ مِنَ الْقَضَاءِ نو ځکه کومه فيصله چي د دې سره متصل سي، هغه به نافذيږي فَلِهٰذَا كَانَ تَعْجِيزًا نو په همدې وجه به دا فيصله د تعجيز [او عاجزه کېدلو فيصله] وي.

**اللغات:** ﴿جنى﴾ د ضرب ماضي ده: جنايت کول، جرم کول، داسي کار کول چي پر هغه تاوان او ضمان لازميږي. ﴿عاقلة﴾ قريبان او نژدې قوميان (خاندان والا). ﴿قضية﴾ تقاضا، مقتضا. ﴿ولاء﴾ د آزاد سوي غلام ميراث کوم چي د هغه آزادونکي مالک ته حاصليږي (يعني غلام چي د کوم مالک له طرفه آزاد کړی سوی وي او کوم کس چي د هغه د آزادی سبب ګرځېدلی وي، د غلام ميراث د هغه حق کيږي، همدې ته ولاء وايي. چي پوره تفصيل به يې څه وروسته په "كتاب الولاء" کي ذکر سي). ﴿الحاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: لاحقول، ور سره يوځای کول. ﴿العقل﴾ ديت. ﴿موالي﴾ جمع د مَوْلیٰ ده، د دغه لفظ ډيري معناوي دي چي له هغوی څخه دوې دا دي: ① مالک او مشر (سيّد). ② آزادونکی مالک. ﴿يجرّ﴾ د نصر مضارع ده: کشول. رامنتقل کول. صاحب د مجعم د "جرّ الولاء" واضح او تفصيلي تعريف داسي کړی دی: جَرُّ الْوَلَاءِ: اِنْتِقَالُ وَلَاءِ أَوْلَادِ الْأَمَةِ الْمُعْتَقَةِ مِنْ مَوْلٰى أُمِّهِمْ إِلٰى مَوْلٰى أَبِيْهِمْ بَعْدَ عِتْقِ الْأَبِ (معجم لغة الفقهاء). ﴿انتقاض﴾ د افتعال مصدر دی: ماتېدل، ختمېدل. ﴿استقرّ﴾ د استفعال ماضي ده: قرار نيول، ټينګېدل. ﴿يلاقي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: ور سره يو ځای کېدل، متصل کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو مکاتب مړ سي او د هغه په وارثانو کي د آزادي ښځي یو هلک (بچی) وي او د دغه مکاتب پر څو خلکو قرضونه باندي وي او د هغه په میراث کَمدا قرضونه کي د مال په توګه پاته وي او د بدل اداء کولو لپاره کافي وي، بیا په دې دوران کي هغه هلک یو جنایت (جرم) وکړي او د هغه د مور پر عاقله وو د جنایت د تاوان (ضمان) فیصله وکړی سي، نو دا فیصله به (د بدل کتابت له اداء کولو څخه) د دغه هلک د پلار (مکاتب) د عاجزه کېدلو او د عقد کتابت فسخ کولو فیصله او بنیاد نه ګڼل کیږي او دا به نه ویل کیږي چي د مور پر عاقله وو (د پلار [مکاتب]) د عجز او فسخ په وجه تاوان لازم سوی دی؛ ځکه د پلار مکاتب کېدل د مور پر عاقله وو د دیت د وجوب او لزوم منافي دي؛ ځکه چي دا خو د عقد کتابت مقتضا ده چي د پلار تر مرګ وروسته به هلک د مور د موالیو سره لاحقول کیږي خو بیا هم په دې کي به دا احتمال خامخا وي چي که مکاتب آزاد سي یعني د هغه له طرفه بدل کتابت اداء کړی سي، نو هغه به د دغه هلک ولاء د خپلو موالیو وطرف ته را کش کړي؛ ځکه چي ولاء د نسب په درجه کي ده او څرنګه چي د هلک نسب د پلار سره ثابتیږي همداسي د هغه ولاء هم د پلار موالیو ته حاصلیږي، لهذا د مور پر عاقله وو د هلک د جنایت او تاوان په واجبېدلو سره به نه دا ګڼل کیږي چي (د هلک) د پلار د عجز په وجه دا فیصله سوې ده او نه به دا ګڼل کیږي چي تر آزادېدلو وروسته (یعني که تر مرګ وروسته یو څوک د مکاتب [پلار] له طرفه بدل کتابت اداء کړي، نو) هغه د هلک ولاء د خپل موالیو وطرف ته نه سي راکشولای. په همدې وجه په دویمه مسئله کي د هغه نور وضاحت سوی دی، د هغه صورت دا دی چي که د پلار (مکاتب) تر مرګ وروسته د دغه هلک هم مړ سي او د مور او پلار د موالیو په مینځ کي اختلاف راسي یعني د مور موالي وواییي چي دا د غلام والي په حالت کي مړ سوی دی نو موږ د هغه د ولاء حقداره یو، او د پلار موالي وواییي چي دا د آزاد والي په حالت کي مړ سوی دی نو موږ د هغه د ولاء مستحق یو، نو په حقیقت کي دا اختلاف د ولاء په هکله دی او دلته د ولاء حال او حکم دا دی چي که چیري عقد کتابت باقي ومنل سي او د پلار تر مرګ وروسته د بدل کتابت اداء کېدل د هغه د ژوند و حالت ته منسوب کړی سي او د عقد سره متصل وګرځول سي، نو ولاء د مور د موالیو کیږي، لېکن څرنګه چي دلته د عقد کتابت د بقاء (باقي پاتېدلو) او فسخ کېدلو معامله مختلف فیه ده، نو ځکه که چیري قاضي د مور د موالیو لپاره د ولاء فیصله وکړي، نو عقد به فسخ منل کیږي او که چیري د پلار د موالیو لپاره د هغه فیصله وکړي، نو عقد به باقي ګڼل کیږي. لېکن څرنګه چي په ما قبل کي د تاوان واجبولو معامله ده، نفس ولاء هلته مقصود نه ده، نو ځکه د مور پر عاقله وو د تاوان واجبولو باوجود به هلته عقد فسخ نه ګرځول کیږي. په همدغه اړخ سره په دواړو مسئلو کي فرق کړی سوی دی. (احسن الهدایه ج: ۱۲، ص: ۱۷۸، ۱۸۸)

## په بدلِ كتابت كي د صدقاتو د مال وركولو حكم

قَالَ: وَمَا أَدَّى الْمُكَاتَبُ مِنَ الصَّدَقَاتِ إِلَى مَوْلَاهُ ثُمَّ عَجَزَ فرمايي: او مكاتب چي خپل مالک ته كوم مال له صدقاتو څخه وركړى وي او بيا مكاتب عاجزه سوى وي فَهُوَ طَيِّبٌ لِلْمَوْلَى نو هغه مال د مالک لپاره حلال دى لِتَبَدُّلِ الْمِلْكِ ځكه چي ملكيت بدل [جلا] دى فَإِنَّ الْعَبْدَ يَتَمَلَّكُهُ صَدَقَةً وَالْمَوْلَى عِوَضًا عَنِ الْعِتْقِ ځكه غلام د صدقې په توګه د هغه مال مالک سوى دى او مالک د آزادۍ د عوض په توګه د هغه مالک سوى دى وَإِلَيْهِ وَقَعَتِ الْإِشَارَةُ النَّبَوِيَّةُ فِي حَدِيثِ بَرِيرَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا «هِيَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ» او د حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حديث كي د همدې [تبدلِ ملكيت] وطرف ته نبوي اشاره واقع سوې ده چي "دغه صدقه د هغې [ابريره رض] لپاره صدقه ده او زموږ لپاره هديه ده" وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَبَاحَ لِلْغَنِيِّ وَالْهَاشِمِيِّ او دا صورت د هغه صورت په خلاف دى كله چي يو فقير [غريب] د زكاة مال د مالدار كس او هاشمي لپاره روا وګرځوي لِأَنَّ الْمُبَاحَ لَهُ يَتَنَاوَلُهُ عَلَى مِلْكِ الْمُبِيحِ ځكه د چا لپاره چي دا مال روا كړى سوى دى [يعني مالدار او هاشمي] هغه د همدې روا ګرځونكي [فقير] پر ملكيت دا مال اخلي فَلَمْ يَتَبَدَّلِ الْمِلْكُ نو ملكيت بدل نه سو فَلَا تَطِيبُهُ نو ځكه دا د هغه لپاره حلال نه دى وَنَظِيرُهُ الْمُشْتَرِي شِرَاءً فَاسِدًا إِذَا أَبَاحَ لِغَيْرِهِ او د دې مثال د فاسد رانيولو [بيع فاسد] په توګه رانيول سوى شى دى كله چي مشتري [رانيونكى] هغه د بل كس لپاره روا كړي لَا يَطِيبُ لَهُ نو هغه شى د دې بل كس لپاره حلال نه دى وَلَوْ مَلَّكَهُ [ها!] كه چيري مشتري دا بل كس د هغه شي مالک جوړ كړي يَطِيبُ نو بيا حلاليږي وَلَوْ عَجَزَ قَبْلَ الْأَدَاءِ إِلَى الْمَوْلَى او كه مالک ته د هغه مال له وركولو څخه مخكي مكاتب عاجزه سي فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ نو هم دغه حكم دى وَهٰذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ ظَاهِرٌ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز خو دا ښكاره ده لِأَنَّ بِالْعَجْزِ يَتَبَدَّلُ الْمِلْكُ عِنْدَهُ ځكه چي په عاجزه كېدلو سره د هغه په نيز ملكيت بدليږي وَكَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او همداسي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هم دا حكم دى وَإِنْ كَانَ بِالْعَجْزِ يَتَقَرَّرُ مِلْكُ الْمَوْلَى عِنْدَهُ كه څه هم د هغه په نيز په عاجزه كېدلو سره د مالک ملكيت مضبوطيږي لِأَنَّهُ لَا خُبْثَ فِي نَفْسِ الصَّدَقَةِ ځكه چي په نفس صدقه كي هيڅ

خبث [بدي] نسته وَإِنَّمَا الْخُبْثُ فِي فِعْلِ الْأَخْذِ [بلكي] خبث خو د اخيستلو په فعل [د صدقې په اخيستلو] كي دى. لِكَوْنِهِ إِذْلَالًا بِهِ ځكه چي په هغه كي ذلت دى [صدقه اخيستل خپل ځان تيټول دي] فَلَا يَجُوزُ ذٰلِكَ لِلْغَنِيِّ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ نو ځكه د مالدار كس لپاره بلا ضرورته دا [صدقه اخيستل] جائز نه دي وَلِلْهَاشِمِيِّ او نه د هاشمي لپاره لِزِيَادَةِ حُرْمَتِهِ د هغه د احترام د زياتولي په وجه وَالْأَخْذُ لَمْ يُوجَدْ مِنَ الْمَوْلٰى او د مالك له طرفه اخيستل موجود سوي نه دي فَصَارَ كَابْنِ السَّبِيلِ إِذَا وَصَلَ إِلٰى وَطَنِهِ وَالْفَقِيرِ إِذَا اسْتَغْنٰى وَقَدْ بَقِيَ فِي أَيْدِيهِمَا مَا أَخَذَا مِنَ الصَّدَقَةِ نو دا داسي سوه لكه مسافر چي كله خپل وطن ته ورسيږي او لكه فقير چي كله [له صدقې څخه] مستغني سي حال دا چي د صدقې اخيستل سوى مال د دوى په قبضه كي پاته وي فَإِنَّهُ يَطِيبُ لَهُمَا نو د دوى لپاره هغه حلال دى وَعَلٰى هٰذَا إِذَا أُعْتِقَ الْمُكَاتَبُ وَاسْتَغْنٰى او پر همدغه حكم دي كله چي مكاتب آزاد كړى سي او هغه مستغني سي يَطِيبُ لَهُ مَا بَقِيَ مِنَ الصَّدَقَةِ فِي يَدِهِ نو د صدقې كوم مال چي د هغه په قبضه كي پاته وي، هغه د ده لپاره حلال دى.

**اللغات:** ﴿الصدقات﴾ جمع د صَدَقَةٌ ده: هغه وركړه چي په هغه سره (عند الله) د ثواب حاصلولو نيت وكړى سي، مراد ځني زكاة او داسي نور صدقات دي (كوم چي مكاتب ته يو چا وركړي وي)، ﴿أباح﴾ د افعال ماضي ده: روا ګرځول (روا كول)، ﴿يتناول﴾ د تفعيل مضارع ده: يو شى اخيستل، خوړل، ﴿خبث﴾ خرابي، فساد، بدي، ﴿ابن السبيل﴾ مسافر، ﴿استغنى﴾ د استفعال ماضي ده: مستغني (بې پروا) كېدل، ضرورت ختمېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه مكاتب په بدل كتابت كي مالك ته د زكاة او صدقې مال وركړى وي بيا مكاتب د بدل كتابت له اداء كولو څخه عاجزه سي، نو د زكاة او صدقې كوم مال چي هغه مالك ته وركړى وي، هغه مال د مالك لپاره حلال او مباح دى، كه څه هم مالك د صدقې او زكاة مستحق نه وي؛ ځكه چي د مكاتب او مالك ملكيتونه سره بدل او جلا دي او د ملكيت تبدل (تبديلي) د عَين شي د تبدل په درجه كي دى، لهذا د مكاتب لپاره خو به دا د صدقې مال وي لېكن د مالك په حق كي به هغه د عتق عوض وي، په همدې وجه نبي كريم ﷺ هغه غوښي وخوړلې كوم چي حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يو چا په صدقه كي وركړي وې او دا علت يې بيان كړى چي "هِيَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ".

لېکن که يو فقير او غريب سړی د صدقې او زکاة مال د مالدار کس يا د يو هاشمي کس لپاره مباح او حلال کړي، نو د مالدار او هاشمي لپاره د هغه استعمالول حلال او جائز نه دي؛ ځکه چي دلته مباح له يعني د کوم کس لپاره چي زکاة حلال کړی سوی دی دا کس د ملکيت د تبدل په توګه هغه مال نه اخلي بلکي د مباح ګرځونکي فقير پر ملکيت يې اخلي او د فقير لپاره خو دا مال حلال دی لېکن د مالدار او هاشمي لپاره هغه ته لاس وروړل منع دي؛ ځکه چي د دوی په حق کي د ملکيت تبدل معدوم دی.

ولوعجزالخ: فرمايي همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي د صدقې مال د مکاتب غلام سره موجود وي او مالک ته د هغه له ورکولو څخه مخکي مکاتب عاجزه سي، نو ښکاره خبره ده چي په دغه صورت کي به د مکاتب سره، سره د هغه مال هم رقيق (د مالک تر غلامی او ملکيت لاندي) وګرځي او څرنګه چي مکاتب د مالک مملوک ګرځي، همداسي به د هغه مال هم د مالک په ملکيت کي داخل او شامل وګرځي او د هغه مال به د مالک لپاره حلال او مباح وي؛ ځکه چي دلته د ملکيت تبديلي موجوده ده. لکه څرنګه چي يو شوک د سفر په حالت کي د زکاة مال واخلي يا يو کس د فقر په حالت کي د زکاة مال واخلي، بيا مسافر خپل کور ته ورسيږي او فقير کس مالداره سي، نو د دغه دواړو لپاره په مخکني حالت کي د زکاة اخيستل سوی مال حلال او روا دی؛ ځکه چي دا حالت او ملکيت له مخکني حالت او ملکيت څخه بدل او جلا دی او د همدې ملکيت په تبديلي سره حلت او روايښت ثابت دی.

## د جنايتکاره غلام کتابت

قَالَ: وَإِذَا جَنَى الْعَبْدُ فَكَاتَبَهُ مَوْلَاهُ وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْجِنَايَةِ فرمايي: او کله چي غلام يو جنايت [جرم] وکړي بيا مالک هغه مکاتب جوړ کړي حال دا چي مالک [د غلام] په جنايت خبر نه وي ثُمَّ عَجَزَ بيا دا مکاتب غلام عاجزه سي فَإِنَّهُ يُدْفَعُ أَوْ يُفْدٰى نو دا غلام به [د جنايت ولي] ته ورکول کيږي يا په فديه کي به ورکول کيږي لِأَنَّ هٰذَا مُوجَبُ جِنَايَةِ الْعَبْدِ فِي الْأَصْلِ ځکه چي په اصل کي د غلام د جنايت حکم [او تقاضا] همدا ده وَلَمْ يَكُنْ عَالِمًا بِالْجِنَايَةِ عِنْدَ الْكِتَابَةِ حَتّٰى يَصِيرَ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ او [دلته] مالک د کتابت په وخت کي [د غلام] په جنايت خبر نه دی چي هغه فديه اختيارونکی وګرځي [يعني په جنايت سره د مالک د نه خبرېدلو فايده دا ده چي مالک ته به د فديه ورکولو اختيار نه وي] إِلَّا أَنَّ الْكِتَابَةَ مَانِعَةٌ مِنَ الدَّفْعِ خو کتابت [د غلام] له ورکولو څخه مانع دی فَإِذَا زَالَ لېکن کله چي [د عاجزه کېدلو په وجه] دا مانع ختم سو عَادَ الْحُكْمُ الْأَصْلِيُّ نو اصلي حکم واپس راوګرځېدی وَكَذٰلِكَ إِذَا جَنَى الْمُكَاتَبُ

وَلَمْ يُقْضَ بِهِ حَتّٰى عَجَزَ او همدا حکم په هغه صورت کې هم دی کله چې مکاتب جنايت وکړي او تر اوسه [پر هغه] د جنايت د تاوان فيصله سوې نه وي چې هغه عاجزه سي لِمَا بَيَّنَّا مِنْ زَوَالِ الْمَانِعِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی چې مانع ختم سو وَإِنْ قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِ فِي كِتَابَتِهِ ثُمَّ عَجَزَ او که چيري پر دغه مکاتب د کتابت په حالت کې د جنايت د تاوان فيصله وسي بيا هغه عاجزه سي فَهُوَ دَيْنٌ يُبَاعُ فِيْهِ نو دا [ما قُضي عليه] د هغه پر ذمه قرض دی [او] په دغه قرض کې به هغه خرڅول کيږي لِانْتِقَالِ الْحَقِّ مِنَ الرَّقَبَةِ إِلَى قِيمَتِهِ بِالْقَضَاءِ ځکه چې د قضاء [يعني د قاضي د فيصلې] په وجه د مالک حق د غلام له ذات څخه د هغه د قيمت وطرف ته منتقل سو وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَدْ رَجَعَ أَبُوْيُوْسُفَ إِلَيْهِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله همدې طرف ته رجوع کړې ده وَكَانَ يَقُولُ أَوَّلًا: يُبَاعُ فِيهِ وَإِنْ عَجَزَ قَبْلَ الْقَضَاءِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله به اول فرمايل: چې دغه مکاتب غلام به په دې [ما قُضي عليه] کې خرڅول کيږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْمَانِعَ مِنَ الدَّفْعِ وَهُوَ الْكِتَابَةُ قَائِمٌ وَقْتَ الْجِنَايَةِ ځکه [د غلام] له ورکولو څخه چې کوم شی مانع دی يعني کتابت هغه د جنايت په وخت کې موجود دی فَكَمَا وَقَعَتْ اِنْعَقَدَتْ مُوجِبَةً لِلْقِيمَةِ نو کله چې هم دا جنايت واقع سو، له همغه وخت څخه هغه د قيمت واجبونکی واقع سو [يعني دا جنايت د خپل موجوديدلو له وخت څخه سمدستي د قيمت واجبونکی واقع سو] كَمَا فِي جِنَايَةِ الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ لکه څرنګه چې د مُدبّر او اُم ولد په جنايت کې کيږي وَلَنَا: أَنَّ الْمَانِعَ قَابِلٌ لِلزَّوَالِ زموږ دليل دا دی: چې مانع د زايليدلو قابل دی [او د ختميدلو امکان يې سته] لِلتَّرَدُّدِ د متردّد والي په وجه وَلَمْ يَثْبُتِ الاِنْتِقَالُ فِي الْحَالِ او في الحاله [له رقبې څخه د قيمت وطرف ته] منتقل کيدل ثابت نه دي فَيَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَضَاءِ أَوِ الرِّضَا نو ځکه دا حکم به يا پر قضاء موقوف وي يا پر رضا وَصَارَ كَالْعَبْدِ الْمَبِيعِ إِذَا أَبَقَ قَبْلَ الْقبض او دا داسي سوه لکه مبيع غلام چې له قبضې څخه مخکي وتښتيږي يَتَوَقَّفُ الْفَسْخُ عَلَى الْقَضَاءِ نو [په دې صورت کې] د بيع د فسخ حکم پر قضاء موقوف کيږي لِتَرَدُّدِهِ وَاحْتِمَالِ عَوْدِهِ ځکه چې د هغه حال متردّد [مشکوک] وي او د هغه [تښتيدلي غلام] د واپس راتللو

احتمال وي كَذَا هٰذَا همداسې دا مسئله هم ده بِخِلَافِ التَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ په خلاف د مُدبّر جوړولو او اُم ولد جوړولو لِأَنَّهُمَا لَا يَقْبَلَانِ الزَّوَالَ بِحَالٍ ځکه چې دا دوه په هيڅ حال کې هم زوال نه قبلوي.

**اللغات:** ﴿جنی﴾ جرم کول، داسې کار کول چې پر هغه تاوان لازميږي (د ضمان سبب جوړيږي)، ﴿يدفع﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: ورکول، اداء کول، ﴿يفدی﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: فديه کول، فديه ورکول، ﴿عجز﴾ د ضرب مصدر دی: (د بدل کتابت له اداء کولو څخه) عاجزه کېدل، ﴿مختار﴾ د افتعال اسم فاعل دی: اختيار من، د اختيار خاوند، ﴿زال﴾ د نصر ماضي ده: زايلېدل (ليري کېدل)، ختمېدل. ﴿أبق﴾ د ماضي صيغه ده، له ضرب، سمع او نصر ټولو بابونو څخه راځي: د غلام تښتېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که د يو مالک غلام په خطاء سره يو جنايت (جرم) وکړي او مالک د هغه په جنايت خبر نه سي او په همدې دوران کي مالک هغه مکاتب جوړ کړي، بيا هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزه سي، نو مالک ته اختيار دی چي که وغواړي نو دا غلام دي د جنايت ولي ته وسپاري او که وغواړي نو هغه ته دي يې په فديه کي ورکړي؛ ځکه چي له همدې دوو شيانو څخه يو شی د غلام د جنايت سزا ده، او څرنگه چي مالک د کتابت په وخت کي د دغه مکاتب غلام په جنايت واقف او خبر نه دی، نو ځکه هغه ته صرف د فديه اختيارولو حق او اختيار نسته، بلکي هغه به له "دفع" يا "فداء" دواړو څخه يو اختياروي، همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي غلام جنايت وکړي او تر اوسه هغه ته د جنايت د سزا ورکولو فيصله سوې نه وي چي هغه عاجزه سي، نو د دغه عجز په وجه د کتابت معامله ختميږي او اوس چي د هغه کوم اصل سزا ده يعني دفع يا فديه، له هغوی څخه به يوه سزا ورکول کيږي.

ها! که چيري د کتابت په حالت کي پر دغه مکاتب د دفع يا د فديې فيصله وسي، بيا له بدل کتابت څخه عاجزه سي، نو دده قيمت پر ده قرض گرځي او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دغه قيمت د اده کولو لپاره به هغه خرڅول کيږي؛ ځکه چي په قضاء (يعني د قاضي په فيصلې) سره دا ښکاره سوه چي د مجني عليه (يعني پر کوم کس چي دغه مکاتب غلام جنايت کړی دی د هغه) دوار ثانو حق د ده له ذات (رتبې) څخه د قيمت وطرف ته منتقل سو، نو ځکه د دغه قيمت د تر لاسه کولو لپاره به هغه خرڅول کيږي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري او مرجوع اليه قول دی، کنې د هغه اول قول دا وو چي که پر مکاتب له فيصله کېدلو څخه مخکي هغه عاجزه سي، نو هم به هغه خرڅول کيږي؛ ځکه چي

كتابت له دفع عبد (غلام وركولو) څخه مانع دي او دا مانع د جنايت په وخت كې موجود دی، لهذا جنايت د خپل وجود له وخت څخه د قيمت واجبونكي واقع سوی دی، نو ځكه د دغه قيمت په اداء كولو كي به دا غلام خرڅول كيږي، لكه څرنګه چې د مُدبّر او اُم ولد جنايت هم د قيمت واجبونكي واقع كيږي، همداسي به دلته د مكاتب دا جنايت هم د قيمت واجبونكي وي. همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی.

زموږ دليل دا دی چې د مكاتب د جنايت اصلي مُوجب دفع يا فداء ده، او د عقد كتابت په وجه چې كوم مانع موجود دی، هغه دومره قوي او مستحكم نه دی، بلكي د هغه فسخ او زوال ممكن دی او د هغه استحكام مترَدّد دی، همدارنګه في الحاله د قيمت وطرف ته انتقال هم ثابت نه دی، نو ځكه "دفع" پرېښوول او "قيمت" وركول به د قاضي پر فيصله يا د مَن له الحق (وليّ الجناية) پر رضا موقوف وي، نو تر څو چې له قضاء يا رضا څخه يو شی موجود نه سي، تر هغه وخته به همدا "دفع" د دې مكاتب غلام سزا وي. پاته سو امام زفر رَحِمَهُ الله او داسي نور چې د هغه جنايت د مُدبّر او اُم ولد پر جنايت قياسوي، دا صحيح نه دي؛ ځكه چې تدبير او استيلاد په هيڅ حالت كي هم زوال او فسخ نه قبلوي، نو په هغوی كي د جنايت له وخت څخه (سمدستي) قيمت واجبيږي، حال دا چې په دغه مسئله كي د عقد كتابت د فسخ كېدلو احتمال سته، نو ځكه په هغه كي به د قيمت وجوب پر قضاء يا رضا باندي موقوف وي. (احسن الهدايه)

## د مكاتب غلام د مالك د مرګ حكم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ مَوْلَى الْمُكَاتِبِ فرمايي: او كله چې د مكاتب مالك مړ سي لَمْ تَنْفَسِخِ الْكِتَابَةُ نو كتابت نه فسخ كيږي كَيْلَا يُؤَدِّى إِلَى إِبْطَالِ حَقِّ الْمُكَاتَبِ د دې لپاره چې دا د مكاتب د حق باطلولو سبب نه وګرځي إِذِ الْكِتَابَةُ سَبَبُ الْحُرِّيَّةِ ځكه چې كتابت د آزادی [آزادېدلو] سبب دی وَسَبَبُ حَقِّ الْمَرْءِ حَقُّهُ او د سړي د حق سبب د هغه حق دی وَقِيْلَ لَهُ: أَدِّ الْمَالَ إِلَى وَرَثَةِ الْمَوْلَى عَلَى نُجُومِهِ او دغه مكاتب ته به ويل كيږي چې: ته د قسطونو په حساب سره [يعني په كښت سره] د مالك وارثانو ته د بدل كتابت مال وركوه! لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ الْحُرِّيَّةِ عَلَى هٰذَا الْوَجْهِ ځكه چې مكاتب په همدغه طريقه سره [يعني د كښت په توګه په اداء كولو سره] د حريت مستحق سوی دی وَالسَّبَبُ انْعَقَدَ كَذٰلِكَ او د حريت سبب هم دغه ډول منعقد سوی دی فَيَبْقٰى بِهٰذِهِ الصِّفَةِ وَلَا يَتَغَيَّرُ نو ځكه پر همدغه صفت به عقد

کتابت باقي پاتیږي او هغه به نه متغیّر کیږي إِلَّا أَنَّ الْوَرَثَةَ يَخْلُفُونَهُ فِي الِاسْتِيفَاءِ خو د بدل کتابت په اخیستلو کي وارثان د مالک قائم مقام کیږي فَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُ الْوَرَثَةِ بیا که چیري له وارثانو څخه یو وارث دغه مکاتب آزاد کړي لَمْ يَنْفُذْ عِتْقُهُ نو د هغه آزادي نه نافذیږي لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ ځکه چي آزادونکی وارث د هغه مالک نه دی [ملکیت یې نه لري] وَهٰذَا لِأَنَّ الْمُكَاتَبَ لَا يُمْلَكُ بِسَائِرِ أَسْبَابِ الْمِلْكِ او دا حکم ځکه دی چي مکاتب د ملکیت په ټولو اسبابو سره نه مملکوک کیږي [تر ملکیت لاندي نه راځي] فَكَذَا بِسَبَبِ الْوِرَاثَةِ نو ځکه د وارثت په سبب سره به هم هغه نه مملوک کیږي وَإِنْ أَعْتَقُوهُ جَمِيعًا او که چیري ټوله وارثان هغه آزاد کړي عَتَقَ وَسَقَطَ عَنْهُ بَدَلُ الْكِتَابَةِ نو بیا هغه آزادیږي او له هغه څخه بدل کتابت ساقطیږي لِأَنَّهُ يَصِيرُ إِبْرَاءً عَنْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ ځکه چي دا [د ټولو آزادول] له بدله کتابت څخه بري کول گرځي فَإِنَّهُ حَقُّهُمْ ځکه چي بدل کتابت د همدوی حق دی وَقَدْ جَرَى فِيهِ الْإِرْثُ او په دې کي وراثت جاري کیږي فَإِذَا بَرِئَ الْمُكَاتَبُ عَنْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ لهذا کله چي مکاتب له بدل کتابت څخه بري سو يَعْتِقُ نو هغه به آزادیږي كَمَا إِذَا أَبْرَأَهُ الْمَوْلَىٰ لکه کله چي مالک هغه [له بدل کتابت څخه] بري کړي [نو هغه آزادیږي] إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَعْتَقَهُ أَحَدُ الْوَرَثَةِ لېکن کله چي یو وارث هغه آزاد کړي لَا يَصِيرُ إِبْرَاءً عَنْ نَصِيبِهِ نو دا د هغه وارث له حصې څخه بري کول نه گرځي لِأَنَّا نَجْعَلُهُ إِبْرَاءً اقْتِضَاءً تَصْحِيحًا لِعِتْقِهِ ځکه چي موږ اعتاق [آزادول] ابراء گرځوو د اقتضاء په توګه د مکاتب د عتق صحیح گرځولو لپاره [یعني موږ د مکاتب د عتق (آزادۍ) د صحیح گرځولو په غرض د اقتضاء په توګه اعتاق ابراء گرځوو] وَالْإِعْتَاقُ لَا يَثْبُتُ بِإِبْرَاءِ الْبَعْضِ أَوْ أَدَائِهِ فِي الْمُكَاتَبِ لَا فِي بَعْضِهِ وَلَا فِي كُلِّهِ حال دا چي د بعضي بدل په بري کولو یا آزادولو سره په مکاتب کي اعتاق نه ثابتیږي نه د هغه په بعضي حصې او نه د هغه په ټوله حصه کي وَلَا وَجْهَ إِلَى إِبْرَاءِ الْكُلِّ او د کل ابراء لره هیڅ صورت نسته [یعني د یوه وارث په اعتاق یا ابراء سره د ټولي حصې ابراء او اعتاق هم ممکن نه دی] لِحَقِّ بَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ د نورو وارثانو د حق په وجه.

**اللغات:** ﴿تنفسخ﴾ د انفعال مضارع ده: ماتېدل، ختمېدل. ﴿يودّى﴾ د تفعیل مضارع ده، د دې باب په صِله کي چي "إلى" ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: رسول، سبب جوړېدل (سبب گرځېدل). ﴿إبطال﴾ د

افعال د باب مصدر دی: باطلول، ضایع کول، ختمول. ﴿يخلفون﴾ د نصر له بابه د جمع مذكر غائب مضارع صیغه ده: خلیفه کېدل، نائب او قائم مقام کېدل. ﴿اسيتفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره اخیستل، ترلاسه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مکاتب غلام مړ سي، نو په دې سره د عقد کتابت پر صحت او بقاء هیڅ اثر نه لوېږي بلکي د هغه تر مرګ وروسته هم دا عقد باقي پاتېږي؛ ځکه چي په عقد کتابت سره مکاتب د حریت (آزادی) مستحق کېږي، نو اوس که موږ د مالک په مرګ سره دغه عقد فسخ او باطل کړو، نو د مکاتب د ثابت سوي حق باطلول به لازم سي، حال دا چي د یو چا حق باطلول (ضایع کول) صحیح نه دي، نو ځکه د مالک تر مرګ وروسته به وارثان (مېراث خواره) د مالک قائم مقام کېږي، او څرنګه چي د مالک سره د قسط (کښت) په توګه د بدل کتابت اداء کولو معامله سوې وي، د همدې حساب مطابق به د وارثانو سره هم دا معامله کېږي او وارثان به له دغه مکاتب څخه بدل کتابت په قسط (په کښت) سره اخلي. بیا که چیري یو وارث (میراث خور) خپله حصه آزاده کړي (یعني په خپله حصه کي مکاتب آزاد کړي)، نو د هغه دا عتق نافذ او معتبر نه ګرځي؛ ځکه څرنګه چي مکاتب د بیع په ذریعه د یو چا نه مملوک کېږي، همداسي د وراثت په ذریعه هم هغه نه سي مملوک کېدای. خو که چیري ټوله وارثان هغه آزاد کړي، نو استحساناً دا عتق (آزادي) نافذېږي او په دې سره بدل کتابت ساقطېږي؛ ځکه چي بدل کتابت د همدوی حق دی او په اعتاق (آزادولو) سره دوی خپل حق ساقط کړی دی، نو ځکه له ابطال (باطلولو) څخه د مکاتب د حق ساتلو لپاره به ضرورتاً د ټولو وارثانو اعتاق نافذ او صحیح ګرځول کېږي، لېکن د یوه وارث یا د بعضي وارثانو په اعتاق سره د مکاتب په بعضي حصه کي اعتاق نافذ او صحیح نه سي ګرځول کېدای او نه په ټوله حصه کي اعتاق صحیح ګرځول کېدای سي؛ ځکه چي په دې سره به د نورو وارثانو حق تلفي وسي او د یوه وارث د حق ساتلو په خاطر به د نورو حق تر پښو لاندي او ضایع سي. (احسن الهدایه ج: ۱۲، ص: ۱۹۲، ۱۹۳)



# كِتَابُ الْوَلَاءِ

(دا) کتاب د ولاء (د احکامو په بیان کي) دی

**تشريح**: له ''کتابُ المکاتب'' څخه وروسته د ''کتابُ الولاء'' د بیانولو وجه دا ده چي ولاء د عقد کتابت له اثارو او متعلقاتو څخه ده، ځکه کله چي مکاتب بدل کتابت اداء کړي او آزاد سي، نو د هغه ولاء همدغه (مکاتب جوړونکي) مالک ته حاصلیږي.

**د ولاء لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د ''وَلَاء'' (بفتح الواو) د لغوي معنیٰ په هکله اختلاف دی او په لغت کي د هغه څو معناوي ذکر سوي دي: نژدېکت، قُرب او قرابت، محبت او دوستي، تناصر یعني یو د بل مرسته او مدد کول، (یا په بله وینا دا چي دوو کسانو تر مینځ د نسب او قرابت په څېر اړیکي او نژدېکت، حکمي قرابت).

د ولاء اصطلاحي معنیٰ ده: هغه میراث کوم چي له آزاد کړی سوي غلام څخه آزادونکي مالک ته حاصلیږي یا په عقد موالات سره (مولی الموالاة ته) حاصلیږي.

په لنډه توګه داسي هم ویل کېدای سي چي ولاء د آزاد کړی سوي غلام میراث ته ویل کیږي چي هغه به د ده آزادونکي مالک ته ورکول کیږي (کله چي دا غلام مړ سي)، او همدارنګه د هغه کس میراث ته ویل کیږي چي یو سړي د هغه سره عقد موالات کړی وي، چي هغه به همدا عقد کونکي سړي ته ورکول کیږي. (مرتب)

**فايده**: عقد موالاة (د تناصر او دوستي تړون) دې ته ویل کیږي چي یو مجهولُ النسب سړي بل معروفُ النسب سړي ته ووایي چي ''تر دې وروسته ته زما ولي او زما د نفس مشر یې! (او زما وستا په مینځ کي دوستي او خپلوي ده) که چیري زه مړ سم نو زما میراث ستا دی او که زه جنایت او جرم وکړم (خطاءً قتل وکړم) نو د هغه دیت او تاوان پر تا دی'' او دا بل معروفُ النسب سړی دغه خبره قبول کړي، نو دې ته عقد موالاة ''د موالات تړون'' ویل کیږي، په دې عقد کي د موالات قبلونکي (معروفُ النسب) سړي ته مَوْلَی الْمُوَالَاة وایي.

او کوم مالک چي خپل غلام آزاد کړی وي یعني مُعتِق چي د غلام ولاء (میراث) هغه ته حاصلیږي، هغه ته مَوْلَی الْعَتَاقَة وایي.

## د ولاء د دوو قسمونو بيان

اَلْوَلَاءُ نَوْعَانِ فرمايي: ولاء پر دوه قسمه ده وَلَاءُ عَتَاقَةٍ وَيُسَمّٰى وَلَاءَ نِعْمَةٍ ① يو ولاء عتاقه ده چي هغه ته ولاء نعمت هم ويل کيږي وَسَبَبُهُ الْعِتْقُ عَلٰى مُلْكِهِ فِي الصَّحِيحِ او د ولاء عتاقه سبب د صحيح قول مطابق پر خپل ملکيت [د غلام] آزادېدل دي [يعني د ولاء عتاقه د حاصلېدلو سبب دا دی چي د غلام آزادي د مالک په خپل ملکيت کي واقع سي] حَتّٰى لَوْ عَتَقَ قَرِيبُهُ عَلَيْهِ بِالْوِرَاثَةِ همدا وجه ده که پر يو چا د وراثت په سبب خپل قريب آزاد سي كَانَ الْوَلَاءُ لَهُ نو د هغه [آزاد سوي] لاء د ده لپاره ده وَوَلَاءُ مُوَالَاةٍ ② او دويم ولاء موالات ده وَسَبَبُهُ الْعَقْدُ او د هغه سبب عقد موالاة [د موالاة تړون] دی وَلِهٰذَا يُقَالُ: وَلَاءُ الْعَتَاقَةِ وَوَلَاءُ الْمُوَالَاةِ په همدې وجه ويل کيږي: د عتاقه ولاء د موالاة ولاء وَالْحُكْمُ يُضَافُ إِلٰى سَبَبِهِ او حکم د خپل سبب وطرف ته منسوبول کيږي وَالْمَعْنٰى فِيهِمَا التَّنَاصُرُ او په دواړو قسمونو کي مقصود خپل مينځوي مرسته [يو د بل مرسته کول] دي وَكَانَتِ الْعَرَبُ تَتَنَاصَرُ بِأَشْيَاءَ او عربو به پر ډېرو شيانو [او اسبابو] يو د بل مرسته کول وَقَرَّرَ النَّبِيُّ ﷺ [1] تَنَاصُرَهُمْ بِالْوَلَاءِ بِنَوْعَيْهِ او نبي کريم ﷺ د ولاء پر دغه دواړو قسمونو د دوی تناصر برقرار وساتی [يعني نبي ﷺ دوی پر ولاء او د هغه پر دواړو قسمونو باقي پرېښوول] فَقَالَ: «إِنَّ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ وَحَلِيفُهُمْ مِنْهُمْ» او داسي يې وفرمايل: ”چي د قوم آزاد کړی سوی غلام له هغوی څخه دی او د قوم حليف هم له هغوی څخه دی“ وَالْمُرَادُ بِالْحَلِيفِ مَوْلَى الْمُوَالَاةِ او په حليف سره مراد مولی الموالاة دی لِأَنَّهُمْ كَانُوا يُؤَكِّدُونَ الْمُوَالَاةَ بِالْحِلْفِ ځکه چي عربو به عقد موالاة په حلف [قسم] سره مضبوطوی.

**اللغات:** ﴿عَتَاقَة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: آزادېدل، آزادي، آزاد والی، له دغه باب څخه پر دې أوزانو مصدرونه راځي: عَتْق، عِتْق، عَتَاق، عَتَاقَة او د ټولو معنیٰ یوه ده. ﴿موالاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو د بل سره دوستي کول، مرسته کول. مراد ځني عقد موالاة کول دي چي تعريف يې څه مخکي موږ ذکر کړی، ﴿تناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل مرسته او مدد کول، تعاون کول. ﴿قرّر﴾ د تفعيل ماضي ده: برقرار ساتل، پر خپل ځای پرېښوول. ﴿حليف﴾ ژمنه او تړون کونکی (د تناصر تړون کونکی)، د تناصر پر تړون قسم اخيستونکی.

---

[1] تخريج: رواه النسائي، رقم الحديث: ۲۶۱۲. (احسن الهدايه)

**تشريح**: څه مخکې ذکر سوه چې د شريعت په اصطلاح کې ولاء هغه ميراث (يا د هغه ميراث استحقاق) ته ويل کيږي کوم چې له آزاد کړی سوي غلام څخه يا د عقد موالاة په وجه حاصل سي. ولاء پر دوه قسمه ده: ① ولاء عتاقة، ② ولاء موالاة.

"ولاءِ عتاقة" ته "ولاء نعمت" هم ويل کيږي، او د ولاء نعمت نوم له دغه آيت "وإِذْ تَقُوْلُ لِلَّذِيْ أَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ" [سورة الأحزاب: ۳۷] څخه اخيستل سوی دی کوم چې د نبي کريم ﷺ د آزاد کړی سو غلام "زيد بن حارثة ﷺ" په هکله نازل سوی دی، په دې آيت کي هغه ته د آزادۍ د نعمت حاصلېدلو خوشخبري ورکول سوې ده (أي: أَنْعَمْتَ عَلَيْهِ بِالإِعْتَاقِ)، نو د همدې په اقتداء کي ولاء عتاقة ته ولاء نعمت هم ويل کيږي.

وسببه العتق إلخ: (مالک ته) د ولاء عتاقة د حاصلېدلو سبب دا دی چې د مالک په ملکيت کي د غلام آزاد واقع سي، برابره ده دغه د آزادۍ واقع کېدل د اعتاق (آزادولو) په وجه وي يا په وراثت او داسي بله وجه سره وي، همدا وجه ده که يو غلام خپل نژدې قريب مثلاً پلار يا ځوی رانيسي، نو بغير له آزادولو هغه (په خپله) آزاديږي او رانيونکي غلام ته د هغه ولاء حاصليږي، يا مثلاً که يو غلام د خپل پلار يا د ځوی وارث سي (يعني په ميراث کي ورته حاصل سي)، نو هغوی آزاديږي او د هغو ولاء ده ته حاصليږي.

(۲)... د ولاء دويم قسم "ولاءِ موالاة" دی، د ولاء موالاة د حاصلېدلو او واقع کېدلو سبب عقد موالاة کول دي (چې د هغه تعريف څه مخکي تر كتاب الولاء لاندي مو ذکر کړی). او د ولاء د دغو دواړو قسمونو مقصود او مطلوب دا دی چې د دوو کسانو په مينځ کي د خپل مينځوي مدد او مرستي جذبه پيدا سي. د نبي کريم ﷺ له پېغمبر کېدو څخه مخکي به عرب د ډېرو شيانو پر بنياد يو د بل سره مدد او تعاون ته ملا تړلي او سېدل او د نسب، مؤاخاة، قرابت او حلف په څېر اسبابو او نومونو سره په دوی کي تناصر جاري وو، نو نبي کريم ﷺ د تناصر نور قسمونه ختم کړل او دوی يې پر ولاء او د ولاء پر مذکوره قسمونو باقي پرېښوول. (احسن الهداية)

## د ولاء عتاقه احکام

قَالَ: وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى مَمْلُوْكَهُ فرمايي: او کله چې مالک خپل مملوک آزاد کړي فَوَلَاؤُهُ لَهُ نو د هغه ولاء د ده لپاره ده [يعني د مُعتَق (آزاد کړی سوي غلام) ولاء مُعتِق (آزادونکي کس) ته حاصليږي] لِقَوْلِ الْعَلِيْهِ: «الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "ولاء د همغه کس لپاره ده کوم چې آزاد کړی وي" وَلِأَنَّ التَّنَاصُرَ بِهِ او ځکه چې په همدې اعتاق [آزادولو] سره تناصر [يو د بل مرسته کول] حاصليږي

فَيَعْقِلُهُ نو ځکه مالک به د هغه ديت هم اداء کوي [يعني که چيرې د مالک آزاد کړى سوى غلام خطاءً قتل وکړي يا يو بل جنايت وکړي نو مالک به د هغه ديت او تاوان هم په خپله غاړه اخلي] وَقَدْ أَحْيَاهُ مَعْنًى بِإِزَالَةِ الرِّقِّ عَنْهُ او مالک له هغه شخصه د غلامۍ ليرې کولو په وجه معناً هغه ژوندى کړى دى فَيَرِثُهُ نو ځکه هغه به د ده وارث کيږي وَيَصِيرُ الْوَلَاءُ كَالْوِلَادِ او ولاء به د ولاد شپر ګرځي [يعني ولاء د ولادت والا قرابت په شير سوه چي لکه د بچي د ژوند سبب چي پلار دى په همدې وجه پلار د هغه وارث کيږي، نو همداسي به مُعتِق د مُعتَق وارث کيږي] وَلِأَنَّ الْغُنْمَ بِالْغُرْمِ او ځکه چي نفع د تاوان په مقابله کي وي وَكَذَا الْمَرْأَةُ تُعْتِقُ او همدارنګه ښځه ده کوم چي [يو غلام او مينځه] آزاد کړي [يعني د آزادونکي ښځي هم دغه حکم دى] لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړى دى [يعني الولاء لمن أعتق] «وَمَاتَ مُعْتَقٌ لِابْنَةِ حَمْزَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَعَنْ بِنْتٍ او [کله چي] د حضرت حمزه رضي الله عنه د لور آزاد کړى سوى غلام مړ سو له هغې شخصه او له يوې لور شخصه [يعني کله چي هغه مړ سو او تر خپل شا يې دوه کسان پرېښوول: يو د حمزة رضي الله عنه لور کوم چي د هغه آزادونکې (مولاة) وه او بل يې خپله لور پرېښووله] فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَالَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغه [د ميراث] مال د دوى دواړو په مينځ کي تقسيم کړى [نو معلومه سوه چي د آزاد کړى سوي غلام ميراث (ولاء) د هغه آزادونکي مالک ته هم حاصليږي] وَيَسْتَوِي فِيهِ الْإِعْتَاقُ بِمَالٍ وَبِغَيْرِهِ او د ولاء په ثابتېدلو کي د مال په عوض کي آزادول او بغير له ماله [مفت] آزادول دواړه برابر دي لِإِطْلَاقِ مَا ذَكَرْنَاهُ د هغه حديث د مطلق والي په وجه کوم چي موږ ذکر کړى [يعني ځکه چي دا حديث "الولاء لمن أعتق" مطلق دى].

**اللغات:** ﴿مملوك﴾ د يو چا تر ملکيت لاندي، غلام. ﴿يعقل﴾ د ضرب مضارع ده، د دې باب يو معنىٰ ده: ديت اداء کول. ﴿يرث﴾ د ضرب مضارع ده: وارث کېدل (ميراث خور کېدل). ﴿الولاد﴾ د ضرب د باب مصدر دى: ولادت. ﴿الغنم بالغرم﴾ او الغُرْمُ بِالْغُنْمِ دا يو محاوره ده، د "غُرْم" معنىٰ ده: تاوان او بوج. او د "غُنْم" معنىٰ ده: نفع (منافع)، مطلب يې دا دى چي انسان ته چي د کوم کس نفع او فايده حاصليږي، نو د هغه کس تاوان به هم په خپله غاړه اخلي. او تاسو ته معلومېده چي د آزاد کړى سوي غلام ميراث (ولاء) مالک ته حاصليږي، نو د هغه ديت يا بل تاوان به هم مالک اداء کوي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي آزادونکى مالک برابره ده نر وي او که ښځه وي، همدارنګه اعتاق علىٰ مال (د مال په عوض کي آزادول) وي او که بغير المال وي، هغه ته د خپل آزاد کړى سوي غلام ولاء حاصليږي؛ ځکه چي په حديث مبارک کي په واضحه توګه دا اعلان سوى دى چي "الْوَلَاءُ لِمَنْ

أَعْتَقَ"، دويمه خبره دا ده چې د ولاء عتاقة دار ومدار صرف پر اعتاق (آزادولو) دی، او د اعتاق په ذريعه مالک پر خپل غلام احسان کوي او هغه ته په آزادولو سره نوی ژوند ور بخښي، نو ځکه د مُعتق نفع به هم مُعتَق ته حاصليږي، لکه څرنګه چې همدا مشهوره قاعده او فقهي محاوره ده چې "الغُنْمُ بِالْغُرْمِ". او د حضرت حمزه رضي الله عنه دلور د آزاد کړی سوي غلام په هکله د نبي کريم ﷺ فيصله او عمل پر همدې ګواه دی.

## په ولاء کې د شرط بيان

قَالَ: فَإِنْ شَرَطَ أَنَّهُ سَائِبَةٌ فرمايي: او که دا شرط ولګوي چې دا غلام [له هر حق څخه] خوشي دی فَالشَّرْطُ بَاطِلٌ وَالْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ نو شرط باطل دی او ولاء د آزادونکي کس لپاره ده لِأَنَّ الشَّرْطَ مُخَالِفٌ لِلنَّصِّ ځکه چې دا شرط د نص [حديث] مخالف دی فَلَا يَصِحُّ نو ځکه به صحيح نه وي قَالَ: وَإِذَا أَدَّى الْمُكَاتَبُ فرمايي: کله چې مکاتب [بدل کتابت] اداء کړي عَتَقَ وَوَلَاؤُهُ لِلْمَوْلَى نو هغه آزاديږي او د هغه ولاء د هغه د خپل مالک لپاره ده وَإِنْ عَتَقَ بَعْدَ مَوْتِ الْمَوْلَى که څه هم هغه د مالک تر مرګ وروسته آزاد سوی وي لِأَنَّهُ عَتَقَ عَلَيْهِ بِمَا بَاشَرَ مِنَ السَّبَبِ وَهُوَ الْكِتَابَةُ ځکه هغه په همغه سبب پر مالک آزاد سوی دی کوم چې مالک په خپله کړی دی او هغه کتابت دی [يعني دغه مکاتب غلام د مخکني عقدِ کتابت په وجه آزاد سوی دی کوم چې مالک د ده سره کړی دی] وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي الْمُكَاتَبِ او په کتاب المکاتب کې موږ د دې بيان کړی دی وَكَذَا الْعَبْدُ الْمُوصَى بِعِتْقِهِ او همدا حکم د هغه غلام دی چې د هغه د آزادولو وصيت کړی سوی وي أَوْ بِشِرَائِهِ وَعِتْقِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ يا [هغه غلام] چې تر مرګ وروسته د هغه د رانيولو او آزادولو وصيت کړی سوی لِأَنَّ فِعْلَ الْوَصِيِّ بَعْدَ مَوْتِهِ كَفِعْلِهِ ځکه چې د مالک [وصيت کونکي] تر مرګ وروسته د وصي فعل د هغه د فعل په درجه کې دی وَالتَّرِكَةُ عَلَى حُكْمِ مِلْكِهِ او ميراث د هغه [وصيت کونکي] د ملکيت پر حکم پاتيږي [تر دې چې له ميراث څخه به د هغه قرضونه اداء کول کيږي او د هغه د کفن او دفن انتظام هم د هغه له ميراث څخه کيږي] وَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى او که يو مالک مړ سي عَتَقَ مُدَبَّرُوهُ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ نو د هغه ټوله مُدبّر غلامان او اُم ولد مينځې آزاديږي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْعَتَاقِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ په کتاب العتاق کې بيان کړی دی [په باب التدبير او

باب الاستيلاد كي] وَوَلَاؤُهُمْ لَهُ او د دوی ټولو ولاء د مالک لپاره ده لِأَنَّهُ أَعْتَقَهُمْ بِالتَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ ځکه چي همدا مالک دوی په مُدبّر گرځولو او اُم ولد گرځولو سره آزاد کړي دي وَمَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او څوک چي د خپل ذی محرم قریب مالک سي [په رانیولو سره یا په داسي بل سبب سره] عَتَقَ عَلَيْهِ نو هغه پر ده آزادیږي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْعَتَاقِ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ په کتاب العتاق کي بیان کړی دی وَوَلَاؤُهُ لَهُ او د هغه ولاء د ده لپاره ده لِوُجُودِ السَّبَبِ د ولاء د سبب موجودېدلو په وجه وَهُوَ الْعِتْقُ عَلَيْهِ او هغه پر ده آزادېدل دي [یعني د ذی رحم محرم ولاء ځکه ده ته حاصلیږي چي د ولاء سبب (آزادول) د همده له طرفه موجود سوي دي، ځکه د همده د مالک کېدلو (رانیولو او داسي نورو) په وجه هغه آزاد سوی دی].

**اللغات**: ﴿سائبة﴾ او سَائِبٌ: خوشي او خلاص، کله چي سَائِبَةٌ یا سَائِبٌ د غلام سره ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: الرقيق الذي أعتقه مالكُه مُسقِطاً عنه كلّ حق يَترتّب عليه (یعني هغه غلام چي مالک یې آزاد کړي او له هغه شخصه خپل ټوله حقونه ساقط کړي، چي له هغوی شخصه یو د ولاء حق دی)، ﴿النص﴾ قرآن او حدیث ته ویل کیږي، د قرآن او حدیث تصریح، ﴿باشر﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: یو کار په خپله کول، ﴿امهات الأولاد﴾ جمع د اُمِ ولد ده: هغه مینځه چي له خپل مالک شخصه یې بچی پیدا سوی وي، ﴿ذو رحم محرم﴾ هغه قریب چي نکاح ور سره حرامه وي، نژدې قریب.

**تشريح: مسئله**: دا ده که آزادونکی مالک دا شرط ولګوي چي زما دغه آزاد کړی سوی غلام بالکل خلاص (ایله) او له هر شي شخصه آزاد دی یعني زما او د هغه په مینځ کي ولاء نسته یا آزادېدونکی غلام دا شرط ولګوي چي... زما او د مالک په مینځ کي به ولاء نه وي، نو څرنګه چي دغه شرط د صریح نص "الوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ" مخالف او د عقد د مقتضا منافي دی، نو ځکه دا شرط به باطلیږي او د نبوي نص مطابق به آزادونکي مالک ته د دې غلام ولاء حاصلیږي.

همدارنګه مکاتب غلام چي کله بدلِ کتابت اداء کړي او آزاد سي، یا یو کس تر خپل مرګ وروسته د خپل یو غلام د آزادېدلو وصیت وکړي، یا دا وصیت وکړي چي زما تر مرګ وروسته دې یو غلام رانیول سي او هغه دې زما له طرفه آزاد کړی سي، نو په دغه ټوله صورتونو کي مالک او وصیت کونکی کس د ولاء مستحق کیږي؛ ځکه چي د ولاء سبب (یعني عتق) د هغه په ملکیت کي حاصل سوی او واقع سوی دی، او په دریم صورت کي که څه هم هغه مړ دی، لېکن د هغه د وصي فعل د

هغه د خپل فعل په څېر دی، همدارنګه مکاتب او موصیٰ غلام د هغه په میراث کې شامل او داخل دي، نو ځکه په دوی کې به د هغه حکم او اړر نافذیږي. باقي دواړه مسئلې ښکاره دي.

## د بل چا د مینځې سره د غلام د نکاح کولو په صورت کې د ولاء بیان

وَإِذَا تَزَوَّجَ عَبْدُ رَجُلٍ أَمَةً لِآخَرَ او کله چې د یو سړي غلام د بل چا د مینځې سره نکاح وکړي فَأَعْتَقَ مَوْلَى الْأَمَةِ الْأَمَةَ وَهِيَ حَامِلٌ مِنَ الْعَبْدِ او د مینځې مالک هغه مینځه آزاده کړي په داسې حال کې چې هغه له همدې غلام څخه حامله وي عَتَقَتْ وَعَتَقَ حَمْلُهَا وَوَلَاءُ الْحَمْلِ لِمَوْلَى الْأُمِّ لَا يَنْتَقِلُ عَنْهُ أَبَدًا نو هغه او د هغې حمل [دواړه] آزادیږي او د حمل ولاء [فقط] د مور د آزادونکي مالک لپاره ده چې له هغه څخې هیڅکله [د پلار مولیٰ ته] نه منتقل کیږي لِأَنَّهُ عَتَقَ عَلَى مُعْتِقِ الْأُمِّ مَقْصُودًا ځکه چې دا حمل د مور پر آزادونکي قصداً [د مقصود په توګه] آزاد سوی دی إِذْ هُوَ جُزْءٌ مِنْهَا يَقْبَلُ الْإِعْتَاقَ مَقْصُودًا ځکه چې هغه د مور جزء دی کوم چې د مقصود په توګه [بالقصد] اعتاق قبلوي فَلَا يَنْتَقِلُ وَلَاؤُهُ عَنْهُ نو ځکه د هغه ولاء به د مور له آزادونکي څخه نه منتقل کیږي عَمَلًا بِمَا رَوَيْنَا په هغه حدیث په عمل کولو سره کوم چې موږ روایت کړی دی وَكَذَلِكَ إِذَا وَلَدَتْ وَلَدًا لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او همدارنګه کله چې دامینځه له شپږو میاشتو څخه په کم مودت کې بچی وزیږوي لِلتَّيَقُّنِ بِقِيَامِ الْحَمْلِ وَقْتَ الْإِعْتَاقِ ځکه چې د اعتاق [آزادولو] په وخت کې د حمل موجودېدل یقیني دي أَوْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ أَحَدُهُمَا لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ [او همدارنګه که] یا دا مینځه دوه بچیان وزیږوي چې له هغوی څخه یو تر شپږو میاشتو په کم مودت وي [یعني دیوه بچي تر زیږولو وروسته بل بچی هم تر شپږو میاشتو په کم مودت کې وزیږوي (د دواړو د پیدایښت په مینځ کې تر شپږو میاشتو کمه فاصله وي)] لِأَنَّهُمَا تَوْأَمَانِ يَتَعَلَّقَانِ مَعًا ځکه چې دا دواړه غبرګولیان دي چې د هغوی حمل [او علوق] یو ځای سوی دی [یعني په یوه ځل مور په دوی دواړو سره حامله سوې ده، ځکه چې دواړه له یوې نطفې څخه پیدا شده دي] وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا وَالَتْ رَجُلًا وَهِيَ حُبْلَى وَالزَّوْجُ وَالَى غَيْرَهُ او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چې مینځه د حامله والي په حالت کې د یو سړي سره عقد موالات وکړي او د هغې خاوند د بل چا سره عقد موالات وکړي حَيْثُ يَكُونُ وَلَاءُ الْوَلَدِ لِمَوْلَى الْأَبِ نو [په دې صورت کې] د بچي ولاء د پلار د مولیٰ لپاره ده لِأَنَّ الْجَنِينَ

غَيْرُ قَابِلٍ لِهٰذَا الْوَلَاءِ مَقْصُودًا ځکه چي جنين [په نس کي موجود بچی] بالقصد دغه ولاء نه سي قبلولای لِأَنَّ تَمَامَهُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ ځکه چي ولاء په ايجاب وقبول سره پوره کيږي وَهُوَ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لَهُ حال دا چي جنين د ايجاب وقبول محل نه دی قَالَ: فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَ عِتْقِهَا لِأَكْثَرَ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ وَلَدًا فرمايي: که چيري دا مينځه له خپل آزادېدلو څخه وروسته تر شپږو مياشتو په کم مودت کي بچی وزېږوي فَوَلَاؤُهُ لِمَوَالِي الْأُمِّ نو د هغه ولاء د مور د مواليو لپاره ده لِأَنَّهُ عَتَقَ تَبَعًا لِلْأُمِّ ځکه چي [په دې صورت کي] بچی د مور د تابع والي په وجه آزاد سوی دی [نه قصداً (مقصوداً)] لِاتِّصَالِهِ بِهَا بَعْدَ عِتْقِهَا ځکه چي دا بچی د مور سره د هغې تر آزادېدلو وروسته متصل سوی دی فَيَتْبَعُهَا فِي الْوَلَاءِ نو ځکه په ولاء کي به [هم] د هغې تابع کيږي وَلَمْ يَتَيَقَّنْ بِقِيَامِهِ وَقْتَ الْإِعْتَاقِ حَتَّى يَعْتِقَ مَقْصُودًا او د اعتاق [آزادولو] په وخت کي د دغه بچي [حمل] موجودېدل يقيني هم نه دي چي هغه مقصودا آزاد سي [يعني دا په يقيني توګه معلومه نه ده چي هغه د مور د آزادېدلو په وخت کي موجود وو نو هغه به بالقصد آزاد سوی وي، نه تبعاً، لهذا کله چي دا يقيني معلومه نه ده، نو ځکه هغه به تبعاً للأم آزاد سوی وي، فولاءه لموالي الأم].

**اللغات:** ﴿تـزوّج﴾ د تفعّل ماضي ده: نكاح كول، واده كول. ﴿حامـل﴾ حامله، حملداره ښځه، ﴿مولیٰ﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه دوې دادي: آزادونکی مالک، آزاد کړی سوی غلام، دلته اوله معنیٰ مراد ده، جمع: مَوَالِيُ. ﴿ينتقل﴾ د افتعال مضارع ده: منتقل کېدل، له يوه ځايه بل ځای ته نقل کېدل. ﴿توأمان﴾ دوه غبرګوليان. ﴿حبلی﴾ حامله (بلاربه). ﴿جنين﴾ په نس کي موجود بچی چي هغه ته حمل هم وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** چي د زيد يو غلام دادريس د مينځې سره واده وکړي او مينځه حامله سوه. بيا ادريس خپله مينځه آزاده کړه، نو د مينځې سره د هغې حمل هم آزاديږي او د مينځې او د هغې د حمل (جنين) ولاء همدې آزادونکي مالک (ادريس) ته حاصليږي؛ ځکه چي جنين د مور جزء دی او مالک هغه د ټولو اجزاؤ سره آزاده کړې ده، نو ځکه په دغه اعتاق (آزادولو) کي به د هغې حمل هم شامل او داخل وي او هغه به هم آزاديږي او د دغه حديث "الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ" پر بناء به د جنين ولاء هم د مينځې مالک ته حاصليږي. همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي دغه مينځه د آزادېدلو له وخته څخه تر شپږو مياشتو په کم مودت کي بچی وزېږوي، يعني په دې صورت کي هم د مينځې د

بچي ولاء د مېنځي مالک ته حاصلېږي؛ ځکه تر شپږو میاشتو په کم مودت کي د کوچني په پیدا کېدلو سره دا خبره ښکاره سوه چي دغه حمل د اعتاق (آزادولو) په وخت کي موجود وو او پر هغه هم اعتاق واقع سوی دی.

د دې په خلاف که دیو خاوند حامله ښځه دیو چا سره عقد موالات وکړي او د هغې خاوند د بل چا سره عقد موالات وکړي، بیا له ښځي څخه بچی پیدا سي، نو د دغه بچي ولاء پلار (د ښځي خاوند) ته حاصلېږي؛ ځکه چي دلته جنین قصدا ولاء نه ده قبول کړې؛ ځکه چي د ولاء د قبلولو لپاره ایجاب و قبول ضروري دي او جنین د ایجاب و قبول اهل نه دی. ګواکي هغه تبعاً (د تابع والي په توګه) ولاء قبول کړې ده. او ولاء د نسب په درجه کي ده. او تاسو ته معلومه ده چي د نسب په ثبوت کي بچی د پلار تابع کېږي. نو ځکه د ولاء په ثبوت کي به هم هغه د پلار تابع کېږي او همدا پلار به د هغه د ولاء حقداره کېږي.

قال فإن ولدت إلخ: د دې حاصل دا دی چي که دا دریس مېنځه (د غلام ښځه) د آزادېدلو له وخته څخه تر شپږو میاشتو په زاید مودت کي بچی وزېږي، نو په دې صورت کي د بچي ولاء د مور موالیو ته حاصلېږي؛ ځکه په دغه صورت کي د اعتاق په وخت کي د حمل د وجود (موجودېدلو) امکان نسته، نو ځکه هغه به د مور په متابعت کي آزادېږي او په ولاء کي به د مور تابع کېږي، لهذا کوم کس چي د مور مالک وي، صرف هغه به د دغه بچي د ولاء مالک او مستحق وي. (احسن الهدایه)

## په پورتني صورت کي د پلار (غلام) د آزادېدلو حکم او تفصیل

فَإِنْ أُعْتِقَ الْأَبُ بیا که چېري پلار [هم] آزاد کړی سي جَرَّ وَلَاءَ ابْنِهِ وَانْتَقَلَ عَنْ مَوَالِي الْأُمِّ إِلَى مَوَالِي الْأَبِ نو هغه د خپل ځوی ولاء راکشوي او د مور له موالیو څخه د پلار موالیو ته منتقل کېږي لِأَنَّ الْعِتْقَ هٰهُنَا فِي الْوَلَدِ يَثْبُتُ تَبَعًا لِلْأُمِّ ځکه چي دلته [په مذکوره صورت کي] د مور د تابع والي په توګه په بچي کي عتق ثابت دی بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت وَهٰذَا لِأَنَّ الْوَلَاءَ بِمَنْزِلَةِ النَّسَبِ او دا حکم ځکه دی چي ولاء د نسب په درجه کي ده قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «الْوَلَاءُ لُحْمَةٌ كَلُحْمَةِ النَّسَبِ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ» نبي ﷺ فرمایلي دي: "ولاء قرابت دی د نسب د قرابت په څېر چي هغه به نه خرڅول کېږي، نه به هبه کول کېږي او نه به وراثت پکښي جاري کېږي" اپه بله وینا: ولاء د نسبي قرابت په

---

[1] تخريج: رواه البيهقي، رقم الحديث: ٢١٤٣٣.

څېر يو قرابت دی چي هغه نه خرڅول کېدای سي، نه هبه کېدلای سي او نه ميراث کېدلای سي] ثُمَّ النَّسَبُ إِلَى الْآبَاءِ فَكَذٰلِكَ الْوَلَاءُ بيا نسب د پلرونو وطرف ته وي [يعني نسب د پلار سره ثابتيږي] نو همداسي به ولاء هم وي وَالنِّسْبَةُ إِلَى مَوَالِي الْأُمِّ كَانَتْ لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ الْأَبِ ضَرُورَةً او د مور د مواليو وطرف ته [د ولاء] نسبت کېدل د پلار د نا اهل والي د ضرورت په وجه دي [يعني د پلار د نا اهل والي په صورت کي د ضرورت پر بناء د مور مواليو ته ولاء منسوبول کيږي] فَإِذَا صَارَ أَهْلًا لېكن كله چي هغه اهل وګرځي عَادَ الْوَلَاءُ إِلَيْهِ نو ولاء د هغه وطرف ته را ګرځي كَوَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ يُنْسَبُ إِلَى قَوْمِ الْأُمِّ ضَرُورَةً لكه څرنګه چي د ملاعنه ښځي بچی د ضرورت پر بناء د مور قوم ته منسوب کيږي فَإِذَا أَكْذَبَ الْمُلَاعِنُ نَفْسَهُ لېكن كله چي ملاعن [د بچي پلار] خپل ځان درواغجن وګرځوي يُنْسَبُ إِلَيْهِ نو [بيا] دا بچی د هغه وطرف ته منسوب کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أُعْتِقَتِ الْمُعْتَدَّةُ عَنْ مَوْتٍ أَوْ طَلَاقٍ په خلاف د هغه صورت كله چي د مرګ [وفاتِ زوج] يا د طلاق عده تېرونکې ښځه آزاده کړی سي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الْمَوْتِ أَوِ الطَّلَاقِ بيا هغه د مرګ [وفاتِ زوج] يا طلاق له وخت څخه تر دوو کالو په کم مودت کي بچی راوړي حَيْثُ يَكُونُ الْوَلَدُ مَوْلًى لِمَوَالِي الْأُمِّ نو [په دې صورت کي] بچی د مور د مواليو مولیٰ [آزاد کړی سوی غلام] کيږي وَإِنْ أُعْتِقَ الْأَبُ که څه هم پلار آزاد کړی سي لِتَعَذُّرِ إِضَافَةِ الْعُلُوقِ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ وَالطَّلَاقِ الْبَائِنِ ځکه چي له مرګ او طلاق بائن څخه د وروسته وخت وطرف ته د عُلوق نسبت کول نا ممکن دي لِحُرْمَةِ الْوَطْءِ ځکه چي [تر طلاقِ بائن وروسته] وطي حرام دي وَبَعْدَ الطَّلَاقِ الرَّجْعِيِّ لِمَا أَنَّهُ يَصِيرُ مُرَاجِعًا بِالشَّكِّ او له طلاق رجعي څخه د وروسته وخت وطرف ته ځکه [د عُلوق نسبت کول ممکن نه دي] چي [په دې صورت کي] هغه په شک سره رجعت کونکی ګرځي [يعني په دې صورت کي خو هغه رجعت کونکی ګرځي مګر په شک سره، او په شک سره رجعت نه ثابتيږي] فَأُسْنِدَ إِلَى حَالَةِ النِّكَاحِ نو ځکه د نکاح د حالت وطرف ته به د عُلوق نسبت کيږي فَكَانَ الْوَلَدُ مَوْجُودًا عِنْدَ الْإِعْتَاقِ نو [د مور] د آزادولو په وخت کي به بچی موجود وي فَعَتَقَ مَقْصُودًا نو هغه به د مقصود په توګه [بالقصد] آزاد وي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: فَإِذَا تَزَوَّجَتْ مُعْتَقَةٌ بِعَبْدٍ فَوَلَدَتْ أَوْلَادًا او په جامع صغير کي

دي: كله چي يوه آزاده كړى سوې ښځه ديو غلام سره نكاح وكړي او بچيان وزېږوي فَجَنَى الْأَوْلَادُ بيا هغه بچيان جنايت وكړي فَعَقْلُهُمْ عَلَى مَوَالِي الْأُمِّ نو د دوى ديت د مور پر مواليو دى لِأَنَّهُمْ عَتَقُوا تَبَعًا لِأُمِّهِمْ ځكه چي دوى د مور د تابع والي په توګه [د مور په متابعت كي] آزاد سوي دي وَلَا عَاقِلَةَ لِأَبِيهِمْ وَلَا مَوَالِيَ او د دوى د پلار نه عاقله سته او نه موالي [ځكه چي د دوى پلار غلام دى او آزاد كړى سوى هم نه دى چي موالي ولري] فَأُلْحِقُوا بِمَوَالِي الْأُمِّ ضَرُورَةً نو ځكه ضرورتاً به دوى د مور د مواليو سره لاحقول كيږي كَمَا فِي وَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ لكه څرنګه چي د ملاعنه ښځي په بچي كي كيږي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لكه [مخكي] چي موږ ذكر كړه فَإِنْ أُعْتِقَ الْأَبُ بيا كه چيري پلار [هم] آزاد كړى سي جَرَّ وَلَاءَ الْأَوْلَادِ إِلَى نَفْسِهِ نو هغه د خپل ځان وطرف ته د بچيانو ولاء را كشوي [را منتقل كوي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى دى وَلَا يَرْجِعُونَ عَلَى عَاقِلَةِ الْأَبِ بِمَا عَقَلُوا او د مور موالي به د پلار پر عاقله وو رجوع نه كوي په هغه ديت سره كوم چي د مور مواليو اداء كړى وي [يعني د مور مواليو چي د بچيانو په ديت كي كوم مال وركړى وي، هغه به د پلار له عاقله وو څخه نه اخلي] لِأَنَّهُمْ حِينَ عَقَلُوهُ ځكه په كوم وخت كي چي دوى ديت اداء كړى دى، كَانَ الْوَلَاءُ ثَابِتًا لَهُمْ په هغه وخت كي [د بچي] ولاء د دوى لپاره ثابته وه وَإِنَّمَا يَثْبُتُ لِلْأَبِ مَقْصُودًا او د پلار لپاره خو د مقصود په توګه ولاء ثابتيږي لِأَنَّ سَبَبَهُ مَقْصُورٌ وَهُوَ الْعِتْقُ ځكه چي [د پلار لپاره] د ولاء ثابتېدلو سبب د پلار د آزادېدلو پر وخت منحصر دى بِخِلَافِ وَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ إِذَا عَقَلَ عَنْهُ قَوْمُ الْأُمِّ ثُمَّ أَكْذَبَ الْمُلَاعِنُ نَفْسَهُ په خلاف د ملاعنه ښځي د بچي كله چي د مور قوم د هغه له طرفه ديت اداء كړي بيا ملاعن [د بچي پلار] خپل ځان دروغجن وګرځوي حَيْثُ يَرْجِعُونَ عَلَيْهِ نو دوى به پر پلار رجوع كوي [يعني په دې صورت كي به د مور قوم له پلار څخه د ديت مال اخلي] لِأَنَّ النَّسَبَ هُنَاكَ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ ځكه چي هلته [يعني په مذكوره صورت كي] نسب د عُلوق د وخت وطرف ته منسوبېدونكى ثابت دى [يعني په دې صورت كي د بچي نسب له همغه وخت څخه ثابت دى له كومه وخته چي مور په هغه سره حامله سوې ده] وَكَانُوا مَجْبُورِينَ عَلَى ذَٰلِكَ او د مور قوم د ديت پر اداء كولو مجبوره وه فَيَرْجِعُونَ نو ځكه دوى به پر پلار رجوع كوي [يعني په ديت كي وركول سوى مال به له پلار څخه اخلي].

**اللغات**: ﴿جرّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: کشول، را منتقل کول. جَرّ الوَلَاء: اِنْتِقَالُ وَلَاءِ أَوْلَادِ الأَمَةِ المُعْتَقَةِ مِنْ مَوْلَى أُمِّهِمْ إِلَى مَوْلَى أَبِيْهِمْ بَعْدَ عِتْقِ الأَبِ (معجم لغة الفقهاء). ﴿تعذّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده، د دې باب دوي معناوي دي: مشکل کېدل، نا ممکن کېدل. ﴿ملاعنة﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مؤنث اسم فاعل صيغه ده: لعان کونکې ښځه، ملاعن: لعان کونکی خاوند. ﴿أكذب﴾ د افعال د باب ماضي ده: دروا غجن کول، درواغجن گرځول (شمېرل). ﴿العلوق﴾ د سمع د باب مصدر دی: عَلِقَتِ المَرْأَةُ بِالوَلَدِ: په بچي سره ښځه حامله کېدل، په رحم کې نطفه قرار نيول (له نطفې څخه بچی جوړېدل)، حمل نيول کېدل. ﴿عاقلة﴾ د قاتل او جنايتکاره قريبان او د هغه نژدې قوميان (خاندان والا).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که د غلام ښځه له شپږو مياشتو څخه په زياد موودت کې بچی وزېږوي، نو هغه د مور تابع کېږي او د مور په متابعت کې آزادېږي او د هغه ولاء د مور مواليو ته حاصلېږي (لکه مخکې چې ذکر سوه). خو که چيري د دغه بچي پلار (غلام) آزاد کړی سي، نو بيا پلار د هغه ولاء د خپل مولیٰ وطرف ته را کشوي (را منتقل کوي) او تر دې وروسته د بچي ولاء د پلار مواليو ته منتقل کيږي؛ ځکه چې دلته د بچي عتق او د هغه ولاء د مور د مواليو لپاره تبعاً ثابته ده (نه قصداً او اصلاً)، نو ځکه د دغه ولاء انتقال ممکن دی، د دې په خلاف په مخکنۍ مسئله کې يعني کله چې مينځه تر شپږو مياشتو په کم موودت کې بچی وزېږوي نو څرنګه چې هلته د بچي عتق بالقصد (قصداً) د مور سره ثابت دی (ځکه چې هغه د مور له اجزاؤ څخه دی)، نو ځکه د هغه ولاء به په هيڅ حال کې هم د پلار مواليو ته نه منتقل کيږي. بلکې صرف د تبعاً ثابتېدلو په صورت کې به د هغوی وطرف ته دا ولاء منتقل کيږي؛ ځکه چې ولاء د نسبي قرابت په څېر يو قرابت دی، او د نسب په ثبوت کې پلار اصل دی، نو ځکه په ثبوت ولاء کې به هم پلار اصل وي لېکن کله چې په پلار کې د نسب او ولاء د ثابتولو اهليت نه وي، نو د ضرورت پر بناء هغه د مور وطرف ته منسوبول کيږي. کنې د هلک نوم، ابرو او ژوند به خراب سي (چې د حرامي نوم به پر پوخ سي)، ها! کله چې په پلار کې د نسب ثابتولو اهليت وي، نو بيا نسب خپل اصلي حالت ته راګرځي يعني صرف د همدې پلار سره ثابتيږي.

بخلاف ما إذا أعتقت المعتدة إلخ: د دې حاصل دا دی چې که يو مينځه د مکاتب ښځه وي او مکاتب له بدل کتابت اداء کولو څخه بغير مړ سي، يا مکاتب دغه ښځي ته طلاق ورکړي او هغه د وفات يا طلاق عدت تېروي چې په دې دوران کې هغه آزاده کړی سي، بيا دا ښځه تر دوو کالو په کم موودت کې بچی وزېږوي، نو هغه بچی د مور د مواليو مولیٰ (آزاد کړی سوی غلام) دی او د هغه ولاء صرف د مور مواليو ته

حاصليږي که څه هم د هغه پلار آزاد سي، يعني د پلار د آزادېدلو په وجه دغه ولاء د پلار مواليو ته نه منتقل کيږي؛ ځکه چي دلته د پلار (مکاتب) تر مرګ وروسته حالت ته د عُلوق نسبت نه سي کېدلای، ځکه چي پلار مړ سوی دی او د مړي له طرفه وطي کول محال او ناممکن دي، او د معتده ښځي طلاق "طلاق بائن" وي او له طلاق بائن څخه وروسته وطي کول حرام وي، نو ځکه د دغه حالت وطرف ته هم د عُلوق نسبت نه سي کېدلای، او په دې وينا سره هم عُلوق نه سي ثابتول کېدای چي پلار (مکاتب خاوند) د دغه معتده مېنځي سره تر طلاق رجعي وروسته وطي کړي دي؛ ځکه که مور د عدت په حالت کي د هغه (مکاتب خاوند) وطي او عُلوق ثابت ومنو، نو بيا خو به هغه رجعت کونکی (رجوع کونکی) وي او که چيري تر طلاق په مخکي حالت کي دا ومنو، نو هغه به رجعت کونکی نه وي، ګواکي د دغه حالت وطرف ته د عُلوق په نسبت کولو کي شک دی او په شک سره رجعت نه ثابتيږي، نو ځکه مور به د دغه حمل او عُلوق نسبت د نکاح د موجود والي د حالت وطرف ته کوو، نو دا حمل به د مور د آزادېدلو په وخت کي موجود وي (يعني د مور د اعتاق په وخت کي به موجود شمېرل کيږي) او د خپل مور د جزء کېدلو په وجه به قصداً (بالقصد) آزاد وي، نه تبعاً، نو د هغه ولاء به د مور د مواليو لپاره (قصداً) ثابته وي کوم چي په هيڅ حال کي به هم د پلار مواليو ته نه منتقل کيږي.

وفي الجامع الصغير إلخ: دغه مسئله او د " وَإِذَا تَزَوَّجَ عَبْدُ رَجُلٍ أَمَةً إلخ" په عبارت سره بيان سوې مسئله بالکل يوه ده (کوم چي د هدايې د صفحه: ۳۴۱ په آخر کي ذکر سوې ده)، فرق يې صرف دا دی چي هلته د ولاء او عتق بيان دی او دلته د عقل او ديت بيان دی. (احسن الهدايه)

## د عربو د آزاد کړې سوي مېنځي سره د نکاح کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ تَزَوَّجَ مِنَ الْعَجَمِ بِمُعْتَقَةٍ مِنَ الْعَرَبِ فرمايي: او که يو عجمي کس د عربو د آزاده کړې سوي مېنځي سره نکاح وکړي فَوَلَدَتْ لَهُ أَوْلَادًا او دا مېنځه د هغه لپاره بچيان وزېږوي [يعني له هغه څخه د مېنځي اولاد وسي] فَوَلَاءُ أَوْلَادِهَا لِمَوَالِيهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغې د بچيانو ولاء د هغې د مواليو لپاره ده قَالَ رضي الله عنه: وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ[*]: حُكْمُهُ حُكْمُ أَبِيهِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د داسي بچي حکم د پلار د حکم په څېر دی لِأَنَّ النَّسَبَ إِلَى الْأَبِ ځکه چي نسب

[*] القول الراجح: قول الطرفين (قول أبي حنيفة و محمد) رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فى الدر المنتقى (ج:۴، ص:۳۱)، ومجمع الأنهر (ج:۴، [illegible]

د پلار وطرف ته دی [يعني د بچي نسب د پلار سره ثابتيږي] كَمَا إِذَا كَانَ الْأَبُ عَرَبِيًّا لکه څرنګه چي کله پلار عربي وای بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْأَبُ عَبْدًا په خلاف د هغه صورت کله چي پلار غلام وي لِأَنَّهُ هَالِكٌ مَعْنًى ځکه چي غلام د معنیٰ په اعتبار سره هلاک شُده [مړ] وي وَلَهُمَا: أَنَّ وَلَاءَ الْعَتَاقَةِ قَوِيٌّ مُعْتَبَرٌ فِي حَقِّ الْأَحْكَامِ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي ولاء عتاقه يو قوي [مضبوطه] ولاء ده او د احکامو په حق کي معتبره [هم] ده حَتَّى اُعْتُبِرَتِ الْكَفَاءَةُ فِيهِ همدا وجه چي په ولاء عتاقه کي کفائت معتبر دی [د کفائت اعتبار پکښي سوی دی] وَالنَّسَبُ فِي حَقِّ الْعَجَمِ ضَعِيفٌ او نسب د عجمو په حق کي ضعيف دی فَإِنَّهُمْ ضَيَّعُوا أَنْسَابَهُمْ ځکه چي عجمو خپل نسبونه ضايع کړي دي [يعني هغوی د خپلو نيکه ګان نومان ياد ساتلي او درج کړي نه دي (ځکه په متفقه توګه هيڅا ته تر لسم پښته پوري خپل د نسب سلسله معلومه نه ده (إلا ما شاء الله)، نور پښتونه خو هلته پرېږده!. خصوصاً د عجمو په ځينو قبيلو کي لکه هندوان او داسي نور. لنډه دا چي عجم په خپلو انسابو نا خبره دي او نا خبري (جهل) حلت ثابتوي] وَلِهَذَا لَمْ تُعْتَبَرِ الْكَفَاءَةُ فِيمَا بَيْنَهُمْ بِالنَّسَبِ په همدې وجه د عجمو په خپل مينځوي نسب کي د کفائت اعتبار نه دی سوی وَالْقَوِيُّ لَا يُعَارِضُهُ الضَّعِيفُ او ضعيف شی د قوي معارض کېدلای نه سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْأَبُ عَرَبِيًّا په خلاف د هغه صورت کله چي پلار عربي النسله وي لِأَنَّ أَنْسَابَ الْعَرَبِ قَوِيَّةٌ مُعْتَبَرَةٌ فِي حُكْمِ الْكَفَاءَةِ وَالْعَقْلِ او ځکه چي د عربو نسبونه قوي دي او د کفائت او ديت په حکم کي معتبر دي لِمَا أَنَّ تَنَاصُرَهُمْ بِهَا ځکه چي د عربو تناصر [يو د بل مرسته کول] د همدې انسابو په ذريعه وو فَأَغْنَتْ عَنِ الْوَلَاءِ نو انسابو له ولاء څخه استغناء پيدا کړه قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: الْخِلَافُ فِي مُطْلَقِ الْمُعْتَقَةِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي اختلاف په مطلقه معتَقه کي دی [يعني دلته چي د طرفينو او امام ابو يوسف رَحِمَهُمُ الله تر مينځ کوم اختلاف ذکر سوی دی، هغه په مطلقه آزاده کړې سوې مينځه کي دی. برابره ده هغه له عربو څخه وي او که له عجمو څخه] وَالْوَضْعُ فِي مُعْتَقَةِ الْعَرَبِ وَقَعَ اتِّفَاقًا او امام قدوري رَحِمَهُ الله چي د عربو د آزاده کړی سوي مينځي په هکله مسئله وضع کړې ده، هغه اتفاقا واقع سوي دي [نه قصداً] وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: نَبَطِيٌّ كَافِرٌ تَزَوَّجَ بِمُعْتَقَةِ قَوْمٍ او په جامع صغير کي دي: که يو نبطي کافر د يو قوم د آزاده کړی سوي مينځي سره واده وکړي ثُمَّ أَسْلَمَ النَّبَطِيُّ وَوَالَى رَجُلًا بيا

نبطي اسلام راوړي او د يو سړي سره عقدِ موالات وکړي ثُمَّ وَلَدَتْ أَوْلَادًا بيا هغه معتَقه مينځه بچيان وزيږوي قَالَ أَبُوْحَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٌ: مَوَالِيهِمْ مَوَالِيْ أُمِّهِمْ نو طرفين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د بچيانو موالي د هغوی د مور موالي دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: مَوَالِيهِمْ مَوَالِيْ أَبِيهِمْ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د دې بچيانو موالي د هغوی د پلار موالي دي لِأَنَّ الْوَلَاءَ وَإِنْ كَانَ أَضْعَفَ فَهُوَ مِنْ جَانِبِ الْأَبِ ځکه ولاء که څه هم ضعيفه ده خو هغه د پلار له طرفه ده فَصَارَ كَالْمَوْلُودِ بَيْنَ وَاحِدٍ مِنَ الْمَوَالِيْ وَبَيْنَ الْعَرَبِيَّةِ نو داسي سو لکه د يوه موالي [يعني د آزاد عجمي کس] او آزادي عربيه ښځي په مينځ کي پيدا سوی بچی وَلَهُمَا: أَنَّ وَلَاءَ الْمُوَالَاةِ أَضْعَفُ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي ولاء موالاة ډېره کمزوري وي حَتَّى يَقْبَلَ الْفَسْخَ همدا وجه ده چي هغه فسخ قبلوي وَوَلَاءُ الْعَتَاقَةِ لَا يَقْبَلُهُ او ولاء عتاقه فسخ نه قبلوي وَالضَّعِيفُ لَا يَظْهَرُ فِي مُقَابَلَةِ الْقَوِيِّ او د قوي په مقابله کي ضعيف نه ښکاره کيږي [د قوي شي په مقابله کي کمزوری شی خپل اثر نه سي ښکاره کولای] وَإِنْ كَانَ الْأَبَوَانِ مُعْتَقَيْنِ او که چيري مور و پلار دواړه آزاد کړل سوي وي فَالنِّسْبَةُ إِلَى قَوْمِ الْأَبِ نو [د بچيانو] نسبت د پلار د قوم وطرف ته دی [په دې صورت کي بچيان د پلار د قوم وطرف ته منسوب کيږي] لِأَنَّهُمَا اسْتَوَيَا ځکه چي [دلته] مور و پلار [په آزادۍ کي] سره برابر دي وَالتَّرْجِيحُ لِجَانِبِهِ او د پلار طرف لره ترجيح ده [يعني د پلار جانب ته به ترجيح ورکول کيږي] لِشَبَهِهِ بِالنَّسَبِ ځکه چي ولاء د نسب سره مشابه ده أَوْ لِأَنَّ النُّصْرَةَ بِهِ أَكْثَرُ يا ځکه چي له پلار [او د هغه له قوم] څخه زيات نصرت [مدد] تر لاسه کيږي.

**اللغات:** ﴿مُعتَقة﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث مفعول صيغه ده: آزاده کړی سوې مينځه، آزاد کرده ښځه. ﴿عجم﴾ له عربو څخه بغير نور ولس (هر غير عربي قوم)، واحد يې عَجَمِي او أَعْجَمِي دی. ﴿هالك﴾ هلاک سوی، هلاک شده. ﴿عتاقة﴾ آزادول، آزاد والی. ﴿الكفاءة﴾ برابري، همسري. ﴿نبطي﴾ د نَبَطْ وطرف ته منسوب دی: دا د عراق يو ټيټ او کمتره قوم وو (او بيا دا لفظ د هر ګډو وډ قوم [اخلاط الناس] لپاره استعمالېدی). فقيه ابو الليث د نبطي تفسير په غير عربي کس سره کړی دی (کوم چي د عربو سره اوسيږي). ﴿استويا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه مذکر غائب مضارع صيغه ده: سره برابر بدل. ﴿النصرة﴾ مرسته، مدد (کومک).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو آزاد عجمي کس د داسې مینځې سره واده وکړي کوم چې د یو عربي کس (مالک) له طرفه آزاده کړی سوی وي او بیا له دغه مینځې څخه د هغه (عجمي) بچیان پیدا سي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دغه بچیانو ولاء مور ته حاصلیږي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا بچیان د خپل پلار په حکم کي داخلیږي یعنې آزادیږي نو دغه ولاء پر پلار ولاء عتاقه نه کیږي؛ ځکه چي ولاء د نسب په درجه کي ده او د نسب په هکله فقط پلار اصل وي، مثلاً که پلار عربي وای نو د همدې پلار سره به نسب او داسې نور ثابتېدای، نو همداسې به د عجمي کېدلو په صورت کي هم نسب د هغه سره ثابتیږي. خو که چیري پلار غلام وي او آزاد نه وي، نو بیا نسب د مور سره ثابتیږي؛ ځکه چي غلام معناً او حکماً د مړي (میت) په درجه کي دی او تاسو ته معلومه ده چي که حقیقتاً پلار نه وي نو نسب د مور سره ثابتیږي، لهذا معناً د پلار نشتوالي په صورت کي به هم د مور سره نسب ثابتیږي.

د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي په دغه مسئله کي پلار عجمي دی او د عجمیانو په حق کي نسب ضعیف وي، نو ځکه د دوی د بچیانو ولاء به د مور موالیو ته حاصلیږي او ولاء به ولاء عتاقه وي، او ولاء عتاقه یو مضبوطه او مستحکمه ولاء ده، همدا وجه ده چي په هغه کي کفائت معتبر دی یعني د عربو آزاده کړی سوې مینځه د عجمو د آزاد کړی سوي غلام کفو نه ده، او د عجمو د نسب حال دا دی چي د دوی په خپل مینځوي نسب کي د کفائت اعتبار نسته، نو ځکه په دې حواله سره ولاء عتاقه د عجمو له انسابو څخه قوي سوه او ضعیف شی د قوي او کره شي معارض و مقابل کېدلای نه سي، نو ځکه مور (طرفینو) په مذکوره مسئله کي د مور (مُعتَقه مِن العرب) موالي د هغې د بچیانو د ولاء مستحق ګرځولي دي.

بخلاف ما إذا کان إلخ: دا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قیاس جواب دی چي عجمي پلار پر عربي پلار قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه عربي پلار په هر اعتبار سره اصل وي؛ ځکه چي د عربو نسب قوي دی، محفوظ او سالم دی او په دوی کي کفائت معتبر دی. او عجمي انساب په هیڅ توګه هم د هغوی سره برابرېدای نه سي، په همدې وجه د پلار د عربي کېدلو په صورت کي مور بېله څه تردده د پلار سره د بچیانو نسب ثابتوو او د مور یا د هغې د موالیو نوم هم نه اخلو.

قال ﷺ إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي په متن کي چي د ''بِمُعْتَقَةٍ مِنَ الْعَرَبِ'' په جمله کي کوم د ''مِنَ العرب'' قید ذکر سوی دی، هغه قید اتفاقي دی، قید احترازي نه دی او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مطلق ولاء عتاقه حکم دی، برابره ده مور مُعتَـقه من العرب وي او که من العجم وي؛ ځکه

چې د عجميانو په نيز هم په ولاء عتاقه کې کفائت معتبر دی، ځکه د ډېر ټيټ او خوار کس يا د ډېر ټيټ کسب والا لکه د جولا يا د موچي معتَقه د شريف کس لکه د مشر او خان د معتَق کفو نه کيږي.

دا حکم د دې خبرې ښکاره دليل دی چې د مِنَ العرب قيد "قيد اتفاقي" دی، احترازي نه دی.

وفي الجامع الصغير إلخ: دا د جامع صغير مسئله ده، حاصل يې دا دی چې که يو نبطي کافر د يو کافر قوم د آزاده کړې سوي کافري مينځې سره واده وکړي (مثلا نبطي کافر د نصارا وو د نصرانيه معتَقه سره واده وکړي) او بچيان پيدا سي، بيا خاوند مسلمان سي او د يو چا سره عقدِ موالات وکړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغو ولاء د مور مواليو ته حاصليږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د هغو ولاء د پلار مواليو ته حاصليږي؛ ځکه ولاءِ موالاة که څه هم کمزورې ده، خو څرنګه چې د پلار له طرفه ده کوم چې اصل دی، نو ځکه د دغه ولاء استحقاق به د پلار مواليو ته حاصليږي؛ لکه کله چې پلار آزاد عجمي کس وي او مور آزاده عربيه ښځه وي، نو د دوی د بچي نسب هم د پلار سره ثابتيږي، نو ځکه په ولاء کې به هم د پلار مواليو ته ترجيح حاصليږي. د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل واضح دی.

ولو کان الأبوان إلخ: مسئله دا ده چې که مور و پلار دواړه معتَق (آزاد کړی سوي) وي، نو د دوی د بچي نسب هم د پلار سره ثابتيږي، يعني د پلار مواليو ته د هغه ولاء حاصليږي؛ ځکه کله چې مور و پلار دواړه معتَق دي، نو يو هم پر بل فائق او بالا نه دی او په ثبوت نسب کې پلار اصل دی، نو ځکه دا حکم به پر خپل اصل باقي پاتيږي. په مخکني حديث "الوَلَاءُ لُحْمَةٌ كَلُحْمَةِ النَّسَب" سره هم د دې تائيد کيږي (احسن الهدايه ج: ۱۲، ص: ۲۰۳). والله أعلم

## د وراثت په باب کې د معتَق (آزاد کړی سوي غلام) حيثيت

قَالَ: وَوَلَاءُ الْعَتَاقَةِ تَعْصِيبٌ فرمايي: او ولاء عتاقه عصبه ګرځول دي [يعني ولاء عتاقه انسان عصبه ګرځوي. په بله وينا دا چې د ولاءِ عتاقه په ذريعه مالک د آزاد کړی سوي غلام عصبه جوړيږي] وَهُوَ أَحَقُّ بِالْمِيرَاثِ مِنَ الْعَمَّةِ وَالْخَالَةِ او هغه [مولی العتاقه] له امه او خاله څخه زيات د ميراث مستحق دی لِقَوْلِهِ لِلَّذِي اشْتَرَى عَبْدًا فَأَعْتَقَهُ[1]: «هُوَ أَخُوكَ وَمَوْلَاكَ إِنْ شَكَرَكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ وَشَرٌّ لَكَ ځکه نبي کريم ﷺ هغه کس ته کوم چې يې غلام رانيوی او آزاد يې کړی وفرمايل: "هغه ستا ورور دی او ستا آزاد کړی سوی

[1] تخريج: رواه الدارمی، باب: ۳۱. (احسن الهدايه)

غلام دی که چیري هغه ستا شکر اداء کړي [تا ته د بدله درکړي] نو دا د هغه لپاره ښه دي او ستا لپاره ښه نه دي [ځکه هغه چي تا ته څومره بدله درکړي، د هغه په اندازه ستا ثواب دآخرت له ثوابونو څخه کم سو] وَإِنْ كَفَرَكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ وَشَرٌّ لَهُ او که هغه ستا نا شکري وکړي [بدله درنه کړي] نو دا ستا لپاره ښه [غوره] دي او د هغه لپاره ښه نه دي [ځکه چي ستا د عمل ټوله ثواب به دآخرت لپاره پاته سي او د قیامت په سخت ترینه ورځ به په ښه درسي] وَلَوْ مَاتَ وَلَمْ يَتْرُكْ وَارِثًا كُنْتَ أَنْتَ عَصَبَتَهُ» او که چیري هغه مړ سي او هیڅ وارث نه پرېږدي نو همدا ته د هغه عصبه یې!" وَوَرَّثَ ابْنَةَ حَمْزَةَ رضي الله عنه عَلَى سَبِيلِ الْعُصُوبَةِ مَعَ قِيَامِ وَارِثٍ [همدارنګه] نبي کریم ﷺ د حمزه رضي الله عنه لور د عصبه والي په توګه [د هغې د آزاد کړی سو غلام] وارثه ګرځولې وه، سره د دې چي [د هغه] وارث موجود وو [یعني سره د دې چي د هغې دآزاد کړي سوی غلام لور هم موجوده وه (لکه مخکي چي ذکر سوه)] وَإِذَا كَانَ عَصَبَةً لهذا کله چي مولی العتاقه عصبه دی يُقَدَّمُ عَلَى ذَوِي الْأَرْحَامِ نو هغه به پر ذوي الارحامو مخکي کول کیږي وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه او همدا له حضرت رضي الله عنه څخه روایت سوي دي فَإِنْ كَانَ لِلْمُعْتَقِ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ او که چیري دآزاد کړی سوي غلام یو نصبي عصبه موجوده وي [لکه پلار و مور] فَهُوَ أَوْلَى مِنَ الْمُعْتِقِ نو هغه له آزاد ونکي مالک څخه زیاته مستحقه [یعني مخکي] ده لِأَنَّ الْمُعْتِقَ آخِرُ الْعَصَبَاتِ ځکه چي مُعتق [ازادونکی مالک] تر ټولو آخري عصبه ده وَهٰذَا لِأَنَّ قَوْلَهُ عليه السلام «وَلَمْ يَتْرُكْ وَارِثًا» قَالُوا الْمُرَادُ مِنْهُ وَارِثٌ هُوَ عَصَبَةٌ او دا حکم ځکه دی چي د مشایخو د قول مطابق د نبي کریم ﷺ له دې فرمان "وَلَمْ يَتْرُكْ" څخه هغه وارث مراد دی کوم چي عصبه وي بِدَلِيلِ الْحَدِيثِ الثَّانِي د دویم حدیث په دلیل سره [یعني ځکه چي دویم حدیث پر همدې خبره لیل دی، چي د هغه حدیث مفهوم دا دی: "وَرَّثَ ابْنَةَ حَمْزَةَ رضي الله عنه عَلَى سَبِيلِ الْعُصُوبَةِ ..."] فَتَأَخَّرَ عَنِ الْعَصَبَةِ دُونَ ذَوِي الْأَرْحَامِ نو ځکه مُعتق [آزادونکی مالک] به له نسبي عصبه څخه وروسته کیږي، نه له ذوي الارحامو څخه قَالَ: فَإِنْ كَانَ لِلْمُعْتَقِ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ [امام قدوري رحمه الله] فرمايي: نو که دآزاد کړی سوي غلام نسبي عصبه موجوده وي فَهُوَ أَوْلَى مِنْهُ نو هغه له مُعتق [آزادونکي مالک] څخه زیاته مستحقه ده لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ او که دآزاد کړی سوي غلام یو نسبي عصبه موجوده نه وي فَمِيرَاثُهُ لِلْمُعْتِقِ

نو د هغه ميراث دآزادونکي مالک دی تَأْوِيلُهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ هُنَاكَ صَاحِبُ فَرْضٍ ذُوْ حَالٍ دامام قدوري رَحِمَهُ الله د دغه قول [متن] تأويل دا دی چي کله هلته [د آزاد کړی سوي غلام سره] داسي صاحب فرض هم موجود نه وي کوم چي يوه حال والا وي [لکه لور] أَمَّا إِذَا كَانَ او که داسي صاحب فرض موجود وي فَلَهُ الْبَاقِي بَعْدَ فَرْضِهِ نو د هغه تر فرض وروسته ما بقي حصه د مُعتِق لپاره ده [يعني کله چي دا صاحب فرض خپله حصه واخلي تر دې وروسته چي کوم څه پاته سي، هغه دآزادونکي مالک ده] لِأَنَّهُ عَصَبَةٌ عَلَى مَا رَوَيْنَا ځکه چي مُعتِق [آزادونکی مالک] عصبه دی د هغه حديث پر بناء کوم چي موږ روايت کړی [يعني: "وإن لم يترك وارثا كنت أنت عصبته"] وَهٰذَا لِأَنَّ الْعَصَبَةَ مَنْ يَكُونُ التَّنَاصُرُ بِهِ لِبَيْتِ النِّسْبَةِ او دا [آزادونکی مالک] ځکه [عصبه دی] چي عصبه هغه کسانو ته وايي چي په هغوی سره د خاندان [او قبيلې] په وجه [په نامه] يو د بل مرسته کيږي وَبِالْمَوَالِي الِانْتِصَارُ او په آزادونکو مالکانو سره هم انتصار [او مرسته اخيستل] کيږي عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکي چي ذکر سوه وَالْعَصَبَةُ تَأْخُذُ مَا بَقِيَ او عصبه پاته سوې حصه اخلي.

**اللغات**: ﴿تعصيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: عصبه جوړول، عصبه ګرځول (ځان د يو چا عصبه جوړول)، ﴿ورّث﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وارث ګرځول، ميراث ورکول، ﴿العصوبة﴾ عصبه کېدل، عصبه والی، ﴿التناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل مرسته او مدد کول، مدد کول، ﴿انتصار﴾ د افتعال د باب مصدر دی، د لغت په کتابو کي د دې لفظ دغه ټوله معناوي سوي دي: په مرسته او مدد کولو کي غالبېدل، بريالی کېدل، غالب کېدل، (له دښمنه) غچ اخيستل، ﴿العَصَبَة﴾ د پلار لخوا قريب، د پلار قرابت، دانسان هغه خاندان چي په شخړو او خوشاليو کي د هغه مرسته کوي او يو ځای ور سره اوسي، جمع: عَصَبَات. صاحب د "معجم لغة الفقهاء" د عصبه د لفظ تعريف، تفصيل او اقسام په ډېر واضحه توګه بيان کړي چي هغه موږ ستاسو د معلومات اضافه کېدو لپاره دلته را نقل کوو: العَصَبَة: واحدة العصب، ج عصبات: قوم الرجل الذين يتعصبون له وينصرونه، وبنوه وقرابته لابيه، وتفصيل ذلك: أنّ العصبة على نوعين: (١) عصبة نَسبِيَّة (٢) عصبة سَبَبِيَّة.

(١)....عصبة نسبية: وهي على ثلاثة أنواع: ①...العصبة بنفسه: كلُّ ذَكَرٍ مِنْ أُصول الرجل أو فروعه أو فروع أبيه أو فروع جده لا تدخل في نسبته إليه انثى، ②...العصبة بغيره: هُنّ النسوة

اللاتي فَرْضُهُنّ في الميراث النصف والثلثان، (وهُنّ البنات وبنات الابن والاخوات) عندما يكون معهن ذكر من إخوتهن، فإنهن يَصِرْنَ عصبة به. ③...العصبة مع غيره: هُنّ كل انثى تصير عصبة إذا اجتمعت مع أنثى غيرها، وهي الاخت تصير عصبة إذا اجتمعت مع البنت في الميراث.

(٢)... عصبة سببية: وهي على نوعين بحسب سببها: ①... عصبة سببها العتق: كل من أعتق رقيقاً كان له الولاء عليه، فهو عصبته وله ميراثه إن لم يكن له وارث (ويسمى بمولى العتاقة).

②... عصبة سببها العقد: وهي أن يقول الرجل للرجل: أنت وليّي ترثني إذا متُّ، وتعقلُ عني إذا جنيتُ (ويسمى بمولى الموالاة). (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د نسبي عصبې په څېر مولی العتاقه هم د خپل معتَق غلام عصبه کيږي او له اصحاب الفروض څخه بغير هغه له نورو نژدې قريبانو مثلاً له خاله او امه څخه په ميراث کي مخکي کيږي؛ د دې تر ټولو ښکاره دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ يوه مُعتِق (آزادونکي مالک) ته فرمايلي وه ''وَلَوْ مَاتَ وَلَمْ يَتْرُكْ وَارِثًا كُنْتَ أَنْتَ عَصَبَتُهُ'' چي که ستا معتَق (آزاد کړی سوی غلام) مړ سي او تر خپل شا هيڅ عصبه وارث نه پرېږدي، نو ته د هغه عصبه يې! مطلب دا چې د هغه ميراث ستا دی. او بل دا چي د حضرت حمزه رضي الله عنه لور ته نبي کريم ﷺ د هغې د مړ سوي معتَق غلام نصف ميراث ورکړی وو (لکه مخکي چي ذکر سوه) حال دا چي د هغه (معتَق) لور موجوده وه، له دې څخه هم همدا معلوميږي چي مولی العتاقه عصبه دی، او که چيري د معتَق نسبي عصبه نه وي لکه پلار او نيکه، نو تر اصحاب الفروض وروسته مُعتِق (آزادونکی مالک) د هغه د ميراث مستحق کيږي، لېکن د پلار او نيکه په موجوديت کي هغه (آزادونکي مالک) ته هيڅ نه حاصليږي؛ ځکه چي دوی دواړه له اصحاب الفروض څخه دي او د دې سره، سره عصبه هم دي يعني دوی ذو حالين دي. په همدې وجه درا روان عبارت په دې جمله ''تَأْوِيلُه إذا لم يَكن هناك صاحبُ فرض ذُوْ حَال'' کي له ذُوْ حَال څخه حال واحد والا صاحب الفرض مراد دی او هغه د مړي لور ده. نو که د مړي په وارثانو کي صرف او صرف يوه لور وي، نو هغه د نصف ميراث مستحقه کيږي او ما بقی ميراث د مولي العتاقه دی. لکه څرنګه چي د حضرت حمزه رضي الله عنه د لور په حق کي نبي کريم ﷺ همدا فيصله کړې وه. نو ځکه مولی العتاقه چي چيري هم موجود وي، هر ځای د هغه همدا حکم دی چي له اصحاب الفروض څخه کوم ميراث پاته سي، هغه و همده (مولی العتاقه) ته د عصبه کېدلو پر بنياد حاصليږي، په دې شرط چي د مړي نسبي عصبه نه وي.

# د مالک او معتَــق دواړو د مرګ په صورت کې
# د لونړو لپاره ولاء سته، که نه (حکم او تفصیل)

فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَىٰ ثُمَّ مَاتَ الْمُعْتَقُ او که چیرې مالک مړ سي بیا [تر هغه وروسته] آزاد کړی سوی غلام مړ سي فَمِيرَاثُهُ لِبَنِي الْمَوْلَىٰ دُونَ بَنَاتِهِ نو د هغه میراث د مالک د ځامنو لپاره دی، نه د لونړو لپاره وَلَيْسَ لِلنِّسَاءِ مِنَ الْوَلَاءِ إِلَّا مَا أَعْتَقْنَ او نسته د ښځو لپاره ولاء مګر صرف د هغه کس ولاء چې دوی هغه آزاد کړی وي أَوْ أَعْتَقَ مَنْ أَعْتَقْنَ یا د هغه کس چې د دوی آزاد کرده هغه آزاد کړی وي أَوْ كَاتَبْنَ یا د هغه کس چې دوی هغه مکاتب کړی وي أَوْ كَاتَبَ مَنْ كَاتَبْنَ یا د هغه د کس چې د دوی مکاتب کړی سوي هغه مکاتب کړی وي بِهٰذَا اللَّفْظِ وَرَدَ الْحَدِيثُ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ [1] وَفِي آخِرِهِ «أَوْ جَرَّ وَلَاءَ مُعْتَقِهِنَّ» په همدې الفاظو له نبي کريم ﷺ څخه حدیث وارد سوی دی او د هغه په آخر کې دي "یا د هغه کس ولاء کوم چې د ښځو د آزاد کړی سو غلام ولاء را کش کړي [را منتقل کړي]" وَصُورَةُ الْجَرِّ قَدَّمْنَاهَا او د "را کشولو" صورت موږ مخکې ذکر کړی دی وَلِأَنَّ ثُبُوتَ الْمَالِكِيَّةِ وَالْقُوَّةِ فِي الْمُعْتَقِ مِنْ جِهَتِهَا او ځکه چې په آزاد کړی سوی غلام کې مالکیت او قوت د آزادونکې ښځې [معتِقه] له طرفه ثابتیږي فَيُنْسَبُ بِالْوَلَاءِ إِلَيْهَا نو ځکه د ولاء په هکله به مُعتَق د خپل معتِقه وطرف ته منسوب کیږي وَيُنْسَبُ إِلَيْهَا مَنْ يُنْسَبُ إِلَىٰ مَوْلَاهَا او کوم څه چې د هغې د مولیٰ وطرف ته منسوب دي، هغه به هم [د معتَق په واسطه سره] د همدې معتِقه وطرف ته منسوب کیږي بِخِلَافِ النَّسَبِ په خلاف د نسب لِأَنَّ سَبَبَ النِّسْبَةِ فِيهِ الْفِرَاشُ ځکه چې په هغه کې د نسبت سبب فراش دی [یعني د نسب د منسوب کېدلو سبب فراش دی] وَصَاحِبُ الْفِرَاشِ إِنَّمَا هُوَ الزَّوْجُ او د فراش مالک صرف خاوند دی وَالْمَرْأَةُ مَمْلُوكَةٌ لَا مَالِكَةٌ او ښځه خو مملوکه ده، نه مالکه وَلَيْسَ حُكْمُ مِيرَاثِ الْمُعْتَقِ مَقْصُورًا عَلَىٰ بَنِي الْمَوْلَىٰ او د آزاد کړی سوي غلام د میراث حکم صرف د مالک پر ځامنو منحصر نه دی بَلْ هُوَ لِعَصَبَتِهِ الْأَقْرَبُ فَالْأَقْرَبُ بلکې هغه میراث د فالاقرب فالاقرب په حساب سره د مالک د

---

[1] تخريج: رواه البيهقي في سننه الكبرىٰ، رقم الحديث: ۲۱۵۱۱.

عصبه وو لپاره دی لِأَنَّ الْوَلَاءَ لَا يُورَثُ ځکه چي ولاء ميراث کېدای نه سي [ميراث نه پکښي جاري کيږي] وَيَخْلُفُهُ فِيهِ مَنْ يَكُونُ النُّصْرَةُ بِهِ او په ولاء کي هغه کس د مالک خليفه [نائب] کيږي چي د هغه په ذات سره [د مالک] مدد او نصرت متحقق کيږي [او څوک چي د مالک څومره نژدې عصبه وي] حَتَّى لَوْ تَرَكَ الْمَوْلَى أَبًا وَابْنًا همدا وجه ده که مالک پلار او ځوی پرېږدي فَالْوَلَاءُ لِلِابْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ولاء د ځوی لپاره ده لِأَنَّهُ أَقْرَبُهُمَا عُصُوبَةً ځکه چي هغه [مالک (پلار) ته] ډېر نژدې دی د عصبه کېدلو په اعتبار سره [يعني ځوی د پلار تر ټولو نژدې عصبه دی] وَكَذَلِكَ الْوَلَاءُ لِلْجَدِّ دُونَ الْأَخِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ولاء د نيکه لپاره ده، نه د وروړ لپاره لِأَنَّهُ أَقْرَبُ فِي الْعُصُوبَةِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نيکه په عصبه کي [له وروړ څخه] زيات نژدې دی وَكَذَا الْوَلَاءُ لِابْنِ الْمُعْتَقَةِ حَتَّى يَرِثَهُ دُونَ أَخِيهَا او همدارنګه ولاء د آزادونکي ښځي د ځوی لپاره ده، تر چي هغه د معتَق [آزاد کړی سوي غلام] وارث کيږي، نه د هغې وروړ لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی إِلَّا أَنَّ عَقْلَ جِنَايَةِ الْمُعْتَقِ عَلَى أَخِيهَا خو د آزاد کړی سوي غلام د جنايت ديت د هغې [معتِقه] پر وروړ دی لِأَنَّهُ مِنْ قَوْمِ أَبِيهَا ځکه چي وروړ د هغې د پلار له قوم څخه دی وَجِنَايَتُهُ كَجِنَايَتِهَا او [د معتِقه] د آزاد کړی سوي غلام جنايت د هغې د جنايت په څېر دی وَلَوْ تَرَكَ الْمَوْلَى ابْنًا وَأَوْلَادَ ابْنٍ آخَرَ او که چيري مالک [تر خپل شا] ځوی او د بل ځوی بچيان پرېږدي مَعْنَاهُ بَنِي ابْنٍ آخَرَ يعني د بل ځوی ځامن [المسيان] پرېږدي فَمِيرَاثُ الْمُعْتَقِ لِلِابْنِ دُونَ بَنِي الِابْنِ نو د آزاد کړی سو غلام ميراث د ځامنو لپاره دی، نه د لمسيانو لپاره لِأَنَّ الْوَلَاءَ لِلْكُبْرِ ځکه چي ولاء خو تر ټولو د غټ يوه [يعني تر ټولو د نژدې اولاد] لپاره ده هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ عِدَّةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مِنْهُمْ عُمَرُ وَعَلِيٌّ وَابْنُ مَسْعُودٍ وَغَيْرُهُمْ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ او همدا حکم له څو صحابه وو څخه روايت سوی دی چي له هغوی څخه حضرت عمر، حضرت علي او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُم هم دي وَمَعْنَاهُ الْقُرْبُ عَلَى مَا قَالُوا او د مشايخو د قول مطابق د "کبر" معنیٰ نژدېکت ده وَالصُّلْبِيُّ أَقْرَبُ او صلبي اولاد [انسان ته] ډېر نژدې دی انو ځکه ولاء به د صلبي اولاد يعني د ځامنو لپاره وي]

**اللغات**: ﴿معتَق﴾ دافعال دباب مفعول دی: آزاد کړی سوی غلام، آزاد کرده، ﴿يُنسَب﴾ دنصر دباب مضارع مجهوله ده: ديو شي نسبت بل شي ته کول، منسوب کول. ﴿فراش﴾ ﴿فراش﴾ بستره، ماينه والی (ديو سړي په نکاح کېدل)، په نکاح يا ملک يمين سره وطي کړی سوې ښځه (المرأة الموطوءة بالنكاح أو ملك اليمين)، ﴿عقل﴾ ديت، ﴿كُبر﴾ اردو شارحينو دا لفظ د کاف په کسره سره ليکلی دی ليکن په حاشيه کي ذکر سوي دي چي د کاف په ضمه سره دی، د کُبر او کُبّر معنیٰ ده: لوی، غټ، لکه څرنګه چي ويل کيږي، فُلَانٌ كُبْر وَلد أبِيْه: فلانکی د خپل پلار په ځامنو کي تر ټولو غټ دی، او ويل کيږي: هُوَ كُبْرُهُمْ: هغه تر دوی ټولو لوی دی، دلته مراد ځني اقرب دی، ﴿الصلبي﴾ نسبي او حقيقي، دانسان له خپل ملا څخه پيدا شُده اولاد (خپل بچيان).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که تر معتَق مخکي د هغه آزادونکی مالک (معتـق) مړ سي، نو بيا د معتَق ميراث (ولاء) د مالک ځامنو ته حاصليږي او د هغه لوڼو ته نه حاصليږي؛ ځکه چي ښځي ته د پنځه ډوله کسانو ولاء حاصليږي: ① اول د هغه کس (غلام) ولاء کوم چي ښځي آزاد کړی وي، ② دويم د هغه کس چي د ښځي آزاد کړی سوي غلام هغه آزاد کړی وي، ③ درېيم د هغه کس کوم چي ښځي مکاتب جوړ کړی وي، ④ څلورم د هغه کس چي د ښځي مکاتب هغه مکاتب جوړ کړی وي، ⑤ پنځم د هغه کس چي د ښځي آزاد کړی سوی غلام د هغه ولاء راکشوي (يعني چي معتَق د هغه ولاء خپل مُعتِقه ښځي ته را منتقل کوي)، او څرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي له دغو پنځو څخه هيڅ يو صورت هم موجود نه دی، نو ځکه په دې صورت کي به ښځي يعني د مالک (مُعتـق) لوڼي د معتَق د ميراث حقداره نه وي. د "جرّ الولاء" تفصيل مخکي تېر سوی دی (او د هدايې د صفحه: ۳۴۴ په ۱۱ نمبر حاشيه کي هم موجود دی)، هلته يې وګورئ!.

داصل مسئلې نقلي دليل هغه حديث دی چي د هغه الفاظ د "لِأَنَّهُ لَيْسَ لِلنِّسَاءِ إلخ" د الفاظو په څېر دي. په همدې وجه صاحب د هدايې د "بِهٰذَا اللَّفْظِ وَرَدَ الْحَدِيْثُ إلخ" په وينا سره خاموشي اختيار کړې ده.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چي په معتَـق کي د آزادونکي مالک (معتـق) له طرفه مالکيت او قوت پيدا کيږي. لهذا کوم ځای ته چي هم د آزادونکي مالک يا د آزادونکي ښځي د اعتاق اثر رسيږي، تر هغه ځايه به ولاء د مالک کيږي (په بله وينا دا چي کوم کس ته هم د مُعتِق يا مُعتِقه د اعتاق اثر رسيږي، د هغه ولاء د دوی کيږي)، برابره ده بلا واسطه وي لکه خپل معتَـق يا بالواسطه وي لکه د خپل معتَق معتَق.

لېکن په نسب کي دا قانون نه چلیږي، ځکه که څه هم د بچي په پیدایښت کي اصل کردار د مور دی، خو بیا هم د نسب دار ومدار پر فراش دی او د فراش مالک صرف خاوند دی، په همدې وجه شریعت د ثبوت نسب په هکله خاوند اصل گرځولی دی.

ولیس حکم إلخ: فرمایي په پورتني صورت کي یعني کله چي تر معتَق مخکي د هغه مالک (معتِق) مړ سي، نو په دې صورت کي د معتَق د میراث ټوله دار ومدار فقط د مالک پر ځامنو نه دی بلکي د مالک هر عصبه د هغه مستحق کیږي او دا استحقاق به د أقرب فالأقرب په اعتبار سره وي؛ ځکه په ولاء کي وارثت نه جاري کیږي او اصحاب الفروض ته له هغه څخه حصه نه ورکول کیږي، خو څوک چي د څومره درجې عصبه وي او په کومه توگه چي د چا نصرت او نژدېکت وي، په همغه اعتبار سره هغه ته له ولاء څخه حصه حاصلیږي، همدا وجه ده که آزادونکی مالک مړ سي او تر خپل شی پلار او ځوی پرېږدي، نو څرنگه چي د امام صاحب او امام محمد رَحِمَهُمَا الله په نېز د پلار په مقابله کي د ځوی عصوبت (عصبه والی) اقویٰ او اقرب دی، نو ځکه همدا ځوی به د خپل پلار د معتَق د ولاء حقداره وي. همدارنگه که آزادونکې مالکه (معتِقه) مړه سي او تر خپل شا ورور او ځوی پرېږدي، نو ورور ته د هغې د معتَق ولاء نه حاصلیږي، بلکي ځوی ته حاصلیږي؛ ځکه چي ځوی په عصبه والي کي اقویٰ او قرب دی، لېکن که هغه معتَق جنایت وکړي، نو د هغه دیت (د مړه سوي معتِقه) پر ورور واجبیږي؛ ځکه چي د معتَق جنایت د معتقه د جنایت په درجه کي دی (یعني لکه آزادونکې مالکي چي جنایت کړی وي) او د معتقه د جنایت تاوان او دیت پر ورور او نژدې قریبانو واجب دی، نو ځکه د هغې د معتَق جنایت به هم پر ورور واجب وي.

ولوترك إلخ: د دې حاصل دا دی چي که آزادونکی مالک تر خپل شا ځوی او څو لمسیان (کوم چي د موجوده ځوی نه وي) پرېږدي، نو د معتَق د میراث استحقاق د ځوی دی، نه د لمسیانو (یعني هغه ځوی ته حاصلیږي. نه لمسیانو ته)؛ ځکه چي دغه استحقاق د قُرب او قرابت په وجه ثابت دی او ځوی د لمسیانو په نسبت خپل پلار ته ډېر قریب (نژدې) دی. همدا حکم له حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او داسي نورو صحابه وو څخه روایت سوی دی.



# فَصْلٌ فِيْ وَلَاءِ الْمَوَالَاةِ

(دا) فصل د ولاءِ موالات (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: "وَلَاءِ عتاقه" له "وَلَاءِ موالاة" څخه اقویٰ ده، ځکه چې په ولاءِ عتاقه کې فسخ او انتقال (تحویل) نه سي کېدلای، حال دا چې په ولاءِ موالاة کې فسخ او انتقال ممکن دی، نو ځکه اقویٰ مخکې کړی سوی دی او تر هغه وروسته ضعیف (ولاء موالاة) بیان کړی سوی دی، لکه څرنګه چې همدا قاعده او طریقه ده (چې اقویٰ تر ضعیف مقدّم وي).

**فایده**: مخکې موږ ذکر کړه چې عقدِ موالاة دې ته ویل کیږي چې یو مجهولُ النسب سړی بل معروفُ النسب سړي ته ووایي چې " ته زما ولي يې! که چیري زه مړ سم نو زما میراث ستا دی او که زه جنایت او جرم وکړم نو د هغه دیت او تاوان پر تا دی" او دا بل معروفُ النسب سړی دغه خبره قبول کړي، نو دې ته عقد موالاة ویل کیږي، په دغه عقد کې موالات قبلونکي (یعني معروفُ النسب) سړي ته "مَوْلَى الْمَوَالَاةِ" او "أعلىٰ" ویل کیږي او موالات کونکي (مجهول النسب) کس ته "أسفل" ویل کیږي.

## د ولاءِ موالاة حکم او تفصیل

قَالَ: وَإِذَا أَسْلَمَ رَجُلٌ عَلَى يَدِ رَجُلٍ وَوَالَاهُ عَلَى أَنْ يَرِثَهُ وَيَعْقِلَ عَنْهُ إِذَا جَنَى فرمایي: او که یو سړی د بل سړي پر لاس اسلام راوړي او د هغه سره پر دې خبره عقدِ موالات وکړي چې هغه به د ده وارث کیږي او هغه به د ده دیت اداء کوي کله چې دئ جنایت وکړي أَوْ أَسْلَمَ عَلَى يَدِ غَيْرِهِ وَوَالَاهُ یا له هغه څخه بغیر د بل چا پر لاس اسلام راوړي فَالْوَلَاءُ صَحِيحٌ وَعَقْلُهُ عَلَى مَوْلَاهُ نو ولاء صحیح ده او د هغه دیت د هغه پر مولی [مولی الموالاة] لازم دی فَإِنْ مَاتَ وَلَا وَارِثَ لَهُ غَيْرُهُ او که چیري هغه موالات کونکی کس [نوی مسلمان] مړ سي او له مولی [مولی الموالاة] څخه بغیر د هغه بل هیڅ وارث نه وي فَمِيرَاثُهُ لِلْمَوْلَى نو د هغه میراث د مولیٰ لپاره دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْمُوَالَاةُ لَيْسَ بِشَيْءٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې موالات هیڅ شی نه دی لِأَنَّ فِيهِ إِبْطَالَ حَقِّ بَيْتِ الْمَالِ ځکه چې په عقد موالاة کې د بیتُ المال د حق باطلول سته وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ فِي حَقِّ وَارِثٍ آخَرَ په همدې وجه د بل وارث په حق

كي عقد موالات نه صحيح كيږي وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ عِنْدَهُ الْوَصِيَّةُ بِجَمِيعِ الْمَالِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْمُوصِي وَارِثٌ او په همدې وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ټول مال وصيت كول نه صحيح كيږي كه څه هم د هغه وصيت كونكي كس هيڅ وارث نه وي لِحَقِّ بَيْتِ الْمَالِ د بيتُ المال د حق په وجه وَإِنَّمَا يَصِحُّ فِي الثُّلُثِ [بلكي] وصيت صرف د مال په دريمه حصه كي صحيح كيږي وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَىٰ: ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ﴾ [سورة النساء: ٣٣] زمونږ دليل د الله تعالىٰ دا فرمان دى: "او هغه كسان چي ستاسي قسمونه [د هغوى په موالاة او دوستى سره] تړل سوي وي [يعني د كومو خلكو سره چي تاسو د موالاة عقد او تړون كړى وي] نو تاسي هغوى ته له ميراث څخه حصه وركوئ!" وَالْآيَةُ فِي الْمُوَالَاةِ او دا آيت د عقد موالاة په هكله [نازل سوى] دى وَسُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ أَسْلَمَ عَلَىٰ يَدِ رَجُلٍ آخَرَ وَوَالَاهُ او له نبي كريم ﷺ څخه د داسي سړي په هكله پوښتنه وسوه كوم چي د بل سړي پر لاس اسلام راوړي او د هغه سره عقد موالات وكړي فَقَالَ: «هُوَ أَحَقُّ النَّاسِ بِهِ مَحْيَاهُ وَمَمَاتَهُ» نو نبي ﷺ وفرمايل چي: "هغه سړى [مولى الموالاة] د ده زيات مستحق دى د ده د ژوندون او مړيني په حالت كي" وَهٰذَا يُشِيرُ إِلَى الْعَقْلِ وَالْإِرْثِ فِي الْحَالَتَيْنِ هَاتَيْنِ او دا په دغه دوو حالتونو كي د عقل [ديت] اداء كولو او وارث كېدلو ته اشاره كوي [يعني د نبي ﷺ دا فرمان و دې طرف ته اشاره كوي چي په ژوند كي به مولى الموالاة د هغه [موالات كونكي] ديت اداء كوي او تر مرګ وروسته مولى الموالاة د هغه د ميراث مستحق كيږي] وَلِأَنَّ مَالَهُ حَقُّهُ او ځكه چي د موالات كونكي [نوي مسلمان] مال د هغه خپل حق دى فَيَصْرِفُهُ إِلَىٰ حَيْثُ شَاءَ نو ځكه كوم طرف ته چي د ده خوښه وي صرفولاى يې سي وَالصَّرْفُ إِلَىٰ بَيْتِ الْمَالِ ضَرُورَةَ عَدَمِ الْمُسْتَحِقِّ او په بيتُ المال كي صرفول د مستحق كس د نشتوالي د ضرورت په خاطر وي [يعني په بيتُ المال كي هغه وخت د يو انسان د ميراث مال جمع كول كيږي، كله چي د هغه هيڅ مستحق نه وي] لَا أَنَّهُ مُسْتَحِقٌّ داسي نه ده چي بيتُ المال مستحق دى.

**اللغات:** ﴿أسلم﴾ د افعال د باب ماضي ده: اسلام راوړل، مسلمان كېدل. ﴿والاه﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده. وَالَىٰ يُوَالِيْ مُوَالَاةً: دوستي او ملګري كول، نصرت او مدد كول، د ولاء تعلق قائمول، عقد موالاة كول. ﴿جنى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جنايت كول، جرم كول. ﴿آتوا﴾ د ضرب (أَتَىٰ يَأْتِيْ) له

بله د جمع مذکر امر حاضر صیغه ده په معنیٰ سره دور کولو. ﴿محیا﴾ ژوندون. ﴿ممات﴾ مرینه، مرګ. ﴿عقل﴾ د ضرب د باب مصدر دی چې د هغه یوه معنیٰ ده: دیت اداء کول. عاقله کېدل (یو څوک عاقله ګرځېدل). ﴿إرث﴾ دا هم د ضرب د باب مصدر دی: وارث کېدل. وارث جوړېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې نعمان د خالد پر لاس اسلام راوړی او د هغه په ذریعه په اسلام سره مشرف سو. بیا نعمان د خالد یا د بل چا سره عقد موالات وکړی چې "که زه مړ سوم نو زما میراث ستا دی او که ما جنایت وکړی، د هغه دیت به ته ورکوې!"، نو زموږ په نېز دغه عقد موالات (د تعاون او قرابت تړون) صحیح او جائز دی او د عقد موالات پر حکم او مُوجب په عمل کولو سره به د موالات کونکي کس (نُعمان) دیت د هغه پر مولیٰ (خالد) لازم وي او کله چې هم موالات کونکی کس مړ سي نو سمدستي به مولیٰ د هغه د میراث مستحق کیږي. د "أَسْلَمَ عَلَىٰ يَدِ غَيْرِهِ" مطلب دا دی چې د مذکوره حکم لپاره د یو چا پر لاس اسلام راوړل ضروري نه دي، بلکې عقد موالات کول اصل دي، لهذا د هر چا سره چې عقد موالات وسي، د هغه په حق کې دا حکم ثابتیږي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز عقد موالات لره هېڅ حیثیت نسته او په دې عقد سره نه پر مولیٰ (مولی الموالاة) دیت واجبیږي او نه هغه د موالات کونکي کس د میراث مستحق کیږي؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د لا وارثه مسلمان وارث بیتُ المال دی او د عقد موالات په جائز ګرځولو کې د بیتُ المال د حق باطلول لازمیږي، نو ځکه دا عقد صحیح نه دی، په همدې وجه نه د یو وارث په حق کې داسې کول صحیح دي او نه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ټوله مال وصیت کول صحیح دي، که څه هم د موصي (وصیت کونکي کس) هېڅ وارث نه وي؛ ځکه چې په دغو صورتونو کې هم د بل (یعني د بیتُ المال) د حق باطلول لازمیږي.

ولنا إلخ: زموږ اول دلیل دا آیت دی: ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ﴾، دا آیت د عقد موالات په هکله وارد سوی دی؛ ځکه چې د دې آیت اوله حصه "وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ" پر همدې خبره دلیل ده.

دویم دلیل دا دی چې کله د نبي کریم ﷺ څخه د عقد موالات کونکي په هکله پوښتنه وسوه، نو نبي ﷺ وفرمایل "هُوَ أَحَقُّ النَّاسِ بِهِ مَحْيَاهُ وَمَمَاتُهُ" چې د موالات کونکي کس مولیٰ د هغه په ژوند کې د هغه د دیت اداء کولو او تر مرګ وروسته د هغه د میراث اخیستلو زیات مستحق دی. په دې سره هم د عقدِ موالات جواز او نفاذ ښکاره کیږي.

درېيم او عقلي دليل دا دی چي موالات کونکی کس د خپل مال مالک دي او په خپل مال کي هغه ته د هر تصرف کولو حق او اختيار سته (چي څرنګه د ده خوښه وي، هغسي تصرّف پکښي کولای سي).
پاته سوه دا مسئله چي په دغه عقد سره د بيتُ المال د حق باطلول لازميږي، نو دا موږ نه تسليمو؛ ځکه چي بيتُ المال ته رجوع کول بالکل په آخري درجه کي دي، کنې تر څو چي د مال مالک ژوندی وي، تر هغه وخته ده ته په خپل مال کي د هر ډول تصرف کولو اختيار دی او د هغه هر تصرف نافذيږي، او دغه تصرف که څوک ابطال ګڼي، نو په دې کي زموږ څه قصور دی !؟. (احسن الهدايه)

## په موالات کي د درجو اعتبار

قَالَ: وَإِنْ كَانَ لَهُ وَارِثٌ فرمايي: او که د هغه [موالات کونکي (اسفل)] بل وارث هم وي فَهُوَ أَوْلَى مِنْهُ نو هغه له مولیٰ [مولی الموالاة] څخه زيات مستحق [مخکي] دی وَإِنْ كَانَتْ عَمَّةٌ أَوْ خَالَةٌ أَوْ غَيْرُهُمَا مِنْ ذَوِي الْأَرْحَامِ که څه هم وارث امه يا خاله وي يا له دوی څخه بغير بل ذي رحم محرم وي لِأَنَّ الْمُوَالَاةَ عَقْدُهُمَا ځکه چي موالاة د دوی دواړو خپل عقد دی فَلَا يَلْزَمُ غَيْرَهُمَا نو ځکه له دوی څخه بغير پر بل چا به نه لازميږي وَذُو الرَّحِمِ وَارِثٌ او ذو رحم محرم وارث دی وَلَا بُدَّ مِنْ شَرْطِ الْإِرْثِ وَالْعَقْلِ او [په عقد موالات کي] د وارث کېدلو او ديت اداء کولو شرط لګول ضروري دي كَمَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ لکه څرنګه چي په قدوري کي ذکر سوي دي لِأَنَّهُ بِالِالْتِزَامِ ځکه چي هغه [يعني إرث او عقل] پر ځان په لازمولو سره ثابتيږي وَهُوَ بِالشَّرْطِ او دا [التزام] په شرط سره کيږي [يعني پر ځان يا پر بل چا هغه وخت يو شی لازمول کېدای سي کله چي د هغه شي شرط ولګول سي] وَمِنْ شَرَائِطِهِ أَنْ لَا يَكُونَ الْمَوْلَى مِنَ الْعَرَبِ او د عقد موالات له شرطونو څخه دا هم دي چي موالات کونکی کس [اسفل] به له عربو څخه نه وي لِأَنَّ تَنَاصُرَهُمْ بِالْقَبَائِلِ ځکه چي د عربو تناصر [خپل مينځوی مدد] د قبايلو په ذريعه وي فَأَغْنَى عَنِ الْمُوَالَاةِ نو دې له موالاة څخه استغناء پيدا کړه [يعني د قبائلو په ذريعه د تناصر کېدلو په وجه موالاة ته ضرورت پاته نه سو] قَالَ: وَلِلْمَوْلَى أَنْ يَنْتَقِلَ عَنْهُ بِوَلَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ مَا لَمْ يَعْقِلْ عَنْهُ فرمايي: او موالات کونکي کس [اسفل] لره دا اختيار سته چي خپله ولاء بل چا ته منتقل کړي [په دې شرط] تر څو چي مولی الموالاة [اعلیٰ] د هغه له طرفه ديت اداء کړی نه وي لِأَنَّهُ عَقْدٌ غَيْرُ لَازِمٍ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ ځکه چي د وصيت په څېر عقد موالات هم غير لازم عقد دی وَكَذَا لِلْأَعْلَى أَنْ يَتَبَرَّأَ عَنْ وَلَائِهِ او همدارنګه اعلیٰ

[مولى الموالاة] لره دا اختيار سته چي د هغه له ولاء څخه برائت [بېزاري] ښكاره كړي [يعني عقد موالاة فسخ كړي] لِعَدَمِ اللُّزُومِ ځكه چي دا عقد لازم نه دی إِلَّا أَنَّهُ يُشْتَرَطُ فِي هٰذَا أَنْ يَكُونَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الْآخَرِ لېكن په دې [د موالاة په فسخ كولو] كي دا شرط دي چي دا كار [فسخ كول] به د بل عاقد په موجوديت كي وي كَمَا فِي عَزْلِ الْوَكِيلِ قَصْدًا لكه څرنګه چي د بالقصد وكيل په معزولتيا كي كيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا عَقَدَ الْأَسْفَلُ مَعَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْأَوَّلِ په خلاف د هغه صورت كله چي اسفل [موالات كونكى] د اعلىٰ په ناموجوديت كي د بل چا سره عقدِ موالات وكړي [نو دا جائز دي] لِأَنَّهُ فَسْخٌ حُكْمِيٌّ بِمَنْزِلَةِ الْعَزْلِ الْحُكْمِيِّ فِي الْوَكَالَةِ ځكه دا حكمي فسخ ده كوم چي په وكالت كي د حكمي عزل [معزوله كېدلو] په درجه كي ده قَالَ: وَإِذَا عَقَلَ عَنْهُ فرمايي: او كله چي اعلىٰ د اسفل له طرفه ديت اداء كړي لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَتَحَوَّلَ بِوَلَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ نو [بيا] اسفل لره دا اختيار نسته چي خپله ولاء بل چا ته منتقل كړي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْغَيْرِ ځكه چي [اوس] د ولاء سره د بل چا [يعني د اعلىٰ (مولى الموالاة)] حق متعلق سو وَلِأَنَّهُ قَضَى بِهِ الْقَاضِيْ او ځكه چي قاضي د هغه فيصله وكړه وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ عِوَضٍ نَالَهُ او ځكه چي ديت اداء كول د عوض په درجه كي دي كوم چي اسفل حاصل كړی كَالْعِوَضِ فِي الْهِبَةِ لكه څرنګه چي د هبې عوض دی وَكَذَا لَا يَتَحَوَّلُ وَلَدُهُ او همدارنګه د هغه بچی هم [له اعلىٰ څخه د بل چا وطرف ته] نه سي منتقل كېدای وَكَذَا إِذَا عَقَلَ عَنْ وَلَدِهِ او همدارنګه كله چي اعلىٰ د هغه [اسفل] د بچي له طرفه ديت اداء كړي لَمْ يَكُنْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَتَحَوَّلَ نو له دوی دواړو [اسفل او بچي] څخه يوه ته دا اختيار نسته چي منتقل سي لِأَنَّهُمَا فِي حَقِّ الْوَلَاءِ كَشَخْصٍ وَاحِدٍ ځكه چي دوی دواړه د ولاء په حق كي د يوه كس په څېر دي قَالَ: وَلَيْسَ لِمَوْلَى الْعَتَاقَةِ أَنْ يُوَالِيَ أَحَدًا فرمايي: او مولى العتاقه لره دا اختيار نسته چي د يو چا سره عقد وكړي لِأَنَّهُ لَازِمٌ ځكه چي ولاء عتاقه لازمه ده وَمَعَ بَقَائِهِ لَا يَظْهَرُ الْأَدْنٰى او د ولاء عتاقه د پاته والي [موجوديت] سره ادنىٰ نه سي ښكاره كېدای.

**اللغات:** ﴿عقل﴾ د دې تعريف د تېر عبارت په لغاتو كي ذكر سو. ﴿التزام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پر ځان يو شی لازمول. په خپله غاړه (پر خپله ذمه) اخيستل. ﴿تناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر

دی: يو دبل مرسته كول، تعاون كول، ﴿يتبرء﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: بېزاره كېدل، برائت اختيارول، بري كېدل، ﴿نال﴾ د فتح د باب ماضي ده: حاصلول، ترلاسه كول، ﴿يتحوّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: له يوه حال څخه بل حال ته نقل كېدل (منتقل كېدل)، اوښتل، ﴿يُوالي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: د موالات عقد كول، ﴿محضر﴾ حضور (حاضر والى) موجوديت (موجودګي).

**تشريح**: فرمايي كه چيري د اسفل كس يعني د موالات كونكي كس يو وارث موجود وي، برابره ده هغه صاحب فرض وي او كه ذو رحم محرم وي مثلاً امه يا خاله وي، نو هغه وارث د ده له مولىٰ (مولى الموالاة) څخه مخكي دی، يعني ميراث به هغه ته وركول كيږي، مولىٰ ته به نه وركول كيږي؛ ځكه چي عقد موالات دوی دواړو په خپل مينځ كي (په خپله، خپله توګه) كړی دی، نو دا عقد صرف د دوی لپاره دی او پر بل چا (بل وارث) نه لازميږي، يعني دوی په دې سره د بل وارث حق له منځه نه سي وړلای.

ولابد من شرط الإرث إلخ: په عقد موالات كي د ميراث او عقل (ديت) اداء كولو شرط لګول ضروري دي. لكه څرنګه چي په مختصر القدوري كي ذكر سوي دي "بأن يقول: واليتك عَلىٰ أَنِّيْ إِنْ جَنَيْتُ عَقَلْتَ عَنِّيْ وَإِنْ جَنَيْتَ عَقَلْتُ عَنْكَ وَإِنْ مِتُّ وَرِثْتَنِيْ وَإِنْ مِتَّ وَرِثْتُكَ". وجه يې دا ده چي ميراث او عقل (ديت) صرف هغه وخت لازميږي كله چي هغوی پر خپل ځان لازم كړی سي، او دا لزوم په شرط سره حاصليږي.

ومن شرطه أن لايكون إلخ: د عقد موالات له شرطونو څخه يو شرط دا هم دی چي موالات كونكی كس به له عربو څخه نه وي؛ ځكه چي د عربو تناصر (يو د بل نصرت او مدد كول) د قبائلو يعني د خاندان او نژدې قريبانو په ذريعه كيږي، نو د موالات ته د هغوی هيڅ ضرورت نسته، ځكه چي د نصرت موالاة په نسبت تناصر بالقبائل زيات مؤكد دی.

**فايده**: د عقد موالات لپاره څو شرطونه دي: (۱) موالات كونكی كس به مجهولُ النسب وي (لكه د كتاب الولاء په شروع كي چي مورډ ذكر كړه) يعني د يو چا وطرف ته به هغه منسوب نه وی، او پاته سو د هغه وطرف ته د بل چا منسوب كېدل، نو دا له موالات څخه مانع نه دي، (۲) د موالات كونكي كس لپاره به ولاء عتاقه نه وي او نه به يې د يو چا سره ولاء موالات وي، (۳) هغه به له اهل عربو څخه نه وي، (۴) په عقد موالات كي به ميراث (ارث) او عقل ذكر كړل سوي وي، (۵) دواړه عاقدين به عاقل، بالغ او آزاد وي.

وللمولى أن ينتقل إلخ: د موالات كونكي كس (اسفل) لپاره دا جائز دي چي د كوم سړي (مولىٰ الموالاة) سره چي هغه موالات كړی وي، د هغه له موالات څخه منع سي او د بل چا سره عقد موالات وكړي، په دې شرط چي اول مولىٰ (مولى الموالاة) د هغه ديت اداء كړی نه وي؛ ځكه چي د وصيت په توګه دغه عقد هم لازمي نه دی، د

همدې عدم لزوم په وجه اعلیٰ (مولی الموالاة) دا عقد پرېښوولای سي. په دې شرط چې دا پرېښوول (فسخ کول) د بل عاقد (اسفل) په موجودیت کي وي، لکه کله چې مؤکل خپل وکیل قصداً معزوله کړي. نو د وکیل موجودېدل او په خپل عزل خبرېدل ضروري دي. نو همداسي د عقد موالاة د پرېښوولو او فسخ کولو په صورت کي هم د موالات کونکي کس موجودېدل ضروري دي. ها! که چېري موالات کونکی کس (اسفل) د مولی الموالاة (اعلیٰ) له خبرولو څخه بغیر د بل چا سره موالاة رکړي، نو دا جائز دي؛ ځکه چې دا حکمي فسخ ده. لکه یو سړی چې د یو شي د رانیولو یا خرڅولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي. بیا هغه سړی (مؤکل) په خپله هغه شی رانیسي یا یې خرڅ کړي، نو وکیل حکماً معزوله کېږي، او د حکمي فسخ لپاره د بل فریق موجودېدل ضروري نه دي.

وإذا عقل عنه إلخ: که چېري مولی الموالاة د موالات کونکي کس (اسفل) له طرفه دیت اداء کړي. نو په دې صورت کي موالات کونکي کس (اسفل) ته دا حق نسته چې خپل ولاء بل چا ته منتقل کړي او د بل چا سره عقد موالاة وکړي (لنډه دا چې په دې صورت کي یوه عاقد ته هم د عقد موالاة د فسخ کولو اختیار نسته)، بلکي د آینده لپاره د هغه اولاد هم بل چا ته نه سي منتقل کېدای او له دغه ولاء څخه مخ نه سي اړولای؛ ځکه چې په دې صورت کي د هغه سره د بل چا (یعني د مولی الموالاة) حق متعلق سو، او ځکه چې قاضي پر مولی الموالاة د عقل (دیت) حکم او فیصله کړې ده یعني هغه یې عاقله ګرځولی دی، او ځکه چې دیت اداء کول د عوض په څېر دي کوم چې موالاة کونکي (اسفل) ته حاصل سو. نو په دې وجهو سره په پورتني صورت کي د عقد موالاة د فسخ کولو اختیار نسته. لکه څرنګه چې د هبه کړی سوي شي د عوض د اخیستلو په صورت کي په هبه کي رجوع کي نه سي کېدای (مثلا که خالد و زید ته یو شی هبه کړي او زید خالد ته د هغه شي عوض ورکړي، نو تر دې وروسته واهب [خالد] له زید څخه خپل هبه کړی سوی شی نه سي اخیستلای). او بچیان (اولاد) په دې وجه له دغه ولاء څخه مخ نه سي اړولای، ځکه چې د ولاء په حق کي موالات کونکی (اسفل) او د هغه بچیان (همدارنګه مولی الموالاة او د هغه بچیان) ټوله د یوه کس په درجه کي دي. (اشرف الهدایه)

ولیس لمولی العتاقة إلخ: د دې حاصل دا دی چې مولی العتاقه د یو چا سره عقد موالاة نه سي کولای؛ ځکه چې ولاء عتاقه له ولاء موالات څخه اقویٰ ده او ولاء عتاقه لازمه ده کوم چې بالکل د فسخ کېدلو او ماتېدلو احتمال نه لري، نو ځکه د ولاء عتاقه په وجود کي ادنیٰ (ولاء موالاة) نه سي ښکاره کېدای (او بل دا چې کله مولی العتاقه ته اقویٰ ولاء حاصلیږي، نو په ادنیٰ ولاء پسي ځان سترړي کول پکار نه دي. کنې دا به حماقت او نا پوهي وي (احسن الهدایه)). والله أعلم وعلمهٗ أتم



# كِتَابُ الْإِكْرَاهِ

(دا) کتاب د اکراه (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: له "كتابُ الولاء" څخه وروسته متصلاً د "كتابُ الإكراه" د بیانولو وجه دا ده چې په ولاء او اکراه دواړو کې تغیّر او تبدل راځي، مثلاً په ولاء کې د اسفل (موالات کوونکي) تر مرګ وروسته د اعلیٰ (مولی الموالاة) لپاره د هغه مال خوړل روا کیږي، حال دا چې له ولاء څخه مخکې د اعلیٰ لپاره د اسفل مال حرام وي، همدغه ډول په اکراه کې د مُکْرَه رضا او خوښې په مجبورۍ او ناخوښۍ سره بدلیږي، نو ځکه یو له بل څخه وروسته (پرلپسې) بیان کړی سوي دي، خو ځرنګه چې ولاء او عقد موالات مشروع او مستحسن دي، نو ځکه کتاب الولاء له کتاب الاکراه څخه مخکې کړی سوی دی.
(احسن الهدایه)

**د اکراه لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د اکراه لغوي معنیٰ ده: مجبوره کول، په زوره کار په کول (په یو چا هغه له رضا او خوښې څخه بغیر کار کول). څوک چې پر کار کولو مجبوره کړی سي هغه ته مُکْرَه ویل کیږي او څوک چې هغه مجبوره کړي (په زوره کار په وکړي) هغه ته مُکْرِه ویل کیږي.

د شریعت په اصطلاح کې د اکراه معنیٰ ده "اِسْمٌ لِفِعْلٍ يَفْعَلُهُ الْمَرْءُ بِغَيْرِهِ فَيَنْتَفِيْ بِهِ رِضَاهُ أَوْ يَفْسُدُ بِهِ اِخْتِيَارُهُ مَعَ بَقَاءِ أَهْلِيَّتِهِ" (یعني اکراه هغه فعل [کار] ته وایي کوم چې یې انسان د بل چا په سبب [د بل چا له بیرې] په داسې توګه وکړ چې په هغه کې د ده رضا ختمه سي یا د ده اختیار له منځه لاړ سي، لیکن په ده کې [د اختیار] اهلیت باقي پاته وي). دا تعریف صاحب د هدایې کړی دی.

صاحب د تعریفات جرجاني د اکراه اصطلاحي تعریف داسې ذکر کړی دی: "حَمْلُ الْغَيْرِ عَلَى مَا يَكْرَهُهُ بِالْوَعِيْدِ وَالْإِلْزَامِ وَالْإِجْبَارِ عَلَى مَا يَكْرَهُ الْإِنْسَانُ طَبْعًا أَوْ شَرْعًا، فَيَقْدُمُ عَلَى عَدَمِ الرِّضَاءِ لِيَرْفَعَ مَا هُوَ أَضَرُّ".

صاحب د معجم لغة الفقهاء د هغه تعریف داسې لیکلی دی "حَمْلُ إِنْسَانٍ عَلَى فِعْلٍ أَوْ عَلَى امْتِنَاعٍ عَنْ فِعْلٍ بِغَيْرِ رِضَاهُ بِغَيْرِ حَقٍّ".

## د اكراه حكم كله ثابتيږي او د اكراه نور تفصيل

قَالَ: اَلْإِكْرَاهُ يَثْبُتُ حُكْمُهُ إِذَا حَصَلَ مِمَّنْ يَقْدِرُ عَلَى إِيْقَاعِ مَا يُوْعِدُ بِهِ سُلْطَانًا كَانَ أَوْ لِصًّا فرمايي: دا كراه حكم هغه وخت ثابتيږي كله چي اكراه له داسي كس څخه صادر سي كوم چي قدرت لري د هغه څه پر واقع كولو [پوره كولو] د كوم چي هغه دمكي وركوي، برابره ده هغه باچا وي او كه غل وي لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ اِسْمٌ لِفِعْلٍ يَفْعَلُهُ الْمَرْءُ بِغَيْرِهِ فَيَنْتَفِي بِهِ رِضَاهُ أَوْ يَفْسُدُ بِهِ اخْتِيَارُهُ مَعَ بَقَاءِ أَهْلِيَّتِهِ ځكه اكراه هغه فعل ته ويل كيږي كوم چي يې انسان د بل چا په سبب [يعني د بل چاله بيري] كوي چي په هغه كي د ده رضا ختمه سي يا په هغه كي د ده اختيار خراب سي، سره د هغه د اهليت پاتېدلو ايعني په هغه سره د ده اهليت ختم نه سي] وَهٰذَا إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ إِذَا خَافَ الْمُكْرَهُ تَحْقِيقَ مَا يُوْعَدُ بِهِ او دا [اكراه] په هغه صورت كي ثابتيږي كله چي مُكرَه ته د هغه شي د حقيقتاً واقع كېدلو [رښتيا كېدلو] بيره وي چي په هغه سره ده ته دمكي وركول سوې وي وَذٰلِكَ إِنَّمَا يَكُوْنُ مِنَ الْقَادِرِ او دا بيره له قدرت من كس څخه كېداى سي وَالسُّلْطَانُ وَغَيْرُهُ سِيَّانِ عِنْدَ تَحَقُّقِ الْقُدْرَةِ او د قدرت ثابتېدلو په وخت كي باچا او غير باچا دواړه سره برابر دي وَالَّذِي قَالَهُ أَبُوْ حَنِيْفَةَ: إِنَّ الْإِكْرَاهَ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا مِنَ السُّلْطَانِ لِمَا أَنَّ الْمَنَعَةَ لَهُ او امام صاحب رَحِمَهُ الله چي كوم دا فرمايلي دي: چي اكراه صرف د باچا له طرفه ثابتېداى سي، هغه په دې وجه چي دفاع كونكي كسان [سپاهيان] د باچا سره وي وَالْقُدْرَةُ لَا يَتَحَقَّقُ بِدُوْنِ الْمَنَعَةِ او له دفاع كونكو [سپاهيانو] څخه بغير قدرت نه سي ثابتېداى فَقَدْ قَالُوْا: هٰذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ لَا اخْتِلَافُ حُجَّةٍ وَبُرْهَانٍ او مشايخو رَحِمَهُمُ الله ويلي دي: چي دا صرف د وخت او زمانې اختلاف دى، نه د دليل او برهان اختلاف [او د دې سره د حجت او دليل هيڅ تعلق نسته] وَلَمْ تَكُنِ الْقُدْرَةُ فِي زَمَنِهِ إِلَّا لِلسُّلْطَانِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په زمانه كي صرف باچا ته قدرت حاصل وو ثُمَّ بَعْدَ ذٰلِكَ تَغَيَّرَ الزَّمَانُ وَأَهْلُهُ بيا تر هغه وروسته زمانه او د زمانې خلك بدل سول ثُمَّ كَمَا تُشْتَرَطُ قُدْرَةُ الْمُكْرِهِ لِتَحَقُّقِ الْإِكْرَاهِ يُشْتَرَطُ خَوْفُ الْمُكْرَهِ وُقُوْعَ مَا يُهَدَّدُ بِهِ بيا چي څرنګه د اكراه ثابتېدلو لپاره د مُكرِه [زور چلونكي] قادر كېدل شرط دى همداسي د دمكي وركول سوي شي له واقع كېدلو څخه د مكره بيرېدل [خائف كېدل] شرط دي وَذٰلِكَ بِأَنْ يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّهُ يَفْعَلُهُ او دا په دې توګه [يعني د بيرېدلو مطلب دا

دی؛ چې د مُکرَه غالب ګومان دا سي چې مُکرِه به داسي وکړي لِيَصِيْرَبِهِ مَحْمُوْلًا عَلٰى مَا دُعِيَ إِلَيْهِ مِنَ الْفِعْلِ د دې لپاره چې مُکرَه د هغه کار پر کولو مجبوره وګرځي کوم ته چې بلل سوی دی.

**اللغات:** ﴿إِكراه﴾ د افعال د باب مصدر دی: مجبوره کول، په زوره کار په کول. ﴿يوعد﴾ د افعال د باب مضارع ده، د دې باب دوې معناوي دي: ① وعده کول، ② دمکي ورکول، تهديدول، ډارول. ﴿ينتفي﴾ د افتعال د باب مضارع ده: ختمېدل، منعدم کېدل. ﴿تحقيق﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: حقيقت کول (رښتيا کول)، ټينګکار کول، ثابتول. ﴿سِيَّانِ﴾ تثنيه د السِيُّ ده: هم مثل، سره برابره، سره ورته (مصباح اللغات، معجم الوسيط). ﴿الْمَنَعَة﴾ (د نون په فتحه سره) جمع د مانع ده: منع کونکي، دفاع کونکي، سپاهي (عسکر). ﴿هدّد﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: دمکي ورکول، ډارول، بېرول (وار خطا کول). ﴿محمول﴾ پارول سوی، مجبور.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو له ترجمې څخه ښکاره دی، بس فقط دومره ياد ساتل ضروري دي چې اکراه په همغه صورت کي متحقق کيږي، کله چې مُکرِه د ورکول سوي دمکۍ په پوره کولو باندي قادر وي او د مُکرَه په زړه کي دا بېره او انديښنه وي چې که زه د هغه خبر نه ومنم، نو هغه به خپل دمکي پوره کړي او زما کار به تمام کړي. له دواړو طرفونو څخه چې کله دغه دواړه شرطونه موجود سي، نو اکراه ثابتيږي او پر هغه د اکراه حکم مُرتّب کيږي. (احسن الهدايه)

## که څوک د خپل مال يا سامان پر خرڅولو يا رانيولو يا پر نا حقه اقرار کولو مجبوره کړی سي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا أُكْرِهَ الرَّجُلُ عَلٰى بَيْعِ مَالِهِ أَوْ عَلٰى شِرَاءِ سِلْعَةٍ أَوْ عَلٰى أَنْ يُقِرَّ لِرَجُلٍ بِأَلْفٍ أَوْ يُؤَاجِرَ دَارَهُ فرمايي: او کله چې يو سړی د خپل مال پر خرڅولو يا د يو سامان پر رانيولو مجبوره کړی سي يا پر دې [مجبوره کړی سي] چې د يو چا لپاره د زرو درهمو اقرار وکړي يا خپل کور په کرايه ورکړي وَأُكْرِهَ عَلٰى ذٰلِكَ بِالْقَتْلِ أَوْ بِالضَّرْبِ الشَّدِيْدِ أَوْ بِالْحَبْسِ او هغه په قتل يا سخت وهلو يا بندي کولو [په دمکۍ] سره پر دغه کارونو مجبوره کړی سي فَبَاعَ أَوِ اشْتَرٰى بيا هغه [مجبور کړی سوی کس] خرڅول او رانيول وکړي فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَمْضَى الْبَيْعَ وَإِنْ شَاءَ فَسَخَهُ وَرَجَعَ بِالْمَبِيْعِ نو هغه ته اختيار دی که وغواړي نو بيع دي نافذ کړي او که وغواړي نو بيع دي فسخ کړي او مبيع دي واپس واخلي لِأَنَّ

مِنْ شَرْطِ صِحَّةِ هٰذِهِ الْعُقُودِ التَّرَاضِيْ ځکه چې د دغه عقدونو د صحيح کېدلو شرط تراضي [د دواړو عاقدينو رضا] ده قَالَ اللهُ تَعَالٰى: ﴿إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ﴾ [النساء: ۲۹] وَالْإِكْرَاهُ بِهٰذِهِ الْأَشْيَاءِ يُعْدِمُ الرِّضَاءَ او پر دغه شيانو [او کارونو] مجبوره کول رضا ختموي فَيَفْسُدُ نو ځکه به دا عقدونه فاسديږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أُكْرِهَ بِضَرْبِ سَوْطٍ أَوْ حَبْسِ يَوْمٍ أَوْ قَيْدِ يَوْمٍ په خلاف د هغه صورت کله چې د يوې درې په وهلو يا د يوې ورځې په بندي کولو [منع کولو] يا د يوې ورځې په قيدولو [ترلو] سره مجبوره کړی سي لِأَنَّهُ لَا يُبَالِيْ بِهِ بِالنَّظَرِ إِلَى الْعَادَةِ ځکه چې عادتا [او عرفا] په دې پرواه نه کيږي فَلَا يَتَحَقَّقُ بِهِ الْإِكْرَاهُ نو ځکه په دې سره به اکراه نه ثابتيږي إِلَّا إِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَاحِبَ مَنْصِبٍ يَعْلَمُ أَنَّهُ يَسْتَضِرُّ بِهِ مګر دا چې مجبور کړی سوی سړی د يو منصب [رتبې] خاوند وي او هغه ته دا معلومه سي چې په دې [يوې درې او داسي نورو] سره هم هغه ته ضرر رسيږي [نو اکراه ثابتيږي] لِفَوَاتِ الرِّضَاءِ ځکه چې رضا فوت سوه وَكَذَا الْإِقْرَارُ حُجَّةٌ او همدارنګه اقرار هم حجت دی لِتَرَجُّحِ جَنْبَةِ الصِّدْقِ فِيهِ عَلٰى جَنْبَةِ الْكَذِبِ ځکه چې [په اقرار کي] د رښتيا والي اړخ د درواغو پر اړخ غالب وي وَعِنْدَ الْإِكْرَاهِ يَحْتَمِلُ أَنَّهُ يَكْذِبُ لِدَفْعِ الْمَضَرَّةِ خو د اکراه [مجبوره کولو] په وخت کي دا احتمال پيدا کيږي چې مُکرَه له ځان څخه د ضرر ليري کولو په خاطر درواغ وايي ثُمَّ إِذَا بَاعَ مُكْرَهًا وَسَلَّمَ مُكْرَهًا بيا چې کله مُکرَه [مجبور کړی سوی کس] د اکراه په حالت کي [خپل مال] خرڅ کړي او د همدې اکراه په حالت کي يې [مشتري ته] وسپاري يَثْبُتُ بِهِ الْمِلْكُ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز په دې ورسپارلو سره [د مشتري] ملکيت ثابتيږي وَعِنْدَ زُفَرَ لَا يَثْبُتُ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز نه ثابتيږي لِأَنَّهُ بَيْعٌ مَوْقُوفٌ عَلَى الْإِجَازَةِ ځکه چې د مُکرَه بيع [د هغه] پر اجازت موقوف ده أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ أَجَازَ آيا ته نه ګورې! چې که مُکرَه اجازت ورکړي جَازَ نو بيع جائز کيږي وَالْمَوْقُوفُ قَبْلَ الْإِجَازَةِ لَا يُفِيدُ الْمِلْكَ او "بيع موقوف" [موقوفه بيع] تر اجازت مخکي ملکيت نه فايده کوي وَلَنَا: أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ مُضَافًا إِلٰى مَحَلِّهِ زموږ دليل دا دی: چې د بيع رکن له خپل اهل [عاقل، بالغ] څخه صادر سوی دی په داسي حال کي چې د خپل محل [مال] وطرف ته منسوب سوی دی وَالْفَسَادُ لِفَقْدِ شَرْطِهِ

وَهُوَ التَّرَاضِي او [د بيع] فساد د هغه د شرط يعني د تراضي د نا موجودېدلو په وجه دی [يعني د عقد د صحت چې کوم شرط دی يعني تراضي، هغه موجود نه دی] فَصَارَ كَسَائِرِ الشُّرُوطِ الْمُفْسِدَةِ نو دا شرط د نورو مفسدو شرطونو په شير سو فَيَثْبُتُ الْمِلْكُ عِنْدَ الْقَبْضِ نو ځکه د قبضې په وخت کې به ملکيت ثابتيږي حَتَّى لَوْ قَبَضَهُ وَأَعْتَقَهُ أَوْ تَصَرَّفَ فِيهِ تَصَرُّفًا لَا يُمْكِنُ نَقْضُهُ تر دې چې که مشتري پر غلام قبضه وکړي او هغه آزاد کړي يا په هغه کې يو داسي تصرف وکړي چې د هغه ماتول [فسخ کول] ممکن نه وي جَازَ نو بيع جائز کيږي وَيَلْزَمُهُ الْقِيمَةُ او پر مشتري قيمت لازميږي كَمَا فِي سَائِرِ الْبِيَاعَاتِ الْفَاسِدَةِ لکه په نورو فاسده بيوعو کې چې کيږي وَبِإِجَازَةِ الْمَالِكِ يَرْتَفِعُ الْمُفْسِدُ وَهُوَ الْإِكْرَاهُ وَعَدَمُ الرِّضَاءِ او د مالک په اجازت سره مُفسِد [فاسدونکی سبب] يعني اکراه او نا راضي ختميږي فَيَجُوزُ نو ځکه دا بيع به جائز کيږي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَنْقَطِعُ بِهِ حَقُّ اسْتِرْدَادِ الْبَائِعِ مگر د دې اکراه په سبب سره د بائع [مُکرَه] د استرداد [واپس اخيستلو] حق نه ختميږي وَإِنْ تَدَاوَلَتْهُ الْأَيْدِي وَلَمْ يَرْضَ الْبَائِعُ بِذَلِكَ که څه هم هغه [مبيع] لاس په لاس واخيستل سي [يعني ډېر واره خرڅ کړل سي] بِخِلَافِ سَائِرِ الْبِيَاعَاتِ الْفَاسِدَةِ په خلاف د نورو فاسده بيوعو لِأَنَّ الْفَسَادَ فِيهَا لِحَقِّ الشَّرْعِ ځکه په هغوی کې چې کوم فساد دی هغه د شريعت د حق په وجه دی وَقَدْ تَعَلَّقَ بِالْبَيْعِ الثَّانِي حَقُّ الْعَبْدِ او د دويمي بيع سره د بنده حق متعلق سوی دی وَحَقُّهُ مُقَدَّمٌ او بنده حق مخکي دی [د الله او شريعت تر حق] لِحَاجَتِهِ ځکه چې بنده محتاج دی أَمَّا هٰهُنَا الرَّدُّ لِحَقِّ الْعَبْدِ ليکن دلته [د بيع] رد کېدل د بنده [مُکرَه بائع] د حق په وجه دي وَهُمَا سَوَاءٌ او دوی دواړه [يعني بائع اول او مشتري ثاني] سره برابر دي فَلَا يَبْطُلُ حَقُّ الْأَوَّلِ لِحَقِّ الثَّانِي نو ځکه د دويم د حق په وجه به د اول حق نه باطليږي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَمَنْ جَعَلَ الْبَيْعَ الْجَائِزَ الْمُعْتَادَ بَيْعًا فَاسِدًا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: او کومو حضراتو چې "بيع وفاء" بيع فاسد گرځولې ده يَجْعَلُهُ كَبَيْعِ الْمُكْرَهِ هغوی دا بيع [بيع وفاء] د مُکرَه د بيع په شير گرځوي حَتَّى يَنْتَقِضَ بَيْعُ الْمُشْتَرِي مِنْ غَيْرِهِ تر دې چې د بل چا سره د مشتري بيع به ماتول کيږي لِأَنَّ الْفَسَادَ لِفَوَاتِ الرِّضَاءِ ځکه چې [د مشتري] د بيع فساد د رضا فوتېدلو په وجه دی وَمِنْهُمْ مَنْ

جَعَلَهُ رَهْنًا او ځيني مشايخو دا بيع [بيع وفاء] رهن ګرځولې ده لِقَصْدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ د عاقدينو د قصد [ارادې] په وجه [ځکه که څه هم عاقدينو په ښکاره لفظو کې بيع ذکر کړې ده، لېکن د دوی مقصد او غرض رهن دی، لهذا دا چې دا بيع معناً رهن ده] وَمِنْهُمْ مَنْ جَعَلَهُ بَاطِلًا او ځيني مشايخو دا بيع باطل ګرځولې ده اعْتِبَارًا بِالْهَازِلِ پر هغه کس په قياس کولو سره کوم چې د مسخرو په توګه کار [عقد] کوي وَمَشَايِخُ سَمَرْقَنْدَ جَعَلُوهُ بَيْعًا جَائِزًا مُفِيدًا لِبَعْضِ الْأَحْكَامِ او د سمرقند مشايخو دا بيع جائز [او] د بعضې احکامو په حق کې يې مفيده ګرځولې ده عَلَىٰ مَا هُوَ الْمُعْتَادُ بناء پر هغه کوم چې عادت [او متعارف] دې لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چې دې بيع ته [هم] ضرورت سته.

**اللغات:** ﴿مَال﴾ هر هغه څه ته وايي کوم چې د انسان په ملکيت کې داخل وي (المال اسم لجميع ما يملکه الانسان)، او بل تعريف يې دا سوی دی چې هر هغه شی چې په هغه سره نفع اخيستل ممکن وي (چې شريعت په هغه سره نفع اخيستل روا کړې وي)، او هر هغه شی کوم چې په پيسو رانيول سوی وي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿سلعة﴾ سامان، هر هغه شی په کوم سره چې تجارت (کاروبار) کيږي، ﴿حبس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بندي کول، راګرځول، منع کول، ﴿أمضی﴾ د افعال د باب ماضي ده: باقي پرېښوول، نافذول، ﴿التراضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: (په يو شي) د دوو کسانو راضي کېدل (يو تر بله راضي کېدل)، د دواړو عاقدينو راضي کېدل، ﴿سوط﴾ له څرمني (چمړې) څخه جوړه يو اله، چې په هغه به مجرم ته سزا ورکول کېده، ﴿يستضر﴾ د استفعال مضارع ده: نقصان پورته کول، تاوان ور رسېدل، ﴿مضرة﴾ ضرر، نقصان، ﴿فَقْد﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نيستي کېدل، نه موجودېدل، ﴿تداولت﴾ د تفاعل له بابه د ماضي صيغه ده: لاس په لاس اخيستل (پرلپسې له يوه لاس څخه بل لاس ته تلل)، ﴿البياعات﴾ د خرڅولو او رانيولو معاملات، بيوع، ﴿هازل﴾ د ضرب د باب فاعل دی: ټوکي او مسخرې کونکی، د مسخرو په توګه يو کار کونکی (کوم چې يې حقيقي اراده نه لري).

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره ځان پوه کړئ! چې د فقه قاعده دا ده چې زموږ په نېز د مُكرَه تصرفات منعقد کيږي او په هغوی کوم چې تصرفات د فسخ احتمال لري، لکه بيع او اجاره، دا تصرفات لازم نه ګرځي او په کومو کې چې د فسخ امکان او احتمال نه وي، هغه لازم ګرځي، لکه طلاق، عتاق، تدبير، استيلاد او داسې نور.

**صورت د مسئلې**: دا دی که یو شوک د خپل مال پر خرڅولو یا د یو سامان پر رانیولو یا د یو چا لپاره د پیسو پر اقرار کولو یا په کرایه د خپل کور پر ورکولو د قتل یا سخت وهلو یا بندي کولو په دمکی سره مجبوره کړی سي، او بیا دغه مُکْرَه بیع و شراء وکړي، نو هغه ته اختیار دی که وغواړي، نو عقد دي باقي وساتي او که وغواړي، نو هغه دي فسخ کړي؛ ځکه چي د دغه عقدونو د صحت لپاره د دواړو عاقدَینو رضا شرط ده (لکه څرنګه چي دا آیت "إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ" پر دې ګواه دی) او د اکراه په صورت کي رضا معدومه وي، نو ځکه مُكْرَه ته به د عقد د نافذولو او نه نافذولو اختیار وي. ها! که چیري دمکي ډېره سخته نه وي، بلکي فقط د یوې یا دوو درو پر وهلو یا فقط د ورځ، دوو ورځو پر بندي کولو مشتمله وي، نو دا عقود نافذیږي او مُكرَه ته اختیار نه حاصلیږي؛ ځکه چي عرفاً او عادتاً دغه ډول دمکیانو ته توجه او اعتبار نه ورکول کیږي او په دې سره اکراه هم نه ثابتیږي. ها! که چیري مُكرَه منصب داره او نازولی کس وي کوم چي غټ نوم او عزت لري، او وهل خو هلته پرېږده! صرف دمکي ورکول د هغه په حق کي د عار او عیب باعث وي، نو د یوې درې په وهلو یا د یوې ورځي په قید او بند سره به هم د هغه رضا فوتیږي او هغه ته به د عقدونو د نافذولو او نه نافذولو اختیار حاصلیږي.

والإقرار إلخ: فرمايي که یو شوک د بل چا لپاره د زرو درهمو پر اقرار مجبوره کړی سي او هغه اقرار وکړي، نو د بیع او شراء په شېر د اقرار په صورت کي هم اقرار کونکي (مُقِر) ته پر خپل اقرار د قائم پاتېدلو یا نه پاتېدلو اختیار حاصلیږي؛ ځکه چي اقرار د مقر په حق کي حجت خو دی لېکن د غیر اکراه په حالت کي حجت دی، نو ځکه په اکراه سره به اقرار فاسدیږي. دا حصه د متن د "أَوْ عَلَىٰ أَنْ يُقِرّ" سره متعلق ده.

ثم إذا باع إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله یو شوک د خپل مال پر خرڅولو مجبوره کړی سي او هغه (مُكرَه) خپل مال خرڅ کړي او مشتري ته یې وسپاري، نو زموږ په نېز پر هغه مال د مشتري قبضه کیږي او د هغه ملکیت ثابتیږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د مشتري ملکیت نه ثابتیږي؛ ځکه چي د مُكرَه بیع "بیع موقوف" ده او بیع موقوف ملکیت نه فایده کوي. زموږ دلیل دا دی چي په مُكرَه کي د بیع اهلیت موجود دی او د بیع رکن له دغه اهل شخصه صادر سوی دی او د محل یعني د مال وطرف ته منسوب دی. او د بیع فساد په دې وجه دی چي د عقد د صحت (صحیح کېدلو) شرط یعني تراضي موجوده نه ده. نو ځکه د نورو مفسدو شرطونو په شېر به دا شرط هم مُفسد وي او څرنګه چي په فاسدو شرطونو (شروط فاسده) کي د قبضې پر مهال ملکیت ثابتیږي، همداسي په به پورتني

مسئله کي هم د قبضې پر مهال ملکيت ثابتيږي. او که چيري مشتري پر مبيع له قبضه کولو څخه وروسته په مبيع کي يو نا قابل فسخ (نه ماتېدونکی) تصرف وکړي، مثلاً مبيع مينځه وي او مشتري هغه ام ولد يا مُدَبّره جوړه کړي، نو دهغه تصرف جائز کيږي او پر مشتري د هغې قيمت لازميږي.

د دغه مسئلې دليل په بله وينا داسي هم ويل کېداى سي چي د مُکرَه بيع من وجه د بيع موقوف سره مشابه ده؛ ځکه چي هغه د مالک پر اجازت موقوف پاته وي، او من وجه د بيع فاسد سره مشابه ده؛ ځکه چي په هغه (بيع مُکرَه) کي د صحت شرط يعني تراضي معدومه وي، نو ځکه موږ پر دواړو مشابهتونو عمل کړو او د بيع موقوف د مشابهت په خاطر هغه د مالک په اجازت سره جائز ګرځوو، او د بيع فاسد والا مشابهت په خاطر هغه تر قبضې وروسته مفيد الملک (د ملکيت فايده کونکې) ګرځوو.

وبإجازة المالك إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله ستاسو د قول مطابق مذکوره بيع د بيع فاسد په درجه کي ده، نو وروسته د مالک په اجازت سره هغه جائز کېدل پکار نه دي؛ ځکه چي بيوع فاسده په اجازتِ لاحقه سره جائز نه ګرځي، حال دا چي د مالک په اجازت سره تاسو مذکوره بيع جائز ګرځولې ده، آخر ولي؟. د دې په جواب کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دغه مسئله کي چي د کومي بيع تذکره سوې ده، هغه په کامله توګه بيع فاسد نه ده، بلکي من وجه د بيع فاسد سره مشابه ده، نو ځکه په اجازتِ لاحقه سره به د هغه د نفاذ او جواز لاره صفاه کيږي. او بيوع فاسده پر هغه قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي هغوی من وجه فاسده دي او په بيوع فاسده کي که چيري مشتري رانيول سوی شی خرڅ کړي، نو بائع اول (البائع الاول) ته د مبيع واپس اخيستلو حق نه وي؛ ځکه چي په هغوی کي استرداد (واپس اخيستل) د شريعت حق دی او شريعت له استرداد څخه مستغني دی، حال دا چي په مذکوره بيع کي د مشتري له خرڅولو څخه وروسته هم بائع ته د استرداد حق حاصليږي، که څه هم مبيع ډېر واره خرڅه کړل سوې او د ډېرو خلکو تر لاس تېره سوې وي؛ ځکه چي دلته بائع اول کوم چي مُکرَه دی هغه هم عبد (بنده) دی او مشتري ثاني (يا بائع ثاني کوم چي له اول بائع څخه رانيولې او بيا يې پر دويم مشتري خرڅ کړې دی)، هغه هم عبد دی او په عبديت کي دواړه سره برابر دي، او څرنګه چي بائع اول مُکرَه وو، نو ځکه د عبد ثاني په وجه به د هغه حق نه باطليږي او هغه ته به د مبيع واپس اخيستلو حق او اختيار حاصليږي. (احسن الهدايه ج: ۱۲، ص: ۲۱۴)

## ﴿ د "بيع وفاء" حکم او تفصيل ﴾

قوله رحمه الله إلخ: په مذکوره عبارت کي له "البيع الجائز المعتاد" څخه "بيع وفاء" مراد ده، او د تاج الشريعة په الفاظو سره د بيع وفاء صورت دا دی "أن يقول البائع للمشتري: بعتُ منك هٰذا العَين

بکذا علی أني لو دفعتُ إلیك الثمن تدفع العین إليّ" یا قرضخواه (د پور مالک) مقروض ته داسي ووایي "بعتُ مِنك هٰذا العَین بِمَا لَكَ عليّ مِنَ الدَّیْن علی أني متی قضیتُ الدّین فهو لِيْ"، یعني بائع مشتري ته ووایي چي "زه خپل دغه شی په دومره ثمن سره پر تا خرڅوم، په دې شرط چي کله زه تا ته ثمن واپس درکړم، نو ته به بیرته ما ته خپل شی راکوې!"، یا قرضخواه مقروض ته ووایي "زه د خپل قرض په عوض کي خپل دغه سامان پر تا خرڅوم، لېکن کله چي زه تا ته خپل ثمن واپس درکړم، نو ته به ما ته سامان واپس راکوې!"، دغه بیع ته "بیع وفاء" ویل کیږي او د دې بیع په هکله د مشایخو څلور (۴) قولونه دي: ①... د بخاری مشایخو بیع الوفاء د بیعُ المُکرَه سره مشابه ګرځولې ده او د بائع لپاره یې د استرداد (واپس اخیستلو) حق جائز ګرځولی دی، تر دې چي که په بیع وفاء کي مشتری پر بل چا مبیع خرڅه کړي، نو بیع به ماتول کیږي؛ ځکه چي اوس (فی الحاله) د بائع رضا موجوده نه ده، لکه څرنګه چي په بیع مُکرَه کي کیږي، نو د عدم رضا په وجه دا بیع فاسد ده. ②... امام ابو شجاع سمرقندي، قاضي ابو الحسن ماتریدي، شیخ الاسلام حضرت عطاء، حضرت حمزه ﷺ او داسي نورو بیع وفاء رهن ګرځولې ده؛ ځکه چي دا بیع معناً رهن ده. او د فقه دا مشهوره قاعده ده چي "العِبْرَةُ فِي العُقُوْدِ لِلْمَعَانِي" (په عقودو کي اعتبار معناوو لره دی). ③... امام ابو شجاع، قاضي علي سندي او داسي نورو بیع وفاء باطل ګرځولې ده؛ ځکه په دې بیع کي عاقدین خو د بیع تکلم کوي، لېکن دوی بیع کول نه غواړي، ګواکي دوی هزل او مسخرې (مذاق) کونکي دي. ④... د سمرقند مشایخو دا بیع جائز ګرځولې ده او د انتفاع په حق کي یې دا بیع مفید هم منلې ده (یعني له مبیع څخه د انتفاع [نفع اخیستلو] د ملکیت فایده ورکوي)؛ ځکه چي داسي بیع ته هم ضرورت پېښېږي، ځکه په اوسنی زمانه کي څوک چا ته په قرض حسنه شی نه ورکوي او د خواست او قرض حسنه په توګه له یو چا څخه یو شی او سامان اخیستل مشکل دي، نو د دغه ضرورت په وجه دا بیع جائز ګرځول سوې ده، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله همدا قول اختیار کړی دی چي د هغه وطرف ته په "عَلیٰ ما هو المعتاد" سره اشاره ده.

په فتاویٰ قاضي خان کي ذکر سوي دي چي که چیري عاقدینو د بیع په لفظ سره عقد کړی وي (یعني په ښکاره لفظو کي یې د بیع لفظ [بعتُ] ذکر کړی وي)، نو دا بیع ده، رهن نه دی او که دوی د ردّ او فسخ شرط نه وي لګولی، نو بیا دا بیع جائز کیږي هم وَبِهٖ قَالَ الإمام ظهیر الدین. (بنایه ج: ۱۰، ص: ۵۱، ۵۲)

## د بيع مُکرَه د اجازت صورت

قَالَ: فَإِنْ كَانَ قَبَضَ الثَّمَنَ طَوْعًا فرمايي: كه چيري بائع په خپل خوښي سره پر ثمن قبضه وكړي فَقَدْ أَجَازَ الْبَيْعَ نو [ګواكي] هغه د بيع اجازت وركړی لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِجَازَةِ ځكه چي دا د اجازت دليل دی كَمَا فِي الْبَيْعِ الْمَوْقُوفِ لكه څرنګه چي په بيع موقوف كي دی وَكَذَا إِذَا سَلَّمَ طَائِعًا او همدارنګه كه بائع په خپل خوښي سره [مشتري ته] مبيع وسپاري بِأَنْ كَانَ الْإِكْرَاهُ عَلَى الْبَيْعِ لَا عَلَى الدَّفْعِ په دې توګه چي اكراه صرف پر خرڅولو وي، نه پر وركولو لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِجَازَةِ ځكه چي دا [هم] د اجازت دليل دی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَكْرَهَهُ عَلَى الْهِبَةِ وَلَمْ يَذْكُرِ الدَّفْعَ په خلاف د هغه صورت كله چي يو څوک بل څوک پر هبه كولو مجبوره كړي او د وركولو تذكره نه وكړي فَوَهَبَ وَدَفَعَ او مُكرَه [په ناخوښۍ سره] هبه وكړي او [په خوښۍ سره يې] وركړي حَيْثُ يَكُونُ بَاطِلًا نو هبه باطليږي لِأَنَّ مَقْصُودَ الْمُكْرِهِ الْاِسْتِحْقَاقُ لَا مُجَرَّدُ اللَّفْظِ ځكه چي د مُكرِه مقصد استحقاق [او حق ثابتول] دي نه محض لفظ [تلفظ او تكلم كول] وَذَٰلِكَ فِي الْهِبَةِ بِالدَّفْعِ او دا په هبه كي په دفع سره كيږي [يعني دا مقصد په هبه كي (د موهوب شي) په وركولو سره حاصليږي] وَفِي الْبَيْعِ بِالْعَقْدِ او په بيع كي [محض] په معامله كولو سره كيږي عَلَى مَا هُوَ الْأَصْلُ لكه څرنګه چي همدا قاعده ده فَدَخَلَ الدَّفْعُ فِي الْإِكْرَاهِ عَلَى الْهِبَةِ دُوْنَ الْبَيْعِ نو ځكه پر هبه په مجبوره كولو كي به دفع داخليږي، نه د بيع په اكراه كي [په بله وينا: نو ځكه په هبه كي به اكراه د دفع (وركولو) سره متعلق وي، لېكن په بيع كي به د دفع سره د هغه تعلق نه وي (احسن الهدايه)] قَالَ: وَإِنْ قَبَضَهُ مُكْرَهًا فرمايي: كه چيري بائع په مجبورۍ [او ناخوښۍ] سره پر ثمن قبضه وكړي فَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِإِجَازَةٍ نو دا اجازت نه دی وَعَلَيْهِ رَدُّهُ إِنْ كَانَ قَائِمًا فِي يَدِهِ او پر هغه د ثمن واپس كول لازم دي كه چيري د هغه په قبضه كي موجود وي لِفَسَادِ الْعَقْدِ ځكه چي عقد فاسد سو.

**اللغات**: ﴿طوع﴾ په خوښي سره، په رضا او رغبت، ﴿دفع﴾ د فتح مصدر دی: وركول، ورسپارل، ﴿إجازة﴾ د افعال د باب مصدر دی: اجازت وركول، جائز ګرځول، ﴿فساد﴾ د نصر مصدر دی: فاسدېدل، خرابېدل، ﴿قائما﴾ د نصر له بابه د اسم فاعل صيغه ده: ولاړ، باقي او موجود.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که بائع دیو شي پر خرڅولو مجبوره کړی سي او تر مکرهاً خرڅولو وروسته بائع په خپل خوښي او رضا سره پر ثمن قبضه وکړي یا په خپل خوښي او رضا سره مبیع مشتري ته وسپاري، نو له دغو دوو څخه هر شی د هغه له طرف دبیع د جائز ګرځولو او نافذولو دلیل دی (یعني ګواکي هغه دبیع اجازت ورکړی او په بیع [خرڅولو] راضي سوو)، او دا به ګڼل کیږي چې د ثمن اخیستلو یا د مبیع ورسپارلو په وخت کي د بائع نا راضي لیري سوې وه (او په همغه وخت کي په دې بیع راضي وو). ددې په خلاف که دیو شي مالک پر هبه کولو مجبوره کړی سي او مالک مکرهاً هغه شی هبه کړي او بیا په خپل خوښي او رضا سره هغه شی موهوب لهٗ ته وسپاري، نو هبه نه صحیح کیږي؛ ځکه چي په هبه او بیع کي فرق دی او هغه دا چي په هبه کي مُکرِه پر موهوب شي د موهوب لهٗ استحقاق غواړي، او دغه استحقاق په دفع (ورکولو) سره حاصلیږي، ګواکي د هبې اکراه به "اکراه علی الدفع" وي، او کله چي اکراه په دفع کي ده، نو د واهب د رضا د نشتوالي (نه موجودېدلو) په وجه هبه نه صحیح کیږي، ګواکي په هبه کي هبه او دفع یو شي دي، ددې په خلاف په بیع کي بیع او دفع دواړه سره جلا دي نو اکراه علی البیع به "اکراه علی الدفع" نه وي، لهذا کله چي بیع مکرهاً وي او دفع طوعاً وي، نو دا دفع به اجازت ګرځول کیږي (یعني ګواکي بائع اجازت ورکړی). ها! که بائع په نا خوښه زړه مکرهاً پر ثمن قبضه وکړي، نو دې ته اجازت نه ویل کیږي؛ ځکه که هغه ثمن نه واخلي او مبیع مخکي د هغه د لاسه وتلې ده، نو ثمن به یې هم د لاسه ووځي، همدا وجه ده که د بائع سره ثمن موجود وي، نو شریعت هغه ته دا اختیار ورکړی دی چي مشتري ته خپل ثمن ورکړي او مبیع واپس ځني واخلي. (احسن الهدایه)

## د غیرِ مُکرَه مشتري په قبضه کي د مبیع هلاکېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي وَهُوَ غَيْرُ مُكْرَهٍ فرمایي: او که چیري د مشتري په قبضه کي مبیع هلاکه سي حال دا چي هغه مُکرَه [مجبور کړی سوی] نه وي ضَمِنَ قِيمَتَهُ لِلْبَائِعِ نو مشتري د بائع لپاره د هغه د قیمت ضامن کیږي مَعْنَاهُ وَالْبَائِعُ مُكْرَهٌ ددې مطلب دا دی چي بائع مُکرَه وي لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ بِحُكْمِ عَقْدٍ فَاسِدٍ ځکه چي د عقد فاسدېدلو په وجه هغه [مبیع] پر مشتري مضمون ده [یعني ضمان یې پر لازم دی] وَلِلْمُكْرَهِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُكْرِهَ إِنْ شَاءَ او مُکرَه [بائع] ته دا اختیار سته چي که د ده خوښه وي نو مُکرِه دي ضامن وګرځوي [یعني ضمان دي له مُکرِه (جبر کونکي) څخه واخلي] لِأَنَّهُ آلَةٌ لَهُ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى الْإِتْلَافِ ځکه مُکرَه په هغه څه کي د مُکرِه آله ده کوم چي ضایع کولو [هلاکولو] ته راجع کیږي [په بله وینا دا چي مُکرَه په هلاکېدونکي

شي کي د مُکرِه آله ده] فَكَأَنَّهُ دَفَعَ مَالَ الْبَائِعِ إِلَى الْمُشْتَرِيْ نو ګواکي د بائع [مُکرَه] مال مُکرِه و مشتري ته ورکړی دی فَيُضَمِّنُ أَيَّهُمَا شَاءَ نو ځکه بائع به په دوی دواړو کي هر هغه يو ضامن ګرځوي کوم چي د ده خوښه وي [له کوم يوه څخه چي د ده خوښه وي، له هغه څخه به ضمان اخلي] كَالْغَاصِبِ وَغَاصِبِ الْغَاصِبِ لکه غاصب او غاصب الغاصب [په صورت کي چي په دواړو کي له هر يوه څخه ضمان اخيستل کېدای سي] فَلَوْ ضَمَّنَ الْمُكْرِهُ نو که چيري بائع مُکرِه ضامن وګرځوي [يعني له مُکرِه (جبر کونکي) څخه تاوان واخلي] رَجَعَ عَلَى الْمُشْتَرِي بِالْقِيمَةِ نو هغه به پر مشتري په قيمت څخه رجوع کوي [يعني مُکرِه به له مشتري څخه د هغه مبيع قيمت اخلي] لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْبَائِعِ ځکه چي [اوس] مُکرِه د بائع قائم مقام سو وَإِنْ ضَمَّنَ الْمُشْتَرِيْ او که بائع له مشتري څخه ضمان واخلي نَفَذَ كُلُّ شِرَاءٍ كَانَ بَعْدَ شِرَائِهِ لَوْ تَنَاسَخَتْهُ الْعُقُودُ نو هر هغه شراء [عقد] نافذيږي کوم چي د دغه مشتري تر شراء وروسته سوي وي، که چيري پر هغه مبيع لاس په لاس عقدونه سوي وي [يعني څو ځله خرڅ کړل سوی وی] لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ ځکه چي مشتري د ضمان ورکولو په وجه د هغه مبيع مالک سو فَظَهَرَ أَنَّهُ بَاعَ مِلْكَهُ نو دا ښکاره سوه چي مشتري خپل ملکيت [خپل مملوک شی] خرڅ کړی دی وَلَا يَنْفُذُ مَا كَانَ قَبْلَهُ [لېکن] د هغه تر شراء مخکي چي کومه شراء وي، هغه نه نافذيږي لِأَنَّ الِاسْتِنَادَ إِلَى وَقْتِ قَبْضِهِ ځکه چي په دې صورت کي ملکيت صرف د هغه د قبضې [قابض کېدلو] وخت منسوب دی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَجَازَ الْمَالِكُ الْمُكْرَهُ عَقْدًا مِنْهَا په خلاف د هغه صورت کله چي مجبور کړی سوی مالک له دغه عقدونو څخه د يوه عقد اجازت ورکړي حَيْثُ يَجُوزُ مَا قَبْلَهُ وَمَا بَعْدَهُ نو [په دې صورت کي] تر هغه مخکي او وروسته ټوله عقدونه نافذيږي لِأَنَّهُ أَسْقَطَ حَقَّهُ ځکه چي [په اجازت ورکولو سره] هغه خپل حق ساقط کړی وَهُوَ الْمَانِعُ او همدا [يعني د هغه حق (د عقدونو له نفاذ) څخه] مانع وو فَعَادَ الْكُلُّ إِلَى الْجَوَازِ نو ځکه [اوس] به ټوله جواز ته راوګرځي [يعني ټوله عقدونه به جائز ګرځي].

**اللغات:** ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي چي ضمان (تاوان) لازم وي، هغه شی کوم چي په ضمان کي شامل وي، ﴿يضمّن﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: ضامن ګرځول، ضمان ځني اخيستل، ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، هلاکول، بربادول، ﴿تناسخت﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغه څخه ځيني دا دي: يو شی لاس په لاس اخيستل، يو تر بل وروسته راتلل، پرلپسې کېدل (مصباح اللغات)، ﴿نفذ﴾ د نصر د باب ماضي ده: نافذېدل، عقد پای ته رسېدل او بشپړ کېدل، ﴿استناد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: نسبت کېدل، منسوب کېدل.

**تشريح** : **مسئله** : دا ده كه بائع مُكرَه وي يعني ديو شي پر خرڅولو مجبوره كړى سوى وي او پر مشتري هيڅ جبر او اكراه نه وي او مشتري هغه شى (مبيع) رانيسي، بيا هغه مبيع د مشتري په قبضه كي هلاكه سي، نو مشتري ه هغه د قيمت ضامن كيږي يعني مشتري به بائع ته د هغه مبيع د قيمت ضمان (تاوان) وركوي، ځكه چي د مُكرَه بيع فاسده ده، او په بيع فاسد كي هم د مبيع هلاكېدلو په صورت كي پر مشتري ضمان لازميږي. لېكن مُكرَه (بائع) ته دا اختيار هم حاصليږي چي كوم چا پر هغه جبر كړى دى (يعني مُكرِه)، له هغه څخه د قيمت تاوان واخلي؛ ځكه چيري چي د هلاكولو (تلفولو) معنىٰ موجوده سي، هلته مُكرَه (مجبور) د هغه مُكرِه آله ده (كه څه هم د كلام كېدلو په حيثيت سره هغه آله نه ده. لأنّ التكلّمَ بِلِسَانِ الغَيرِ لَا يَصِحّ). نو ګواكي مُكرِه په خپله د بائع (مُكرَه) مال مشتري ته وركړى، نو ځكه مُكرَه ته به اختيار وي چي هغه له مُكرِه څخه تاوان اخلي او كه يې له مشتري څخه اخلي، لكه څرنګه چي د غاصب الغاصب په صورت كي مالک ته اختيار وي چي هغه له غاصب څخه تاوان اخلي او كه يې له غاصب الغاصب څخه اخلي.

ضمن المكرِه إلخ: بيا كه مُكرَه (بائع) له مُكرِه (جبر كونكى) څخه تاوان واخلي، نو مُكرِه (جبر كونكى) به له مشتري څخه د هغه شي (مبيع) قيمت اخلي؛ ځكه چي مُكرِه د ضمان (تاوان) وركولو په ذريعه د بائع قائم مقام سو، ځكه چي مضمون شى د ضمان وركولو له وخته څخه د ضامن ملكيت ګرځي. او كله چي مُكرَه (بائع) له مشتري څخه ضمان (تاوان) واخلي (يا كله چي مُكرِه له مشتري څخه د مبيع د قيمت تاوان واخلي)، نو د مشتري تر شراء وروسته چي كوم بل عقد سوى وي يا ډېر عقدونه سوي وي، هغه ټوله جائز ګرځي، يعني له دغه (اول) مشتري څخه چي كومو خلكو معامله او سودا كړى وي او د كومو خلكو لاس ته چي هغه شى (مبيع) رسېدلى وي او په آخر كي هلاک سوى وي، د ټولو په حق كي عقد جائز كيږي؛ ځكه چي د ضمان وركولو په وجه اول مشتري د دغه مبيع مالک سو، نو ښكاره سوه چي مشتري پر نورو خلكو خپل مال او خپل ملكيت خرڅ كړى دى، نو ځكه وروستني ټوله عقود به نافذيږي، خو د مشتري تر شراء مخكي والا عقد او شراء نه نافذيږي؛ ځكه كه څه هم په ضمان وركولو سره په هلاک سوي مبيع كي د مشتري ملكيت ثابتيږي، لېكن دا ملكيت د هغه د قبضي د وخت وطرف ته نه منسوب كيږي، نو ځكه تر شراء په مخكي عقدونو كي به د مشتري ملكيت معدوم وي، نو ځكه هغوى به نه نافذيږي. د دې په خلاف كه مُكرَه مالک يعني اول بائع له مذكوره عقدونو څخه د يو عقد اجازه وركړي (جائز يې وګرځوي)، نو تر دغه شراء چي مخكي او وروسته څومره عقدونه سوي وي. هغه ټوله جائز ګرځي؛ ځكه له شروع څخه تر آخره پوري د عقدونو نفاذ صرف د اول بائع د حق په وجه ممتنع وو. او بائع چي كله په يوه عقد كي خپل حق ساقط كړى، نو دا سقوط له شروع څخه موثر كيږي او له ابتداء څخه تر انتهاء پوري هر . هرعقد جائز او صحيح ګرځي. والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ حُكْمِ الْإِكْرَاهِ الْوَاقِعِ فِيْ حُقُوْقِ اللّٰهِ)

## (دا) فصل (د هغه اکراه په بیان کی دی کوم چي په حقوق الله کي واقع سي)

**تشریح:** څرنګه چي حقوقُ العباد له حقوقُ الله څخه مخکي دي، نو ځکه هغوی تر دې مخکي بیان کړل سوي دي.

## د شرعي ممنوعاتو اکراه (د مردار سوي حیوان پر خوړلو یا د شرابو پر څېښلو د مجبوره کېدلو حکم)

وَإِنْ أُكْرِهَ عَلٰى أَنْ يَأْكُلَ الْمَيْتَةَ أَوْ يَشْرَبَ الْخَمْرَ او که چیري څوک پر دې مجبوره کړی سي چي مردار سوی څاروی وخوري یا شراب وڅیښي فَأُكْرِهَ عَلٰى ذٰلِكَ بِحَبْسٍ أَوْ ضَرْبٍ أَوْ قَيْدٍ نو که هغه د بندي کولو یا وهلو یا قیدولو په دمکۍ سره پر دغه کارونو مجبوره کړی سي لَمْ يَحِلَّ لَهُ إِلَّا أَنْ يُكْرَهَ بِمَا يَخَافُ مِنْهُ عَلٰى نَفْسِهِ أَوْ عَلٰى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ نو د ده [مُکرَه] لپاره د مرادر څاروي خوړل او شراب چیښل حلال نه دي مګر دا چي په داسي دمکۍ سره مجبوره کړی سي چي له هغه څخه دئ [مُکرَه] د خپل ځان یا د خپل یو اندام پر هلاکېدلو وېرېږي فَإِذَا خَافَ عَلٰى ذٰلِكَ او کله چي مُکرَه پر دې وېرېږي وَسِعَهُ أَنْ يُقْدِمَ عَلٰى مَا أُكْرِهَ عَلَيْهِ نو بیا ده ته د دې ګنجایش سته [یعني د ده لپاره جائز دي] چي پر هغه څه اقدام وکړي پر کوم چي دئ مجبوره کړی سوی دی وَكَذَا عَلٰى هٰذَا الدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ او همدارنګه پر دغه حکم دي د وینې او خنزیر خوړل لِأَنَّ تَنَاوُلَ هٰذِهِ الْمُحَرَّمَاتِ إِنَّمَا يُبَاحُ عِنْدَ الضَّرُوْرَةِ ځکه چي دغه حرام شیان د ضرورت په وخت کي مباح کړل سوي دي كَمَا فِيْ حَالَةِ الْمَخْمَصَةِ لکه د مخمصې په حالت کي لِقِيَامِ الْمُحَرِّمِ فِيْمَا وَرَاءَهَا ځکه چي حرامونکی دلیل له ضرورت څخه بغیر په بل حالت کي قائم دی [ځکه چي حرام ګرځونکی دلیل د ضرورت له ځای څخه بغیر په نورو ځایو کي مؤثر کیږي] وَلَا ضَرُوْرَةَ إِلَّا إِذَا خَافَ عَلَى النَّفْسِ أَوْ عَلَى الْعُضْوِ او ضرورت نسته مګر دا چي مُکرَه د خپل ځان یا اندام پر هلاکېدلو وېرېږي حَتّٰى لَوْ خِيْفَ عَلٰى ذٰلِكَ بِالضَّرْبِ الشَّدِيْدِ وَغَلَبَ

عَلٰى ظَنِّهٖ تر دې که هغه د سخت وهلو په دمکۍ سره پر دې [يعني د ځان يا اندام پر هلاکېدلو] وبېرېږي يُبَاحُ لَهُ ذٰلِكَ نو د ده لپاره د محرماتو استعمالول مباح [روا] دي وَلَا يَسَعُهُ أَنْ يَصْبِرَ عَلٰى مَا تُوُعِّدَ بِهٖ او ده ته د دې ګنجايش نسته چي پر هغه څه صبر وکړي د کوم چي دمکي ورکول سوې ده فَإِنْ صَبَرَ حَتّٰى أَوْقَعُوا بِهٖ وَلَمْ يَأْكُلْ نو که هغه صبر وکړي تر دې چي دمکي ورکونکي کسان پر هغه خپله دمکي واقع کړي [يعني قتل يې کړي يا يې اندام هلاک کړي] او هغه حرام شی نه وخوري فَهُوَ آثِمٌ نو هغه ګنهکاره دی لِأَنَّهٗ لَمَّا أُبِيحَ ځکه کله چي هغه ته [په دغه وخت کي] حرام شی مباح کړی سوی دی كَانَ بِالِامْتِنَاعِ عَنْهُ مُعَاوِنًا لِغَيْرِهٖ عَلٰى هَلَاكِ نَفْسِهٖ نو له هغه څخه د منع کېدلو [نه خوړلو] په وجه به مُکرَه د خپل ځان په هلاکېدلو د بل چا مرسته کونکی وي فَيَأْثَمُ نو ځکه به ګنهکار کيږي كَمَا فِي حَالَةِ الْمَخْمَصَةِ لکه څرنګه چي د مخمصې په حالت کي [د نه خوړلو په وجه ګنهکاره کيږي] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهٗ لَا يَأْثَمُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي هغه [مُکرَه] نه ګنهکاره کيږي لِأَنَّهٗ رُخْصَةٌ ځکه چي د حرام شي خوړل رخصت دی إِذِ الْحُرْمَةُ قَائِمَةٌ ځکه حرمت [پکښي] موجود دی فَكَانَ آخِذًا بِالْعَزِيمَةِ نو ځکه [د نه خوړلو په وجه] به هغه پر عزيمت [پر اصل مشروع] عمل کونکی وي قُلْنَا: حَالَةُ الِاضْطِرَارِ مُسْتَثْنَاةٌ بِالنَّصِّ موږ [جوابًا] وايو: چي د اضطرار حالت په نص سره مستثنیٰ کړی سوی دی وَهُوَ تَكَلُّمٌ بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الثُّنْيَا او استثناء د هغه څه تکلم [ويلو] ته وايي کوم چي تر مستثنیٰ وروسته حاصل [باقي پاته] سي فَلَا مُحَرِّمَ نو حرامونکی دليل موجود نه سو [د اضطرار په حالت کي حرمت ختم سو] فَكَانَ إِبَاحَةً لَا رُخْصَةً نو ځکه هغه به اباحت وي، نه رخصت إِلَّا أَنَّهٗ إِنَّمَا يَأْثَمُ إِذَا عَلِمَ بِالْإِبَاحَةِ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ ليکن مُکرَه په هغه صورت کي ګنهکاره کيږي کله چي هغه په دغه حالت کي [د محرّماتو] په اباحت خبر وي لِأَنَّ فِي انْكِشَافِ الْحُرْمَةِ خَفَاءً ځکه چي د حرمت په ښکاره کېدلو کي خفاء [پټوالی] دی فَيُعْذَرُ بِالْجَهْلِ فِيهِ نو ځکه مُکرَه به په خپل جهل [ناخبری] کي معذوره ګڼل کيږي كَالْجَهْلِ بِالْخِطَابِ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ أَوْ فِي دَارِ الْحَرْبِ لکه په خطاب [شرعي حکم] نه خبرېدل چي عذر وه د اسلام په شروع کي يا په دارُ الحرب کي.

**اللغات:** ﴿ميتة﴾ مردار سوی (مړ سوی) حیوان، ﴿وَسِعَه﴾ د سمع د باب ماضي صيغه ده، وَسِعَ يَسَعُ سَعَةً: ګنجایش کېدل، په یو شي کي تنګي نه کېدل (پراخي پکښي راتلل)، مراد ځني جائز کېدل دي، ځکه چي د یو کار د جائز کېدلو مطلب همدا دی چي په هغه کي تنګي نه کېدل بلکي پراخي او ګنجایش پکښي راتلل (معجم وسیط)، ﴿يُقدِم﴾ د افعال د باب مضارع ده: اقدام کول، په یو کار لاس پوري کول (شروع په کول)، ﴿مخمصة﴾ د سختي لوږي حالت، د سخت اضطرار او مجبوری حالت، ﴿خِيفَ﴾ د فتح له بابه د واحد مذکر غائب ماضي مجهولي صيغه ده: بېرېدل، ﴿تُوُعِّد﴾ د تفعّل د باب ماضي مجهوله ده: دمکي ورکول (دمکي ورکول کېدل)، د تفعّل له بابه صرف د همدې معنیٰ لپاره راځي، او د افعال له بابه د وعده کولو د معنیٰ لپاره هم راځي، ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، انکار کول، ﴿الثُّنْيَا﴾ والثَّنْوٰی: استثناء (استثناء کول)، ﴿إباحة﴾ د افعال د باب مصدر دی، أَبَاحَ يُبِيحُ إِبَاحَةً: مباح کول، روا ګرځول، جائز ګرځول، ﴿عزيمة﴾ لغوي معنیٰ يې ده: پخه اراده (ټینګه اراده)، اصطلاحي معنیٰ يې ده: اصل مشروع، صاحب د تعریفات جرجاني د عزیمت اصطلاحي معنیٰ داسي ذکر کړې ده: "اسم لما هو أصل المشروعات غير متعلق بالعوارض". او صاحب د معجم لغة الفقهاء داسي ویلي دي: "الحكم الثابت بدليل خالٍ من معارض راجح"، ﴿رخصة﴾ لغوي معنیٰ يې ده: آساني، سهولت، او اصطلاحي معني يې صاحب د تعریفات داسي ذکر کړې ده: "اسم لما شُرِع متعلقا بالعوارض أي مَا اسْتُبِيْح بعذر مع قيام الدليل المُحَرِّم" او صاحب د مجعم لغة الفقهاء داسي ذکر کړې ده: "إباحة التصرف لأمر عارض مع قيام الدليل على المنع" او "ما ثبت على خلاف دليل شرعي لمعارض راجح"، د ټولو مطلب یو دی، ﴿خطاب﴾ مراد: د شریعت حکم.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی د شرابو پر چیښلو، یا د مردار سوي ښاروي (یا مثلاً د خنزیر) د غوښو پر خوړلو مجبوره کړی سي، نو دې ته به کتل کیږي چي دغه اکراه د کومي درجې ده؟ که چیري دغه اکراه د ځان وژلو یا د یو اندام ضایع کولو پر تهدید او دمکۍ مشتمله وي او مُکرَه ته دا ښېره او اندېښنه وي چي که زه د مُکرِه خبره نه ومنم نو زما ځان یا یو اندام به ضایع سي، نو په دې صورت کي د هغه لپاره د پورتني شیانو او داسي نورو محرماتو د استعمالولو ګنجایش او اجازت سته؛ ځکه چي د ضرورت او مجبورۍ په وخت کي شریعت د محرماتو او ممنوعاتو د استعمالولو اجازت ورکړی دی او نه استعمالولو په صورت کي یې مُکرَه او مجبوره کس مجرم ګرځولی دی. لهذا کله چي د

شریعت تر اجازت او اباحت وروسته هم مُکرَه هغه مُکرَه عَلیه شی استعمال نه کړي، نو د خپل ځان په مرګ او هلاکت کي به هغه د بل چا مرسته کونکی (معاون) وګرځي او په دې اعتبار سره به د هغه په مرګ کي د خود کشی (ځان وژني) اثر شامل سي.

او څرنګه چي د مخمصې (سختي لوږي) په حالت که څوک د حرام (ممنوع) شي د نه استعمالولو په وجه مړ سي، نو هغه ګنهکاره کیږي، همداسي به په پورتني مسئله کي هم مُکرَه ګنهکاره کیږي. همدا د جمهورو فقهاؤ قول دی او پر همدې عمل دی.

د دې په خلاف له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چي د حرام شي نه خوړلو په وجه ځان وژونکی مُکرَه نه ګنهکاره کیږي؛ ځکه چي د ضرورت په وخت کي د حرام شي د خوړلو اجازت په حقیقت کي رخصت دی او په هغه کي حرمت موجود پاتیږي، او که څوک پر رخصت عمل نه وکړي بلکي پر عزیمت عمل وکړي، نو هغه نه ګنهکاره کیږي، نو ځکه په پورتني مسئله کي به مُکرَه نه ګنهکاره کیږي.

د جمهورو له طرفه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دغه روایت جواب دا دی چي د حرمت له حکم څخه د اضطرار حالت مستثنیٰ دی یعني د اضطرار او مخمصې په حالت کي حرمت ختمیږي، دلیل د قرآن کریم دا آیت دی: ﴿وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ﴾ [سورة الأنعام:۱۱۹]. په دغه آیت کي د اضطرار حالت له حرمت څخه مستثنیٰ کړی سوی دی، او له حرام شي څخه چي کوم شی مستثنیٰ کړی سي، هغه مباح او حلال وي، نو ځکه دغه اجازت به اباحت وي، رخصت به نه وي، ها! دومره ضروري ده چي مُکرَه په هغه صورت کي ګنهکاره کیږي کله چي هغه ته دا معلومه وي چي شریعت په دغه حالت کي محرمات حلال او مباح ګرځولي دي خو بیا یې هم هغه استعمال نه کړي؛ ځکه چي حرمت په حلت بدلېدل یو مخفي خبره ده او په هغه صرف بعضي خلک خبر وي، لهذا که چیري یو مُکرَه په دغه حلت او اباحت خبر نه وي، نو د هغه نا خبري عذر شمېرل کیږي، لکه څرنګه چي د اسلام په ابتداء کي د دیني احکامو او فروعو نا خبري یا په دارُ الحرب کي د اوسېدلو په وجه د شریعت او دین په احکامو نه خبرېدل عذر شمېرل کېدی، همداسي به دغه ناخبري هم عذر شمېرل کیږي او د جهالت او نا خبرتیا په وجه به مُکرَه معذوره وي. (احسن الهدايه)

## پر کفر او د نبي کریم ﷺ پر توهین او سپکاوي د مجبوره کېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى الْكُفْرِ بِاللهِ تَعَالَى وَالْعِيَاذُ بِاللهِ فرمايي: او که څوک (نعوذ بالله) د الله تعالیٰ پر انکار کولو مجبوره کړی سي أَوْ بِسَبِّ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَيْدٍ أَوْ حَبْسٍ أَوْ ضَرْبٍ یا نبي کریم ﷺ ته پر

شکنځا [او رډوبد ویلو] مجبوره کړی سي لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ إِكْرَاهًا نو دا اکراه نه ده حَتَّى يُكْرَهَ بِأَمْرٍ يَخَافُ مِنْهُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْ عَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ تر دې چې په داسي دمکۍ سره مجبوره کړی سي چې له هغه څخه دئ پر خپل ځان یا پر خپل یو اندام وېرېږي لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ بِهَذِهِ الْأَشْيَاءِ لَيْسَ بِإِكْرَاهٍ فِي شُرْبِ الْخَمْرِ ځکه [کله چي] د دغو شیانو [یعني د قید، حبس او ضرب] اکراه په شراب چیښلو کي معتبره نه ده لِمَا مَرَّ د هغه دلیل په وجه کوم چي [مخکي] تېر سو فَفِي الْكُفْرِ وَحُرْمَتُهُ أَشَدُّ أَوْلَى وَأَحْرَى نو په کفر کي چي د هغه حرمت ډېر سخت په درجه اولیٰ او طريقه اولیٰ معتبره نه وي قَالَ: فَإِذَا خَافَ عَلَى ذَلِكَ فرمايي: او کله چي مُکرَه پر دې [یعني د ځان یا اندام پر هلاکېدلو] وېرېږي وَسِعَهُ أَنْ يُظْهِرَ مَا أَمَرُوهُ بِهِ وَيُوَرِّيَ نو مُکرَه ته د دې ګنجايش سته چې د هغه څه [کفري کلماتو] اظهار وکړي چي مُکرِهينو ده ته د هغه حکم کړی دی [لېکن] مُکرَه دي توريه وکړي فَإِنْ أَظْهَرَ ذَلِكَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ نو که چيري مُکرَه د هغه [کفري کلماتو] اظهار وکړي [لېکن] د ده زړه په ايمان سره مطمئن وي فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ نو پر ده هیڅ ګناه نسته لِحَدِيثِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رضي الله عنه حَيْثُ أُبْتُلِيَ بِهِ وَقَدْ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ عليه السلام: «كَيْفَ وَجَدْتَ قَلْبَكَ؟ قَالَ: مُطْمَئِنًّا بِالْإِيمَانِ د حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه د حدیث په وجه چي هغه په دغه حالت سره مبتلا سو او نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه ته وفرمایل: ”تا خپل زړه څنګه وموندی [یعني په هغه وخت کي ستا د زړه حالت څنګه وو؟] نو هغه وویل: په ايمان سره مطمئن وو فَقَالَ عليه السلام: فَإِنْ عَادُوا فَعُدْ» نو نبي صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چي که هغوی دوباره داسي وکړي، نو ته هم دوباره داسي وکړه! [په بله وينا: او که کفار دوباره اکراه راوګرځي (یعني بیا ته پر کفري کلماتو مجبوره کړي) ، نو ته هم د زړه اطمينان ته را وګرځه [یعني زړه په ایمان سره مطمئن ساته!)] وَفِيهِ نَزَلَ قَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ﴾ او په همدې باره کي د الله تعالیٰ دا فرمان نازل سوی دی: ”مګر دا چي د هغه زړه په ایمان سره مطمئن وي“ وَلِأَنَّ بِهَذَا الْإِظْهَارِ لَا يَفُوتُ الْإِيمَانُ حَقِيقَةً او ځکه چي [د کفري کلماتو] په دغه ډول اظهار سره حقیقتاً ایمان نه فوتیږي لِقِيَامِ التَّصْدِيقِ ځکه چي په زړه کيَ تصديق قائم پاته وي وَفِي الْامْتِنَاعِ فَوْتُ النَّفْسِ حَقِيقَةً او [د کفر له اظهار څخه] په منع کېدلو کي حقیقتاً د نفس فوتېدل سته

فَيَسَعُهُ الْمَيْلُ إِلَيْهِ نو ځکه د ده لپاره به د هغه وطرف ته د میلان کولو ګنجایش وي قَالَ: فَإِنْ صَبَرَ حَتَّى قُتِلَ وَلَمْ يُظْهِرِ الْكُفْرَ فرمايي: او كه چيري مُكرَه صبر وكړي تر دې چي قتل کړی سي او هغه کفر ښکاره نه کړي كَانَ مَأْجُورًا نو هغه د اجر مستحق كيږي لِأَنَّ خُبَيْبًا رضي الله عنه صَبَرَ عَلَى ذَلِكَ حَتَّى صُلِبَ وَسَمَّاهُ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم سَيِّدَ الشُّهَدَاءِ ځکه حضرت خبیب رضي الله عنه پر دې صبر وکړی تر دې چي هغه پانسی کړی سو او رسول الله ﷺ هغه په سید الشهداء سره ونوموی [یعني د سیدُ الشهداء لقب یې ورکړي] وَقَالَ فِي مِثْلِهِ: «هُوَ رَفِيقِي فِي الْجَنَّةِ» او نبي ﷺ د هغه په څېر صحابي په حق كي وفرمايل چي: ''هغه به په جنت کي زما ملګری وي'' [صاحب د حاشیې لیکلي دي چي د ''مثل'' کلمه زايده ده (والله أعلم)] وَلِأَنَّ الْحُرْمَةَ بَاقِيَةٌ او ځکه چي [د کفري کلماتو د اظهار] حرمت باقي پاته دی وَالِامْتِنَاعُ لِإِعْزَازِ الدِّينِ عَزِيمَةٌ او د دین د سر لوړی لپاره [د کفر له اظهار] څخه منع کېدل عزیمت دی بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چي مخکي تېر سو [یعني مردار ښاروی خوړل او شراب چیښل، نو هلته حرمت باقي دی] لِلِاسْتِثْنَاءِ د استثناء په وجه [یعني هلته استثناء سوې ده].

**اللغات:** ﴿سبّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: ښکنځا کول، بد ورد ویل، ﴿یورّي﴾ د افعال د باب مضارع ده: توریه کول، د خپل کلام د ظاهر خلاف اراده کول، په خوله یو څه ویل او په زړه کي د بل شي اراده کول، ﴿أظهر﴾ د افعل د باب ماضي ده: ښکاره کول، څرګندول، ﴿إثم﴾ ګناه، ﴿اعزاز﴾ د افعال د باب مصدر دی: عزت ورکول، عزیز او سر لوړی ګرځول، ﴿صُلِب﴾ د ماضي مجهولي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: پانسی کول، په دار ځړول، ﴿رفيق﴾ دوست، ملګری.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو سړی نعوذ بالله پر دې خبره مجبوره کړی سي چي کفري کلمات ووايي یا العیاذ بالله نبي کریم ﷺ ته ښکنځل وکړي او د هغه په حق کي ګستاخي او سپکاوی وکړي، نو په دې صورت کي د هغه سړي (مُکرَه) لپاره د مُکرِه د حکم پر ځای کولو ګنجایش سته کله چي مُکرِه هغه ته د وژلو یا د یو اندام ضایع کولو دمکي ورکړې وي او هغه دومره واک او قدرت لري چي خپل دمکي پوره کړی سي: ځکه چي د ځان یا اندام هلاکولو له دمکي څخه بغیر د محرماتو استعمال هم مباح نه دی، نو کفري کلمات ویل به څنګه مباح او ممکن وي، ځکه د حرام شي له مباح کېدلو څخه د کفري کلماتو مباح کېدل زیات سنګین دي او د هغه حرمت د خمر او خنزیر له حرمت څخه ډېر بالا دی، لهذا که چیري دمکي ډېره سخته وي، نو د مُکرَه لپاره د شریعت حکم دا دی چي د مُکرِه پر خبره عمل

وکړي لېکن توريه دي وکړي، دلته د توريې مطلب دا چي زړه دي په ايمان سره مطمئن وساتي او فقط په ژبه سره دي په نا خوښه زړه هغه کلمات ووايي، يا داسي لفظ دي استعمال کړي چي د هغه دوې معناوي وي او صريح کفري کلمات دي نه وايي، د دې لپاره چي د هغه په ايمان کي هيڅ ډول شک وشبهه را نه سي او په شريعت کي د هغه مؤاخذه نه وسي. د دغه حکم نقلي دليل د حضرت عمار بن ياسر ﷺ حديث دی کوم چي په عبارت کي ذکر سوی دی او د هغه هر جزء واضح دی. او عقلي دليل دا دی چي ايمان د زړه تصديق ته وايي، لهذا که په زړه کي د اسلام او ايمان تصديق بر قرار وي. نو د اکراه په حالت کي په زباني توګه د کفري کلماتو په ويلو سره پر دغه تصديق اثر نه پرېوځي. خو بيا هم که په دې صورت کي مُکرَه صبر وکړي او د جبر کونکي (مُکرِه) او کافر په لاس شهيد کړی سي، نو د الله په نېز به د هغه مقام ډېر اعلیٰ وي او هغه به د عظيم اجر مستحق وي؛ ځکه چي د حضرت خبيب ﷺ پر صبر کولو او شهيد کېدلو نبي کريم ﷺ هغه ته د سيد الشهداء رتبه ورکړه او د هغه په حق کي يې دا زېری ورکړی چي "هُوَ رَفِيْقِيْ فِي الْجَنَّةِ". د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چي دلته په هيڅ اثر او نص کي د کفري کلماتو د ويلو استثناء نه ده سوې، نو ځکه د هغه حرمت به باقي پاته وي، او د دين د سر لوړی لپاره خپل ځان قربانول د ژوندون مقصد او ما حصل دی، نو ځکه دلته پر عزيمت عمل کول جائز نه بلکي غوره دي. (احسن الهدايه)

## د مسلمان د مال پر ضايع کولو د مجبوره کېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى إِتْلَافِ مَالِ مُسْلِمٍ بِأَمْرٍ يَخَافُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْ عَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ فرمايي: او که يو ځوک د يو مسلمان د مال پر ضايع کولو مجبوره کړی سي په داسي څه [دمکی] سره چي له هغه شخخه دئ پر خپل ځان يا د خپل يو اندام پر هلاکېدلو وېرېږي وَسِعَهُ أَنْ يَفْعَلَ ذٰلِكَ نو هغل لره د دې ګنجايش سته چي دا کار وکړي لِأَنَّ مَالَ الْغَيْرِ يُسْتَبَاحُ لِلضَّرُورَةِ ځکه چي د بل چا مال د ضرورت په وجه مباح کېږي كَمَا فِي حَالَةِ الْمَخْمَصَةِ لکه څرنګه چي د مخمصې په حالت کي کېږي وَقَدْ تَحَقَّقَتْ او دلته ضرورت ثابت سو وَلِصَاحِبِ الْمَالِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُكْرِهَ او د مال خاوند ته دا حق سته چي له مُکره [جبر کونکي] شخخه ضمان واخلي لِأَنَّ الْمُكْرَهَ آلَةٌ لِلْمُكْرِهِ فِيمَا يَصْلُحُ آلَةً لَهُ ځکه چي مُکره په هغه شي کي د مُکره آله ده په کوم شي کي چي مُکرَه د هغه د آلې جوړېدلو صلاحيت لري وَالْإِتْلَافُ مِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ او ضايع کول له همدغه قبيلې شخخه دي وَإِنْ أُكْرِهَ بِقَتْلٍ عَلَى قَتْلِ غَيْرِهِ او که يو ځوک د قتل په دمکی سره د بل چا پر قتل کولو اوړلوا مجبوره کړی سي لَمْ يَسَعْهُ أَنْ يُقْدِمَ

عَلَيْهِ نو هغه ته د دې ګنجائش نسته چې پر قتل اقدام وکړي وَيَصْبِرُ حَتّٰى يُقْتَلَ [بلکې] هغه به صبر کوي تر دې چې خپله قتل کړی سي [شهيد کړی سي] فَإِنْ قَتَلَهُ لېکن که مُکرَه هغه قتل کړي [او صبر نه وکړی سي] كَانَ آثِمًا نو ګنهکاره کيږي لِأَنَّ قَتْلَ الْمُسْلِمِ مِمَّا لَا يُسْتَبَاحُ لِضَرُورَةٍ مَا ځکه چې د مسلمان قتلول د هيڅ ضرورت په وجه هم نه مباح کيږي فَكَذَا بِهٰذِهِ الضَّرُورَةِ نو ځکه د دغه ضرورت [اکراه] په وجه به هم نه مباح کيږي قَالَ: وَالْقِصَاصُ عَلَى الْمُكْرِهِ إِنْ كَانَ الْقَتْلُ عَمْدًا فرمايي: چې قصاص پر مُکرِه دی که چيري دا قتل عمدا [قصدا] وي قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ ❁ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ زُفَرُ: يَجِبُ عَلَى الْمُكْرَهِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر مُکرَه قصاص واجبيږي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: لَا يَجِبُ عَلَيْهِمَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر دواړو قصاص نه واجبيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجِبُ عَلَيْهِمَا او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر دواړو واجبيږي لِزُفَرَ: أَنَّ الْفِعْلَ مِنَ الْمُكْرَهِ حَقِيقَةً وَحِسًّا د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د قتل فعل له مُکرَه شخصه صادر سوی دی حقيقتاً هم او حساً هم وَقَرَّرَ الشَّرْعُ حُكْمَهُ عَلَيْهِ وَهُوَ الْإِثْمُ او شريعت د قتل حکم يعني ګناه پر هغه مقرر کړې ده بِخِلَافِ الْإِكْرَاهِ عَلٰى إِتْلَافِ مَالِ الْغَيْرِ په خلاف د بل چا د مال هلاکولو د اکراه لِأَنَّهُ سَقَطَ حُكْمُهُ وَهُوَ الْإِثْمُ ځکه چې [په هغه کي] له مُکرَه شخصه د اتلاف حکم يعني ګناه ساقط سوې ده فَأُضِيفَ إِلٰى غَيْرِهِ نو ځکه [هلته] له مُکرَه شخصه بغير بل چا ته اتلاف منسوب کړی سوی دی وَبِهٰذَا يَتَمَسَّكُ الشَّافِعِيُّ فِي جَانِبِ الْمُكْرَهِ او د مُکرَه په هکله امام شافعي رَحِمَهُ الله هم په همدې [د امام زفر رَحِمَهُ الله په دليل] سره دليل نيسي وَيُوجِبُهُ عَلَى الْمُكْرِهِ أَيْضًا او هغه پر مُکرِه هم [په دې وجه] قصاص واجبوي لِوُجُوْدِ التَّسْبِيبِ إِلَى الْقَتْلِ مِنْهُ ځکه چې د قتل سبب جوړېدل د هغه له طرفه موجود سوي دي [يعني هغه د

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة داماد افندي رَحِمَهُ الله: وإن أكره على قتل غيره أو قطع عضوه بالقتل او القطع لا يرخص له في ذالك بل يلزم الصبر عليه... فإن فعل أي، إن قتل أو قطع العضو بالكره، فالقصاص على المُكرِه (بكسر الراء) فقط أي دون المكره إن كان القتل عمداً (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۴۲)، وهكذا في الهندية (ج:۵، ص:۳۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۴۹]

قتل سبب جوړ سوی دی] وَلِلتَّسْبِيْبِ فِي هٰذَا حُكْمُ الْمُبَاشَرَةِ عِنْدَهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په قتل کي تسبیب لره د مباشرت حکم حاصل دی [یعني د قتل سبب جوړېدل داسي دي لکه په خپله قتل کول] كَمَا فِي شُهُوْدِ الْقِصَاصِ لکه څرنګه چي د قصاص په ګواهانو کي دي وَلِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّ الْقَتْلَ بَقِيَ مَقْصُوْرًا عَلَى الْمُكْرَهِ مِنْ وَجْهٍ نَظَرًا إِلَى التَّأْثِيْمِ د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي د ګنکاره کېدو وطرف ته په نظر کولو سره قتل په یوه اعتبار پر مُکرَه منحصر دی وَأُضِيفَ إِلَى الْمُكْرِهِ مِنْ وَجْهٍ نَظَرًا إِلَى الْحَمْلِ او [پر قتل] د پارولو [مجبوره کولو] وطرف ته په نظر کولو سره دا قتل په یوه اعتبار مُکرِه ته منسوب دی فَدَخَلَتِ الشُّبْهَةُ فِي كُلِّ جَانِبٍ نو په هر طرف کي شبهه داخل سوه وَلَهُمَا: أَنَّهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى الْقَتْلِ بِطَبْعِهِ إِيْثَارًا لِحَيَاتِهِ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي قاتل خپل ژوند ته د ترجيح ورکولو په غرض د خپل طبيعت په تقاضا د هغه کس پر قتل مجبوره کړی سوی دی فَيَصِيْرُ آلَةً لِلْمُكْرِهِ فِيْمَا يَصْلُحُ آلَةً لَهُ نو ځکه مُکرَه به په هغه څه کي د مُکرِه آله ګرځي په کوم څه کي چي د هغه دآلې جوړېدلو صلاحيت لري وَهُوَ الْقَتْلُ بِأَنْ يُلْقِيَهِ عَلَيْهِ او هغه قتل دی په دې توګه چي قتل پر هغه واچوي وَلَا يَصْلُحُ آلَةً لَهُ فِي الْجِنَايَةِ عَلَى دِيْنِهِ او مُکرَه پر خپل دين د جنايت کولو په حواله سره د مُکرِه آله نه سي جوړېدای فَبَقِيَ الْفِعْلُ مَقْصُوْرًا عَلَيْهِ فِي حَقِّ الْإِثْمِ نو ځکه د ګناه په حق کي د قتل فعل پر مُکرَه منحصر پاته سو كَمَا نَقُوْلُ فِي الْإِكْرَاهِ عَلَى الْإِعْتَاقِ لکه څرنګه چي [د خپل غلام] پر آزادولو د مجبوره کېدلو په هکله موږ همداسي وايو وَفِي إِكْرَاهِ الْمَجُوْسِيِّ عَلَى ذَبْحِ شَاةِ الْغَيْرِ يَنْتَقِلُ الْفِعْلُ إِلَى الْمُكْرِهِ فِي الْإِتْلَافِ دُوْنَ الذَّكَاةِ او [لکه څرنګه چي] د بل چا د پُسه پر ذبح کولو د مجوسي د مجبوره کېدلو په هکله [موږ وايو چي] د اتلاف په حق کي فعل د مُکرِه وطرف ته منتقل کيږي، نه د شرعي ذبح کولو [حلالولو] په حق کي [د زکاة خپله معنیٰ ده په شرعي توګه ذبح کول چي د هغه نتيجه د څاروي حلال کېدل دي، نو مطلب دا چي د مجوسي په لاس ذبح کړی سوی پُسه حلال نه ګرځي] حَتّٰى يَحْرُمَ تر دې چي هغه حراميږي [يعني د هغه غوښي خوړل حرام دي] كَذَا هٰذَا نو همداسي به دا [قتل] هم وي.

**اللغات**: ﴿اتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، بربادول، هلاکول. ﴿يستباح﴾ د استفعال له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: مباح کېدل، روا کېدل. ﴿مخمصة﴾ د سختي لوږي حالت، د

سختي مجبوري حالت، ﴿حساً﴾ په حسي توګه، په مشاهده سره (احسن الهدایه)، ﴿قرّر﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: مقرر کول، ټاکل، باقي پرېښوول، ﴿يتمسك﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: دليل نيول، استدلال کول، ﴿تسبيب﴾ د تفعیل د باب مضارع ده: سبب جوړول، سبب جوړېدل (سبب ګرځېدل)، ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو کار په خپله کول، (براه راست کول)، ﴿تأثيم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ګنهکاره کول، ګنهکاره ګرځېدل، ﴿إيثار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ترجيح ورکول، ﴿الذكاة﴾ د شرعي شرطونو مطابق ذبح کول (حلالول). (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح**: په دې عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو څوک د ځان يا اندام هلاکولو په دمکۍ سره د يو مسلمان د مال پر ضايع کولو مجبوره کړی سي، نو د هغه لپاره د دې ګنجايش سته چي خپل ځان وساتي او د هغه مسلمان مال ضايع کړي؛ ځکه چي د مخمصې د حالت په څېر په دغه صورت کي هم د بل چا د مال مباح کېدلو ضرورت ثابت دی، نو ځکه مُکرَه ته به د خپل ځان د بچ کولو په خاطر داسي کار کول مباح او جائز وي، خو څرنګه چي مُکرَه په دې کار کي مجبور محض دی او د مُکرِه آله ده، نو ځکه اصل ضمان (تاوان) به پر مُكرِه واجب وي او د مال خاوند (مسلمان) به له همدې مُکرِه څخه تاوان اخلي.

(۲)... که يو سړی د يو چا پر قتل کولو مجبوره کړی سي او دغه اکراه هم د ځان يا اندام د هلاکت پر دمکۍ مشتمله وي، نو د مُکرَه لپاره په دې صورت کي د مُکرِه پر خبره عمل کول او د قتل کار تر سره کول صحيح نه دي؛ ځکه چي مسلمان قتل کول په هيڅ حالت کي او د هيڅ ډول ضرورت پر بناء مباح (روا) نه دي، نو ځکه د اکراه په وجه به هم نه مباح کېږي. او که چيري دغه قتل "قتلِ عمد" وي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر مُکرِه قصاص واجبېږي او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز پر مُکرَه قصاص واجبېږي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر دواړو واجبېږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر يوه هم نه واجبېږي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي د مُکرَه له طرفه حقيقتاً، حساً او معاينتاً د قتل فعل صادر او موجود سوی دی، او شريعت د قتل اخروي سزا يعني ګناه پر هغه مقرر کړې ده، نو ځکه دنياوي سزا يعني قصاص به هم پر هغه لازم وي او د مُکره سره به د دې هيڅ واسطه او تعلق نه وي. د دې په خلاف څرنګه چي د مال ضايع کولو په صورت کي له مُکرَه څخه ګناه ساقط سوې ده، نو ځکه ضمان به هم له هغه څخه ساقطېږي. لېکن په دې مسئله کي پر هغه ګناه لازم ده، نو ځکه قصاص به هم پر واجب وي.

**د امام شافعي دليل**. پر مُکرَه د قصاص واجبېدلو په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله هم پورتنی دليل دی او څرنګه چي دغه پر مُکرِه هم قصاص واجب کړی دی، نو د مُکرِه په هکله د هغه دليل دا دی چي

همدا مُکره د قتل سبب جوړ سوی دی او مُکره یې پر قتل مجبوره کړی دی، که چیري ده جبر نه کولای، نو مُکرَه به دا سنګین جرم هیڅکله نه کولای، لهذا همدا مکره د قتل سبب او ذریعه ده او د مُکرَه سره په دې جرم کي شریک دی، بلکي د جرم اصل مُحرِک او داعي دی، نو ځکه پر هغه به هم قصاص واجبیږي؛ ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د قتل تسبیب (سبب جوړېدل) هم قتل دی او تسبیب ته د مباشرة حکم حاصل دی، لکه دوه خلک چي دا ګواهي ورکړي چي مثلاً زید راغلی او خالد یې قصداً (عمداً) قتل کړی، او قاضي د هغو د ګواهي په سبب زید قصاصاً قتل کړي، بیا معلومه سي چي ګواهي خو دروا غ وه او خالد صحیح سالم پاته دی. نو څرنګه چي د زید قصاصاً قتل د دغه ګواهانو په سبب سره سوی دی او دوی یې سبب ګرځېدلي دي. نو ځکه دوی به هم قصاصاً قتل کول کیږي.

**د امام ابو یوسف دلیل**: دا دی چي که ګناه ته وکتل سي، نو د دغه قتل ذمه واره مُکرَه دی؛ ځکه چي د قتل ګناه پر هغه لازم ده، او که تحریک او تحریض (پارولو) ته وکتل سي، نو د دغه قتل مجرم صرف مُکرِه دی، ګواکي دلته د قصاص په وجوب کي شبهه ده، او په شبهي سره قصاص ساقطیږي.

**د طرفینو دلیل**: دا دی چي د ځان وژلو په دمکۍ سره مُکرَه د مُکرِه له طرفه پر دغه قتل مجبوره کړی سوی دی او د فطرت تقاضا دا ده چي انسان خپل ځان (نفس) ته د بل چا پر ځان ترجیح ورکوي، نو ځکه په دغه قتل کي به قاتل یعني مُکرَه د آمر (حکم کونکي) یعني د مُکرِه آله وي او همدا مُکرِه به حقیقي قاتل وي، نو ځکه قصاص به هم صرف پر هغه واجب وي، لېکن څرنګه چي د قتل فعل مُکرَه تر سره کړی دی، نو ځکه شریعت پر هغه ګناه لازم کړې ده او د ګناه په لزوم کي مُکرَه د مُکرِه آله نه کیږي، مثلاً که زید ادریس د هغه د غلام پر آزادولو مجبوره کړي او د وژلو دمکي ورکړي (چي که ته ستا غلام آزاد نه کړې، نو والله که دژوند شکه وکړې!)، او ادریس مکرهاً هغه غلام آزاد کړي، نو صرف د آزادولو په حق کي ادریس د مُکرِه (زید) آله کیږي او هغه ته دا حق حاصلیږي چي له مُکرِه (زید) څخه ضمان واخلي، او د ولاء ثابتېدلو په حق کي مُکرَه د مُکرِه آله نه کیږي او ولاء مُکرَه (ادریس) ته حاصلیږي کوم چي د غلام آزادونکی دی، همداسي په پورتنی مسئله کي د قصاص واجبېدلو په حق کي مُکرَه د مُکرِه آله کیږي، لېکن د ګناه د لزوم په هکله د هغه آله نه کیږي او ګناه پر مُکرَه لازمیږي.

**ولو اکراه المجوس الخ**: همدارنګه که د یو مسلمان له طرفه مجوسي کس، پر دې مجبوره کړی سي چي د بل چا پسه ذبح کړي، نو دلته هم مُکرَه (مجوسي) صرف د ذبح کولو او ضایع کولو په اعتبار سره په فعل کي د مُکرِه (مسلمان) آله کیږي او ضمان پر مُکرِه (مسلمان) لازمیږي، لېکن د حلال ګرځولو په اعتبار سره مُکرَه (مجوسي) د هغه آله نه کیږي یعني د مُکرَه (مجوسي) په لاس ذبح کړی سوی پسه نه حلالیږي. همدغه ډول پورتنی مسئله هم ده. (احسن الهدایه)

## پر طلاق ورکولو یا د غلام پر آزادلو د مجبوره کېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَىٰ طَلَاقِ امْرَأَتِهِ أَوْ عِتْقِ عَبْدِهِ فرمايي: او كه څوک د خپلې ښځې پر طلاق يا د غلام پر آزادولو مجبوره کړی سي فَفَعَلَ او هغه همداسي وکړي وَقَعَ مَا أُكْرِهَ عَلَيْهِ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز واقع کيږي هغه څه پر کوم چي هغه مجبوره کړی سوی دی خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام اشافعي رَحِمَهُ الله وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ او په كتاب الطلاق کي دا [دا مسئله] تېره سوې ده قَالَ: وَيَرْجِعُ عَلَى الَّذِي أَكْرَهَهُ بِقِيمَةِ الْعَبْدِ فرمايي: او مُكرَه به پر مُكرِه د غلام د قيمت رجوع كوي [يعني له هغه څخه به د غلام قيمت اخلي] لِأَنَّهُ صَلُحَ آلَةً لَهُ فِيهِ مِنْ حَيْثُ الْإِتْلَافُ ځکه چي د ضايع كولو په حيثيت سره مُكرَه په دې کي د مُكرِه د آلې جوړېدلو صلاحيت لري فَيُضَافُ إِلَيْهِ نو دا فعل به د مُكرِه وطرف ته منسوب كيږي فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا نو ځکه مُكرَه ته به دا حق وي چي له مُكرِه څخه ضمان [تاوان] واخلي برابره ده مُكرِه مالدار وي او که تنګلاسی [غریب] وي وَلَا سِعَايَةَ عَلَى الْعَبْدِ او پر غلام سعايه [خواري كښل] واجب نه دي لِأَنَّ السِّعَايَةَ إِنَّمَا تَجِبُ لِلتَّخْرِيجِ إِلَى الْحُرِّيَّةِ أَوْ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْغَيْرِ ځکه سعايه خو يا د آزادۍ وطرف ته د ايستلو په وجه يا د غلام سره د بل چا د حق متعلق كېدلو په وجه واجبيږي وَلَمْ يُوجَدْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا او [دلته] له دغه دواړو څخه هيڅ شی موجود سوی نه دی وَلَا يَرْجِعُ الْمُكْرَهُ عَلَى الْعَبْدِ بِالضَّمَانِ او مُكرِه پر غلام د ضمان رجوع نه سي كولای [يعني هغه چي و مكرَه ته په ضمان کي کوم قيمت ورکړی دی، هغه له غلام څخه نه سي اخيستلای] لِأَنَّهُ مُؤَاخَذٌ بِإِتْلَافِهِ ځکه چي مُكرَه [په خپله] د هغه په ضايع كولو کي مأخوذ دی قَالَ: وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ مَهْرِ الْمَرْأَةِ إِنْ كَانَ قَبْلَ الدُّخُولِ فرمايي: او مُكرَه به [پر مُكرِه] د ښځي د نيم مهر رجوع كوي كه چيري طلاق تر دخول مخكي وي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي الْعَقْدِ مُسَمًّى او که په عقد نکاح کي مهر ټاکل سوی نه وي يَرْجِعُ عَلَى الْمُكْرِهِ بِمَا لَزِمَهُ مِنَ الْمُتْعَةِ نو مُكرَه به [پر مُكرِه] د هغه متعې رجوع كوي کوم چي پر مُكرَه لازمه سوې ده [يعني مُكرَه به له مُكرِه څخه لازم شده متعه اخلي] لِأَنَّ مَا عَلَيْهِ كَانَ عَلَىٰ شَرَفِ السُّقُوطِ بِأَنْ جَاءَتِ الْفُرْقَةُ مِنْ قِبَلِهَا ځکه پر خاوند چي کوم شی لازم دی هغه ساقطېدلو ته نږدې وو [يعني د ساقطېدلو امكان پکښې وو] په دې توګه چي د ښځي له طرفه فرقت راسي وَإِنَّمَا يَتَأَكَّدُ بِالطَّلَاقِ لېکن د طلاق په وجه هغه مؤكد سو

فَكَانَ إِتْلَافًا لِلْمَالِ مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ نو په دې اعتبار سره هغه د مال ضايع کول دي فَيُضَافُ إِلَى الْمُكْرِهِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِتْلَافٌ نو ځکه د ضايع کولو په حيثيت سره به هغه د مُکره وطرف ته منسوبول کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا دَخَلَ بِهَا په خلاف د هغه صورت کله چي خاوند په ښځي دخول کړی وي لِأَنَّ الْمَهْرَ قَدْ تَقَرَّرَ بِالدُّخُولِ لَا بِالطَّلَاقِ ځکه چي [په دې صورت کي] مهر د دخول په وجه مؤکد سو، نه د طلاق په وجه.

**اللغات**: ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، بربادول. ﴿انضاف﴾ د انفعال مصدر دی: نسبت کېدل، منسوب کېدل. ﴿سعاية﴾ د فتح مصدر دی: سعی او کوشش کول، خواري کښل، يعني کسب او مزدوي کول او د ځان آزادولو لپاره مال ګټل. ﴿متعة﴾ متعيّني جامې. کله چي خاوند خپل داسي ښځي ته تر دُخول مخکي طلاق ورکړي چي د نکاح کولو په وخت کي يې د هغې لپاره مهر نه وي ټاکلی يا يې د مهر نفي او انکار کړی وي (چي مهر نه درکوم)، نو په دې صورت کي پر خاوند د دغه ښځي متعه واجبيږي (لکه په کتابُ النکاح کي چي د دې تفصيلي بحث تېر سو)، متعه درې جامو (کپړو) ته وايي: ① قميص (کميس)، ② پړونی، ③ اوږد څادر (کوم چي تر پړوني ډېر اوږد وي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک خپلي ښځي ته پر طلاق ورکو يا د خپل غلام پر آزادولو مجبوره کړی سي او هغه د مُکرِه خبره ومني او خپلي ښځي ته طلاق ورکړي يا غلام آزاد کړي، نو طلاق هم واقع کيږي او عتق (آزادي) هم واقع کيږي؛ ځکه چي د مُکرَه طلاق واقع کيږي. او د غلام آزادولو په صورت کي به مُکرِه وروسته له مُکره څخه خپل د غلام قيمت اخلي؛ ځکه چي د اتلاف په حق کي مُکرَه د مُکرِه آله جوړېدای سي، نو ځکه اتلاف به صرف د مُکرِه وطرف ته منسوب وي، او څرنګه چي دغه ضمان د اتلاف ضمان دی کوم چي په مالداري او تنګلاسي (يسار او اعسار) سره نه مختلف کيږي، نو ځکه مُکرِه برابره ده مالدار وي او که غريب وي، په هر صورت کي به مُکرَه له هغه څخه د غلام قيمت اخلي.

ولا سعاية إلخ: او پر دغه غلام سعايه (سعی کول) يعني خواري کښل، ګټه کول او خپل مالک (مُکرَه) ته ورکول واجب نه دي؛ ځکه چي سعی او سعايه په دې وجه واجبيږي چي غلام (په سعی کولو او مال ګټلو سره) د غلامتوب له حالت څخه ويستل سي او آزاد کړی سي لکه څرنګه چي د امام صاحب مذهب دی (چي د هغه په نيز سعی کونکی غلام د مکاتب په درجه کي دی) حال دا چي دلته غلام له مخکي څخه آزاد سوی او له غلامتوب څخه وتلی دی، نو هغه دوباره له غلامتوب څخه ايستل (دويم ځل

آزادول) ناممکن دي، نو ځکه به سعايه نه واجبيږي. د تخريج إلى الحرية مثال مشترک غلام دی چي کله هغه يو شريک آزاد کړي، نو په دې صورت کي د بشپړ آزادۍ وطرف ته د هغه د وتلو لپاره دې ته ضرورت سته چي غلام د بل شريک د حصې لپاره سعی او ګټه وکړي او هغه ته مال ورکړي او په پوره توګه له غلامۍ څخه ووځي.

أو لتعلق حق الغير: يا سعايه (سعی کول) په دې وجه واجبيږي چي د غلام سره د بل چا حق تړلی وي لکه څرنګه چي د صاحبينو قول دی. مثلاً که مريض خپل داسي غلام آزاد کړي چي پر هغه د خلکو قرضونه بانديې وي، نو پر غلام د هغه خلکو (قرضخواهانو) د حق په وجه سعی کول واجبيږي. او دلته له دغه دواړو خبرو څخه يوه خبره نسته، يعني نه دا غلام مشترک دی او نه د هغه سره د بل چا حق متعلق دی، نو ځکه به دلته پر هغه سعايه نه واجبيږي. او مُكرِه چي و مُكرَه ته کوم ضمان (قيمت) ورکړي، مُكرِه هغه ضمان له دغه غلام څخه نه سي اخيستلای؛ ځکه چي دا ضمان پر هغه د اتلاف په وجه واجب سوی دی، او د اتلاف په ضمان کي ضامن ته د رجوع حق نه حاصليږي؛ ځکه چي ضامن (مُكرِه) په اتلاف کي په خپله مأخوذ دی.

ويرجع بنصف مهر الخ: او د طلاق په صورت کي به خاوند له مُكرِه څخه نيم تاکل سوی مهر (نصف مهرِ مسمیٰ) اخلي په دې شرط چي طلاق قبل الدخول وي. او که چيري مهر تاکل سوی نه وي، نو پر خاوند متعه واجبيږي چي هغه به له مُكرِه څخه اخلي او ښځي ته به يې ورکوي؛ دليل دا دی چي پر خاوند کوم مهر يا (د مهر نه تاکل کېدلو په صورت کي) متعه واجب وه، په هغه کي د ساقطېدلو امکان او احتمال وو، په دې توګه چي شايد فرقت د ښځي له طرفه واقع سي، لېکن کله چي طلاق واقع سو، نو مهر پر خاوند مؤکد او پوخ سو، نو ځکه د مال (مهر يا متعې) اتلاف به د مُكرِه وطرف ته منسوبول کيږي او مُكرَه ته به دا حق او اختيار حاصليږي چي له مُكرِه څخه نيم مهر يا متعه واخلي. لېکن که چيري مُكرَه (خاوند) د ښځي سره وطي کړي وي، نو په دې صورت کي هغه له مُكرِه څخه هيڅ شی نه سي اخيستلای؛ ځکه چي اوس مهر د وطي په وجه پر خاوند مؤکد سوی دی، نه د طلاق په وجه، نو صرف د ملک نکاح اتلاف باقي پاته سو، او ملک نکاح (د خروج په وخت کي) مال نه دی، او کوم شی چي مال نه وي، د هغه په ضايع کولو سره ضمان نه لازميږي. فلا يضمن المُكرِه بإتلاف ما ليس بمال.

همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د طلاق بعد الدخول په صورت کي مُكرِه د مهر مثل ضامن کيږي.

## د طلاق یا عتاق لپاره پر وکیل جوړولو د مجبوره کېدلو حکم

وَلَوْ أُكْرِهَ عَلَى التَّوْكِيلِ بِالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ او که یو څوک د طلاق یا آزادولو لپاره پر وکیل جوړولو مجبوره کړی سي فَفَعَلَ الْوَكِيلُ او وکیل همداسي وکړي جَازَ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً دا جائز دي لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ مُؤَثِّرٌ فِي فَسَادِ الْعَقْدِ ځکه اکراه د عقد په فاسدېدلو کي اثر کونکې ده وَالْوَكَالَةُ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او وکالت په فاسدو شرطونو سره نه باطلیږي وَيَرْجِعُ عَلَى الْمُكْرِهِ اسْتِحْسَانًا او مُکرَه به استحساناً پر مُکرِه رجوع کوي لِأَنَّ مَقْصُودَ الْمُكْرِهِ زَوَالُ مِلْكِهِ إِذَا بَاشَرَ الْوَكِيلُ ځکه چي د مُکرِه مقصود د مُکرَه د ملکیت ختمېدل دي کله چي وکیل دا کار [طلاق یا عتاق] وکړي [یعني د مُکرِه مقصد دا دی چي کله وکیل دا کار وکړي نو د مُکرَه ملکیت دي ختم سي] وَالنَّذْرُ لَا يَعْمَلُ فِيهِ الْإِكْرَاهُ او په نذر کي اکراه عمل [او اثر] نه کوي لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ ځکه چي نذر د فسخ کېدو احتمال نه لري وَلَا رُجُوعَ عَلَى الْمُكْرِهِ بِمَا لَزِمَهُ او پر مُکرِه رجوع نسته د هغه شي په هکله کوم چي پر مُکرَه لازم سوی دی [یعني مُکرَه هغه له مُکرِه څخه نه سي اخیستلای] لِأَنَّهُ لَا مُطَالِبَ لَهُ فِي الدُّنْيَا ځکه چي په دنیا کي د هغه هیڅ مطالبه کونکی نسته فَلَا يُطَالَبُ بِهِ فِيهَا نو ځکه په دنیا کي به له ده څخه د هغه مطالبه نه کیږي وَكَذَا الْيَمِينُ وَالظِّهَارُ لَا يَعْمَلُ فِيهِمَا الْإِكْرَاهُ او همداسي په قسم او ظهار کي هم اکراه عمل نه کوي لِعَدَمِ احْتِمَالِهِمَا الْفَسْخَ ځکه دا دواړه هم د فسخ احتمال نه لري وَكَذَا الرَّجْعَةُ وَالْإِيلَاءُ وَالْفَيْءُ فِيهِ بِاللِّسَانِ او همدا حکم د رجعت کولو او ایلاء کولو او په ایلاء کي د ژباني رجعت کولو هم دی لِأَنَّهَا تَصِحُّ مَعَ الْهَزْلِ ځکه چي دا شیان د هزل سره هم صحیح دي وَالْخُلْعُ مِنْ جَانِبِهِ طَلَاقٌ أَوْ يَمِينٌ لَا يَعْمَلُ فِيهِ الْإِكْرَاهُ او خلع د خاوند له طرفه طلاق دی یا یمین دی چي په هغه کي اکراه عمل نه وي فَلَوْ كَانَ هُوَ مُكْرَهًا عَلَى الْخُلْعِ دُونَهَا او که چیري همدا خاوند پر خلع مجبوره کړه سوی وي، نه ښځه لَزِمَهَا الْبَدَلُ نو پر ښځي بدل [بدل خلع] لازمیږي لِرِضَاهَا بِالِالْتِزَامِ ځکه هغې په رضا سره پر ځان بدل لازم کړی دی قَالَ: وَإِنْ أَكْرَهَهُ عَلَى الزِّنَا فرمایي: او که یو څوک بل څوک پر زنا مجبوره کړي وَجَبَ عَلَيْهِ الْحَدُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه [مُکرَه زاني] حد واجبیږي إِلَّا

أَنْ يُكْرِهَهُ السُّلْطَانُ مګر دا چي باچا هغه مجبوره کړي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ: لَا يَلْزَمُهُ الْحَدُّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه حد نه لازميږي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْحُدُوْدِ او دا [مسئله] موږ په کتاب الحدود کي ذکر کړې ده.

**اللغات**: ﴿توكيل﴾ د تفعيل مصدر دی: وکيل جوړول (يو چا ته کار سپارل، په غاړه يو کار ورکول)، ﴿باشر﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: يو کار په خپله کول، ﴿الرجعة﴾ د ضرب مصدر دی: رجعت کول، ښځي ته رجوع کول، ﴿إيلاء﴾ د افعال مصدر دی: د ښځي سره د جماع نه کولو قسم اخيستل، ﴿الفيء﴾ د ضرب مصدر دی: رجوع کول، ﴿هزل﴾ د ضرب مصدر دی: ټوکي او مسخرې کول، د مسخرو په توګه يو خبره يا يو کار کول، ﴿خلع﴾ د مال په عوض کي ښځه له خپل نکاح څخه ايستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی بل چا ته د ځان وژلو دمکي ورکړي او پر دې يې مجبوره کړي چي "ته خپلي ښځي ته د طلاق ورکولو يا د خپل غلام د آزادولو لپاره وکيل جوړ کړه!"، او دا بل څوک (مُكرَه) د دې کار لپاره وکيل جوړ کړي او وکيل دا کار ونه تر سره کړي، نو استحساناً طلاق او عتاق دواړه واقع کيږي، لېکن قياساً نه واقع کيږي؛ ځکه چي په اکراه سره وکالت باطليږي او د وکالت باطلېدلو په صورت کي د وکيل فعل نه نافذيږي. خو بيا هم شريعت استحساناً هغه جائز (او واقع) ګرځولی دی او د جواز علت يې دا بيان کړی دی چي اکراه د عقد په فساد کي مؤثر ده يعني عقد خو منعقد کيږي لېکن د اکراه په وجه فاسديږي، نو اکراه د به د فاسد شرط په درجه کي وي، او وکالت په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي، نو ځکه په اکراه سره به هم وکالت نه باطليږي او استحساناً د وکيل دا فعل به جائز او صحيح وي. خو مُكرَه (مؤكل) ته چي کوم نقصان رسېدلی وي يعني د ښځي مهر او د غلام قيمت، هغه به له مُكرِه څخه اخلي؛ ځکه چي د مُكرِه مقصد همدا دی چي کله وکيل د غه مُكرَه به کار سر ته ورسوي نو په هغه سره به د مُكرَه ملکيت زائل سي، او د ملکيت زائلېدلو په صورت کي مُكرِه تلفونکی ګرځي، او پر تلفونکي کس (مُتلف) ضمان لازميږي، نو ځکه پر د غه مُكرِه به هم ضمان لازميږي.

والنذر لا يعمل فيه الإكراه إلخ: د دې حاصل دا دی چي په نذر کي اکراه عمل او اثر نه کوي، يعني که يو سړی بل چا ته د وژلو دمکي ورکړي او هغه ته ووايي چي "ته د روژې يا حج نذر ومنه!" (مثلاً پر ما د الله لپاره دومره روژې لازم دي يا پر ما حج لازم دي) او هغه (مُكرَه) نذر ومني، نو نذر صحيح کيږي؛ ځکه چي په نذر کي د فسخ احتمال نسته، نو ځکه اکراه به هم په هغه کي عمل نه کوي، او په دغه

اكراه سره چي پر مُكرَه كوم شى لازم دى، د هغه په هكله مُكرَه پر مُكره رجوع نه سي كولاى؛ ځكه چي پر مُكرَه داسي شى لازم سوى دى چي كه هغه يې نه وكړي، نو په دنيا كي د هغه مؤاخذه نه كيږي، بلكي په آخرت كي به پوښتنه ځني كيږي او د هغه سزا به په آخرت كي وركول كيږي. نو ځكه مُكرَه هم په دنيا كي له مُكرِه شخصه هيڅ مطالبه نه سي كولاى. د قسم (يمين) او ظهار حكم هم د نذر د حكم په څېر دى، يعني د دې شيانو اكراه هم صحيح ده؛ ځكه چي د نذر په څېر دوى هم د فسخ احتمال نه لري.

او كه چيري څوک خپلي مطلقه ښځي ته پر رجوع كولو يا د خپلي ښځي سره پر ايلا كولو يا له ايلاء څخه پر زباني او قولي رجعت كولو مجبوره كړى سي، نو دا اكراه هم صحيح ده او د اكراه باوجود د مُكرَه له طرفه د دغو افعالو اداء كول صحيح او معتبر دي؛ ځكه چي رجعت، ايلاء او داسي نور د هزل (مسخرو) په حالت كي هم صحيح دي، او كوم شى چي د هزل په حالت كي صحيح كيږي، هغه د فسخ احتمال نه لري او كوم شى چي د فسخ احتمال نه لري، په هغه كي فسخ عمل نه كوي او مع الاكراه هم هغه صحيح كيږي.

والخلع من جانبه إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه څوک پر دې خبره مجبوره كړى سي چي د خپلي ښځي سره خلع وكړي، بيا هغه (مُكرَه) خلع وكړي، نو دغه خلع طلاق شمېرل كيږي او د اكراه باوجود هغه صحيح كيږي. بيا كه په دې صورت كه صرف پر خاوند اكراه وي او پر ښځي اكراه نه وي، نو پر ښځي بدل خلع لازميږي؛ ځكه په دې صورت كي ښځه د خلع او د بدل خلع په قبلولو راضي ده.

قال وإن أكرهه إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه يو څوک بل څوک پر زنا كولو مجبوره كړي، او هغه (مُكرَه) زنا وكړي، نو د امام امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغه حد (حدِ زنا) واجبيږي؛ ځكه دالې (ذَكَر) له انتشار او جګېدلو څخه بغير د سړي زنا كول ممكن نه دي او د الې انتشار بلا لذته نه كيږي (يعني ذَكَر صِرف د خوند راتلو په وخت كي جګيږي) او د لذت او خوند راتلل په خوښي او رضا سره د كولو دليل دى. ها! كه چيري پر زنا مجبورونكى كس باچا وي، نو حد نه واجبيږي؛ ځكه چي د حد واجبېدل د زجر او تنبيه وركولو لپاره وي (چي د آينده لپاره زاني د زنا فعل نه وكړي)، او (د باچا) د اكراه سره دې ته هيڅ ضرورت نسته. نو په دې فعل (زنا) سره د مُكرَه مقصد له خپل ځان څخه هلاكت لري كول دي. نه د شهوت پوره كول. نو ځكه دا به د حد په اسقاط كي شبهه وګرځي. پاتېه سو دالې منتشر كېدل او جګېدل. نو هغه ځيني وخت په طبعي توګه وي، لكه د بيده سړي دالې منتشر كېدل چي د هغه له قصد او اختيار څخه بغير وي.

بیا د سلطان استثناء (یعني دا استثناء چې که مُکرِه کس باچا وي، نو حد نه واجبیږي) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په مرجوع الیه قول کې سوې ده، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په اول قول کې د باچا استثناء نه ده سوې بلکې مُکرَه که باچا وي او که بل څوک وي، پر دواړو حد واجبیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دواړو صورتونو کې حد نه واجبیږي؛ ځکه چې هر طاقتور او واک لرونکی کس پر اکراه قادر وي. وګڼکي ذکر سوه چې د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په مینځ کې دغه د سلطان او نا سلطان اختلاف د عصر او زمانې پر اختلاف مبني دی [احسن الهدایه ا]

## پر ارتداد د مجبوره کېدلو په صورت کې د ښځې د بائنه کېدلو (طلاقِ بائن واقع کېدلو) حکم او تفصیل

قَالَ: وَإِذَا أُكْرِهَ عَلَى الرِّدَّةِ فرمايي: او که یو څوک پر مرتد کېدلو مجبوره کړی سي لَمْ تَبِنْ اِمْرَأَتُهُ مِنْهُ نو ښځه له هغه څخه نه بائنه کیږي لِأَنَّ الرِّدَّةَ تَتَعَلَّقُ بِالِاعْتِقَادِ ځکه چې مرتد کېدل د اعتقاد سره تعلق لري أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ كَانَ قَلْبُهُ مُطْمَئِنًّا بِالْإِيمَانِ آیا ته نه ګورې! چې که د هغه زړه په ایمان سره مطمئن وي [یعني د ایمان په هکله مطمئن وي] لَا يَكْفُرُ نو نه کافر کیږي وَفِي اعْتِقَادِهِ الْكُفْرَ شَكٌّ او د هغه د کفره په اعتقاد [عقیده لرلو] کې شک دی [یعني په دې کې شک دی چې هغه د کفر عقیده لري، که نه] فَلَا تَثْبُتُ الْبَيْنُونَةُ بِالشَّكِّ نو ځکه د شک په وجه به بائنه والی [د ښځې او خاوند تر مینځ جلا والی] نه ثابتیږي فَإِنْ قَالَتِ الْمَرْأَةُ قَدْ بِنْتُ مِنْكَ او که چیرې ښځه ووایي: چې زه ستا څخه بائنه سوم وَقَالَ: هُوَ قَدْ أَظْهَرْتُ ذَٰلِكَ وَقَلْبِي مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ او خاوند ووایي: چې ما په داسې حال کې د کفر اظهار کړی وو چې زما زړه په ایمان سره مطمئن وو فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً د خاوند قول معتبر دی لِأَنَّ اللَّفْظَ غَيْرُ مَوْضُوعٍ لِلْفُرْقَةِ ځکه چې لفظ [کلمه د کفر] د فرقت لپاره نه ده وضع کړی سوې وَهِيَ بِتَبَدُّلِ الِاعْتِقَادِ او فرقت د اعتقاد [عقیدې] په بدلېدو سره واقع کیږي وَمَعَ الْإِكْرَاهِ لَا يَدُلُّ عَلَى التَّبَدُّلِ او د اکراه سره دا لفظ د اعتقاد پر بدلېدو دلالت نه کوي فَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو ځکه قول به د خاوند معتبر وي بِخِلَافِ الْإِكْرَاهِ عَلَى الْإِسْلَامِ په خلاف پر اسلام د مجبوره کولو حَيْثُ يَصِيرُ بِهِ مُسْلِمًا نو په هغه سره مُکرَه مسلمان ګرځي لِأَنَّهُ لَمَّا احْتَمَلَ وَاحْتَمَلَ ځکه کله چې په دې لفظ کې د اسلام د قصد کولو [او عقیده لرلو] احتمال هم سته او د اسلام د قصد نه کولو احتمال هم

سته رَجَّحْنَا الْإِسْلَامَ فِي الْحَالَيْنِ نو موږ په دواړو حالتونو کي اسلام ته ترجيح ورکړه لِأَنَّهُ يَعْلُو وَلَا يُعْلَى ځکه چي اسلام [هميشه] غالب کيږي او مغلوب کيږي نه وَهٰذَا بَيَانُ الْحُكْمِ او دا د حکم [او قضاء] بيان دی أَمَّا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى إِذَا لَمْ يَعْتَقِدْهُ فَلَيْسَ بِمُسْلِمٍ لیکن فيما بينه وبين الله [دیانتا] که هغه په زړه کي د اسلام عقيده نه لري نو هغه مسلمان نه دی وَلَوْ أُكْرِهَ عَلَى الْإِسْلَامِ حَتَّى حُكِمَ بِإِسْلَامِهِ ثُمَّ رَجَعَ او که چيري يو ځوک پر اسلام راوړلو مجبوره کړی سي تر دې چي د هغه د مسلمان والي فيصله وسي بيا هغه بيرته له اسلام څخه وګرځي لَمْ يُقْتَلْ نو هغه به نه قتلول کيږي لِتَمَكُّنِ الشُّبْهَةِ د شبهي د موجودېدلو په وجه وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْقَتْلِ او شبهه د قتل دفع کونکې [ساقطونکې] ده وَلَوْ قَالَ الَّذِي أُكْرِهَ عَلَى إِجْرَاءِ كَلِمَةِ الْكُفْرِ: أَخْبَرْتُ عَنْ أَمْرٍ مَاضٍ وَلَمْ أَكُنْ فَعَلْتُ او که مُکرَه د کفري کلمې د جاري کولو [ويلو] په هکله ووايي: چي ما د خپل تېر سوي امر [کفر] په هکله [درواغجن] خبر ورکړی حال دا چي په [تېره سوې زمانه کي] ما داسي نه دي کړي [يعني که مُکرَه ووايي چي داکراه په حالت کي چي ما پر خپل ژبه کومه د کفر کلمه جاري کړې وه، له هغه څخه زما مراد دا وو چي ما په تېره سوې زمانه کي کفر کړی وو، حال دا چي دا خبر درواغجن وو، ځکه چي ما حقيقتاً هيڅکله کفر کړی نه دی] بَانَتْ مِنْهُ حُكْمًا لَا دِيَانَةً نو ښځه له هغه څخه حکماً [قضاءً] بائنه کيږي، ديانتا نه بائنه کيږي لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّهُ طَائِعٌ بِإِتْيَانِ مَا لَمْ يُكْرَهْ عَلَيْهِ ځکه هغه دا اقرار کړی دی چي زه د هغه لفظ پر ويلو خوښ [اومنونکی] وم پر کوم چي اکراه نه وه سوې [ځکه اکراه د کفر پر ښکاره کولو وه، حال دا چي مُکرَه د دې خلاف خبر ورکړی دی] وَحُكْمُ هٰذَا الطَّائِعِ مَا ذَكَرْنَاهُ او د داسي طائع حکم هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَلَوْ قَالَ: أَرَدْتُ مَا طُلِبَ مِنِّي وَقَدْ خَطَرَ بِبَالِي الْخَبَرُ عَمَّا مَضَى او که چيري هغه ووايي: چي ما د هغه څه اراده کړې وه د کوم څه چي زما څخه مطالبه سوې وه حال دا چي زما په زړه کي د تېر سوي امر خبر راغلی وو بَانَتْ دِيَانَةً وَقَضَاءً نو د هغه ښځه ديانتا او قضاء [دواړه ډوله] بائنه کيږي لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّهُ مُبْتَدِئٌ بِالْكُفْرِ هَازِلٌ بِهِ ځکه چي هغه د دې اقرار کړی دی چي ما د مسخرو په توګه په کفر سره ابتداءً کړې وه حَيْثُ عَلِمَ لِنَفْسِهِ مَخْلَصًا غَيْرَهُ ځکه هغه ته له دې څخه بغير هم د خلاصېدلو [ځان خلاصولو] بله لار معلومه وه وَعَلَى هٰذَا إِذَا أُكْرِهَ عَلَى الصَّلَاةِ لِلصَّلِيبِ وَسَبِّ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او پر

همدغه حکم دي کله چې هغه د صليب [مخته] پر لمونځ کولو يا [العياذ بالله] د نبي کريم ﷺ پر ښکنځا مجبوره کړی سي فَفَعَلَ او هغه همداسي وکړي وَقَالَ: نَوَيْتُ بِهِ الصَّلَاةَ لِلّٰهِ تَعَالَىٰ وَمُحَمَّدًا آخَرَ غَيْرَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او داسي ووايي: چې ما په دې سره الله ته د لمونځ کولو نيت کړی وو او له نبي کريم ﷺ څخه بغير د بل محمد نيت مي کړی وو بَانَتْ مِنْهُ قَضَاءً لَا دِيَانَةً نو ښځه له هغه څخه قضاء بائنه کيږي، نه ديانتا وَلَوْ صَلّٰى لِلصَّلِيبِ وَسَبَّ مُحَمَّدًا النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او که چيري هغه صليب ته لمونځ وکړي او نبي کريم ﷺ ته ښکنځا وکړي وَقَدْ خَطَرَ بِبَالِهِ الصَّلَاةَ لِلّٰهِ تَعَالَىٰ وَسَبُّ غَيْرِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د هغه په زړه کي الله ته د لمونځ کولو او له نبي ﷺ څخه بغير بل چا ته د ښکنځا کولو خيال راغلی وي بَانَتْ مِنْهُ دِيَانَةً وَقَضَاءً نو ښځه له هغه څخه ديانتا او قضاء [دواړه ډوله] بائنه کيږي لِمَا مَرَّ د هغه دليل په وجه کوم چې [څه مخکي] تېر سو وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ زِيَادَةً عَلَىٰ هٰذَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او موږ په كفاية المنتهي کي له دې څخه هم زيات وضاحت [او تحقيق] بيان کړی دی.

**اللغات:** ﴿الردّة﴾ له ارتداد څخه اسم دی: ارتداد، مرتد کېدل (له دينِ اسلام څخه ګرځېدل)، الخُرُوْجُ عَنِ الإِسْلَامِ بِإِتْيَانِ مَا يُخْرِجُ عَنْهُ قَوْلًا أَوِ اعْتِقَادًا أَوْ فِعْلًا (يعني د داسي قول يا عقيدې يا فعل په ذريعه له اسلام څخه وتل [اوښتل] چې د هغوی کول انسان د اسلام له دائرې څخه باسي) (معجم لغة الفقهاء)، ﴿اعتقاد﴾ د افتعال مصدر دی: عقيده لرل، عقيده او نظريه. ﴿التبدّل﴾ د تفعيل مصدر دی: بدلېدل، تبديلي (بدلون)، ﴿يعلو﴾ د نصر د باب مضارع معلومه ده: لوړ او بالا کېدل، غالب کېدل، ﴿يُعلی﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده، مراد: مغلوب کېدل، ﴿تمكّن﴾ د تفعّل مصدر دی: ځای نيول، قرار نيول، ﴿دارئة﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده: دفع کونکې، ساقطونکې، ﴿مَخْلَص﴾ د کَرُم د باب مصدرِ ميمي دی: خلاصېدل، بچ کېدل، ﴿خطر﴾ د نصر ماضي ده: په زړه کي خيال راتلل، ﴿هازل﴾ د ضرب د باب د واحد مذکر فاعل صيغه ده: مسخرې کونکی، د مسخرو په توګه يو کار يا يو خبره کونکی.

**تشريح**: په دې عبارت کي څلور مسئلې ذکر سوي دي چي هغوی به انشاء الله د مصنف رَحِمَهُ الله د بيان مطابق ستاسو په خدمت کي پېش کړل سي:

(۱)... که يو سړی پر مرتد کېدلو مجبوره کړی سي او (نعوذ بالله) هغه مرتد سي لېکن په زړه کي پر دغه ارتداد بالکل نا خوښه او مُکرَه وي او د هغه زړه په ايمان سره مطمئن وي، نو د هغه د مرتد والي فيصله به نه کيږي او نه د هغه ښځه له هغه څخه بائنه کيږي؛ ځکه چي د اکراه په وجه د هغه په کفر کي شک دی، او په شک سره بينونت او فرقت نه ثابتيږي، او بل دا چي فرقت هغه وخت ثابتيږي کله چي په اعتقاد (عقيده) کي بدلون راسي او په اعتقاد کي په رضا او رغبت سره بدلون راځي، نه په جبر او اکراه سره، نو ځکه په دې حواله سره به هم د دغه مُکرَه ښځه نه بائنه کيږي. د دې په خلاف که يو کافر پر اسلام راوړلو مجبوره کړی سي او هغه اسلام راوړي، نو موږ هغه مسلمان شمېرو؛ ځکه که څه هم دلته دا احتمال سته چي هغه په زړه او اعتقاد سره اسلام نه دی قبول کړی، خو دا احتمال هم سته چي هغه په زړه او عتقاد سره اسلام قبول کړی دی او په رښتيا يې اسلام راوړی دی، لهذا له دغو دوو احتمالاتو څخه چي هر احتمال هم وي، په صورت کي موږ په دواړو حالتونو کي د هغه د مسلمان والي فيصله کوو "لِأَنَّ الإِسْلَامَ يَعْلُوْ وَلَا يُعْلٰى". د "فِي الحَالَيْن" صحيح تفسير همدا دی کوم چي موږ ذکر کړی، کنې بعضي حضراتو له "فِي الحَالَيْن" څخه د ارتداد ښکاره کولو او د اکراه په حالت کي د اسلام راوړلو دوه حالتونه مراد کړي دي (بنايه ج: ۱۰، ص: ۸۰). بهر حال د دغه مُکرَه مسلمان د اسلام دا فيصله ظاهرا او قضاء ده، نه ديانتا (فيما بينه وبين الله)، او د يانتا د هغه معامله الله ته سپارلې ده، نو که د هغه په زړه کي د اسلام عقيده نه وي، نو ديانتا هغه نه مسلمان کيږي. او که چيري دغه مسلمان وروسته بيا مرتد او کافر سي او له اسلام څخه وګرځي، نو هغه به نه قتلول کيږي؛ ځکه چي د هغه د مسلمان والي فيصله په يو قطعي او يقيني دليل سره نه وه صادر سوې، بلکي د اسلام احتمال او د اسلام اړخ ته په ترجيح ورکولو سره سوې وه، او په دغه احتمال کي دا احتمال موجود وو چي کېدای سي هغه مسلمان سوی نه وي او پر کفر به قائم پاته وي لهذا د هغه دا ارتداد به بالکل معتبر نه وي، نو ځکه د دغه احتمال او شبهي پر بنياد به هغه نه قتلول کيږي؛ ځکه چي د شبهي په وجه حدود ساقطيږي.

ولو قال الذی أکرہ علی إجراء الخ: (۲)... دا مسئله په ترجمه کي تشريح سوه.

ولوقال أردت ما طلب إلخ: (۳)... که مُکرَه ووايي چې د کفري کلمې په ويلو او اظهار کولو سره ما د هغه څه اراده وکړه کوم څه چې د مُکرِه مراد وه، لېکن زما په زړه کې د تېر وخت (زمانه ماضي) د کفر خيال راغلی وو، نو د هغه ښځه ديانتا او قضاء دواړه ډوله له هغه شخصه بائنه کيږي؛ ځکه کله چې د هغه په زړه کې د تېر وخت د کفر درواغجن خيال او خبر راغلی وو، نو که چيري ده هغه نيت کولای، نو له کفر شخصه به بچ کېدلای، خو د دې باوجود ده د هغه څه اراده وکړه کوم چې د مُکرِه مراد وه، نو ګواکې هغه دا اقرار وکړي چې د ما د هزل او مسخرو په توګه ابتداءً کفر کړی دی، نو دا داسې سوه لکه په خپل خوښي او رضا سره کفري کلمه ويل (پر ژبه جاري کول)، نو ځکه په هر اعتبار سره به ښځه بائنه کيږي.

د دغه مسئلې دليل په بله وينا داسې هم ويل کېدای سي چې هغه في الحالة (د مُکرِه مخته) د کفري کلمې تکلّم کړی دی او له کفر شخصه د ځان بچ کولو لپاره يې په تېر وخت کې د خپل کفر درواغجن خبر ورکړی دی، لېکن د هغه دغه تدبير کار نه وکړی سو؛ ځکه چې في الحالة هغه د کفري کلمې تکلّم کړی دی، نو ځکه ظاهرا خو به قاضي د کفر او د ښځې د بائنه کېدلو فيصله کوي، او باطنا يعني ديانتا د هغه د ښځې د بائنه کېدلو دليل دا دی چې د هزل او مسخرو په توګه په خپل خوښۍ سره د کفر اظهار کول هم کفر دی او د کفري کلمې په تکلّم سره په هره توګه ښځه بائنه کيږي.

فايده: خلاصه دا ده چې کوم سړی د کفري کلماتو پر ويلو مجبوره کړی سي، نو د دې مسئلې درې (۳) صورتونه دي، په يوه صورت کې نه کافر کيږي، نه قضاء او نه ديانتا او هغه صورت دا دی چې هغه د کفري کلمې تکلّم وکړي خو پر کوم څه چې مجبوره کړی سوی وي، له هغه شخصه بغير د ده په زړه کې د بل څه خيال نه راسي بلکې د هغه زړه مطمئن بالايمان وي. او په دويم صورت کې صرف قضاء کافر کيږي، نه ديانتا او هغه صورت دا دی چې د هغه مراد او مقصد د تېر وخت د کفر درواغجن خبر ورکول وي، د مستقبل د کفر اراده يې نه وي، په درېيم صورت کې قضاء او ديانتا په هر اعتبار سره کافر کيږي او هغه صورت دا دی چې د هغه په زړه کې د تېر وخت د کفر درواغجن خبر ورکولو خيال راسي خو بيا هم هغه اختيار نه کړي، بلکې د مُکرِه د وينا مطابق د مستقبل د کفر اراده وکړي.

وعلى هذا إلخ: (۴)... که څوک د صليب مخته پر سجده کولو يا نعوذ بالله نبي کريم ﷺ ته پر ښکنځا کولو مجبوره کړی سي او هغه (مُکرَه) دا کار وکړي، نو د دغه مسئلې هم درې صورتونه دي:

①... که مُکرَه ووایي چي ما الله ته د سجدې کولو نیت وکړی یا له نبي ﷺ څخه بغیر بل محمد نومي کس مي د ښکنځلو نیت وکړی، نو په دې صورت کې هغه قضاء کافر کیږي او قضاء له هغه څخه ښځه بائنه کیږي، نه دیانتا ؛ ځکه ظاهرا خو دغه مُکرَه همغه کار کړی دی کوم چي د مُکرِه مقصد وو، لیکن باطنا هغه بل شکل او حالت مراد کړی دی، نو ځکه باطنا به د هغه تصدیق کیږي یعني دیانتا به له هغه څخه ښځه نه بائنه کیږي.

②... او که مُکرَه ووایي چي زما په زړه کي الله ته د سجدې کولو یا له نبي ﷺ بغیر بل محمد نومي سړي ته د ښکنځلو خیال راغلی، خو د مُکرِه د حکم په سبب ما صلیب ته سجده وکړه یا نبي کریم ﷺ ته مي ښکنځل وکړه لیکن زه په دې راضي نه وم، نو په دې صورت کي قضاء او دیانتا دواړه ډوله له هغه څخه ښځه بائنه کیږي؛ ځکه چي هغه ته له کفر څخه د خلاصون موقع په لاس ورغله خو بیا هم هغه دا موقع اختیار نه کړه او د مُکرِه د ارادې موافقت یې وکړی او په دې وینا "چي زه په دې راضي نه وم" سره یې د هغه هزل کېدل ښکاره کړه، نو دا داسي سو لکه په خپل خوښي او رضا سره کفري کار کول، نو ځکه دا به قضاء او دیانتا دواړه ډوله کفر وي او په هر اعتبار سره به ښځه بائنه کیږي.

③... که مُکرَه ووایي چي زما په زړه کي هیڅ خیال نه راغلی او مجبوراً مي صلیب ته سجده وکړه یا مجبوراً مي نبي ﷺ ته ښکنځا وکړه، نو په دې صورت کي هغه قضاء او دیانتا دواړه ډوله نه کافر کیږي او دواړه ډوله له هغه څخه ښځه نه بائنه کیږي؛ ځکه چي هغه په اکراه سره د مجبوره کېدلو په وجه داسي کړي دي حال دا چي د هغه زړه مطمئن دی. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي موږ په کفایة المنتهي کي تر دې زیات تفصیل پېش کړی دی، دلته همدومره تفصیل کافي دی. والله أعلم وعلمهٗ أتم



# كِتَابُ الْحَجْرِ

(دا) کتاب د حجر (د منع او بندیز لګولو د اسبابو په بیان کی) دی

**تشریح**: په کتابُ الحَجر او کتابُ الإکراه کي مناسبت دا دی چي په دې دواړو کي ولایت او تصرف سلبول کیږي، لېکن په اکراه کي له قادر او مختار کس څخه ولایت سلبول کیږي او په حجر کي له ناقص القدرة او غیر مختار کس څخه تصرف سلبول کیږي، نو د اکراه سلب د حجر له سلب څخه اقوی دی. په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله "کتابُ الإکراه" له "کتابُ الحَجر" څخه مخکي بیان کړی دی.

**د حجر لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: "حَجْر" د نصر د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ یې ده: منع کول، راګرځول.

د حجر اصطلاحي معنیٰ ده: "مَنْعٌ مَخْصُوْصٌ أی مَنْعٌ مِنَ التَّصَرُّفِ قَوْلًا لِشَخْصٍ مَّخْصُوْصٍ هُوَ الْمُسْتَحَقُّ لِلْحَجْرِ بِأَيِّ سَبَبٍ كَانَ (مِنْ أَسْبَابِ الثَّلَاثَةِ)" (یعني د حجر له دریو اسبابو څخه د یو سبب په وجه د منع کولو مستحق کس له قولي تصرف څخه منع کول)، لنډه دا چي د حجر معنیٰ ده: پر یو چا د تصرف بندیز لګول (چي ته به [مثلاً] په خپل مال کي تصرف نه کوې!). بندیز لګونکي ته حَاجِر ویل کیږي او پر چا چي بندیز لګول سوی وي او له تصرّف څخه منع کړی سوی وي، هغه ته مَحْجُوْر عَلَيْه ویل کیږي.

## هغه درې اسباب چي د هغوی په وجه حجر او ممانعت ثابتیږي

قَالَ: الْأَسْبَابُ الْمُوْجِبَةُ لِلْحَجْرِ ثَلَاثَةٌ فرمایي: د حجر ثابتونکي اسباب درې دي [یعني په دریو اسبابو سره حجر ثابتیږي] الصِّغَرُ وَالرِّقُّ وَالْجُنُوْنُ ① کوچنیوالی [کم عمري] ② غلامتوب ③ لېونتوب فَلَا يَجُوْزُ تَصَرُّفُ الصَّغِيْرِ إِلَّا بِإِذْنِ وَلِيِّهِ نو د کوچني تصرف جائز نه دی مګر د خپل ولي [مشر] په اجازت سره وَلَا تَصَرُّفُ الْعَبْدِ إِلَّا بِإِذْنِ سَيِّدِهِ او نه د غلام تصرف جائز دی مګر د خپل مالک په اجازت سره وَلَا تَصَرُّفُ الْمَجْنُوْنِ الْمَغْلُوْبِ بِحَالٍ او نه د مغلوب الحاله لېوني تصرف جائز دی أَمَّا الصَّغِيْرُ فَلِنُقْصَانِ

عَقْلِهِ کوم چي کوچنی دی نو ځکه چي د هغه عقل ناقص وي [په عقل کي يې کمي وي] غَيْرَ أَنَّ إِذْنَ الْوَلِيِّ آيَةُ أَهْلِيَّتِهِ خو د ولي اجازت ورکول د هغه د اهل کېدلو علامت دی وَالرِّقُّ لِرِعَايَةِ حَقِّ الْمَوْلَىٰ كَيْلَا يَتَعَطَّلَ مَنَافِعُ عَبْدِهِ وَلَا يُمَلِّكَ رَقَبَتَهُ بِتَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِهِ او کوم چي غلامتوب دی نو [د هغه تصرف نه جائز کېدل] د مالک د حق د رعايت کولو په وجه دی، د دې لپاره چي د هغه د غلام منافع ضايع نه سي او د غلام سره د قرض متعلق کېدلو په وجه د هغه ذات [د بل چا] مملوک نه وګرځي غَيْرَ أَنَّ الْمَوْلَىٰ بِالْإِذْنِ رَضِيَ بِفَوَاتِ حَقِّهِ خو په اجازت ورکولو سره مالک د خپل حق پر فوتېدلو راضي سو وَالْجُنُونُ لَا يُجَامِعُهُ الْأَهْلِيَّةُ او د لېونتوب سره بالکل اهليت [اهل والی] نه سي جمع کېدای فَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُهُ بِحَالٍ نو ځکه په هيڅ حال کي هم د لېوني تصرف نه جائز کيږي أَمَّا الْعَبْدُ فَأَهْلٌ فِي نَفْسِهِ او کوم چي غلام دی نو هغه بذات خود د تصرف اهل دی وَالصَّبِيُّ يُرْتَقَبُ أَهْلِيَّتُهُ او د بچي د اهليت انتظار کيږي [د بچي د اهليت توقع کيږي] فَلِهٰذَا وَقَعَ الْفَرْقُ نو په دې وجه [د غلام و صبي او مجنون تر مينځ] فرق واقع سو.

**اللغات**: ﴿الحَجر﴾ د نصر د باب مصدر دی: منع کول، ممانعت، بنديز پر لګول (پابندي پر لګول)، ﴿الموجبة﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده: واجبونکي، ثابتونکي، سبب جوړېدونکي، ﴿ولي﴾ مشر، ذمه وار، سرپرست، ﴿سيّد﴾ مالک، بادار، ﴿نقصان﴾ کمي، ﴿يتعطّل﴾ بېکاره کېدل، ضايع کېدل، ﴿يرتقب﴾ د افتعال مضارع ده: انتظار کول، ﴿الإذن﴾ اجازت، اجازه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي درې شيان د حجر او ممانعت عن التصرف سبب دي: ① کوچنی والی (کم عمري)، ② غلامتوب، ③ لېونتوب (جنون مطبق). او فقهاؤ د دغه دريو سره نور درې هم يو ځای کړي دي: ① مفتي ماجن (لا پروا مفتي کوم چي خلکو ته د شرعي احکامو د ساقطولو حيلې ور ښيي او په غلطه فتوی پروا نه کوي)، ② جاهل (ناپوه) ډاکټر، ③ مفلس په کرايه ورکونکی کس (کوم چي هيڅ نه لري او بيا هم خپل د ضرورت شاروی يا داسي بل شی بل چا ته په کرايه ورکوي). له دغو څخه د دريو بيان دلته ذکر سوی دی؛ په کم عمره کوچني کي د عقل او شعور کمي وي، نو ځکه د هغه د تصرف جائز نه دی او څرنګه چي د هغه د هر امر او معاملې ذمه وار د هغه ولي او سرپرست وي، نو ځکه که ولي د هغه اجازت ورکړي، نو د هغه تصرف جائز کيږي. او د غلام مسئله دا ده چي د مالک په خدمت کي د زيات مشغول والي په وجه هغه ته د تصرف د طريقې او ترکيب پوره خبره نه وي او هغه د خلکو

مقروض (پور وړی) ګرځي چې د دې په وجه غلام ته هم ستونزه لاحق سي او کله چې هغه د خلکو (قرضخواهانو) په حق کي خرڅول کيږي، نو په دې سره د مالک حق باطليږي، نو ځکه د مالک له اجازت څخه بغير به د هغه تصرف نه صحيح کيږي، ها! که چيري مالک اجازت ورکړي او د خپل حق په ساقطولو راضي سي، نو بيا د هغه تصرف جائز کيږي او قاضي هغه له تصرف څخه نه سي منع کولای.

د کوچني او غلام په خلاف مجنون کس يعني هغه لېونی چي هيڅ وخت د لېونتوب له حالت څخه نه وځي او همېشه جنون پري طاري وي، د هغه تصرف په هيڅ حال کي هم نه صحيح کيږي؛ ځکه چي په هغه کي د تصرف اهليت بالکل پيدا کېدای نه سي، حال دا چي په کوچني او غلام کي د دغه اهليت توقع وي، نو ځکه د دوی تصرف في الحاله په اجازت ورکولو سره يا وروسته د تصرف په اهل کېدلو سره نافذ او جائز ګرځي، لېکن د مجنون مطبق (نه روغېدونکی لېوني) تصرف هيڅکله هم نه جائز کيږي. او په همدې سره د کوچني و غلام او د مجنون تر مينځ فرق سوی دی، لهذا دا فرق ياد ساتل پکار دي. (احسن الهدايه)

## د محجوره کسانو د تصرّفاتو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ مِنْ هٰؤُلَاءِ شَيْئًا وَهُوَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَيَقْصِدُهُ فرمايي: او څوک چي د دغه کسانو [غلام، صبي او مجنون] سره د يو شي بيع [خرڅول يا رانيول] وکړي حال دا چي هغه په بيع پوهيږي او د هغه اراده لري فَالْوَلِيُّ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَجَازَهُ إِذَا كَانَ فِيهِ مَصْلَحَةٌ نو ولي ته اختيار دی که وغواړي نو دغه عقد دي نافذ کړي [اجازت دي پې ورکړي] که چيري په دې عقد کي يو مصلحت [ښېګڼه] وي وَإِنْ شَاءَ فَسَخَهُ او که وغواړي نو هغه دي فسخ کړي لِأَنَّ التَّوَقُّفَ فِي الْعَبْدِ لِحَقِّ الْمَوْلَىٰ ځکه چي د مالک د حق په وجه د غلام عقد موقوف کيږي فَيَتَخَيَّرُ فِيهِ نو ځکه مالک به په هغه کي اختيارمن وي [اختيار به ورته حاصل وي] وَفِي الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ نَظَرًا لَهُمَا او د کوچني او لېوني عقد پر دوی د شفقت [او د دوی د ښېګني او فايدې] په خاطر موقوف کيږي فَيُتَحَرَّىٰ مَصْلَحَتُهُمَا فِيهِ لهذا په هغه کي به د دوی مصلحت [ښېګني] ته کتل کيږي [په بله وينا: نو ځکه په هغه کي به د دوی د ښېګني طلب او لټون کيږي]

وَلَا بُدَّ أَنْ يَعْقِلَا الْبَيْعَ لِيُوجَدَ رُكْنُ الْعَقْدِ فَيَنْعَقِدُ مَوْقُوفًا عَلَى الْإِجَازَةِ او دا ضروري ده چي صبي او مجنون به په بيع پوهيږي، د دې لپاره چي د عقد رکن موجود سي او [د دوی] عقد د مالک پر اجازه موقوف منعقد سي وَالْمَجْنُونُ قَدْ يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَيَقْصِدُهُ وَإِنْ كَانَ لَا يُرَجِّحُ الْمَصْلَحَةَ عَلَى الْمَفْسَدَةِ او

ځيني وخت لېونی کس په بيع پوهيږي او د هغه اراده هم لري که څه هم هغه ښېګڼې ته پر خرابۍ ترجيح نه سي ورکولای وَهُوَ الْمَعْتُوهُ الَّذِي يَصْلُحُ وَكِيلًا عَنْ غَيْرِهِ او همدا هغه معتوه دی کوم چې د بل چا طرفه وکيل جوړېدای سي كَمَا بَيَّنَّا فِي الْوَكَالَةِ لکه څرنګه چې په کتاب الوکالة کي موږ بيان کړه فَإِنْ قِيلَ: التَّوَقُّفُ عِنْدَكُمْ فِي الْبَيْعِ او که دا عتراض وسي: چې ستاسو په نېز خو په بيع [خرڅولو] کي توقف کيږي أَمَّا الشِّرَاءُ فَالْأَصْلُ فِيهِ النَّفَاذُ عَلَى الْمُبَاشِرِ او پاته سو شراء [رانيول] نو د هغه په هکله اصل دا دی چې هغه پر کونکي [عاقد] نافذيږي قُلْنَا: نَعَمْ! إِذَا وَجَدَ نَفَاذًا عَلَيْهِ موږ جواب ورکوو: چې هو! [پر هغه شراء نافذيږي] خو کله چې پر هغه [الاره د] نفاذ موجود سي كَمَا فِي شِرَاءِ الْفُضُولِيِّ لکه څرنګه چې د فضولي په شراء کي [چې شراء پر هغه نافذيږي] وَهٰهُنَا لَمْ يَجِدْ نَفَاذًا لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ أَوْ لِضَرَرِ الْمَوْلٰى او دلته د اهليت د نشتوالي يا د مالک د ضرر کېدلو په وجه هغه نفاذ نه وموندی [يعني د نفاذ امکان نسته] فَوَقَفْنَاهُ نو ځکه موږ شراء هم موقوف کړه قَالَ: وَهٰذِهِ الْمَعَانِي الثَّلَاثَةُ تُوجِبُ الْحَجْرَ فِي الْأَقْوَالِ دُونَ الْأَفْعَالِ فرمايي: چې دغه درې اسباب په اقوالو کي حجر [ممانعت] ثابتوي، نه په افعالو کي لِأَنَّهُ لَا مَرَدَّ لَهَا لِوُجُودِهَا حِسًّا وَمُشَاهَدَةً ځکه له هغوی څخه چاره نسته [هغوی رد کېدلای نه سي]، ځکه چې هغوی حساً او مشاهدةً موجوديږي بِخِلَافِ الْأَقْوَالِ لِأَنَّ اعْتِبَارَهَا مَوْجُودَةً بِالشَّرْعِ په خلاف د اقوالو، ځکه چې د هغوی د موجودېدلو اعتبار د شرع په ذريعه وي [يعني د هغو معتبر کېدل په شريعت سره حاصليږي] وَالْقَصْدُ مِنْ شَرْطِهِ او قصد کول د دې اعتبار له شرط څخه دي [يعني د اقوالو د معتبر کېدلو شرط د هغوی اراده لرل دي] إِلَّا إِذَا كَانَ فِعْلًا يَتَعَلَّقُ بِهِ حُكْمٌ يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ مګر دا چې داسي فعل [اله دوی څخه صادر سي] چې د هغه سره داسي حکم متعلق وي کوم چې په شبهاتو سره ساقطيږي كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ لکه حدونه او قصاص فَيُجْعَلُ عَدَمُ الْقَصْدِ فِي ذٰلِكَ شُبْهَةً فِي حَقِّ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ نو په داسي فعل کي به د بچي او لېوني کس په حق کي عدم قصد [اراده نه لرل] شبهه ګرځول کيږي [او د دغه شبهې په وجه به پر دوی حد او قصاص نه لازميږي].

**اللغات**: ﴿توقُّف﴾ د تفعل د باب مصدر دی: موقوف کېدل، درېدل، ﴿مصلحة﴾ ښېګڼه (بهتري)، مفاد، ﴿يتحرّى﴾ د تفعل د باب مضارع ده: طلب کول (لټون او تلاش کول)، اصل معنی يې ده: طَلَبُ

الأخرٰى (د زيات مناسب او غوره شي طلب كول). ﴿نَفَاذ﴾ (بفتح النون) د نصر د باب مصدر دی: نافذېدل، جاري كېدل، پوره كېدل. ﴿يوجد﴾ د ضرب د باب مضارع ده: موجودېدل، په وجود كي راتلل. ﴿المعتوه﴾ باوله (اوتره، اوتي بوتي وړونكی). ناقصُ العقل او فاسدُ التدبير كس كوم چي پوره پر سد نه وي. ﴿مباشر﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: په خپله كار كونكی (په خپل لاس كار كونكی او عقد كونكی). ﴿يندرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: دفع كېدل، ليري كېدل. (ساقطېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د كم عمره كوچني، غلام او لېوني تصرف د هغو د ولي او مالک پر اجازت موقوف پاتېږي، كه دغه كسان بيع وشراء وكړي، نو ولي او مالک ته اختيار دی، كه چيري د هغه هم خوښه وي، نو د دوی تصرف دي جائز وګرځوي، او كه د هغه خوښه نه وي او مصلحت نه پكښي ويني، نو دا تصرف دي منع كړي. او بيا دا چي د كوچني او لېوني كس په تصرف كي مصلحت او شفقت ته كتل كيږي، نو په دې وجه به هم د دوی تصرف موقوف پاتيږي، د دې لپاره چي كله په ښه توګه د دوی په حق كي مصلحت او شفقت ثابت سي نو بيا د دوی تصرف جائز وګرځول سي.

ولا بُدّ أن يعقلا إلخ: د دې حاصل دا دی چي د كوچني او لېوني كس د تصرف لپاره يو شرط دا هم دی چي دوی دواړه به د بيع په ركن يعني په تمليک (مالک جوړولو) واقف وي يعني په دې به پوهيږي چي د شي په خرڅولو سره شی د لاسه وځي او مشتري به د هغه مالک جوړول كيږي.

او دلته له مجنون څخه هغه لېونی كس مراد دی كوم چي د بيع په مفهوم پوهيږي او د هغه اراده لري، يعني هغه مغلوب الحاله نه وي، همدا ډول لېوني ته معتوه هم وايي او داسي كس د بل چا له طرفه وكيل جوړېدای سي.

فإن قيل إلخ: دا د يو سوال جواب دی، د سوال حاصل دا دی چي د غلام، صبي او داسي نورو د بيع توقف خو صحيح دی چي هغه موقوف پاتيږي، لېكن د دوی شراء موقوف كول پكار نه دي؛ ځكه په شراء كي قاعده دا ده چي هغه پر مباشر او عاقد نافذيږي، حال دا چي اسو د دغه قاعدې مخالفت كړی دی او د دوی شراء (رانيول) مو هم موقوف كړي دي، آخر داسي ولي؟ نو د همدې په جواب كي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي وروره! د شراء په هكله د نفاذ قاعده موږ ته هم معلومه ده لېكن دا نفاذ هغه مباشر په حق كي كيږي چي په هغه كي د عقد كولو هليت او لياقت وي، حال دا چي په صبي او مجنون كي بالكل د عقد اهليت نه وي او د غلام د عقد شراء په نافذولو كي د مالک ضرر او نقصان وي، نو ځكه موږ د دوی شراء هم موقوف كړې ده، كنې قاعده موږ ته هم معلومه ده.

قال وهذه المعاني إلخ: د دې حاصل دا دی چې صغر، جنون او رقيت دغه درې سره اسباب صرف له قولي تصرفاتو او زباني عقودو څخه مانع دي، لېکن له فعلي او عملي تصرفاتو څخه مانع نه دي، نو که صبي يا غلام يا مجنون د يو چا شی تلف او ضايع کړي، نو پر هغه ضمان لازميږي؛ ځکه چې ضايع کړی سوی شی معلوم او مشاهد دی، لېکن قولي تصرفات معلوم او مشاهد نه وي او د هغوی معتبر والي د شريعت له طرفه حاصليږي، په همدې وجه د قولي تصرفاتو لپاره د تصرف قصد او اراده کول شرط دي، حال دا چې له صبي او مجنون څخه د ارادې ثبوت او وقوع ناممکن ده، په همدې وجه د دوی اقوالو ته اعتبار نه دی ورکول سوی؛ ځکه دا مشهوره قاعده ده چې "إِذَا فَاتَ الشَّرْطُ فَاتَ الْمَشْرُوْطُ".

إلا إذا كان فعلا إلخ: دا جمله له "دُوْنَ الأَفْعَالِ" څخه مستثنیٰ ده، يعني د حجر مذکوره درې اسباب په افعالو کې مؤثر نه دي، لېکن که فعل داسې وي چې د هغه سره حد او قصاص متعلق وي او په شبهې سره ساقطيږي، نو په هغه فعل کې هم حجر مؤثر کيږي او د صبي او مجنون په حق کې عدم قصد شبهه ګرځي او څرنګه چې په شبهه سره حدود ساقطيږي، همداسې به د دوی په حق کې د عدم قصد په وجه حدود ساقطيږي. او د غلام په حق کې دا سقوط ځکه کيږي چې که هغه معتبر ومنل سي نو په دې کې د مالک نقصان دی (ځکه چې غلام د مالک مال دی)، حال دا چې مالک بلا وجه د نقصان او ضرر په زغملو راضي نه دی، نو ځکه د قتل کولو، شراب چيښلو، غلا، زنا او داسې نورو په تهمت لګولو سره به پر دوی حد نه لازميږي. (احسن الهدايه)

## د کوچني او لېوني کس د عقدونو، طلاق او اعتاق حکم

قَالَ: وَالصَّبِيُّ وَالْمَجْنُونُ لَا يَصِحُّ عُقُودُهُمَا وَلَا إِقْرَارُهُمَا فرمايي: د کوچني بچي او لېوني کس عقود [معاملات] نه صحيح کيږي او نه د دوی اقرار صحيح کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَلَا يَقَعُ طَلَاقُهُمَا وَلَا إِعْتَاقُهُمَا [همدارنګه] د دوی طلاق ورکول او آزادول نه واقع کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «كُلُّ طَلَاقٍ وَاقِعٌ إِلَّا طَلَاقَ الصَّبِيِّ وَالْمَعْتُوهِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې هر طلاق واقع دی ما سوا د کوچني او لېوني د طلاق وَالْإِعْتَاقُ يَتَمَحَّضُ مَضَرَّةً او آزادول محض [خالص] ضرر دی وَلَا وُقُوفَ لِلصَّبِيِّ عَلَى الْمَصْلَحَةِ فِي الطَّلَاقِ بِحَالٍ او کوچني ته په طلاق کې پر مصلحت وقوف [خبر] نه وي په هيڅ حال کې [يعني بچی په هيڅ حال کې هم د طلاق په مصلحت واقف نه وي] لِعَدَمِ الشَّهْوَةِ د

شهوت د نشتوالي په وجه وَلَا وُقُوفَ لِلْوَلِيِّ عَلٰى عَدَمِ التَّوَافُقِ عَلٰى اعْتِبَارِ بُلُوغِهِ حَدَّ الشَّهْوَةِ او ولي ته هم د موافقت د نشتوالي په وجه خبر نه وي د شهوت حد ته د کوچني د رسېدلو په اعتبار سره [يعني د شهوت حد ته د بچي رسېدلو په اعتبار سره د هغه ولي د خاوند او ښځي د موافقت پر نشتوالي واقف نه وي] فَلِهٰذَا لَا يَتَوَقَّفَانِ عَلٰى إِجَازَتِهٖ وَلَا يَنْفُذَانِ بِمُبَاشَرَتِهٖ نو په همدې وجه د کوچني طلاق او اعتاق دواړه نه د ولي پر اجازت موقوف کيږي او نه د ولي په اجازت سره نافذيږي بِخِلَافِ سَائِرِ الْعُقُوْدِ په خلاف د نورو عقدونو وَإِنْ أَتْلَفَا شَيْئًا فرمايي: او چيري که صبي او مجنون يو شی ضايع کړي لَزِمَهُمَا ضَمَانُهُ نو پر دوی د هغه ضمان [تاوان] لازميږي إِحْيَاءً لِحَقِّ الْمُتْلَفِ عَلَيْهِ د هغه کس د حق ژوندي کولو لپاره چي دوی د هغه شی ضايع کړی دی [يعني د دې لپاره چي د شي د مالک حق ژوند کړی سي] وَهٰذَا لِأَنَّ كَوْنَ الْإِتْلَافِ مُوجِبًا لَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَصْدِ او دا حکم ځکه دی چي اتلاف مُوجب ضمان کېدل پر قصد [ارادې] موقوف نه دي كَالَّذِيْ يَتْلَفُ بِانْقِلَابِ النَّائِمِ عَلَيْهِ لکه يو شی چي د بيده کس په را اوښتلو [تر بغل لاندي کولو په وجه] ضايع سي وَالْحَائِطِ الْمَائِلِ بَعْدَ الْإِشْهَادِ او لکه [چپه کېدلو ته] مايل دېوال تر اشهاد وروسته بِخِلَافِ الْقَوْلِيِّ په خلاف د قولي تصرف عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي موږ بيان کړه.

**اللغات**: ﴿الصبي﴾ مراد ځني هغه کوچنی دی کوم چي د هلکوالي تر وخته رسېدلی نه وي، ﴿المجنون﴾ مراد ځني هغه لېونی دی کوم چي د بيع په مفهوم او مطلب پوهيږي او د هغه اراده لري، ﴿يتمحض﴾ د تفعل د باب مضارع ده: محض کېدل، خالص کېدل. ﴿وقوف﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب په صله کي چي "عَلٰى" راسي نو معنیٰ يې ده: واقف کېدل، خبرېدل، ادراک کول. ﴿انقلاب﴾ د انفعال د باب مصدر دی. اصل معنیٰ يې ده: اوښتل. ﴿الحائط المائل﴾ کوږ دېوال (کوم چي نړېدو ته نژدې وي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي نه د صبي او مجنون طلاق واقع او نافذ ګرځي، او نه د دوی اعتاق نافذ او معتبر ګرځي؛ ځکه چي نبي کريم ﷺ د دوی د طلاق نه واقع کېدلو صراحت کړی دی او فرمايلي يې دي "كُلُّ طَلَاقٍ وَاقِعٌ إِلَّا طَلَاقَ الصَّبِيِّ وَالْمَعْتُوْهِ". دويم نقلي دليل دا دی چي له صبي او مجنون دواړو څخه قلم پورته سوی دی او د دوی ټه تصرفات داسي دي کوم چي بالکل لغو او کالعدم دي. د دې دليل دا حديث مبارک دی "رُفِعَ الْقَلَمُ عَنِ الصَّغِيْرِ وَالْمَجْنُوْنِ..." أخرجهٔ ابن ماجة عن علي رضي الله عنه.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چې د کوچني او مجنون صرف همغه تصرفات معتبر دي کوم چې مفيد او نفع من وي. حال دا چې په اعتاق کې (له غلام څخه) د دوی ملکيت زائليږي کوم چې سر تر پايه نقصان دی. همدارنګه په دوی کې شهوت معدوم يا مغلوب وي چې د هغه په وجه دوی د ښځي په خوند او لذت نا خبره وي او د نا خبري او نا پوهي پر بناء د طلاق په مصلحت هم نا واقفه وي، نو ځکه د دوی طلاق هم شرعا معتبر نه دی. بيا ولي ته هم دا حق نسته چې د کوچني د بالغ کېدلو په اعتبار کولو سره د هغه طلاق يا اعتاق نافذ کړي؛ ځکه في الحاله خو ولي ته د کوچني په هکله د مصلحت او د نکاح د موجود والي خبر سته ليکن هغه ته د دې خبري قطعي او يقيني علم نسته چې تر بلوغت وروسته به دا نکاح ختمه سي، لهذا له بلوغت څخه وروسته د حالت په اعتبار کولو سره ولي هم في الحاله د هغه طلاق نافذولای او موجوده نکاح ختمولای نه سي.

وإن أتلف إلخ: د دې حاصل دا دی چې که صبي يا مجنون د يو چا شی ضايع کړي، نو پر دوی په خپل مال کې ضمان واجبيږي، د دې لپاره چې د شي مالک (متلف عليه) ته د هغه د حق بدل ور ‌کړل سي او صبي و مجنون هر ځای له خپل تصرف چلولو څخه منع سي. کنې پر دوی که ضمان واجب نه کړی سي، نو دغه نا پوهان به هر ځای شرارت کونکی ليدل کيږي او نا قابل تلافي نقصان او تاوان به ځني صادريږي. پاته سو دا سوال چې په دوی کې اراده او قصد معدوم دی ، لهذا د دوی پر اتلاف ضمان لازمېدل پکار نه دي؟ نو د دې جواب دا دی چې اتلاف په هر صورت کې د ضمان مُوجب دی (يعني ضايع کول په هر حال کې پر ضايع کونکي ضمان [تاوان] واجبوي) برابره ده د هغه قصد او اراده سوې وي، که نه؟، مثلاً که يو سړی په مجمع کې بيده وي او د هغه په بغل کې يو قيمتي شی يا کوچنی هلک پروت وي او دا سړی د خوب په حالت کې پر هغه را واوړي او شی ضايع سي يا هغه هلک مړ سي، نو که څه هم د خوب په حالت کې اراده او قصد معدوم دی، خو بيا هم او ښتونکی ضامن کيږي (تاوان پر لازميږي). همدارنګه که د يو چا دېوال د لاري وطرف ته کوږ او نړېدو ته نژدې وي او خلک له هغه څخه د دېوال جوړولو مطالبه هم وکړي او پر دې ګواهان هم پېش کړي، بيا هغه دېوال ونړيږي او يو چا ته ځاني يا مالي زيان ورسوي، نو که څه هم د دېوال د مالک له طرفه دلته قصد معدوم دی، خو بيا هم هغه ضامن کيږي، نو همدغسي به په پورتنۍ مسئله کې صبي او مجنون هم د عدم قصد باوجود ضامن کيږي. (احسن الهدايه)

## د غلام د اقرار حکم

قَالَ: فَأَمَّا الْعَبْدُ فَإِقْرَارُهُ نَافِذٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ فرمايي: او د غلام اقرار د هغه په حق کي نافذ دی لِقِيَامِ أَهْلِيَّتِهِ د هغه د اهليت د موجود والي په وجه [يعني ځکه چي په غلام کي د اقرار اهليت سته] غَيْرُ نَافِذٍ فِي حَقِّ مَوْلَاهُ ليکن د هغه د مالک په حق کي نافذ دی رِعَايَةً لِجَانِبِهِ د مالک د طرف د رعايت کولو په خاطر لِأَنَّ نَفَاذَهُ لَا يَعْرَى عَنْ تَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ أَوْ كَسْبِهِ ځکه چي د هغه نفاذ خالي نه دی د قرض له متعلق کېدو څخه د غلام د ذات او ګټي سره [يعني د هغه نفاذ د غلام د رقبې يا د هغه د ګټي سره د قرض له متعلق کېدلو څخه بغير نه سي کېدای] وَكُلُّ ذَلِكَ إِتْلَافُ مَالِهِ او دا هر شی د مالک مال ضايع کول دي

قَالَ: فَإِنْ أَقَرَّ بِمَالٍ فرمايي: او که چيري غلام د يو مال اقرار وکړي لَزِمَهُ بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ نو دا مال تر آزادېدلو وروسته پر هغه لازمېږي لِوُجُودِ الْأَهْلِيَّةِ وَزَوَالِ الْمَانِعِ ځکه چي [تر آزادۍ وروسته په هغه کي د التزام] اهليت موجود دی او مانع زائل دی وَلَمْ يَلْزَمْهُ فِي الْحَالِ لِقِيَامِ الْمَانِعِ او في الحاله د مانع موجودېدلو په وجه پر هغه مال لازم نه سو وَإِنْ أَقَرَّ بِحَدٍّ أَوْ قِصَاصٍ او که غلام د حد يا قصاص اقرار وکړي لَزِمَهُ فِي الْحَالِ نو پر هغه في الحاله لازمېږي لِأَنَّهُ مُبْقًى عَلَى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِي حَقِّ الدَّمِ ځکه چي د خون [ويني] په هکله هغه پر اصل آزادۍ باقي پاته دی حَتَّى لَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْمَوْلَى عَلَيْهِ بِذَلِكَ وَيَنْفُذُ طَلَاقُهُ همدا وجه ده چي د غلام په خلاف د مالک د حد يا قصاص اقرار کول نه صحيح کېږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي [مخکي] موږ روايت کړی [يعني "كلّ طلاق واقعٌ إلا طلاق الصبي والمعتوه"] وَلِقَوْلِهِ عليه السلام: «لَا يَمْلِكُ الْعَبْدُ وَالْمُكَاتَبُ شَيْئًا إِلَّا الطَّلَاقَ» او د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه چي: "له طلاق څخه بغير غلام او مکاتب بل د هيڅ شي ملکيت نه لري" [صرف د طلاق مالکان دي] وَلِأَنَّهُ عَارِفٌ بِوَجْهِ الْمَصْلَحَةِ فِيهِ او ځکه چي غلام د طلاق په مصلحت سره واقف وي فَكَانَ أَهْلًا نو ځکه هغه به [د طلاق راقع کولو] اهل وي وَلَيْسَ فِيهِ إِبْطَالُ مِلْكِ الْمَوْلَى وَلَا تَفْوِيتُ مَنَافِعِهِ او په دې کي

خو نه د مالک د ملکیت باطلول سته او نه د هغه د منافعو ضایع کول سته فَيَنْفُذُ نو ځکه د هغه طلاق به نافذیږي.

**اللغات**: ﴿نافذ﴾ د نصر د باب فاعل دی: نافذ کړی سوی، جاري کړی سوی او پوره کړی سوی، (بشپړتیا ته رسېدونکی)، ﴿رقبة﴾ د غلام ذات، ﴿مبقى﴾ د افعال د باب مفعول دی: باقي ساتل سوی، باقي پرېښوول سوی، ﴿تفويت﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: فوتول، ضایع کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: که غلام دېو شي اقرار وکړي، نو د غلام اقرار د هغه په خپل حق کې نافذیږي؛ ځکه چې په هغه کې د اقرار اهلیت موجود دی او تر آزادېدلو وروسته به له هغه شخخه د مقر به (اقرار کړی سوي شي) مطالبه کیږي، خو دغه اقرار د مالک په حق کې نه نافذیږي، ځکه که مقر به زیات مال وي، نو قرض د غلام پر ذات (رقبه) احاطه کوي او که چیري قرض محیط نه وي، نو قرض د هغه د گټې (گټل سوي مال) سره متعلق کیږي، او په دې دواړو صورتونو کې د مالک نقصان دی، نو ځکه د مالک په حق کې به دغه اقرار نافذیږي.

وإن أقرّ بحدّ إلخ: که چیري غلام د حد یا قصاص اقرار وکړي، نو دغه اقرار في الحاله پر هغه لازمیږي؛ ځکه چې حدود او قصاص د انسان کېدلو (آدمیت) له خواصو شخه دي، او په انسان کېدلو کې غلام د آزاد کس سره برابر دی، او په خوني حقوقو کې هغه هم پر اصل حریت قائم دي، لهذا څرنګه چې د آزاد کس له طرفه د حد یا قصاص اقرار کول صحیح دي، همداسي د غلام له طرفه هم دغه اقرار صحیح او معتبر دی، لېکن که مالک د غلام په خلاف د حد یا قصاص اقرار وکړي، نو دا معتبر نه دی؛ ځکه کله چې غلام خپله په دې کې اصل دی، نو هغه ته د بل چا د نیابت هیڅ ضرورت نسته.

وینفذ طلاقه إلخ: د دې مطلب واضح دی، د "لِمَا رَوَيْنَا" شخه مراد دغه حدیث "كُلُّ طَلَاقٍ وَاقِعٌ..." دی، باقي خبره ښکاره ده یعني کله چې طلاقه سوې ښځه د غلام خپله ښځه ده، نو ښکاره خبره ده چې غلام به د هغې د طلاق هم مالک وي. (احسن الهدايه ج:۱۲، ص:۲۴۰)



# بَابُ الْحَجْرِ لِلْفَسَادِ

(دا) باب د فساد (او جهالت) په وجه د محجوره کولو (بنديز پر لګولو په بيان کې) دی

**تشريح:** ښکاره دې وي چې دلته له فساد څخه جهالت او کم عقلي (سفاهت) مراد دی، او څرنګه چې د دغه باب مسئلې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول متفرع دي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د جهالت او سفاهت په وجه د حجر (بنديز لګولو) هيڅ حقيقت نسته، نو ګواکي دا مسائل مختلف فيها دي او تر دې مخکې مسائل متفق عليها دي، له همدې کبله متفق عليها مسائل له مختلف فيها مسائلو څخه مخکې بيان کړل سوي دي. (بنايه ج:۱۰، ص:۱۰۰)

## پر بې وقوف او فضول خرچه کس د تصرفاتو د بنديز لګولو حکم

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: لَا يُحْجَرُ عَلَى الْحُرِّ الْعَاقِلِ الْبَالِغِ السَّفِيهِ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر آزاد، عاقل بالغ بې وقوف [فضول خرچه] کس به بنديز نه لګول کيږي وَتَصَرُّفُهُ فِي مَالِهِ جَائِزٌ او په خپل مال کې د هغه تصرف جائز دی وَإِنْ كَانَ مُبَذِّرًا مُفْسِدًا يُتْلِفُ مَالَهُ فِيمَا لَا غَرَضَ لَهُ فِيهِ وَلَا مَصْلَحَةَ که څه هم هغه زيات اسراف کونکی او فسادي وي چې په داسې شيانو کې خپل مال بربادوي چې په هغوی کې نه د ده يو غرض وي او نه يو مصلحت [ښېګڼه] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ: يُحْجَرُ عَلَى السَّفِيهِ وَيُمْنَعُ مِنَ التَّصَرُّفِ فِي مَالِهِ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي (او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی) چې پر داسې بې وقوف به بنديز لګول کيږي او په خپل مال کې له تصرف کولو څخه به منع کول کيږي لِأَنَّهُ مُبَذِّرٌ مَالَهُ بِصَرْفِهِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي يَقْتَضِيهِ الْعَقْلُ ځکه چې هغه د مقتضاء عقل د مخالفه طريقې مطابق د خپل مال خرچولو په وجه زيات اسراف کونکی دی فَيُحْجَرُ عَلَيْهِ نَظَرًا لَهُ نو پر هغه د شفقت کولو [او د هغه د مصلحت] په خاطر به پر هغه بنديز

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال صاحب رد المحتار: وعندهما يحجر على الحر بالسفه والغفلة وبقولهما يفتى صيانةً لماله (رد المحتار ج:۵، ص:۱۳)، و قال العلامة ابن نجيم بعد تفصيل المسئله: والفتوىٰ على قولهما (البحر الرائق ج:۸، ص:۱۴۶)، وكذا قال العلامه داماد آفندي. (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۵۳)

لګول کیږي اِعْتِبَارًا بِالصَّبِيِّ پر کوچني په قیاسولو سره ایعني لکه څرنګه چي د کوچني بچي په حق کي کیږي] بَلْ أَوْلٰى بلکي د هغه په حق کي بندیز لګول زیات ضروري دي لِأَنَّ الثَّابِتَ فِي حَقِّ الصَّبِيِّ اِحْتِمَالُ التَّبْذِيرِ وَفِي حَقِّهِ حَقِيقَتُهُ ځکه چي د کوچني په حق کي صرف د زیات اسراف احتمال ثابت دی او د داسي کس په حق کي خو حقیقتاً زیات اسراف ثابت دی وَلِهٰذَا مُنِعَ عَنْهُ الْمَالُ او په همدې وجه له هغه شخصه خپل مال منع کول کیږي ثُمَّ هُوَ لَا يُفِيدُ بِدُوْنِ الْحَجْرِ بیا له بندیز لګولو شخصه بغیر [فقط] مال منع کول مفید نه دي لِأَنَّهُ يُتْلِفُ بِلِسَانِهِ مَا مُنِعَ مِنْ يَدِهِ ځکه کوم شی چي د هغه له قبضې شخصه منع کړی سوی وي هغه به په خپل ژبه سره ضایع کړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ مُخَاطَبٌ عَاقِلٌ فَلَا يُحْجَرُ عَلَيْهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي سفیه کس هم [په شرعي احکامو سره] مخاطب دی او عقل لرونکی دی نو ځکه پر هغه به بندیز نه لګول کیږي اِعْتِبَارًا بِالرَّشِيدِ پر لار موندونکي [هوشیار] کس باندي په قیاسولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ فِي سَلْبِ وِلَايَتِهِ إِهْدَارُ آدَمِيَّتِهِ وَإِلْحَاقُهُ بِالْبَهَائِمِ او دا ځکه چي د هغه د ولایت په سلبولو کي د هغه د انسانیت لغو کول او د څارویو سره د هغه یو ځای کول لازمیږي وَهُوَ أَشَدُّ ضَرَرًا مِنَ التَّبْذِيرِ او دا له اسراف شخصه ډېر ضررمن [او خطرناک] دي فَلَا يُتَحَمَّلُ الْأَعْلٰى لِدَفْعِ الْأَدْنٰى نو ځکه د ادنیٰ ضرر د لیري کولو لپاره به اعلیٰ ضرر نه زغمل کیږي حَتّٰى لَوْ كَانَ فِي الْحَجْرِ دَفْعُ ضَرَرٍ عَامٍّ همدا وجه ده که په بندیز لګولو کي عام ضرر دفع کیږي [یعني له عامو خلکو شخصه نقصان لیري کیږي] كَالْحَجْرِ عَلَى الْمُتَطَبِّبِ الْجَاهِلِ وَالْمُفْتِي الْمَاجِنِ وَالْمُكَارِي الْمُفْلِسِ لکه جاهل ډاکټر او لا پروا مفتي [کوم چي په غلطه فتوی ورکولو باک نه کوي] او هغه په کرایه ورکونکی کس کوم چي تنګلاسی وي جَازَ فِيمَا يُرْوٰى عَنْهُ نو بیا بندیز لګول جائز دي له امام صاحب رَحِمَهُ الله شخصه په نقل سوي روایت کي إِذْ هُوَ دَفْعُ ضَرَرِ الْأَعْلٰى بِالْأَدْنٰى ځکه دا د ادنیٰ ضرر په زغملو سره د اعلیٰ ضرر لیري کول دي وَلَا يَصِحُّ الْقِيَاسُ عَلٰى مَنْعِ الْمَالِ او پر مال منع کولو حجر قیاسول صحیح نه دي لِأَنَّ الْحَجْرَ أَبْلَغُ مِنْهُ فِي الْعُقُوبَةِ ځکه چي حجر [بندیز لګول] له منع المال شخصه په سزا کي ډېر سخت دي [یعني د حجر سزا د منع له سزا شخصه زیاته ده] وَلَا عَلَى الصَّبِيِّ او نه پر

کوچني قیاسول صحیح دي لِأَنَّهُ عَاجِزٌ عَنِ النَّظَرِ لِنَفْسِهِ ځکه چي هغه د خپل ځان لپاره له مصلحت اختیارولو څخه عاجز دی [یعني د خپل ځان د ښېګڼې له تصرّف څخه عاجز دی] وَهٰذَا قَادِرٌ عَلَيْهِ او سفیه کس پر دې قادر دی نَظَرَ لَهُ الشَّرْعُ مَرَّةً بِإِعْطَاءِ آلَةِ الْقُدْرَةِ وَالْجَرْيُ عَلَى خِلَافِهِ لِسُوْءِ اخْتِيَارِهِ چي د قدرت د الې په ورکولو سره شریعت پر هغه د شفقت نظر کړی دی او د هغه په خلاف تلل [زیات اسراف او فضولي خرچي کول] خو د هغه د خپل بد اختیاری په وجه دي وَمَنْعُ الْمَالِ مُفِيدٌ او د مال منع کول [مال نه ورکول] مفید دي لِأَنَّ غَالِبَ السَّفَهِ فِي الْهِبَاتِ وَالتَّبَرُّعَاتِ وَالصَّدَقَاتِ ځکه زیاتره بې وقوفي په هبو او صدقو کي کیږي [یعني عموماً په هبه، تبرّع او صدقه ورکولو کي د زیات فضول خرچۍ څرګندونه کیږي] وَذٰلِكَ يَقِفُ عَلَى الْيَدِ او دا د مال پر قبضه موقوف دي.

**اللغات:** ﴿السفیه﴾ بې وقوف، د عقل او حکمت خلاف کار کونکی، په مال کي بد تصرف کونکی، زیات فضول خرچي کونکی (معجم لغة الفقهاء، معجم الوسیط)، ﴿مبذر﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: فاسد اسراف کونکی، هسي ضایع کونکی، ﴿یقتضي﴾ د افتعال مضارع ده: تقاضا کول، غوښتل، ﴿نظر﴾ مصلحت، شفقت، ﴿رشید﴾ د صفت مشبه صیغه ده: (ضد السفیه): مراد ځني عقلمند او هوښیار دی، ﴿إهدار﴾ د افعال د باب مصدر دی: لغو ګرځول او باطلول، بې ځایه ګرځول، ضایع کول، ﴿المتطبب﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: ځان طبیب ښکاره کونکی کوم چي په اصل کي طبیب (ډاکټر) نه وي، ﴿المفتي الماجن﴾ د ماجن معنیٰ ده: کم حیاء، بې پروا، له مفتي ماجن څخه هغه مفتي مراد دی کوم چي خلکو ته د شرعي احکامو د ساقطولو حیلې ورښیي او غلطه فتویٰ ورکوي او په دې هیڅ پروا نه کوي، ﴿المکاري﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: په کرایه ورکونکی، زیاتره د هغه کس لپاره استعمالیږي کوم چي خر او غاتره په کرایه ورکوي، ﴿تبرّعات﴾ جمع د تبرع ده: په وړیا توګه ورکړه (احساناً مفت ورکول) صدقات او داسي نور.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی آزاد، عاقل او بالغ وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه پر تصرفاتو او اختیاراتو بندیز لګول جائز نه دي، که څه هم هغه زیات اسرافونکی او فضوله خرچه وي او بېله څه غرض او مصلحته مال مصرفوي؛ ځکه چي هغه د خپل مال مالک دی، څه چي وغواړي، هغه کولای سي. د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر داسي بې وقوف او فضوله خرچه کس بندیز

لګول او له تصرف څخه منع کول ضروري دي. او څرنګه چي د کوچني (صبي) په حق کي د شفقت او مصلحت په وجه کوچنی له تصرفاتو څخه منع کړی سوی دی، همداسي به سفیه هم له تصرفاتو څخه منع کول کیږي؛ ځکه د کوچني په حق کي خو صرف د تبذیر احتمال وي لېکن بیا هم هغه منع کول کیږي. نو سفیه خو حقیقتاً تبذیر او فاسد اسراف کونکي وي او همدې ته یې ملا ترلې وي، نو هغه به څنګه پرېښوول کیږي. او بل دا چي په متفقه توګه له هغه څخه خپل مال منع کول کیږي یعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تر پنځویشت (۲۵) کلو پوري مال نه ورکول کیږي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د سفاهت او بې وقوفۍ تر بقاء پوري نه ورکول کیږي، اوس ښکاره خبره ده چي که پر هغه د مال بندیز ولګول سي او د تصرف بندیز او پابندي نه پر ولګول سي، نو هغه به په زباني تصرف سره خپل ټوله مال ختم او ضایع کړي او د قبضې والا منع (بندیز) به بالکل بېکاره او لغو وګرځي، نو ځکه د "منع عن الید" د مفید ګرځولو لپاره هم پر هغه "منع عن التصرّف" ضروري دی.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي په منع عن التصرف کي د هغه د ولایت او اختیاراتو سلبول سته او دغه سلبول داسي دي لکه د هغه انسان والی (ادمیت) لغو کول او حیوان ګرځول، او دا له تبذیر او اسراف څخه زیات سنګین دي، حالانکي د فقه قاعده دا ده چي "إِذَا اجْتَمَعَتْ مَفْسِدَتَانِ رُوْعِيَ أَعْظَمُهُمَا ضَرَرًا بِارْتِكَابِ أَخَفِّهِمَا" یعني که په یو مسئله کي دوې خرابۍ جمع سي، نو له هغوی څخه د ادنیٰ خرابۍ په اختیارولو سره به اعلیٰ خرابي لیري کول کیږي، نو ځکه د تبذیر والا خرابي کوم چي دلته ادنیٰ خرابي ده د هغه په اختیارولو سره به اعلیٰ خرابي یعني د اهدار ادمیت والا خرابي لیري کول کیږي او پر هغه به بندیز نه لګول کیږي. خو که چیري ضرر عام او اقویٰ وي، نو هغه به لیري کول کیږي، لکه د جاهل او ناپوه طبیب د طبابت ضرر او د حیله ور ښوونکی مفتي د حیله ګرۍ ضرر او د مفلس مکاري د کرایه خورۍ ضرر چي ډېرو خلکو لره شامل او محیط وي، نو ځکه د دوی پر تصرفاتو به بندیز لګول کیږي.

**ولا يصح القياس إلخ:** فرمایي صاحبین رَحِمَهُمَا الله چي پورتنۍ مسئله له سفیه څخه د مال پر منع کولو قیاسوي، دا صحیح نه دي؛ ځکه چي پر مال د قبضې نعمت او تصرف یو زاید او عارضي امر دی، مثلاً که مال نه وي، نو ښکاره ده چي پر هغه به د سفیه قبضه هم نه وي، د دې په خلاف د زبان او بیان نعمت اصلي وي، لهذا پر هغه بندیز لګول د انسان لپاره زیات ګران او سنګین دي، او د انسان له وسه وتلی سنګین شی پر هغه لازمول مناسب نه دي. او بل دا چي د مال په حواله سره بندیز مفید دی په دې معنیٰ سره چي عموماً سفهاء او فضول خرچه کسان په هبه، صدقه او داسي نورو تبرعاتو کي له سده

وځي او زيات مال مصرفوي، او د هبې او صدقې لپاره د مال مالک کېدل او پر هغه قابض کېدل ضروري دي، د دې لپاره چې بل څوک د هغه مال مالک جوړ کړی سي (ځکه څوک چې په خپله د مال مالک نه وي نو هغه به څنګه بل څوک د هغه مالک جوړ کړي)، او ښکاره خبره ده چې کله د منع په وجه د سفيه په قبضه کې مال نه وي، نو هغه به بل څوک هم مالک نه سي جوړولای او خود بخوده به له دغه کار څخه منع سي.

ولاعلى الصبي إلخ: او د سفيه حَجْر د کوچني پر حَجْر قياسول هم صحيح نه دي؛ ځکه کوچنی په خپل حق کې له نفع مندو تصرفاتو څخه عاجزه وي، حال دا چې سفيه د نفع او نقصان په فرق پوهېدلو قادر وي، اوس که چيري هغه د بې وقوفۍ په وجه زيات اسراف کوي، نو دا خود هغه د خپل بد اختيار او بد چلن خرابي ده. په دې کې خو نه د بل چا قصور سته او نه د چا نقصان پکښې سته، نو ځکه د هغه حجر د کوچني پر حجر قياسول صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

## پر کم عقل کس د بنديز لګولو په هکله د دوو قاضيانو اختلاف

قَالَ: وَإِذَا حَجَرَ الْقَاضِي عَلَيْهِ فرمايي: او کله چې قاضي پر سفيه کس بنديز [د تصرف پابندي] ولګوي ثُمَّ رُفِعَ إِلَى قَاضٍ آخَرَ بيا دا معامله د بل قاضي مخته پېش کړی سي فَأَبْطَلَ حَجْرَهُ وَأَطْلَقَ عَنْهُ نو هغه د اول قاضي حجر باطل کړي او هغه ته د تصرف اجازت ورکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْحَجْرَ مِنْهُ فَتْوَى وَلَيْسَ بِقَضَاءٍ ځکه چې د اول قضي له طرفه [پر هغه] بنديز لګول يو فتویٰ ده، قضاوت [د قاضي فيصله او پرېکړه] نه ده أَلَا يَرَى أَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الْمَقْضِيُّ لَهُ وَالْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ آيا نه ګوري چې [دلته] مدعي او مدعیٰ عليه موجود نه دي وَلَوْ كَانَ قَضَاءً او که چيري دا قضاء وي فَنَفْسُ الْقَضَاءِ مُخْتَلَفٌ فِيهِ نو نفس قضاء مختلف فيه ده فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِمْضَاءِ نو ځکه [هغه د بل قضاوت په ذريعه] نافذول ضروري دي حَتَّى لَوْ رُفِعَ تَصَرُّفُهُ بَعْدَ الْحَجْرِ إِلَى الْقَاضِي الْحَاجِرِ أَوْ إِلَى غَيْرِهِ فَقَضَى بِبُطْلَانِ تَصَرُّفِهِ ثُمَّ رُفِعَ إِلَى قَاضٍ آخَرَ تر دې که تر حجر وروسته د هغه يو تصرف د حاجر [بنديز لګونکي] قاضي يا غير حاجر قاضي مخته پېش کړی سي او هغه د تصرف د باطل والي فيصله وکړي بيا بل قاضي ته هغه پېش کړی سي نَفَذَ إِبْطَالُهُ نو دا بل قاضي به د هغه باطل والی نافذوي لِاتِّصَالِ الْإِمْضَاءِ بِهِ ځکه چې د هغه سره [د قاضي] امضاء متصل ده فَلَا يَقْبَلُ النَّقْضَ بَعْدَ ذَلِكَ نو ځکه تر دې وروسته به هغه ماتېدل نه قبلوي.

**اللغات**: ﴿رفع﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده: پورته کول، پورته کېدل، کله چې د دغه باب د مجهولي صيغې په صله کې "إلى" راسي، نو معنیٰ يې ده: د قاضي په محکمه کې يو مسئله او

فیصله پېش کېدل، ﴿الامضاء﴾ دافعال د باب مصدر دی، د دې باب ځو معناوي دي: نافذول، اجازه ورکول، تریو حکم او فیصلې لاندي دستخط کول ﴿حاجر﴾ د نصر د باب فاعل دی: بندیز لګونکی، منع کونکی، ﴿مقضي﴾ د ضرب د باب مفعول دی، **مقضي لهٗ**: د چا لپاره چي فیصله سوې وي، **مقضي علیه**: پر کوم چا (د کوم چا په خلاف) چي فیصله سوي وي، ﴿نفذ﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: نافذول، باقي پرېښوول، پوره کول (پای ته رسول).

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که یو قاضي پر سفیه کس بندیز ولګوي، لېکن هغه مطمئن نه سي او د بل قاضي په دربار کي خپله معامله پېش کړي او دغه قاضي د اول قاضي حجر باطل او لغو کړي او سفیه ته د تصرف اجازت ورکړي، نو په دې صورت کي د هغه تصرف جائز او صحیح ګرځي؛ ځکه اول قاضي چي پر هغه کوم بندیز لګولی وو، هغه په حقیقت کي فتویٰ وه، نه قضاء؛ ځکه چي د قضاء لپاره خصومت (دعویٰ) کول او د خصومت لپاره مدعي او مدعیٰ علیه موجودېدلو ته ضرورت سته، او دلته له دغو څخه هیڅ شی نسته؛ ځکه چي دلته نه مقضي لهٗ (مدعي) سته او نه مقضی علیه (مدعیٰ علیه) سته، او د یوه مفتي فتویٰ د بل مفتي په فتوی سره لغو کېدای سي، نو ځکه دلته به د دویم قاضي باطلول او لغو کول صحیح وي. او که بیا هم مو‌ږ دا قضاء ومنو، نه فتویٰ یعني سفیه مقضي لهٗ ومنو چي حجر د هغه لپاره مفید دی او څرنګه چي دا قضاء پر هغه واقع ده، او د هغه په خلاف ده لهذا مقضي علیه هم هغه وشمېرو، نو هم د اول قاضي قضاء بالحجر نه نافذېږي؛ ځکه چي نفس قضاء مختلف فیه ده، او مختلف فیه قضاء د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه ده، نو ځکه د دغه قضاء او فیصلې د نافذولو لپاره بلي قضاء ضرورت وي، همدا وجه ده کله چي د یوه قاضي د حجر تر فیصلې وروسته د دویم قاضي په عدالت کي هغه پېش کړی سي او دویم قاضي هم پر حجر مهر ولګوي او د سفیه تصرف باطل کړي نو ګواکي د هغه سره امضاء او تنفیذ متصل سو، اوس که دیو درېیم قاضي په خدمت کي دا مقدمه پېش کړی سي، نو هغه په دې کي بدلون او ترمیم نه سي کولای، یعني هغه ته ښکار دي چي د اول او دویم قاضي د حجر او د تصرف باطلولو فیصله باقي پرېږدي او په هغه کي هیڅ نوې فیصله نه وکړي؛ ځکه چي د هغه سره د قضاء اتصال لاحق سوی دی او اوس په هغه کي د نقض او رد احتمال نسته. (احسن الهدایه)

## سفيه (بې وقوفه) هلک ته به کله مال ورکول کيږي؟ (تفصيلي بيان)

ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِذَا بَلَغَ الْغُلَامُ غَيْرَ رَشِيدٍ بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز چي کله يو هلک د نا پوهۍ [بې وقوفۍ] په حالت کي بالغ سي لَمْ يُسَلَّمْ إِلَيْهِ مَالُهُ حَتَّى يَبْلُغَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ سَنَةً نو هغه ته به خپل مال نه ورسپارل کيږي تر دې چي پنځويشت کلو ته ورسيږي فَإِنْ تَصَرَّفَ فِيهِ قَبْلَ ذَلِكَ خو که چيري تر دې مخکي هغه په خپل مال کي تصرف وکړي نَفَذَ تَصَرُّفُهُ نو د هغه تصرف نافذيږي فَإِذَا بَلَغَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ سَنَةً او کله چي هغه پنځويشت کلو ته ورسيږي يُسَلَّمُ إِلَيْهِ مَالُهُ وَإِنْ لَمْ يُؤْنَسْ مِنْهُ الرُّشْدُ نو هغه ته به خپل مال ورکول کيږي که څه هم د هغه پوهي [هوښياري] ښکاره سوې نه وي وَقَالَا ۞ : لَا يُدْفَعُ إِلَيْهِ مَالُهُ أَبَدًا حَتَّى يُؤْنَسَ مِنْهُ رُشْدُهُ وَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُهُ فِيهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه ته به خپل مال نه ورکول کيږي تر دې چي د هغه پوهي [د پوهۍ آثار] ښکاره سي او په مال کي د هغه تصرف نه جائز کيږي لِأَنَّ عِلَّةَ الْمَنْعِ السَّفَهُ ځکه چي د منع کولو [مال نه ورکولو] علت بې وقوفي ده فَيَبْقَى مَا بَقِيَ الْعِلَّةُ نو ځکه هغه [منع] به باقي پاتيږي تر څو چي دا علت باقي پاته وي وَصَارَ كَالصِّبَا او دا د کوچني والي [کم عمرۍ] په څېر سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ مَنْعَ الْمَالِ عَنْهُ بِطَرِيقِ التَّأْدِيبِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي له سفيه کس څخه مال منع کول [نه ورکول] د ادب ور زده کولو په غرض سره وي وَلَا يَتَأَدَّبُ بَعْدَ هَذَا ظَاهِرًا وَغَالِبًا او په ښکاره له پنځويشت کلو څخه وروسته غالباً داسي کس نه ادب من کيږي أَلَا يَرَى أَنَّهُ قَدْ يَصِيرُ جَدًّا فِي هَذَا السِّنِّ آيا نه ګوري چي کله انسان په دې عمر [پنځويشت کلو] کي نيکه جوړيږي فَلَا فَائِدَةَ فِي الْمَنْعِ نو په منع کولو [نه ورکولو] کي هيڅ فايده نسته فَلَزِمَ الدَّفْعُ نو ځکه ورکول ضروري سوه وَلِأَنَّ الْمَنْعَ بِاعْتِبَارِ أَثَرِ الصِّبَا او ځکه چي منع کول د کوچنيوالي د اثر په وجه وي وَهُوَ فِي أَوَائِلِ الْبُلُوغِ او دا اثر د

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة داماد افندي رَحِمَهُ الله: وعندهما يحجر على السفيه ولا يدفع إليه ماله ما لم يونس رشده....إذ الأمر بالدفع عند إيناس الرشد، فلا يجوز الدفع قبل العلم بالرشد، لأن علة المنع هي السفه، فبقي المنع ما دامت العلة، فلا يكون للزمان دخل هنا... وبقولهما يفتى (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۵۳)، وكذا في رد المحتار (ج:۵، ص:۱۰۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۵۱]

بلوغ په ابتدائي زمانه کي وي وَيَتَقَطَّعُ بِتَطَاوُلِ الزَّمَانِ او د اوږده مودت په تېرېدلو سره دا اثر ختميږي فَلَا يَبْقَى الْمَنْعُ نو ځکه منع به باقي نه پاتيږي وَلِهٰذَا قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: لَوْبَلَغَ رَشِيْدًا ثُمَّ صَارَ سَفِيهًا لَا يُمْنَعُ الْمَالُ عَنْهُ په همدې وجه امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي که يو سفيه هلک د پوهې [هوښيارى] په حالت کي بالغ سي بيا بيرته سفيه وګرځي نو له هغه شخصه به مال نه منع کول کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِأَثَرِ الصِّبَا ځکه چي [اوس] دا د کوچنيوالي اثر نه دی ثُمَّ لَا يَتَأَتَّى التَّفْرِيعُ عَلَى قَوْلِهِ وَإِنَّمَا التَّفْرِيعُ عَلَى قَوْلِ مَنْ يَرَى الْحَجْرَ بيا [دلته] د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول تفريع نه سي کېدای بلکي د هغه حضراتو پر قول تفريع کېدای سي کوم چي حجر جائز ګڼي [يعني د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول] فَعِنْدَهُمَا لَمَّا صَحَّ الْحَجْرُ نو کله چي د دغه حضراتو په نيز [پر سفيه کس] بنديز لګول صحيح دی لَا يَنْفُذُ بَيْعُهُ إِذَا بَاعَ نو د هغه بيع به نه نافذيږي کله چي هغه بيع وکړي [يو شی خرڅ کړي] تَوْفِيْرًا لِفَائِدَةِ الْحَجْرِ عَلَيْهِ د دې لپاره چي پر هغه د حجر فايده پوره کړی سي وَإِنْ كَانَ فِيهِ مَصْلَحَةٌ او که چيري په دې بيع کي يو مصلحت وي أَجَازَهُ الْحَاكِمُ نو قاضي دي هغه جائز وګرځوي [اجازت دي پې ورکړي] لِأَنَّ رُكْنَ التَّصَرُّفِ قَدْ وُجِدَ ځکه چي د تصرف رکن موجود سو وَالتَّوَقُّفُ لِلنَّظَرِ لَهُ او د بيع موقوف کېدل د هغه د ښېګڼي [او فايدې] لپاره دي وَقَدْ نُصِبَ الْحَاكِمُ نَاظِرًا لَهُ او قاضي د همدې ښېګڼي د کتونکي [شفقت او همدردي کونکي] په توګه ټاکل کيږي فَيَتَحَرَّى الْمَصْلَحَةَ فِيهِ نو ځکه هغه به د دغه سفيه په حق کي ښېګڼي ته ګوري [د ښېګڼي طلب به کوي] كَمَا فِي الصَّبِيِّ الَّذِي يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ وَيَقْصِدُهُ لکه څرنګه چي د هغه بچي په حق کي کيږي کوم چي په بيع پوهيږي او د هغه اراده لري وَلَوْ بَاعَ قَبْلَ حَجْرِ الْقَاضِي او که سفيه د قاضي تر حجر [بنديز لګولو] مخکي بيع وکړ وي جَازَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا بيع جائز ده لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ حَجْرِ الْقَاضِي عِنْدَهُ ځکه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د قاضي حجر ضروري دی لِأَنَّ الْحَجْرَ دَائِرٌ بَيْنَ الضَّرَرِ وَالنَّظَرِ ځکه چي حجر د ضرر او ښېګڼې تر مينځ دائر دی وَالْحَجْرُ لِنَظَرِهِ او حجر صرف د هغه د ښېګڼي لپاره دی فَلَا بُدَّ مِنْ فِعْلِ الْقَاضِي نو ځکه د قاضي فعل ضروري دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَجُوزُ او

د امام محمد رَحِمَهُ الله په دا بیع نه جائز کیږي لِأَنَّهُ يَبْلُغُ مَحْجُورًا عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نیز سفیه د محجور والي [ممنوع والي] په حالت کي بالغ کیږي إِذِ الْعِلَّةُ هِيَ السَّفَهُ بِمَنْزِلَةِ الصِّبَا ځکه چي [د حجر] علت یعني بې وقوفي د کوچنیوالي په درجه کي ده [یعني سفاهت د کم عمرۍ او کوچنیوالي په شان دی] وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافُ إِذَا بَلَغَ رَشِيدًا ثُمَّ صَارَ سَفِيهًا او پر همدغه اختلاف دي کله چي سفیه د پوهۍ [پوهني] په حالت کي بالغ سي بیا سفیه وګرځي.

**اللغات**: ﴿رشيد﴾ (د سفیه ضد دی): مراد ځني پوه او هوښیار دی. ﴿يؤنس﴾ د مضارع مجهولي صیغه ده، مراد: محسوس کېدل، ښکاره کېدل. (احسن الهدایه، اشرف الهدایه). ﴿الرشد﴾ مراد: پوهي او هوښیاري. ﴿السفه﴾ بې وقوفي، سفیه والی. ﴿الصِّبا﴾ کوچنی والي (کوچنیتوب). ﴿محجور﴾ د نصر د باب مفعول دی: پر چا چي بندیز لګول سوی وي، منع کړی سوی. ﴿توفير﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځیني دا دي: پوره کول، پوره اخیستل (ترلاسه کول). ﴿الضرر﴾ نقصان، تاوان.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي امام صاحب رَحِمَهُ الله پر سفیه د حجر قائل نه دی، نو ځکه د هغه په نیز د سفیه تصرف جائز او صحیح دی. پاته سو د مال منع کولو مسئله نو د هغه په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز حکم دا دی چي کله دا سفیه د پنځویشت کالو سي، نو هغه ته به خپل مال ورکول کیږي، برابره ده له هغه څخه د پوهني او هوښیارۍ صدور سوی وي، که نه وي؛ د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي تر څو له هغه څخه د هوښیارۍ او عقل مندۍ صدور سوی نه وي او هغه له خپل احمقانه افعالو او حرکاتو څخه په پوره توګه را ګرځېدلی نه وي، تر هغه وخته به ده ته نه خپل مال ور کول کیږي او نه د ده تصرف معتبر کیږي، که څه هم د پنځویشت نه بلکي د شلویښتو کالو سي؛ ځکه له هغه څخه د مال منع کولو او مال نه ور کولو علت د هغه حماقت او بې وقوفي ده، لهذا تر څو چي په هغه کي دا علت باقي پاته وي، تر هغه وخته به هغه سفیه شمېرل کیږي او د کوچني په حکم سره به وي، که څه هم بوډا سي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د سفیه کس مال فقط د سفاهت او حماقت په وجه نه منع کول کیږي، بلکي هغه ته د ادب ور ښوولو (د هغه د هوښیار کېدلو او ادب زده کولو) په غرض سره هم د هغه مال منع کول کیږي، او د ادب ور ښوولو یو معلوم او مُتعیّن مودت دی او ښکاره ده چي د پنځویشت کالو پر مهال انسان اهل وعیال والا کیږي او د ادب زده کولو پر ځای د ادب ور ښوولو قابل

ګرځي او د ځيني خلکو خو په دې عمر کي لمسيان پيدا کيږي او هغوی د نيکه مرتبې ته رسيږي، نو تر دغه عمر وروسته له هغه شخصه مال منع کول به د هغه په حق کي ظلم او نا انصافي وي او صحيح به نه وي.

او دا پر کوچنيوالي (صبا) قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي د کوچنيوالي اثر د بلوغ تر ابتدائي مرحلې پوري وي او بيا په کراره، کراه دا اثر ختميږي او په پنځويشت کالو کي خو ګرسره د هغه وجود ختميږي، نو ځکه په هيڅ حواله سره په دې عمر کي منع صحيح نه ده.

همدا وجه ده کـه يـو هلک د هوښياري او نا سفيه والي پـه حالـت کي بالغ سي بيا هغه سفيه وګرځي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له هغه شخصه مال نه منع کـول کيـږي؛ ځکـه چـي دا سفاهت د کوچنيوالي دا اثر په وجه نه دی، نو ځکه اوس پر هغه منع او بنديز لګول صحيح نه دي.

ثم لايتأتى إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله پـه نېز پر سفيه حجر صحيح نه دی، نو ځکه د بيع، شراء او داسي نور مسائل د هغه پر قول متفرع کېدای هم نه سي. ها! څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر سفيه حجر او بنديز لګول صحيح دي، نو ځکه د سفيه بيع د دوی پـه نېز نه نافذيږي، او که چيري د وخت قاضي د هغه د بيع په نفاذ کي مصلحت او ښېګڼه ووينې، نو هغه به نافذوي، کنې هغه به ردوي.

ولوباع إلخ: کـه يـو سفيه کس د قاضي د حجر تر فيصلې مخکي يو شی خرڅ کړي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا بيع نافذيږي؛ ځکه چي حجر د نفع او نقصان تر مينځ دائر دی، يعني د حجر په صورت کي د هغه عقد نه نافذيږي او د هغه خرڅ کړی سوی شی بير ته د مخکي په څېر د هغه په ملکيت کي پاتيږي، لېکن د عدم حجر په صورت کي عقد نافذيږي او د هغه شی د هغه له ملکيت څخه وځي، نو د ملکيت په باقي پرېښوولو کي د هغه مصلحت او پر هغه شفقت دی، لېکن د عقد صحيح ګرځولو پـه حواله سره د هغه د قول پـه ردولو کـي د هغـه ضرر دی او پـه حجر کـي صرف مصلحت او شفقت ته کتل کيږي، نو ځکه د قاضي تر قضاء (فيصلې) وروسته به حجر نه ثابتيږي.

د دې په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي تر قضاء مخکي هم د سفيه بيع نه نافذيږي؛ ځکه چي د عدم جواز او عدم نفاذ علت د هغه په نېز سفاهت دی کوم چي قبل القضاء هم موجود دی، نو ځکه قبل القضاء به هم د هغه بيع نه نافذيږي. همدارنګه که سفيه هلک د هوښياري په حالت کي بالغ سي بيا هغه بير ته سفيه (بې وقوف او بې ځايه فضول خرچه) وګرځي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي له قضاء څخه بغير هغه نه محجور کيږي (بلکي د قاضي په قضاء سره پر هغه حجر او بنديز

ثابتيږي)؛ ځکه چي د بلوغ په حالت کي هغه هوښيار او ناسفيه دی. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نيز مخکني سفاهت ته په کتلو سره اوس هم پر هغه د سفاهت حکم جاري کيږي. (احسن الهدايه ج:۱۲، ص:۲۴۶، ۲۴۷)

## د سفيه کس د آزادولو حکم

وَإِنْ أَعْتَقَ عَبْدًا او که سفيه کس يو غلام آزاد کړي نَفَذَ عِتْقُهُ عِنْدَهُمَا نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه عتق نافذيږي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ لَا يَنْفُذُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز نه نافذيږي وَالْأَصْلُ عِنْدَهُمَا أَنَّ كُلَّ تَصَرُّفٍ يُؤَثِّرُ فِيهِ الْهَزْلُ يُؤَثِّرُ فِيهِ الْحَجْرُ او اصل [قاعده] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا ده چي هر هغه تصرف چي په هغه کي هزل تاثير کوي، په هغه کي حجر هم تاثير کوي وَمَا لَا فَلَا او په کوم تصرف کي چي هزل تاثير نه کوي، نو په هغه کي حجر هم تاثير نه کوي لِأَنَّ السَّفِيهَ فِي مَعْنَى الْهَازِلِ ځکه چي سفيه کس د هازل کس په معنیٰ سره دی مِنْ حَيْثُ أَنَّ الْهَازِلَ يُخْرِجُ كَلَامَهُ لَا عَلَى نَهْجِ الْعُقَلَاءِ لِاتِّبَاعِ الْهَوَى وَمُكَابَرَةِ الْعَقْلِ لَا لِنُقْصَانٍ فِي عَقْلِهِ په دې حيثيت سره چي هازل کس د عاقلانو د طرز [او طريقې] مخالف خبري کوي [يعني د هغو پر طريقه او د هغو د خبرو مطابق خبري نه کوي]، د نفسي خواهش د پېروي کولو او د عقل د مخالفت [خود سري] کولو په وجه، نه په عقل کي د يو نقصان په وجه فَكَذَلِكَ السَّفِيهُ او همداسي سفيه دی وَالْعِتْقُ مِمَّا لَا يُؤَثِّرُ فِيهِ الْهَزْلُ او عتق داسي شی چي په هغه کي هزل اثر نه کوي فَيَصِحُّ مِنْهُ نو ځکه د سفيه له طرفه عتق [او اعتاق] به صحيح کيږي وَالْأَصْلُ عِنْدَهُ أَنَّ الْحَجْرَ بِسَبَبِ السَّفَهِ بِمَنْزِلَةِ الْحَجْرِ بِسَبَبِ الرِّقِّ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز اصل دا دی چي د بې وقوفۍ په وجه بنديز پر لګول داسي دي لکه د غلامتوب په وجه بنديز پر لګول حَتَّى لَا يَنْفُذَ بَعْدَهُ شَيْءٌ مِنْ تَصَرُّفَاتِهِ إِلَّا الطَّلَاقَ كَالْمَرْقُوقِ تر دې چي د مرقوق [غلام] په څېر له طلاق څخه بغير د محجور سفيه کس هم هيڅ تصرف نه نافذيږي وَالْإِعْتَاقُ لَا يَصِحُّ مِنَ الرَّقِيقِ او د غلام له طرفه آزادول نه صحيح کيږي فَكَذَا مِنَ السَّفِيهِ نو ځکه د سفيه له طرفه به هم نه صحيح کيږي وَإِذَا صَحَّ عِنْدَهُمَا او کله چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د سفيه اعتاق صحيح دی كَانَ عَلَى الْعَبْدِ أَنْ يَسْعَى فِي قِيمَتِهِ نو پر غلام لازم دي چي په خپل قيمت کي خواري وکاږي [ګټه وکړي] لِأَنَّ

اَلْحَجْرَلِمَعْنَى النَّظَرِ ځکه چې حجر د مصلحت [او فايدې] په غرض سره وي [يعني پر سفيه کس د شفقت او مصلحت په خاطر بنديز لګول کيږي] وَذٰلِكَ فِي رَدِّ الْعِتْقِ او دا خبره د عتق په ردولو کې ده [يعني مصلحت او شفقت هغه وخت ثابتيږي کله چې د سفيه عتق رد کړی سي] اِلَّا أَنَّهُ مُتَعَذِّرٌ ليکن د عتق ردول نا ممکن دي فَيَجِبُ رَدُّهُ بِرَدِّ الْقِيمَةِ نو ځکه د قيمت واپس کولو په ذريعه به د هغه ردول ضروري وي كَمَا فِي الْحَجْرِعَلَى الْمَرِيضِ لکه څرنګه چې د مريض په حجر کې کيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ لَا تَجِبُ السِّعَايَةُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې پر غلام سعايه [خواري کښل] واجب نه دي لِأَنَّهَا لَوْ وَجَبَتْ إِنَّمَا تَجِبُ حَقًّا لِمُعْتِقِهِ ځکه که چيرې سعايه واجب وي نو د مُعتِق [آزادونکي] د حق په وجه به واجب وي وَالسِّعَايَةُ مَا عُهِدَ وُجُوبُهَا فِي الشَّرْعِ إِلَّا لِحَقِّ غَيْرِ الْمُعْتِقِ حال دا چې په شريعت کې صرف د غير مُعتِق [ناآزادونکي] د حق لپاره د سعايه وجوب پېژندل سوی دی وَلَوْدَبَّرَعَبْدَهُ او که سفيه کس خپل غلام مُدبّر جوړ کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ يُوجِبُ حَقَّ الْعِتْقِ ځکه چې تدبير [مدبر جوړول] د عتق حق ثابتوي فَيُعْتَبَرُبِحَقِيقَتِهِ نو ځکه د عتق حق به پر حقيقي عتق قياسول کيږي إِلَّا أَنَّهُ لَا تَجِبُ السِّعَايَةُ مَا دَامَ الْمَوْلَى حَيًّا خو تر څو چې مالک ژوندی پاته وي تر هغه وخته [پر مُدبّر] سعايه نه واجبيږي لِأَنَّهُ بَاقٍ عَلَى مِلْكِهِ ځکه چې مُدبّر د دغه [محجور] سفيه په ملکيت کې پاته دی وَإِذَا مَاتَ وَلَمْ يُؤْنَسْ مِنْهُ الرُّشْدُ [ها!] کله دا سفيه مړ سي [په داسي حال کې چې] له هغه څخه پوهي ښکاره نه سي سَعَى فِي قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا نو غلام به د خپل مُدبّر والي د حالت د قيمت لپاره خواري کاږي [اګته کوي] لِأَنَّهُ عَتَقَ بِمَوْتِهِ ځکه چې مُدبّر د خپل مالک [سفيه] د مرګ په وجه آزاد سوی دی وَهُوَ مُدَبَّرٌ او [د آزادېدلو په وخت کې] هغه مُدبّر وو فَصَارَ كَمَا إِذَا أَعْتَقَهُ بَعْدَ التَّدْبِيرِ نو داسي سوه لکه تر تدبير وروسته چې مالک هغه آزاد کړی وي وَلَوْجَاءَتْ جَارِيَتُهُ بِوَلَدٍ او که چيرې د محجور سفيه مينځه بچی راوړي فَادَّعَاهُ او سفيه د هغه [د نسب] دعویٰ وکړي يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د هغه بچي نسب د ده سره ثابتيږي وَكَانَ الْوَلَدُ حُرًّا وَالْجَارِيَةُ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ او بچی آزاديږي او مينځه د هغه ام ولد کيږي لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَى ذٰلِكَ لِإِبْقَاءِ نَسْلِهِ ځکه چې، سفيه کس د خپل نسل باقي ساتلو لپاره

استيلاد ته محتاج دی فَأُلْحِقَ بِالْمُصْلِحِ فِي حَقِّهِ نو ځکه د استيلاد په حق کي هغه د هوښيار [رشيد] کس سره لاحق کړی سوی دی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهَا وَلَدٌ او که د مينځي سره بچی نه وي وَقَالَ: هَذِهِ أُمُّ وَلَدِيْ او سفيه ووايي: چي دا مينځه زما ام ولد ده كَانَتْ بِمَنْزِلَةِ أُمِّ الْوَلَدِ لَا يَقْدِرُ عَلَى بَيْعِهَا نو هغه دام ولد په شان کيږي چي سفيه به د هغې پر خرڅولو قدرت [اختيار] نه لري وَإِنْ مَاتَ او که سفيه مړ سي سَعَتْ فِي جَمِيعِ قِيمَتِهَا نو دا مينځه به په خپل ټوله قيمت کي خواري کاږي لِأَنَّهُ كَالْإِقْرَارِ بِالْحُرِّيَّةِ ځکه چي [د سفيه له طرفه] د آزادی دعویٰ د اقرار په شان ده إِذْ لَيْسَ لَهَا شَهَادَةُ الْوَلَدِ ځکه د دغه مينځي سره د بچي ګواهي نسته بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّ الْوَلَدَ شَاهِدٌ لَهَا ځکه چي [هلته] بچی د هغې [دام ولد کېدلو] ګواه دی وَنَظِيرُهُ الْمَرِيضُ إِذَا ادَّعَى وَلَدَ جَارِيَتِهِ او د دې سره مشابه هغه مريض دی کوم چي [په مرضُ الموت کي] د خپلي مينځي د بچي [د نسب] دعویٰ وکړي فَهُوَ عَلَى هَذَا التَّفْصِيلِ نو دا هم پر همدغه تفصيل دي.

**اللغات**: ﴿نفذ﴾ د نصر ماضي ده: نافذېدل، جاري کېدل، عقد او معامله پای ته رسېدل. ﴿يؤثر﴾ د تفعيل مضارع ده: تاثير کول، مؤثر کېدل، اثر او اغېز پکښي کول. ﴿هزل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ټوکي او مسخرې کول، د مسخرو په توګه يو کار يا يو خبره کول. ﴿نهج﴾ طرز، طريقه. ﴿اتباع الهوی﴾ د خواهشاتو پېروي (تابعداري). ﴿مكابرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: عناد او مخالفت کول، غلبه کول، د حق انکار کول، (خودسري کول). ﴿المرقوق﴾ تر غلامی لاندي، غلام. ﴿مدبر﴾ هغه غلام چي مالک ورته ويلي وي: زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري تر حجر او بنديز لګېدلو وروسته سفيه خپل غلام آزاد کړي، نو زموږ په نېز دا عتق (آزادي) نافذيږي، په عبارت کي د "عِنْدَهُمَا" لفظ دی، خو حقيقت دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم دا عتق نافذيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا عتق نه نافذيږي وَبِهِ قال أحمد وهو قياس قول مالک. (بنايه)

زموږ د احنافو دليل پر يوه قاعده مبني دی او هغه دا چي هر هغه تصرف چي په هغه کي هزل مؤثر کيږي، يعني په کوم تصرف کي چي هزل مانع ګرځي (او د هزل په وجه هغه منع کيږي)، په هغه تصرف کي حجر هم مانع ګرځي؛ ځکه چي په بې ځايه خبرو او بې ځايه کارو کي سفيه او هازل دواړه

سره برابر دي، لهذا د هزل او حجر دواړو حکم به هم برابر وي، او څرنګه چي هزل د عتق له نفاذ څخه مانع نه دی (لکه څرنګه چي په دې حدیث کي ذکر سوي دي: "ثلاث جِدّهن جِد وهزلهن جِد إلخ". لهذا که څوک د مسخرو په توګه خپل غلام آزاد کړي، نو هم آزادیږي.)، نو ځکه حجر به هم د عتق له نفاذ څخه مانع نه وي او د هازل په څېر به د سفیه عتق هم نافذیږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د سفاهت او حماقت په وجه کوم بندیز لګول سوی وي، هغه داسي دی لکه د غلامتوب په وجه لګول سوی بندیز؛ ځکه څرنګه چي له محجور غلام څخه خطاب او تکلف (مکلف کېدل) نه زائلیږي، همداسي له محجور سفیه څخه هم هغه نه زائلیږي، او د غلام اعتاق صحیح نه دی، نو ځکه د سفیه اعتاق به هم صحیح او نافذ نه وي.

لېکن زموږ له طرفه د هغه جواب دا دی چي د رقیق اعتاق په دې وجه صحیح نه دی چي د هغه په تصحیح او تنفیذ کي د بل چا یعني د مالک د حق باطلول سته؛ ځکه د کوم محل (د کوم غلام) سره چي د هغه تصرف متصل کیږي هغه د بل چا (یعني د مالک) په ملکیت کي دی، همدا وجه ده چي د حد او قصاص په هکله د غلام اقراري تصرف نافذیږي. د دې په خلاف د سفیه په تصرف کي د بل چا حق نه وي؛ ځکه چي پر سفیه د هغه د مصلحت او پر هغه د شفقت لپاره بندیز لګول کیږي، نو ځکه د سفیه اعتاق به نافذیږي او هغه به پر غلام قیاسول صحیح نه وي.

وإذا صحّ إلخ: فرمایي کله چي زموږ په نیز د سفیه اعتاق (آزادول) صحیح دي، نو د آزاد کړی سوي غلام کار دا دی چي سعی او مزدوري وکړي، پیسې وګټي او خپل د ځان قیمت سفیه ته ورکړي؛ ځکه چي پر سفیه د مصلحت او شفقت پر بناء د تصرف بندیز لګول کیږي، او دلته حقیقتاً او صورتاً د سفیه مصلحت په دې کي دی چي د هغه عتق نافذ نه کړی سي او د هغه ملکیت (غلام) هغه ته واپس کړی سي، لېکن د نبوي فرمان "ثلاث جدهن جد وهزلهن جد إلخ" پر بناء دغه عتق ردول یعني آزاد سوی غلام واپس اخیستل او بیرته مملوک ګرځول ناممکن دي، نو ځکه اوس به د غلام د قیمت په ورکولو سره معناً د سفیه سره د مصلحت او ښېګڼي څرګندونه کیږي.

وعن محمد إلخ: له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چي په دغه مسئله کي پر آزاد کړی سوي غلام سعایه نه واجبیږي؛ ځکه چي آزادونکی کس صرف یو دی او صرف د هغه لپاره سعایه واجبیږي. حال دا چي په شریعت کي د نا آزادونکي (غیر معتق) لپاره سعایه واجب کړی سوې ده (مثلاً که یو غلام د دوو خلکو په مینځ کي مشترک وي، بیا یو شریک هغه غلام آزاد کړي. نو د شریعت حکم دا دی چي دغه غلام به د دویم نا آزادونکي شریک د حصې لپاره سعی او کوشش کوي او هغه ته به د خپلي حصې مال ورکوي)، لهذا

کله چې په شریعت کې د غیرِ مُعتَق لپاره سعایه واجب ده، نو دغه ایجاب (یعني د معتَق سفیه لپاره سعایه واجبول) به د شریعت د ایجاب مخالف وي کوم چې صحیح نه دي.

ولو دبّرعبده إلخ: د دې حاصل دا دی چې د سفیه کس لپاره دا هم جائز دي چې خپل غلام مُدبّر جوړ کړي؛ ځکه کله چې هغه د حقیقي اعتاق مالک دی، نو د حق اعتاق خو به په درجه اولیٰ مالک وي او د سفیه مالک د مصلحت لپاره او پر هغه د شفقت په خاطر پر دغه مُدبّر سعایه واجب ده، او د سفیه په ژوند کې پر واجب نه ده؛ ځکه چې د هغه په ژوند کې مُدبّر د هغه په ملکیت کې وي او د هغه تر مرګ وروسته آزادیږي، نو ځکه تر مرګ وروسته به پر هغه سعایه واجب وي.

ولو جاءت إلخ: مسئله دا ده که د محجور سفیه مینځه یو بچی وزیږوي او سفیه د هغه د نسب دعویٰ وکړي چې دا زما بچی دی، نو د هغه نسب د سفیه سره ثابتیږي. او څرنګه چې پلار (سفیه) آزاد دی، نو ځکه ځوی به هم آزاد وي او د هغه مور به د سفیه ام ولد وي او په دغه معامله کې به سفیه د رشید او هوښیار کس سره لاحقول کیږي او د هغه استیلاد (اُم ولد جوړول) به صحیح ګرځول کیږي؛ ځکه چې هغه هم انسان دی بچیانو ته ضرورت لري او دې ته مجبوره دی چې تر خپل شا نسل پریږدي. او که چیري د دغه مینځې سره بچی موجود نه وي خو د دې باوجود سفیه د هغې د اُم ولد کېدلو هوایي دعویٰ وکړي، نو دا دعویٰ په حقیقت کې د آزادولو دعویٰ ده او اوس دا مینځه د اُم ولد په درجه ګرځي، نه ام ولد؛ ځکه چې دلته بچی معدوم دی او د هغه شهادت مفقود دی. او په دې صورت کې به دا مینځه د مالک (سفیه) تر مرګ وروسته د خپل قیمت په اندازه مال ګټې او د مالک وارثانو او غرماؤ (قرضخواهانو) ته به یې ورکوي. او په اول صورت کې پر هغې ځکه سعایه نه واجبیږي چې هلته بچی موجود دی او د بچي وجود او د مالک سره د هغه د نسب ثبوت د مینځې د اُم ولد کېدلو شهادت (ګواهي) ده. او په دغه دویم صورت کې (یعني کله چې بچی موجود نه وي) د هغې د اُم ولد کېدلو دعویٰ د هغې د آزادۍ د اقرار کولو په څېر ده، او که سفیه مالک دا اُم ولد مینځه آزاده کړي، نو پر هغې سعایه واجبیږي، نو ځکه د آزادۍ د اقرار کولو په صورت کې به هم پر مینځې سعایه واجبیږي.

د دې مثال داسې دی لکه یو مریض چې مقروض (پور وړی) وي او هغه د خپلې مینځې په هکله دعویٰ کوي چې دا زما اُم ولد ده، نو دې ته به کتل کیږي چې بچی موجود دی، که نه، که چیري بچی موجود وي، نو پر مینځې سعایه نه واجبیږي، او که بچی موجود نه وي، نو د مریض مالک تر مرګ وروسته پر هغې سعایه واجبیږي. همدغه ډول په پور تنۍ مسئله کې چې هم چیري بچی سته، هلته سعایه واجب نه ده، او چیري چې بچی نشته، هلته سعایه واجب ده. (احسن الهدایه)

## د سفیه کس د نکاح کولو حکم

قَالَ: وَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً او که محجور سفیه د یو ښځې سره نکاح وکړي جَازَ نِكَاحُهَا نو د هغې نکاح جائز ده لِأَنَّهُ لَا يُؤَثِّرُ فِيهِ الْهَزْلُ ځکه چې نکاح کې هزل تاثیر نه کوي وَلِأَنَّهُ مِنْ حَوَائِجِهِ الْأَصْلِيَّةِ او ځکه چې نکاح د هغه له اصلي ضرورتونو څخه ده وَإِنْ سَمَّى لَهَا مَهْرًا او که سفیه د هغې لپاره مهر وټاکي [مقرر کړي] جَازَ مِنْهُ مِقْدَارُ مَهْرِ مِثْلِهَا نو له هغه څخه د هغې د مهر مثل په اندازه جائز دی لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ النِّكَاحِ ځکه چې مهر مثل د نکاح د لوازماتو څخه دی وَبَطَلَ الْفَضْلُ او [له مهر مثل څخه] زیاتوب باطلیږي لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ فِيهِ ځکه چې په زیاتوب [زائد مقدار] کې ضرورت نسته وَهُوَ الْتِزَامٌ بِالتَّسْمِيَةِ او دا په ټاکلو [مقرر کولو] سره پر ځان لازمول دي [یعني دلته سفیه په ټاکلو او بیانولو سره پر ځان مهر لازم کړی دی] وَلَا نَظَرَ لَهُ فِيهِ حال دا چې په دې کې د سفیه لپاره مصلحت [او شفقت] نسته فَلَمْ تَصِحَّ الزِّيَادَةُ نو ځکه زیاتوب به نه صحیح کیږي فَصَارَ كَالْمَرِيضِ مَرَضَ الْمَوْتِ نو هغه د مریض الموت د مریض په څېر سو وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او که سفیه په دغه منکوحه ښځې له دخول کولو څخه مخکې هغې ته طلاق ورکړي وَجَبَ لَهَا النِّصْفُ فِي مَالِهِ نو د سفیه په مال کې د هغې لپاره نیم مهر واجبیږي لِأَنَّ التَّسْمِيَةَ صَحِيحَةٌ إِلَى مِقْدَارِ مَهْرِ الْمِثْلِ ځکه چې د مهر مثل تر مقداره پورې د مهر ټاکل [ټاکل سوی مهر] صحیح دی وَكَذَا إِذَا تَزَوَّجَ بِأَرْبَعِ نِسْوَةٍ أَوْ كُلَّ يَوْمٍ وَاحِدَةً او همدارنګه کله چې سفیه د څلورو ښځه سره نکاح وکړي یا هره ورځ دیوې ښځې سره نکاح وکړي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی.

**اللغات**: ﴿تزوج﴾ د تفعل ماضي ده: نکاح کول، واده کول. ﴿حوائج﴾ حاجتونه، ضرورتونه. ﴿سمّی﴾ د تفعیل ماضي ده، سَمّٰى يُسَمِّي تَسْمِيَةً: نومول، ټاکل، مقرر کول، متعینول، بیانول. ﴿ضرورات النکاح﴾ د نکاح لوازمات (د نکاح لازمي شیان)، ﴿نظر﴾ مصلحت، ښېګنه.

**تشریح**: **مسئله**: دا که سفیه د یو ښځې سره نکاح وکړي، نو دا نکاح جائز او صحیح ده: ځکه هزل له نکاح څخه مانع نه دی، نو د مخکني قاعدې په رڼا کې به سفاهت هم له نکاح څخه مانع نه وي او د سفیه نکاح به جائز وي، او ځکه چې نکاح د انساني ژوند یو اهم جزء دی او د هر سړي ورته ضرورت

دی. او که سفیه خاوند د هغې لپاره مهر ټاکلی وي نو د مهر ټاکل (تعیین) هم صحیح دي، لېکن څرنګه چې دغه خاوند سفیه دی، نو ځکه د هغه د مصلحت او ښېګني لپاره او پر هغه د شفقت کولو په خاطر به د دې ښځي د مهر مثل تر مقداره پوري دغه ټاکل (تعیین) صحیح وي، یعني که هغه اته زره (۸۰۰۰) درهمه مهر ټاکلی وي او د ښځي مهر مثل شپږ زر (۶۰۰۰) وي، نو تر شپږ زرو پوري به د مهر تعیین صحیح وي او منکوحه به صرف د همدې مقدار مستحقه وي.

وبطل الفضل إلخ: د دې حاصل دا دی چي له مهر مثل څخه چي کوم مقدار زائد دی، د هغه په ټاکلو کي د سفیه نقصان دی او په دې کي د هغه لپاره مصلحت او شفقت معدوم دی، لهذا څرنګه چي که یو مرضُ الموت والا مریض مهر وټاکي، نو تر مهر مثله پوري ټاکل صحیح ګرځول کیږي، نو همداسي به د سفیه ټاکل هم د مهر مثل تر مقداره پوري صحیح ګرځول کیږي او زائد مقدار به باطلیږي.

ولو طلقها إلخ: که چیري سفیه له دخول او خلوت صحیحه څخه مخکي خپل دغه منکوحه ښځي ته طلاق ورکړي، نو دا منکوحه د نیم مهر مثل د مقدار مستحقه کیږي، ځکه چي د نکاح کېدلو په وخت کي صرف تر مهر مثله پوري ټاکل (تعیین) صحیح وو (او تر دخول مخکي د طلاق واقع کېدلو په صورت کي د ښځي لپاره نیم مهر واجبیږي)، نو ځکه د طلاق قبل الدخول په وخت به کي د سفیه منکوحه ښځه د همدغهٔ مقدار د نصف حقداره کیږي . او برابره ده سفیه په یوه عقد کي د یوې ښځي سره نکاح وکړي یا د څلورو ښځو سره په یوه عقد کې نکاح وکړي یا په څلورو ورځو کي (په جلا، جلا عقد سره) د څلورو ښځو سره نکاح وکړي، په هر صورت کي د هغه منکوحه ښځي د مهر مثل حقداره کیږي. (احسن الهدایه)

## د سفیه له مال څخه د زکاة ایستلو او د هغه اولاد او داسي نورو ته د نفقه ورکولو حکم

قَالَ: وَيُخْرَجُ الزَّكَاةُ مِنْ مَالِ السَّفِيْهِ فرمایي: او د سفیه له مال څخه به زکاة ایستل کیږي لِأَنَّهَا وَاجِبَةٌ عَلَيْهِ ځکه [که هغه د نصاب مالک وي نو] پر هغه زکاة واجب دی وَيُنْفَقُ عَلَى أَوْلَادِهِ وَزَوْجَتِهِ وَمَنْ تَجِبُ نَفَقَتُهُ مِنْ ذَوِيْ أَرْحَامِهِ او [د هغه له مال څخه] نفقه به ورکول کیږي د هغه اولاد، ښځي او هغه ذوي الارحامو [نژدې قربانو] ته چي د هغوی نفقه پر ده واجب وي لِأَنَّ إِحْيَاءَ وَلَدِهِ وَزَوْجَتِهِ مِنْ حَوَائِجِهِ ځکه خپل بچی او خپله ښځه ژوندي ساتل د هغه له ضرورتونو څخه دي وَالْإِنْفَاقُ عَلَى ذِي الرَّحِمِ وَاجِبٌ عَلَيْهِ حَقًّا لِقَرَابَتِهِ او د حق قرابت په وجه ذی رحم محرم ته نفقه ورکول پر هغه واجب دي وَالسَّفَهُ لَا يُبْطِلُ حُقُوقَ النَّاسِ او سفاهت د خلکو حقوق نه باطلوي إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ يَدْفَعُ الزَّكَاةَ إِلَيْهِ

لِيَصْرِفَهَا إِلَى مَصْرِفِهَا مګر دا چي قاضي به هغه ته زکاة ورکوي چي هغه يې په خپله د زکاة په مصارفو [مستحقينو] کي صرف کړي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ نِيَّتِهِ لِكَوْنِهَا عِبَادَةً ځکه [د زکاة اداء کولو لپاره] د سفيه نيت ضروري دی ځکه چي زکاة عبادت دی لَكِنْ يَبْعَثُ أَمِينًا مَعَهُ كَيْلَا يَصْرِفَهُ فِي غَيْرِ وَجْهِهِ لېکن قاضي به د هغه سره خپل يو امين [او معتمد] کس استوي چي هغه د زکاة مال بې طريقه [او بې ځايه] صرف نه کړي وَفِي النَّفَقَةِ يَدْفَعُ إِلَى أَمِينِهِ لِيَصْرِفَهُ او د نفقې په صورت کي به قاضي خپل امين کس ته مال ورکوي چي هغه يې [په مستحقينو کي] صرف کړي [نه وسفيه کس ته] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِعِبَادَةٍ ځکه چي نفقه عبادت نه دی فَلَا يَحْتَاجُ إِلَى نِيَّتِهِ نو ځکه هغه د سفيه نيت ته محتاج نه دي [يعني په نفقه ورکولو کي د هغه نيت ته ضرورت نسته] وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ أَوْ نَذَرَ أَوْ ظَاهَرَ او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چي سفيه کس قسم واخلي يا [د صدقې او داسي نورو] نذر ومني يا د خپلي ښځي سره ظهار وکړي حَيْثُ لَا يَلْزَمُهُ الْمَالُ نو [په دې صورت کي] پر هغه مال نه لازميږي بَلْ يُكَفِّرُ يَمِينَهُ وَظِهَارَهُ بِالصَّوْمِ بلکي هغه به په روژو سره د خپل قسم او ظهار کفاره اداء کوي لِأَنَّهُ مِمَّا يَجِبُ بِفِعْلِهِ ځکه د کفارې وجوب له هغه شيانو څخه دی کوم چي د هغه د خپل فعل په وجه واجبيږي [نو دلته پر هغه د خپل فعل وجه کفاره واجب سوې ده] فَلَوْ فَتَحْنَا هَذَا الْبَابَ نو که موږ [په دې صورت کي] دغه [د مال لازمېدلو] دروازه خلاصه کړو [يعني مال پر لازم کړو، نه په روژو سره کفاره اداء کول] يُبَذِّرُ أَمْوَالَهُ بِهَذَا الطَّرِيقِ نو هغه به له دې لاري خپل مالونه ضايع کوي وَلَا كَذَلِكَ مَا يَجِبُ ابْتِدَاءً بِغَيْرِ فِعْلِهِ او کوم شی چي د هغه له فعل څخه بغير ابتداءً واجب دي [يعني زکاة ونفقة الأقارب]، هغه داسي نه دی

**اللغات**: ﴿السفيه﴾ بې وقوف، د دې بشپړ تعريف د باب په شروع کي تېر سو. ﴿يُنفَق﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: خرچ کول (خرچول)، نفقه ورکول. ﴿ظَاهَر﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: ظهار کول. ﴿يُكفر﴾ د تفعيل مضارع ده: کفاره اداء کول. ﴿امين﴾ امانت ساتونکی، امانتدار. ﴿يبذر﴾ د تفعيل مضارع ده: فاسد اسراف کول، زيات خرچ کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که سفيه د نصاب مالک وي، نو پر هغه زکاة واجب دی او قاضي دي د هغه له مال څخه د زکاة مال وباسي او هغه ته دي يې ورکړي چي هغه په خپله دا د زکاة مصارفو ته ورکړي؛ ځکه چي زکاة عبادت دی او د عبادت اداء کولو لپاره نيت شرط دی، نو ځکه د زکاة مال به سفيه ته

ورسپارل کیږي، خو د هغه سره به قاضي احتیاطا خپل یو امین او باوري سړی هم استوي. همدارنګه د اهل وعیال نفقه هم د سفیه په مال کي واجبیږي او دا نفقه به قاضي د خپل امین او معتمد په لاس ورکوي چي هغه یې مستحقینو ته ورکړي او د سفیه په لاس به یې نه ورکوي؛ ځکه چي نفقه عبادت نه دی چي نیت پکښي ضروري سي، نو ځکه هغه به د دې وقوف او فضول خرچه کس (سفیه) په لاس نه ورکول کیږي.

وهذا بخلاف إلخ: فرمایي که سفیه د الله په نامه سره دیو کار قسم واخلي یا د صدقې او داسي نورو نذر ومني (چي د الله لپاره پر ما دومره مال صدقه کول لازم دي) یا د خپلي ښځي سره ظهار وکړي، نو څرنګه چي دغه امور په خپله د هغه د فعل په وجه واجب سوي دي او الله نه دي پر واجب کړي، نو ځکه د دغه افعالو اداینه به د هغه د مال په ذریعه نه کیږي، بلکي سفیه به د روژو نیولو په ذریعه د هغوی کفاره اداء کوي. د دې په خلاف زکاة، حج او داسي نور د الله په واجبولو سره واجب سوي دي، نو ځکه د هغوی ادائینه به په مال سره کیږي، او بیا له مال خرچ کولو څخه بغیر د هغوی د اداء کولو بله لاره هم نسته. (احسن الهدایه)

## د سفیه لپاره د حج کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ أَرَادَ حَجَّةَ الْإِسْلَامِ فرمایي: که چیري سفیه کس د حج اسلام [فرض حج] اراده وکړي لَمْ يُمْنَعْ مِنْهَا نو له هغه څخه به نه منع کول کیږي لِأَنَّهَا وَاجِبَةٌ عَلَيْهِ بِإِيجَابِ اللهِ تَعَالَى مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ ځکه چي حج د الله تعالیٰ په واجبولو سره پر هغه واجب [فرض] دی چي په هغه کي د ده د عمل هیڅ دخل نسته وَلَا يُسَلِّمُ الْقَاضِي النَّفَقَةَ إِلَيْهِ او قاضي به نفقه [د لاري خرچه] سفیه ته نه سپاري وَيُسَلِّمُهَا إِلَى ثِقَةٍ مِنَ الْحَاجِّ يُنْفِقُهَا عَلَيْهِ فِي طَرِيقِ الْحَجِّ [بلکي] یو معتمد [باوري] حاجي ته به یې سپاري چي هغه د حج په لاره کي دا نفقه پر سفیه خرچوي كَيْلَا يُتْلِفُهَا فِي غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ د دې لپاره چي سفیه له دغه کار څخه بغیر په بل څه کي هغه ضایع نه کړي وَلَوْ أَرَادَ عُمْرَةً وَاحِدَةً او که چیري سفیه کس دیوې عمرې اراده وکړي لَمْ يُمْنَعْ مِنْهَا اسْتِحْسَانًا نو استحساناً به هغه له عمرې څخه هم نه منع کول کیږي لِاخْتِلَافِ الْعُلَمَاءِ فِي وُجُوبِهَا ځکه چي د عمرې په وجوب کي د علماؤ اختلاف دی بِخِلَافِ مَا زَادَ عَلَى مَرَّةٍ وَاحِدَةٍ مِنَ الْحَجِّ په خلاف له یوه وار څخه د زیات حج کولو وَلَا يُمْنَعُ مِنَ الْقِرَانِ او هغه به له حج قران څخه هم نه منع کول کیږي لِأَنَّهُ لَا يُمْنَعُ مِنْ إِفْرَادِ السَّفَرِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا

ځکه [کله چي] هغه له حج او عمرې څخه د هر يوه لپاره د تنها سفر کولو [يعني د تنها حج يا عمرې کولو] څخه نه منع کول کيږي فَلَايُمْنَعُ مِنَ الْجَمْعِ بَيْنَهُمَا نو د دواړو له جمع کولو څخه به [په درجه اولیٰ] نه منع کول کيږي وَلَايُمْنَعُ مِنْ أَنْ يَسُوقَ بَدَنَةً او هغه به له دې څخه هم نه منع کول کيږي چي د خپل ځان سره د قرباني څاروی [اوښ يا غوا] بوځي تَحَرُّزًا عَنْ مَوْضِعِ الْخِلَافِ له موضع اختلاف څخه د بچ کېدلو لپاره إِذْ عِنْدَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ لَا يُجْزِئُهُ غَيْرُهَا ځکه د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په نيز له بدنه څخه بغير بل څه کافي نه دي [يعني جائز نه دي] وَهِيَ جَزُوْرٌ أَوْ بَقَرَةٌ او بدنه اوښ يا غوا ده فَإِنْ مَرِضَ وَأَوْصَى بِوَصَايَا فِي الْقُرَبِ وَأَبْوَابِ الْخَيْرِ او که چيري سفيه کس مريض سي او هغه په نېکو کارونو او د خير په بابونو کي څه وصيتونه وکړي [يعني دا وصيت وکړي چي د خير په لارو کي دي زما مال خرچ کړل سي] جَازَ ذَلِكَ فِي ثُلُثِهِ نو دا د هغه د مال په درېيمه حصه کي جائز کيږي لِأَنَّ نَظَرَهُ فِيهِ ځکه چي د هغه ښېګڼه په همدې کي ده إِذْ هِيَ حَالَةُ انْقِطَاعِهِ عَنْ أَمْوَالِهِ ځکه د مرض حالت له خپلو مالونو څخه د هغه د منقطع کېدلو [او تعلق ختمېدلو] حالت وي وَالْوَصِيَّةُ تَخْلُفُ ثَنَاءً أَوْ ثَوَابًا او وصيت تر خپل شا ښه والی يا ثواب پرېږدي [يعني تر وصيت وروسته تعريف وي يا ثواب] وَقَدْ ذَكَرْنَا مِنَ التَّفْرِيعَاتِ أَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او په "كفاية المنتهي" کي موږ له دې څخه زيات تفريعات ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿صنع﴾ عمل، کړنه، ﴿الثقة﴾ مراد: معتمد او باوري کس، ﴿القِرَان﴾ حجِ قران، په يوه احرام سره حج او عمر دواړه اداء کول، ﴿البَدَنَة﴾ هغه اوښ، اوښه يا غوا کوم چي په مکه کي قربانول کيږي (يعني کوم چي د الله د قُرب او ثواب حاصلولو په اراده سره ذبح کول کيږي)، او د ځينو په نېز فقط اوښ څني مراد دی، جمع: بُدْن او بُدُن، لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي ذکر سوي دي "وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا لَكُمْ مِنْ شَعَائِرِ اللهِ" [سورة الحج: ۳۶]، ﴿القُرَب﴾ جمع د قُرْبَةٌ ده: نېک اعمال، طاعات، (هر هغه عمل چي په هغه سره د الله قُرب [نژدېکت] حاصلول کيږي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که سفيه فرض حج يا په ژوند کي يوه عمره کول وغواړي، نو هغه به له حج يا عمرې اداء کولو څخه نه راګرځول کيږي؛ ځکه حج خو الله فرض کړی دی او په هغه کي د بنده هيڅ لاس نسته، لهذا څرنګه چي د زکاة اداء کولو لپاره د سفيه مال خرچ کول کيږي، نو همداسي

به د حج اداء کولو لپاره هم هغه ته د مال خرچ کولو حق وي. خو د سفر نفقه او خرچه به سفیه ته نه ورکول کیږي بلکې یو امین او معتمد حاجي ته به ورکول کیږي کوم چې د هغه سره په لاره کې ملګری وي، د دې لپاره چې سفیه له غیر ضروري خرچونو څخه بچ سي او د سفر ملګری صرف د ضرورت په اندازه هغه ته خرچه ورکوي.

پاته سو د عمرې مسئله، نو د عمرې د حیثیت په هکله د فقهاؤ څو اقوال دي: ① ځیني وايي چې سنت مؤکده ده ② او د بعضو په نېز فرض کفایه ده ③ او ځیني حضرات بیا هغه فرض ګڼي، نو ځکه استحساناً به د یوې عمرې له اداء کولو څخه سفیه نه راګرځول کیږي، ها! څرنګه چې هغه له نفلي حج څخه راګرځول کیږي، نو همداسې به له نفلي عمرې څخه هغه هم راګرځول کیږي.

ولا یمنع من القران إلخ: د دې مطلب واضح دی. او پر قارن (حجِ قران کونکي) هَدْي لازم ده، نو که هغه د هدي لپاره د ځان سره بدنه یعني اوښ یا غوا روانه کړي، نو له دې څخه به هم هغه نه منع کول کیږي؛ ځکه چې د بدنه په هکله هیڅ اختلاف نسته او له بدنه څخه بغیر په پُسه او داسې نور کې اختلاف دی، زموږ په نېز په هدی کې پُسه کافي دی، لېکن د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په نېز په پُسه او داسې نورو سره کار نه کیږي بلکې صرف د اوښ یا غوا هدی ضروري ده او د همدې نوم بدنه ده، لهذا کله چې هغه بدنه روانه کړي، نو د هیڅا اختلاف به پکښې نه وي، نو ځکه سفیه قارن به له هغه څخه نه منع کول کیږي.

فإن مرض إلخ: فرمايي که سفیه په خپل مرضُ الموت کې په نېکو کارو او د خیر په لارو کې د خپل مال خرچولو وصیت وکړي مثلاً د مسجد یا مدرسې جوړولو حکم وکړي، نو د هغه دا وصیت د مال په درېیمه حصه کې نافذېږي؛ ځکه چې په همدومره مقدار کې د وصیت په نافذولو کې د هغه نېکنه ده او دا پر هغه شفقت دی (او مخکې ذکر سوه چې پر سفیه د هغه د نېکنې او شفقت په خاطر بندیز لګول کیږي). او که چیري هغه د مالدار کس لپاره (یا د نامه والا کار لپاره) وصیت کړی وي، نو تر مرګ وروسته به خلک د هغه تعریفونه کوي او که هغه د فقیر لپاره (یا د یو مخفي نېک کار لپاره) وصیت کړی وي، نو پس تر مرګه به ده ته د هغه ثواب حاصلېږي. همدا خبره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په دې عبارت "والوصية تخلف ثناءً أي فيما إذكان للغني أو ثواباً أي فيما إذا كان للفقير" سره بیان کړې ده. (احسن الهدایه ج: ۱۲، ص: ۲۵۴)

## پر فاسق د بندیز لګولو (له تصرّف څخه د منع کولو) حکم

قَالَ: وَلَايُحْجَرُعَلَى الْفَاسِقِ إِذَا كَانَ مُصْلِحًا لِمَالِهِ عِنْدَنَا فرمايي: او زموږ په نېز پر فاسق کس به بندیز نه لګول کیږي کله چې هغه د خپل مال په هکله مصلح [او هوښیار] وي وَالْفِسْقُ الْأَصْلِيُّ وَالطَّارِئُ سَوَاءٌ او [په دې سلسله کې] اصلي فسق او طاري فسق دواړه سره برابر دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُحْجَرُعَلَيْهِ زَجْرًا لَهُ وَعُقُوبَةً عَلَيْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د فاسق د زجر [رټلو او منع کولو] او سزا ورکولو لپاره به پر هغه بندیز لګول کیږي كَمَا فِي السَّفِيهِ لکه څرنګه چې په سفیه کس کې دي وَلِهٰذَا لَمْ يُجْعَلْ أَهْلًا لِلْوِلَايَةِ وَالشَّهَادَةِ عِنْدَهُ او په همدې وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فاسق کس د ولایت او ګواهي ورکولو اهل نه دی ګرځول سوی

وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى ﴿فَإِنْ آنَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾ [سورة النساء:۶] او زموږ دلیل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: "که چیرې تاسې ووینئ په هغو [یتیمانو] کې صلاح [او هوښیاري په معاملاتو او د مال په ساتنه کې] نو هغو ته خپل مالونه ورکړئ!" وَقَدْ أُونِسَ مِنْهُ نَوْعُ رُشْدٍ او [دلته] له فاسق څخه یو ډول صلاح لیدل سوې [ښکاره سوې] ده فَيَتَنَاوَلُهُ النَّكِرَةُ الْمُطْلَقَةُ لهذا نکرهٔ مطلقه به هغه لره شامل وي وَلِأَنَّ الْفَاسِقَ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ عِنْدَنَا او څکه چې فاسق زموږ په نېز د ولایت اهل دی لِإِسْلَامِهِ د خپل اسلام په وجه [یعني څکه چې هغه مسلمان دی] فَيَكُونُ وَالِيًا لِلتَّصَرُّفِ نو څکه هغه به د تصرف هم لائق وي وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِيمَا تَقَدَّمَ او موږ مخکې دا ثابته کړې ده [یعني د کتابُ النكاح په ابتدائي حصه کې] وَيَحْجُرُ الْقَاضِيُ عِنْدَهُمَا أَيْضًا وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ بِسَبَبِ الْغَفْلَةِ او قاضي به د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز [پر غافل کس] هم د غفلت په سبب سره بندیز لګوي او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَهُوَأَنْ يُغْبَنَ فِي التِّجَارَاتِ وَلَا يَصْبِرُعَنْهَا لِسَلَامَةِ قَلْبِهِ او غفلت دا دی چې انسان په تجارتونو کې دوکه خوري [تاوان کوي] او د زړه د سالموالي [یعني د دوکې او تاوان د زغملو او هېرلو] په وجه له تجارت څخه صبر هم نه سي کولای لِمَا فِي الْحَجْرِمِنَ النَّظَرِلَهُ څکه چې [پر هغه] په بندیز لګولو کې د هغه ښېګڼه ده.

**اللغات**: ﴿مصلح﴾ د افعال د باب فاعل دی، أَصْلَحَ يُصْلِحُ إِصْلَاحًا: د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه څیني دا دي: نفع من او د فایدې کار کول، سمول (سم او ګټمن تصرّف کول)، او مُصْلِح د هوښیار (او سنجیده) په معنیٰ سره هم مستعمل دی لکه څو عبارته مخکې چې ذکر سوه، ﴿الطارئ﴾ د فتح د باب فاعل دی: وروسته واقع کېدونکی (وروسته پیدا سوی)، خلاف الاصلي (نا اصلي)، ﴿زجر﴾ رټل او تنبیه ورکول، له بد کار (فسق) څخه منع کول، ﴿عقوبة﴾ سزا، ﴿رُشد﴾ ① صلاح (د سفاهت او ګمراهي ضد)، سمون او له

غلطیو شخه خالي والی (پوهي او هوښیاري)، ② البلوغ مع حسن التصرّف بالمال (معجم لغة الفقهاء)، ﴿یتناول﴾ د تفاعل مضارع ده: شاملېدل. ﴿یغبن﴾ د سمع د باب مضارع ده: غلطي کول، دوکه کېدل (دوکه خوړل)، تاوان او نقصان کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که فاسق او بدکاره کس د خپل مال د صرفولو او استعمالولو په هکله مصلح او هوښیار وي، نو زموږ په نیز هغه ته د کاروبار او داسي نورو کارونو پوره اختیار سته او پر هغه به هیڅ بندیز نه لګول کیږي، برابره د هغه فسق اصلي وي یا وروسته پیدا سوی وي، په هر صورت کي به پر هغه حجر نه کیږي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د فاسق د زجر او هغه ته د سزا ورکولو په نیت سره به پر هغه بندیز لګول کیږي، لکه شرنګه چي د سفیه د زجر لپاره پر هغه بندیز لګول کیږي (چي هغه له خپل سفاهت او فضول خرچي شخه منع سي او په دې هکله آداب زده کړي)، او د همدې زجر په غرض امام شافعي رَحِمَهُ الله فاسق کس د نکاح د ولایت او د ګواهي اداء کولو اهل نه دی ګرځولی.

ولنا قوله تعالی إلخ: زموږ دلیل د قرآن کریم دا آیت دی ﴿فإن انسم منهم "رُشدًا" فادفعوا إلیهم أموالهم﴾ یعني کله له یتیمانو شخه په مال او معاملاتو کي رشد او صلاح ښکاره سي، نو هغو ته خپل مالونه ورکړئ!. په دغه آیت سره موږ په دې توګه دلیل نیسو چي دلته له یتیمو بچیانو شخه د مال منع کولو علت د رشد نشتوالي دی او کله چي رشد ښکاره سي، نو حجر او بندیز ختمیږي (ځکه چي علت ختم سو او شرط پوره سو)، او شرنګه چي دلته "رُشدًا" نکره دی او د نکرې یوه قاعده دا ده چي هغه د اثبات په مقام کي د خصوص فایده ورکوي، نه د عموم (یعني هغه خاص ګرځي)، او شرنګه چي دلته نکره د اثبات په مقام کي ده، نو ځکه دا به هم خاص وي او له دې شخه به خاص قسم رشد یعني صلاح في الأموال مراد وي، او شرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي فاسق د خپل مال په هکله مصلح فرض کړی سوی دی، نو ښکاره خبره ده چي له هغه شخه دغه خاص رشد ښکاره سوی او په هغه کي موجود دی، نو ځکه پر هغه به بندیز نه لګول کیږي.

زموږ عقلي دلیل دا دی چي د مسلمان والي په وجه فاسق زموږ په نیز د ولایت اهل دی، او د ولایت تعلق د بل چا د ذات سره وي، لهذا کله چي د بل چا په ذات کي هم هغه د تصرف (نکاح او داسي نورو د) کولو اهل دی، نو په خپل ذات کي خو به په درجه اولیٰ د تصرف اهل وي.

ویحجر القاضی إلخ: د دې حاصل دا دی چي که یو سړی غافل او لا پروا وي کوم چي په کاروبار او معامله کي دوکه خوري، نو پر هغه هم د تصرف بندیز لګول کېدای سي؛ ځکه چي بندیز پر لګول د هغه په حق کي ښېګڼه او شفقت دی او په دې آیت سره ثابت دی "وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمْ إلخ"؛ ځکه چي هغه هم د سفیه په شېر مال بربادوي.



# فَصْلٌ فِيْ حَدِّ الْبُلُوْغِ

(دا) فصل د بالغ والي د حدّ په بيان کي دی

## هلک کله بالغ کيږي (کله ځوانی ته رسيږي)، د بلوغ علامات او د بلوغ ادنیٰ مودت (تفصيلي بيان)

قَالَ: بُلُوغُ الْغُلَامِ بِالِاحْتِلَامِ وَالْإِحْبَالِ وَالْإِنْزَالِ إِذَا وَطِئَ فرمايي: د هلک بالغ کېدل په احتلام راتللو، په حامله کولو او په انزالېدلو سره دي کله چي هغه وطي وکړي فَإِنْ لَمْ يُوجَدْ ذٰلِكَ او کله له دغو څخه يو شی موجود نه سي فَحَتّٰى يَتِمَّ لَهُ ثَمَانِيْ عَشْرَةَ سَنَةً عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو تر دې چي د هلک اتلس [۱۸] کاله پوره سي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [يعني که له مذکوره خبرو څخه يوه خبره هم په هلک کي نه وموندل سي، نو بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د اتلس کالو په پوره کېدلو سره هغه بالغ کيږي] وَبُلُوغُ الْجَارِيَةِ بِالْحَيْضِ وَالِاحْتِلَامِ وَالْحَبَلِ او د نجلۍ حامله کېدل په حيض او احتلام راتللو او په حامله کېدلو سره دي فَإِنْ لَمْ يُوجَدْ ذٰلِكَ او که له دغو څخه يو شی موجود نه سي فَحَتّٰى يَتِمَّ لَهَا سَبْعَ عَشْرَةَ سَنَةً نو تر دې چي د هغې اوولس [۱۷] کاله پوره سي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا ❁: إِذَا تَمَّ الْغُلَامُ وَالْجَارِيَةُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کله هلک او نجلۍ پنځلس [۱۵] کالو ته ورسيږي فَقَدْ بَلَغَا نو هغوی بالغان سول [يعني د پنځلس کالو په پوره کېدلو سره هلک او نجلۍ دواړه بلوغ ته رسيږي] وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَعَنْهُ فِي الْغُلَامِ تِسْعَ

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال صاحب رد المحتار: بلوغ الغلام بالاحتلام والإحبال والإنزال وبلوغ الجارية... فإن لم يوجد فيهما شيء فمتىٰ تم لكل منهما خمس عشرة سنة، به يفتى، لقصر أعمار أهل زماننا (رد المحتار ج:۵، ص:۱۰۷)، وقال صاحب الهندية: والسن الذي يحكم ببلوغ الغلام والجارية إذا انتهيا إليه خمس عشرة سنة عند أبي يوسف ومحمد وهو رواية عن أبي حنيفة، وعليه الفتوى (ج:۵، ص:۶۱)

عَشْرَةَ سَنَةً او په يوه روايت کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د هلک په هکله نولس [۱۹] کاله نقل سوي دي وَقِيلَ: الْمُرَادُ أَنْ يَطْعَنَ فِي التَّاسِعِ عَشْرَةَ سَنَةٍ وَيَتِمُّ لَهُ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ سَنَةً او ويل سوئ دي: چي له هغه روايت څخه د امام صاحب رَحِمَهُ الله مراد دا دی چي د هلک اتلس کاله پوره سي او نولسم کال ته داخل سي فَلَا اخْتِلَافَ نو [د امام صاحب په دوارو روايتونو کي] هيڅ اختلاف نسته [ځکه د چا چي اتلس کاله پوره سي نو هغه سمدستي نولسم کال ته داخليږي] وَقِيلَ: فِيهِ اخْتِلَافُ الرِّوَايَةِ او ويل سوي دي: چي په دې کي روايتونه مختلف دي لِأَنَّهُ ذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: حَتَّى يَسْتَكْمِلَ تِسْعَ عَشْرَةَ سَنَةً ځکه [د مبسوط] په ځيني نسخو کي ذکر سوي دي: تر دې چي نولس کاله پوره کړي أَمَّا الْعَلَامَةُ فَلِأَنَّ الْبُلُوغَ بِالْإِنْزَالِ حَقِيقَةً او په علامت سره بلوغ په دې وجه ثابتيږي چي بلوغ [بالغ کېدل] په حقيقت کي په انزال سره کيږي [يعني په حقيقت کي ښوک په انزال سره بالغ کيږي] وَالْحَبَلُ وَالْإِحْبَالُ لَا يَكُونُ إِلَّا مَعَ الْإِنْزَالِ او حامله کېدل يا حامله کول نه کيږي مګر په انزال سره [په بله وينا دا چي بلاربېدل يا بلاربول له انزال څخه بغير ممکن نه دي] وَكَذَا الْحَيْضُ فِي أَوَانِ الْحَبَلِ او د حمل [يا حيض] په زمانه کي حيض راتلل هم داسي [يعني د انزال] په څېر دی فَجُعِلَ كُلُّ ذَلِكَ عَلَامَةَ الْبُلُوغِ نو ځکه دغه هر يو د بالغ کېدو علامت ګرځول سوی دی وَأَدْنَى الْمُدَّةِ لِذَلِكَ فِي حَقِّ الْغُلَامِ اثْنَتَا عَشْرَةَ سَنَةً او د بالغ کېدو کم مودت د هلک په حق کي دوولس [۱۲] کاله دي وَفِي حَقِّ الْجَارِيَةِ تِسْعُ سِنِينَ او د نجلۍ په حق کي نهه [۹] کاله دي وَأَمَّا السِّنُّ فَلَهُمُ الْعَادَةُ الْفَاشِيَةُ أَنَّ الْبُلُوغَ لَا يَتَأَخَّرُ فِيهِمَا عَنْ هَذِهِ الْمُدَّةِ پاته سو عمر [يعني پنځلس کاله د بلوغ عمر ګرځول] نو په دې باره کي د صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل عادت غالبه دی او هغه دا چي [عموماً] په هلک او نجلۍ کي بلوغ له دغه مودت [پنځلس کالو] څخه نه ځنډيږي وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ [سورة الأنعام: ۱۵۲] او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د باري تعالیٰ دا فرمان دی: "تر دې چي يتيم بچی خپل قوت [مضبوط والي] ته ورسيږي" وَأَشُدُّ الصَّبِيِّ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ سَنَةً او د بچي قوت اتلس کاله دی [يعني بچی د اتلس کالو په عمر کي قوي ګرځي او خپل طاقت او بشپړتيا ته رسيږي] هَكَذَا قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ همداسي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا

فرمايلي دي وَتَابَعَهُ الْقُتَبِيُّ او امام قتبي هم د هغه متابعت کړی دی وَهٰذَا أَقَلُّ مَا قِيْلَ فِيهِ او دا تر ټولو کم مودت دی کوم چي د "أشُد" په تفسير کي ويل سوي دي [يعني د ابن عباس رض په قول کي ذکر سوی مودت (اتلس کاله) د "أشد" په تفسير کي له ذکر سوو مودتونو څخه تر ټولو کم مودت دی] فَبَنَى الْحُكْمُ عَلَيْهِ لِلتَّيَقُّنِ بِهِ نو ځکه د هغه د يقيني کېدلو په وجه حکم پر هغه مُرتّب کړی سو [ځکه چي أقل متيقن وي] غَيْرَ أَنَّ الْإِنَاثَ نُشُوُّهُنَّ وَإِدْرَاكُهُنَّ أَسْرَعُ خو د ښځو وده او رسېدنه [بالغ کېدنه] په تېزۍ سره کيږي [يعني ښځي د خلکو په نسبت ژر بلوغ ته رسيږي] فَنَقَصْنَا فِي حَقِّهِنَّ سَنَةً نو ځکه موږ د هغوی په حق کي يو کال کم کړی لِاشْتِمَالِهَا عَلَى الْفُصُولِ الْأَرْبَعَةِ الَّتِي يُوَافِقُ وَاحِدٌ مِنْهَا الْمِزَاجَ لَا مَحَالَةَ ځکه چي يو کال پر څلورو موسمونو مشتمل وي چي له هغوی څخه يو خامخا د مزاج موافق کيږي.

**اللغات:** ﴿الغلام﴾ په عربي کي هلک ته وايي، مجازاً خادم او غلام ته هم وايي، ﴿الاحتلام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: احتلام راتلل، په خوب کي د بيده کس انزالېدل (په خواب کي مني را وتل)، ﴿الإحبال﴾ د افعال د باب مصدر دی: حامله کول، بلاربول، ﴿الانزال﴾ د افعال د باب مصدر دی: په شهوت سره مني را وتل، ﴿الجارية﴾ نجلۍ، کوم چي د بلوغ حد ته نه وي رسېدلې، د مينځي لپاره هم مستعمل دی، ﴿حَبَل﴾ د سمع د باب مصدر دی: حامله کېدل، بلاربېدل، ﴿يطعن﴾ د مضارع صيغه ده، له نصر او فتح دواړو بابونو څخه راځي، د دې باب څو معناوي دي، کله چي يې په صله کي يو مودت ذکر سي نو معنیٰ يې ده: داخلېدل، لکه څرنګه چي ويل کيږي: طَعَنَتِ الْمَرْأَةُ فِي أَيَّامِ الْحَيْضِ أي دَخَلَتْ فِيهَا، ﴿أوان﴾ وخت، ګړی، ﴿العادة الفاشية﴾ عام او غالب عادت، ښکاره عادت، ﴿أشُدّ﴾ قوت او طاقت، استکمال او بشپړتيا، ﴿نشوء﴾ وده او نما کول، لويېدل، ﴿الفصول الأربعة﴾ څلور موسمونه يعني پسرلی، دوبی، منی او ژمی.

**تشريح:** په دې عبارت کي د هلک او نجلۍ د بلوغ عمر او علامات بيان کړل سوي دي، حاصل يې دا دی چي د هلک د بلوغ درې علامات دي: ① احتلام، ② احبال (يعني د هلک د وطي کولو په وجه ښځه حامله کېدل)، ③ انزال، په دغه دريو کي اصل انزال دی؛ ځکه چي احتلام بلا انزال غير معتبر دی، همدارنګه ښځه بلا انزال نه حامله کيږي، نو انزال اصل سو او احبال او احتلام د هغه علامات سول.

او د نجلۍ د بلوغ دغه درې علامات دي: ① حيض، ② احتلام، ③ حبل (يعني حامله کېدل).

د پورتني علاماتو په هکله خو د امام صاحب او صاحبينو اقوال متفق دي، لېکن که له پورتني علاماتو څخه يو ښکار نه سي، نو بيا به د عمر اعتبار کيږي، او د عمر په هکله د دوی اقوال مختلف

دي، د امام صاحب په نېز حکم دا دی چي کله هلک د اتلسو کالو سي او نجلۍ د اوولسو کالو سي، نو د دوی د بالغ والي فيصله به کيږي.

وقالا إذا تم إلخ: د بلوغ د علامت نه ښکاره کېدلو په صورت کي د صاحبينو مسلک دا دی چي د هلک او نجلۍ دواړو د بلوغ مودت پنځلس کاله دی يعني د پنځلس کالو په عمر کي به د دوی د بالغوالي فيصله کيږي، همدا د امام شافعي، امام احمد او اصحاب امام مالک رَحِمَهُمُ الله مسلک دی او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه هم يو روايت دی او پر همدې فتوىٰ ده؛ ځکه چي زياتره په همدومره عمر کي د بلوغ علامات ښکاره کيږي. او له حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت سوی دی "قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: إِذَا اسْتَكْمَلَ الْمَوْلُوْدُ خَمْسَةَ عَشَرَ سَنَةً، كُتِبَ مَا لَهُ وَمَا عَلَيْهِ وَأُقِيْمَتْ عَلَيْهِ الْحُدُوْدُ" يعني کله چي بچی پنځلسو کالو ته ورسيږي نو هغه د شرعي احکامو مکلف کيږي او د که د حد والا جرم وکړي نو حد به پري جاري کول کيږي. له دې څخه هم معلومه سوه چي د پنځلس کالو په عمر کي هلک او نجلۍ بلوغ ته رسيږي. دا د بلوغ اکثر مودت دی.

وأدنى المدة إلخ: او د بلوغ ادنىٰ مودت د هلک په حق کي دوولس کاله دي او د نجلۍ په حق کي نهه کاله دي، نو که هغوی په همدې مودت کي د بلوغ دعوىٰ وکړي، نو خبره به يې منل کيږي او د هغو حکم د بالغانو د حکم په څېر ګرځي.

وأما السن إلخ: د دې عطف پر "أمّا العلامة" دی، مطلب يې دا دی چي د عمر په ذريعه د بلوغ د پنځلسو کالو د مودت په هکله د صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله دليل دا دی چي په عامه توګه د هلک او نجلۍ دواړو بلوغ د پنځلس کالو له مودت څخه نه متاخر کيږي.

وله قوله تعالى إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا آيت دی: "وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ إِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ أَشُدَّهٗ"، په دې آيت کي له "أَشُدّ" څخه د بعضو په نېز د دوويشت کالو عمر مراد دی او د بعضو په نېز د درويشت او د بعضو په نېز د پنځويشت کالو عمر مراد دی، خو د صاحب هدايې رَحِمَهُ الله په قول له حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه د اتلسو کالو عمر نقل سوی دی، امام صاحب رَحِمَهُ الله پر همدې عمل کړی دی؛ ځکه چي دا اقل الاقوال دی، او اقل متيقن وي.

وهذا أقل ما فيه إلخ: يعني د "أَشُدّ" د معنىٰ او تفسير په هکله چي کوم مقدارونه منقول دي هغه مختلف دي، بعضو ۲۰ کاله او بعضو ۲۲ کاله، بعضو ۲۳ کاله او بعضو ۲۵ ـ ۳۳ ـ ۴۰ او بعضو ۶۰ کاله ذکر کړي دي، په دغه ټولو کي چي کوم اقل او کم مقدار دی، هغه ۱۸ کاله دی کوم چي د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول دی، نو د تيقن په وجه به پر هغه فيصله کيږي. صرف خبره دومره ده چي د ښځو وده او رسېدنه ډېر ژر کيږي، نو ځکه د دوی په حق کي يو کال کم کړی سوی دی؛ ځکه چي

کال پر څلورو موسمونو مشتمل دی چي له هغوی څخه یو موسم لا محاله د مزاج او طبیعت موافق کیږي.

## د قریبُ البلوغ بچي حکم

قَالَ: وَإِذَا رَاهَقَ الْغُلَامُ أَوِ الْجَارِيَةُ الْحُلُمَ فرمایي: او کله چي هلک یا نجلۍ بلوغ ته نژدې سي وَأَشْكَلَ أَمْرُهُ فِي الْبُلُوغِ او د بالغ کېدو په هکله د دوی معامله مشتبه سي [د دوی بلوغ معلوممول مشکل سي] فَقَالَ: قَدْ بَلَغْتُ او هغه [هلک یا نجلۍ] ووایي: چي زه بالغ سوی یم فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ وَأَحْكَامُهُ أَحْكَامُ الْبَالِغِينَ نو قول د هغه معتبر دی او د هغه احکام د بالغو کسانو د احکامو په څېر دي لِأَنَّهُ مَعْنًى لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهِمَا ظَاهِرًا ځکه چي بالغ کېدل یو باطني خبره ده کوم چي صرف د هلک او نجلۍ له طرفه معلومېدای سي فَإِذَا أَخْبَرَا بِهِ وَلَمْ يُكَذِّبْهُمَا الظَّاهِرُ لهذا کله چي دوی خپله خبر ورکړي او ظاهري حال دوی دروا‌غجن نه وګڼي قُبِلَ قَوْلُهُمَا فِيهِ نو په دې باره کي به د دوی خبره منل کیږي كَمَا يُقْبَلُ قَوْلُ الْمَرْأَةِ فِي الْحَيْضِ لکه څرنګه چي د حیض په باره کي د ښځي خبره منل کیږي.

**اللغات:** ﴿راهق﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: بلوغ ته نژدې کول (د بالغ کېدو وخت ته نژدې کېدل)، ﴿حُلُم﴾ او حُلُم: د دې لفظ دوې معناوي دي: بلوغ (بلوغ الصبي مبلغ الرجال)، خوب، یعنې هغه څه کوم چي یې بیده کس ویني، ﴿أَشْكَلَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: مشتبه کېدل (شکمن کېدل)، مشکل کېدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که یو هلک یا انجلۍ بلوغ ته نژدې سي او د بلوغ په باره کي د هغو حالت مشتبه سي یعني دا معلومول مشکل وي چي هغوی حقیقتاً بالغان سوي دي، که نه، بیا هغوی د خپل بالغ والي دعویٰ وکړي، نو د هغو دعویٰ او خبره به منل کیږي. لکه کله چي یو ښځه د خپل حیض شروع کېدلو خبر ورکړي، نو د هغې خبره منل کیږي؛ ځکه قاعدهٔ کلیه دا ده چي کوم شی فقط د ښځي له طرفه معلومېدای سي، نو په هغه کي د ښځي قول مقبول او معتبر وي، نو همداسي به په بلوغ کي د قریب البلوغ هلک او نجلۍ قول مقبول وي؛ ځکه چي بلوغ داسي خبره ده چي تر څو د هلک او نجلۍ له طرفه د هغه وضاحت نه وسي، تر هغه وخته نه سي معلومېدای.

ولم یکذبهما الظاهر الخ: دا قید یې ځکه لګولی چي که د هلک عمر تر دوولس کالو کم وي یا د نجلۍ عمر تر نهه کالو کم وي او هغوی د خپل بالغ والي دعویٰ وکړي، نو د هغو تصدیق به نه کیږي؛ ځکه چي ظاهري حال د هغو تکذیب کوي، ځکه په عامه توګه په دومره مودت کي نجلۍ یا هلک بلوغ ته نه رسیږي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الْحَجْرِ بِسَبَبِ الدَّيْنِ

## (دا) باب د قرض په سبب سره د محجوره کولو (په بيان کي) دی

**تشريح**: د قرض او پور په وجه پر مقروض بنديز لګول د قرض د مالکانو (قرضخواهانو) په مطالبه سره مشروط دي، او په دې حواله سره دغه حجر د حجر السفيه په مقابله کي د مرکب په درجه کي دی او حجر السفيه د مفرد په درجه کي دی، او تاسو ته معلومه ده چي مرکب تر مفرد وروسته بيانول کيږي، نو ځکه دغه باب د حجر السفيه له بيان څخه وروسته بيان کړی سوی دی. (بنايه ج: ۱۰، ص: ۱۳۲)

## د قرض په وجه د حجر نه کولو په هکله د امام صاحب مسلک او د مفلس مقروض د مال حکم (تفصيلي بيان)

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: لَا أَحْجُرُ فِي الدَّيْنِ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زه د قرض په وجه حجر نه کوم وَإِذَا وَجَبَتْ دُيُونٌ عَلٰى رَجُلٍ وَطَلَبَ غُرَمَاؤُهُ حَبْسَهُ وَالْحَجْرَ عَلَيْهِ او کله چي پر يو سړي څو قرضونه واجب سي او د هغه قرضخواهان [د قرضونو مالکان] د هغه د بندي کولو يا محجوره کولو مطالبه وکړي [چي پر هغه دي د تصرّف بنديز ولګول سي] لَمْ أَحْجُرْ عَلَيْهِ نو زه پر هغه حجر نه کوم لِأَنَّ فِي الْحَجْرِ إِهْدَارَ أَهْلِيَّتِهِ ځکه چي په حجر کي د هغه د اهليت لغو کول [باطلول] سته فَلَا يَجُوزُ لِدَفْعِ ضَرَرٍ خَاصٍّ نو ځکه د ضرر خاص د دفع کولو لپاره به حجر جائز نه وي فَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ او که چيري د مقروض سره مال وي لَمْ يَتَصَرَّفْ فِيهِ الْحَاكِمُ نو قاضي به په هغه کي تصرف نه کوي لِأَنَّهُ نَوْعُ حَجْرٍ ځکه چي د قاضي تصرف هم يو ډول حجر دی وَلِأَنَّهُ تِجَارَةٌ لَا عَنْ تَرَاضٍ او ځکه چي دا يو بلا تراضي تجارت دی [يعني د مقروض له رضاء څخه خالي دی] فَيَكُونُ بَاطِلًا بِالنَّصِّ نو ځکه د نص په حکم سره به دا باطل وي وَلٰكِنْ يَحْبِسُهُ أَبَدًا حَتّٰى يَبِيعَهُ فِي دَيْنِهِ خو قاضي به د ده مال مسلسل بندي ساتي د دې لپاره چي د ده په قرض کي هغه خرڅ کړي إِيفَاءً لِحَقِّ الْغُرَمَاءِ وَدَفْعًا لِظُلْمِهِ د قرضخواهانو د حق اداء کولو او د

مقروض د ظلم لیرې کولو لپاره وَقَالَا *: إِذَا طَلَبَ غُرَمَاءُ الْمُفْلِسِ الْحَجْرَعَلَيْهِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې كه د مفلسه مقروض قرضخواهان پر هغه د حجر کولو [بنديز لګولو] مطالبه وکړي حَجَرَ الْقَاضِي عَلَيْهِ وَمَنَعَهُ مِنَ الْبَيْعِ وَالتَّصَرُّفِ وَالْإِقْرَارِ نو قاضي دي پر هغه بنديز ولګوي [يعني] هغه دي له بيع، تصرف او اقرار کولو څخه منع کړي حَتَّى لَا يَضُرَّ بِالْغُرَمَاءِ د دې لپاره چې قرضخواهانو ته ضرر نه ورسيږي لِأَنَّ الْحَجْرَ عَلَى السَّفِيهِ إِنَّمَا جَوَّزْنَاهُ نَظَرًا لَهُ ځکه چې پر سفيه مونږ د هغه د مصلحت [او شفقت] لپاره بنديز لګولی دی وَفِي هٰذَا الْحَجْرِ نَظَرٌ لِلْغُرَمَاءِ او په دغه بنديز لګولو کې د قرضخواهانو مصلحت دی لِأَنَّهُ عَسَاهُ يُلَجِّئُ مَالَهُ ځکه ممکنه ده چې مقروض به د مجبورۍ پر بناء ظاهرا خپل مال خرڅ کړي [نه حقيقتا] [په آسانه توګه دا چې مقروض به خپل مال ضايع کړي] فَيَفُوتُ حَقُّهُمْ نو د قرضخواهانو حق به فوت سي وَمَعْنٰى قَوْلِهِمَا مَنَعَهُ مِنَ الْبَيْعِ أَنْ يَكُونَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَمَنِ الْمِثْلِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دې قول "منعه من البيع" مطلب دا دی چې هغه بيع [د مبيع] له ثمن مثل څخه په کمه وي أَمَّا الْبَيْعُ بِثَمَنِ الْمِثْلِ لَا يُبْطِلُ حَقَّ الْغُرَمَاءِ او پاته سو په ثمن مثل سره بيع کول نو هغه د غرماؤ حق نه باطلوي وَالْمَنْعُ لِحَقِّهِمْ حال دا چې منع د هغو د حق په وجه ده [يعني د غرماؤ د حق په وجه دا مقروض له بيع څخه منع کول کيږي] فَلَا يُمْنَعُ مِنْهُ نو ځکه مقروض به له ثمن مثل بيع څخه نه منع کول کيږي قَالَ: وَبَاعَ مَالَهُ إِنِ امْتَنَعَ الْمُفْلِسُ مِنْ بَيْعِهِ فرمايي: او قاضي دي د مفلسه مقروض مال خرڅ کړي که چيرې هغه د خپل مال له خرڅولو څخه منع سي [يا د هغه پر خرڅولو قدرت نه لري] وَقَسَمَهُ بَيْنَ غُرَمَائِهِ بِالْحِصَصِ او قاضي دي هغه د قرضخواهانو په مينځ کې د هغو د حصو مطابق تقسيم کړي عِنْدَهُمَا [دا حکم] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز [دی] لِأَنَّ الْبَيْعَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ لِإِيفَاءِ دَيْنِهِ ځکه چې د خپل قرض اداء کولو لپاره پر هغه بيع [يعني خپل مال خرڅول] واجب دي حَتّٰى يُحْبَسَ لِأَجْلِهِ تر دې چې د بيع نه کولو په وجه هغه بندي کول کيږي فَإِذَا امْتَنَعَ او کله چې هغه

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، وهكذا قولهما أوفق بأحوال الزمان وفي قولهما احتياط، وكذا اشار صاحب الخانية وصاحب الهندية إلى ترجيح قولهما (الخانية: ج:۴، ص:۵۰۳)، (الهندية ج:۵، ص:۵۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۵۳]

امفلسه مقروض اله بیع څخه منع سي [د خپل مال پر خرڅولو قادر نه سي] نَابَ الْقَاضِي مَنَابَهُ نو قاضي به د هغه نائب کیږي [او د هغه د نائب په توګه به بیع کوي] كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعِنَّةِ لکه څرنګه چي په مقطوع الذکر او عنین کي کیږي قُلْنَا: التَّلْجِئَةُ مَوْهُومَةٌ موږ [جوابًا] وایو: چي بیع تلجئه په شک کي ده وَالْمُسْتَحَقُّ قَضَاءُ الدَّيْنِ او قرض اداء کول واجب دي وَالْبَيْعُ لَيْسَ بِطَرِيقٍ مُتَعَيِّنٍ لِذٰلِكَ او د قرضونو د اداء کولو لپاره بیع [د مال خرڅول] مُتعینه طریقه نه ده بِخِلَافِ الْجَبِّ وَالْعِنَّةِ په خلاف د مقطوع الذکر او عنین وَالْحَبْسُ لِقَضَاءِ الدَّيْنِ بِمَا يَخْتَارُهُ مِنَ الطَّرِيقِ او د قرض اداء کولو په وجه بندي کول د دې لپاره دي چي د اداء کولو کومه طریقه وغواړي هغه اختیار کړي كَيْفَ وَإِنْ صَحَّ الْبَيْعُ كَانَ الْحَبْسُ إِضْرَارًا بِهِمَا بِتَأْخِيرِ حَقِّ الدَّائِنِ وَتَعْذِيبِ الْمَدْيُونِ او څنګه کېدای سي، حال دا چي که بیع صحیح سي نو بندي کول دواړو ته نقصان رسوي، د قرضخواه د حق په تاخیر سره او مقروض ته په تکلیف ورکولو سره [یعني که چیري بیع صحیح ومنل سي، نو د مقروض په بندي کولو کي د قرضخواه او مقروض دواړو ضرر سته چي د قرضخواه حق به مؤخر سي او مقروض به په تکلیف مبتلا سي] فَلَا يَكُونُ مَشْرُوعًا نو ځکه به حبس مشروع نه وي.

**اللغات**: ﴿الغرماء﴾ جمع د غَرِيْمٌ ده: قرضخواهان (د قرض مطالبه کونکي)، د قرض مالکان، ﴿حبس﴾ د ضربَ مصدر دی: بندي کول، راګرځول، ﴿إهدار﴾ د افعال مصدر دی: لغو کول (باطلول)، بیکاره کول، ضایع کول، ﴿تراض﴾ د تفاعل مصدر دی: یو تر بله راضي کېدل، با همي رضا، ﴿مال﴾ هر هغه څه ته وایي کوم چي د انسان په ملکیت کي داخل وي (المال اسم لجميع ما يملكه الانسان)، او هر هغه شی کوم چي په پیسو رانیول سوی وي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿إيفاء﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول، ﴿عساه﴾ ممکنه ده، کېدای سي، ﴿يلجئ﴾ د تفعیل د باب مضارع ده، لَجَّأَ يُلَجِّئُ تَلْجِئَةً، د همزه په تخفیف سره هم ویل کېدای سي یعني يُلَجِّيْ، د دغه باب څو معناوي دي: ① مجبوره کول، ② داسي کار کول چي د هغه باطن د ظاهر په خلاف وي، ③ بیع تلجئه کول (د تلجيه په توګه خرڅول): یعني د مجبورۍ پر بناء صرف ظاهرا بیع کول او خلکو ته ښکاره کول چي زه بیع کوم حال دا چي په حقیقت کي هغه بیع نه کوي، مثلاً د یو سړي خالي کور ولاړ وي او حکومت (سرکار) هغه لاندي کول وغواړي او هغه سړی مجبوراً پر خپل ځوی هغه کور خرڅ کړي

چي د حکومت نظر له ځان څخه واړوي چي هغوی دا کور لاندي نه کړي، (۴) صاحب د اشرف الهدایي وايي چي دلته له تلجیه څخه مراد دا دي چي مقروض خپل پر داسي غټ واک لرونکي سړي خرڅ کړي چي بیا د هغه له قبضي څخه مال ایستل ممکن نه وي، ﴿ثمن المثل﴾ عمومي رېتڼ، په بازار او منډۍ کي چي د يو شي څومره قيمت وي هغه ته ثمن مثل وايي، ﴿جَبّ﴾ (بفتح الجيم): د ذکر پرېکېدل، مقطوع الذکر کېدل، ﴿عِنَّة﴾ عنين کېدل (نامرده کېدل)، د يو مرض په وجه له جماع څخه عاجزه کېدل، ﴿إضرار﴾ د افعال مصدر دی: ضرر او تاوان رسول، ﴿تعذیب﴾ د تفعیل مصدر دی: عذاب او تکلیف ورکول.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که پر يو سړي د خلکو قرضونه باندي سي او هغه مفلس وي، نغد مال ور سره نه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه د تصرف بنديز نه سي لګول کېدای (يعني قاضي هغه له تصرف څخه نه سي منع کولای او نه خپله د هغه په مال کي تصرف کولای سي)، که څه هم قرضخواهان پر هغه د بنديز لګولو مطالبه وکړي؛ ځکه چي د هغه په محجوره کولو کي د هغه د اهليت ختمول لازميږي او هغه د څارويو سره لاحقول کيږي، نو ځکه صرف د ضرر خاص يعني د قرضخواهانو د ضرر دفع کولو په خاطر داسي نه سي کېدلای، خو قاضي داسي مقروض د قرضخواهانو تر مطالبې وروسته بندي کولای سي، د دې لپاره چي هغه د قرض اداء کولو لپاره خپل مال خرڅ کړي؛ ځکه چي پر مقروض د قرض اداء کول واجب دي او ټال مټول (قرضخواهان ځنډول) ظلم دی، نو د ظلم دفع کولو په خاطر قاضي هغه قيدولای سي.

او قاضي په خپله د هغه په مال کي هيڅ ډول تصرف نه سي کولای (مثلا داسي نه سي کولای چي د مقروض مال پر قرضخواه خرڅ کړي)؛ ځکه چي دا هم يو ډول حجر دی، او په دې وجه هم چي دا د مقروض له رضا څخه بغير تجارت (کاروبار) دی، نو ځکه د دغه قرآني نص په حکم سره به باطل وي: ﴿لَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ (تاسي په خپل مينځ کي خپل مالونه په باطله طريقه سره مه خورئ! مګر دا چي تجارت ستاسو يو د بل په رضا سره وي)، معلومه سوه چي کوم خرڅول و رانيول له رضا څخه بغير وي، هغه باطل دي، لهذا کله چي قاضي د مقروض له رضا څخه بغير د هغه په مال کي تصرف وکړي، نو دا به د پورتني نص په حکم سره باطل وي. ها! قاضي به هغه مسلسل بندي ساتي تر دې چي هغه په خپله مال خرڅ کړي، د دې لپاره چي د قرضخواهانو حق اداء سي او د مقروض ظلم دفع سي. (د بندي ساتلو د مودت په هکله څو اقوال منقول دي د چي په يوه کي دوې مياشتي او په يوه کي څلور مياشتي او په يوه کي شپږ مياشتي بندي کول منقول دي، او صحيح

قول دا دی چې قاضي څومره مناسب وګڼي، هغومره مودت به مقروض بندي ساتي. او دغه بندي مقروض د شرعي یا غیر شرعي هیڅ ضرورت لپاره بهر نه سي وتلای. خو د ځیني فقهاؤ په نېز د مور و پلار، انا، نیکه او بچي د جنازې لپاره وتلای سي، په دې شرط چې خپل یو کفیل (ذمه وار) پېش کړي. او فتویٰ پر همدې قول ده)

وقالا إذا طلب إلخ: صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې کله قرضخواهان پر مفلسه مقروض د حجر یعني د بندیز لګولو غوښتنه وکړي، نو قاضي به پر هغه بندیز لګوي او هغه به له خرڅولو او هر ډول تصرف او اقرار کولو څخه منع کوي، د دې لپاره چې قرضخواهان له ضرر او تاوان څخه محفوظ سي؛ دلیل دا دی چې پر سفیه د هغه د مصلحت او ښېګڼي په خاطر حجر جائز کړی سوی دی، او پر مفلسه مقروض په حجر کولو کي د قرضخواهانو مصلحت او فایده ده؛ ځکه کېدای سي چې مفلسه مقروض خپل مال د تلجیه په توګه خرڅ کړي، نو د قرضخواهانو حق به بالکل ضایع سي. (د تلجیه پوره تعریف په لغاتو کي ذکر سوی دی).

او په عبارت کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دې قول "ومنعه من البیع" مطلب دا دی چې قاضي به هغه له ثمن مثل څخه د کم قیمت په عوض کي له مال خرڅولو څخه منع کوي. خو که هغه د ثمن مثل په عوض کي خپل مال خرڅوي، نو قاضي به پر هغه بندیز نه لګوي؛ ځکه چې په دې سره د قرضخواهانو حق ضایع کیږي.

وباع ماله إلخ: (۲) ... دویمه مسئله دا ده چې که مفلسه مقروض د خپل مال له خرڅولو څخه منع سي (صاحب د احسن الهدایې د دې مطلب دا لیکلی دی چې که هغه د خپل مال پر خرڅولو قادر نه وي)، نو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چې قاضي دې هغه خرڅ کړي او د هغه ثمن (قیمت) دې د قرضخواهانو په مینځ کي تقسیم کړي او هر قرضخواه ته دې د خپل حصې مطابق ثمن ورکړي؛ ځکه چې د قرض اداء کولو لپاره مال خرڅول پر مقروض واجب دي (لأن البیع مستحق علیه)، همدا وجه ده چې د مال نه خرڅولو او قرض نه اداء کولو په وجه پر هغه حبس لازمیږي او هغه بندي کول کیږي، نو ځکه د هغه د منع کېدلو په صورت کي قاضي د هغه نائب (قائم مقام) سو، لکه کله چې مقطوع الذکر او عنین خاوند ښځي ته له طلاق ورکولو څخه منع سي، نو قاضي د هغه نائب کیږي او د نائب په توګه د هغه ښځي ته طلاق ورکوي.

قلنا التلجئة إلخ: دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دې قول "لأنه عساه یُلَجِّئُ ماله" جواب دی، حاصل یې دا دی چې د تلجئه په توګه د مال خرڅولو معامله مشکوکه ده، لهذا د دغه مشکوک امر په وجه دیو انسان اهلیت نه سي ختمول کېدای. او د "لأن البیع مستحق علیه" جواب دا دی چې د مقروض پر ذمه فقط همدا لازم دي چې هغه خپل قرض اداء کړي او د قرض اداء کولو لپاره صرف دا طریقه

مُتعيّنه نه ده چي قاضي د هغه مال خرڅ کړي، بلکي د اداء کولو نوري طريقې هم سته، مثلاً دا چي قاضي دي هغه بندي کړي او د هغه په ذريعه دي مال خرڅ کړي. همدارنګه مقروض له يو چا څخه د قرض او هبې په توګه د مال په اخيستلو سره هم قرض اداء کولای سي. په خلاف د مقطوع الذکر او عنين چي کله هغوی "إمساك بالمعروف" نه سي کولای نو بيا "تسريح بالإحسان" مُتعيّن کيږي، نو ځکه هلته په طلاق او تفريق کي د قاضي له نائب کېدلو څخه بغير بله هيڅ لاره نسته.

والحبس إلخ: دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دې قول "حتی يحبس لأجله" جواب دی، حاصل يې دا دی چي د حبس لازمېدل خو موږ تسليموو لېکن حبس يعني بندي کول د دې لپاره نه کيږي چي مقروض خپل مال خرڅ کړي، بلکي د دې لپاره کيږي چي هغه د قرض اداء کولو لپاره په مذکوره طريقو کي کومه طريقه وغواړي، هغه اختيار کړي، او که چيري صرف خرڅول جائز سي، نو بيا د مقروض بندي کول د قرضخواه او مقروض دواړو لپاره مضر دي؛ ځکه چي په دې سره د مقروض حق مؤخر کيږي او مقروض ته بلا فايدې تکليف رسيږي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَإِنْ كَانَ دَيْنُهُ دَرَاهِمَ فرمايي: او که چيري د مقروض قرض دراهم وي وَلَهُ دَرَاهِمُ او د هغه سره دراهم موجود وي قَضَى الْقَاضِي بِغَيْرِ أَمْرِهِ نو قاضي به د هغه له حکم څخه بغير [په هغه دراهمو سره] قرض اداء کوي وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا حکم په اجماع سره [متفق عليه] دی لِأَنَّ لِلدَّائِنِ حَقَّ الْأَخْذِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ ځکه چي قرضخواه ته د مقروض له رضا څخه بغير د خپل حق اخيستلو اختيار سته فَلِلْقَاضِي أَنْ يُعِينَهُ نو ځکه قاضي ته به د هغه د مدد کولو اختيار وي وَإِنْ كَانَ دَيْنُهُ دَرَاهِمَ وَلَهُ دَنَانِيرُ أَوْ عَلَى ضِدِّ ذٰلِكَ او که چيري د مقروض قرض دراهم وي او د هغه سره دنانير موجود وي يا د دې برعکس وي بَاعَهَا الْقَاضِي فِي دَيْنِهِ نو قاضي به د هغه په قرض کي دا دنانير خرڅوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ اِسْتِحْسَانٌ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په بېز [مبني بر] استحسان دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَبِيعَهُ كَمَا فِي الْعُرُوضِ او قياس دا دی چي قاضي دي هغه نه خرڅوي لکه څرنګه چي په سامان کي کيږي وَلِهٰذَا لَمْ يَكُنْ لِصَاحِبِ الدَّيْنِ أَنْ يَأْخُذَهُ جَبْرًا او په همدې وجه قرضخواه ته دا اختيار نسته چي دا مال په زوره واخلي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهُمَا مُتَّحِدَانِ فِي الثَّمَنِيَّةِ وَالْمَالِيَّةِ مُخْتَلِفَانِ فِي الصُّورَةِ د

استحسان دليل دا دی: چي دراهم او دنانير په ثمنيت او ماليت كي سره متحد دي او په صورت كي سره مختلف دي فَبِالنَّظَرِإِلَى الِاتِّحَادِ يُثْبُتُ لِلْقَاضِي وِلَايَةُ التَّصَرُّفِ نو د متحد والي وطرف ته په نظر كولو سره به د قاضي لپاره د تصرف ولايت ثابتيږي وَبِالنَّظَرِإِلَى الِاخْتِلَافِ يُسْلَبُ عَنِ الدَّائِنِ وِلَايَةُ الْأَخْذِ او د مختلف والي وطرف ته په نظر كولو سره به له قرضخواه څخه د اخيستلو ولايت سلب كيږي عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ پر دواړو مشابهتونو په عمل كولو سره بِخِلَافِ الْعُرُوضِ په خلاف د سامان لِأَنَّ الْغَرَضَ يَتَعَلَّقُ بِصُوَرِهَا وَأَعْيَانِهَا ځکه چي غرض د سامان د صورت او ذات [دواړو] سره متعلق وي أَمَّا النُّقُودُ فَوَسَائِلُ كوم چي نقود [دراهم او دنانير] دي نو هغوی وسائل دي فَافْتَرَقَا نو دواړه سره جلا سول وَيُبَاعُ فِي الدَّيْنِ النُّقُودُ ثُمَّ الْعُرُوضُ ثُمَّ الْعَقَارُ او په قرض اداء كولو كي به اول نقود خرڅول كيږي بيا سامان او بيا جايداد يُبْدَأُ بِالْأَيْسَرِ فَالْأَيْسَرِ [يعني] شروع به په هغه يوه سره كيږي كوم چي تر ټولو آسانه وي لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُسَارَعَةِ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ مَعَ مُرَاعَاةِ جَانِبِ الْمَدْيُونِ ځکه چي په دې كي د قرض اداء كولو وطرف ته تېزي ده، د مقروض د طرف د رعايت سره [يعني په دې كي د مقروض د مراعات تر څنگ قرضونه هم ژر اداء كيږي] وَيُتْرَكُ عَلَيْهِ دَسْتٌ مِنْ ثِيَابِ بَدَنِهِ او د مقروض له جامو [كاليو] څخه به د هغه لپاره يوه جوړه پرېښوول كيږي وَيُبَاعُ الْبَاقِي او پاته جامې به خرڅول كيږي لِأَنَّ بِهِ كِفَايَةً ځکه چي يوه جوړه كافي ده وَقِيلَ: دَسْتَانِ او ويل سوي دي چي دوې جوړې به پرېښوول كيږي لِأَنَّهُ إِذَا غَسَلَ ثِيَابَهُ ځکه كله چي هغه خپلي جامې پرېولي لَا بُدَّ لَهُ مِنْ مَلْبَسٍ نو د اغوستلو له جامې څخه د هغه چاره نسته.

**اللغات:** ﴿الدائن﴾ د ضرب اسم فاعل دی: قرضخواه، ﴿العروض﴾ جمع د عَرْضٌ ده: سامان، له دراهم او دنانيرو (نقودو) څخه بغير نور شيان، ﴿الغرض﴾ مقصد او هدف، ﴿النقود﴾ نغدي سكې چي پخوا به هغه عموماً دراهم او دنانير وه، ﴿الدَّسْت﴾ هغه جامه چي د گرځېدلو او حاجاتو پوره كولو لپاره كافي وي، يوه جوړه، جمع: دُسُوْت لكه د فَلْس جمع چي فُلُوْس راځي، ﴿مَلْبَس﴾ د اغوستلو جامه.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه پر مقروض د دراهمو يا دنانيرو قرض باندي وي او د هغه سره موجود مال هم دراهم يا دنانير وي، نو قاضي به د مقروض له حكم او رضا څخه بغير په هغه دراهمو او دنانيرو سره

قرض اداء کوي؛ ځکه مسئله دا ده چي که قرضخواه (د قرض مالک) د خپل مقروض د هغه جنس پر مال قدرت پیدا کړي کوم چي د قرض له جنس څخه وي (مثلا قرض دنانیر وي او قرضخواه ته هم د مقروض دنانیر په لاس ورسي) نو په دې صورت کي هغه د خپل قرض په اندازه د مقروض له رضا څخه بغیر هم اخیستلای سي، لهذا هغه ته د اخیستلو حق له مخکي څخه حاصل دی، نو ځکه قاضي به صرف مدد ګار (مرسته کونکی) وي. د دې مثال دا دی لکه د غائب (نادرکه) کس چي داسي مال موجود وي کوم چي د هغه د اهل وعیال د نفقې له جنس څخه وي، نو قاضي به د اهل وعیال د مدد کولو په توګه له هغه مال څخه د دوی لپاره نفقه مقرر کوي.

ولـه دنانیرالخ: او که چیري د مقروض مال دراهم وي او قرض دنانیر وي یا د دې برعکس وي، نو قاضي دي هغه خرڅ کړي او قرض دي په اداء کړي، او که د هغه مال سامان او جایداد وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي هغه دي نه خرڅوي، لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه خرڅولای سي، همدا د ائمه ثلاثه وو مسلک دی.

وهذا عند أبي حنيفة إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د نقودو (یعني د دراهمو یا دنانیرو) د خرڅولو جواز د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز پر استحسان مبني دی. د قیاس تقاضا دا ده چي قاضي هغه نه سي خرڅولای، لکه څرنګه چي په سامان او اسبابو کي کیږي، په همدې وجه قرضخواه ته دا اختیار نسته چي هغه دغه نقد مال (دراهم) په زوره واخلي. د استحسان دلیل دا دی چي دراهم او دنانیرو دواړه په ثمن او مالیت کېدو کي متحد (سره یو) دي او په صورت کي دواړه مختلف (سره جلا) دي، په همدې وجه د زکاة په باب کي یو د بل سره ضمول کیږي. نو په ثمنیت او مالیت کي د اتحاد په اعتبار سره خو د قاضي او قرضخواه دواړو لپاره د تصرف ولایت ثابتیږي او د صورتاً مختلف کېدو په اعتبار سره د دواړو لپاره نه ثابتیږي. نو په دواړو مشابهتونو باندي په عمل کولو سره به دا حکم کیږي چي د متحد والي په خاطر قاضي ته د تصرف ولایت حاصل دی او د صورتاً اختلاف په خاطر قرضخواه ته د مقروض له رضا څخه بغیر د هغه د اخیستلو اختیار نسته. او د دې برعکس ځکه نه دي سوي چي د قاضي ولایت د قرضخواه په نسبت زیات قوي دی، او کله چي د صورتاً مختلف کېدو په صورت کي د قاضي لپاره ولایت نه ثابتیږي، نو د قرضخواه لپاره خو به په درجه اولیٰ نه ثابتیږي، کنې د دواړو مشابهتونو باطلېدل به لازم سي، فلهذا امتنع العکس.

بخلاف العروض: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاضي ته د مقروض د سامان خرڅولو اجازت نسته، د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز قاضي د هغه سامان هم خرڅولای سي، صاحب د هدایې د نقودو او سامان د

خرڅولو په مینځ کې د فرق وجه دا بیان کړې ده چې غرض او مقصد د سامان د صورت او ذات دواړو سره متعلق وي، پاته سوه نقود یعني دراهم او دنانیر، نو هغوی صرف د سامان ترلاسه کولو وسیله وي، نو په نقودو او سامان کې ښکاره فرق دی.

ويباع في الدَين إلخ: دا تفریع د صاحبینو پر قول ده. یعني کله چې د صاحبینو په نیز د مقروض مال او سامان خرڅول جائز دي، نو د مقروض په قرض اداء کولو کې به اول نقود خرڅول کیږي کله چې قرض دراهم وي او د مقروض مال هم نغد دراهم وي. بیا به سامان او اسباب خرڅول کیږي. بیا به جایداد. لنډه دا چې کوم یو تر ټولو آسانه وي، په هغه به شروع کیږي، بیا به همداسې درجه په درجه خرڅول کیږي؛ ځکه په داسې کولو کې دوې فایدې دي: ① قرضونه به ژر اداء سي، ② د مقروض لحاظ او خیال به هم وساتل سي.

او کله چې د مقروض د سامان خرڅولو نوبت راسي نو داسې به نه کیږي چې د هغه داغوستلو جامې هم ټوله خرڅې کړل سي او هغه غریب لڅ لغړ پرېښوول سي، بلکې د هغه داغوستلو له جامو څخه به یوه پوره جوړه خامخا پرېښوول کیږي؛ ځکه چې داغوستلو او ګرځېدلو لپاره یوه جوړه کافي ده، او د ځینو مشایخو په نیز به دوې جوړې پرېښوول کیږي؛ ځکه کله چې یوه جامه خیرنه سي نو د هغې د پرېللو پر مهال د بلې جامې اغوستلو ته هم ضرورت پېښیږي.

## د مفلس والي په حالت کې د مقروض اقرار

| |
|---|
| قَالَ: فَإِنْ أَقَرَّ فِي حَالِ الْحَجْرِ بِإِقْرَارٍ فرمایي: که چیرې مقروض د حجر په حالت کې یو اقرار وکړي لَزِمَهُ ذَلِكَ بَعْدَ قَضَاءِ الدُّيُونِ نو دا اقرار د قرضونو تر اداء وروسته پر هغه لازمیږي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهَذَا الْمَالِ حَقُّ الْأَوَّلِينَ ځکه چې د دغه مال سره د اولو حقدارنو [قرضخواهانو] حق متعلق سوی دی فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِمْ بِالْإِقْرَارِ لِغَيْرِهِمْ نو ځکه د بل چا لپاره په اقرار کولو سره به هغه د قرضخواهانو حق نه سي باطلولای بِخِلَافِ الِاسْتِهْلَاكِ په خلاف د هلاکولو [یعني په خلاف د هغه صورت کله چې مقروض د یو چا مال هلاک کړي] لِأَنَّهُ مُشَاهَدٌ لَا مَرَدَّ لَهُ ځکه چې دا په سترګو سره لیدل سوې دي کوم چې ردېدلای نه سي وَلَوِ اسْتَفَادَ مَالًا آخَرَ بَعْدَ الْحَجْرِ او که چیرې تر حجر وروسته مفلسه مقروض بل مال وګټي نَفَذَ إِقْرَارُهُ فِيهِ نو د هغه اقرار به په دې مال کې نافذیږي لِأَنَّ حَقَّهُمْ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ ځکه چې د قرضخواهانو حق د دغه مال سره نه دی متعلق سوی لِعَدَمِهِ وَقْتَ الْحَجْرِ ځکه چې دا مال د |

حجر په وخت کې معدوم [ناموجود] وو قَالَ: وَيُنْفَقُ عَلَى الْمُفْلِسِ مِنْ مَالِهِ وَعَلَى زَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ الصِّغَارِ وَذَوِي أَرْحَامِهِ مِمَّنْ يَجِبُ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ فرمايي: او نفقه به ورکول کيږي مفلسه مقروض ته د هغه له مال څخه او د هغه ښځې ته او د هغه کوچني اولاد ته او هغه ذوي الارحامو ته چې د هغو نفقه پر ده واجب وي [دغو ټولو ته به د محجوره مقروض له مال څخه نفقه ورکول کيږي] لِأَنَّ حَاجَتَهُ الْأَصْلِيَّةَ مُقَدَّمَةٌ عَلَى حَقِّ الْغُرَمَاءِ ځکه چې د هغه اصلي حاجت د قرضخواهانو له حق څخه مخکې دی وَلِأَنَّهُ حَقٌّ ثَابِتٌ لِغَيْرِهِ او ځکه چې نفقه ورکول له مفلس څخه بغير د بل چا لپاره ثابت دي فَلَا يُبْطِلُهُ الْحَجْرُ نو [د مقروض] حجر هغه نه سي باطلولای وَلِهَذَا لَوْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً او په همدې وجه که مقروض د يو ښځې سره نکاح وکړي كَانَتْ فِي مِقْدَارِ مَهْرِ مِثْلِهَا أُسْوَةً لِلْغُرَمَاءِ نو هغه ښځه د خپل مهر مثل په مقدار کې د قرضخواهانو سره برابره شريکه کيږي.

**اللغات:** ﴿يتمكّن﴾ د تفعّل مضارع دی: قدرت لرل (قادر کېدل)، ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکول، ختمول، ﴿مردٌ﴾ د نصر د باب مصدرِ ميمي دی: واپسي، ردېدل، ﴿أُسوة﴾ برابر او مساوي (برابر شريک).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مفلسه مقروض د حجر په حالت کې د يو چا لپاره د مال اقرار وکړي (چې پر ما د فلانکي دومره مال باندې دی)، نو دا اقرار سمدستي پر هغه نه لازميږي، بلکې کله چې د هغه له مال څخه ټوله قرضونه اداء کړل سي، نو بيا پر هغه لازميږي (يعني د قرضونو تر اداء وروسته به د اقرار مال اداء کول کيږي)؛ ځکه د دغه محجوره مقروض سره چې کوم مال دی د هغه سره د قرضخواهانو حق متعلق سوی دی، نو د کوم سړي لپاره چې مقروض اقرار کړی دی، هغه به د دوی په حق کې نه داخلول کيږي، بلکې هر وخت چې د مقروض مال د دوی له قرضونو څخه فارغ سي، نو بيا به د اقرار وطرف ته توجه کيږي.

ها! که مقروض د يو چا مال تلف کړی وي، نو د کوم سړي مال چې يې تلف کړی وي، هغه د قرضخواهانو سره د خپل حق په اخيستلو کې شريک او حِصه دار ګرځي؛ ځکه چې تلفول او ضايع کول يو حسي او مُشاهَد امر دی او په حسي امر کې حجر نه مؤثر کيږي، نو ځکه د قرضونو د اداء کولو سره يو ځای به د مقروض له مال څخه د تلف کړی سوي شي ضمان (تاوان) هم ورکول کيږي.

ولو استفاد مالًا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که تر حجر وروسته مقروض د يو سړي لپاره اقرار وکړي او بيا څه مال وګټي، نو له همدې مال څخه به د هغه سړي (مقرلهٗ) حق اداء کول کيږي؛ ځکه چې د

حجر په وخت کې دا مال معدوم وو او د دې سره د قرضخواهانو حق متعلق نه وو، لهذا په دې مال کې د اقرار په نافذولو سره د قرضخواهانو حق نه باطليږي.

وينفق على المفلس إلخ: له مفلس شخصه همدا محجوره مقروض مراد دی، د عبارت حاصل دا دی چې د مفلسه مقروض نفقه، د هغه د اهل وعيال، ښځې او د هغه د مستحقو قريبانو نفقه به د هغه له مال څخه ورکول کيږي: ځکه چې نفقه د انسان په حاجات اصليه وو کې داخله ده، او د مقروض اصلي حاجت د قرضخواهانو پر حق مخکې دی. او په دې وجه هم چې د نفقې حق د نورو کسانو لپاره ثابت دی (او دا حق د خپل وقوع او وجود په اعتبار د قرضخواهانو له قرض څخه هم مخکې دی)، نو ځکه د مقروض حجر هغه نه سي باطلولای.

او په همدې وجه (چې د مقروض اصلي حاجت د قرضخواهانو پر حق مخکې دي) که مقروض ديو ښځې سره نکاح وکړي، نو هغه ښځه د خپل مهر مثل تر مقداره پوري د مقروض (خاوند) په مال کې د قرضخواهانو سره برابره شريکه ګرځي.

## که د مفلسه مقروض سره ظاهراً هيڅ مال (سامان او جايداد) نه وي (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ لَمْ يُعْرَفْ لِلْمُفْلِسِ مَالٌ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري د مفلسه مقروض لپاره هيڅ مال معلوم نه سي وَطَلَبَ غُرَمَاؤُهُ حَبْسَهُ او د هغه قرضخواهان د هغه د بندي کولو مطالبه وکړي وَهُوَ يَقُولُ لَا مَالَ لِي او هغه وايي: چې زما سره هيڅ مال نسته حَبَسَهُ الْحَاكِمُ فِي كُلِّ دَيْنٍ الْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ كَالْمَهْرِ وَالْكَفَالَةِ نو قاضي به هغه د هر داسې قرض په عوض کې بندي کوي کوم چې هغه په يو عقد سره پر ځان لازم کړی وي لکه مهر او کفاله وَقَدْ ذَكَرْنَا هَذَا الْفَصْلَ بِوُجُوهِهِ فِي كِتَابِ أَدَبِ الْقَاضِي مِنْ هَذَا الْكِتَابِ او موږ دغه فصل د خپل ټولو صورتونو سره د کتاب [هدايې] په کتاب ادب القاضي کې ذکر کړی دی فَلَا نُعِيدُهَا نو ځکه دلته د هغه اعاده نه کوو إِلَى أَنْ قَالَ: وَكَذَلِكَ إِنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ لَا مَالَ لَهُ تر دې چې امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: او همدارنګه که مقروض بينه پېش کړي چې زما سره مال نسته يَعْنِي خَلَّى سَبِيلَهُ يعني قاضي به د هغه لاره خوشې کوي [هغه به ايله کوي] لِوُجُوبِ النَّظِرَةِ إِلَى الْمَيْسَرَةِ ځکه تر آسانۍ [مالدارۍ] پوري مهلت ورکول واجب دی وَلَوْ مَرِضَ فِي الْحَبْسِ او که چيري مقروض په بنديخانه کې مريض سي يَبْقَى فِيهِ نو هغه به هلته پاتيږي [يعني له

بنديخانې څخه د وتلو اجازت به نه ورکول کيږي] إِنْ كَانَ لَهُ خَادِمٌ يَقُومُ بِمُعَالَجَتِهِ [په دې شرط] که چيري د هغه يو خادم وي چې هغه د ده د علاج [او درملنې] کار کوي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ او که چيري د هغه هيڅ خادم نه وي أَخْرَجَهُ نو قاضي به هغه باسي تَحَرُّزًا عَنْ هَلَاكِهِ د هغه له هلاکت [مرګ] څخه د بچ کيدلو لپاره وَالْمُحْتَرِفُ فِيهِ لَا يُمَكَّنُ مِنَ الِاشْتِغَالِ بِعَمَلِهِ او کسب ګر مقروض ته به په بنديخانه کي په خپل کار او کسب د مشغوليدلو قدرت [او اجازت] نه ورکول کيږي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِيَضْجَرَ قَلْبُهُ فَيَنْبَعِثَ عَلَى قَضَاءِ دَيْنِهِ د دې لپاره چې د هغه زړه تنګ سي او د خپل قرض پر ژر اداء کولو اماده سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ لَهُ جَارِيَةٌ وَفِيهِ مَوْضِعٌ يُمْكِنُهُ فِيهِ وَطْؤُهَا په خلاف د هغه صورت کله چې د مقروض يو مينځه وي او په بنديخانه کي داسې ځای وي چې د مينځې سره د هغه وطي کول ممکن وي لَا يُمْنَعُ عَنْهُ نو هغه به له وطي څخه نه منع کول کيږي لِأَنَّهُ قَضَاءُ إِحْدَى الشَّهْوَتَيْنِ ځکه چې دا له دوو شهوتونو څخه د يوه پوره کول دي فَيُعْتَبَرُ بِقَضَاءِ الْأُخْرَى نو دا به د بل شهوت پر پوره کولو قياسول کيږي.

**اللغات:** ﴿غرماء﴾ قرضخواهان (د قرض مالکان)، ﴿خلّى﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ايله کول، پريښوول، خوشې کول. ﴿نَظِرَة﴾ مهلت. ﴿ميسرة﴾ مراد: مالداري. ﴿تحرّز﴾ د تفعّل مصدر دی: بچ کيدل، ځان ساتل. ﴿محترف﴾ د افتعال د باب فاعل دی: کسب او پېشې والا، پېشه ګر چې يو کسب او پېشه يې زده وي. ﴿يضجر﴾ د سمع مضارع ده: تنګېدل (تنګدله کېدل)، ناکراره کېدل. ﴿ينبعث﴾ د انفعال مضارع ده: پاڅېدل، اماده کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مفلسه مقروض سره هيڅ مال ښکاره نه سي او قرضخواهان د هغه د بندي کولو مطالبه وکړي حال دا چې مقروض همدا دعوی کوي چې زما سره هيڅ مال نسته، نو قاضي به هغه د هر داسې قرض په عوض کي بندي کوي کوم چې هغه د يو عقد (معاملې) په ذريعه پر ځان لازم کړی وي لکه د مبيع ثمن، د نکاح مهر، کفالت او داسې نور.

**يادونه:** په دغه ځای کي د مختصرُ القدوري او د بدايه د متن اصل عبارت داسې وو: "وإن لم يعرف للمفلس مال وطلب غرماؤه حبسه وهو يقول لا مال لي حبسه الحاكم في كُلّ دين لزمه بدلاً عن مالٍ حصل في يده كثمن المبيع وبدل القروض وفي كل دين التزمه بعقد كالمهر والكفارة"، لېکن هدايې

ته د دغه مسئلې درانقل کولو په وخت کې له صاحب هدایې رَحِمَهُ الله (یا کاتب) څخه خط کشیده عبارت د سهو او نسیان په وجه پاته سوی دی. (اشرف الهدایه)

إلی أن قال إلخ: دا الفاظ د مخکني قول "فإن لم یعرف للمفلس مال" سره متعلق دي، یعني امام قدوري رَحِمَهُ الله په مختصر القدوري کې ویلي دي: "فإن لم یعرف للمفلس مال. إلی أن قال وکذلك إن أقام البیّنة أنه لا مال له" او عبارت یعني "خَلّٰی سبیله" د صاحب هدایې رَحِمَهُ الله له طرفه دی او دا د "وکذلك إن أقام البیّنة أنه لا مال له" د مراد تفسیر دی، او "لوجوب النظر إلی المیسرة" د هغه تعلیل دی. نو دلته صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله خپل او د قدوري کلام سره خلط کړی دی کوم چي د تشویش سبب ګرځېدلی دی. غوره دا وه چي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د "إلی أن قال" الفاظ بالکل پرې ایښي وای او داسي یې ویلي وای "قال وکذالك إن أقام البینة" لکه څرنګه چي په نورو ځایو کې د هغه همدغه عادت دی. بهر حال د مذکوره قول مطلب دا دی چي که مفلسه مقروض ګواهي پېش کړي، نو هغه به پرېښوول کیږي؛ ځکه چي د آساني یعني د مالداری (مال پیدا کولو) تر وخته پوري مهلت ورکول د دغه قرآني نص په حکم سره واجب دي "وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ" [سورة البقرة: ٢٨٠]، یعني معسر ته به د موسر کېدو (مالداره کېدو) تر وخته پوري مهلت ورکول کیږي.

ولو مرض فی الحبس إلخ: که چیري دغه بندي کړی سوی مفلسه مقروض په بندیخانه کې مریض سي او د هغه سره یو خادم موجود وي چي په علاج او درملنه کې د هغه خدمت کوي، نو هغه به په بندیخانه کې پرېښوول کیږي، ها! که داسي خادم ور سره نه وي، نو هغه به له بندیخانې څخه را ایستل کیږي چي د مرض د زیاتېدلو په سبب هلته مړ نه سي، کنې حاکم او داسي نور به د هغه ذمه واره وګرځي؛ ځکه چي محض د قرض په وجه هلاکول جائز نه دي.

والمحترف إلخ: او که چیري مفلسه مقروض د یو کسب او پېښې خاوند وي (یعني یو کسب یې زده وي، مثلاً خیاط وي)، نو هغه ته به په بندیخانه کې د خپل کسب او پېښې د فعاله کولو قدرت او اختیار نه ورکول کیږي، کنې هلته به یې طبیعت سم وي او د قرض اداء کول به یې په خیال کې هم نه راځي، لهذا هغه ته به د خپل کسب کولو اختیار نه ورکول کیږي چي زړه یې تنګ سي او ژر تر ژره قرض اداء کړي، همدا د امام خصاف رَحِمَهُ الله په وینا اصح قول دی، او صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د "هو الصحیح" په وینا زموږ د بعضي مشایخو له قول څخه احتراز کړی دی چي له کسب او پېښې څخه به

نه منع کول کیږي همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله اصح قول دی؛ ځکه چي په دې کي د دواړو طرفونو رعایت سته په دې توګه چي مقروض به په خپل کسب او ګټه سره د خپل اهل وعیال لپاره نفقه حاصلوي او د هغه له ګټي څخه چي کوم مقدار پاتیږي هغه به قرضخوا ته په قرض کي ورکوي (نو په دې کي به د مقروض او قرضخواه دواړو ښېګڼه وي).

بخلاف ما إذا کان إلخ: او که چیري دغه مفلسه مقروض یو مینځه لري او په بندیخانه کي د وطي کولو ځای هم وي، نو هغه به له وطي کولو څخه نه راګرځول کیږي؛ ځکه کله چي هغه له خوراک څخه نه منع کول کیږي او هره ورځ د هغه د نس شهوت پوره کیږي، نو هغه ته به د فرج د شهوت پوره کولو موقع هم ورکول کیږي.

## له بندیخانې څخه د مقروض تر وتلو وروسته احکام

قَالَ: وَلَا يَحُوْلُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُرَمَائِهِ بَعْدَ خُرُوجِهِ مِنَ الْحَبْسِ فرمايي: او قاضي به نه حائل کیږي د مقروض او د هغه د قرضخواهانو په مینځ کي له بندیخانې څخه د هغه تر وتلو وروسته يُلَازِمُوْنَهُ وَلَا يَمْنَعُوْنَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ وَالسَّفَرِ بلکي قرضخواهان به په مقروض لازم پسې کیږي [لیکن] له تصرف څخه به هغه نه منع کوي لِقَوْلِهِ الْعَلِيْلا: "لِصَاحِبِ الْحَقِّ يَدٌ وَلِسَانٌ" ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي چي "د حقداره کس لپاره لاس او ژبه دي" أَرَادَ بِالْيَدِ الْمُلَازَمَةَ وَبِاللِّسَانِ التَّقَاضِيَ د لاس څخه مراد [په خپل حق] لازم پسې کېدل او له ژبې څخه مراد تقاضا کول دي قَالَ: وَيَأْخُذُوْنَ فَضْلَ كَسْبِهِ يُقْسَمُ بَيْنَهُمْ بِالْحِصَصِ فرمايي: چي قرضخواهان به د مقروض پاته سوې ګټه [ګټل سوی مال] اخلي او په خپل مینځ کي به یې د خپلو حصو [قرضونو] په حساب سره تقسیموي لِاسْتِوَاءِ حُقُوقِهِمْ فِي الْقُوَّةِ ځکه چي [د ثبوت] په قوت کي د دوی حقونه سره برابر دي وَقَالَا[*]: إِذَا فَلَّسَهُ الْحَاكِمُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کله قاضي مقروض مفلس وګرځوي [یعني د هغه د مفلس والي فیصله وکړي] حَالَ بَيْنَ الْغُرَمَاءِ وَبَيْنَهُ إِلَّا أَنْ يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ أَنَّ لَهُ مَالًا نو [بیا] به قاضي د مقروض او قرضخواهانو په مینځ کي حائل کیږي مګر دا چي قرضخواهان پر دې خبره بیّنه پېش کړي چي د مقروض سره

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله(ای لا يحول بين الغرماء وبينه)، كما ظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله. [القول الراجح ج:٢، ص:٢٥٣]

مال سته لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِالْإِفْلَاسِ عِنْدَهُمَا يَصِحُّ ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د قاضي د مفلس والي فيصله کول صحيح دي فَيَثْبُتُ الْعُسْرَةُ وَيَسْتَحِقُّ النَّظِرَةَ إِلَى الْمَيْسَرَةِ نو ځکه په دغه قضاء سره به تنګلاسي [غربي] ثابتيږي او د مالدارۍ تر وخته پوري به د مهلت مستحق کيږي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يَتَحَقَّقُ الْقَضَاءُ بِالْإِفْلَاسِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مفلس والي فيصله کول نه ثابتيږي [نه صحيح کيږي] لِأَنَّ مَالَ اللهِ تَعَالَى غَادٍ وَرَائِحٌ ځکه چي الهي مال تلونکی راتلونکی شی دی [مطلب دا چي سهار به يو انسان مالدار وي ليکن ماښام ته به ډېوالي وي، او سهار به يو انسان مفلس وي ليکن ماښام ته به مالدار وي] وَلِأَنَّ وُقُوفَ الشُّهُودِ عَلَى عَدَمِ الْمَالِ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا ظَاهِرًا او ځکه چي د مال پر نشتوالي د ګواهانو واقفيت [خبر] نه سي ثابتېدلای مګر صرف په ظاهري توګه فَيَصْلُحُ لِلدَّفْعِ لَا لِإِبْطَالِ حَقِّ الْمُلَازَمَةِ نو دا ګواهي صرف د دفع کولو صلاحيت [وړتيا] لري نه ملازمة د حق باطلولو وَقَوْلُهُ إِلَّا أَنْ يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ بَيِّنَةَ الْيَسَارِ تَتَرَجَّحُ عَلَى بَيِّنَةِ الْإِعْسَارِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "إلّا أن يقيمو البينة" و دې طرف ته اشاره ده چي د مالدارۍ بيّنه د تنګلاسۍ پر بيّنه راجح ده لِأَنَّهَا أَكْثَرُ إِثْبَاتًا ځکه چي د مالدارۍ بيّنه زياته ثابتونکې ده إِذِ الْأَصْلُ هُوَ الْعُسْرَةُ ځکه چي تنګلاسي اصل ده وَقَوْلُهُ فِي الْمُلَازَمَةِ لَا يَمْنَعُونَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ وَالسَّفَرِ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّهُ يَدُورُ مَعَهُ أَيْنَمَا دَارَ او [په مقروض] د لازم پسې کېدلو په هکله د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا وينا چي قرضخواهان به مقروض له تصرف او سفر څخه نه منع کوي د دې خبري دليل دی چي قرضخواه د هغه سره ګرځېدلای سي چيري چي هم هغه ګرځي وَلَا يُجْلِسُهُ فِي مَوْضِعٍ [ليکن] قرضخواه هغه په يو ځای کي نه سي کښېنولای لِأَنَّهُ حَبْسٌ ځکه چي دا [په يو ځای کي کښېنول] هم بندي کول دي وَلَوْ دَخَلَ دَارَهُ لِحَاجَتِهِ او که چيري مفلسه مقروض د خپل يو حاجت لپاره خپل کور ته داخل سي لَا يَتْبَعُهُ بَلْ يَجْلِسُ عَلَى بَابِ دَارِهِ إِلَى أَنْ يَخْرُجَ نو قرضخواه به په هغه نه پسې کيږي بلکي د هغه د کور پر دروازه به کښېني تر دې چي هغه را ووځي لِأَنَّ الْإِنْسَانَ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ لَهُ مَوْضِعُ خَلْوَةٍ ځکه چي د انسان لپاره د خلوت [تنهاوالي] يو ځای ضروري دی وَلَوِ اخْتَارَ الْمَطْلُوبُ الْحَبْسَ وَالطَّالِبُ الْمُلَازَمَةَ او که چيري مقروض بندي کېدل اختيار کړي او قرضخواه په هغه لازم پسې کېدل اختيار کړي

فَالْخِيَارُ إِلَى الطَّالِبِ نو اختيار قرضخواه لره دی لِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي حُصُولِ الْمَقْصُودِ ځکه چې د هغه اختيار د مقصود په حاصلولو کې زيات قوي لِاخْتِيَارِهِ الْأَضْيَقَ عَلَيْهِ ځکه هغه پر مقروض تنګه [ګران باره] لار اختيار کړې ده [ځکه د لازم پسې ګرځېدلو په وجه به مقروض هر وخت د قرضخواه تر دباو لاندې وي او د قرضخواه د حکمت عملي پر بناء به هغه ژر د قرض اداء کولو ته مجبوره سي] إِلَّا إِذَا عَلِمَ الْقَاضِي أَنْ يَدْخُلَ عَلَيْهِ بِالْمُلَازَمَةِ ضَرَرٌ بَيِّنٌ مګر دا چې قاضي ته دا معلومه سي چې د لازم پسې ګرځېدلو په وجه به پر مقروض ښکاره ضرر لازم سي بِأَنْ لَا يُمَكِّنَهُ مِنْ دُخُولِهِ دَارَهُ په دې توګه چې قرضخواه به هغه خپل کور ته هم نه ايله کوي فَحِينَئِذٍ يَحْبِسُهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ نو په دې صورت کې به قاضي له مقروض شخصه د ضرر ليري کولو په غرض هغه بندي کوي وَلَوْ كَانَ الدَّيْنُ لِلرَّجُلِ عَلَى الْمَرْأَةِ او که چيري پر ښځې د سړي قرض باندي وي لَا يُلَازِمُهَا نو سړی به په هغې لازم نه پسې کيږي لِمَا فِيهَا مِنَ الْخَلْوَةِ بِالْأَجْنَبِيَّةِ ځکه چې په دې کې د پردۍ ښځې سره خلوت کول لازميږي وَلَكِنْ يَبْعَثُ امْرَأَةً أَمِينَةً تُلَازِمُهَا ليکن يوه امانتداره ښځه به ور استوي چې د هغې سره لازم اووسي.

**اللغات**: ﴿يحول﴾ د نصر د باب مضارع ده: حائل کېدل، د دوو شيانو تر مينځ مانع ګرځېدل، ﴿ملازمة﴾ د افعال د باب مصدر دی: د يو شي سره لازم او متصل اوسېدل، په يو ځا لازم (ټينګ) پسې کېدل، (يعني په مقروض لازم پسې کېدل او ټينګه مطالبه ځني کول چې قرض را کړه!)، ﴿تقاضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: تقاضا، مطالبه، ﴿فضل﴾ پاته سوی مال، اضافي امدن، ﴿فلّس﴾ د تفعيل ماضي ده: د مفلسوالي حکم او فيصله جاري کول، ﴿غَادٍ﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی، غَدَا. يَغْدُو. غُدُوًّا: د سهار په وخت کي تلل يا راتلل (واپس کېدل)، د کثرت استعمال په وجه مطلق "تګ او راتګ" ته هم وايي هغه که په هر وخت کي وي، ﴿رَائِحٍ﴾ دا هم د نصر د باب اسم فاعل دی: د ماښام په وخت کي راتلل يا تلل يا يو بل کار کول، دا باب هم د "غَدَا. يَغْدُو" په څېر ځيني وخت د مطلق "تګ او راتګ" په معنیٰ استعماليږي، ﴿خلوة﴾ تنهايي، يوازي والي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله مفلسه مقروض له بندیخانې شخه آزاد کړی سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې قاضي به د هغه او د قرضخوانو په مينځ کي حائل نه جوړيږي

او ددوی په خپل مینځوی معامله کې به مداخلت نه کوي. ها! قرضخواهان هر وخت په هغه (مقروض) لازم پسې کېدای سي؛ ځکه دار قطني او داسي نورو له نبي کريم ﷺ څخه دا حديث نقل کړی دی: "إن لِصاحب الحق يَدٌ ولِسانٌ"، په دې حديث کې له يَد و لِسان څخه مراد وهل ټکول نه دي بلکي له دې څخه مراد لازم ورپسي کېدل او مطالبه و تقاضا کول دي.

**فايده**: په ابو داود او سنن بيهقي کي له هرماس بن حبيب څخه يو حديث نقل سوی دی کوم چي په دې باره کي صريح دي چي قرضخواه (غريم) ته دا حق سته چي په خپل مقروض لازم پسې سي، حديث دا دی: "عَنْ هِرْمَاسِ بْنِ حَبِيبٍ (رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ) عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ بِغَرِيمٍ لِي فَقَالَ لِي: اِلْزَمْهُ. ثُمَّ قَالَ لِي: يَا أَخَا بَنِيْ تَمِيمٍ مَا تُرِيدُ أَنْ تَفْعَلَ بِأَسِيرِكَ".

وقالا إذا فلّسه إلخ: صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي کله قاضي د مقروض د مفلس والي فيصله او اعلان وکړي، نو بيا به د مقروض او د هغه د قرضخواهانو په مينځ کي حائل جوړېږي او قرضخواهانو ته به دا اجازت نه ورکوي چي هر وخت له مقروض څخه د قرض مطالبه وکړي، مګر دا چي قرضخواهان پر دې بيّنه پېش کړي چي د مقروض په ملکيت کي مال سته؛ دليل دا دی چي د قاضي له طرفه د يو چا په حق کي د مفلس والي فيصله کول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز صحيح کيږي، لهذا د مقروض مفلسي او تنګلاسي ثابته سوه او هغه د مالداره کېدو تر وخته پوري د مهلت ورکولو مستحق سو. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قضاء بالافلاس نه صحيح کيږي؛ ځکه چي مال تلونکی راتلونکی شی دی، سهار به يو انسان مفلسه وي او ماښام ته به هغه شتمن او د ډېر مال خاوند وي.

او په دې وجه هم چي د مال پر نشتوالي د ګواهانو پوره خبرېدل نه سي ثابتېدای؛ ځکه هغو ته د حقيقي حال هيڅ خبر نسته، هغوی خو صرف په ظاهري توګه دا معلومولای سي چي د مقروض سره مال نسته، نو په دغه ګواهۍ سره فقط دفعيه کېدای سي او په دې سره د قرضخواهانو حق يعني په مقروض د لازم پسې کېدلو حق نه سي باطلېدای.

وقوله إلا أن يقيموا إلخ: يعني امام قدوري رَحِمَهُ الله چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قول په ضمن کي ويلي دي "الا ان يقيموا البينة"، په دې کي ودې خبري ته اشاره ده چي د مالدارۍ ګواهۍ ته ترجيح حاصله ده د تنګلاسۍ پر ګواهۍ؛ ځکه چي ګواهي (بيّنه) د اثبات لپاره وي او د انسان په حق کي تنګلاسي اصل ده او د تنګلاسۍ ګواهانو همدا اصل ثابت کړی دی خو د مالدارۍ ګواهانو تر هغه زيات يعني مالداره کېدل ثابت کړي دي (لنډه دا چي د يسار بيّنه په اثبات کي د اعسار پر بينې بالا

ده،لهذا کله چې پر يسار بيّنه پېش کړی سي، نو اعسار به ختم سي او يسار به ثابت سي، نو ځکه د يسار بيّنه معتبره او مقبوله ده).

ولودخل في داره إلخ: له دې ځايه تر آخره عبارت ښکاره دی.

## که د مفلس مقروض سره د يو چا سامان موجود وي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَفْلَسَ وَعِنْدَهُ مَتَاعٌ لِرَجُلٍ بِعَيْنِهِ اِبْتَاعَهُ مِنْهُ فرمايي: او که څوک په داسې حال کې مفلسه سي چې د هغه سره د يو سړي سامان وي کوم چې ده له هغه څخه سړي رانيولی وي فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ أُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ فِيهِ نو د سامان مالک [بائع] په دغه سامان کې د قرضخواهانو سره برابر شريک دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَحْجُرُ الْقَاضِي عَلَى الْمُشْتَرِيْ بِطَلَبِهِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د بائع په مطالبه سره به قاضي پر مشتري بنديز لګوي ثُمَّ لِلْبَائِعِ خِيَارُ الْفَسْخِ بيا به بائع لره [د بيع] د فسخ کولو اختيار وي لِأَنَّهُ عَجَزَ الْمُشْتَرِيْ عَنْ إِيفَاءِ الثَّمَنِ ځکه چې مشتري له ثمن اداء کولو څخه عاجزه سو فَيُوجِبُ ذٰلِكَ حَقَّ الْفَسْخِ نو ځکه دا به د فسخ کولو حق [او اختيار] ثابتوي كَعَجْزِ الْبَائِعِ عَنْ تَسْلِيمِ الْمَبِيعِ لکه څرنګه چې د مبيع له ورسپارلو څخه د بائع عاجزه کېدل [د فسخ اختيار ثابتوي] وَهٰذَا لِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ او دا حکم ځکه دی چې بيع د معاوضې عقد دی وَمِنْ قَضِيَّتِهِ الْمُسَاوَاةُ چې د هغه مقتضا مساوات دی [يعني عقد معاوضه د برابرۍ تقاضا کوي] وَصَارَ كَالسَّلَمِ او دا د بيع سَلم په څېر سوه وَلَنَا: أَنَّ الْإِفْلَاسَ يُوجِبُ الْعَجْزَ عَنْ تَسْلِيمِ الْعَيْنِ زموږ دليل دا دی: چې مفلس والی د عَين له ورسپارلو څخه عاجزه کېدل واجبوي وَهُوَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ بِالْعَقْدِ حال دا چې دا په عقد سره واجب نه دي فَلَا يَثْبُتُ حَقُّ الْفَسْخِ بِاعْتِبَارِهِ نو د دې په اعتبار سره به د فسخ حق نه ثابتيږي وَإِنَّمَا الْمُسْتَحَقُّ وَصْفٌ فِي الذِّمَّةِ أَعْنِي الدَّيْنَ بلکي واجب خو يو وصف دی کوم چې پر ذمه لازم دی يعني قرض وَبِقَبْضِ الْعَيْنِ تَتَحَقَّقُ بَيْنَهُمَا مُبَادَلَةٌ او پر عَين مال په قبضه کولو سره د دوی دواړو په مينځ کې مبادله

▶

متحقق کيږي هٰذَا هُوَ الْحَقِيقَةُ همدا حقيقت دی فَيَجِبُ اعْتِبَارُهَا إِلَّا فِي مَوْضِعِ التَّعَذُّرِ كَالسَّلَمِ نو ځکه د دې اعتبار کول به ضروري وي مګر د نا ممکن والي په ځای کې لکه بيع سَلم لِأَنَّ الِاسْتِبْدَالَ مُمْتَنِعٌ ځکه چې [په بيع سَلم کې] استبدال ممتنع دی فَأُعْطِيَ لِلْعَيْنِ حُكْمَ الدَّيْنِ نو عَين ته د دَين [قرض] حکم ورکول سو.

**اللغات**: ﴿قضية﴾ مقتضا، تقاضا، ﴿السلم﴾ بيع سلم، بيع الاجل بالعاجل، مثلاً يو سړی (بائع) له يو چا څخه ثمن في الحاله واخلي او د يوې مياشتي پر قرض غنم پر خرڅ کړي چې غنم يوه مياشت وروسته درکوم. په بيع سَلم کې ثمن ورکونکي (مشتري) ته رَبُّ السَّلَم وايي او په قرض خرڅونکي (بائع) ته مُسْلَم إِلَيْه وايي او په کوم شي کې چې بيع سَلم وسي لکه په دې مثال کې چې غنم دي، هغه ته مُسْلَمُ فِيْه وايي او ثمن ته رأسُ المال وايي، ﴿مبادلة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو شی په بل شي سره بدلول، ادل بدل کول. ﴿استبدال﴾ د استفعال مصدر دی: د يو شي په بدله کې بل شی اخيستل، يو شی په بل شي سره بدلول، مراد ځني د مسلم فيه په بدله کې بل شی اخيستل دي او دا حرام دي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زيد مثلاً له خالد څخه څه سامان رانيولي وي او د هغه ثمن (قيمت) يې ورکړی نه وي بلکې هغه پر زيد قرض پاته وي او له دغه قرض څخه بغير پر زيد د نورو خلکو قرض هم باندې وي چې په دې دوران کې هغه مفلسه سي او قاضي هم د هغه د مفلس والي فيصله وکړي، نو اوس چې د زيد سره کوم سامان موجود دي، هغه يوازې د بائع (خالد) نه کيږي، بلکې په دې کې بائع د هغه د قرضخواهانو سره شريک کيږي او قرضخواهان او بائع ټول به د خپلو حصو په اندازه له هغه څخه خپل قرض اخلي. دا حکم زموږ په نېز دی. د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې که بائع (خالد) د قاضي په دربار کې د مفلسه مشتري (زيد) په خلاف درخواست پېش کړي او له قاضي څخه پر هغه د بنديز لګولو مطالبه وکړي، نو قاضي به د هغه درخواست قبلوي او پر دغه مقروض مشتري (زيد) به بنديز او پابندي لګوي او بيا بائع ته د بيع فسخ کولو (سودا ماتولو) اختيار حاصليږي؛ ځکه چې دا د بيع معامله ده او بيع د مساوات تقاضا کوي، نو کله چې بائع ومشتري مبيع وسپاري، نو پر مشتري د ثمن ورسپارل واجبيږي او که مشتري د ثمن پر ور سپارلو قادر نه وي، نو بائع ته د فسخ اختيار حاصليږي، لکه څرنګه چې په بيع سَلم کله مسلم فيه نېستي

سي نو ربُ السَلَم ته د فسخ حق حاصلیږي، همداسي به مذکوره بائع ته هم د فسخ حق حاصلیږي. یا څرنګه چي د مشتري پر ځای بائع له مبیع ورسپارلو څخه عاجزه سي، نو مشتري ته د فسخ حق او اختیار حاصلیږي، همداسي به دلته هم بائع ته د فسخ اختیار (خیارِ فسخ) حاصلیږي.

زموږ د دلیل حاصل دا دی چي د عقدِ بیع په وجه پر مشتري د ثمن په شکل سره یو وصف واجبیږي کوم چي پر ذمه قرض وي او د هر کس افلاس د ظاهر سره متعلق وي او افلاس د عَین یعني دنقودو (دراهم او دنانیرو) له ورسپارلو څخه عجز ثابتوي، نو ځکه افلاس به د مذکوره امر یعني د دَین (قرض) سره هیڅ تعلق نه لري؛ ځکه په عقدِ بیع سره نقود ګرسره واجب نه دي، نو ځکه په دغه افلاس سره به موږ مشتري عاجزه نه ګرځوو او کله چي هغه عاجزه نه دی، نو ښکاره خبره ده چي بائع ته به خیارِ فسخ هم نه حاصلیږي بلکي بائع به د قرضخواهانو سره د مشتري په مال کي برابر شریک او حصه دار ګرځي.

پاته سو دا سوال چي کله ثمن پر ذمه قرض دی، نو که چیري مقروض د نقودو په اداء کولو سره ځان بري الذمه کول وغواړي، نو ستاسو دغه دلیل ته په کتلو سره خو هغه نه سي بري کېدای، حال دا چي د نقودو په اداء کولو سره د مقروض بري کېدل ښکاره او معلومه خبره ده؟ د دې جواب دا دی چي په قرض کي اصل دا دی چي هغه اداء کړی سي، برابره ده دغه ادائنه د نقودو په ذریعه وي یا د عمل په ذریعه وي یا د قرضخواه له طرفه مقروض بري کړی سي، که چیري د نقودو په ذریعه ادائنه وي، نو شریعت دغه ادائنه د قرضخواه او مقروض (په بله وینا د بائع او مشتري) په مینځ کي مبادلهٔ حکمیه ګرځوي، نو په نقودو سره به حکماً خو د قرض ادائنه کیږي لېکن د نقودو افلاس به د بائع لپاره خیار نه ثابتوي. او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي دا مسئله پر بیع سَلم قیاسوي، دا صحیح نه دي؛ ځکه په بیع سَلم کي مبادله نا ممکن ده (او په بله وینا دا چي په بیع سَلم کي استبدال ممتنع دی)، لکه څرنګه چي په حدیث کي ذکر سوي دي ''لَا تَأْخُذْ إِلَّا سَلَمَكَ أَوْ رَأْسَ مَالِكَ''، او په بیع سَلم کي د مسلم فیه نیستي کېدل (معدوم کېدل) په حقیقت کي له داسي شي څخه عاجزه کېدل دي کوم چي په عقد (سلم) سره اجب سوی دی. او د مَا وجب بالعقد له ورسپارلو څخه عاجزه کېدل خیار فسخ ثابتوي، نو ځکه هلته (په بیع سلم) کي خو به خیار فسخ ثابتیږي، لېکن په پورتنۍ مسئله کي د خیارِ فسخ هیڅ ګنجایش نسته. والله أعلم وعلمهٔ أتم



# كِتَابُ الْمَأْذُوْنِ

(دا) کتاب د مأذون (د احکامو په بیان کې) دی

## د "إذن" لغوي او اصطلاحي معنیٰ او د مأذون غلام احکام

اَلْإِذْنُ: اَلْإِعْلَامُ لُغَةً اذن په لغت کې خبر ورکول دي [یعني د اذن لغوي معنیٰ ده: اطلاع ورکول او خبرول] وَفِي الشَّرْعِ: فَكُّ الْحَجْرِ وَإِسْقَاطُ الْحَقِّ عِنْدَنَا او په شریعت کې بندیز لیرې کول او خپل حق ساقطول دي زمونږ په نیز [یعني دا تعریف زمونږ په نیز دی] وَالْعَبْدُ بَعْدَ ذٰلِكَ يَتَصَرَّفُ لِنَفْسِهِ بِأَهْلِيَّتِهِ او تر اذن [اجازت] وروسته غلام د خپل اهلیت پر بناء د ځان لپاره تصرف کوي لِأَنَّهُ بَعْدَ الرِّقِّ بَقِيَ أَهْلًا لِلتَّصَرُّفِ بِلِسَانِهِ النَّاطِقِ وَعَقْلِهِ الْمُمَيِّزِ ځکه چې هغه تر رقیت [غلامتوب] وروسته د خپل ګویا ژبې او د خپل تمییز کونکي عقل پر بناء د تصرف اهل پاتې کیږي وَانْحِجَارُهُ عَنِ التَّصَرُّفِ لِحَقِّ الْمَوْلٰى او له تصرف څخه د هغه محجوره کېدل [منع کېدل] د مالک د حق په وجه وي لِأَنَّهُ مَا عُهِدَ تَصَرُّفُهُ إِلَّا مُوْجِبًا لِتَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ وَبِكَسْبِهِ ځکه چې د غلام تصرف نه دی پېژندل سوی مګر واجبونکی د قرض د متعلق کېدلو د هغه د غاړې [ذات] او د هغه د ګټې سره وَذٰلِكَ مَالُ الْمَوْلٰى حال دا چې هغه [رقبه او مال] د مالک مال دی فَلَا بُدَّ مِنْ إِذْنِهِ كَيْلَا يَبْطُلَ حَقُّهُ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ نو ځکه د مالک اجازت ضروري دی، د دې لپاره چې د هغه له رضا څخه بغیر د هغه حق باطل نه سي وَلِهٰذَا لَا يَرْجِعُ بِمَا لَحِقَهُ مِنَ الْعُهْدَةِ عَلَى الْمَوْلٰى په همدې وجه مأذون غلام پر مالک د هغه ذمه وارۍ رجوع نه سي کولای کوم چې [تر اجازت وروسته] هغه ته لاحق سوې [پر لازم سوې] وي وَلِهٰذَا لَا يَقْبَلُ التَّوْقِيْتَ او په همدې وجه اجازت توقیت اوخت ټاکل] نه قبلوي حَتّٰى لَوْ أَذِنَ لِعَبْدِهِ يَوْمًا تر دې که مالک خپل غلام ته یوه ورځ [یا مثلاً یوه میاشت] اجازت ورکړي كَانَ مَأْذُوْنًا أَبَدًا حَتّٰى يَحْجُرَ عَلَيْهِ نو هغه د همېشه لپاره مأذون [اجازت ورکړی سوی]

ګرځي تر دې چي مالک هغه بیرته محجوره کړي [اجازت ختم کړي] لِأَنَّ الْإِسْقَاطَاتِ لَا تَتَوَقَّفُ ځکه چي اسقاطات نه مؤقت کیږي [یعني په هغوی کي وخت نه سي ټاکل کېدای] ثُمَّ الْإِذْنُ كَمَا يَثْبُتُ بِالصَّرِيحِ يَثْبُتُ بِالدَّلَالَةِ بیا چي څرنګه اجازت په صریح اجازت ورکولو سره ثابتیږي همداسي په دلالت سره هم ثابتیږي كَمَا إِذَا رَأَى عَبْدَهُ يَبِيعُ وَيَشْتَرِي لکه کله چي مالک خپل غلام ویني چي هغه خرڅول و رانیول کوي فَسَكَتَ او مالک چپ پاته سي يَصِيرُ مَأْذُونًا عِنْدَنَا نو زموږ په نېز هغه غلام مأذون ګرځي خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ په خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَبِيعَ عَيْنًا مَمْلُوكًا لِلْمَوْلَى أَوْ لِأَجْنَبِيٍّ بِإِذْنِهِ أَوْ بِغَيْرِ إِذْنِهِ بَيْعًا صَحِيحًا أَوْ فَاسِدًا او په دې کي هيڅ فرق نسته چي مأذون غلام د خپل مالک یا د بل اجنبي کس مملوک شی خرڅ کړي، د هغه په اجازت سره وي او که بغیر له اجازته، بیع صحیح وي او که بیع فاسد وي لِأَنَّ كُلَّ مَنْ رَآهُ يَظُنُّهُ مَأْذُونًا لَهُ فِيهَا فَيُعَاقِدُهُ ځکه کوم څوک چي هم دغه غلام [پر بیع کولو] ویني نو هغه به دئ مأذون فی التجارة ګڼي او د ده سره به معامله کوي فَيَتَضَرَّرُ بِهِ لَوْ لَمْ يَكُنْ مَأْذُونًا لَهُ نو که چیري دا غلام مأذون نه وګرځول سي نو په دې سره به هغه [معامله کونکي] ته ضرر ورسیږي وَلَوْ لَمْ يَكُنِ الْمَوْلَى رَاضِيًا بِهِ لَمَنَعَهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُمْ او که چیري مالک په دې راضي نه وای نو له خلکو څخه د ضرر دفع کولو په خاطر به یې دئ خامخا منع کولای.

**اللغات**: ﴿الإذن﴾ اجازت، اجازه، ﴿إعلام﴾ د افعال مصدر دی: خبرول، اګاه کول، اطلاع ورکول، ﴿فك﴾ د نصر مصدر دی: لیري کول او ختمول، خلاصول، ﴿الحجر﴾ د تصرف بندیز (د کاروبار پابندي)، ممانعت، ﴿انحجار﴾ د انفعال مصدر دی: محجوره کېدل، پابند کېدل، (بندیز پر لګېدل)، ﴿عهد﴾ د سمع د باب ماضي ده: معروف او معهود کېدل (معلومېدل)، پېژندل کېدل، ﴿ناطق﴾ د ضرب د باب فاعل دی: نطق کونکی (خبره کونکی)، ګویا، ﴿التوقيت﴾ د تفعیل مصدر دی: وخت ټاکل (وخت مقرر کول)، ﴿مأذون له﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: هغه غلام چي د مالک له طرفه هغه ته د کاروبار او تصرف کولو اجازت ورکول سوی وي، ﴿يعاقد﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: یو د بل سره عقد کول (معامله کول).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي مأذون له إذن څخه مشتق دی (کوم چي د همدې باب مفعول دی)، او د اذن لغوي معنیٰ ده: اطلاع او خبر ورکول، او د شريعت په اصطلاح کي د هغه معنیٰ ده: بنديز او پابندي ليري کول، يعني د مالک د حق په وجه چي پر غلام کوم د کاروبار او داسي بل تصرف بنديز لګېدلی وي، هغه په اجازت سره ليري کيږي او په داسي اجازت ورکولو سره مالک د خپل حق ساقطونکی ګرځي. دا تعريف او تفصيل زموږ په نېز دی. د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز اجازت (إذن) انابت و توکيل دی، اعلام نه دی (يعني اجازت ورکول داسي دي لکه خپل نائب او وکيل جوړول)، لېکن د هغه دا قول له پوهي څخه ليري دی؛ ځکه تر اجازت وروسته چي غلام کوم تصرف کوي، د هغه د لوازماتو او لواحقاتو ذمه وار هغه په خپله وي، همدارنګه دا اجازت دائمي وي، وقتي او عارضي نه وي، حال دا چي انابت و توکيل عارضي او وقتي وي او په هغوی کي مؤکل او مالک ذمه واره وي، لهذا اجازت توکيل و انابت ګرځول له عقل او فهم څخه بعيد دي. بهر حال دا ثابته سوه چي زموږ په نېز اجازت د بنديز ليري کولو او د حق ساقطولو نوم دی؛ ځکه د غلامتوب (رقيت) په حالت کي هم په غلام کي د تصرف اهليت وي، لېکن څرنګه چي هغه د هيڅ شي مالک نه وي، نو ځکه که هغه يو شی رانيسي يا يې خرڅ کړي، نو ثمن او مبيع د هغه پر ذمه قرض ګرځي او دا قرض د هغه د ذات يا د هغه د ګټي (ګټل سوي مال) سره متعلق کيږي، حال دا چي غلام او د هغه مال دواړه د مالک په ملکيت کي دي او مالک په هغه کي د بل چا په شرکت راضي نه دی، نو ځکه د غلام د تصرف کولو لپاره د مالک اجازت ضروري دی او تر اجازت وروسته د هغه لپاره د تصرف لاره خلاصيږي.

ثم الإذن إلخ: مسئله دا ده چي زموږ په نېز صراحتاً هم اجازت ثابتيږي او دلالتاً هم ثابتيږي، يعني که مالک خپل غلام پر کاروبار (خرڅولو او رانيولو) ويني او هغه منع نه کړي بلکي خاموش پاته سي، نو دا دلالتاً اجازت دی، او دا غلام برابره ده د مالک مملوک شی خرڅ کړي او که د بل چا، بيع صحيح وکړي او که بيع فاسد، په هر صورت کي د مالک سُکوت د هغه په حق کي اجازت دی؛ ځکه چي خَلک خو په همدې ګومان د هغه سره کاروبار کوي چي دغه غلام مأذون فی التجارة دی، کنې د هغه مالک (که په دې راضي نه وای نو) هغه به يې له تجارت او کاروبار څخه منع کړی وای، نو ځکه له خلکو څخه د ضرر او نقصان ليري کولو په خاطر شريعت د مالک پر سُکوت د رضا او اجازت مهر لګولی دی چي د دغه غلام سره کاروبار کونکي خلک له ضرر او تاوان څخه بچ سي.

# د مأذون غلام تفصيلي احكام

قَالَ: وَإِذَا أَذِنَ الْمَوْلَىٰ لِعَبْدِهِ فِي التِّجَارَةِ إِذْنًا عَامًّا فرمايي: او كله چي مالک خپل غلام ته د تجارت [كاروبار] عام اجازت وركړي جَازَ تَصَرُّفُهُ فِي سَائِرِ التِّجَارَاتِ نو په ټولو تجاراتو كي د هغه تصرف جائز كيږي وَمَعْنَىٰ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ أَنْ يَقُولَ لَهُ: أَذِنْتُ لَكَ فِي التِّجَارَةِ او د دغه مسئلې مطلب دا دى چي مالک خپل غلام ته [مطلقاً] داسي ووايي: ما تا ته د تجارت اجازت دركړى وَلَا يُقَيِّدُهُ [يعني] مالک دا اجازت مقيد نه كړي وَوَجْهُهُ أَنَّ التِّجَارَةَ اسْمٌ عَامٌّ يَتَنَاوَلُ الْجِنْسَ او د دې وجه [او علت] دا دى چي د تجارت لفظ يو عام نوم دى كوم چي [د تجارت] هر جنس لره شامليږي فَيَبِيعُ وَيَشْتَرِي مَا بَدَا لَهُ مِنْ أَنْوَاعِ الْأَعْيَانِ نو ځكه د شيانو له اقسامو [بېلابېلو شيانو] څخه چي كوم قسم د هغه زړه وغواړي هغه دي خرڅوي او رانيسي لِأَنَّهُ أَصْلُ التِّجَارَةِ ځكه همدا بيع و شراء [خرڅول و رانيول] اصل تجارت دى وَلَوْ بَاعَ أَوِ اشْتَرَىٰ بِالْغَبْنِ الْيَسِيرِ او كه مأذون غلام په معمولي تاوان سره بيع و شراء كوي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِتَعَذُّرِ الِاحْتِرَازِ عَنْهُ ځكه چي له معمولي تاوان څخه بچ كېدل ممكن نه دي وَكَذَا بِالْفَاحِشِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او همدارنگه په زيات تاوان سره بيع وشراء كول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز صحيح دي خِلَافًا لَهُمَا❁ په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله هُمَا يَقُولَانِ: إِنَّ الْبَيْعَ بِالْفَاحِشِ مِنْهُ بِمَنْزِلَةِ التَّبَرُّعِ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په غبنِ فاحش سره د غلام بيع كول د تبرع په درجه كي ده حَتَّىٰ اُعْتُبِرَ مِنَ الْمَرِيضِ مِنْ ثُلُثِ مَالِهِ همدا وجه ده چي دا ډول بيع د [مړ كېدونكي] مريض د مال له درېيمي حصې څخه معتبر كيږي فَلَا يَنْتَظِمُهُ الْإِذْنُ نو ځكه د غبنِ فاحش والا بيع ته به اجازت نه شامليږي كَالْهِبَةِ لكه هبه [ته چي نه شامليږي] وَلَهُ: أَنَّهُ تِجَارَةٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي په غبن فائش سره بيع كول هم تجارت دى وَالْعَبْدُ مُتَصَرِّفٌ بِأَهْلِيَّةِ نَفْسِهِ او غلام د خپل ذاتي اهليت پر بناء تصرف كونكى [بيع كونكى] دى فَصَارَ كَالْحُرِّ نو د آزاد كس په څېر سو

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:٢، ص:٥٠١)، والدر المختار (ج:٥، ص:١١١). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٥٢]

[يعني څرنګه چي د آزاد کس لپاره په غبنِ فاحش سره بيع کول صحيح دي، همداسي به د غلام لپاره هم دا صحيح وي] وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ الْمَأْذُوْنُ او پر همدغه اختلاف مأذون بچی دی وَلَوْحَابٰى فِي مَرَضِ مَوْتِهٖ او که چيري مأذون غلام د خپل مرګ په مرض کي محابات وکړي [يعني د زيات قيمت والا شی ډېر ارزانه (په کم قيمت سره) سره خرڅ کړي] يُعْتَبَرُ مِنْ جَمِيْعِ مَالِهٖ إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ نو دا د هغه له ټوله مال څخه معتبر کيږي [په دې شرط] کله چي پر هغه قرض نه وي وَإِنْ كَانَ او که چيري پر هغه قرض وي فَمِنْ جَمِيْعِ مَا بَقِيَ نو د هغه له ټوله پاته سوي مال څخه محابات معتبر کيږي لِأَنَّ الْاِقْتِصَارَ فِي الْحُرِّ عَلَى الثُّلُثِ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ ځکه چي آزاد په حق کي [د مال] پر درېيمه حصه اکتفاء کول د وارثانو د حق په وجه دي [په بله وينا دا چي د آزاد کس په حق کي بيع محابات (د مړي) د مال پر درېيمه حصه منحصر کول د وارثانو د حق په وجه دي] وَلَا وَارِثَ لِلْعَبْدِ او غلام لره هيڅ وارث نه وي وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ مُحِيْطًا بِمَا فِي يَدِهٖ او که قرض د مأذون غلام ټوله مال لره محيط وي يُقَالُ لِلْمُشْتَرِيْ: أَدِّ جَمِيْعَ الْمُحَابَاةِ وَإِلَّا فَارْدُدِ الْبَيْعَ نو مشتري ته به ويل کيږي: چي ته ټوله محابات اداء کړه! کنې بيع ختم کړه [سودا ماته کړه!] كَمَا فِي الْحُرِّ لکه څرنګه چي د آزاد کس په صورت کي کيږي وَلَهٗ أَنْ يُّسْلِمَ وَيَقْبَلَ السَّلَمَ او مأذون غلام ته دا اختيار سته چي بيع سَلم وکړي او بيع سَلم قبول کړي لِأَنَّهٗ تِجَارَةٌ ځکه چي دا هم تجارت دی وَلَهٗ أَنْ يُّوَكِّلَ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ او هغه ته دا اختيار هم سته چي د خرڅولو او رانيولو لپاره يو څوک خپل وکيل جوړ کړي لِأَنَّهٗ قَدْ لَا يَتَفَرَّغُ بِنَفْسِهٖ ځکه ځيني وخت هغه بذات خود فارغه نه وي قَالَ: وَيَرْهَنُ وَيَرْتَهِنُ فرمايي: او [مأذون غلام ته دا اختيار سته چي] رهن ورکړي او رهن واخلي لِأَنَّهُمَا مِنْ تَوَابِعِ التِّجَارَةِ ځکه دا دواړه د تجارت له توابعو څخه دي فَإِنَّهٗ إِيْفَاءٌ وَاسْتِيْفَاءٌ ځکه چي دا اداء کول او اخيستل [ترلاسه کول] دي [يعني په رهن کي شی ورکول کيږي او په ارتهان کي اخيستل کيږي] وَيَمْلِكُ أَنْ يَّتَقَبَّلَ الْأَرْضَ وَيَسْتَأْجِرَ الْأُجَرَاءَ وَالْبُيُوْتَ او مأذون غلام د دې ملکيت [اختيار] لري چي د ځمکي اجاره قبوله کړي او مزدوران په مزدوري ونيسي او خوني [کمرې] په کرايه ونيسي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيْعِ التُّجَّارِ ځکه چي دا ټوله د تاجرانو له کړنو څخه دي وَيَأْخُذُ الْأَرْضَ مُزَارَعَةً او [هغه ته د دې اختيار هم سته] چي ځمکه د ګبنت ګرۍ لپاره واخلي لِأَنَّ فِيْهِ تَحْصِيْلُ

الرِّبْحِ ځکه په دې کي نفع حاصلول سته [یعني په دې سره نفع او ګټه حاصلیږي] وَيَشْتَرِيَ طَعَامًا فَيَزْرَعُهُ فِي أَرْضِهِ او [د دې اختيار هم ورته سته] چي غله رانيسي او په خپله ځمكه كي يې وكري لِأَنَّهُ يُقْصَدُ بِهِ الرِّبْحُ ځکه په دې سره هم د نفع اراده کیږي قَالَ الْعَلِيُّلَا [1] : «اَلزَّارِعُ يُتَاجِرُ رَبَّهُ» نبي كريم ﷺ فرمايلي دي چي "كښت ګر [كښت كرونكى] د خپل رب سره تجارت كوي" وَلَهُ أَنْ يُشَارِكَ شِرْكَةَ عِنَانٍ وَيَدْفَعَ الْمَالَ مُضَارَبَةً وَيَأْخُذَهَا او مأذون غلام ته دا اختيار هم سته چي شركت عنان وكړي او د مضاربت په توګه مال وركړي او د مضاربت په توګه يې واخلي لِأَنَّهُ مِنْ عَادَةِ التُّجَّارِ ځكه چي دا د تاجرانو له عادت څخه دي وَلَهُ أَنْ يُؤَاجِرَ نَفْسَهُ عِنْدَنَا او زموږ په نېز هغه ته دا اختيار هم سته چي خپل ځان په اُجرت [په مزدوري] وركړي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله وَهُوَ يَقُولُ: لَا يَمْلِكُ الْعَقْدَ عَلَى نَفْسِهِ هغه فرمايي: چي دغه غلام پر خپل ځان د عقد كولو [د خپل ځان خرڅولو] ملكيت نه لري فَكَذَا عَلَى مَنَافِعِهِ نو همداسي به پر خپلو منافعو هم د عقد كولو ملكيت نه لري لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ لَهَا ځكه چي منافع د نفس [ځان] تابع دي وَلَنَا: أَنَّ نَفْسَهُ رَأْسُ مَالِهِ زموږ دليل دا دى: چي د مأذون غلام راسُ المال د هغه نفس دى [ځكه چي مالک د تجارت لپاره هيڅ نه دي وركړي] فَيَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِيهِ نو ځكه هغه به په خپل نفس [ځان] كي د تصرف كولو ملكيت لري إِلَّا إِذَا كَانَ يَتَضَمَّنُ إِبْطَالَ الْإِذْنِ كَالْبَيْعِ مګر دا چي كله هغه [په نفس كي تصرف كول] داسي تصرف وي كوم چي د اجازت باطلولو لره شامل وي لكه [د نفس] بيع [يعني خپل ځان خرڅول] لِأَنَّهُ يَنْحَجِرُ بِهِ ځكه چي په دې بيع سره هغه محجوره كيږي وَالرَّهْنِ او لكه رهن [يعني خپل ځان د رهن په توګه وركول] لِأَنَّهُ يُحْبَسُ بِهِ ځكه چي دې سره هغه محبوسه كيږي فَلَا يَحْصُلُ مَقْصُودُ الْمَوْلَى نو د مالک مقصود به حاصل نه سي أَمَّا الْإِجَارَةُ فَلَا يَنْحَجِرُ بِهِ پاته سو اجاره [يعني ځان په مزدورى وركول] نو په دې سره هغه نه محجوره كيږي وَيَحْصُلُ بِهِ الْمَقْصُودُ وَهُوَ الرِّبْحُ [بلكي] په دې سره مقصود يعني نفع حاصليږي فَيَمْلِكُ نو ځكه مأذون غلام به د هغه ملكيت [اختيار] لري.

---

[1] تخريج: قال صاحب نصب الرايه: غريبٌ جدًا.

**اللغات**: ﴿بدا﴾ د نصر مضارع ده: ښکاره کېدل (واضح کېدل)، مختته راتلل، ﴿الغبن اليسير﴾ معمولي (لږغوندي) دوکه يا تاوان، ﴿تبرّع﴾ د تفعّل مصدر دی: احساناً يو کار کول يا مال ورکول، بلا عوضه (مفت) يو شی ورکول، ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی (په ډېر کم قيمت سره خرڅول، حَابَىٰ يُحَابِيْ مُحَابَاةً: د دې باب خپله معنیٰ ده: مدد او رعايت کول، د خلکو په مينځ کې يو سړی په يو شي سره خاصول او نور پرېښوول، او په بيع کې يې دا معناوي مرادول کيږي: د يو چا سره په ثمن يا مبيع کي ډېر رعايت کول، يعني يو شی په ډېر کم (ارزانه) قيمت سره خرڅول يا بائع (دوکاندار) ته پر کم قيمته شي ډېر قيمت ورکول، ﴿أُجَرَاء﴾ جمع د أجيرٌ ده: مزدور، ﴿صنيع﴾ عمل، کړنه، کار، ﴿الربح﴾ نفع، ګټه.

**تشريح**: په دې عبارت کې د مأذون غلام د تصرفاتو په هکله څو مسئلې بيان سوي دي، چې له هغوی څخه زياتره مسئلې له ترجمې څخه ښکاره دي، خو بيا هم د هغوی مختصره تشريح دا ده:

(۱)... که چيري مالک و غلام ته د تجارت او تصرف مطلق اجازت ورکړي او هغه مقيد نه کړي، نو مأذون غلام ته د هر ډول تجارت کولو اختيار حاصليږي، برابره ده هغه اعيان خرڅوي او رانيسي او که منافع، په هر صورت کې د هغه تصرف صحيح کيږي.

(۲)... که مأذون غلام په غبنِ يسير (معمولي تاوان) سره خرڅول و رانيول وکړي، نو بالاتفاق د هغه بيع وشراء صحيح کيږي؛ ځکه چي له غبنِ يسر څخه بچ کېدل ناممکن دي، د دې په خلاف که هغه په غبنِ فاحش (زيات تاوان) سره خرڅول و رانيول وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دغه صورت کي هم د هغه تصرف صحيح او جائز دی، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د غبنِ فاحش په صورت کي د هغه تصرف جائز نه دی.

د صاحبينو دليل دا دی چي په غبنِ فاحش سره تصرف کول د تبرّع په درجه کي دي او مأذون غلام د تبرّع اهل نه دی، لهذا هغه به په غبن فاحش سره د تصرف او تجارت کولو اهل هم نه وي او په دغه حالت کي به د مأذون غلام تصرف د مالک له اجازت څخه خالي وي، نو ځکه هغه لره به هيڅ اعتبار نه وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي مأذون غلام ته د مطلق تجارت حق او اختيار سته او په تجارت کي معمولي او زيات (يسير او فاحش) دواړه قسمه تاوانونه کيږي، لهذا څرنګه چي د آزاد کس له طرفه پر غبن فاحش مشتمل تصرف صحيح دی، همداسي به د مأذون غلام له طرفه هم دا تصرف صحيح او جائز وي.

د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف د هغه بچي په هکله هم دی چې پلار هغه ته د تصرف اجازت ورکړی وي او په هغه په غبنِ فاحش سره يو معامله وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه تصرف جائز دی، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه دی.

ولوحابى إلخ: (۳)... که چيري مأذون غلام په خپل مرضُ الموت کي بيع محابات وکړي، نو دې ته به کتل کيږي چي هغه مقروض دی او که نه؟ که چيري هغه مقروض نه وي، نو دا محابات د هغه له ټول مال څخه معتبر کيږي يعني د هغه له ټوله مال څخه به د محابات مقدار ايستل کيږي (مثلاً که د زرو [۱۰۰۰] روپو شی په اووه سوه [۷۰۰] روپۍ ورکړي نو دا د دريو سوو [۳۰۰] محابات دی او ټوله مال همدا قدر يا له هغه څخه زيات دی، نو دا محاباة جائز دی او دري سوه به ځني ايستل کيږي)، او که چيري هغه مقروض وي نو تر قرض اداء کولو وروسته چي کوم مال پاته سي، نو له هغه څخه محاباة معتبر کيږي؛ ځکه چي د آزاد په حق کي په ثلث المال (د مال په دريمه حصه) کي محابات، وصيت او داسي نور هغه وخت نافذيږي کله چي د انسان وارثان موجود وي، حال دا چي غلام هيڅ وارث نه لري، نو ځکه د هغه په حق کي به صرف قرض ته کتل کيږي.

(۴)... مأذون غلام بيع سَلم هم کولای سي، همدارنګه هغه ته د رهن اخيستلو او ورکولو، په کرايه او مزدورۍ سره د نيولو او ورکولو اختيار هم سته، همدارنګه هغه ته د شرکت عنان، مضاربت او داسي نورو حق هم سته؛ ځکه چي دا ټوله شيان د تاجرانو له اعمالو څخه دي او په تجارت کي داخل دي او په کاروبار کي له دوی څخه چاره نسته.

ولوأن يواجرنفسه إلخ: (۵)... د دې حاصل دا دی چي زموږ په نېز مأذون غلام خپل ځان په اجاره ورکولای سي يعني د يو چا سره کار او مزدوري کولای سي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز داسي نه سي کولای؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کله مأذون پر خپل ځان بيع، هبه او داسي بل عقد نه سي کولای (يعني هغه خپل ځان خرڅولای او هبه کولای نه سي)، نو د نفس پر منافعو به هم هغه ته د عقد کولو اختيار نه وي؛ ځکه چي منافع د نفس تابع وي او کله چي هغه ته پر اصل (نفس) د عقد کولو حق نسته، نو پر تابع (منافعو) به هم هغه ته د عقد کولو حق نه وي.

زموږ دليل دا دی چي د مأذون غلام مالک خو هغه ته د تجارت او تصرف اجازت ورکړی دی لېکن د تصرف لپاره يې هيڅ سرمايه (رأس المال) نه دی ورکړی، حال دا چي بغير له سرمايې تجارت نه واقع کيږي او که واقع هم سي، نو د کامیابۍ اُميد يې کم وي، نو ځکه د ضرورت پر بناء موږ د مأذون غلام نفس د هغه راسُ المال ګرځولی دی او د اجارې اجازت مو ورکړی دی، د دې لپاره چي په دې

توګه څه سرمايه جمع کړي او په دې کي د مالک نقصان هم نه سته. لکه په بيع او په رهن سره چي مالک ته نقصان رسيږي؛ ځکه چي په بيع يعني د خپل ځان خرڅولو په صورت کي د هغه د کاروبار اجازت له منځه ځي او محجوره ګرځي او په رهن کي د خپل ځان په ورکولو سره مبحوسه او مقيد ګرځي، نو تجارت او کاروبار به څنګه وکړي!. (احسن الهدايه)

## د مأذون غلام مقيد اجازت

قَالَ: فَإِنْ أَذِنَ لَهُ فِي نَوْعٍ مِنْهَا دُوْنَ غَيْرِهِ فرمايي: که مالک غلام ته صرف د يوه قسم تجارت اجازت ورکړي، نه د نورو قسمونو فَهُوَ مَأْذُوْنٌ فِي جَمِيْعِهَا نو [زموږ په نيز] هغه د تجارت په ټولو اقسامو کي مأذون دی وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَكُوْنُ مَأْذُوْنًا إِلَّا فِي ذٰلِكَ النَّوْعِ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي صرف په همغه قسم کي مأذون کيږي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا نَهَاهُ عَنِ التَّصَرُّفِ فِي نَوْعٍ آخَرَ او پر همدغه اختلاف دي کله چي مالک په بل قسم کي هغه له تجارت څخه منع کړي لَهُمَا: أَنَّ الْإِذْنَ تَوْكِيْلٌ وَإِنَابَةٌ مِنَ الْمَوْلٰى د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي اجازت د مالک له طرفه وکيل او نائب جوړول دي [يعني ګواکي هغه غلام خپل وکيل او نائب جوړ کړی] لِأَنَّهُ يَسْتَفِيْدُ الْوِلَايَةَ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي هغه د همدې مالک له طرفه ولايت حاصلوي وَيَثْبُتُ الْحُكْمُ وَهُوَ الْمِلْكُ لَهُ دُوْنَ الْعَبْدِ او حکم يعني ملکيت د همدې مالک لپاره ثابتيږي، نه د غلام لپاره وَلِهٰذَا يَمْلِكُ حَجْرَهُ او په همدې وجه مالک پر غلام د بنديز لګولو ملکيت لري فَيَتَخَصَّصُ بِمَا خَصَّهُ نو ځکه د غلام تصرف به د همغه نوع سره خاص کيږي د کوم چي مالک تخصيص کړی وي كَالْمُضَارِبِ د مضارب په څېر وَلَنَا: أَنَّهُ إِسْقَاطُ الْحَقِّ وَفَكُّ الْحَجْرِ زموږ دليل دا دی: چي اذن [اجازت ورکول] خپل حق ساقطول او بنديز ليري کول دي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [په شروع کي] چي موږ بيان کړه وَعِنْدَ ذٰلِكَ يَظْهَرُ مَالِكِيَّةُ الْعَبْدِ او په همدې وخت کي [يعني د اسقاطُ الحق په صورت کي] د غلام مالک والی ثابتيږي فَلَا يَتَخَصَّصُ بِنَوْعٍ دُوْنَ نَوْعٍ نو ځکه هغه به صرف د يو نوع سره نه خاص کيږي بِخِلَافِ الْوَكِيْلِ په خلاف د وکيل لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِي مَالِ غَيْرِهِ ځکه چي وکيل د بل چا په مال کي تصرف

کوي فَتَثْبُتُ لَهُ الْوِلَايَةُ مِنْ جِهَتِهِ نو د همدې بل چا له طرفه هغه ته ولايت ثابتيږي وَحُكْمُ التَّصَرُّفِ وَهُوَ الْمِلْكُ وَاقِعٌ لِلْعَبْدِ او د تصرف حکم يعني ملکيت د غلام لپاره واقع [او ثابت] دی حَتّٰى كَانَ لَهُ أَنْ يَصْرِفَهُ إِلَىٰ قَضَاءِ الدَّيْنِ وَالنَّفَقَةِ همدا وجه ده چې غلام ته دا اختيار سته چې هغه دغه ملکيت په قرض اداء کولو کې او په نفقه کې صرف کړي وَمَا اسْتَغْنٰى عَنْهُ او له کوم شخه چې دا غلام مستغني سي يَخْلُفُهُ الْمَالِكُ فِيهِ نو په هغه کې مالک د ده نائب کيږي.

**اللغات**: ﴿يستفيد﴾ داستفعال مضارع ده: فايده حاصلول، ترلاسه کول. ﴿يتخصص﴾ د تفعّل مضارع ده: خاص کېدل. ﴿يخلف﴾ د نصر مضارع ده: خليفه کېدل، نائب کېدل. ﴿استغنٰى﴾ د استفعال مضارع ده: مستغني کېدل، بې پروا کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مالک خپل غلام ته د يو خاص او مُتعيّن قسم تجارت کولو اجازت ورکړي او له بعضي تجارتونو شخه يې منع کړي، مثلاً داسي ورته ووايي چې ته صرف د غنمو يا کپړې تجارت کولای سې!، نو زموږ په نيز هغه ته د تجارت د ټولو اقسامو اجازت حاصليږي او د مالک تقييد بېکاره کيږي، لېکن د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز دغه غلام ته صرف د مالک د ور ښوول سوي نوع اجازت سته او له هغه شخه بغير بل قسم تجارت کول د ده لپاره جائزنه دي. همدا اختلاف په هغه صورت کې هم دی کله چې مالک د يو مُتعيّن قسم تر اجات ورکولو وروسته له بل مُتعيّن قسم تجارت شخه غلام صراحتاً منع کړي چې ته به مثلاً د کپړې تجارت کوې لېکن د غنمو تجارت يا سمندري تجارت به نه کوې!.

**دليل**: د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې د مالک اجازت د دوی په نيز وکالت او نيابت دی او په وکالت کې وکيل او نائب ته د مؤکل او اصيل له طرفه ولايت حاصليږي، نو ځکه د دوی اختيارات به هم د هغه کار سره خاص وي کوم چې مؤکل او اصيل ور ښوولی وي او د کوم قسم او نوع اجازت چې دوی ته ورکول سوی وي، له هغه شخه بغير په بل کې قسم کې تصرف کول به د دوی لپاره نه صحيح کيږي. لکه څرنګه چې په مضاربت کې همدا حکم دی چې که ربُ المال و مضارب ته د يو مُتعيّن قسم تجارت کولو يا په يو مُتعيّن ځای کې د تجارت کولو لپاره مال ورکړي، نو د مضارب لپاره د ربُ المال د حکم مخالفت کول صحيح نه دي. همدغه ډول د مأذون غلام لپاره هم د مالک له طرفه د ور ښوول سوي نوع شخه بغير په بله نوع کې تصرف او تجارت کول صحيح نه دي.

**زموږ دليل**: دا دی چي زموږ په اجازت ورکول له غلام څخه د بنديز او ممانعت ليري کولو نوم دی چي په دې اجازت سره د مالک حق هم ساقطيږي، او ښکاره خبره ده چي کله له غلام څخه ممانعت او حجر (د تصرّف بنديز) ختم سي، نو هغه ته عمومي ملکيت حاصليږي او دا ملکيت ټولو تصرفاتو او تجاراتو لره شامليږي، نو ځکه په هغه کي به د هيڅ نوع او قسم تخصيص و تحديد نه کيږي. او دا مسئله د وکيل پر مسئلې قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي وکيل د بل چا په مال کي تصرف کوي او د مال مالک ته د دې پوره اختيار سته چي په خپل مال کي د تصرف نوع او قسم مُتعيّن کړي. د دې په خلاف مأذون غلام په خپل مال کي تصرف کوي، نه د مالک په مال کي، نو ځکه د هغه تصرف به په هيڅ نوع سره نه مقيد کيږي. همدارنګه د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وينا چي د مأذون غلام د تصرف حکم (يعني د هغه په تصرف سره ثابتېدونکی ملکيت) مالک ته حاصليږي، دا موږ نه تسليموو؛ ځکه په کومو ځايو کي چي مأذون غلام ملکيت ته مجبوره وي لکه د قرض په اداء کولو او نفقه اخيستلو کي چي هغه ملکيت مجبوره دی، نو په هغه ځايو کي هغه د خپل خوښې مطابق تصرف کولای سي، ها! چيري چي هغه له ملکيت څخه مستغني وي يعني ملکيت ته مجبوره نه وي، نو هملته ملکيت د هغه د مالک لپاره ثابتيږي. (احسن الهدايه)

## اذن (اجازت) څنګه ثابتيږي؟

قَالَ: وَإِنْ أَذِنَ لَهُ فِي شَيْءٍ بِعَيْنِهِ فرمايي: او که مالک خپل غلام ته د يو مُتعيّن شي اجازت ورکړي فَلَيْسَ بِمَأْذُونٍ نو هغه مأذون نه دی [يعني په دې سره هغه مأذون نه ګرځي] لِأَنَّهُ اسْتِخْدَامٌ ځکه چي دا خدمت اخيستل دي [نه اجازت ورکول] وَمَعْنَاهُ أَنْ يَأْمُرَهُ بِشِرَاءِ ثَوْبٍ لِلْكِسْوَةِ أَوْ طَعَامٍ رِزْقًا لِأَهْلِهِ او د دې مطلب دا دی چي مالک هغه ته د اغوستلو لپاره د يو کپړې رانيولو يا د خپل اهل د رزق [خوراک] لپاره د غلې رانيولو حکم وکړي. وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَوْ صَارَ مَأْذُونًا او دا حکم ځکه دی چي که هغه مأذون وګرځي يَنْسَدُّ عَلَيْهِ بَابُ الِاسْتِخْدَامِ نو پر مالک به د خدمت اخيستلو دروازه بنده سي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَدِّ إِلَيَّ الْغَلَّةَ كُلَّ شَهْرٍ كَذَا أَوْ قَالَ: أَدِّ إِلَيَّ أَلْفًا وَأَنْتَ حُرٌّ په خلاف د هغه صورت کله چي مالک خپل غلام ته داسي ووايي: چي ما ته هر مياشت دومره اُجرت [کته] راکړه يا ووايي: چي ما ته زر درهمه راکړه نو ته آزاد يې! لِأَنَّهُ طَلَبَ مِنْهُ الْمَالَ ځکه چي [دلته] مالک له غلام څخه د مال مطالبه کړې ده وَلَا يَحْصُلُ إِلَّا بِالْكَسْبِ او له ګټلو [او خوراي کښلو] څخه بغير مال نه حاصليږي أَوْ قَالَ لَهُ: اُقْعُدْ صَبَّاغًا أَوْ قَصَّارًا يا مالک هغه ته داسي ووايي: چي [د کپړو لپاره] يو رنګريز يا دوبي کښېنوه!

لِأَنَّهُ أَذِنَ بِشِرَاءِ مَا لَا بُدَّ مِنْهُ لَهُمَا ځکه چي مالک هغه ته [دلالتاً] د داسي شي د رانيولو اجازت ورکړی دی چي هغه دوی دواړو لپاره ضروري دی وَهُوَنَوْعٌ او دا هم يو نوع ده فَيَصِيْرُ مَأْذُوْنًا فِي الْأَنْوَاعِ نو ځکه دا غلام به په ټولو انواعو کي مأذون گرځي قَالَ: وَإِقْرَارُ الْمَأْذُونِ بِالدُّيُونِ وَالْغُصُوبِ جَائِزٌ وَكَذَا بِالْوَدَائِعِ فرمايي: او د مأذون له طرفه د قرضونو او غصبونو اقرار جائز دي همدارنگه د وديعتونو اقرار هم جائز دی لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مِنْ تَوَابِعِ التِّجَارَةِ ځکه چي اقرار د تجارت له توابعو څخه دی إِذْ لَوْلَمْ يَصِحَّ ځکه که [د مأذون غلام] اقرار صحيح نه سي لَاجْتَنَبَ النَّاسُ مُبَايَعَتَهُ وَمُعَامَلَتَهُ نو خلک به د هغه سره له بيع وشراء کولو او معامله کولو څخه ځان ساتي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ أَوْ لَمْ يَكُنْ او په دې کي هيڅ فرق نسته چي پر هغه قرض باندي وي يا نه وي [په دې شرط] کله چي اقرار د هغه د صحت په حالت کي وي [يعني د روغتيا په زمانه کي يې اقرار کړی وي] فَإِنْ كَانَ فِي مَرَضِهِ او که چيري اقرار د مرض په حالت کي وي يُقَدَّمُ دَيْنُ الصِّحَّةِ نو د صحت قرض به مخکي کول کيږي كَمَا فِي الْحُرِّ لکه څرنګه چي په آزاد کي [همدا ترتيب اختيارول کيږي] بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ بِمَا يَجِبُ مِنَ الْمَالِ لَا بِسَبَبِ التِّجَارَةِ په خلاف د داسي مال د اقرار کوم چي له تجارت څخه بغير په بل سبب سره واجب سوی وي [مثلاً د جنايت کولو يا نکاح کولو په سبب سره] لِأَنَّهُ كَالْمَحْجُورِ فِي حَقِّهِ ځکه چي د داسي مال په حق کي هغه د محجور په څېر دی.

**اللغات**: ﴿استخدام﴾ د استفعال مصدر دی: د خدمت طلب کول، خدمت اخيستل. ﴿كسوة﴾ لباس (داغوستلو جامه). ﴿الغلة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغه څخه يوه معنیٰ ده: اُجرت او کرايه، د غلام گټه. ﴿كسب﴾ گټه، گټل سوی مال. ﴿اقعد﴾ د فتح له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: کښېنول (پر يو دنده کښېنول، پر دنده درول). ﴿ودائع﴾ جمع د وَدِيْعَةٌ ده: په امانت ايښوول سوي شيان او مالونه. ﴿محجور﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی: د تصرف بنديز پر لگول سوی (پابند کړی سوی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مالک خپل غلام ته د يو مُتعيّن کار اجازت ورکړي، مثلاً داسي ورته ووايي چي ورسه! زما لپاره يوه کپړه رانيسه! يا د کور لپاره نفقه او غله رانيسه!، نو د داسي کار

په اجازت او حکم سره غلام مأذون نه ګرځي (يعني په دې سره هغه ته د تجارت او تصرف اجازت نه حاصليږي)؛ ځکه چې عموماً داسي کارونه د استخدام سره متعلق وي (او خلک عموماً دا ډول کارونه په خپل غلام او خادم سره کوي)، نو که مورږ دا هم اجازت وګرځوو، نو د مالک لپاره به د استخدام دروازه بنده سي، حال دا چې د استخدام معامله له اذن څخه مختلف ده. دلته دا خبره ياد ساتل ضروري دي چې که مالک غلام ته صرف د يوه عقد کولو حکم وکړي، مثلاً داسي ورته ووايي "اِشْتَرِ لِيْ ثَوْبًا لِلْكِسْوَةِ" (زما لپاره داغوستلو کپړه رانيسه!) يا "اِشْتَرِ لِيْ طَعَامًا لِلرِّزْقِ" (د خوراک لپاره څه غله رانيسه!)، نو ځرنګه چې په دې صورت کي عقد مکرر نه دی بلکي يو عقد او يو کار دی، نو ځکه دا به استخدام وي، او که چيري عقد مکرر وي مثلاً مالک داسي ووايي "اِشْتَرِ لِيْ ثَوْبًا وَ بِعْهُ" (کپړه رانيسه او هغه بيرته خرڅه کړه!)، نو دا به إذن في التصرف والتجارة وي؛ ځکه چې شراء او تر هغه وروسته بيع دوه مکرر عقدونه دي. (کفايه وبنايه ج: ۱۰، ص: ۱۶۱)

<u>بخلاف ما إذا قال إلخ</u>: که مالک خپل غلام ته ووايي چې ته هره مياشت ما ته دومره پيسې (غله) راکوه!، نو ته آزاد يې!، نو دا اذن او اجازات دی، نه استخدام؛ ځکه چې مالک له غلام څخه د مال مطالبه کړې ده او ښکاره خبره ده چې څوک له تصرف او تجارت څخه بغير مال نه سي ګټلای. همدارنګه که مالک غلام ته ته د دوبي او رنګرېز د راوستلو او درولو حکم وکړي، نو دا هم دلالتاً اجازت دی؛ ځکه د ژوند تېرولو لپاره داسي خلکو ته ضرورت پرېوځي (ځکه پخوا به د مشينانو او پخ رنګه کپړو سهوليات نه وه)، او د دغه کسانو (دوبي او رنګرېز) د کار مکرر کېدلو په وجه عقد هم مکرر کيږي، نو دا ځکه دا صورت به هم پر اذن في التجارة حمل کيږي.

<u>قال وإقرار إلخ</u>: فرمايي که مأذون غلام د قرضونو اقرار وکړي يا د غصب يا د وديعت او امانت اقرار وکړي، نو د هغه له طرفه د دې شيانو اقرار جائز او معتبر دی؛ ځکه چې اقرار کول د تجارت د لوازماتو او لواحقاتو څخه دی او که د اقرار په هکله پر هغه بنديز ولګول سي، نو خلک به د هغه سره کاروبار نه کوي چې په دې سره به د هغه اجازت متاثر سي، نو په دې وجه د هغه اقرار جائز او معتبر دی، برابره د صحت په حالت کي اقرار وکړي يا د مرض په حالت کي. ها! دا ضروري ده چې د حالت مرض اقرار به د صحت له قرضونو څخه مؤخر کيږي يعني د صحت او روغتيا په زمانه کي چې پر هغه کوم قرضونه باندي سوي وي، اول به هغه اداء کول کيږي، بيا به د حالت مرض والا اقرار ته توجه کيږي، لکه ځرنګه چې د آزاد کس په قرض او اقرار کي هم دغه ترتيب اختيارول کيږي. د دې په خلاف که مأذون غلام د داسي کار اقرار وکړي چې په هغه کي له تجارت څخه بغير په بل سبب سره مال واجبيږي مثلاً دا اقرار وکړي چې ما فلانکي جنايت او جرم کړی دی او ما نکاح کړې ده، نو داسي

اقرار في الحاله باطليږي او هغه ته به هيڅ توجه نه کيږي؛ ځکه چې په دغه وجوهاتو سره مال واجبېدل تجارت او د تجارت له توابعو څخه نه دي، حال دا چې د مأذون غلام له طرفه صرف همغه اقرار معتبر دی کوم چې د تجارت يا د تجارت د لوازماتو سره متعلق وي، لهذا کله چې داسي ده، نو په دغه اقرار سره د واجب سوي مال په حق کي به دا غلام محجوره وي او بيا چې هر کله هغه آزاد سي، نو دا مال به ورکوي، في الحاله به هيڅ نه ورکوي.

## د مأذون غلام لپاره کوم کارونه جائز نه دي

قَالَ: وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ فرمايي: او مأذون غلام ته دا اختيار نسته چې نکاح وکړي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ ځکه چې دا تجارت نه دی وَلَا يُزَوِّجُ مَمَالِيكَهُ او نه هغه د خپلو مملوکانو [غلامانو او مينځو] نکاح کولای سي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُزَوِّجُ الْأَمَةَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه د مينځي نکاح کولای سي لِأَنَّهُ تَحْصِيلُ الْمَالِ بِمَنَافِعِهَا ځکه دا د هغې د منافعو په ذريعه مال حاصلول دي فَأَشْبَهَ إِجَارَتَهَا نو دا د هغې د اجارې سره مشابه سوه [يعني لکه هغه چې د بل چا سره اجيره او مزدوره سي] وَلَهُمَا: أَنَّ الْإِذْنَ يَتَضَمَّنُ التِّجَارَةَ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د مالک اجازت تجارت لره شامليږي وَهٰذَا لَيْسَ بِتِجَارَةٍ او [د مينځي نکاح کول] تجارت نه دی وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ تَزْوِيجَ الْعَبْدِ او په همدې وجه هغه د غلام د نکاح کولو ملکيت [اختيار] نه لري وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ الْمَأْذُونُ وَالْمُضَارِبُ وَالشَّرِيكُ شِرْكَةَ عِنَانٍ وَالْأَبُ وَالْوَصِيُّ او پر همدغه اختلاف دي مأذون بچی، مضارب، د شرکت عنان شريک، پلار او وصي قَالَ: وَلَا يُكَاتِبُ فرمايي: او مأذون غلام مکاتبت هم نه سي کولای [يعني خپل مملوک مکاتب نه سي جوړولای] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ ځکه دا هم تجارت نه دي إِذْ هِيَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ ځکه چې مکاتبت مال په مال سره بدلول دي [يعني په عقد کتابت کي د دوو مالونو تر مينځ تبادله کيږي ځکه يو طرف ته بدل کتابت دی او بل طرف ته غلام دی او غلام هم مال دی] وَالْبَدَلُ فِيهِ مُقَابَلٌ بِفَكِّ الْحَجْرِ خو بدل کتابت په دې [عقد کتابت] کي د بنديز ليري کولو په مقابله کي وي فَلَمْ يَكُنْ تِجَارَةً نو ځکه دا به تجارت نه وي إِلَّا أَنْ يُجِيزَهُ الْمَوْلٰى وَلَا دَيْنَ عَلَيْهِ مګر دا چې مالک مأذون غلام ته د عقد کتابت اجازت ورکړي او پر هغه قرض باندي نه وي لِأَنَّ الْمَوْلٰى قَدْ مَلَكَهُ ځکه چې

مالک د عقد کتابت ملکیت لري وَيَصِيرُ الْعَبْدُ نَائِبًا عَنْهُ او غلام د هغه له طرفه نائب ګرځي وَيَرْجِعُ الْحُقُوقُ إِلَى الْمَوْلَى او د عقد حقوق د همدې مالک وطرف ته راجع کيږي لِأَنَّ الْوَكِيلَ فِي الْكِتَابَةِ سَفِيرٌ ځکه چي په عقد کتابت کي وکيل محض استازى [او د مينځ سړى] وي قَالَ: وَلَا يُعْتِقُ عَلَى مَالٍ او مأذون غلام د مال په عوض کي [خپل غلام] نه سي آزادولاى لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْكِتَابَةَ ځکه چي هغه د عقد کتابت [مکاتب جوړولو] ملکيت هم نه لري فَالْإِعْتَاقُ أَوْلَى نو د آزادولو ملکيت خو به په درجه اولىٰ نه لري وَلَا يُقْرِضُ او مأذون غلام چا ته قرض هم نه سي ورکولاى لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ كَالْهِبَةِ ځکه چي قرض ورکول د هبې په څېر محض تبرّع ده [ځکه چا ته چي قرض ورکوي، هغه د قرض په عوض کي ده ته هيڅ شى نه ورکوي، لکه څرنګه چي هبه ده] وَلَا يَهَبُ بِعِوَضٍ وَلَا بِغَيْرِ عِوَضٍ او مأذون غلام نه د عوض په مقابله کي هبه کولاى سي او نه بغير له عوضه وَكَذَا لَا يَتَصَدَّقُ او همدارنګه نه صدقه کولاى سي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ تَبَرُّعٌ بِصَرِيحِهِ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً أَوْ ابْتِدَاءً ځکه چي دا هر يو صراحتاً تبرّع ده په ابتداء او انتهاء دواړو کي [لکه هبه بغير العوض] يا په ابتداء کي [لکه هبه بالعوض، ځکه د عوض په مقابله کي هبه کول هم په ابتداء کي تبرّع وي، بيا وروسته د عوض په اخيستلو سره معاوضه وګرځي] فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْإِذْنِ بِالتِّجَارَةِ نو ځکه دغه تصرفات به د تجارت تر اجازت لاندي نه داخليږي قَالَ: إِلَّا أَنْ يُهْدِيَ الْيَسِيرَ مِنَ الطَّعَامِ أَوْ يُضِيفَ مَنْ يُطْعِمُهُ فرمايي: مګر دا چي معمولي خوراک [او غله] هديه کړي يا د هغه کس مېلمستيا وکړي چي هغه ده ته خوارک ورکړى وي لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ التِّجَارَةِ اِسْتِجْلَابًا لِقُلُوبِ الْمُجَاهِزِينَ ځکه چي دا د تجارت د لوازماتو څخه دى، د کاروباريانو د زړه راکشولو په خاطر بِخِلَافِ الْمَحْجُورِ عَلَيْهِ په خلاف د هغه غلام چي پر هغه [د تصرّف او تجارت] بنديز لګول سوى وي لِأَنَّهُ لَا إِذْنَ لَهُ أَصْلًا ځکه چي هغه لره بالکل اجازت حاصل نه وي فَكَيْفَ يَثْبُتُ مَا هُوَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ نو [د هغه په حق کي] به د اجازت لوازمات څنګه ثابت سي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ الْمَحْجُورَ عَلَيْهِ إِذَا أَعْطَاهُ الْمَوْلَى قُوتَ يَوْمِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دى چي که محجور عليه غلام ته مالک د هغه د يوې ورځي خوړکه ورکړي فَدَعَا بَعْضَ رُفَقَائِهِ عَلَى ذٰلِكَ الطَّعَامِ او هغه خپل بعضي

ملګري پر هغه خورکه را وغواړي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کي څه پروا نسته بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْطَاهُ قُوْتَ شَهْرٍ په خلاف د هغه صورت کله چي مالک د يوې مياشتي خورکه ورکړې وي لِأَنَّهُمْ لَوْ أَكَلُوهُ قَبْلَ الشَّهْرِ ځکه که د غلام ملګري هغه تر يوې مياشتي مخکي وخوري يَتَضَرَّرُ بِهِ الْمَوْلَىٰ نو په دې سره مالک ته ضرر رسيږي قَالُوا: وَلَا بَأْسَ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَتَصَدَّقَ مِنْ مَنْزِلِ زَوْجِهَا بِالشَّيْءِ الْيَسِيرِ كَالرَّغِيفِ وَنَحْوِهِ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: او په دې کي څه پروا نسته چي ښځه د خپل خاوند له کور څخه معمولي شی صدقه کړي لکه ډوډۍ [مړۍ] او داسي نور [لکه مالګه، مساله، پياز وغيرها] لِأَنَّ ذٰلِكَ غَيْرُ مَمْنُوعٍ عَنْهُ فِي الْعَادَةِ ځکه چي په عادت [او عُرف] کي له دې څخه منع نه کيږي [يعني په عامه توګه د معمولي شي له صدقه کولو څخه ممانعت نه کيږي].

**اللغات:** ﴿مماليك﴾ جمع د مَمْلُوكٌ ده: هغه کس چي د بل چا تر ملکيت لاندي وي، د مذکر او مؤنث دواړو لپاره راځي (يعني غلام او مينځه)، ﴿يتضمن﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شاملېدل، ﴿يجيز﴾ د افعال مضارع ده: جائز ګرځول، نافذول، اجازت ورکول، ﴿سفير﴾ د نصر له بابه د صفت مشبه صيغه ده: استازی (پيغام او خبره رسونکی، خبره نقلونکی)، مراد ځني د مينځ سړی (دريمګړی) دی کوم چي د عقد سره څه تعلق نه لري، ﴿اليسير﴾ معمولي، لږ غوندي، ﴿يُضِيف﴾ د افعال مضارع ده، د دغه باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: د بل چا مېلمستيا کول، مېلمه کول، ﴿يُهدِي﴾ د افعال مضارع ده، د دغه باب هم څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: هديه (تحفه) استول، تحفه ورکول، ﴿استجلاب﴾ د استفعال مضارع ده: راکشول، راجلبول، ﴿مجاهزين﴾ د تجارتي قافلې والا خلک او کاروباريان، ﴿قُوْت﴾ د ګزارې خوراک (دومره خوراک چي په هغه سره د انسان ګزاره کيږي)، ﴿رغيف﴾ ډوډۍ (په اصل کي پندې ډوډۍ او ټکی ته ويل کيږي، او نرۍ ډوډۍ ته خُبْز ويل کيږي).

**تشريح:** په دې عبارت کي چي څومره مسائل بيان سوي دي، هغوی ټوله واضح دي چي تشريح ته يې څه ضرورت نسته او له ترجمې څخه ښکاره دي، بس فقط دا ياد ساتل ضروري دي چي کوم شيان د تجارت له قبيلې څخه وي يا په تجارت کي چي کومو کارو ته ضرورت پيښيږي، مأذون غلام هغه کولای سي. لېکن شرط دا دی چي د هغوی په کولو کي د مالک نقصان نه وي، په همدې وجه مأذون غلام له نکاح کولو، له نکاح ورکولو او له اعتاق او مکاتبت څخه منع کړی سوی دی، او د عُرف و رواج مطابق د معمولي هديه او مېلمستيا کولو اجازت ورکول سوی دی.

وَلَهُ أَنْ يَحُطَّ مِنَ الثَّمَنِ بِالْعَيْبِ مِثْلَ مَا يَحُطُّ التُّجَّارُ او مأذون غلام ته دا اختیار سته چي د عیب په وجه دومره ثمن کم کړي څومره چي يې تاجران کموي لِأَنَّهُ مِنْ صَنِيعِهِمْ ځکه چي دا د تاجرانو له کړنو څخه دي وَرُبَّمَا يَكُونُ الْحَطُّ أَنْظَرَلَهُ مِنْ قَبُولِ الْمَعِيبِ ابْتِدَاءً او ځیني وخت ثمن کمول د هغه لپاره ابتداءً د عیبداره شي له قبلولو څخه زيات ګټمن [نفع من] وي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَطَّ مِنْ غَيْرِ عَيْبٍ په خلاف د هغه صورت کله چي مأذون غلام بغير له عيبه ثمن کم کړي لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ بَعْدَ تَمَامِ الْعَقْدِ ځکه چي تر عقد پوره کېدلو وروسته دا [ثمن کمول] محض تبرّع ده فَلَيْسَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ نو ځکه د تاجرانو له کړنو [او طريقو] څخه به نه وي وَلَا كَذٰلِكَ الْمُحَابَاةُ فِي الْابْتِدَاءِ او محابات په ابتداء کي داسي نه دی لِأَنَّهُ قَدْ يَحْتَاجُ إِلَيْهَا ځکه چي مأذون غلام ځيني وخت محابات ته هم مجبوره کیږي [د تاجرانو او کاروباري حضراتو د زړه راکشولو او مائله کولو لپاره] عَلَىٰ مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي موږ دا بيان کړه وَلَهُ أَنْ يُؤَجِّلَ فِي دَيْنٍ وَجَبَ لَهُ او مأذون غلام ته دا اختيار سته چي په داسي قرض کي مهلت ورکړي کوم چي د ده لپاره واجب سوی وي لِأَنَّهُ مِنْ عَادَةِ التِّجَارَةِ ځکه چي دا د تاجرانو له عادت څخه دي.

**اللغات:** ﴿يحط﴾ د نصر مضارع ده: کمول، ساقطول. ﴿صنيع﴾ عمل، کړنه. ﴿أنظر﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات قابلِ مصلحت، زيات ښېګڼي والا (نفع من). ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې تفصيلي تعريف مخکي تېر سو (ديو چا سره په ثمن کي ښه کول، ديو چا د مائله کولو لپاره ثمن کمول يا زياته مبيع ورکول).

**تشريح:** که چيري مأذون غلام يو شی خرڅ کړي بيا مشتري په هغه کي يو عيب ووېني، نو بائع يعني مأذون غلام د هغه شي له ثمن (قيمت) څخه څه پيسې کمولای سي؛ ځکه چي دا د تاجرانو طريقه ده او کله داسي کيږي چي ثمن کمول د عيبداره شي له اخيستلو څخه زيات مفيد وي، په دې توګه چي دوباره هغه شی څوک نه اخلي او هيڅ خريدار (ګراک) يې نه پيدا کيږي ها! له عيب څخه بغير ثمن کمول جائز نه دي؛ ځکه چي دا سر تر پايه تبرّع ده او مأذون غلام د تبرّع اهل نه دی او نه دا د تاجرانو له عادت او عمل څخه دي. همدارنګه که پر مأذون غلام ديو سړي قرض باندي وي او د هغه د اداء کولو وخت پوره سي، بيا مأذون غلام هغه سړي ته مهلت ورکول وغواړي، نو مهلت ورکولای سي؛ ځکه چي دا يو ښه خلصت دی او د تاجرانو عادت دی.

# د مأذون غلام د قرضونو حكم او تفصيل

قَالَ: وَدُيُونُهُ مُتَعَلِّقَةٌ بِرَقَبَتِهِ يُبَاعُ لِلْغُرَمَاءِ فرمايي: او د مأذون غلام قرضونه د هغه د غاړې [ذات] سره متعلق دي [نو] د قرضخواهانو لپاره به هغه خرڅول كيږي إِلَّا أَنْ يَفْدِيَهُ الْمَوْلَىٰ مګر دا چې مالک د هغه فديه وركړي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يُبَاعُ وَيُبَاعُ كَسْبُهُ فِي دَيْنِهِ بِالْإِجْمَاعِ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې بالاتفاق غلام به نه خرڅول كيږي او د هغه ګټه [ګټل سوى مال] به د هغه په قرض كي خرڅول كيږي لَهُمَا: أَنَّ غَرَضَ الْمَوْلَىٰ مِنَ الْإِذْنِ تَحْصِيلُ مَالٍ لَمْ يَكُنْ لَا تَفْوِيتُ مَالٍ قَدْ كَانَ لَهُ د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چې په اجازت وركولو سره د مالک مقصد داسي مال حاصلول وي كوم چې حاصل سوى نه وي، نه د داسي مال ضايع كول كوم چې د مالک سره موجود وي [يعني غلام] وَذٰلِكَ فِي تَعْلِيقِ الدَّيْنِ بِكَسْبِهِ او دا مقصد [حاصلول] د غلام د ګټې سره د قرض په متعلق كولو كي دى [يعني د مالک دا مقصد هغه وخت حاصليږي كله چې قرض د غلام د ګټل سوي مال سره متعلق كړى سي] حَتَّىٰ إِذَا فَضَلَ شَيْءٌ مِنْهُ عَلَى الدَّيْنِ تر دې چې كله تر قرض وركولو وروسته د غلام له ګټې څخه څه حصه پاته سي يَحْصُلُ لَهُ نو هغه مالک ته حاصليږي لَا بِالرَّقَبَةِ نه د غلام د رقبې سره د قرض په متعلق كولو كي [يعني د مالک دا مقصد هغه وخت حاصليږي كله چې قرض د غلام د ګټې متعلق كړى سي، نه د غلام د رقبې سره] بِخِلَافِ دَيْنِ الِاسْتِهْلَاكِ په خلاف د دَين استهلاک لِأَنَّهُ نَوْعُ جِنَايَةٍ ځكه چې دا يو ډول جنايت دى وَاسْتِهْلَاكُ الرَّقَبَةِ بِالْجِنَايَةِ لَا يَتَعَلَّقُ بِالْإِذْنِ او د جنايت په وجه د رقبې هلاكول [تلف كول] د اجازت سره نه متعلق كيږي وَلَنَا: أَنَّ الْوَاجِبَ فِي ذِمَّةِ الْعَبْدِ ظَهَرَ وُجُوبُهُ فِي حَقِّ الْمَوْلَىٰ زموږ دليل دا دى: چې كوم قرض د غلام پر ذمه واجب دى د هغه وجوب د مالک په حق كي [هم] ښكاره سو فَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ اسْتِيفَاءً نو ځكه د اخيستلو [ترلاسه كولو] په اعتبار سره به دا قرض د غلام د رقبې سره متعلق كيږي [يعني د هغه له رقبې څخه به اخيستل كيږي] كَدَيْنِ الِاسْتِهْلَاكِ لكه دَين استهلاک [چې د رقبې سره متعلق كيږي] وَالْجَامِعُ دَفْعُ الضَّرَرِ عَنِ النَّاسِ او جامع علت له خلكو څخه ضرر ليري كول دي وَهٰذَا لِأَنَّ سَبَبَهُ التِّجَارَةُ او دا حكم ځكه دى چې د دغه واجب قرض سبب تجارت دى وَهِيَ دَاخِلَةٌ تَحْتَ الْإِذْنِ او تجارت تر اجازت لاندي داخل دي

وَتَعَلُّقُ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ اسْتِيفَاءً حَامِلٌ عَلَى الْمُعَامَلَةِ او د اخيستلو په اعتبار سره قرض د غلام د رقبې سره متعلق کېدل پر معامله کولو [د خلکو] د را هڅولو لپاره دي [يعني د غلام د رقبې سره قرض ځکه متعلق سوی دی چي خلک د هغه سره معامله کولو ته اماده وي] فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ صَلُحَ غَرَضًا لِلْمَوْلٰى نو په همدې اعتبار سره دا د مالک د مقصد جوړېدلو صلاحيت لري [يعني په همدې طريقه سره هغه د مالک مقصد جوړېدای سي] وَيَنْعَدِمُ الضَّرَرُ فِي حَقِّهِ بِدُخُولِ الْمَبِيعِ فِي مِلْكِهِ او د مالک په ملکيت کي د مبيع په داخلېدلو سره د مالک په حق کي ضرر دفع کيږي وَتَعَلُّقُهُ بِالْكَسْبِ لَا يُنَافِي تَعَلُّقَهُ بِالرَّقَبَةِ او د ګټې سره د قرض متعلق کېدل د رقبې سره د قرض د متعلق کېدلو منافي نه دي فَيَتَعَلَّقُ بِهِمَا نو ځکه قرض به [د غلام] د ګټې او رقبې داواړو سره متعلق کيږي غَيْرَ أَنَّهُ يُبْدَأُ بِالْكَسْبِ فِي الِاسْتِيفَاءِ إِيفَاءً لِحَقِّ الْغُرَمَاءِ وَإِبْقَاءً لِمَقْصُودِ الْمَوْلٰى خو د قرض په اخيستلو [او اداء کولو] کي به شروع [د غلام] له ګټې څخه کيږي، د قرضخواهانو د حق اداء کولو او د مالک د مقصد باقي ساتلو لپاره وَعِنْدَ انْعِدَامِهِ يُسْتَوْفَى مِنَ الرَّقَبَةِ او د ګټې د نشتوالي په صورت کي به له رقبې څخه قرض اخيستل کيږي وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ دُيُونُهُ الْمُرَادُ مِنْهُ دَيْنٌ وَجَبَ بِالتِّجَارَةِ أَوْ بِمَا هُوَ فِي مَعْنَاهَا او په قدوري [متن] کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله له دې قول "وَ دُيُوْنُهٗ" څخه مراد داسي قرض دی کوم چي په تجارت سره واجب سوي وي يا په هغه څه سره کوم چي د تجارت په معنىٰ سره وي [يعني يا په سببِ تجارت سره واجب سوی وي] كَالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَالْإِجَارَةِ وَالِاسْتِئْجَارِ وَضَمَانِ الْمَغْصُوبِ وَالْوَدَائِعِ لکه خرڅول و رانيول، په أجرت ورکول او په أجرت اخيستل، د غصب کړی سوي شي ضمان او وديعتونه وَالْأَمَانَاتِ إِذَا جَحَدَهَا او امانتونه [يعني د امانتونو ضمان هم په سببِ تجارت کي داخل دی، په دې شرط] کله چي مأذون غلام د هغوی انکار کوي وَمَا يَجِبُ مِنَ الْعُقْرِ بِوَطْءِ الْمُشْتَرَاةِ بَعْدَ الِاسْتِحْقَاقِ او هغه عُقر کوم چي د رانيول سوي مينځي تر استحقاق وروسته د وطي کولو په وجه واجب سوی وي لِاسْتِنَادِهِ إِلَى الشِّرَاءِ ځکه چي دا عُقر د شراء [يعني د مينځي د رانيولو] طرف ته منسوب دی فَيَلْتَحِقُ بِهِ نو ځکه د شراء سره به لاحق کيږي.

**اللغات**: ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام ذات. ﴿يفدي﴾ د ضرب مضارع ده: فديه ورکول، يو څوک په مال سره راخلاصول (چي داسي مال ته فديه ويل کيږي)، ﴿تفويت﴾ د تفعيل مصدر دی: فوت کول، ضايع

كول، ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاكول، بربادول (ضايع كول)، ﴿دين الاستهلاك﴾ كه يو سړي د بل چا مال او شی هلاک کړی وي چي د هغه قيمت پر هلاكونكي قرض پاته وي، نو داسي قرض ته "دين الاستهلاك" وايي، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره اخيستل، ترلاسه كول، ﴿ينعدم﴾ د انفعال مضارع ده: نيستي كېدل، ختمېدل، ﴿ودائع﴾ جمع د وَدِيعَةٌ ده: په امانت ايښوول سوي شيان، امانتاً ايښوول سوي مالونه. ﴿أمانات﴾ مخكي موږ ذكر كړه چي امانت له وديعت څخه عام دی، امانة هر ډول امانت شيانو لره شامليږي، مثلاً مالِ مضاربت، د عاريت او بضاعت په توګه اخيستل سوی مال د امانة له قبيلې څخه دي، ﴿عُقر﴾ د وطي جرمانه (تاوان).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه د تصرّف او تجارت كولو په دوران كي مأذون غلام د خلكو مقروضه سي او خلک (قرضخواهان) د هغه د خرڅولو مطالبه وكړي (چي دا غلام دي زموږ په قرضونو كي خرڅ كړل سي)، نو په دې صورت كي زموږ په نېز حكم دا دی چي قاضي به د مالک له رضا څخه بغير هغه خرڅوي او د هغه په ثمن سره به د غرماؤ (قرضخواهانو) قرضونه او حقونه اداء كوي. يعني د هغه قرضونه زموږ په نېز د غلام د ذات او رقبې سره متعلق كيږي، لېكن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز دا قرضونه د هغه د ګټې (ګټل سوي مال) سره متعلق كيږي لهذا د دغو قرضونو په اداء كولو كي به غلام نه خرڅول كيږي بلكي د هغه له ګټل سوي مال څخه به قرضونه اداء كول كيږي.

**دليل:** د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي مالک په دې غرض او مقصد سره دغه غلام ته د تجارت اجازت وركړی دی چي هغه خواري و كاري او مال وګټي، د دې لپاره يې اجازت نه دی چي د مالک موجوده مال يعني غلام ضايع سي؛ ځكه دا معلومه خبره ده چي د غلام په خرڅولو سره د مالک موجوده مال (غلام) ضايع كيږي او د هغه غرض او مقصد فوتيږي، نو په دې وجه موږ پر غلام لازم شُده قرضونه د هغه د ګټې سره متعلق كړي دي.

**زموږ دليل:** دا دی چي غلام د مالک په ملكيت كي دی او كوم مال چي د قرض په توګه پر غلام واجب دي. د هغه وجوب د مالک په حق كي هم ښكاره كيږي او د اخيستلو او ترلاسه كولو (استيفاء) په حواله سره دغه قرض د غلام د رقبې سره متعلق كيږي، لكه مأذون غلام چي كله د يو سړي شی تلف او هلاک كړي، نو د هغه ضمان (تاوان) هم د غلام د رقبې سره متعلق كيږي؛ ځكه چي په داسي كولو سره له هغه سړي (مُتلف عليه) څخه ضرر ليري كيږي، لهذا څرنګه چي له مُتلف عليه څخه د ضرر دفع كولو په خاطر د هلاكولو قرض (دينِ استهلاک) د غلام د رقبې سره متعلق كيږي، نو همداسي به له قرضخواهانو څخه د ضرر دفع كولو په خاطر د تجارت قرضونه هم د غلام د رقبې سره

ترړل کيږي. او بل دا چي د هغه د رقبې سره د قرض په متعلق کولو کي يوه فايده دا ده چي په دې حالت کي به خلګ د دغه غلام سره په دې خيال کاروبار کوي چي که دا غلام موږ ته خپل قرض نه راکوي نو بيا به د ده مالک هغه راکوي (ځکه چي دا غلام د مالک په ملکيت کي دی او زموږ قرض د هغه د ذات او رقبې سره متعلق دی)، او څرنګه چي د دغه غلام رانيول سوی شيان هم د مالکيت په ملکيت کي داخل دي، نو ځکه د مالک په حق کي د قرض په واجبېدلو سره به د مالک ضرر او نقصان هم نه وي او چا ته به د دې اعتراض کولو ګنجايش هم نه وي چي ضرر غرض جوړول صحيح نه دي؛ ځکه چي دلته ضرر معدوم دی.

وتعلقه بالكسب إلخ: فرمايي چي موږ قرض د غلام د رقبې سره متعلق کړی دی او شوافعو د غلام د ګټې سره متعلق کړی دی، په دې دواړو کي هيڅ منافات نسته، بلکي قرض به د دواړو سره متعلق کيږي او اول به د غلام له ګټې څخه قرضونه اداء کول کيږي د دې لپاره چي په يوه غشي دوه ښکاره وسي يعني قرضونه هم اداء سي او د مالک ملکيت (غلام) او د هغه مقصود هم باقي پاته سي.

وقوله فى الكتاب إلخ: د دې حاصل دا دی چي په قدوري (متن) کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله له دې قَول "وَدُيُونُهُ إلخ" څخه داسي قرضونه مراد دي کوم چي په تجارت مثلاً په رانيولو او خرڅولو يا په سبب تجارت سره واجب سوي وي لکه په اجاره (په کرايه) اخيستل او ورکول. همدارنګه ودائع او امانتونه که چيري د مأذون غلام سره موجود وي او مأذون غلام له هغوی څخه انکار کوي، نو د انکار کولو په وجه هغه غاصب ګرځي او د دې غصب په وجه به واجب سوی ضمان په سبب تجارت سره د واجبېدونکي قرض په درجه ګرځي. همدارنګه که مأذون غلام يو مينځه رانيسي، بيا هغه مينځه ديو چا مستحقه وخيږي او تر دې وروسته دا غلام د هغې سره وطي وکړي، نو په دغه وطي سره واجبېدونکی عُقر هم د تجارت قرض ګرځي؛ ځکه چي دا عُقر د شراء (رانيولو) وطرف ته منسوب کيږي او شراء په تجارت کي داخله ده، نو ځکه د دې عُقر مال به هم د تجارت په قرضونو کي داخل وي. او که موږ شراء معدومه ومنو، نو واطي (مأذون غلام) به زناکاره وګرځي او پر هغه به حد واجب سي. لهذا مصلحت او ښېګڼه په همدې کي ده چي دغه عُقر د شراء وطرف ته منسوب کړی سي او واطي له نور مشکل څخه بچ کړی سي. (احسن الهدايه)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَيُقَسَّمُ ثَمَنُهُ بَيْنَهُمْ بِالْحِصَصِ فرمايي: او د دغه غلام ثمن به د قرضخوانو په مينځ کي [د هغو] د حصو مطابق تقسيمول کيږي لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِالرَّقَبَةِ ځکه چي د قرضخواهانو حق [د دغه غلام] د رقبې سره متعلق دی فَصَارَ كَتَعَلُّقِهَا بِالتَّرِكَةِ نو دا داسي سو لکه قرضونه دي چي د ميراث سره

متعلق وي فَإِنْ فَضُلَ شَيْءٌ مِنْ دُيُونِهِ او که چیرې د دې غلام له قرضونو څخه څه قرض پاتې سي طُولِبَ بِهِ بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ نو د هغه مطالبه به تر آزادۍ وروسته ځنې کيږي لِتَقَرُّرِ الدَّيْنِ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې قرض د هغه پر ذمه ثابت سوی دی وَعَدَمِ وَفَاءِ الرَّقَبَةِ بِهِ او د هغه په رقبه سره د دغه قرض اداء کول پوره نه سوه [د قرض اداء کولو لپاره د هغه رقبه کافي نه سوه] وَلَا يُبَاعُ ثَانِيًا او دويم ځل به هغه نه خرڅول کيږي كَيْلَا يَمْتَنِعَ الْبَيْعُ د دې لپاره چې بيع ممتنع نه سي أَوْ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْمُشْتَرِي يا له مشتري څخه د ضرر دفع کولو لپاره وَيَتَعَلَّقُ دَيْنُهُ بِكَسْبِهِ سَوَاءٌ حَصَلَ قَبْلَ لُحُوقِ الدَّيْنِ أَوْ بَعْدَهُ او د هغه قرض د هغه د ګټې سره متعلق کيږي برابره ده دا ګټه له قرض لاحقېدلو [لازمېدلو] څخه مخکې حاصله سوې وي يا تر هغه وروسته وَيَتَعَلَّقُ بِمَا يَقْبَلُ مِنَ الْهِبَةِ همدارنګه هغه چې کومه هبه قبوله کړي دا قرض د هغه سره هم متعلق کيږي لِأَنَّ الْمَوْلَى إِنَّمَا يَخْلُفُهُ فِي الْمِلْكِ بَعْدَ فَرَاغِهِ عَنْ حَاجَةِ الْعَبْدِ ځکه چې مالک په همغه صورت کي د مأذون غلام د ملکيت نائب کيږي کله چې ملکيت د غلام له ضرورت څخه فارغ وي وَلَمْ يَفْرُغْ حال دا چې هغه [تر اوسه] فارغ نه دی وَلَا يَتَعَلَّقُ بِمَا انْتَزَعَهُ الْمَوْلَى مِنْ يَدِهِ قَبْلَ الدَّيْنِ او دا قرض د هغه مال سره نه متعلق کيږي کوم چې له قرض [لازمېدلو] څخه مخکې مالک د غلام له قبضې څخه ايستلی وي لِوُجُودِ شَرْطِ الْخُلُوصِ لَهُ د مالک لپاره د خالص ملکيت د شرط موجودېدلو په وجه وَلَهُ أَنْ يَأْخُذَ غَلَّةَ مِثْلِهِ بَعْدَ الدَّيْنِ او مالک ته دا اختيار هم سته چې تر قرض وروسته د داسې غلام أجرت [مزدوري] له غلام څخه واخلي لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يُمَكَّنْ مِنْهُ ځکه که مالک ته د دې قدرت [اختيار] نه ورکول سي يَحْجُرُ عَلَيْهِ نو هغه به دا غلام محجوره کړي فَلَا يَحْصُلُ الْكَسْبُ نو ګټه به حاصله نه سي وَالزِّيَادَةُ عَلَى غَلَّةِ الْمِثْلِ يَرُدُّهَا عَلَى الْغُرَمَاءِ او د غلام له مثل أجرت څخه چې کوم مقدار زائد وي هغه به مالک قرضخواهانو ته ورکوي لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ فِيهَا ځکه چې په زائد مقدار کي ضرورت نسته وَتَقَدُّمِ حَقِّهِمْ او ا ځکه چې ا د قرضخواهانو حق هم مخکې دی.

**اللغات**: ﴿التَرِكَة﴾ (د راء په کسره سره) او التِرْكَة: مړي چې کوم مالونه پرې ايښي وي هغه ته ''ترکه'' ويل کيږي. ميراث. ﴿فَضُلَ﴾ د کَرُمَ د باب ماضي ده: اضافه کېدل، زياتېدل. ﴿انتزع﴾ د

افتعال ماضي ده: کېښل، ایستل، ﴿خلوص﴾ د کَرُم د باب مصدر دی: خالص کېدل، ﴿غلة﴾ د غَلَّة د لفظ څلور معناوي دي: ① پیداوار، یعني له ځمکي څخه راوتلی فصل او دانې، لکه غنم، وربجي او داسي نور، ② أجرت او کرایه، یعني پر کور، دوکان او داسي نورو چي کومه کرایه اخیستل کیږي، ③ د غلام ګټه، یا په بله وینا د غلام أجرت او مزدوري (محاصل)، یعني غلام چي په خپل محنت او مزدوري سره کوم مال ګټي، ④ هغه کوټه دراهم کوم چي یې بیتُ المال (سرکار) نه قبلوي لېکن تاجران یې قبلوي، دلته دربیمه معنی مراد ده.

**تشريح: صورت د مسئلې**: د مسئلې دا دی چي د مذکوره خرڅ کړی سوي غلام ثمن (قیمت) به د قرضخواهانو په مینځ کي د هغوی د حصو مطابق تقسیمول کیږي او څومره چي د چا قرض وي، د هغه په اندازه به له دغه ثمن څخه حصه ورکول کیږي (نو لږ قرض والا ته به کمه حصه ورکول کیږي او ډېر قرض والا ته به زیاته حصه ورکول کیږي)، او دغه ثمن که د ټوله قرض لپاره کافي نه سي، بلکي قرض څه پاته سي، نو ما بقي قرض به د غلام تر آزادېدلو وروسته له هغه څخه اخیستل کیږي او داسي به نه کیږي چي د ما بقي قرض لپاره غلام دوباره خرڅ کړی سي: ځکه په دوباره خرڅولو کي خو اولاً د مشتري ضرر دی چي د هغه نه رضا او خوښی څخه بغیر به د هغه مملوک غلام خرڅ کړی سي او بل دا چي که رانیونکی سړی (مشتري) په دې پوه سي چه دا غلام به دوباره زما په قبضه کي خرڅول کیږي، نو هغه به دا غلام بالکل به رانیسي او په دې توګه به د غلام خرڅول (بیع) ممتنع او مشکل سي.

ويتعلق دينه بكسبه إلخ: د دې حاصل دا دی چي د مأذون غلام قرضونه د هغه د ګټي (ګټل سوي مال) سره متعلق کیږي، برابره ده ګټه له قرضونو څخه مخکي حاصله کړی سوي وي او که وروسته، همدارنګه مأذون غلام چي کوم شی په هبه او هدیه کي قبول کړی وي، د هغه سره هم قرض متعلق کیږي؛ ځکه د موهوب شي په ملکیت کي چي مالک د هغه نائب کیږي دا په هغه وخت کي نائب کیږي کله چي هغه د غلام له ضرورت څخه فارغ وي، حال دا چي هغه اوس هم د غلام له ضرورت څخه فارغ نه دی؛ ځکه چي تر اوسه هغه مقروض دی، نو ځکه مالک به د هغه نائب کیږي هم نه. حاصل دا چي هر هغه ګټه (ګټل سوی مال) کوم چي تر اوسه د غلام په قبضه کي وي او د هغه له ضرورت څخه فارغ نه وي. د هغه سره قرض متعلق کیږي، خو د هغه مال سره قرض نه متعلق کیږي، کوم چي له قرض څخه مخکي مالک له غلام څخه اخیستی وي، ځکه چي په هغه مال کي د مالک لپاره د خالص ملکیت کېدلو شرط موجود دی (ځکه په کوم وخت کي چي مالک دا مال اخیستی دی، په هغه وخت کي د غلام ذمه فارغه وه او مالک د دغه مال مستحق وو).

وله أن يأخذ غلة إلخ: د دې حاصل دا دی چي د غلام تر قرض وروسته (يعني پر غلام تر قرض لازمېدلو وروسته) مالک ته دا اختيار سته چي د داسي غلام چي څومره أجرت او محاصل وي، هغه څني واخلي؛ ځکه که مالک ته دا اختيار نه ورکول سي، نو هغه به غلام محجوره کړي او غلام به هيڅ ګټه حاصله نه کړي او قرضونه به نا اداء پاته سي. بيا چي د هغه له أجرت څخه کوم مقدار زائد سي، هغه به قرضخواهانو ته واپس کوي؛ ځکه چي د زائد مقدار په هکله هيڅ ضرورت نسته او د قرضخواهانو حق مخکي دی. او دا خبره تاسو په ياد لرئ! چي له مأذون مقروضه غلام څخه د هغه أجرت او محاصل اخيستل استحساناً جائز دي، قياساً جائز نه دي؛ د قياس دليل دا دی چي اول خو قرضخواهان د مقروضه غلام د مال مستحقين دي او د دوی حق له مالک څخه مخکي دی؛ ځکه مالک په اجازت ورکولو سره خپل حق مؤخر کړی دی. (بنايه، كفايه)

## مأذون غلام د مالک په حجر (اجازت ختمولو) سره کله محجوره کيږي؟

قَالَ: فَإِنْ حَجَرَ عَلَيْهِ فرمايي: او که مالک مأذون غلام محجوره کړي لَمْ يَنْحَجِرْ حَتَّى يَظْهَرَ حَجْرُهُ بَيْنَ أَهْلِ سُوقِهِ نو هغه نه محجوره کيږي تر دې چي د هغه حجر د هغه د بازار د خلکو په مينځ کي ښکاره [مشهوره] سي لِأَنَّهُ لَوِ انْحَجَرَ ځکه که چيري [د حجر له ښکاره کېدلو څخه مخکي] هغه محجوره سي لَتَضَرَّرَ النَّاسُ بِهِ نو په دې سره به خلکو ته ضرر ورسيږي لِتَأَخُّرِ حَقِّهِمْ إِلَى مَا بَعْدَ الْعِتْقِ ځکه د دوی حق به [د غلام] تر آزادۍ وروسته وخت پوري مؤخر سي لِمَا لَمْ يَتَعَلَّقْ بِرَقَبَتِهِ وَكَسْبِهِ ځکه چي د دوی حق د هغه د رقبې [ذات] او د هغه د ګټي سره متعلق پاته نه سو [يعني که د نا ښکاره او نا مشهوره حجر په وجه هغه محجوره وګرځي، نو قرض به د هغه د رقبې او د هغه د ګټي سره متعلق سي او د خلکو (قرضخواهان) حق به د هغه تر آزادۍ وروسته والا حالت پوري وځنډيږي چي په دې سره به هغو ته ضرر ورسيږي] وَقَدْ بَايَعُوهُ عَلَى رَجَاءِ ذٰلِكَ حال دا چي خلکو په همدې اُميد د هغه سره معامله کړې ده [چي د دوی حق د هغه د رقبې سره متعلق دی] وَيُشْتَرَطُ عِلْمُ أَكْثَرِ أَهْلِ سُوقِهِ او [د حجر د صحت لپاره] د زياتره بازار والا وو خبرېدل شرط دي حَتَّى لَوْ حُجِرَ عَلَيْهِ فِي السُّوقِ وَلَيْسَ فِيهِ إِلَّا رَجُلٌ أَوْ رَجُلَانِ تر دې که هغه په بازار کي محجوره کړی سي او هلته صرف يو يا دوه کسان وي لَمْ يَنْحَجِرْ نو هغه نه محجوره کيږي وَلَوْ بَايَعُوهُ او [تر دغه ډول حجر وروسته] که خلک د هغه سره معامله وکړي جَازَ نو جائز دي وَإِنْ بَايَعَهُ الَّذِي عَلِمَ بِحَجْرِهِ که څه هم هغه کس معامله ور سره وکړي کوم چي د ده په محجوره کېدلو خبر وي وَلَوْ حُجِرَ عَلَيْهِ فِي بَيْتِهِ

بِمَحْضَرٍ مِنْ أَكْثَرِ أَهْلِ سُوقِهِ او که چیري د زیاتره بازار والا وو په موجودیت کي مأذون غلام په خپل کور کي محجوره کړی سي يَنْحَجِرُ نو هغه محجوره کیږي وَالْمُعْتَبَرُ شُيُوعُ الْحَجْرِ وَاشْتِهَارُهُ او معتبر د محجوره کولو خپرېدل او مشهوره کېدل دي فَيُقَامُ ذٰلِكَ مَقَامَ الظُّهُورِ عِنْدَ الْكُلِّ نو دا [د حجر خپرېدل او مشهوره کېدل] به د ټولو خلکو په نیز [د حجر] د ښکاره کېدلو قائم مقام کیږي كَمَا فِي تَبْلِيغِ الرِّسَالَةِ مِنَ الرُّسُلِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ لکه څرنګه چي د انبیاؤ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د رسالت په تبلیغ کي کیږي [یعني لکه څنګه چي د انبیاؤ په تبلیغ کي شیوع (خپرېدل) او اشتهار معتبر دی، تر دې که یو ذمي کافر په دارُ الاسلام کي اسلام راوړي لیکن هغه د لمانځه په وجوب خبر نه وي تر دې چي څو زمانه تېره سي، نو پر هغه د ټولو قضا شُده لمونځو قضاء لازمیږي، ځکه چي پر مسلمانانو د لمانځه د وجوب حکم او خطاب په دارُ الاسلام کي مشهوره دی] وَيَبْقَى الْعَبْدُ مَأْذُونًا إِلَى أَنْ يَعْلَمَ بِالْحَجْرِ او مأذون غلام په حجر د خبرېدلو تر وخته پوري مأذون پاتیږي كَالْوَكِيلِ إِلَى أَنْ يَعْلَمَ بِالْعَزْلِ لکه وکیل چي په عزل د خبرېدلو تر وخته وکیل پاتیږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ يَتَضَرَّرُ بِهِ او دا حکم ځکه دی چي په دې سره [یعني له خبرېدلو څخه مخکي په محجوره کېدلو سره] غلام ته ضرر رسیږي حَيْثُ يَلْزَمُهُ قَضَاءُ الدَّيْنِ مِنْ خَالِصِ مَالِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ ځکه چي تر آزادۍ وروسته پر هغه له خالص خپل مال څخه د قرض اداء کول لازمیږي وَمَا رَضِيَ بِهِ حال دا چي مأذون غلام په دې نه دی راضي سوی وَإِنَّمَا يُشْتَرَطُ الشُّيُوعُ فِي الْحَجْرِ إِذَا كَانَ الْإِذْنُ شَائِعًا او په حجر کي شیوع [خپرېدل] هغه وخت شرط دي کله چي [د مأذون غلام] اجازت هم خپور [او مشهوره] وي أَمَّا إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ إِلَّا الْعَبْدُ لیکن که په اجازت صرف غلام خبر وي ثُمَّ حُجِرَ عَلَيْهِ بِعِلْمٍ مِنْهُ بیا غلام په خبر سره محجوره کړی سي [یعني په محجوره کېدلو خبر کړی سي] يَنْحَجِرُ نو هغه محجوره کیږي لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ فِيهِ ځکه چي په دې کي [د خلکو او غلام] هیڅ ضرر نسته قَالَ: وَلَوْ مَاتَ الْمَوْلَىٰ أَوْ جُنَّ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا فرمایي: او که چیري مالک مړ سي یا لېونی سي یا د مرتد والي په حالت کي دارُ الحرب ته ولاړ سي صَارَ الْمَأْذُونُ مَحْجُورًا عَلَيْهِ نو مأذون غلام محجوره ګرځي لِأَنَّ الْإِذْنَ غَيْرُ لَازِمٍ ځکه چي اجازت لازم نه دی وَمَا لَا يَكُونُ لَازِمًا مِنَ التَّصَرُّفِ يُعْطَى لِدَوَامِهِ حُكْمُ الِابْتِدَاءِ او کوم تصرف چي لازم نه وي، د هغه دوام [بقاء] ته د ابتداء حکم ورکول کیږي هٰذَا

هُوَالْأَصْلُ همدا قاعده ده فَلَا بُدَّ مِنْ قِيَامِ أَهْلِيَّةِ الْإِذْنِ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ نو ځکه د بقاء [دوام] په حالت کي د اذن اهليت [يعني د اجازت ورکولو اهل کېدل] ضروري دي وَهِيَ تَنْعَدِمُ بِالْمَوْتِ وَالْجُنُونِ حال دا چي په مرګ او لېونتوب سره اهليت ختميږي كَذَا بِاللُّحُوقِ او همدارنګه دارُ الحرب ته په تللو سره [هم اهليت ختميږي] لِأَنَّهُ مَوْتٌ حُكْمًا ځکه لحوق [يعني دارُ الحرب تلل او د کافرانو سره لاحق کېدل] د حکم په اعتبار سره مرګ دی حَتَّى يُقَسَّمَ مَالُهُ بَيْنَ وَرَثَتِهِ همدا وجه ده چي [د لحوق په وجه] د هغه مال د هغه د وارثانو په مينځ کي تقسيمول کيږي.

**اللغات:** ﴿حجر﴾ د نصر مضارع ده: محجوره کول (د تصرّف او کاروبار بنديز پر لګول، اجازت ختمول)، ﴿بايعوه﴾ د مفاعلې له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده چي د هغه يوه معنیٰ ده: معامله کول، بيع وشراء کول، ﴿عزل﴾ د ضرب مصدر دی: معزوله کول، برطرفه کول (له يو منصبه ليري کول)، ﴿أهلية﴾ اهل کېدل، صلاحيت، ﴿ورثة﴾ جمع د وَارِثٌ ده: وارثان، ميراث خواره، ﴿لحوق﴾ د سمع د باب مصدر دی: لاحق کېدل، ور سره يو ځای کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د غلام اجازت شايع او مشهوره وي او د بازار خلک په هغه خبر وي (چي مالک د کاروبار اجازت ورکړی دی)، بيا مالک هغه محجوره کول وغواړي، نو تر څو چي د اجازت په څېر د هغه حجر شايع او مشهوره نه سي او د بازار خلک په هغه خبر نه سي، تر هغه وخته دغه مأذون غلام نه محجوره کيږي او د هغه سره د خلکو معامله او کاروبار صحيح کيږي؛ ځکه چي خلک په همدې اُميد د هغه سره معامله او کاروبار کوي چي هغه مأذون دی او زموږ حق لو قرض ټوله د هغه د رقبې (ذات) سره متعلق دي، حال دا چي که نا مشهوره حجر معتبر ومنل سي، نو بيا به د خلکو حقوق او قرضونه د هغه تر آزادۍ وروسته والا حالت سره متعلق سي نو په دې به نه معامله کونکي خلک راضي وي او نه به دا غلام راضي وي؛ ځکه چي په دې د راضي کېدلو مطلب دا دی چي د معامله کونکو خلکو حق د غلام تر آزادۍ پوري مؤخر کول او د غلام له خپل ذاتي مال څخه د هغو حق اداء کول. او ښکاره خبره ده چي نه معامله کونکي دې ته تيار دي او نه غلام، نو ځکه ووېل سوه چي که هغه ته ورکول سوی اجازت شايع او مشهوره وي، نو د هغه د ممانعت او بنديز مشهور کېدل هم ضروري دي، د دې لپاره چي خلک د هغه سره معامله پرېږدي او هغه په خپله هم احتياط کوي.

**قال ولومات المولی إلخ:** مسئله دا ده که مالک مړ سي يا په دائمي جنون سره مبتلا سي يا هغه مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي، نو په دغه وجوهاتو سره غلام ته حاصل سوی اذن (اجازت) ختميږي او

هغه محجوره گرځي؛ ځکه چي اذن يو غيرِ لازمي تصرف دی او د غيرِ لازمي تصرفاتو په هکله قاعده دا ده چي د هغوی بقاء لره د ابتداء حکم حاصل وي، لهذا څرنګه چي په مالک (مولیٰ) کي ابتداءً د اذان اهليت ضروري دی چي هغه به د اجازت ورکولو اهل وي، همداسي بقاءً (په ورستني اوقاتو کي) هم دا اهليت ضروري دی، حال دا چي په دغه وجوهات ثلاثه وو کي د هر يوه په موجودېدلو سره اهليت ختميږي او کله چي په مالک کي دا اجازت اهليت ختم سو، نو له غلام څخه به دغه اهليت په درجه اولیٰ سلب کيږي او هغه به محجوره گرځي.

## د مأذون غلام د تښتېدلو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا أَبِقَ الْعَبْدُ فرمايي: او کله چي [مأذون] غلام وتښتيږي صَارَ مَحْجُورًا عَلَيْهِ نو هغه محجوره گرځي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَبْقَى مَأْذُونًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه مأذون پاتيږي لِأَنَّ الْإِبَاقَ لَا يُنَافِي ابْتِدَاءَ الْإِذْنِ ځکه چي تښتېدل د اذن د ابتداء [ابتدائي اجازت] منافي نه دي فَكَذَا لَا يُنَافِي الْبَقَاءَ نو ځکه د اذن د بقاء به هم منافي نه وي وَصَارَ كَالْغَصْبِ او دا د غصب په څېر سو وَلَنَا: أَنَّ الْإِبَاقَ حَجْرٌ دَلَالَةً او زموږ دليل دا دی: چي تښتېدل دلالتاً حجر دی لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَرْضَى بِكَوْنِهِ مَأْذُونًا عَلَى وَجْهٍ يَتَمَكَّنُ مِنْ تَقْضِيَةِ دَيْنِهِ بِكَسْبِهِ ځکه مالک خو صرف په دې توګه د غلام په مأذون کېدلو راضي دی چي هغه به په خپل ګټه سره د قرض پر اداء کولو قدرت لري بِخِلَافِ ابْتِدَاءِ الْإِذْنِ په خلاف د اذان د ابتداً لِأَنَّ الدَّلَالَةَ لَا مُعْتَبَرَ بِهَا عِنْدَ وُجُودِ التَّصْرِيحِ بِخِلَافِهَا ځکه چي دلالت لره هيڅ اعتبار نسته کله چي د هغه په خلاف صراحت موجود وي وَبِخِلَافِ الْغَصْبِ او په خلاف د غصب لِأَنَّ الِانْتِزَاعَ مِنْ يَدِ الْغَاصِبِ مُتَيَسِّرٌ ځکه چي د غاصب له قبضې څخه ايستل آسانه دي قَالَ: وَإِذَا وَلَدَتِ الْمَأْذُونُ لَهَا مِنْ مَوْلَاهَا فرمايي: که چيري ماذونه مينځه له خپل مالک څخه بچی وزېږوي فَذَلِكَ حَجْرٌ عَلَيْهَا نو دا پر هغې حجر [بنديز لګول] دی [يعني په دې سره هغه محجوره ګرځي] خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله وَهُوَ يَعْتَبِرُ الْبَقَاءَ بِالِابْتِدَاءِ هغه د بقاء حالت د ابتداء پر حالت قياسوي وَلَنَا: أَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يُحَصِّنُهَا بَعْدَ الْوِلَادَةِ زموږ دليل دا دی: چي ښکاره همدا ده چي تر ولادت وروسته به مالک د دغه مينځي حفاظت کوي ايعني غالب ګومان همدا دی چي تر بچي زېږولو وروسته

مالک دا مينځه د نورو خلکو له اختلاط او تعلقاتو څخه محفوظه او محجوره ساتي] فَيَكُونُ دَلَالَةَ الْحَجْرِ عَادَةً نو ځکه دا به د عادت [او عُرف] په اعتبار سره د حجر دليل وي [په بله وينا: نو ځکه استيلاد به عادتاً د حجر دليل وي] بِخِلَافِ الِابْتِدَاءِ په خلاف د ابتداء لِأَنَّ الصَّرِيحَ قَاضٍ عَلَى الدَّلَالَةِ ځکه چي صراحت پر دلالت حاکم [او غالب] دی وَيَضْمَنُ الْمَوْلَى قِيمَتَهَا إِنْ رَكِبَتْهَا دُيُونٌ او مالک د هغې د قيمت ضامن کيږي که چيري پر هغې قرضونه باندي سي لِإِتْلَافِهِ مَحَلًّا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْغُرَمَاءِ ځکه چي مالک داسي محل ضايع کړی چي د هغه سره د قرضخواهانو حق متعلق وو إِذْ بِهِ يَمْتَنِعُ الْبَيْعُ ځکه د استيلاد په وجه [د مينځي] بيع ممتنع کيږي [يعني تر اُمِ ولد کېدلو وروسته مينځه نه سي خرڅول کېدای] وَبِهِ يُقْضَى حَقُّهُمْ حال دا چي په همدې بيع [د مينځي په خرڅولو] سره د قرضخواهانو حق اداء کيږي

قَالَ: وَإِذَا اسْتَدَانَتِ الْأَمَةُ الْمَأْذُونُ لَهَا أَكْثَرَ مِنْ قِيمَتِهَا فرمايي: او که چيري مأذونه مينځه د خپل ځان له قيمت څخه زيات قرضونه واخلي فَدَبَّرَهَا الْمَوْلَى بيا مالک هغه مُدبّره جوړه کړي فَهِيَ مَأْذُونٌ لَهَا عَلَى حَالِهَا نو هغه د خپل مخکني حالت مطابق مأذونه پاتيږي لِانْعِدَامِ دَلَالَةِ الْحَجْرِ ځکه چي د حجر دليل معدوم دی إِذِ الْعَادَةُ مَا جَرَتْ بِتَحْصِينِ الْمُدَبَّرَةِ ځکه د مُدبّره مينځي د حفاظت کولو [محفوظه ساتلو] عادت جاري نه دی وَلَا مُنَافَاةَ بَيْنَ حُكْمَيْهِمَا أَيْضًا او د اذن او تدبير [مأذونه او مُدبره] دواړو په حکم کي هيڅ منافات هم نسته وَالْمَوْلَى ضَامِنٌ لِقِيمَتِهَا [لېکن] مالک د هغې د قيمت ضامن دی لِمَا قَرَّرْنَاهُ فِي أُمِّ الْوَلَدِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [څه مخکي] د اُم ولد په هکله بيان کړی.

**اللغات:** ﴿أبـق﴾ د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده، له سمع، ضرب او نصر ټولو بابونو څخه راځي، مصدر يې إِبَاقٌ دی: تښتېدل (د غلام)، ﴿يتمکّن﴾ د تفعّل مضارع ده: قادر کېدل (قدرت لرل)، ﴿متيسّر﴾ د تفعّل اسم مفعول دی: آسانه، ﴿يُحصّن﴾ د تفعيل مضارع ده، حَصَّنَ يُحَصِّنُ تَحْصِينًا، اُردو شارحينو د دغه لفظ معنیٰ دا ليکلې ده: حفاظت کول، محفوظه کول (خوندي کول)، ﴿استدانت﴾ د استفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: قرض اخيستل (پور اخيستل، پور کول)، ﴿دبّـر﴾ د تفعيل ماضي ده: مُدبر جوړول (خپل غلام يا مينځي ته ويل چي زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!).

**تشريح** : په دغه عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که مأذون غلام له مالک څخه وتښتيږي، نو زموږ په نېز هغه محجوره کيږي ، لېکن د شوافعو په نېز نه محجور کيږي؛ د هغو دليل قياس دی، يعني څرنګه چي ابتداءً اباق (تښتېدل) د اجازت منافي نه دي چي مالک ته خپل تښتېدلی غلام مأذون ګرځول صحيح دي، همداسي بقاءً هم اباق د اجازت منافي نه دی؛ ځکه چي بقاء له ابتداء څخه اسهل ده. د دې مثال داسي دی لکه مغصوب غلام ته چي د مالک اجازت ورکول صحيح دي او که چيري دغه مغصوب مأذون غلام يو شی غصب کړي، نو بيا هم اجازت نه باطليږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي اباق دلالتاً حجر او بنديز لګول دي؛ ځکه چي مالک په همدې مقصد سره غلام ته اجازت ورکړی دی چي که پر هغه څه قرضونه لازم سي، نو هغه به د ده له ګټې څخه اداء کول کيږي، لېکن د اباق په وجه د مالک دا مقصد فوت سو، نو ځکه اجازت به هم ختميږي. د دې په خلاف که مالک تښتېدلي غلام ته ابتداءً اجازت ورکړي، نو دا جائز دي؛ ځکه کله چي د دلالت په خلاف صراحت موجود وي، نو بيا د دلالت اعتبار نه کيږي.

او پر غاصب قياس کول هم صحيح نه دي؛ ځکه چي د غاصب له قبضې څخه ايستل آسانه دي، تر دې چي که ممکن نه وي نو اجازت باقي نه پاتيږي.

**فايده** : که چيري مأذون تښتېدلی غلام بيرته راسي، نو آيا مخکنی اجازت (اجازتِ سابقه) واپس راګرځي، که نه؟ صحيح دا ده چي اجازت عود نه کوي.

(۲)... که چيري مأذونه مينځه له خپل مالک څخه بچی وزېږوي، نو د هغې اذن هم ختميږي، په مسئله کي د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی او دليل يې قياس دی چي څرنګه ابتداءً اُم ولد مينځې ته د مالک اجازت ورکول صحيح دي، همداسي بقاءً اجازت باقي ساتل هم صحيح دي، نو ځکه په استيلاد سره به اجازت نه باطليږي.

زموږ دليل دا دی چي عموماً داسي کيږي چي تر ولادت وروسته مالک د خپل اُم ولد زياته ځارنه کوي او هغه له بهر وتلو او د خلکو له اختلاط څخه بالکل منع کوي، نو ځکه استيلاد به دلالتاً حجر وي. ها! کله چي د دلالت په مقابله کي صراحت موجود وي، نو د دلالت اعتبار به نه کيږي.

ويضمن المولى إلخ: د دې حاصل دا دی چي که دا مينځه مقروضه وي، نو پر مالک د هغې د قيمت ضمان (تاوان) واجبيږي او له همدغه ضمان څخه به د قرضخواهانو قرضونه اداء کول کيږي؛ ځکه چي مالک په اُم ولد جوړولو سره په دغه مينځه کي عيب او نقص پيدا کړی دی او د هغې بيع ممتنع کړې ده. حال دا چي د هغې د قرضونو د اداء کولو يوازينی لاره همدا وه چي هغه خرڅه کړی سي، لهذا کله

چي مالک دا لاره بنده کړه، نو ځکه اوس به پر مالک د هغې د قیمت ضمان واجب او ضروري وي چي په هغه سره قرضونه اداء کړل سي.

(۳)... که پر مأذونه مینځې د هغې له قیمت څخه زیات قرضونه باندي سي، بیا مالک هغه مُدبّره جوړه کړي، نو د مُدبّره کېدو باوجود دا مینځه مأذونه پاتیږي او د هغې اجازت نه ختمیږي؛ ځکه چي په تدبیر او اذن کي منافات نسته، ځکه د مالک له طرفه پر مُدبّره مینځې بندیز او پابندي نه لګول کیږي، بلکي هغې ته د تجارت او تصرّف اجازت حاصل وي، نو ځکه په تدبیر سره به اجازت نه ختمیږي، خو مالک د هغې د قیمت ضامن کیږي؛ ځکه چي د استیلاد په څېر تدبیر هم په مینځه کي نُقص او عیب دی.

## د محجوره غلام د اقرار حکم او تفصیل

قَالَ: فَإِذَا حَجَرَ عَلَى الْمَأْذُونِ لَهُ فرمایي: او کله چي مالک پر مأذون غلام بندیز ولګوي [محجوره یې کړي] فَإِقْرَارُهُ جَائِزٌ فِيمَا فِي يَدِهِ مِنَ الْمَالِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د هغه اقرار جائز دی په هغه مال کي کوم چي د ده په قبضه کي وي وَمَعْنَاهُ أَنْ يُقِرَّ بِمَا فِي يَدِهِ أَنَّهُ أَمَانَةٌ لِغَيْرِهِ أَوْ غَصْبٌ مِنْهُ او د دې مطلب دا دی چي د هغه په قبضه کي چي کوم مال وي د هغه په هکله دا اقرار وکړي چي دا د بل چا امانت دی یا له هغه څخه غصب کړی سوی دی أَوْ يُقِرَّ بِدَيْنٍ عَلَيْهِ یا هغه پر خپل ځان د قرض اقرار وکړي فَيُقْضَى مِمَّا فِي يَدِهِ نو د هغه په قبضه کي له موجود مال څخه به دا قرض اداء کول کیږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ●: لَا يَجُوزُ إِقْرَارُهُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د هغه اقرار جائز نه دی لَهُمَا: أَنَّ الْمُصَحِّحَ لِإِقْرَارِهِ إِنْ كَانَ الْإِذْنَ د صاحبینو دلیل دا دی: چي د دغه محجوره غلام دا اقرار صحیح ګرځونکی شی که چیري [د مالک] اجازت وي فَقَدْ زَالَ بِالْحَجْرِ نو دغه اجازت خو د حجر [محجوره کولو] په وجه زائل سو وَإِنْ كَانَ الْيَدَ او که چیري [د غلام] قبضه وي فَالْحَجْرُ أَبْطَلَهَا نو حجر دا قبضه هم باطله کړه لِأَنَّ يَدَ الْمَحْجُورِ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ ځکه چي د محجور قبضه معتبره نه ده وَصَارَ كَمَا إِذَا أَخَذَ الْمَوْلَى كَسْبَهُ مِنْ يَدِهِ قَبْلَ إِقْرَارِهِ أَوْ ثَبَتَ حَجْرُهُ بِالْبَيْعِ مِنْ غَيْرِهِ او دا داسي

---

● القول الراجح: قول الإمام، لأن قوله استحسان والاستحسان مقدم على القياس، وكذا ذكر في رد المحتار (ج:٥، ص:١١٧)، ومجمع الأنهر (ج:٤، ص:٧٠). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٥٥]

سوه لکه د دغه محجور غلام له اقرار څخه مخکې چې مالک د هغه له قبضې څخه د هغه ګټه واخلي يا [لکه] پر بل چا د خرڅولو په وجه چې د هغه حجر ثابت سوی وي وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ فِي حَقِّ الرَّقَبَةِ بَعْدَ الْحَجْرِ او په همدې وجه تر حجر وروسته د رقبې په حق کې د هغه اقرار نه صحيح کيږي وَلَهُ: أَنَّ الْمُصَحِّحَ هُوَ الْيَدُ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د اقرار صحيح ګرځونکی شی قبضه ده وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْمَأْذُونِ فِيمَا أَخَذَهُ الْمَوْلَى مِنْ يَدِهِ همدا وجه ده مالک چې د مأذون غلام له قبضې څخه کوم شی اخيستی وي د هغه په هکله د مأذون اقرار صحيح نه دی وَالْيَدُ بَاقِيَةٌ حَقِيقَةً او [تر حجر وروسته هم] قبضه حقيقتاً باقي ده وَشَرْطُ بُطْلَانِهَا بِالْحَجْرِ حُكْمًا فَرَاغُهَا عَنْ حَاجَتِهِ او د حجر په وجه حکماً د قبضې د باطلېدلو شرط له ضرورت څخه د هغه فارغېدل دي [يعني په حجر سره حکماً د دغه قبضې د باطلېدلو لپاره دا شرط چې دا قبضه به د غلام له ضرورت څخه فارغه وي] وَإِقْرَارُهُ دَلِيلُ تَحَقُّقِهَا او د هغه اقرار کول د ضرورت ثابتېدلو دليل دی [يعني د غلام اقرار کول د دې خبرې دليل دی چې قبضه (قبضه کړی سوي مال) ته د غلام ضرورت سته] بِخِلَافِ مَا إِذَا انْتَزَعَهُ الْمَوْلَى مِنْ يَدِهِ قَبْلَ الْإِقْرَارِ په خلاف د هغه صورت کله چې له اقرار څخه مخکې مالک د هغه له قبضې څخه مال وباسي لِأَنَّ يَدَ الْمَوْلَى ثَابِتَةٌ حَقِيقَةً وَحُكْمًا ځکه چې [په دې صورت کې] د مالک قبضه حقيقتاً او حکماً دواړه ډوله ثابته ده فَلَا تَبْطُلُ بِإِقْرَارِهِ نو ځکه د غلام په اقرار سره به دا قبضه نه باطليږي وَكَذَا مِلْكُهُ ثَابِتٌ فِي رَقَبَتِهِ او همدارنګه د غلام په رقبه [ذات] کې د مالک ملکيت ثابت دی فَلَا يَبْطُلُ بِإِقْرَارِهِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ نو ځکه د مالک له رضا څخه بغير به د غلام په اقرار سره دا ملکيت نه باطليږي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چې مالک هغه پر بل چا خرڅ کړي لِأَنَّ الْعَبْدَ قَدْ تَبَدَّلَ بِتَبَدُّلِ الْمِلْكِ ځکه چې د ملکيت بدلېدلو په وجه غلام هم بدل سو عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې معلومه سوې ده [په دې سره د حضرت بريره رضی الله عنها و حديث ته اشاره سوې ده] فَلَا يَبْقَى مَا ثَبَتَ بِحُكْمِ الْمِلْكِ لهذا کوم شی چې د ملکيت په حکم سره ثابت وي هغه به [تر ملکيت بدلېدلو وروسته] باقي نه پاتيږي وَلِهٰذَا لَمْ يَكُنْ خَصْمًا فِيمَا بَاشَرَهُ قَبْلَ الْبَيْعِ او په همدې وجه غلام په هغه تصرف کې خصم [مدعی عليه] نه ګرځي کوم چې يې له بيع څخه مخکې ترسره کړی وي.

**اللغات:** ﴿مصحح﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: تصحيح کونکی، صحيح ګرځونکی، ﴿تبدّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بدلېدل، ﴿خصم﴾ فريقِ مخالف (مدعي او مدعیٰ عليه يو د بل خصم دي)، ﴿باشر﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: کول (يو کار په خپله کول)، سر ته رسول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی: که يو سړی پر خپل مأذون غلام بنديز ولګوي او هغه محجوره کړي او د دې غلام سره چې کوم څه مال وي د هغه په هکله دا اقرار وکړي چې دا مال د فلانکي دی کوم چې يې ما ته امانتاً اېښی دی يا ما دا مال له فلانکي څخه غصب کړی دی يا پر ما د فلانکي قرض دی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه دا اقرار صحيح دی او دغه مال به د هغه د اقرار په جهت کې صرفول کيږي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا اقرار صحيح نه دی؛ ځکه چې دغه اقرار صرف دوه شيان صحيح کولای سي: ① اجازت، ② قبضه، حال دا چې دلته په حجر (بنديز لګولو) سره دغه دواړه شيان باطل سوي دي، نو ځکه دا اقرار به نه صحيح کيږي، همدا وجه ده که تر حجر وروسته غلام د يو چا لپاره د مال اقرار وکړي، نو د دغه مال په اداء کولو کي به هغه نه خرڅول کيږي، لهذا کله چې د رقبې (ذات) په حق کي د هغه اقرار معتبر نه دی، نو د کسب او ګټې په حق کي به هم د هغه اقرار معتبر نه وي، لکه څرنګه چې د هغه مال په هکله د غلام اقرار معتبر نهٔ دی کوم چې له اقرار څخه مخکي مالک د هغه له ګټې څخه اخيستی وي، يا لکه څرنګه چې د اجازت په حالت کي مالک پر بل چا دا غلام خرڅ کړي چې په دې سره هغه بير ته محجوره ګرځي، نو تر دغه حجر وروسته اقرار معتبر نه دی، لهذا څرنګه چې په دغه دوو صورتونو کي د هغه اقرار معتبر نه دی، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د هغه اقرار لره اعتبار نه وي.

**وله إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې په حجر سره که څه هم اجازت باطل سو، لېکن د غلام سره چې کوم مال موجود دی، پر هغه د ده قبضه باقي پاته ده او په حجر سره دا قبضه باطله سوې نه ده؛ ځکه په حجر سره د قبضې د باطلېدلو لپاره دا ضروري ده چې غلام به خپل قبضه کړي سوي مال ته محتاج نه وي، حال دا چې د بل چا لپاره د غلام اقرار دا ښيي چې اوس غلام خپل قبضه کړی سوي مال ته سخت محتاج دی. او صاحبين رَحِمَهُمَا الله چې له اقرار څخه پر مخکي اخيستل سوي مال هغه قياسوي، دا صحيح نه دي؛ ځکه چې له اقرار څخه پر مخکي اخيستل سوي مال د حقيقت او حکم دواړو په اعتبار سره د مالک ملکيت ثابت او راسخ وي همدارنګه د غلام رقبه هم د مالک په ملکيت وي، نو په دې وجه په پورتني صورتونو کي د دغه مأذون محجوره غلام اقرار لره اعتبار نه وي.

**بخلاف ما إذا باعه إلخ:** صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي دا قياس پېش کړی دی چي پر بل چا د غلام په خرڅولو کي چي کوم حجر ثابتيږي، تر هغه وروسته اقرار معتبر نه دی، دا قياس هم صحيح نه دی؛ ځکه چي په بيع (خرڅولو) او عقد سره خو بالکل ملکيت بدليږي، لکه څرنګه چي د حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنهَا په حديث "هِيَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هِدْيَةٌ" کي د دې صراحت سوی دی (چي د صدقې غوښي د هغې په ملکيت کي صدقه ده او زموږ په ملکيت کي هديه ده)، او ښکاره خبره ده چي د ملکيت تر بدلېدلو وروسته د مالک د ملکيت او اجازت اثر بالکل ختميږي، نو په دې وجه پر دغه اجازت مُرتب کېدونکي اقرار لره هيڅ اعتبار نه وي، همدا وجه ده چي له خرڅولو (بيع) څخه مخکي چي هغه کوم د رانيولو او خرڅولو تصرف کړی وي، تر خرڅولو وروسته دا غلام د هغه په هکله خصم نه سي ګرځېدای، مثلاً هغه يو مبيع رانيسي بيا مالک هغه خرڅه کړي، نو د مبيع د سپارلو مطالبه له دغه غلام څخه نه سي کېدای (يعني مشتري له ده څخه دا مطالبه نه سي کولای چي هغه مبيع ته ما ته راکړه!)؛ ځکه چي د خرڅولو په وجه هغه د بل غلام په درجه کي سو.

## په قرضو کي د مستغرق مأذون غلام د مال حکم

قَالَ: وَإِذَا لَزِمَتْهُ دُيُونٌ تُحِيطُ بِمَالِهِ وَرَقَبَتِهِ فرمايي: او که پر مأذون غلام دومره قرضونه لازم سي کوم چي د هغه پر مال او د هغه پر غاړه [ذات] احاطه وکړي لَمْ يَمْلِكِ الْمَوْلَى مَا فِي يَدِهِ نو مولیٰ د هغه مال نه مالک کيږي کوم چي د دې غلام [مأذون] په قبضه کي موجود وي وَلَوْ أَعْتَقَ مِنْ كَسْبِهِ عَبْدًا او که چيري مالک د دې غلام له ګټي څخه يو غلام آزاد کړي [يعني د ده په ګټي سره رانيول سوی غلام آزاد کړي] لَمْ يَعْتِقْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه نه آزاديږي وَقَالَا ● : يَمْلِكُ مَا فِي يَدِهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي مولیٰ د هغه مال مالک کيږي کوم چي د دغه غلام [مأذون] په قبضه کي وي وَيَعْتِقُ او د ده غلام آزاديږي وَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ او پر مالک د هغه قيمت واجبيږي لِأَنَّهُ وُجِدَ سَبَبُ الْمِلْكِ فِي كَسْبِهِ ځکه چي د ملکيت سبب د مأذون غلام په ګټه کي موجود سو وَهُوَ مِلْكُ الرَّقَبَةِ او هغه [د مأذون] د رقبې ملکيت دی [يعني د ملکيت سبب دا دی چي د مأذون غلام ذات د مولیٰ په ملکيت کي داخل دی] وَلِهَذَا يَمْلِكُ إِعْتَاقَهَا وَوَطْءَ الْجَارِيَةِ الْمَأْذُونِ لَهَا او په همدې وجه مولیٰ د مأذون

---

● القول الراجح قول أبي حنيفة رحمه الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:٨، ص:١٨٠)، والدر المختار (ج:٥، ص ١١٧). [القول الراجح ج ٢، ص ٢٥۶]

غلام د آزادولو او د مأذونه مينځي سره د وطي كولو ملكيت لري وَهٰذَا آيَةُ كَمَالِهِ او دا د ملكيت د بشپړ والي علامت دی بِخِلَافِ الْوَارِثِ په خلاف د وارث لِأَنَّهُ يَثْبُتُ الْمِلْكُ لَهُ نَظَرًا لِلْمُوَرِّثِ ځکه چي د وارث لپاره ملكيت د مُورِث د مصلحت [نېکڼي] په خاطر ثابتيږي وَالنَّظَرُ فِي ضِدِّهِ عِنْدَ إِحَاطَةِ الدَّيْنِ بِتَرِكَتِهِ او د هغه پر ميراث د قبضې د محيط كېدلو په وخت كي مصلحت د دې په ضد كي دی [يعني پر ميراث د قرض د احاطه كولو په صورت كي مصلحت په ملكيت نه ثابتېدلو كي دی] أَمَّا مِلْكُ الْمَوْلَىٰ فَمَا ثَبَتَ نَظَرًا لِلْعَبْدِ او پاته سو د مولیٰ ملكيت نو هغه د مأذون غلام د مصلحت په خاطر نه دی ثابت سوی وَلَهُ: أَنَّ مِلْكَ الْمَوْلَىٰ إِنَّمَا يَثْبُتُ خِلَافَةً عَنِ الْعَبْدِ عِنْدَ فَرَاغِهِ عَنْ حَاجَتِهِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د مالک لپاره د غلام له ضرورت څخه د فارغېدلو په وخت كي د نائب والي په توګه ملكيت ثابتيږي [په بله وينا: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د مالک ملكيت د غلام په نيابت كي همغه وخت ثابتيږي چي هغه د غلام له ضرورت څخه فارغ وي] كَمِلْكِ الْوَارِثِ لكه د وارث ملكيت عَلَىٰ مَا قَرَّرْنَاهُ لكه [مخكي] چي مونږ بيان كړه وَالْمُحِيطُ بِهِ الدَّيْنُ مَشْغُولٌ بِهَا او پر غلام چي كوم قرض محيط دی هغه د غلام په ضرورت سره مشغول دی [او د هغه له ضرورت څخه فارغ نه دی] فَلَا يَخْلُفُهُ فِيهِ نو ځكه مالک به په دې مال كي د هغه نائب كېدلای نه سي وَإِذَا عُرِفَ ثُبُوتُ الْمِلْكِ وَعَدَمُهُ او كله چي [علیٰ اختلاف القولين] د ملكيت ثبوت او عدم ثبوت معلوم سو فَالْعِتْقُ فَرِيعَتُهُ نو [د عتق حال هم واضح سو؛ ځكه چي] عتق د ملكيت فرع ده وَإِذَا نَفَذَ عِنْدَهُمَا او كله چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز عتق نافذيږي يَضْمَنُ قِيمَتَهُ لِلْغُرَمَاءِ نو مالک به د قرضخواهانو لپاره د غلام د قيمت ضامن كيږي لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِهِ ځكه چي د هغه سره د قرضخواهانو حق متعلق سوی دی قَالَ: وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الدَّيْنُ مُحِيطًا بِمَالِهِ فرمايي: او كه چيرې قرض د غلام پر مال محيط [احاطه كونكی] نه وي جَازَ عِتْقُهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د [امام صاحب او صاحبينو] ټولو په قول كي د مالک عتق جائز دی أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ د صاحبينو رحمهما الله په نېز خو دا جواز ښكاره دی وَكَذَا عِنْدَهُ او همداسي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز لِأَنَّهُ لَا يَعْرَىٰ عَنْ قَلِيلِهِ ځكه چي مال [د غلام كټه] له لږ قرض څخه نه خالي كيږي فَلَوْ جُعِلَ

مَانِعًا نو كه لږ قرض هم مانع وګرځول سي لَانْسَدَّ بَابُ الْإِنْتِفَاعِ بِكَسْبِهِ نو د غلام له ګټې څخه د نفع اخيستلو دروازه به بنده سي فَيَخْتَلُّ مَا هُوَ الْمَقْصُودُ مِنَ الْإِذْنِ نو د اجازت په مقصود کي به خلل راسي وَلِهٰذَا لَا يَمْنَعُ مِلْكَ الْوَارِثِ او په همدې وجه لږ قرض د وارث ملکيت نه منع کوي وَالْمُسْتَغْرَقُ يَمْنَعُهُ او مستغرق [احاطه کونکی] قرض هغه منع کوي.

**اللغات**: ﴿تحيط﴾ د افعال مضارع ده: احاطه کول، ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام ذات، ﴿مولیٰ﴾ د غلام مالک، بادار، ﴿فراغ﴾ د فتح او سمع مصدر دی: فارغ والی (فارغېدل)، خالي کېدل، ﴿فُرَيعة﴾ د فرع تصغير دی، ﴿المستغرق﴾ د استفعال د باب مفعول دی: ډوب کړی سوی، (محيط قرض).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که پر مأذون غلام دومره قرض باندي وي چي د هغه پر ذات (رقبه) او د هغه پر مال دواړو يې احاطه کړې وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مالک (مولیٰ) د هغه مال نه مالک کيږي کوم چي د دغه غلام په قبضه کي موجود وي، او که چيري دغه غلام په خپل ګټل سوي مال سره يو غلام رانيولی وي او مالک هغه آزاد کړي، نو دا اعتاق (آزادول) هم نه نافذيږي. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د غلام سره موجوده مال هم د مولیٰ کيږي او د مولیٰ له طرفه د دغه غلام د غلام آزادول هم نافذيږي، خو پر مولیٰ د هغه آزاد کړی سوي غلام قيمت واجبيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي مالک (مولیٰ) اوس هم د مأذون غلام مالک دی او د مأذون غلام په حواله سره د هغه د غلام هم مالک دی؛ ځکه چي د اصل ملکيت د فرع د ملکيت علت دی، او بيا چي کله مالک (مولیٰ) د خپل غلام د آزادولو مالک دی، نو د غلام د غلام د آزادولو به هم مالک وي. د دې په خلاف د مورث (مړي) له طرفه چي وارث ته کوم ملکيت حاصليږي، په هغه کي د مورث د ضرورت او حاجت خيال ساتل کيږي، لکه څرنګه چي که د مورث پر ميراث قرض احاطه کړې وي، نو وارث ته له ميراث څخه هيڅ حصه نه حاصليږي، ليکن په غلام کي چي مالک ته کوم ملکيت حاصليږي، په هغه کي مصلحت او حاجت ته نه کتل کيږي، بلکي دا ملکيت د رقيت (غلامتوب) پر بنياد هغه ته حاصليږي، نو ځکه مالک (مولیٰ) به د دغه ملکيت مالک هم وي او هغه ته به په دې ملکيت کي د تصرف کولو اختيار هم وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي مالک په همغه صورت کي د مأذون غلام د ملکيت وارث کيږي، کله چي مأذون غلام مال ته محتاج نه وي، حال دا چي پر هغه غلام د محيط قرض لازمېدلو په وجه هغه خپل مال ته محتاج دی، نو ځکه د هغه خپل حاجت او ضرورت به د مالک له نيابت و خلافت

ځخه مخکي وي، او عتق د ملکيت فرع ده، نو ځکه د دواړو فريقو په نېز چي کوم حکم د ملکيت وي، هغه حکم به د عتق هم وي. مثلاً د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز مالک (مولیٰ) د غلام د مال مالک دی، نو ځکه د هغه عتق به هم نافذيږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مالک ته ملکيت حاصل نه دی، نو ځکه د هغه په نېز به عتق هم نه نافذيږي.

قال وإن لم يكن إلخ: فرمايي که چيري پر مأذون غلام قرض باندي وي ليکن هغه محيط نه وي، بلکي تر هغه لږ او معمولي وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نېز مالک (مولیٰ) د دغه غلام د مالونو مالک کيږي او د هغه اعتاق نافذيږي؛ ځکه د هيچا تصرف هم له معمولي قرض ځخه نه خالي کيږي او که چيري معمولي قرض هم له ملکيت ثابتېدلو ځخه مانع وګرځول سي، نو د مأذون غلام له ګټي ځخه د مالک د نفع اخيستلو دروازه به بالکل بنده سي او د اجازت ورکولو چي کوم مقصد دی، هغه به حاصل نه سي، په همدې وجه معمولي (غيرِ محيط) قرض د وارث له ملکيت ځخه نه مانع کيږي (بلکي د هغه باوجود وارث ته ميراث حاصليږي)، نو همداسي به د مأذون غلام غيرِ محيط قرض هم له ملکيت او اعتاق ځخه نه مانع کيږي.

## د خپل مالک سره د مأوذن غلام د بيع حکم او تفصيل (د محابات مسائل)

قَالَ: وَإِنْ بَاعَ مِنَ الْمَوْلَى شَيْئًا بِمِثْلِ قِيمَتِهِ فرمايي: او که مأذون غلام پر مالک په مثلي قيمت [خپل قيمت] سره يو شی خرڅ کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ كَالْأَجْنَبِيِّ عَنْ كَسْبِهِ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِكَسْبِهِ ځکه چي مالک د دغه غلام له ګټي ځخه د اجنبي په شان دی [په دې شرط] کله چي پر هغه دومره قرض باندي وي چي د هغه پر ګټه يې احاطه کړې وي وَإِنْ بَاعَهُ بِنُقْصَانٍ او که مأذون غلام پر مالک په نقصان [کم قيمت] سره يو شی خرڅ کړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّهُ مُتَّهَمٌ فِي حَقِّهِ ځکه چي غلام د نقصان په حق کي متهم دی بِخِلَافِ مَا إِذَا حَابَى الْأَجْنَبِيَّ په خلاف د هغه صورت کله چي مأذون غلام د اجنبي کس سره محابات وکړي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [نو] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [دا محابات جائز دی] لِأَنَّهُ لَا تُهْمَةَ فِيهِ ځکه چي د اجنبي کس سره په محابات کولو کي تهمت نسته وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الْمَرِيضُ مِنَ الْوَارِثِ بِمِثْلِ قِيمَتِهِ او په خلاف د هغه صورت کله چي مريض په مثلي قيمت سره پر خپل وارث يو شی خرڅ کړي حَيْثُ لَا يَجُوزُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا جائز نه

دي لأن حق بَقِيَةِ الْوَرَثَةِ تَعَلَّقَ بِعَيْنِهِ ځکه چې د نورو وارثانو حق د هغه شي د ذات سره متعلق سوی دی حَتّٰی كَانَ لِأَحَدِهِمِ الْاِسْتِخْلَاصُ بِأَدَاءِ قِيْمَتِهِ همدا وجه ده چې هر وارث ته دا اختيار سته چې په قيمت اداء کولو سره هغه شی را خلاص کړي [يعني له مشتري څخه يې واخلي] أَمَّا حَقُّ الْغُرَمَاءِ تَعَلَّقَ بِالْمَالِيَّةِ لَا غَيْرَ پاته سو د قرضخواهانو حق نو هغه صرف د ماليت سره متعلق دی فَافْتَرَقَا نو ځکه [غلام او مريض] دواړه سره جلا سول وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ: إِنْ بَاعَهُ بِنُقْصَانٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که په نقصان سره يې خرڅ کړي يَجُوْزُ الْبَيْعُ نو هم بيع جائز ده وَيُخَيَّرُ الْمَوْلٰی إِنْ شَاءَ أَزَالَ الْمُحَابَاةَ وَإِنْ شَاءَ نَقَضَ الْبَيْعَ او مالک ته به اختيار ورکول کيږي چې که هغه وغواړي نو محابات دي ختم کړي او که وغواړي نو بيع دي ماته کړي وَعَلَی الْمَذْهَبَيْنِ الْيَسِيْرُ مِنَ الْمُحَابَاةِ وَالْفَاحِشُ سَوَاءٌ او پر دواړو مذهبونو معمولي او زيات محابات سره برابر دي وَوَجْهُ ذٰلِكَ أَنَّ الْاِمْتِنَاعَ لِدَفْعِ الضَّرَرِ عَنِ الْغُرَمَاءِ او د دې وجه دا ده چې د بيع امتناع له قرضخواهانو څخه د ضرر ليري کولو لپاره دی [يعني په کم قيمت سره د خرڅولو نه جائز کېدل د غرماؤ د حق په وجه دي] وَبِهٰذَا يَنْدَفِعُ الضَّرَرُ عَنْهُمْ او په همدې توګه له دوی څخه ضرر ليري کيږي وَهٰذَا بِخِلَافِ الْبَيْعِ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ بِالْمُحَابَاةِ الْيَسِيْرَةِ او دا د اجنبي [پردي] سره په معمولي محابات د بيع کولو په خلاف دي حَيْثُ يَجُوْزُ ځکه دا جائز دي [يعني پر اجنبي کس په معمولي محابات (کم قيمت) سره يو شی خرڅول جائز دي] وَلَا يُؤْمَرُ بِإِزَالَةِ الْمُحَابَاةِ او هغه [اجنبي] ته به د محابات ختمولو حکم نه کيږي وَالْمَوْلٰی يُؤْمَرُ بِهِ حال دا چې مالک ته به د دې حکم کيږي لِأَنَّ الْبَيْعَ بِالْيَسِيْرِ مِنْهَا مُتَرَدِّدٌ بَيْنَ التَّبَرُّعِ وَالْبَيْعِ ځکه چې په معمولي محابات سره بيع کول د تبرع او بيع تر مينځ متردّد وي لِدُخُوْلِهِ تَحْتَ تَقْوِيْمِ الْمُقَوِّمِيْنَ ځکه چې معمولي محابات د قيمت لګونکو تر اندازې لاندې داخليږي فَاعْتَبَرْنَاهُ تَبَرُّعًا فِي الْبَيْعِ مَعَ الْمَوْلٰی لِلتُّهْمَةِ نو ځکه د مالک سره په بيع کولو کې د تهمت په وجه موږ دغه [د معمولي محابات] بيع تبرع وشمېرل غَيْرَ تَبَرُّعٍ فِي حَقِّ الْأَجْنَبِيِّ او د اجنبي کس په حق کې مو تبرع نه وشمېرل لِانْعِدَامِهَا ځکه چې [د اجنبي په حق کې] تهمت معدوم دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ بِالْكَثِيْرِ مِنَ الْمُحَابَاةِ او په

خلاف د هغه صورت کله چي مأذون غلام په زيات محابات د اجنبي سره بيع وکړي حَيْثُ لَا يَجُوزُ أَصْلًا عِنْدَهُمَا نو دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز بالکل جائز نه دي وَمِنَ الْمَوْلَىٰ يَجُوزُ او د مالک سره داسي بيع کول جائز دي وَيُؤْمَرُ بِإِزَالَةِ الْمُحَابَاةِ او مالک ته به د محابات ختمولو حکم کيږي لِأَنَّ الْمُحَابَاةَ لَا تَجُوزُ مِنَ الْعَبْدِ الْمَأْذُونِ عَلَىٰ أَصْلِهِمَا إِلَّا بِإِذْنِ الْمَوْلَىٰ ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د اُصول مطابق د مأذون غلام لپاره محابات کول جائز نه دي مګر د مالک په اجازت سره وَلَا إِذْنَ فِي الْبَيْعِ مَعَ الْأَجْنَبِيِّ او د اجنبي سره په بيع کولو کي هغه ته [د محابات] اجازت نسته وَهُوَ آذِنٌ بِمُبَاشَرَتِهِ بِنَفْسِهِ او مالک په خپله د بيع کولو په ذريعه اجازت ورکونکی دی غَيْرَ أَنَّ إِزَالَةَ الْمُحَابَاةِ لِحَقِّ الْغُرَمَاءِ خو د محابات ختمول د قرضخواهانو د حق په وجه ده وَهٰذَانِ الْفَرْقَانِ عَلَىٰ أَصْلِهِمَا او همدا دوه فرقه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر اُصول دي [يعني د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د اُصول مطابق د مالک او اجنبي کس په مينځ کي همدا دوه فرقه دي].

**اللغات**: ﴿أجنبي﴾ پردی کس، کوم چي د چا سره هيڅ ډول تعلق نه لري، ﴿مثل القيمة﴾ مثلي قيمت، په عامه توګه چي (په بازار کي) د يو شي څومره نرخ چليږي، هغه ته مثلي قيمت وايي. ﴿حابى﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده، حَابَىٰ يُحَابِيْ مُحَابَاةً: (د طرفداری په توګه) د يو چا سره په ثمن يا مبيع کي ډېر رعايت کول، يعني يو شی په ډېر کم (ارزانه) قيمت سره خرڅول يا بائع (دوکاندار) ته پر ارزانه شي زيات قيمت ورکول. ﴿أزال﴾ د افعال د باب ماضي ده: زائلول (ليري کول)، ختمول. ﴿تقويم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: د دغه باب څو معناوي دي او د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي: قيمت ټاکل، رېږ لګول، د يو شي اندازه بيانول، مقوّمين له همدې بابه د جمع مذکر فاعل صيغه ده. ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو کار په خپله کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مقروضه مأذون غلام پر خپل مالک يو شی خرڅ کړي، نو تر ټولو مخکي به دې ته کتل کيږي چي هغه دا شی په قيمتِ مثلي سره پر خرڅ کړی دی يا تر هغه يې په کم قيمت پر خرڅ کړی دی؟ که چيري اول صورت وي يعني په مثلي قيمت سره يې پر خرڅ کړی وي، نو بيا دا بيع جائز ده؛ ځکه چي په دې صورت کي د محابات او طرفداری الزام معدوم دی. لېکن که په کم قيمت يې پر خرڅ کړی وي، نو بيع جائز نه ده؛ ځکه چي په کم قيمت سره په خرڅولو کي د طرفداری کولو او د قصداً تاوان کولو تهمت موجود دی.

د دې په خلاف که مأذون غلام د يو اجنبي كس سره محابات وكړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا محابات جائز دي؛ ځکه چې د اجنبي سره د هغه هيڅ اړيکي او تعلق نسته نو د هغه سره په محابات کولو کې هيڅ تهمت هم نه سته. او که يو مريض (په خپل مرضُ الموت کې) په مثلي قيمت سره پر خپل وارث يو شی خرڅ کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا بيع جائز نه ده؛ ځکه چې د مرضُ الموت والا مريض د مال سره د هغه د وارثانو حق متعلق كيږي، نو ځکه هيڅ وارث ته هم له هغه څخه د بيع په توګه مال اخيستل جائز نه دي. دلته تاسو په دې خبره ځان پوه کړئ! چې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله چې د قدوري د متن کومه تشريح کړې ده، په هغه کې لف ونشر غيرِ مُرتّب دی، د متن "وَإِنْ بَاعَ مِنَ المولىٰ شيئًا" د شرح د "بِخلاف ما إذا بَاعَ المريض إلخ" سره متعلق دي او د متن "وَإِنْ باعه بنقصان" د شرح د "بِخلاف ما إذا حابى الأجنبي" سره متعلق دي، او د مريض او مأذون په بيع کې فرق دا دی چې د مريض د مال سره د وارثانو حق متعلق كيږي او دا تعلق د عَينِ مال سره وي، نو ځکه په هغه کې هيڅ تصرف هم صحيح نه دی، د دې په خلاف د مقروض غلام د مال سره د قرضخواهانو حق متعلق كيږي او دا تعلق د ماليت سره وي، نه د عَينِ مال سره، نو ځکه مقروض غلام ته د بيع وشراء اجازت سته، لېکن مريض ته دا اجازت حاصل نه دی.

پر مثلي قيمت خو د غلام بيع د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هم جائز ده، همدارنګه په کم قيمت (محابات) سره هم د دوی په نېز د غلام بيع جائز ده، خو مالک ته دا اختيار حاصليږي چې ① که بيع باقي پرېږدي، نو محابات به ختموي او د مبيع ټوله قيمت به ورکوي، ② کنې بيع به فسخ کوي (سودا به ماتوي)؛ ځکه چې د بيع عدمِ جواز (نه جائز کېدل) د قرضخواهانو د حق په وجه دي چې په کم قيمت (محابات) سره د خرڅولو په وجه به قرضخواهانو ته نقصان ورسيږي، لېکن کله چې محابات ختم کړی سي، نو قرضخواهانو ته نقصان نه رسيږي.

وهٰذا بخلاف إلخ: مسئله دا ده چې د اجنبي سره په محاباتِ يسيره بيع کول جائز دي او په دې صورت کې به اجنبي ته د محابات ختمولو حکم نه كيږي او هغه به پر محابات زائلولو نه مجبورول كيږي، لېکن د مالک سره د بيع کولو په صورت کې به هغه ته د محابات ختمولو حکم كيږي (لکه څه مخکې چې ذکر سوه چې مالک به د مبيع ټوله قيمت ورکوي)؛ ځکه چې په محاباتِ يسيره والا بيع کې د بيع او تبرّع دواړو احتمال سته او د مالک په حق کې د طرفداری تهمت موجود دی، نو ځکه د مالک په حق کې به دا بيع تبرع شمېرل كيږي او د محابات ختمولو په صورت کې به دا بيع جائز كيږي. د دې په خلاف د اجنبي کس په حق کې دا تهمت معدوم دی، نو ځکه د اجنبي سره د محاباتِ يسيره والا بيع

بېله شکه جائز کيږي. لېکن د اجنبي سره په محاباتِ فاحشه بيع کول نه جائز کيږي؛ ځکه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اُصول دا دی چې د مأذون غلام لپاره محابات کول جائز نه دي مګر کله چې د مالک اجازت وي او د اجنبي سره په محابات کولو کې د مالک اجازت نسته. لېکن د مالک سره په محابات کولو کې د هغه اجازت سته؛ ځکه مالک چې کله په خپله دا بيع کوي، نو دا د هغه له طرفه اجازت دی، صرف دومره خبره ده چې د قرضخواهانو د حق په وجه به مالک ته د محابات ختمولو حکم کيږي، ګواکې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په اجنبي کس او مالک (مولیٰ) کې دوه ډوله فرق دی: ① په محاباتِ يسيره د مالک او اجنبي دواړو سره د مأذون غلام بيع جائز ده او مالک ته به د محابات ختمولو حکم کيږي، ② د محاباتِ فاحشه والا بيع د اجنبي سره جائز نه ده او د مالک سره جائز خو ده لېکن محابات ختمول ضروري دي. (احسن الهدايه)

## که مالک پر خپل مأذون مقروض غلام په مثلي قيمت يا په کم قيمت سره يو شی خرڅ کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ بَاعَهُ الْمَوْلَى شَيْئًا بِمِثْلِ الْقِيمَةِ أَوْ أَقَلَّ فرمايي: که چيري مالک پر مأذون غلام په مثلي قيمت يا له هغه څخه په کم قيمت يو شی خرڅ کړي جَازَ الْبَيْعُ نو دا بيع [خرڅول] جائز دي لِأَنَّ الْمَوْلَى أَجْنَبِيٌّ عَنْ كَسْبِهِ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ ځکه مالک د خپل غلام له ګټې څخه اجنبي دی کله چې پر هغه قرض باندې وي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکې] چې موږ دا بيان کړه وَلَا تُهْمَةَ فِي هٰذَا الْبَيْعِ او په دغه بيع کې هيڅ تهمت هم نسته وَلِأَنَّهُ مُفِيدٌ او ځکه چې دا بيع مفيده هم ده فَإِنَّهُ يَدْخُلُ فِي كَسْبِ الْعَبْدِ مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ وَيَتَمَكَّنُ الْمَوْلَى مِنْ أَخْذِ الثَّمَنِ بَعْدَ أَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ هٰذَا التَّمَكُّنُ ځکه [په دې بيع سره] د دغه غلام په ګټه کې داسې شی داخليږي کوم چې له مخکې څخه پکښې [داخل] نه وو او مالک د ثمن پر اخيستلو قادر کيږي [يعني د ثمن اخيستلو قدرت او اختيار ور ته حاصليږي] حال دا چې [له بيع څخه مخکې] هغه ته دغه قدرت نه وو وَصِحَّةُ التَّصَرُّفِ تَتْبَعُ الْفَائِدَةَ او د تصرف صحت د فايدې تابع کيږي [يعني د تصرّف صحيح والي پر فايدې مبني دی] فَإِنْ سَلَّمَ الْمَبِيعَ إِلَيْهِ قَبْلَ قَبْضِ الثَّمَنِ بيا که مالک پر ثمن له قبضه کولو څخه مخکې هغه شی [مبيع] غلام ته وسپاري بَطَلَ الثَّمَنُ نو ثمن باطليږي لِأَنَّ حَقَّ الْمَوْلَى فِي الْعَيْنِ مِنْ حَيْثُ الْحَبْسُ ځکه چې د مالک حق په عين شي کې د حبس [راګرځولو] په حيثيت سره دی [يعني تر څو چې مالک مبيع راګرځولې وي، صرف تر هغه وخته د مالک لپاره د ثمن

اخیستلو حق ثابت دی. نه د مبیع تر ورسپارلو وروسته ا فَلَوْ بَقِيَ بَعْدَ سُقُوطِهٖ اوس که چیري د حقُ الحبس له ساقطېدلو څخه وروسته هم د مالک دا حق پاته سي يَبْقَى فِي الدَّيْنِ نو د قرض په شکل به پاته سي وَلَا يَسْتَوْجِبُهُ الْمَوْلٰى عَلٰى عَبْدِهٖ حال دا چي مالک پر خپل غلام د قرض نه مستحق کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الثَّمَنُ عَرَضًا په خلاف د هغه صورت کله چي ثمن سامان وي لِأَنَّهٗ يَتَعَيَّنُ ځکه چي سامان مُتعیَن دی [په مُتعینولو سره مُتعیَن کیږي] وَجَازَ أَنْ يَبْقٰى حَقُّهٗ مُتَعَلِّقًا بِالْعَيْنِ او د عَین سره د مالک د حق متعلق کېدل جائز دي قَالَ: وَإِنْ أَمْسَكَهٗ فِي يَدِهٖ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ او که چیري مالک هغه شی [مبیع] په خپل قبضه کي را وګرځوي تر دې چي ثمن ترلاسه کړي جَازَ نو دا هم جائز دي لِأَنَّ الْبَائِعَ لَهٗ حَقُّ الْحَبْسِ فِي الْمَبِيعِ ځکه چي بائع ته په مبیع کي حقُ الحبس [د راګرځولو حق] حاصل دی وَلِهٰذَا كَانَ أَخَصَّ بِهٖ مِنَ الْغُرَمَاءِ په همدې وجه بائع له نورو قرضخواهانو څخه د مبیع زیات حقداره وي وَجَازَ أَنْ يَكُوْنَ لِلْمَوْلٰى حَقٌّ فِي الدَّيْنِ إِذَا كَانَ يَتَعَلَّقُ بِالْعَيْنِ او دا جائز دي چي د مالک لپاره په قرض کي حق ثابت وي کله چي هغه قرض د یو عَین شي سره متعلق وي [یعني که چیري د قرض تعلق د عَین شي سره وي، نو په هغه کي د مالک د حق ثابتېدل جائز دي] وَلَوْ بَاعَهٗ بِأَكْثَرَ مِنْ قِيمَتِهٖ او که مالک هغه په زیات قیمت سره پر غلام خرڅ کړي يُؤْمَرُ بِإِزَالَةِ الْمُحَابَاةِ أَوْ يُنْقَضُ الْبَيْعُ نو غلام ته به د محابات ختمولو حکم کیږي یا بیع به ماتول کیږي كَمَا بَيَّنَّا فِي جَانِبِ الْعَبْدِ لکه څرنګه چي د غلام په جانب کي موږ بیان کړه لِأَنَّ الزِّيَادَةَ تَعَلَّقَ بِهَا حَقُّ الْغُرَمَاءِ ځکه چي د زیاتوب [زائد مقدار] سره د قرضخواهانو حق متعلق سوی دی.

**اللغات:** ﴿یتمکّن﴾ د تفعّل مضارع ده: قادر کېدل، قدرت او اختیار لرل. ﴿تَـتْبَع﴾ د سمع مضارع ده: تابع کېدل، شاته پسي تلل. ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: راګرځول، بندول. ﴿یستوجب﴾ د استفعال مضارع ده: حق لرل، مستحق کېدل، تقاضا کول (احسن الهدایه). ﴿عرض﴾ سامان، له نغد مال (دراهم او دنانیرو) څخه بغیر نور شیان. ﴿یستوفي﴾ د استفعال مضارع ده: پوره اخیستل، ترلاسه کول. ﴿أخص﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: زیات خاص. ﴿إزالة﴾ د افعال د باب مصدر دی: زائلول، ختمول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مالک پر خپل مأذون مقروضه غلام يو شی خرڅ کړي. برابره ده په مثلي قيمت سره وي او که تر هغه په کمه وي. په هر صورت کې دا بيع جائز او صحيح ده؛ ځکه پر مأذون غلام چي کله قرض باندي وي، نو د هغه د کسب او ګټي سره د مالک هيڅ واسطه او تعلق نه پاتيږي او مالک د هغه په حق کي د اجنبي په څېر ګرځي. او د اجنبي سره بيع و شراء کول جائز دي. او بل دا چي دلته بائع مالک دی، نه غلام، نو ځکه تر مثلي قيمت په کم قيمت سره په خرڅولو کي دلته طرفداری تهمت هم نه سي کېدلای. همدارنګه د مالک او غلام په حق کي دا بيع فايده منه هم ده، نو ځکه د دې په جواز او نفاذ کي هيڅ شبهه نسته.

فإن سلّم إليه: د دې حاصل دا دی چي کله مالک پر دغه غلام يو شی خرڅ کړي او هغه شی (مبيع) ده ته وسپاري او ثمن نه ځني واخلي، نو ثمن باطليږي يعني وروسته مالک ته له غلام څخه د ثمن د مطالبه کولو او د ثمن اخيستلو اختيار نسته؛ ځکه چي د مالک د ثمن اخيستلو اختيار صرف د مبيع راګرځولو تر وخته پوري پاتيږي، لېکن کله چي مالک مبيع وغلام ته وسپاري، نو د ثمن په هکله د هغه د راګرځولو حق (حقُ الحبس) ختميږي او هغه لره وروسته د ثمن د مطالبې حق او اختيار نه پاتيږي؛ ځکه که چيري د مبيع تر ورسپارلو وروسته هم مورږ د بائع (مالک) لپاره ثمن باقي پرېږدو نو دا ثمن به د مشتري پر ذمه دَين وګرځي او مشتري د مالک غلام دی، حال دا چي مالک پر خپل غلام د دَين نه مستحق کيږي. د دې په خلاف که ثمن سامان (عرض) وي و. بيا بائع (مالک) له ثمن اخيستلو څخه مخکي مبيع مشتري (غلام) ته وسپاري، نو په دې صورت کي هغه لره وروسته هم د ثمن اخيستلو حق او اختيار پاتيږي؛ ځکه چي سامان په مُتعيّنولو سره مُتعيّن کيږي او يو وار چي کله د هغه سره حق متعلق سي، نو بيا وروسته هم هغه اخيستل کېدای سي.

قال وإن أمسكه إلخ: که چيري مالک د ثمن اخيستلو په نيت مبيع د خپل ځان سره را وګرځوي او له مشتري (غلام) څخه يې منع کړي، نو دا جائز دي؛ ځکه چي تر بيع کولو وروسته ثمن د بائع (مالک) حق ګرځي او د خپل حق ترلاسه کولو لپاره مبيع راګرځول جائز او صحيح دي.

ولوباعه بأكثر إلخ: مسئله دا ده که مالک پر خپل مأذون مقروضه غلام يو شی په زيات قيمت سره خرڅ کړي يعني د شي چي څومره قيمت (نرخ) وي تر هغه زيات قيمت ځني واخلي، نو مشتري يعني غلام ته به ويل کيږي چي محابات ختم کړه! يعني زائد مقدار مالک ته مه ورکوه!؛ ځکه چي مشتري مقروضه دی او د زائد مقدار سره د قرضخواهانو حق متعلق دی. نو ځکه له مثلي قيمت څخه د زائد قيمت په عوض کي به دا بيع نه جائز کيږي کنې د قرضخواهانو د حق باطلول به لازم سي. ځکه ښکاره خبره ده چي که مقروضه غلام په زيات قيمت سره شيان رانيسي. نو ټوله عمر به له قرضو څخه بري نه سي.

## مأذون مقروض غلام آزادول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى الْمَأْذُونَ فرمايي: کله چي مالک مأذون غلام آزاد کړي وَعَلَيْهِ دُيُونٌ حال دا چي پر مأذون غلام قرضونه باندي وي فَعِتْقُهُ جَائِزٌ نو د هغه عتق جائز دی لِأَنَّ مِلْكَهُ فِيهِ بَاقٍ ځکه په مأذون غلام کي د مالک ملکيت باقي دی وَالْمَوْلَى ضَامِنٌ لِقِيمَتِهِ لِلْغُرَمَاءِ او مالک د قرضخواهانو لپاره د هغه د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُمْ بَيْعًا وَاسْتِيفَاءً مِنْ ثَمَنِهِ ځکه چي مالک داسي شوک ضايع کړی دی چي د هغه سره د بيع [خرڅولو] او د هغه له ثمن ځخه د قرض اخيستلو په توګه د قرضخواهانو حق متعلق وو [يعني هغو ته دا حق وو چي دغه مقروض غلام خرڅ کړي او د هغه له ثمن ځخه خپل قرضونه ترلاسه کړي، لېکن مالک هغه ضايع کړی] وَمَا بَقِيَ مِنَ الدُّيُونِ او کوم قرضونه چي پاته سي يُطَالَبُ بِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ د هغوی مطالبه به له غلام ځخه تر آزادۍ وروسته کيږي لِأَنَّ الدَّيْنَ فِي ذِمَّتِهِ ځکه قرض خو پر غلام لازم دی وَمَا لَزِمَ الْمَوْلَى إِلَّا بِقَدْرِ مَا أَتْلَفَ ضَمَانًا او پر مالک صرف دومره مقدار د ضمان په توګه لازم سوی دی کوم چي هغه ضايع کړی دی فَبَقِيَ الْبَاقِي عَلَيْهِ كَمَا كَانَ نو ځکه ما بقي قرض به پر غلام باقي پاته وي لکه څرنګه چي وو فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ او که قرض د غلام له قيمت ځخه کم وي ضَمِنَ الدَّيْنَ لَا غَيْرَ نو پر مالک صرف قرض لازميږي، نه بل څه لِأَنَّ حَقَّهُمْ بِقَدْرِهِ ځکه چي د قرضخواهانو حق د همدې قرض په اندازه دی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَ الْمُدَبَّرَ وَأُمَّ الْوَلَدِ الْمَأْذُونَ لَهُمَا وَقَدْ رَكِبَتْهُمَا دُيُونٌ په خلاف د هغه صورت کله چي مالک خپل مأذون مُدبّر غلام او مأذونه اُم ولد مينځه آزاد کړي حال دا چي پر دوی قرضونه باندي سوي وي [نو پر مالک ضمان نه لازميږي] لِأَنَّ حَقَّ الْغُرَمَاءِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِرَقَبَتِهِمَا اسْتِيفَاءً بِالْبَيْعِ ځکه چي د قرضخواهانو حق د دوی د غاړي سره متعلق سوی نه دی چي د بيع [خرڅولو] په ذريعه هغه ترلاسه کړی سي فَلَمْ يَكُنِ الْمَوْلَى مُتْلِفًا حَقَّهُمْ نو مالک به د قرضخواهانو د حق ضايع کونکی نه وي فَلَمْ يَضْمَنْ شَيْئًا نو ځکه هغه به د هيڅ شي هم نه ضامن کيږي قَالَ: فَإِنْ بَاعَهُ الْمَوْلَى وَعَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِرَقَبَتِهِ وَقَبَضَهُ الْمُشْتَرِي وَغَيَّبَهُ فرمايي: که مالک مأذون غلام خرڅ کړي حال دا چي پر هغه دومره قرض وي کوم چي د هغه پر غاړه [ذات] احاطه کړې وي او مشتري پر هغه قبضه وکړي او غائب يې

کړي فَإِنْ شَاءَ الْغُرَمَاءُ ضَمَّنُوا الْبَائِعَ قِيمَتَهُ وَإِنْ شَاءُوْا ضَمَّنُوا الْمُشْتَرِيَ نو که قرضخواهان وغواړي نو له بائع [مالک] څخه دي د هغه د قیمت ضمان واخلي او که وغواړي نو له مشتري څخه دي د هغه ضمان واخلي لِأَنَّ الْعَبْدَ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُمْ ځکه چي د دغه غلام سره د قرضخواهانو حق متعلق سوی دی حَتَّى كَانَ لَهُمْ أَنْ يَبِيعُوهُ تر دې چي هغو ته دا اختیار سته چي هغه خرڅ کړي إِلَّا أَنْ يَقْضِيَ الْمَوْلَى دَيْنَهُمْ مګر دا چي مالک د دوی قرض اداء کړي وَالْبَائِعُ مُتْلِفٌ حَقَّهُمْ بِالْبَيْعِ وَالتَّسْلِيمِ او بائع [د غلام] په خرڅولو او [مشتري ته] په ورسپارلو سره د دوی د حق ضايع کونکی دی وَالْمُشْتَرِي بِالْقَبْضِ وَالتَّغْيِيبِ او مشتري [پر غلام] په قبضه کولو او [د غلام] په غائبولو سره [د دوی د حق ضايع کونکی دی] فَيُخَيَّرُونَ فِي التَّضْمِينِ نو ځکه دوی [قرضخواهانو] ته به د ضمان اخیستلو په هکله اختیار ورکول کیږي [چي له بائع څخه يې اخلي او که له مشتري څخه] وَإِنْ شَاءُوْا أَجَازُوا الْبَيْعَ وَأَخَذُوا الثَّمَنَ او که قرضخواهان وغواړي نو د بيع اجازت دي ورکړي او ثمن دي واخلي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چي حق د دوی لپاره ثابت دی وَالْإِجَازَةُ اللَّاحِقَةُ كَالْإِذْنِ السَّابِقِ او وروستنی اجازت د مخکني اجازت په څېر دی [يعني وروسته (د بيع) اجازت ورکول او بيع نافذول داسي دي لکه مخکي اجازت ورکول] كَمَا فِي الْمَرْهُونِ لکه څرنګه چي په مرهون شي کي دي فَإِنْ ضَمَّنُوا الْبَائِعَ قِيمَتَهُ ثُمَّ رُدَّ عَلَى الْمَوْلَى بِعَيْبٍ نو که قرضخواهان له بائع [مالک] څخه د غلام د قیمت ضمان واخلي بيا د يو عيب په وجه هغه غلام مالک ته واپس کړی سي لِلْمَوْلَى أَنْ يَرْجِعَ بِالْقِيمَةِ نو مالک ته دا اختیار سته چي [پر قرضخواهانو] په قیمت سره رجوع وکړي [يعني له دوی څخه قیمت واپس واخلي] فَيَكُونَ حَقُّ الْغُرَمَاءِ فِي الْعَبْدِ نو [په دې صورت کي] به د قرضخواهانو حق په غلام کي وي لِأَنَّ سَبَبَ الضَّمَانِ قَدْ زَالَ وَهُوَ الْبَيْعُ وَالتَّسْلِيمُ ځکه چي د ضمان سبب زائل سو او هغه خرڅول او ورسپارل دي وَصَارَ كَالْغَاصِبِ إِذَا بَاعَ وَسَلَّمَ وَضَمِنَ الْقِيمَةَ ثُمَّ رُدَّ عَلَيْهِ بِالْعَيْبِ او دغه مالک د هغه غاصب په څېر سو کوم چي مغصوب شی خرڅ کړي او مشتري ته يې وسپاري او د هغه د قیمت ضمان ورکړي بيا د عيب په وجه هغه شی ده ته واپس کړی سي كَانَ لَهُ أَنْ يَرُدَّ عَلَى الْمَالِكِ وَيَسْتَرِدَّ الْقِيمَةَ نو دغه غاصب ته دا اختیار سته چي مغصوب شی مالک ته واپس کړي او د هغه قیمت واپس ځني واخلي كَذَا هٰذَا همدغسي دا مسئله هم ده.

**اللغات**: ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيمٌ ده: قرضخواهان (د قرضونو مالکان). ﴿اسيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره اخيستل، ترلاسه کول. ﴿مدبّر﴾ هغه غلام چې مالک د هغه آزادي پر خپل مرګ معلقه کړې وي (يعني هغه ته يې ويلي وي چې زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!). ﴿متلف﴾ د افعال د باب فاعل دی: تلفونکی، ضايع کونکی، بربادونکی. ﴿تغييب﴾ د تفعيل مصدر دی: غائبول، پټول. ﴿تضمين﴾ مخکنۍ صيغه ده: ضامن ګرځول. ضمان (تاوان) ځنې اخيستل. ﴿لاحقة﴾ د سمع د باب مؤنث اسم فاعل دی: وروستنی (وروسته راتلونکی). ﴿يسترد﴾ د استفعال مضارع ده: واپس اخيستل.

**تشريح**: په دې عبارت کې اصلاً دوې مسئلې ذکر سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده چې مالک خپل مأذون مقروضه غلام آزادولای سي او د هغه لپاره دا جائز دي (په دې کې د هيڅا اختلاف نسته)؛ ځکه چې په هغه کې د مالک ملکيت پاته دی يعني هغه اوس هم د خپل مالک مملوک دی (اختلاف خو د هغه په کټه کې دی کله چې پر هغه محيط قرض وي)، او انسان ته د خپل مملوک غلام د آزادولو پوره اختيار سته. خو څرنګه چې په دغه اعتاق سره مالک د قرضخواهانو حق باطل کړی دی، نو ځکه پر مالک د دې غلام قيمت لازميږي؛ ځکه که چيري مالک هغه آزاد کړي نه وای، نو غرماؤ (قرضخواهانو) به هغه خرڅ کړي وای او خپل قرضونه به يې ترلاسه کړي وای، خو د مالک د آزادولو په وجه د هغه د خرڅولو او قرض اخيستلو لاره بنده سوه، نو ځکه پر مالک به د تاوان (ضمان) په توګه د غلام قيمت واجبيږي او په همدې قيمت سره به د غرماؤ حقوق اداء کول کيږي او که چيري دا قيمت د قرضونو لپاره کافي نه سي بلکې څه قرضونه پاته سي، نو د هغه مطالبه به تر آزادۍ وروسته له غلام څخه کيږي؛ ځکه حقيقتاً دا دَين فقط پر غلام لازم دی، خو د آزادلو د اتلاف په وجه د غلام د قيمت په اندازه حصه د مالک و طرف ته منتقل سوه، لهذا له قيمت څخه زيات چې نور کوم دَين پاته سي، هغه به د مخکې په څېر د غلام پر ذمه پاته وي او د هغه اداء به پر همده لازم وي.

او که چيري قرض د هغه له قيمت څخه کم وي، نو مالک صرف د قرض د مقدار ضامن کيږي؛ ځکه چې د غرماؤ حق صرف د همدې مقدار سره متعلق دی او له دې څخه بغير چې د غلام کوم قيمت دی يا له دې څخه بغير چې د غلام کومه حصه ده، هغه د مالک په ملکيت کې ده او د هغه په آزادولو کې مالک خود مختاره دی.

بخلاف ما إذا أعتق إلخ: فرمايي که د خالص غلام پر ځای مالک خپل مُدبّر غلام يا اُم ولد مينځې ته د تجارت اجازت ورکړی وي او پر هغو قرضونه لازم سوي وي، بيا مالک هغوی آزاد کړي، نو په دې صورت کې پر مالک هيڅ ضمان نه لازميږي؛ ځکه چې مُدبّر او اُم ولد دواړه له يوه ملکيت څخه بل

ملکیت ته نه منتقل کیږي او د دوی بیع نه جائز کیږي (یعني دوی نه سي خرڅول کېدلای)، نو ځکه د غرماؤ حق د دوی د رقبې (ذات) سره نه متعلق کیږي. لهذا د دوی په آزادولو سره مالک مُتلف (تلفونکی) هم نه ګرځي، او کله چي هغه مُتلف نه دی، نو پر هغه به ضمان هم نه لازمیږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده که پر غلام دومره قرض باندي وي چي هغه د ده پر ذات (رقبه) محیط وي (یعني د ده تر قیمت زیات وي)، بیا مالک دا غلام خرڅ کړي او مشتري پر هغه قبضه وکړي او غائب یې کړي مثلاً یو ځوا ته یې واستوي (چي قرضخواهانو ته په لاس نه ورسي)، نو په دې صورت کي د بائع (مالک) او مشتري دواړو قصور سته، د مالک قصور دا دی چي هغه یو مقروض غلام خرڅ کړی او مشتري ته یې وسپاری او د مشتري قصور دا دی چي مشتري پر هغه قبضه وکړه او بیا یې غائب کړی، نو ځکه په دې صورت کي غرماؤ (قرضخواهانو) ته دا اختیار حاصلیږي چي له بائع څخه ضمان (تاوان) اخلي او که یې له مشتري څخه اخلي، څنګه چي د غرماؤ خوښه وي، هغسي دي وکړي، همدارنګه غرماؤ ته د اختیار هم سته چي د مذکوره بیع اجازت ورکړي (نافذ یې کړي) او اخیستل سوی ثمن په خپل مینځ کي د خپلو حصو مطابق تقسیم کړي؛ ځکه چي د دغه مقروض غلام سره د غرماؤ حق متعلق سوی دی، او په دې هکله غرماؤ ته اختیار دی چي که خوښه یې وي نو دغه غلام دي خپله خرڅ کړي او ثمن دي ترلاسه کړي یا مالک دي یې خرڅ کړي او دوی دي د هغه د بیع اجازت ورکړي او خپل ثمن دي ځني ترلاسه کړي، یعني وروسته د دوی په اجازت سره بیع جائز کیږي او اجازت لاحقه (وروسته اجازت ورکول) فقهاؤ اجازت سابقه شمېرلی دی، مثلاً که راهن د مرتهن له اجازت څخه بغیر مرهون شی خرڅ کړي، نو دا بیع د مرتهن پر اجازت موقوف کیږي او د مرتهن له طرفه اجازت لاحقه اجازت سابقه شمېرل کیږي او بیع جائز کیږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د غرماؤ په اجازت لاحقه سره بیع جائز کیږي.

فإن ضمنوا البائع إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله غرماء له بائع یعني له مالک څخه په تاوان (ضمان) کي د مأذون غلام قیمت واخلي بیا د یو عیب په وجه مشتري هغه غلام مالک ته واپس کړي، نو مالک چي غرماؤ ته په تاوان کي کوم قیمت ورکړی وي، مالک ته د هغه د واپس اخیستلو اختیار سته؛ ځکه چي د ردّ بالعیب په وجه د مالک اتلاف هم ختم سو او پر هغه چي د ضمان واجبېدلو کوم سبب وو، هغه هم زائل سو. لهذا د غرماؤ حق د معیوب غلام سره متعلق سو او هغه غلام موجود دی، غرماء چي هر څه په کوي، هغه دي په وکړي او خپل قرض دي ځني ترلاسه کړي. د دې مثال داسي دی لکه غاصب چي یو شی غصب کړي او هغه خرڅ کړي او مشتري پر هغه قبضه وکړي، بیا غاصب (بائع) د شي مالک ته د هغه ضمان ورکړي او بیا د یو عیب په وجه هغه شی غاصب ته واپس کړی سي، نو په

دې صورت کې حکم دا دی چې غاصب دې هغه شی مالک ته واپس کړي او خپل ورکول سوی قیمت دې واپس ځني واخلي، نو همداسې به په پورتنی مسئله کې د غلام مالک (بائع) خپل ورکول سوی قیمت له غرماؤ څخه واپس اخلي او دا مقروض غلام به غرماؤ ته سپاري. (احسن الهدايه)

## مأذون مقروض غلام خرڅول او مشتري د هغه په قرض خبرول

قَالَ: وَلَوْكَانَ الْمَوْلَىٰ بَاعَهُ مِنْ رَجُلٍ وَأَعْلَمَهُ بِالدَّيْنِ فرمايي: او که چيرې مالک خپل مأذون مقروضه غلام پر يو سړي خرڅ کړی وي او هغه يې په قرض خبر کړی وي فَلِلْغُرَمَاءِ أَنْ يَرُدُّوا الْبَيْعَ نو قرضخواهانو ته دا اختيار سته چې دا بيع ردّ کړي [يعني فسخ يې کړي] لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ ځکه چې [د غلام سره] د غرماؤ حق متعلق دی وَهُوَحَقُّ الِاسْتِسْعَاءِ وَالِاسْتِيفَاءِ مِنْ رَقَبَتِهِ يعني په غلام د سعى کولو [خواري کښلو] او د هغه له غاړې [ذات] څخه د قرض ترلاسه کولو حق وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فَائِدَةٌ او له دې دواړو [استسعاء او استيفاء] څخه په هر يوه کې فايده ده فَالْأَوَّلُ تَامٌّ مُؤَخَّرٌ ځکه اول [يعني استسعاء] بشپړ او ځنډمن دی [يعني که په غلام سعی (سعايه) وکړی سي نو په دې سره قرضخواهانو ته خپل حق (قرضونه) بشپړ حاصليږي لېکن څه په ځنډ سره] وَالثَّانِي نَاقِصٌ مُعَجَّلٌ او دويم [استيفاء من الرقبه] ناقص او في الحاله دی [يعني که غلام خرڅ کړی سي او د هغه له ثمن څخه خپل حق واخيستل سي، نو په دې سره خو هغو ته سمدستي خپل حق حاصليږي لېکن کېدای سي چې هغه ثمن د ټولو قرضونو لپاره کافي نه سي بلکي ناقص (کم) سئ] وَبِالْبَيْعِ تَفُوتُ هٰذِهِ الْخِيَرَةُ او په بيع سره دغه اختيار فوتيږي فَلِهٰذَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَرُدُّوهُ نو په همدې وجه قرضخواهانو ته دا اختيار سته چې بيع ردّ کړي قَالُوا: تَأْوِيلُهُ إِذَا لَمْ يَصِلْ إِلَيْهِمُ الثَّمَنُ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: د دې تأويل دا دی [چې دا حکم په هغه صورت کې دی] کله چې قرضخواهانو ته ثمن رسېدلی نه وي فَإِنْ وَصَلَ وَلَا مُحَابَاةَ فِي الْبَيْعِ او که هغو ته ثمن رسېدلی او په بيع کې محابات نه وي سوی لَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَرُدُّوهُ نو بيا هغو ته دا اختيار نسته چې بيع ردّ کړي لِوُصُولِ حَقِّهِمْ إِلَيْهِمْ ځکه چې هغو ته خپل حق رسېدلی دی.

**اللغات:** ﴿أعْلَمَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: خبرول، اګاه کول. ﴿استسعاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په غلام سعی او کوښښ کول، د مال ګټلو لپاره کسب او مزدوري په کول (خواري په کښل)، ﴿الخيرة﴾ اختيار، ﴿محاباة﴾ د دې تعريف مخکي تېر سو.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که مالک خپل مأذون مقروضه غلام پريو سړي خرڅ کړي او هغه په دې خبر کړي چي ورورره! دا غلام مقروض دی، نو دا بيع لازميږي او بيا مشتري ته دا حق نه حاصليږي چي د عيب په وجه دغه غلام بائع (مالک) ته واپس کړي، ها! غرماؤ ته د بيع فسخ کولو (بيع ماتولو) اختيار حاصليږي؛ ځکه چي د غلام سره د هغو حق تړلی دی (او مالک هغه خرڅ کړی دی)، نو ځکه هغوی دي په دغه غلام خواري او مزدوري وکړي چي هغه مال وګټي او له هغه څخه خپل قرضونه ترلاسه کړي، يا که وغواړي نو غلام دي خرڅ کړي او د هغه له ثمن څخه دي خپل قرضونه ترلاسه کړي.

**فالأول تام مؤخر إلخ**: د دې حاصل دا دی چي د استسعاء يعني په غلام سره د مزدوري کولو په صورت کي د مال ګټلو تر وخته د غرماؤ قرضونه ځنډيږي، لېکن په دې کي فايده دا ده چي هغو ته پوره قرضونه حاصليږي، په همدې وجه دلته استسعاء په "تام مؤخر" سره نومول سوې ده، او د "الثاني ناقص معجّل" مطلب دا دی چي د استيفاء من الرقبة يعني د غلام خرڅولو او د هغه له ثمن څخه د قرض ترلاسه کولو په صورت کي خو قرضونه ژر حاصليږي، لېکن کېدای سي چي د غلام ثمن به د ټولو قرضونو لپاره کافي نه سي او په هغه کي به نُقص او کمي راسي، په همدې وجه دا په "ناقص معجّل" سره نومول سوی دی.

## د بائع (مالک) د غائبېدلو مسئله

قَالَ: فَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ غَائِبًا فرمايي: که چيري بائع غائب وي فَلَا خُصُومَةَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْمُشْتَرِي نو د قرضخواهانو او مشتري تر مينځ خصومت نسته [يعني مشتري د دوی خصم نه ګرځي] مَعْنَاهُ إِذَا أَنْكَرَ الدَّيْنَ يعني کله چي مشتري د قرض انکار کوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ●: الْمُشْتَرِي خَصْمُهُمْ وَيُقْضَى لَهُمْ بِدَيْنِهِمْ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مشتري د قرضخواهانو خصم دی او د دوی لپاره به د خپل قرض فيصله کيږي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا اشْتَرٰى دَارًا وَوَهَبَهَا وَسَلَّمَهَا وَغَابَ ثُمَّ حَضَرَ الشَّفِيعُ او پر همدغه اختلاف دي کله چي مشتري يو کور رانيسي او هغه هبه کړي او [موهوب لهٗ ته يې] وسپاري بيا شفيع حاضر سي

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، لأنه إذا كان مع الإمام أحد من صاحبيه فقولهما راجح، وكذا في البحر الرائق (ج:٨، ص:١٩١)، والهداية (ج:٥ ص:٨٥). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٥٧]

فَالْمَوْهُوبُ لَهٗ لَيْسَ بِخَصْمٍ عِنْدَهُمَا نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز موهوب لهٗ خصم نه دی خِلَافًا لَهٗ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وَعَنْهُمَا مِثْلُ قَوْلِهِ فِي مَسْأَلَةِ الشُّفْعَةِ او له طرفينو رَحِمَهُمَا الله څخه د شفيع په مسئله کي يو روايت د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول په څېر نقل سوی دی لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَدَّعِي الْمِلْكَ لِنَفْسِهِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مشتري د خپل ځان لپاره د ملکيت دعویٰ کوي فَيَكُونُ خَصْمًا لِكُلِّ مَنْ يُنَازِعُهُ نو ځکه دا مشتري به د هر هغه چا خصم وي کوم چي د ده سره نزاع [او دعویٰ] کوي وَلَهُمَا: أَنَّ الدَّعْوٰى يَتَضَمَّنُ فَسْخَ الْعَقْدِ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي [د قرضخواهانو] دعویٰ د عقد فسخ کولو لره شامله ده وَقَدْ قَامَ بِهِمَا حال دا چي عقد په بائع او مشتري دواړو سره ولاړ دی فَيَكُونُ الْفَسْخُ قَضَاءً عَلَى الْغَائِبِ نو فسخ کول [يعني د فسخ کولو فيصله] به د غائب کس په خلاف فيصله کول وي [حال دا چي دغائب کس په خلاف د قاضي فيصله کول جائز نه دي]

**اللغات:** ﴿خصومة﴾ جنګ، دعویٰ، (خصومت په اصل کي دې ته وايي چي يو سړی پر بل چا د يو حق دعویٰ کوي او دا بل څوک له هغه څخه انکار کوي نو هر يو د خپل قول او دعویٰ د ربنتيا کولو لپاره د قاضي مخته د حجت او دليل پېشولو ته مجبوره سي)، ﴿خصم﴾ فريقِ مخالف، مدعي يا مدعیٰ عليه (دوی يو د بل خصم دي)، ﴿موهوب لهٗ﴾ د ضرب له بابه اسم مفعول دی: چا ته چي هبه سوې وي (هغه کس کوم چي ته بل چا يو شی هبه کړی وي)، ﴿ينازع﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: جنګ او اختلاف کول، نزاع او جنجال کول، ﴿يتضمن﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شاملېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که چيري بائع يعني د مأذون مقروضه غلام مالک د هغه تر خرڅولو وروسته غائب سي او بيا قرضخواهان پر هغه د خپل قرض دعویٰ وکړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چي دغه دعویٰ به نه اورېدل کيږي او مشتري د غرماؤ خصم نه ګرځي (يعني پر مشتري دا نه لازميږي چي د غرماؤ سره دعویٰ شکېل کړي او حجت پېش کړي او د نه پېشولو په صورت کي غلام غرماؤ ته واپس کړي)، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي مشتري خصم ګرځي او د غرماؤ دعویٰ معتبره کيږي؛ ځکه چي مشتري په دغه غلام کي د خپل ملکيت دعویٰ کونکی دی، لهذا څوک چي د هغه سره منازعت او دعویٰ کوي، مشتري به د هغه خصم وي، نو د خپل ملکيت د مستحکم کولو لپاره به هغه خپل حجت او صفايي پېشوي.

د طرفينو دليل دا دی چي که موږ د غرماؤ دعوی تسليم کړو او مشتري د دوی خصم وګرځوو، نو بائع (مالک) او مشتري چي کوم عقد سره کړی دی، د هغه فسخ کول به لازم سي، حال دا چي دلته بائع غائب دی، نو ځکه د عقد فسخ کولو فيصله به قضاء على الغائب وي، او قضاء على الغائب صحيح نه ده، لهذا نه به د غرماؤ دعوی صحيح وي او نه به دا فيصله صحيح وي. د دې مثال داسي دی لکه څوک چي يو کور رانيسي او بيا دا کور يو سړي ته هبه کړي او هغه سړي (موهوب لهٔ) ته يې وسپاري او خپله غائب سي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دغه موهوب لهٔ سړی د شفيع خصم نه ګرځي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه د شفيع خصم ګرځي، نو همداسي په پورتنۍ مسئله کي هم د هغه په نيز مشتري د غرماؤ خصم ګرځي. (احسن الهدايه)

## د اذن (اجازت) په هکله محض د خبر حکم

قَالَ: وَمَنْ قَدِمَ مِصْرًا وَقَالَ: أَنَا عَبْدٌ لِفُلَانٍ فرمايي: او څوک چي ښار ته راسي او ووايي: چي زه د فلانکي غلام يم فَاشْتَرَى وَبَاعَ بيا هغه رانيول او خرڅول وکړي لَزِمَهُ كُلُّ شَيْءٍ مِنَ التِّجَارَةِ نو پر هغه د تجارت هر شی لازميږي لِأَنَّهُ إِنْ أَخْبَرَ بِالْإِذْنِ ځکه چي هغه د اجازت خبر ورکړی دی فَالْإِخْبَارُ دَلِيلٌ عَلَيْهِ نو خبر ورکول پر همدې دليل دي وَإِنْ لَمْ يُخْبِرْ او که هغه [د اجازت] خبر نه ورکړي فَتَصَرُّفُهُ جَائِزٌ نو هم د هغه تصرف جائز دی إِذِ الظَّاهِرُ أَنَّ الْمَحْجُورَ يَجْرِي عَلَى مُوجَبِ حَجْرِهِ ځکه ظاهر همدا ده چي محجور د خپل حجر پر مُوجب قائم پاتيږي وَالْعَمَلُ بِالظَّاهِرِ هُوَ الْأَصْلُ فِي الْمُعَامَلَاتِ او په معاملاتو کي پر ظاهر عمل کول اصل دي كَيْلَا يَضِيقَ الْأَمْرُ عَلَى النَّاسِ د دې لپاره چي پر خلکو معامله تنګه [او مشکله] نه سي إِلَّا أَنَّهُ لَا يُبَاعُ حَتَّى يَحْضُرَ مَوْلَاهُ مګر دا غلام به [په قرض کي] نه خرڅول کيږي تر دې چي د هغه مالک حاضر سي لِأَنَّهُ لَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي الرَّقَبَةِ ځکه د رقبې [خپل ذات] په هکله د هغه قول مقبول نه دی لِأَنَّهَا خَالِصُ حَقِّ الْمَوْلَى ځکه چي رقبه خالص د مالک حق دی بِخِلَافِ الْكَسْبِ په خلاف د ګټي [ګټل سوي مال] لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چي هغه د غلام حق دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي موږ دا بيان کړه فَإِنْ حَضَرَ فَقَالَ: هُوَ مَأْذُونٌ بيا که مالک حاضر سي او ووايي: چي هغه مأذون دی بِيعَ فِي الدَّيْنِ نو هغه به په قرض کي خرڅول کيږي لِأَنَّهُ ظَهَرَ الدَّيْنُ فِي

حَقُّ الْمَوْلٰى ځکه چي د مالک په حق کي قرض ښکاره سو وَإِنْ قَالَ: هُوَ مَحْجُورٌ او که مالک ووايي: چي هغه محجور دی فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو [هم] د مالک قول معتبر دی لِأَنَّهُ مُتَمَسِّكٌ بِالْأَصْلِ ځکه چي هغه په اصل سره حجت نيونکی دی.

**اللغات:** ﴿الرقبة﴾ غاړه، ذات د غلام او مينځي (يعني مجازاً غلام او مينځي ته ويل کيږي)، ﴿الکسب﴾ ګټه، ګټل سوی مال، ﴿متمسك﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: حجت او دليل نيونکی.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي ښار او بازار ته يو سړی راغلی او ويې ويل چي زه د فلانکي غلام يم او هغه ما ته د تصرف او کاروبار اجازت راکړی دی، نو په ښار کي د هغه کاروبار (خرڅول او رونيول) جائز دي او د هغه حکم د مأذون په څېر دی؛ ځکه چي هغه د خپل مالک له طرفه د ځان د مأذون کېدلو خبر ورکړی دی (چي ما ته خپل مالک اجازت راکړی دی) او پر همدې بناء تصرف کوي، نو ځکه په دې کي هيڅ خبره نسته. او که هغه د اجازت خبر نه ورکړي، نو هم د هغه تصرف جائز کيږي؛ ځکه که چيري هغه محجوره وي نو د خپل محجوره کېدو خيال به ساتي او د مأذون والا تصرفات به نه کوي، نو ځکه پر ظاهرِ حال په عمل کولو سره به موږ هغه مأذون شمېرو او د هغه تصرف به جائز ګرځوو، کنې که د هغه د مأذون والي او محجور والي تفتيش او تحقيق شروع کړی سي او د هر تصرف په وخت کي د هغه تحقيق او پلټنه کيږي، نو له تصرّف څخه به زيات وخت په تحقيق کښېوځي او اصل مقصد به فوت سي. ها! که چيري په تجارت و تصرّف کي پر دغه غلام قرضونه باندي سي او د هغه ګټه (ګټل سوی مال) د قرض اداء کولو لپاره کافي نه وي، نو تر څو چي د هغه مالک را نه سي، تر هغه وخته به دا غلام په قرض کي نه خرڅول کيږي؛ ځکه چي رقبه خالص د مالک حق دی او د دغه راغلي غلام پر خبره په اعتماد کولو سره د مالک حق نه سي باطلول کېدای. ها! کله چي مالک راسي او ووايي چي دا غلام مأذون دی، نو د مالک د تصديق په وجه پر غلام لازم شُده قرضونه د مالک په حق کي ښکاره کيږي، نو ځکه تر دې وروسته هغه خرڅول کېدای سي.

او که چيري مالک ووايي چي دا غلام محجور دی (ما اجازت نه دی ورکړی)، نو په دې باره کي هم د مالک قول معتبر دی او بيا هغه نه سي خرڅول کېدای؛ ځکه چي مالک پر اصل قائم دي، ځکه د غلام نه مأذون کېدل (محجور کېدل) اصل دي او مالک همدا خبره کوي، نو ځکه به د هغه قول معتبر وي. والله أعلم



# فَصْلٌ (فِي بَيَانِ أَحْكَامِ إِذْنِ الصَّبِيِّ وَالْمَعْتُوهِ)

## (دا) فصل (د بچي او معتوه د اجازت په بيان کي) دی

**تشريح:** څرنګه چي د غلام د اذن احکام او مسائل کثيرُ الوقوع دي، نو ځکه هغوی مخکي بيان کړل سوي دي او د صبي و معتوه احکام او مسائل له هغوی څخه وروسته کړل سوي دي.

### د پوهېدونکي بچي د معاملاتو حکم

وَإِذَا أَذِنَ وَلِيُّ الصَّبِيِّ لِلصَّبِيِّ فِي التِّجَارَةِ او کله چي د بچي ولي بچي ته د تجارت اجازت ورکړي فَهُوَ فِي الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ كَالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ نو هغه په بيع و شراء کي د مأذون غلام په څېر دی إِذَا كَانَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ [په دې شرط] کله چي هغه په بيع وشراء پوهيږي حَتَّى يَنْفُذَ تَصَرُّفُهُ تر دې چي د هغه تصرف نافذيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَنْفُذُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه تصرف نه نافذيږي لِأَنَّ حَجْرَهُ لِصِبَاهُ ځکه چي د هغه محجوره کېدل د هغه د بچي والي [کم عمری] په وجه دي فَيَبْقَى بِبَقَائِهِ نو د هغه په پاتېدو سره به حجر هم باقي پاتيږي وَلِأَنَّهُ مُوَلًّى عَلَيْهِ او ځکه چي پر بچي ولي مقرر کړی سوی دی حَتَّى يَمْلِكَ الْوَلِيُّ التَّصَرُّفَ عَلَيْهِ وَيَمْلِكَ حَجْرَهُ تر دې چي ولي پر هغه د تصرف او حجر ملکيت لري فَلَا يَكُونُ وَالِيًا لِلْمُنَافَاةِ نو د منافاة په وجه بچی خپله نه سي ولي کېدای فَصَارَ كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ نو دا د طلاق او عتاق په څېر سو بِخِلَافِ الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ په خلاف د روژې او لمانځه لِأَنَّهُ لَا يُقَامُ بِالْوَلِيِّ ځکه چي هغه په ولي سره نه قائمول کيږي وَكَذَا الْوَصِيَّةُ عَلَى أَصْلِهِ او همداسي وصيت دی د امام شافعي رَحِمَهُ الله پر اصل فَتَحَقَّقَتِ الضَّرُورَةُ إِلَى تَنْفِيذِهِ مِنْهُ نو د بچي له طرفه د وصيت نافذولو ته ضرورت ثابت سو أَمَّا الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ فَيَتَوَلَّاهُ الْوَلِيُّ پاته سو خرڅول و رانيول نو ولي د هغه متولي او ذمه وار اوي فَلَا ضَرُورَةَ هٰهُنَا نو دلته هيڅ ضرورت نسته وَلَنَا: أَنَّ التَّصَرُّفَ الْمَشْرُوعَ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ عَنْ وِلَايَةٍ شَرْعِيَّةٍ زموږ دليل دا دی: چي مشروع

تصرف په شرعي ولايت سره د هغه له اهل شخه په خپل محل کي صادر سوی دی فَوَجَبَ تَنْفِيذُهُ
نو ځکه د هغه نافذول ضروري سوه عَلَى مَا عُرِفَ تَقْرِيرُهُ فِي الْخِلَافِيَّاتِ لکه څرنګه چي په خلافياتو
کَي د دې ثبوت پېژندل سوی دی وَالصِّبَا سَبَبُ الْحَجْرِ لِعَدَمِ الْهِدَايَةِ لَا لِذَاتِهِ او کوچنی والي [کم
عمري] د محجوره کېدلو سبب دی د هدايت د نشتوالي په وجه، نه د خپل ذات په وجه وَقَدْ ثَبَتَ نَظَرًا
إِلَى إِذْنِ الْوَلِيِّ او د ولي احازت ته په کتلو سره [په بچي کي] هدايت ثابت سوی دی وَبَقَاءُ وِلَايَتِهِ لِنَظَرِ
الصَّبِيِّ او د ولي د ولايت پاتېدل د بچي د ښېګني [او پر هغه د شفقت کولو] لپاره دي لِاسْتِيفَاءِ الْمَصْلَحَةِ
بِطَرِيقَيْنِ وَاحْتِمَالِ تَبَدُّلِ الْحَالِ د دې لپاره چي په دوو طريقو سره مصلحت ترلاسه کړی سي او د
حال بدلېدلو د احتمال په وجه بِخِلَافِ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ په خلاف د طلاق او عتاق لِأَنَّهُ ضَارٌّ مَحْضٌ
ځکه چي هغه خالص ضرر من [تصرفات] دي فَلَمْ يُؤَهَّلْ لَهُ نو ځکه بچی د هغه اهل نه دی ګرځول
سوی وَالنَّافِعُ الْمَحْضُ كَقَبُولِ الْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ يُؤَهَّلُ لَهُ قَبْلَ الْإِذْنِ او خالص نفع من [تصرفات] لکه هبه
او صدقه قبلول [نو] بچی د هغه اهل ګرځول سوی دی له اجازت څخه مخکي هم وَالْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ
دَائِرٌ بَيْنَ النَّفْعِ وَالضَّرَرِ او خرڅول ورانيول د نفع او ضرر په مينځ کي دائر دي فَيُجْعَلُ أَهْلًا لَهُ بَعْدَ
الْإِذْنِ لَا قَبْلَهُ نو ځکه تر تر اجازت وروسته به بچی د هغه اهل ګرځول کيږي، نه تر اجازت مخکي
لَكِنْ قَبْلَ الْإِذْنِ يَكُونُ مَوْقُوفًا مِنْهُ عَلَى إِجَازَةِ الْوَلِيِّ ليکن تر اجازت مخکي به د بچي بيع وشراء د ولي
پر اجازت ورکولو [نافذولو] موقوف پاتيږي لِاحْتِمَالِ وُقُوعِهِ د هغه د واقع کېدلو د احتمال په وجه
نَظَرًا د بچي د ښېګني لپاره وَصِحَّةِ التَّصَرُّفِ فِي نَفْسِهِ او في نفسه د تصرف صحيح کېدلو په وجه
وَذِكْرُ الْوَلِيِّ فِي الْكِتَابِ يَنْتَظِمُ الْأَبَ وَالْجَدَّ عِنْدَ عَدَمِهِ وَالْوَصِيَّ وَالْقَاضِيَ وَالْوَالِيَ او په قدوري [متن] کي د
ولي د لفظ ذکر کېدل پلار لره او د هغه د نشتوالي په وخت کي نيکه ، وصي، قاضي او ولي [ټولو] لره
شامل دی بِخِلَافِ صَاحِبِ الشُّرَطِ په خلاف د لښکر [عسکرو] د امير [يعني په خلاف د يو ښار او علاقې د
امير] لِأَنَّهُ لَيْسَ إِلَيْهِ تَقْلِيدُ الْقُضَاةِ ځکه چي هغه ته د قاضي ټاکلو اختيار نه وي [ځکه د دې اختيار
اميرُ المؤمنين (باچا) يا د هغه نائب ته وي] وَالشَّرْطُ أَنْ يَعْقِلَ كَوْنَ الْبَيْعِ سَالِبًا لِلْمِلْكِ جَالِبًا لِلرِّبْحِ او شرط دا

دي چې بچی به په دې پوهيږي چې بيع د ملکيت سلبونکې او د نفع را کشونکې [ترلاسه کونکې] ده وَالتَّشْبِيهُ بِالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ لَهُ يُفِيدُ أَنَّ مَا يَثْبُتُ فِي الْعَبْدِ مِنَ الْأَحْكَامِ يَثْبُتُ فِي حَقِّهِ او بچي ته د مأذون له غلام سره تشبيه ... کول د دې ... حکمونه ... مأذون غلام په حق کي ثابتيږي هغه د بچي په حق کي هم ثابتيږي لِأَنَّ الْإِذْنَ فَكُّ الْحَجْرِ ځکه اجازت ورکول خو د حجر ليري کول دي وَالْمَأْذُونُ يَتَصَرَّفُ بِأَهْلِيَّةِ نَفْسِهِ عَبْدًا كَانَ أَوْ صَبِيًّا او مأذون [اجازت ورکړی سوی کس] په خپلي ذاتي اهليت سره تصرف کوي برابره ده غلام وي او که بچی وي فَلَا يَتَقَيَّدُ تَصَرُّفُهُ بِنَوْعٍ دُونَ نَوْعٍ نو ځکه د هغه تصرف به [د تجارت] په يو خاص قسم سره نه مقيد کيږي وَيَصِيرُ مَأْذُونًا بِالسُّكُوتِ او بچی هم په سکوت سره مأذون ګرځي [يعني که ولي هغه پر خرڅولو او رانيولو ويني او ولي چپ پاته سي او هغه ته څه نه ووايي. نو په دې سره بچی مأذون ګرځي] كَمَا فِي الْعَبْدِ لکه څرنګه چي په غلام کي دي وَيَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِمَا فِي يَدِهِ مِنْ كَسْبِهِ وَكَذَا بِمَوْرُوثِهِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د مأذون بچي په قبضه کي چي خپل کوم ګټل سوی مال دی د هغه په هکله د ده اقرار صحيح کيږي او همدارنګه د خپل موروث مال په هکله په ظاهر روايت کي [يعني هغه ته چي کوم مال په ميراث کي حاصل سوی دی. د هغه په هکله هم د ده اقرار صحيح کيږي] كَمَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْعَبْدِ لکه څرنګه چي د غلام اقرار صحيح کيږي وَلَا يَمْلِكُ تَزْوِيجَ عَبْدِهِ وَلَا كِتَابَتَهُ [همدارنګه] هغه د خپل غلام د نکاح کولو او مکاتب جوړولو ملکيت نه لري كَمَا فِي الْعَبْدِ لکه څرنګه چي په غلام کي دي وَالْمَعْتُوهُ الَّذِي يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ بِمَنْزِلَةِ الصَّبِيِّ او هغه معتوه کس کوم چي په بيع وشراء پوهيږي هغه د بچي په درجه کي دی يَصِيرُ مَأْذُونًا بِإِذْنِ الْأَبِ وَالْجَدِّ وَالْوَصِيِّ دُونَ غَيْرِهِمْ چي هغه د پلار، نيکه او وصي په اجازت سره مأذون ګرځي. نه د بل چا په اجازت سره لِمَا بَيَّنَّاهُ لکه امخکي اچي مونږ دا بيان کړه وَحُكْمُهُ حُكْمُ الصَّبِيِّ او د هغه حکم د بچي د حکم په څېر دی.

**اللغات**: ﴿ولي﴾ مشر، سرپرست. ﴿ينفذ﴾ د نصر مضارع ده: نافذېدل، پوره کېدل (پای ته رسېدل). جاري کېدل. ﴿حجر﴾ د تصرف او کاروبار بنديز. ﴿صاحب الشرط﴾ شُرَط جمع د شُرْطَة. شُرَط د لښکر هغه اول جماعت او ټولی ته وايي کوم چي د جنګ ميدان ته راشوه سي، عسکر. صَاحِبُ الشُّرْطَة يا صَاحِبُ الشُّرَط د يو ښار او علاقې حاکم او امير ته وايي (مصباح المنير، اشرف الهدايه). ﴿مولى عليه﴾ مولى د افعال او تفعيل دواړو له بابه راتلای سي. د تفعيل باب: وَلّٰى يُوَلِّيْ تَوْلِيَةً. د افعال

باب: أَوْلٰى يُوْلِيْ إِيْلَاءً. د دواړو بابونو له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: ولي مقرر کول (ولي ټاکل)، د تفعيل له بابه اسم مفعول مُوَلًّى عَلَيه راځي او د افعال له بابه مُوْلٰى عَلَيه راځي، ﴿يتوّلی﴾ د تفعّل مضارع ده: ولي کېدل، ذمه وار کېدل، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره اخيستل، ترلاسه کول، ﴿ينتظم﴾ د افتعال مضارع ده: شاملېدل (احسن الهدايه)، ﴿سالب﴾ د نصر د باب فاعل دی: سلبونکی، بې برخه کونکی، ﴿جالب﴾ د نصر او ضرب د باب فاعل دی: راکشونکی، راوستونکی، ﴿تقليد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، له "قلادة" څخه مشتق دی، لغوي معنیٰ يې ده: د يو چا په غاړه هار او امېل ځړول، مراد ځني: قاضي جوړول، قاضي ټاکل، ﴿فكّ﴾ د نصر مصدر دی: ليري کول، خمتول، فك الحجر: بنديز ليري کول (پابندي ختمول)، ﴿تزويج﴾ د تفعيل مصدر دی: نکاح ورکول (واده ورکول)، ﴿معتوه﴾ باوله، او تره (اوتي بوتي ويونکی)، ناقصُ العقل او فاسدُ التدبير کس.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د بچي ولي (سرپرست) وبچي ته د تجارت او کاروبار اجازت ورکړي، نو دا بچی په بيع وشراء کي د مأذون غلام په څېر ګرځي، په دې شرط چي هغه په خرڅولو او رانيولو پوهيږي (چي په خرڅولو سره شی زما له ملکيته وځي او په رانيولو سره شی زما په ملکيت کي راځي)، تر دې چي د هغه تصرف نافذيږي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د هغه تصرف نه نافذيږي؛ ځکه چي د هغه محجوره کېدل د هغه د بچي والي په وجه دي، نو تر څو چي دا علت (بچي والي) باقي وي، تر هغه وخته به حجر باقي پاتيږي (لأن بقاء العلة تستلزم المعلول لا محالة)، او بل دا چي بچی خو په خپله مولیٰ عليه دی يعني پر هغه بل څوک ولي ټاکل سوی دی تر دې چي له اجازت څخه وروسته هم ولي د هغه په مال کي د تصرف کولو اختيار لري او هغه محجوره کولای سي، نو ځکه کوچنی په خپله نه سي ولي کېدلای؛ ځکه چي په ولي کېدلو او مولیٰ عليه کېدلو کي منافات دی؛ ځکه مولیٰ عليه کېدل د عجز علامت دی او ولي کېدل د قدرت او اختيار علامت دی، نو دا د طلاق او عتاق په څېر سو چي د بچي طلاق ورکول او آزادول صحيح نه دي، که څه هم ولي د هغه اجازت ورکړي، نو همداسي به د تجارت او کاروبار اجازت هم نه صحيح کيږي. په خلاف د روژې او لمانځه چي هغوی د بچي له طرفه صحيح کيږي: ځکه چي د هغوی اقامت د ولي په ذريعه نه کيږي. همدارنګه د امام شافعي رَحِمَهُ الله پر اُصول د بچي وصيت هم صحيح دی؛ ځکه د هغه په نيز اُصول دا دی چي هر هغه تصرف کوم

چې د ولي په ذريعه متحقق كيږي، هغه د بچي په كولو سره نه صحيح كيږي او كوم تصرف چې د ولي په ذريعه نه متحقق كيږي، هغه د بچي په كولو سره صحيح كيږي، نو د بچي له طرفه د وصيت نافذولو ته ضرورت ثابت سو، پاته سو خرڅول او رونيول، نو د هغه متولي او ذمه وار ولي وي، نو د بچي له طرفه د هغه نافذولو ضرورت نسته.

ولنا أن التصرّف إلخ: زموږ دليل دا دی چې د مأذون بچي له طرفه بيع و شراء (كاروبار) يو مشروع تصرف دي كوم چې په شرعي ولايت سره له داسي كس څخه صادر سوی دی چې په هغه كي د دغه كار لياقت (وړتيا) سته؛ ځكه چې بچی عاقل او مُميِّز دی او دا تصرف پر خپل ځای واقع سوی دی؛ ځكه چې مبيع متقوّم (قيمت لرونكی) مال دی، نو ځكه د هغه نافذول ضروري دي.

الصبا سبب الحجر إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول جواب دی چې كوچنيوالی (كم عمري) كوم چې د محجوره كېدلو سبب دی، هغه لذاتہ نه دی، بلكي په دې وجه دی چې بچي ته د تصرف هدايت حاصل نه وي او هغه د تصرف په طرز و طريقه پوره نه پوهيږي او د ضرر و تاوان سره مخامخ كيږي، لېكن په اجازت وركولو سره دا معلومه سوه چې بچي ته دغه هدايت حاصل دی، كنې ولي به هغه ته اجازت نه وركولای، لهذا كله چې د بچي رايه د ولي د رايي سره ضم سوه، نو بچی او بائع دواړه سره برابر سول، نو ځكه د نفع جانب ته به د ضرر و تاوان پر جانب ترجيح حاصله وي.

وبقاء ولاية إلخ: دا د يو سوال جواب دی. سوال دا دی چې كله د ولي په اجازت سره بچي ته د تصرف هدايت حاصل سو، نو تر دې وروسته د ولي ولايت باقي نه پاتېدل پكار دي.

د جواب حاصل دا دی چې د ولي ولايت ځكه پاتيږي چې د بچي مصلحت او ښېګڼه په دوو طريقو سره بشپړه ترلاسه كړی سي: ① يو دا چې بچي ته خپله هم هدايت او رهنمايي حاصله وي، ② دويم دا چې ولي هم د هغه څارنه كولای سي او دا هم احتمال سته چې د بچي حالت به بدل سي (يعني د تصرف له هدايته به بې برخي سي او بير ته به جاهل او ناپوه وګرځي) فأبقينا ولاية الولي لتدارك ذلك.

بخلاف الطلاق إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دغه قول "فصار كالطلاق والعتاق" جواب دی. حاصل يې دا دی چې بچی د نظر او مصلحت هم مستحق دی او له ضرر څخه محفوظ هم دی او تصرفات درې ډوله دي: ① ضار محض (خالص ضرر من تصرفات)، لكه طلاق وعتاق، هبه او صدقه، د داسي تصرفاتو

بچی نه مالک کیږي (یعني هغه ته د دغه ډول تصرّفاتو اختیار نه حاصلیږي) که څه هم ولي د هغوی اجازت هم ورکړي، ② نافع محض، لکه هبه و صدقه قبلول، او دا د ولي له اجازت څخه بغیر هم د بچي لپاره جائز دي او بلا اجازته هغه د داسې تصرفاتو مالک کیږي. ③ د نفع او ضرر په مینځ کې دائر تصرفات، لکه بیع وشراء، اجاره و نکاح، د داسې تصرفاتو بچی د ولي په اجازت سره مالک کیږي او بلا اجازته یې نه مالک کیږي، نو ځکه تر اجازت مخکې به د بچي بیع وشراء موقوف پاتې کیږي او د ولي په اجازت سره به جائز ګرځي؛ ځکه ممکنه ده چې هغه د مصلحت مطابق او په نافعه توګه واقع سوي وي مع صحة التصرّف في نفسه.

وذكر الولي في الكتاب إلخ: فرمايي په متن کي د ولي د لفظ تذکره د پلار په ناموجودیت کي نیکه لره او وصي، قاضي او ولي ټولو لره شامليږي، په خلاف د ښار او علاقې د امیر؛ ځکه چې قضاء (قضاوت) او د قاضي ټاکل هغه ته نه سپارل کیږي.

والشرط إلخ: او د بچي د تصرف صحیح کېدلو لپاره دا شرط او ضروري دي چې هغه به په دې پوهیږي چې په خرڅولو سره ملکیت زائلیږي او منفعت لاس ته راځي. او په دغه جمله "وهو في البيع والشراء كالعبد المأذون" کي چې د مأذون غلام سره د بچي کومه تشبیه ورکول سوې ده، د هغه فایده دا ده چې د مأذون غلام په حق کې چې مخکې (په کتابُ المأذون کې) کوم احکام ثابت سوي دي، هغه د مأذون بچي په حق کي هم ثابتیږي.



# كِتَابُ الْغَصْبِ

(دا) کتاب د غصب (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: څرنګه چې مأذون غلام د بل چا په مال کې په شرعي اجازت سره تصرف کوي او غاصب بلا اجازته تصرف پکښې کوي، نو د دوی دواړو په مینځ کې مناسبت مقابله دی، خو څرنګه چې اذن مشروع دی او غصب غیر مشروع دی، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله کتابُ المأذون مخکې بیان کړی دی او کتابُ الغصب یې تر هغه وروسته کړی دی.

## د غصب لغوي او اصطلاحي معنیٰ

الْغَصْبُ فِي اللُّغَةِ عِبَارَةٌ عَنْ أَخْذِ شَيْءٍ مِنَ الْغَيْرِ عَلَى سَبِيلِ التَّغَلُّبِ غصب په لغت کې عبارت دی له بل چا څخه د غلبې په توګه د یو شي د اخیستلو [یعني د لغت په اعتبار سره غصب دا دی چې: له یو چا څخه د زور او غلبې پر بنیاد یو شی واخیستل سي] لِلِاسْتِعْمَالِ فِيهِ بَيْنَ أَهْلِ اللُّغَةِ ځکه د لغتپوهانو په مینځ کې غصب په همدې معنیٰ سره مستعمل دی وَفِي الشَّرِيعَةِ أَخْذُ مَالٍ مُتَقَوِّمٍ مُحْتَرَمٍ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَالِكِ عَلَى وَجْهٍ يُزِيلُ يَدَهُ او په شریعت کې د یو قیمتي او محترم مال اخیستل دي د مالک له اجازت څخه بغیر په داسې توګه چې د مالک قبضه [او تصرف] زائل کړي حَتَّى كَانَ اسْتِخْدَامُ الْعَبْدِ وَحَمْلُ الدَّابَّةِ غَصْبًا تر دې چې [د بل چا] له غلام څخه خدمت اخیستل یا [د بل چا] پر څاروي بار وړل به غصب وي دُونَ الْجُلُوسِ عَلَى الْبِسَاطِ نه [د بل چا] پر فرش کښېنستل ثُمَّ إِنْ كَانَ مَعَ الْعِلْمِ بیا که چیرې غصب د علم اخبر] باوجود وي فَحُكْمُهُ الْمَأْثَمُ وَالْمَغْرَمُ نو د هغه حکم ګناه او جرمانه [تاوان] دی وَإِنْ كَانَ بِدُونِهِ او که بلا علمه وي فَالضَّمَانُ نو د هغه حکم ضمان [تاوان] دی لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چې دا د بنده حق دی

فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلىٰ قَصْدِهٖ نو ځکه دا به د هغه پر اراده نه موقوف کیږي وَلَا إِثْمَ او اد لا علمی په صورت کې ا
ګناه نسته لِأَنَّ الْخَطَأَ مَوْضُوعٌ ځکه چې خطاء په شریعت کې معاف کړی سوې ده.

**اللغات**: ﴿مال محترم﴾ داسي مال او داسي شی چي د هغه خیال ساتل پر انسان لازم وي او د هغه نا حقه اخیستل روا نه وي، ﴿بساط﴾ هر هغه څه چي پر ځمکه هواریږي، بستره، فرش، تټاټ. ﴿مغرم﴾ د سمع د باب مصدرِ میمي دی: جرمانه، تاوان.

**تشریح**: د غصب لغوي معنیٰ ده: له یو چا څخه په زوره شی اخیستل (جبراً او ظلماً اخیستل) او د شریعت په اصطلاح کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه تعریف داسي ذکر کړی دی "أخذ مال متقوّم محترم بغير إذن المالك على وجه يُزِيْلُ يدَه"، ترجمه يې په عبارت کي ذکر سوه، نو غصب په مرادر سوي شاروي کي نه ثابتیږي؛ ځکه چي هغه مال نه دی، او نه د مسلمان کس په شرابو کي غصب ثابتیږي؛ ځکه چي شراب د مسلمان په حق کي متقوّم (قیمت لرونکي) نه دي او نه د حربي کافر په مال کي غصب ثابتیږي؛ ځکه چي هغه محترم نه دی بلکي د هغه اخیستل جائز او روا دي، او په "بغير إذن المالك" سره له ودیعت څخه احتراز سوی دی او صاحب د تعریفات جرجاني د غصب د مذکوره تعریف سره د "بِلَا خُفْيَةٍ" قید هم لګولی دی، یعني بغیر له پټېدو په ښکاره توګه له مالک څخه متقوّم محترم مال اخیستل، نو په "بلا خفية" سره له غلا څخه احتراز سوی دی، ځکه چي په غلا کي إزالةُ اليد خفيةً وي او په غصب کي علانيةً وي، او ځینو حضراتو په مختصره توګه د غصب جامع و مانع شرعي تعریف داسي ذکر کړی دی "هو إزالة اليد المحقة بإثبات اليد المبطله" یعني د شریعت په اصطلاح کي د غصب معنیٰ ده: "د حقداره کس قبضه لیري کول او ناحقه قبضه کول"، او صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله چي کوم تعریف ذکر کړی دی د هغه حقیقي مطلب همدغه دی.

د غصب په تعریف کي د "يُزِيْل" لفظ ذکر سوی دی چي د هغه مصدر "إزالة" دی، إزاله عام ده برابره ده حقیقتاً وي او که حکماً وي، د حقیقتاً مثال ښکاره دی، د حکماً مثال لکه مودَع چي (قبل از نقل) له ودیعت څخه انکار وکړي، ځکه له انکار څخه مخکي د مودع قبضه وي او کله چي مودَع د

وديعت انکار وکړي، نو د مالک (مودِع) قبضه حکماً زائله سي، څرنګه چي په غصب کي د إزالةُ اليد (قبضې زائلولو) اعتبار کيږي، نو ځکه د مغصوب شي د زوائدو ضمان نه لازميږي حکه چي په هغوی کي إزالةُ اليد نه کيږي (چي وروسته به يې تفصيل ذکر سي).

حتی کان استخدام إلخ: دا عبارت د غصب پر مذکوره تعريف متفرع دی، يعني څرنګه د غصب حقيقت د حقداره کس قبضه ليري کول او ناحقه قبضه کول دی، نو د بل چا له غلام څخه خدمت اخيستل او د بل چا پر څاروي بار وړول به غصب وي؛ ځکه چي د خدمت اخيستونکي او بار وړونکي د تصرف قبضه ثابته سوه چي په هغه سره د مالک قبضه زائليږي، نو إزالةُ اليد موجود سو، لېکن د بل چا پر بستره يا فرش کښېنستل به غصب نه وي؛ ځکه چي بستره او فرش هوارول د مالک فعل دی او په استعمال کي يې د هغه اثر باقي دي، او د چا د فعل اثر چي باقي وي، د هغه قبضه باقي پاتيږي، نو إزالةُ اليد موجود نه سو.

ثم إن كان إلخ: بيا که غاصب په دې خبر وي چي دا شی د مالک (مغصوب منهٔ) ملکيت دی او غصب يې کړي، نو غاصب ګنهګاره کيږي او ضمان (تاوان) پر لازميږي، لقوله تعالی ﴿لَا تَأْكُلُوْا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ [سورة النساء: ٢٩]، وقال ﷺ: "مَنْ أَخَذَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا طَوَّقَهُ اللهُ مِنْ سَبْعِ أَرْضِيْنَ" [صحيحين]، او که غاصب په دې خبر نه وي او بلا علمه داسي وکړي، نو صرف ضمان پر لازميږي؛ ځکه چي ضمان د بنده حق دی، نو ځکه د غاصب پر قصد و اراده به نه موقوف کيږي، او ګناه ځکه نسته چي کوم فعل په خطاء او غلطۍ سره وسي، د هغه ګناه معاف کړی سوې ده. قال الله تعالی: ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَا أَخْطَأْتُمْ بِهٖ وَلٰكِنْ مَا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾ [سورة الأحزاب: ٥]، وقال ﷺ: "رُفِعَ عَنْ أُمَّتِي الْخَطَأُ وَالنِّسْيَانُ وَمَا اسْتُكْرِهُوْا عَلَيْهِ".

## د غصب کړی سوي (مغصوب) شي د هلاکېدلو بيان

قال: وَمَنْ غَصَبَ شَيْئًا لَهُ مِثْلٌ فرمايي: او که څوک داسي شی غصب کړي چي د هغه مثل موجود وي كَالْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ لکه کيلي او وزني شی فَهَلَكَ فِي يَدِهِ بيا هغه شی د ده په قبضه کي هلاک سي فَعَلَيْهِ مِثْلُهُ نو پر ده [غاصب] د هغه شي مثل واجب دی وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: فَعَلَيْهِ ضَمَانُ مِثْلِهِ او په بعضي نسخو کي [ذکر سوي] دي: چي پر ده د هغه شي د مثل ضمان [تاوان] واجب دی وَلَا تَفَاوُتَ

بَيْنَهُمَا او د دې دواړو په مينځ کې هيڅ فرق نشته [ځکه د دواړو خبرو حاصل يو دی] وَهٰذَا لِأَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْمِثْلُ او دا حکم ځکه دی چې [پر ذمه] واجبېدونکی شی مثل دی لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: ﴿فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ﴾ [البقرة:194] ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي: "او څوک چې پر تاسو زياتوب وکړي نو تاسي د هغه د زياتوب په مثل [په څير] زياتوب پر وکړی" وَلِأَنَّ الْمِثْلَ أَعْدَلُ او ځکه چې په مثل کې زيات عدل [او برابري] وي لِمَا فِيهِ مِنْ مُرَاعَاةِ الْجِنْسِ وَالْمَالِيَّةِ ځکه چې په هغه کې د جنس او ماليت دواړو رعايت شته فَكَانَ أَدْفَعَ لِلضَّرَرِ نو ځکه هغه به د ضرر زيات دفع کونکی وي قَالَ: فَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ عَلىٰ مِثْلِهِ فرمايي: او که غاصب د مغصوب شي پر مثل [اداء کولو] قدرت پيدا نه کړي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ يَوْمَ يَخْتَصِمُوْنَ نو بيا پر ده د هغه ورځې قيمت واجب دی په کومه ورځ چې دوی يو د بل سره خصومت [ او دعویٰ] کړې وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: يَوْمَ الْغَصْبِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د غصب د ورځې قيمت واجبېږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: يَوْمَ الْاِنْقِطَاعِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د انقطاع [يعني په کومه ورځ چې د هغه شي مثل له بازار څخه منقطع سوی وي، د هغه] ورځې قيمت واجبېږي لِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّهُ لَمَّا انْقَطَعَ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې کله هغه منقطع [نېستې] سو اِلْتَحَقَ بِمَا لَا مِثْلَ لَهُ نو د هغه شي سره يو ځای سو چې هغه لره مثل نه وي [يعني د غير مثلي شي په درجه کې سو] فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ انْعِقَادِ السَّبَبِ نو ځکه د سبب [غصب] د منعقد کېدلو د ورځې قيمت به معتبر وي إِذْ هُوَ الْمُوْجِبُ ځکه چې همدا سبب [د ضمان] واجبونکی دی وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْوَاجِبَ الْمِثْلُ فِي الذِّمَّةِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې پر ذمه اصل واجب شی خو مثل دی وَإِنَّمَا يُنْتَقَلُ إِلَى الْقِيمَةِ بِالْاِنْقِطَاعِ او د قيمت وطرف ته خو د شي د منقطع کېدو په وجه هغه منتقل

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، قال العلامة داماد افندي: وعند محمد رَحِمَهُ الله يوم الانقطاع؛ لأنه صار كالذي لا مثل له، وبه قال أحمد وبعض الشافعية وبه أفتى كثير من المشائخ كما في القهستاني (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۹)، وكذا في رد المحتار (ج:۵، ص:۱۲۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۵۸]

کيږي فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الِانْقِطَاعِ نو ځکه د هغه منقطع کېدو د ورځې قيمت به معتبر وي وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ النَّقْلَ لَا يَثْبُتُ بِمُجَرَّدِ الِانْقِطَاعِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې محض په منقطع کېدو سره نقل نه ثابتيږي وَلِهٰذَا لَوْ صَبَرَ إِلَى أَنْ يُوجَدَ جِنْسُهُ همدا وجه ده که د شي مالک [مغصوب منه] د مغصوب شي د جنس پيدا کېدلو تر وخته پورې صبر کول وغواړي لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې اختيار سته وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ بِقَضَاءِ الْقَاضِيْ او هغه [مثل] خو د قاضي په فيصله سره [د قيمت وطرف ته] منتقل کيږي فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْخُصُومَةِ وَالْقَضَاءِ نو ځکه د هغه د خصومت او فيصلې والا د ورځې قيمت به معتبر وي بِخِلَافِ مَا لَا مِثْلَ لَهُ په خلاف د هغه شي کوم چې مثل نه لري لِأَنَّهُ مُطَالَبٌ بِالْقِيمَةِ بِأَصْلِ السَّبَبِ كَمَا وُجِدَ ځکه چې په هغه کې د اصل سبب [غصب] په موجودېدلو سره سمدستي د قيمت مطالبه کيږي فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ عِنْدَ ذٰلِكَ نو ځکه د همغه وخت قيمت به معتبر وي قَالَ: وَمَا لَا مِثْلَ لَهُ فرمايي: او کوم شي چې مثل نه لري [يعني غير مثلي شی] فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ يَوْمَ غَصْبِهِ نو پر غاصب د هغه شي د غصب د ورځې قيمت واجب دی مَعْنَاهُ الْعَدَدِيَّاتُ الْمُتَفَاوِتَةُ د "لا مثل له" څخه مراد عددي متفاوت شيان دي لِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ مُرَاعَاةُ الْحَقِّ فِي الْجِنْسِ ځکه کله چې په جنس کې د حق رعايت کول مشکل سوه فَيُرَاعَى فِي الْمَالِيَّةِ وَحْدَهَا نو يوازې په ماليت کې به د حق رعايت کيږي دَفْعًا لِلضَّرَرِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ د دې لپاره چې د امکان په اندازه ضرر دفع کړی سي أَمَّا الْعَدَدِيُّ الْمُتَقَارِبُ پاته سو عددي متقارب شی فَهُوَ كَالْمَكِيلِ نو هغه د کيلي شي په څېر دی حَتَّى يَجِبَ مِثْلُهُ تر دې چې د هغه مثل واجبيږي لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ ځکه چې [په هغه کې] تفاوت کم وي وَفِي الْبُرِّ الْمَخْلُوطِ بِالشَّعِيرِ الْقِيمَةُ او د اُوربشو سره په ګډ کړل سوو غنمو کې قيمت واجب دی [يعني که څوک داسې غنم غلا کړي کوم چې په اُوربشو ګډ کړل سوي وي، نو پر هغه قيمت واجبيږي. نه مثل] لِأَنَّهُ لَا مِثْلَ لَهُ ځکه چې د هغه هيڅ مثل نسته.

**اللغات**: ﴿مکيل﴾. کيلي شی. يعني کوم شی چې پيمانه کيږي او په پيمانه (يعني په معلوم ظرف او لوښي) سره خرڅيږي. ﴿موزون﴾ وزني شی. يعني کوم شی چې تلل کيږي او په وزن (تللو) سره

خرڅيږي، ﴿مراعاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: رعايت او لحاظ کول. ﴿يختصمون﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: جنګ او مخالفت کول، دعویٰ کول. ﴿خصومة﴾ جنګ او دعویٰ. ﴿التحق﴾ د افتعال ماضي ده: ور سره يو ځای کېدل (متصل کېدل). ﴿العددي المتقارب﴾ هغه شی کوم چې په ... سره معلوموول او خرڅول کيږي او په خپل مينځ کې يو بل ته نژدې، نژدې وي يعني د جوړ او اندازې په اعتبار سره تفاوت پکښې کم وي او هر فرديې په يوه قيمت سره خرڅول کيږي يعني د قيمت په اعتبار سره تفاوت پکښې نه وي، لکه هګۍ او داسې نور. او له همدې څخه د عددي متفاوت معنیٰ په خپله ښکاره کيږي. ﴿تعذر﴾ د تفعل د باب ماضي ده: مشکل کېدل، ناممکن کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو شی غصب کړي، بيا دا شی د غاصب په قبضه کې هلاک سي، نو دې ته به کتل کيږي چې د دغه مغصوب شي مثل سته، کنه (يعني د هغه په څېر بل شی سته، که نه؟)، که چيري د هغه مثل وي او غاصب د مثل پر اداء کولو قادر وي، نو پر غاصب د هغه د مثل ضمان واجبيږي (يعني په تاوان کې به د هغه په څېر شی ورکوي)؛ ځکه چې د دغه قرآني نص ﴿فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ﴾ سره ضمان بالمثل اصل دی او په ضمان بالمثل کې د ماليت او جنيست دواړو په اعتبار سره د حق رعايت سته، لهذا تر څو چې د ضمان بالمثل امکان باقي پاته وي، تر هغه وخته به د قيمت وطرف ته رجوع نه کيږي. ها! که چيري غاصب پر ضمان بالمثل قادر نه وي، يعني د مغصوب شی مثل منقطع او نېستي سي او د هغه په څېر شی نه پيدا کيږي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مغصوب شي د هغه ورځي قيمت واجبيږي. په کومه ورځ چې غاصب او مالک خصومت او دعویٰ کړې وي (يعني په کومه ورځ چې قاضي د دوی په مينځ کې فيصله کړې وي)، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د غصب د ورځي قيمت واجبيږي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چې په کومه ورځ له بازار څخه د مغصوب شي مثل منقطع سوی وي. د هغه ورځي قيمت واجبيږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې کله د مغصوب شي مثل منقطع سو، نو هغه د غير مثلي شي په درجه کې سو، او د غير مثلي شي په غصب کې د غصب د ورځي قيمت معتبر وي، نو ځکه دلته به هم د غصب د ورځي د قيمت اعتبار کيږي؛ ځکه چې همدا غصب د ضمان واجبېدلو سبب دی.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې پر غائب خو اصلاً مثل واجب دی، لېکن کله چې مثل (له بازار څخه) منقطع سو، نو د قيمت وطرف ته به رجوع کيږي؛ ځکه د انقطاع په وجه د ضمان وجوب د قيمت وطرف ته منتقل کيږي، نو ځکه د انقطاع د ورځي قيمت به معتبر وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چي محض په انقطاع سره د ضمان وجوب د قیمت وطرف ته نه منتقل کیږي، بلکي کله چي غاصب او مالک خصومت وکړي او د قاضي مخته خپله دعویٰ پېش کړي او قاضي پر غاصب د ضمان اداء کولو فیصله وکړي، نو بیا دا وجوب د قیمت وطرف ته منتقل کیږي، نو ځکه موږ پر غاصب د یومُ الخصومت او یومُ الانتقال قیمت واجب کړی دی.

او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چي پورتنی صورت مسئله پر غیر مثلي شي قیاسوي، دا صحیح نه دي؛ ځکه چي د غیرِ مثلي شي په غصب کي خاص د غصب له وخته قیمتْ واجبیږي او دلته (په مثلي شي کي) وروسته قیمت واجبیږي، نو ځکه د غیرِ مثلي شي پر غصب قیاس کول صحیح نه دي.

**ومالا مثله إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که د هلاک سوي مغصوب شي مثل نه وي، لکه عددي متفاوت شیان مثلاً انار، سېبونه، هندواني او داسي نور، نو په داسي شیانو کي د غصب د ورځي قیمت واجبیږي؛ ځکه د صورتاً مثل د نا موجودېدلو په وجه صرف معناً مثل پاته سو، نو ځکه حتی الامکان به د مثلِ معنوي (قیمت) رعایت کیږي. ها! که چیري هلاک سوی مغصوب شی عددي متقارب وي لکه هګۍ او جوز، نو داسي شیان د مکیلي شیانو په حکم کي دي او په دوی کي د تفاوت د کموالي په وجه صرف ضمان بالمثل واجبیږي. (احسن الهدایه)

## د مغصوب شي د واپس کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَعَلَى الْغَاصِبِ رَدُّ الْعَيْنِ الْمَغْصُوبَةِ فرمایي: او پر غاصب عَینِ مغصوب واپس واپس کول واجب دي مَعْنَاهُ مَا دَامَ قَائِمًا یعني تر څو چي هغه موجود پاته وي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «عَلَى الْيَدِ مَا أَخَذَتْ حَتّٰى تَرُدَّ» ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: "پر لاس واجب دي هغه څه کوم چي لاس اخیستي وي تر دې چي هغه واپس کړي" وَقَالَ عليه السلام [2]: «لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَأْخُذَ مَتَاعَ أَخِيهِ لَاعِبًا وَلَا جَادًّا فَإِنْ أَخَذَهُ فَلْيَرُدَّهُ عَلَيْهِ» [همدارنګه] نبي ﷺ فرمایلي دي: هیچا ته روا نه دي چي د خپل ورور شی واخلي نه د بازی [مسخرو] په توګه او نه د قصد [ربښتیا والي] په توګه نو که چیري هغه یې واخلي نو بیرته دي یې ورته واپس کړي" وَلِأَنَّ الْيَدَ حَقٌّ مَقْصُودٌ او ځکه چي قبضه هم مقصود حق دی وَقَدْ

---

[1] تخریج: رواه أبو داؤد، رقم الحديث: ۳۵۶۱، وابن ماجة رقم الحديث: ۲۴۰۰. (احسن الهدايه)

[2] تخریج: رواه أبو داؤد، رقم الحديث: ۵۰۰۳، والترمذي: ۲۱۶۰. (احسن الهدايه)

فَوَّتَهَا عَلَيْهِ حال دا چي غاصب [د غصب په ذريعه د مالک] قبضه فوت کړه فَيَجِبُ إِعَادَتُهَا بِالرَّدِّ إِلَيْهِ نو ځکه مالک ته [د مغصوب شي] په واپس کولو سره د دغه قبضې اعاده ضروري ده وَهُوَ الْمُوجَبُ الْأَصْلِيُّ عَلَىٰ مَا قَالُوا او همدا [د عَين شي واپس کول] اصلي واجب کړی سوی دی لکه څرنګه چي مشايخو فرمايلي دي وَرَدُّ الْقِيمَةِ مَخْلَصٌ خَلَفًا او قيمت واپس کول خو محض د خلاصون خليفه [نائب] دی لِأَنَّهُ قَاصِرٌ ځکه چي د قيمت واپس کول ناقص دي إِذِ الْكَمَالُ فِي رَدِّ الْعَيْنِ وَالْمَالِيَّةِ ځکه بشپړتيا خو د عَين او ماليت دواړو په واپس کولو کي ده وَقِيلَ: الْمُوجَبُ الْأَصْلِيُّ الْقِيمَةُ او ويل سوي دي: چي اصلي واجب کړی سوی شی قيمت دی وَرَدُّ الْعَيْنِ مَخْلَصٌ او د عَين واپس کول محض خلاصون دی وَيَظْهَرُ ذٰلِكَ فِي بَعْضِ الْأَحْكَامِ او دا حکم په بعضي احکامو کي ښکاره کيږي وَالْوَاجِبُ الرَّدُّ فِي الْمَكَانِ الَّذِي غَصَبَهُ او واجب په هغه ځای کي واپس کول دي چيري چي يې هغه شی غصب کړی وي لِتَفَاوُتِ الْقِيَمِ بِتَفَاوُتِ الْأَمَاكِنِ ځکه چي د ځايو په بدلېدو سره قيمتونه هم بدليږي فَإِنِ ادَّعَىٰ هَلَاكَهَا او که غاصب د مغصوب شي د هلاکېدلو [ضايع کېدلو] دعوىٰ وکړي حَبَسَهُ الْحَاكِمُ حَتَّىٰ يَعْلَمَ أَنَّهَا لَوْ كَانَتْ بَاقِيَةً لَأَظْهَرَهَا نو قاضي دي هغه قيد کړي تر دې چي ده ته معلومه سي چي که مغصوب شی پاته وای نو غاصب به هغه ښکاره کړي وای أَوْ تَقُومُ بَيِّنَةٌ يا [د هغه پر هلاکېدلو] بېنه پېش سي ثُمَّ قَضَىٰ عَلَيْهِ بِبَدَلِهَا بيا دي قاضي د مغصوب شي د عوض اداء کولو فيصله وکړي لِأَنَّ الْوَاجِبَ رَدُّ الْعَيْنِ ځکه چي واجب د عَين واپس کول دي وَالْهَلَاكُ بِعَارِضٍ او هلاکېدل په يو عارضي سبب سره دي فَهُوَ يَدَّعِي أَمْرًا عَارِضًا خِلَافَ الظَّاهِرِ نو غاصب د يو عارضي امر دعوىٰ کوي کوم چي د ظاهر په خلاف دی فَلَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ نو ځکه د هغه قول به نه قبلول کيږي كَمَا إِذَا ادَّعَى الْإِفْلَاسَ وَعَلَيْهِ ثَمَنُ مَتَاعٍ لکه کله چي يو څوک د خپل مفلس والي دعوىٰ وکړي او پر هغه د سامان ثمن [قيمت] باندي وي فَيُحْبَسُ إِلَىٰ أَنْ يُعْلَمَ مَا يَدَّعِيهِ نو هغه قيدول کيږي تر دې چي کومه دعوىٰ کوي هغه معلومه سي فَإِذَا عَلِمَ الْهَلَاكَ بيا چي کله هلاکېدل معلوم سي سَقَطَ عَنْهُ رَدُّهُ نو له هغه څخه د عَين واپس کول ساقطيږي فَيَلْزَمُهُ رَدُّ بَدَلِهِ وَهُوَ الْقِيمَةُ نو پر هغه د بدل واپس کول لازميږي چي هغه قيمت دی.

**اللغات**: ﴿ردّ﴾ د نصر مصدر دی: واپس کول (بيرته ورکول). ﴿العين المغصوبة﴾ غصب کړی سوی شی. ﴿جادا﴾ د ضرب د باب فاعل دی، جَدَّ يَجِدُّ جَدًا والاسم منه جِدًّا. د دغه باب څو معناوي دي چي د هغه يوه معنیٰ د هزل ضد دی: بې مسخرو يو کار او يو خبره کول. يعني د زړه په قصد او اراده سره يو کار يا يو خبره کول. ﴿فوّت﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: فوت کول. ضايع کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د غاصب په قبضه کي مغصوب شی بعينهٖ موجود وي، نو پر غاصب د هغه واپس کول لازم او ضروري دي؛ ځکه په حديث مبارک کي د واپس کولو حکم سوی دی او له واپس کولو څخه مخکي هغه د غاصب په قبضه کي شمېرل سوی دی. د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چي کله شی د مالک په قبضه کي وي نو په هغه کي مالک د خپل خوښې مطابق تصرف کولای سي او دا قبضه حق مقصود وي، حال دا چي غاصب له مالک څخه د شي په غصب کولو سره د هغه حق او قبضه فوت کړي، نو ځکه د دغه حق د تلافی او د قبضې د واپسی لپاره دا ضروري ده چي غاصب عَينِ مغصوب مالک ته وسپاري او بل دا چي د عَين د واپس کولو په صورت کي د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره واپسي کامله وي، نو په دې وجه هم عَينِ مغصوب واپس کول ضروري دي. ها! کله چي د عَين واپسي ناممکنه وي، نو بيا قيمت د هغه قائم مقام کيږي نو د بدل په توګه به قيمت اداء کول کيږي. همدا صحيح او معتمد قول دی.

د ځينو حضراتو رايه دا ده چي په غصب کي مُوجَب اصلي قيمت دی. يعني د قيمت اداء کول د عَين له اداء کولو څخه اصل او کامل دي او د عَين په واپس کولو سره محض ځان خلاصيږي. لکه څرنګه چي که د غاصب سره عَين موجود وي او مالک هغه له ضمان څخه بري کړي، نو دا ابراء صحيح کيږي حتی که تر دې وروسته دا عَين هلاک سي، نو ضمان نه واجبيږي. حال دا چي که د عَين واپس کول اصلي مُوجب وای، نو دا ابراء به نه صحيح کېدای؛ ځکه چي له عَين څخه بري کول نه صحيح کيږي (حاشيه). معلومه سوه چي قيمت مُوجب اصلي دی.

د معتمد قول والا حضراتو له طرفه د دې جواب دا دی چي که موجب اصلي قيمت وای، نو د عَين د موجود والي په وخت کي به د قيمت واپس کول جائز وای. حال دا چي د عَين په وجود کي قيمت واپس کول معتبر نه دي. نو ځکه مُوجب اصلي همدا د عَين واپس کول دي. او دا پر ابراء قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي د قيمت ابراء د عَين ابراء لره هم مستلزم ده؛ ځکه قيمت خو د معلې عين سره متعلق دی.

والواجب إلخ: د دې حاصل دا دی چې دځای او مقام په بدلېدو سره د شي په قیمت کې هم بدلون راځي، نو ځکه که د غصب ځای د رد (واپس کولو) له ځای څخه ډېر لیرې وي، نو بیا د غصب په ځای کې واپس کول ضروري دي، او که چیرې د غصب او رد په ځایو کې د قیمت په اعتبار سره تفاوت نه وي، نو بیا چیرې چې د غاصب زړه وغواړي، هلته دې یې واپس کړي، هیڅ حرج پکښې نشته.

فإن ادّعى الهلاك إلخ: که غاصب دا دعویٰ وکړي چې مغصوب شی زما سره موجود نه دی بلکې هغه هلاک او ضایع سو، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې تر څو د هغه شي هلاکېدل واضح او معلوم نه سي یا پر هغه بیّنه پېش نه کړی سي، تر هغه وخته دې قاضي غاصب بندي وساتي، او کله چې د مغصوب شي هلاکېدل ثابت سي، نو بیا دې پر هغه د بدل یعنې د قیمت اداء کولو حکم صادر کړي. (احسن الهدایه)

## غصب په منقولي شیانو کې ثابتیږي

قَالَ: وَالْغَصْبُ فِيمَا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ فرمایي: او غصب په هغو شیانو کې کیږي کوم چې [له یوه ځایه بل ځای ته] نقل کېدای سي [یعني په منقولي شیانو کې ثابتیږي] لِأَنَّ الْغَصْبَ بِحَقِيقَتِهِ يَتَحَقَّقُ فِيهِ دُونَ غَيْرِهِ ځکه چې حقیقي غصب په همدې [منقولي شیانو] کې موجودیږي، نه په بل څه کې لِأَنَّ إِزَالَةَ الْيَدِ بِالنَّقْلِ ځکه چې د قبضې ازاله د نقل په ذریعه کیږي [یعني صرف د شي په نقل کولو (وړلو) سره د مالک قبضه زائلول کیږي] وَإِذَا غَصَبَ عَقَارًا فَهَلَكَ فِي يَدِهِ او که څوک جایداد غصب کړي او هغه د ده په قبضه کې ضایع سي لَمْ يَضْمَنْهُ نو غاصب د هغه نه ضامن کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ دا حکم د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ [1]: يَضْمَنُهُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چې غاصب د هغه ضامن کیږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ الْأَوَّلُ او همدا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اول قول دی وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی لِتَحَقُّقِ إِثْبَاتِ الْيَدِ د قبضې د ثابتولو [قبضه کولو] د موجودېدلو په وجه [یعني ځکه چې په غصب سره د غاصب د قبضې اثبات کیږي] وَمِنْ

[1] القول الراجح: في هذه المسئلة تفصيل وهو إن كان الغاصب غصب أرضًا أو دارًا موقوفًا، فالفتوىٰ في هذه الصورة على قول محمد رحمه الله. وإن كان الغاصب غصب أرضًا غير موقوفة، فالقول المفتىٰ به قول الشيخين. انظر التفصيل [القول الراجح ج:۲، ص: ۲۵۹، ۲۶۰]

ضَرُورَتِهِ زَوَالُ يَدِ الْمَالِكِ چي د هغه له ضرورت څخه د مالک د قبضې زائلېدل دي [يعني چي پر شي د مالک قبضه ثابته سي نو په هغه سره خامخا د مالک قبضه ختميږي] لِاسْتِحَالَةِ اجْتِمَاعِ الْيَدَيْنِ عَلَى مَحَلٍّ وَاحِدٍ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چي يوه حالت کي پر يوه محل د دوو قبضو اجتماع نا ممکن ده فَتَحَقَّقَ الْوَصْفَانِ نو دواړه وصفونه [إزالةُ يدِ المالك وإثباتُ يدِ الغاصب] ثابت سول وَهُوَ الْغَصْبُ او همدا غصب دی عَلَى مَابَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي [د کتابُ الغصب په شروع کي] موږ بيان کړه فَصَارَ كَالْمَنْقُولِ وَجُحُودِ الْوَدِيعَةِ نو دا غصب د منقولي شي د غصب کولو او د وديعت د انکار کولو په څېر سو وَلَهُمَا: أَنَّ الْغَصْبَ إِثْبَاتُ الْيَدِ بِإِزَالَةِ يَدِ الْمَالِكِ بِفِعْلٍ فِي الْعَيْنِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي غصب خپل قبضه ثابتول دي د مالک د قبضې په زائلولو سره په عَين شي کي په يو فعل سره [يعني په عَين شي کي د فعل (غصب) په ذريعه د مالک د ملکيت په زائلولو سره د خپل قبضې ثابتولو ته غصب وايي] وَهٰذَا لَا يُتَصَوَّرُ فِي الْعَقَارِ او په جايداد کي د دې تصور نه سي کېدای لِأَنَّ يَدَ الْمَالِكِ لَا تَزُولُ إِلَّا بِإِخْرَاجِهِ عَنْهَا ځکه د مالک قبضه نه زائليږي مګر له جايداد څخه د هغه په ايستلو سره وَهُوَ فِعْلٌ فِيهِ لَا فِي الْعَقَارِ او دا [ايستل] په مالک کي فعل دی، نه په جايداد کي فَصَارَ كَمَا إِذَا بَعَّدَ الْمَالِكَ عَنِ الْمَوَاشِي نو دا داسي سو لکه غاصب چي [د رمې] مالک له څارويو [رمې] څخه ليري کړي وَفِي الْمَنْقُولِ النَّقْلُ فِعْلٌ فِيهِ او په منقولي شي کي نقل کول [په خپله] په هغه کي فعل دی وَهُوَ الْغَصْبُ او همد غصب دی وَمَسْأَلَةُ الْجُحُودِ مَمْنُوعَةٌ او د وديعت د انکار مسئله ممنوع ده [يعني موږ ته تسليم نه ده] وَلَوْ سُلِّمَ او که تسليم هم کړی سي فَالضَّمَانُ هُنَاكَ بِتَرْكِ الْحِفْظِ الْمُلْتَزَمِ نو هلته ضمان د هغه حفاظت پرېښوولو په وجه دی کوم چي پر ځان لازم کړی سوی دی [يعني هلته پر مودَع تاوان ځکه واجبيږي چي پر ځان لازم کړده حفاظت هغه پرېښووی] وَبِالْجُحُودِ تَارِكٌ لِذٰلِكَ او په انکار سره هغه د دې [حفظ متلزم] پرېښوونکی دی.

**اللغات**: ﴿يحوّل﴾ د تفعيل مضارع ده، حَوَّلَ يُحَوِّلُ تَحْوِيْلًا: اړول، ګرځول، منتقل کول (نقلول)، بدلول. ﴿يتحقق﴾ د تفعل مضارع ده، مراد: موجودېدل، ثابتېدل. ﴿إزالة﴾ د افعال مصدر دی: زائلول (ليري کول)، ختمول. ﴿عقار﴾ غيرِ منقوله جايداد لکه ځمکه، کور او داسي نور. ﴿استحالة﴾ د استفعال مصدر دی: نا ممکن کېدل. ﴿الوديعة﴾ امانتاً اېښوول سوی مال او شی. ﴿البيّنة﴾ ګواهي،

حجت او ثبوت، ﴿بعد﴾ د تفعيل ماضي ده: ليري کول، ﴿مواشي﴾ جمع د مَاشِيَةٌ ده: چارپايان (څارويان)، ﴿ملتزَم﴾ د افتعال د باب مفعول دی: پر ځان لازم کړی سوی (پر خپله غاړه اخيستل سوی کار).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د غصب تحقّق او ثبوت صرف په منقولاتو کي کيږي او په غيرِ منقولاتو کي غصب نه متحقق کيږي؛ ځکه ازالة اليد (د قبضې زائلول) په نقل کولو سره ثابتيږي، او ښکاره خبره ده چي غير منقولات له يوه ځايه بل ځای ته نه سي نقلول کېدای، نو ځکه په غيرِ منقولاتو يعني په غير منقوله جايداد او داسي نورو کي به غصب هم نه ثابتيږي.

وإذا غصب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک عقار يا داسي بل غيرِ منقولي شی غصب کړي او بيا هغه د غاصب له فعل او عمل څخه بغير په يو بل آسماني آفت سره هلاک او ضايع سي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر غاصب د هغه شي ضمان نه لازميږي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز غاصب د هغه ضامن کيږي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دی او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي کله غاصب عقار غصب کړی، نو د هغه د فعل په وجه له مغصوب شي (عقار) څخه د مالک قبضه زائله او ختم سوه او کله چي د مالک قبضه زائله سوه، نو خامخا به د غاصب قبضه ثابتيږي؛ ځکه چي په حالتِ واحده کي پر يوه محل د دوو خلکو قبضه ناممکنه ده، او غصب همدې ته وايي چي د مالک قبضه زائله کړی سي او د غاصب قبضه ثابته کړی سي (إزالة يد المالك وإثبات يد الغاصب)، نو ځکه په عقار کي به هم غصب ثابتيږي او د مغصوب عقار په هلاکېدلو (ضايع کېدلو) سره به پر غاصب ضمان هم لازميږي، لکه کله چي مغصوب شی منقولي وي او بيا د غاصب په قبضه کي هلاک سي، يا مودَع د وديعت انکار وکړي (يعني چا ته چي امانت مال اېښوول سوی وي، هغه ووايي چي ما ته نه دی اېښوول سوی)، نو غاصب او مودَع ضامن کيږي، نو همداسي به د عقار غاصب هم ضامن کيږي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي غصب دې ته وايي چي په عَين شي کي د غصب فعل تر سره کړی سي او په دې سره له مغصوب شي څخه د مالک قبضه و ملکيت زائل کړی سي او د غاصب قبضه و ملکيت پکښې ثابت کړی سي، او د غصب دغه تعريف پر عقار نه صادقيږي؛ ځکه چي له عقار څخه همغه وخت د مالک قبضه زائليږي، کله چي هغه له عقار څخه وېستل سي (وشړل سي)، او دا د مالک په ذات کي فعل او تصرف دی، نه په عقار يعني په مغصوب شي کي، او کله چي دلته په مغصوب شي (عقار) کي د غصب فعل نه مؤثر کيږي، نو غصب به هم نه ثابتيږي، او کله چي غصب نه ثابتيږي، نو د عقار په هلاکېدلو سره به پر غاصب ضمان هم نه لازميږي. د دې مثال داسي دی لکه د رمې مالک

چي پسونه ګوري (پووي) او يو سړی هغه له رمې څخه وشړي او رمه د ځان سره را وګرځوي بيا څه پسونه هلاک سي، نو پر هغه سړي د هلاک شُده پسونو ضمان نه لازميږي؛ ځکه دلته غصب نه دی متحقق سوی، ځکه چي د هغه سړي فعل په مالک کي مؤثر دی، نه په څارويو کي. نو ځکه به هغه نه ضامن کيږي، نو همداسي په پورتنۍ مسئله کي هم د غاصب فعل په مالک کي مؤثر دی، په عقار کي د هغه اثر او دخل نسته؛ نو ځکه دلته به هم غصب نه متحقق کيږي او د مغصوب شي په ضايع کېدلو سره به پر غاصب ضمان نه لازميږي.

ولى المنقول إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی چي هغه پورتنۍ مسئله پر "غصبُ المنقول او جحودُ الوديعت" باندي قياس کړې وه، حاصل د جواب دا دی چي پر غصب المنقول قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه چي په منقولي شي کي د غاصب فعل په مغصوب شي کي مؤثر کيږي او هلته غصب متحقق کيږي، نو ځکه هلته د مغصوب شي په هلاکېدلو سره پر غاصب ضمان لازميږي، او د عقار په صورت کي چي ګرسره د غصب فعل نه متحقق کيږي، نو د هغه په ضايع کېدلو سره به څنګه ضمان لازم سي. پاته سو د وديعت د انکار کولو په صورت کي پر مودَع د ضمان لازمېدلو مسئله، نو د هغه يو جواب خو دا دی چي دا حکم موږ نه تسليموو، لکه څرنګه چي په "مختلفات" کي دي چي که چيري وديعت (امانتاً ايښوول سوی شی) عقار وي، نو پر منکر مودَع ضمان نه لازميږي. دويم جواب دا دی چي که موږ دا تسليم هم کړو چي د وديعت په مسئله کي مودَع ضامن کيږي، نو دا ضمان د انکار په وجه نه دی، بلکي د امانتاً ايښوولو په خاطر چي پر مودَع کوم حفظ (حفاظت کول) واجب وي، د هغه د پرېښوولو په وجه ضمان پر لازميږي، د انکار په وجه نه پر لازميږي چي د هغه انکار غصب وګرځول سي. (احسن الهدايه)

## په جايداد کي د غاصب د فعل يا سکونت په وجه د واقع سوي نقص حکم

قَالَ: وَمَا نَقَصَ مِنْهُ بِفِعْلِهِ أَوْ سُكْنَاهُ فرمايي: او د غاصب په فعل يا د هغه په استوګنه سره چي په جايداد کي کوم نقص راسي ضَمِنَهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا غاصب د هغه ضامن کيږي د ټولو په قول کي لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ ځکه چي دا تلف کول [ضايع کول] دي وَالْعَقَارُ يُضْمَنُ بِهِ او د تلف کولو په وجه د عقار ضمان لازميږي كَمَا إِذَا نَقَلَ تُرَابَهُ لکه کله چي غاصب د هغه خاوري نقل کړي لِأَنَّهُ فِعْلٌ فِي الْعَيْنِ ځکه چي دا فعل په عَين جايداد کي دی وَيَدْخُلُ فِيمَا قَالَهُ إِذَا انْهَدَمَتِ الدَّارُ بِسُكْنَاهُ وَعَمَلِهِ او کوم څه چي ماتن رَحِمَهُ الله ويلي دي [يعني: وما نقص منه إلخ] په هغه کي دا هم داخل دي چي کله کور د

غاصب په استوګنه یا د هغه په یو بل کار سره ونړیږي فَلَوْ غَصَبَ دَارًا وَبَاعَهَا وَسَلَّمَهَا وَأَقَرَّ بِذٰلِكَ وَالْمُشْتَرِيْ يُنْكِرُ غَصَبَ الْبَائِعِ او که څوک یو کور غصب کړي او هغه خرڅ کړي او مشتري ته یې وسپاري وي او خرڅونکی [غاصب] د دغه غصب اقرار هم وکړي لیکن مشتري د خرڅونکي د غصب انکار کوي وَلَا بَيِّنَةَ لِصَاحِبِ الدَّارِ او د کور مالک لره بیّنه نه وي [یعني د هغه سره ګواهان نه وي] فَهُوَ عَلَى الاِخْتِلَافِ فِي الْغَصَبِ هُوَ الصَّحِيحُ نو دا پر هغه اختلاف دي کوم چي په غصب کي دی، همدا صحیح ده [یعني د صحیح قول مطابق دا مسئله د غصب العقار د مسئلې په څېر مختلف فیها ده] قَالَ: وَإِنِ انْتَقَصَ بِالزِّرَاعَةِ فرمایي: او که د کښت ګرۍ په وجه په جایداد [ځمکه] کي نقص راسي يَغْرَمُ النُّقْصَانَ نو غاصب د نقصان ضامن کیږي لِأَنَّهُ أَتْلَفَ الْبَعْضَ ځکه چي هغه د جایداد څه حصه تلف کړې ده فَيَأْخُذُ رَأْسَ مَالِهِ وَيَتَصَدَّقُ بِالْفَضْلِ نو ځکه غاصب به خپل راسُ المال [یعني د تخم او داسي نورو خرچه] اخلي او زائد مقدار به صدقه کوي قَالَ: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي دا حکم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ●: لَا يَتَصَدَّقُ بِالْفَضْلِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چي زائد مقدار به نه صدقه کوي وَسَنَذْكُرُ الْوَجْهَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او د دواړو طرفونو دلیل به موږ [انشاء الله] ژر بیان کړو.

**اللغات**: ﴿نقص﴾ د نصر د باب ماضي ده: کمېدل، ناقص کېدل، نقص (نقصان) پکښي راتلل، ﴿اتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلف کول (تلفول)، ضایع کول، بربادول، ﴿يغرم﴾ د سمع د باب مضارع ده: تاوان (ضمان) پر لازمېدل، ضامن کېدل، تاوان پوره کول، ﴿رأس المال﴾ اصل مال، ﴿الفضل﴾ اضافي، زائد مقدار.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که څوک عقار مثلاً یو کور غصب کړي بیا د هغه د یو فعل یا استوګني په وجه د کور څه حصه خرابه سي چي د هغه جوړولو ته ضرورت پرېوځي، نو پر غاصب د نقصان په اندازه ضمان لازمیږي، دا حکم اجماعي او اتفاقي دی، یعني د امام محمد او شیخینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نیز

---

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، لأنه إذا كان مع الإمام أحد من صاحبيه فقولهما راجح، وكذا في ملتقى الأبحر(ج:۴، ص:۸۱، ۸۲)، ورد المحتار (ج:۵، ص:۱۳۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶۱]

پر غاصب د نقصان ضمان لازمیږي؛ ځکه چې دا حقیقتاً اتلاف دی او د عقار اتلاف هم د ضمن مُوجب دی، نو ځکه پر غاصب به د اتلاف په وجه ضمان واجب وي.

فلو غصب دارا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که زيد مثلاً د خالد کور غصب کړی او هغه پر ادریس خرڅ کړي او ادریس ته يې وسپاري، او غاصب بائع (يعني زيد) دا اقرار کوي چې ما د خالد کور غصب کړی دی لیکن مشتري (ادریس) وايي چې دا د زيد خپل کور دی او هغه نه دی غصب کړی او د صاحبُ الدار (خالد) سره هيڅ بيّنه نه وي، نو د دې حکم د غصبُ العقار په څېر دی يعني د شيخينو په نېز بائع نه ضامن کيږي؛ ځکه چې کور عقار (غيرِ منقوله جايداد) دی او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په عقار کي غصب نه متحقق کيږي، او څرنګه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په عقار کي هم غصب متحقق کيږي، نو ځکه د هغه په نېز بائع يعني غاصب ضامن کيږي.

قال وإن انتقص إلخ: د دې حاصل دا دی چې که زيد د خالد ځمکه غصب کړي او په هغه کي مثلاً غنم وکري او په دې فعل سره ځمکي ته څه نقصان ورسيږي، نو څومره نقصان چې سوی وي، د هغه په اندازه پر غاصب ضمان لازميږي؛ ځکه چې هغه ټوله ځمکه نه ده تلف کړې، بلکي د هغې څه حصه يې تلف کړې ده، اوس به د ځمکي د اخراجاتو حساب داسي کيږي چې که غاصب (زيد) په دغه ځمکه کي خپل لس سېره غنم کرلي وي او بيا له ځمکي څخه مثلاً شلو بېنت سېره غنم ترلاسه کړي، نو له هغه څخه دي غاصب لس سېره خپل د تخم والا غنم وباسي، لس سېره دي خپل حقُ الزحمه او مزدوي ځني واخلي، لس سېره دي (مثلاً) د ځمکي ضمان ورکړي او ما بقي لس سېره دي صدقه کړي. دا تفصيل د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې له ضمان ورکولو څخه وروسته چې کوم مقدار پاته سي، غاصب به هغه نه صدقه کوي، بلکي خپله به يې اخلي؛ ځکه کله چې هغه ضمان اداء کړی، نو د حاصل شُده نفعي خبث زائل سو او ټوله نفع د هغه لپاره حلاله سوه، لهذا د ما بقي زائد مقدار صدقه و خيرات ته ضرورت نسته. د دواړو فريقينو دليلونه به انشاء الله څه وروسته ذکر سي.

## د غصب کړی سوي منقولي شي د هلاکېدلو حکم

قَالَ: وَإِذَا هَلَكَ النَّقْلِيُّ فِي يَدِ الْغَاصِبِ بِفِعْلِهِ أَوْ بِغَيْرِ فِعْلِهِ فرمايي: او کله چې منقولي شی د غاصب په قبضه کي هلاک سي [برابره ده] د هغه په فعل سره يا د بل چا په فعل سره ضَمِنَهُ نو غاصب د هغه ضامن کيږي وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ: وَإِذَا هَلَكَ الْغَصْبُ او د مختصر القدوري په زياتره نسخو کي

اذکر سوي] دي: وإذا هلك الغصب وَالْمَنْقُولُ هُوَ الْمُرَادُ او مراد همدا منقولي شی دی لِمَا سَبَقَ أَنَّ الْغَصْبَ فِيمَا يُنْقَلُ ځکه مخکي تېر سوه چي غصب په منقولي شيانو کي ثابتيږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْعَيْنَ دَخَلَ فِي ضَمَانِهِ بِالْغَصْبِ السَّابِقِ او دا حکم ځکه دی چي عَين شی د مخکني غصب په وجه د غاصب په ضمان کي داخل سو إِذْ هُوَ السَّبَبُ ځکه چي همدا غصب [د ضمان] سبب دی وَعِنْدَ الْعَجْزِ عَنْ رَدِّهِ يَجِبُ رَدُّ الْقِيمَةِ او د عَين شي له واپس کولو څخه د عاجزه کېدو په صورت کي قيمت واجبيږي° أَوْ يَتَقَرَّرُ بِذٰلِكَ السَّبَبِ يا په همدې سبب سره د قيمت واپس کول متقرر کيږي [ثابت ګرځي] وَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْغَصْبِ او په همدې وجه د هغه [مغصوب شي] د غصب د ورځي د قيمت اعتبار کيږي وَإِنْ نَقَصَ فِي يَدِهِ او که مغصوب شی د غاصب په قبضه کي ناقص سي [نقصان پکښي راسي] ضَمِنَ النُّقْصَانَ نو غاصب د نقصان ضامن کيږي لِأَنَّهُ دَخَلَ جَمِيعُ أَجْزَائِهِ فِي ضَمَانِهِ بِالْغَصْبِ ځکه چي د غصب په وجه د مغصوب شي ټوله اجزاء د غاصب په ضمان کي داخل سوه فَمَا تَعَذَّرَ رَدُّ عَيْنِهِ نو د کوم شي د عَين واپس کول چي نا ممکن سي يَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهِ نو د هغه د قيمت واپس کول واجبيږي بِخِلَافِ تَرَاجُعِ السِّعْرِ إِذَا رَدَّ فِي مَكَانِ الْغَصْبِ په خلاف د نرخ ټيټېدلو کله چي غاصب [مغصوب شی] د غصب په ځای کي واپس کړي [يعني که د غصب په ځای کي د مغصوب شي د واپس کولو پر مهال د هغه قيمت کم وي (نو غاصب نه ضامن کيږي)] لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنْ فُتُورِ الرَّغَبَاتِ دُونَ فَوْتِ الْجُزْءِ ځکه چي نرخ ټيټېدل د رغبتونو له سستوالي [کموالي] څخه عبارت دی، نه له جزء فوتېدلو څخه [يعني دغه نقص د خلکو د رغبت د کموالي په وجه پکښي پيدا سوی دی. د مغصوب شي هيڅ جزء نه دی فوت سوی]° وَبِخِلَافِ الْمَبِيعِ او په خلاف د مبيع لِأَنَّهُ ضَمَانُ عَقْدٍ ځکه چي هغه د عقد ضمان دی أَمَّا الْغَصْبُ فَقَبْضٌ پاته سو غصب نو دا د قبضې ضمان دی وَالْأَوْصَافُ تُضْمَنُ بِالْفِعْلِ لَا بِالْعَقْدِ او د اوصافو ضمان د فعل په وجه لازميږي، نه د عقد په وجه عَلَىٰ مَا عُرِفَ لکه څرنګه معلومه سوې ده قَالَ: وَمُرَادُهُ غَيْرُ الرِّبَوِيِّ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله چي د هغه مراد غير ربوي مال دی [يعني د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دغه قول "چي غاصب د نقصان ضامن کيږي" مراد دا دی چي غصب کړی

شي غیر ربوي مال وي] أَمَّا فِي الرِّبَوِيَّاتِ لَا يُمْكِنُهُ تَضْمِينُ النُّقْصَانِ مَعَ اسْتِرْدَادِ الْأَصْلِ پاته سو په اموالِ ربویه کي د اصل [عَین] د واپس اخیستلو سره د نقصان ضامن ګرځول ممکن نه دي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبٰوا ځکه چي دا د ربوا وطرف ته رسول کوي [یعني د سُود سبب ګرځي].

**اللغات:** ﴿النقلي﴾ منقولي شی (کوم چي له یوه ځایه بل ځای ته نقل کېدای سي)، ﴿یتقرر﴾ د تفعل مضارع ده: ثابتېدل، پخېدل (مضبوطېدل)، ﴿تراجع﴾ د تفاعل مصدر دی: واپس راتلل، مراد: کمېدل او ټیټېدل (کښته کېدل)، ﴿السعر﴾ نرخ، رېټ، ﴿فتور﴾ د نصر او ضرب مصدر دی: له تېزۍ څخه وروسته کرارېدل، سستېدل، کمېدل، ﴿الرغبات﴾ جمع د رغبة ده: خواهش او لېوالتیا، طلب او غوښتنه، مېل، ﴿الربوي﴾ هغه مال چي ربوا (سُود) پکښې کېدای سي (احسن الهدایه)، ﴿تضمین﴾ د تفعیل مصدر دی: ضامن ګرځول، ضمان (تاوان) ځني اخیستل، ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخیستل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که غاصب یو منقولي شی غصب کړي او بیا هغه د غاصب په قبضه کي هلاک او ضایع سي، برابره ده په هغه کي د غاصب د عمل دخل وي او که نه وي، په هر صورت کي غاصب د هغه شي ضامن کیږي، اوس چي کومو حضراتو د عَینِ مغصوب واپس کول مُوجَب اصلي ګرځولی دی (لکه مخکي چي د دې تفصیل تېر سو)، د هغو په نېز د عَین (مثل) واپس کول لازمیږي که چیري هغه موجود وي، او که هغه موجود نه وي، نو د هغه د قیمت واپس کول لازمیږي. او کومو حضراتو چي قیمت مُوجَب اصلي شمېرلی دی، د هغو په نېز قیمت لازمیږي، که څه هم عَین موجود وي.

وعند العجز عن ردّه إلخ: په دې سره همدغه پورتنۍ خبره بیان کړی سوې ده. پر غاصب د ضمان واجبېدلو وجه دا ده چي د غصب له وخته سمدستي پر غاصب د هغه شي ضمان لازمیږي، نو ځکه د مغصوب شي تر هلاکېدلو وروسته خو به هغه تر ګرېوان نیول کیږي او ضمان به ځني اخیستل کیږي.

وان نقص إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د غاصب په قبضه کي مغصوب شی ناقص سي یعني نقص او عیب پکښې پیدا سي، مثلاً مغصوب شی ځوانه ښځه وي بیا هغه د غاصب په قبضه کي په یو دائمي مرض مبتلا سي یا د هغه په قبضه کي سپین سرې سي او داسي نور، نو په دغه نقصان سره چي دهغې په قیمت او مالیت کي څومره نقصان (کمي) راغلې وي، پر غاصب د هغه اداینه لازمیږي؛ ځکه چي د غصب په وجه مغصوب شی د خپل ټولو اجزاؤ او اوصافو سره د غاصب په ضمان کي

داخلیږي، لهذا په کوم اعتبار سره چي په هغه کي نقص راغلی وي، په همغه اعتبار سره به پر غاصب د هغه ضمان هم لازمیږي.

بخلاف تراجع السعر إلخ: مسئله دا ده که غاصب مثلاً په زابل کي یو شی غصب کړي او بیا په همدې زابل کي هغه شی مالک (مغصوب منهٔ) ته واپس کړي، لېکن د غصب کولو او واپس کولو په مینځ کي چي کوم وخت تېر سوی وي، په هغه کي د مغصوب شي قیمت څه کم سوی وي، نو غاصب د دغه نقصان او کمښت نه ضامن کیږي؛ ځکه چي دا کمي و نقصان د غاصب د عمل په وجه نه دی، بلکي په دغه شي کي د خلکو د رغبت کمېدلو په وجه دی او دا د غاصب په ملکیت او قدرت کي نه دي، نو ځکه هغه به ضامن کیږي هم نه. دلته دا خبره تاسو په یاد لري چي د "إذا رد في مكان الغصب" قید احترازي قید دی، همدا وجه ده که غاصب د زابل پر ځای په کندهار کي مغصوب شی مالک ته واپس کړي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي د قیمت کمېدلو سبب د مکان بدلېدل دي، نو ځکه په دې صورت کي مالک ته اختیار حاصلیږي چي که وغواړي نو په کندهار کي دي هغه شی ځني واخلي او که وغواړي نو تر زابله د هغه د را رسېدلو انتظار دي وکړي.

وبخلاف المبيع إلخ: د دې حاصل دا دی چي که تر بیع کولو وروسته د بائع په قبضه کي د مبیع یو وصف هلاک او ضایع سي، نو د وصف په هلاکېدلو سره له ثمن څخه هیڅ مقدار نه ساقطیږي؛ ځکه چي د مبیع ضمان د عقد ضمان دی او د عقد په وجه د اوصافو د هلاکېدلو (ضایع کېدلو) ضمان نه لازمیږي؛ ځکه چي عقد پر اعیانو واردیږي، نه پر اوصافو، ها! څرنګه چي د مغصوب شي پر عَین او ذات قبضه کیږي او قبضه فعل ده، نو ځکه د هغه د هلاکېدلو ضمان به لازمیږي.

قال ومراده إلخ: فرمايي په متن کي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په "وإذا هلك النقلي" کي د منقولي شي د هلاکېدلو ضمان لازم کړی دی، له دې څخه هغه منقولي شی مراد دی کوم چي د اموال ربویه وو له قبیلې څخه نه وي، د دې لپاره چي د عَین د اخیستلو سره سره د ضمان په اخیستلو کي (یعني د عَین او ضمان نقصان دواړو د اخیستلو په صورت کي) کي د سُود او ربوا شبهه را نه سي. لېکن که چیري مغصوب شی د اموال ربویه وو له قبیلې څخه وي، نو بیا د عَینِ مغصوب د اخیستلو سره سره د ضمانِ نقصان په اخیستلو کي سُود او ربوا لازمیږي او د سُود معامله حرامه ده، په همدې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "و مراده" سره د "النقلي" مراد مُتعیَن کړی دی.

## که په غصب کړی سوي غلام مزدوري وکړی سي چي د هغه په وجه نقص پکښي راسي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا فَاسْتَغَلَّهُ فرمايي: او څوک چي غلام غصب کړي او په هغه سره ګټه حاصله کړي [مزدوري په وکړي] فَنَقَصَتْهُ الْغَلَّةُ او ګټه [مزدوري] کول هغه ناقص کړي [يعني د مزدوري کولو په وجه نقص او عيب پکښي پيدا سي] فَعَلَيْهِ النُّقْصَانُ نو پر غاصب نقصان [او تاوان] لازم دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَيَتَصَدَّقُ بِالْغَلَّةِ او غاصب به د غلام ګټه صدقه کوي قَالَ: وَهٰذَا عِنْدَهُمَا أَيْضًا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا حکم هم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَعِنْدَهُ• لَا يَتَصَدَّقُ بِالْغَلَّةِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د غلام ګټه نه صدقه کوي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا آجَرَ الْمُسْتَعِيرُ الْمُسْتَعَارَ او پر همدغه اختلاف دي کله چي مستعير [عاريتاً اخيستونکی] مستعار شی په اُجرت ورکړي لِأَبِيْ يُوسُفَ: أَنَّهُ حَصَلَ فِيْ ضَمَانِهِ وَمِلْكِهِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا ګټه د غاصب په ضمان او د هغه په ملکيت کي حاصله سوې ده أَمَّا الضَّمَانُ فَظَاهِرٌ پاته سو ضمان [يعني د غاصب په ضمان کي حاصلېدل] نو هغه ښکاره دي [ځکه چي د غصب په وجه دا غلام د غاصب په ضمان کي داخل سوی دی] وَكَذٰلِكَ الْمِلْكُ فِي الْمَضْمُوْنِ او همدارنګه په مضمون [غلام] کي د ملکيت [پاتېدل هم ښکاره دي] لِأَنَّ الْمَضْمُوْنَاتِ تُمْلَكُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ مُسْتَنِدًا إِلٰى وَقْتِ الْغَصْبِ عِنْدَنَا ځکه چي مضمون شيان په ضمان اداء کولو سره په ملکيت کي داخلېږي د غصب د وخت وطرف ته په منسوب کېدلو سره زموږ په نېز وَلَهُمَا: أَنَّهُ حَصَلَ بِسَبَبٍ خَبِيْثٍ وَهُوَ التَّصَرُّفُ فِيْ مِلْكِ الْغَيْرِ د طرفينو دليل دا دی: چي دا ګټه په خبيث سبب سره حاصله سوې ده او هغه د بل چا په ملکيت تصرف کول دي وَمَا هٰذَا حَالُهُ او د کوم څه چي دا حال وي فَسَبِيْلُهُ التَّصَدُّقُ نو د هغه لاره صدقه کول دي إِذِ الْفَرْعُ يَحْصُلُ عَلٰى وَصْفِ الْأَصْلِ ځکه چي فرع د اصل پر وصف

---

• القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، ومرّ ترجيح قولهما في المسئلة السابقة في الكتاب "القول الراجح". [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶۱]

حاصلیږي [د اصل پر وصف متفرع کیږي] وَالْمِلْكُ الْمُسْتَنِدُ نَاقِصٌ او منسوبېدونکی ملکیت ناقص وي فَلَا يَنْعَدِمُ بِهِ الْخُبْثُ نو ځکه په هغه سره به خبث نه لیري کیږي فَلَوْ هَلَكَ الْعَبْدُ فِي يَدِ الْغَاصِبِ حَتَّى ضَمِنَهُ بیا که دا غلام د غاصب په قبضه کي هلاک سي تر دې چي غاصب د هغه ضامن سي لَهُ أَنْ يَسْتَعِينَ بِالْغَلَّةِ فِي أَدَاءِ الضَّمَانِ نو غاصب ته دا اختیار سته چي د ضمان په اداء کولو کي د غلام له ګټي څخه کار واخلي لِأَنَّ الْخُبْثَ لِأَجْلِ الْمَالِكِ ځکه چي خبث خو د مالک په وجه وو وَلِهَذَا لَوْ أَدَّى إِلَيْهِ همدا وجه ده که غاصب دا ګټه مالک ته ورکړي واى يُبَاحُ لَهُ التَّنَاوُلُ نو د هغه لپاره به دا خوړل روا واى فَيَزُولُ الْخُبْثُ بِالْأَدَاءِ إِلَيْهِ نو ځکه مالک ته په ورکولو سره به خبث زائلیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ فَهَلَكَ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي ثُمَّ أُسْتُحِقَّ وَغَرِمَهُ په خلاف د هغه صورت کله چي غاصب مغصوب غلام خرڅ کړي او هغه د مشتري په قبضه کي هلاک سي [ضایع سي] بیا هغه غلام دیو چا مستحق وخیږي او مشتري د هغه تاوان [ضمان] ورکړي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَعِينَ بِالْغَلَّةِ فِي أَدَاءِ الثَّمَنِ إِلَيْهِ نو بائع [غاصب] ته دا اختیار نسته چي د مشتري په ثمن اداء کولو کي د غلام له ګټي [نفعي] څخه کار واخلي لِأَنَّ الْخُبْثَ مَا كَانَ لِحَقِّ الْمُشْتَرِي ځکه چي [د ګټي] خبث د مشتري د حق په وجه نه دی إِلَّا إِذَا كَانَ لَا يَجِدُ غَيْرَهُ مګر دا چي بائع له دغه ګټي څخه بغیر بل مال نه وموندي لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه دغه ګټي ته محتاج دی وَلَهُ أَنْ يَصْرِفَهُ إِلَى حَاجَةِ نَفْسِهِ او محتاج کس ته دا اختیار سته چي داسي مالک په خپل ضرورت کي صرف کړي فَلَوْ أَصَابَ مَالًا بیا که بائع څه مال ترلاسه کړي تَصَدَّقَ بِمِثْلِهِ إِنْ كَانَ غَنِيًّا وَقْتَ الِاسْتِعْمَالِ نو د دغه ګټي [نفعي] په اندازه مال دي صدقه کړي که چیري هغه د استعمالولو [یعني په خپل ضرورت کي د ګټي د صرفولو] په وخت کي مالدار وي وَإِنْ كَانَ فَقِيرًا او که چیري هغه غریب وي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هیڅ شی هم نسته لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿استغلّ﴾ د استفعال ماضي ده: د ګټي او نفعي طلب ځني کول، ګټه په کول، یعني کار و مزدوري په کول. ﴿الغلة﴾ مخکي موږ ذکر کړه چي د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: د غلام ګټه (كسب الغلام)، أجرت. ﴿مستعير﴾ د استفعال فاعل دی: په خواست سره د

شي اخيستونکی، عاريتاً غوښتونکی، ﴿المستعار﴾ د استفعال مفعول دی: په خواست اخيستل سوی شی، ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي چي ضمان (تاوان) لازم وي، هغه شی چي ضمان يې ورکول کيږي، جمع: مضمونات، ﴿يستعين﴾ د استفعال مضارع ده: د مدد او مرستي طلب کول، مرسته اخيستل، ﴿التناول﴾ د تفاعل مصدر دی، د دغه باب هم څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: خوړل، اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک غلام غصب کړي او هغه په يو مزدوري لګيا کړي او د هغه اُجرت او ګټه حاصله کړي او د دغه مزدورۍ او خوارۍ په وجه غلام ډېر کمزوری او ضعيفه سي يا هغه په يو ډول مرض او ستونزه مبتلا سي چي د هغه په وجه د غلام قيمت کم سي، نو پر غاصب د دغه نقصان او کمښت ضمان لازميږي او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د غلام واپس کولو سره سره پر غاصب د حاصل شُده ګټې صدقه کول هم لازميږي، ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز پر غاصب صدقه کول ضروري نه دي؛ ځکه چي دا ګټه د غاصب په ملکيت کي حاصله سوې ده او د ضمان اداء کولو په وجه غاصب د غصب له وخته د هغه مالک سوی دی، او ښکاره خبره ده چي له خپل مملوک شي څخه د حاصل شُده ګټې صدقه کول لازم نه دي.

د طرفينو دليل دا دی چي دلته غاصب کومه ګټه حاصله کړې ده، هغه يې د بل چا په ملکيت کي په ناحقه تصرّف کولو سره په خبيثه او غلطه طريقه حاصله کړې ده، او په داسي طريقه سره د حاصل شُده ګټي يوازينۍ لاره صدقه ده، نو ځکه پر غاصب د دغه ګټې صدقه لازم ده. پاته سو د هغه د ضمان ورکولو مسئله، نو په دغه ضمان سره چي غاصب ته کوم ملکيت حاصليږي، هغه ناقص دی، همدا وجه ده چي صرف د موجود او حاضر په حق کي دا ملکيت ښکاره کيږي، د غائب او فائت په حق کي نه ښکاره کيږي، نو په دې حواله سره دا ملکيت ناقص دی او په ناقص ملکيت سره خبث نه ختميږي، نو ځکه غاصب ته په حاصل شُده ملکيت او ګټه کي به خُبث او خرابي باقي پاته وي او پر هغه به د موجوده ګټې صدقه کول لازم وي.

فلوهلك إلخ: فرمايي که د دغه مغصوب غلام له مزدوري کولو او ګټې حاصلولو څخه وروسته د غاصب په قبضه کي هلاک سي او پر غاصب د هغه ضمان لازم سي، نو په دې صورت کي غاصب له غلام څخه حاصل شُده ګټه په خپل ضمان کي ورکولای سي، يعني هغه ته دا حق سته چي د غلام ګټل سوی مال د هغه مالک ته د غصب په ضمان (تاوان) کي ور کړي؛ ځکه چي د غاصب په حق کي د دغه ګټې خُبث د مالک د حق په وجه دی او دلته د ضمان په شکل همدې مالک ته دغه ګټه

حاصليږي، نو ځکه مذکوره خبث به زائل سي او د غاصب لپاره ورکول او د مالک لپاره اخيستل به روا وي.

بخلاف ما إذا باعه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که غاصب دغه مغصوب غلام له ګټې حاصلولو څخه وروسته خرڅ کړي او مشتري ته يې وسپاري او پر ثمن قبضه وکړي، بيا دا غلام د مشتري په قبضه کې هلاک سي، تر دې وروسته يو کس پر هغه د خپل استحقاق دعویٰ وکړي (چې دا غلام خو زما وو او خپله دعویٰ ثابته کړي) او مشتري دغه مستحق کس ته ضمان ورکړي، نو ښکاره خبره ده چې د بيع باطلېدلو په وجه به مشتري له بائع (غاصب) څخه خپل ثمن واپس اخلي، خو په دې صورت کې دغه بائع (غاصب) له غلام څخه حاصل شُده ګټه په ثمن کې نه سي ورکولای؛ ځکه چې د دغه ګټې خبث د مشتري د حق په وجه نه دی، بلکې د مستحق کس د حق په وجه دی، او ثمن مشتري ته ورکول کيږي، نه مستحق کس ته، نو ځکه دغه ګټه د ثمن سره ګډول صحيح نه دي، او په مخکنۍ مسئله کې چې څرنګه دا ګټه د مالک د حق په وجه خبيثه وه او هغه همدې مالک ته ورکول کېده، نو ځکه مالک ته د هغه ورکول روا وه. ها! که چيري په دغه دويم صورت کې د بائع (غاصب) په قبضه کې له مذکوره ګټې څخه بغير بل* هيڅ مال نه وي، نو په دې صورت کې د ضرورت پر بناء بائع په ثمن کې دغه ګټه استعمالولای سي او بيا چې کله وروسته هغه ته مال په لاس ورسي او د ګټې استعمالولو په وخت کې هغه مالدار وي، نو د ګټې په اندازه مال به صدقه کوي، او که چيري بائع په هغه وخت کې غريب وي، نو هيڅ به نه صدقه کوي؛ ځکه چې د غريب والي په صورت کې بائع د دغه ګټې استعمالولو ته ضرورت من او مجبوره وو، او دا مشهوره قاعده ده چې "الضرورات تُبيح المحضورات".

## په غصب کړي سوي مال سره بل شی رانيول او ګټه پر کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ أَلْفًا فرمايي: او که څوک زر درهمه غصب کړي فَاشْتَرَى بِهَا جَارِيَةً او په هغه زر درهمو يو مينځه رانيسي فَبَاعَهَا بِأَلْفَيْنِ او دا مينځه په دوه زره درهمو خرڅه کړي ثُمَّ اشْتَرَى بِالْأَلْفَيْنِ جَارِيَةً بيا په هغه دوه زره درهمو يو مينځه رانيسي فَبَاعَهَا بِثَلَاثَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ او هغه په درې زرو درهمو خرڅه کړي فَإِنَّهُ يَتَصَدَّقُ بِجَمِيعِ الرِّبْحِ نو غاصب به دغه ټوله نفع صدقه کوي وَهٰذَا عِنْدَهُمَا او دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَأَصْلُهُ أَنَّ الْغَاصِبَ أَوِ الْمُودَعَ إِذَا تَصَرَّفَ فِي الْمَغْصُوبِ أَوِ الْوَدِيعَةِ وَرَبِحَ او د دې اصل دا دی چې کله غاصب او مودَع په مغصوب مال يا امانت مال کې

تصرف وکړي او نفع [ګټه] وکړي لَا يَطِيبُ لَهُ الرِّبْحُ عِنْدَهُمَا نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه لپاره دا نفع نه حلاليږي [يعني غاصب او مودَع لره د دغه نفعي استعمالول روا نه دي] خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وَقَدْ مَرَّتِ الدَّلَائِلُ او [د دواړو] دلائل تېر سوي دي وَجَوَابُهُمَا فِي الْوَدِيعَةِ أَظْهَرُ او د وديعت په هكله خو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله جواب ښكاره دی لِأَنَّهُ لَا يَسْتَنِدُ الْمِلْكُ إِلَى مَا قَبْلَ التَّصَرُّفِ لِانْعِدَامِ سَبَبِ الضَّمَانِ ځكه چي [په وديعت كي] د ضمان د سبب د نشتوالي په وجه ملكيت له تصرف څخه د مخكي حالت والا وطرف ته نه منسوب كيږي فَلَمْ يَكُنِ التَّصَرُّفُ فِي مِلْكِهِ نو ځكه تصرف په خپل ملكيت كي [واقع] نه سو ثُمَّ هٰذَا ظَاهِرٌ فِيمَا يَتَعَيَّنُ بِالْإِشَارَةِ بيا په اشاره سره په مُتعيّن كېدونكي شيانو كي دغه حكم ښكاره دی أَمَّا فِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ كَالثَّمَنَيْنِ لېكن كوم شيان چي په اشاره سره نه مُتعيّن كيږي لكه دراهم او دنانير فَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ اشْتَرَى بِهَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ التَّصَدُّقَ إِنَّمَا يَجِبُ إِذَا اشْتَرَى بِهَا وَنَقَدَ مِنْهَا الثَّمَنَ نو په متن كي د ماتن رَحِمَهُ الله دا قول "اشترى بها" ودې خبري ته اشاره ده چي صدقه كول په همغه صورت كي واجبيږي كله چي غاصب په دراهمو يا دنانيرو سره شی رانيسي او له هغوی څخه ثمن اداء كړي أَمَّا إِذَا أَشَارَ إِلَيْهَا وَنَقَدَ مِنْ غَيْرِهَا أَوْ نَقَدَ مِنْهَا وَأَشَارَ إِلَى غَيْرِهَا أَوْ أَطْلَقَ إِطْلَاقًا وَنَقَدَ مِنْهَا خو كه چيري د دراهمو يا دنانيرو وطرف ته اشاره وكړي لېكن له هغوی څخه بغير [له يو بل مال څخه] ثمن اداء كړي يا له هغوی څخه ثمن اداء كړي او له هغوی څخه بغير [د بل مال وطرف ته] اشاره وكړي يا مطلق رانيول وكړي او له هغوی [دراهمو او دنانيرو] څخه ثمن اداء كړي يَطِيبُ لَهُ نو د هغه لپاره دا نفع حلاليږي وَهٰكَذَا قَالَ الْكَرْخِيُّ او همداسي امام كرخي رَحِمَهُ الله ويلي دي لِأَنَّ الْإِشَارَةَ إِذَا كَانَتْ لَا تُفِيدُ التَّعْيِينَ ځكه كله چي اشاره د تعيين فايده نه وركوي لَا بُدَّ أَنْ يَتَأَكَّدَ بِالنَّقْدِ نو په نقد [اداء كولو] سره د هغه مؤكد كول ضروري دي لِيَتَحَقَّقَ الْخُبْثُ د دې لپاره چي خبث ثابت سي وَقَالَ مَشَايِخُنَا: لَا يَطِيبُ لَهُ قَبْلَ أَنْ يَضْمَنَ وَكَذَا بَعْدَ الضَّمَانِ بِكُلِّ حَالٍ او مشايخو فرمايلي دي: چي د هغه لپاره په هيڅ حال كي هم نفع نه حلاليږي [برابره ده] له ضمان وركولو څخه مخكي وي او كه له ضمان څخه وروسته وي وَهُوَ الْمُخْتَارُ او همدا مختار قول

دی لِإِطْلَاقِ الْجَوَابِ فِي الْجَامِعَيْنِ وَالْمَبْسُوطِ په جامع صغير او جامع کبير او مبسوط کي د جواب [حکم] د مطلق کېدلو په وجه قَالَ: وَإِنِ اشْتَرَى بِالْأَلْفِ جَارِيَةً تُسَاوِيْ أَلْفَيْنِ فَوَهَبَهَا فرمايي: او که غاصب په هغه زر درهمو داسي مينځه رانيسي کوم چي د دوو زرو درهمو سره برابره وي أَوْ طَعَامًا فَأَكَلَهُ يا غله په رانيسي او هغه وخوري لَمْ يَتَصَدَّقْ بِشَيْءٍ نو هيڅ شی به هم نه صدقه کوي وَهٰذَا قَوْلُهُمْ جَمِيعًا او دا د دوی ټولو [متفق عليه] قول دی لِأَنَّ الرِّبْحَ إِنَّمَا يَتَبَيَّنُ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ ځکه چي نفع صرف د جنس د يو والي په وخت کي ښکاره کيږي.

**اللغات**: ﴿الربح﴾ نفع، ګټه، ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښوول سوی وي، ﴿يطيب﴾ د ضرب مضارع ده: پاکېدل، حلال کېدل، ﴿يستند﴾ د استفعال مضارع ده: منسوب کېدل (د يو شي نسبت بل شي ته کېدل)، اعتماد کول، ﴿تُساوي﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده: برابرېدل، مساوي کېدل، ﴿اتحاد﴾ د افتعال مصدر او اسمِ مصدر دی: يو کېدل، يو والی (متحد والی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د بل څا زر درهمه غصب کړي او په هغه زر درهمو يو مينځه (يا يو سامان) رانيسي، بيا هغه مينځه په دوه زره درهمه خرڅه کړي او په هغه دوه زره درهمو بله مينځه رانيسي او په درې زره درهمه يې خرڅه کړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د غاصب لپاره دغه حاصل شُده نفع روا نه ده بلکي ټوله نفع پر هغه واجبُ التصدّق ده، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د غاصب (عاقد) لپاره دا نفع حلاله او روا ده؛ د غصب په هکله تحقيق او دلائل تېر سول، همدارنګه د وديعت هم دغه حکم دی؛ ځکه په غصب کي خو په ضمان اداء کولو سره د غصب وخت ته ملکيت منسوب کيږي، لېکن په وديعت کي دغه انتساب او استناد هم نه کيږي؛ ځکه چي په وديعت کي ګرسره د ضمان سبب معدوم دی او په يوه درجه کي هم د مودَع تصرف د هغه په ملکيت کي نه واقع کيږي؛ نو ځکه ټوله نفع به خبيثه او حرامه وي.

ثم هذا ظاهر الخ: فرمايي چي په اشاره سره په مُتعيّن کېدونکي شيانو مثلاً په سامان او داسي نورو کي خو دا حکم ښکاره دی چي په هغوی سره حاصل شُده نفع حرامه ده، لېکن کوم شيان چي په مُتعينولو

سره نه مُتعيّن كيږي لكه دراهم و دنانير، په هغوى كي هغه وخت په حاصل شده نفع كي خبث راځي كله چي غاصب په هغوى سره يو شى رانيسي او هغوى د ثمن په توګه وركړي، همدا وجه ده كه غاصب د دراهمو يا دنانيرو وطرف ته اشاره خو وكړي ليكن له بل مال څخه ثمن اداء كړي يا د بل شي وطرف ته اشاره وكړي او له دراهمو يا دنانيرو څخه ثمن اداء كړي يا مطلق عقد وكړي او له دراهمو يا دنانيرو څخه ثمن اداء كړي، نو د امام كرخي رَحِمَهُ الله په نيز د هغه لپاره نفع حلاله او رواه ده؛ ځكه چي په دراهمو او دنانيرو كي اشاره مفيده نه ده، نو په دوى كي همغه وخت خبث پيدا كيږي، كله چي واقعتاً د ثمن په توګه وركول سي، لهذا تر څو چي ور نه كړل سي، تر هغه وخته به خبث نه ثابتيږي او مذكوره نفع به حلاله وي. ليكن زموږ د مشايخو رايه دا ده چي په هيڅ حال كي هم د غاصب او مودَع لپاره دا نفع حلاله نه ده، يعني برابره ده هغه ضمان وركړي او كه يې نه وركړي او په جامع صغير و كبير او مبسوط كي چي دا حكم "يتصدق بجمع الربح" مطلق وارد سوى دى، د هغه مطابق د مشائخو فيصله صحيح او مختاره معلوميږي، ليكن زموږ په زمانه كي مفتىٰ به قول دى د امام كرخي رَحِمَهُ الله دى، همدا د علامه صدرُ الشهيد او شمسُ الائمه سرخي رَحِمَهُمَا الله رايه هم ده، وَهُو الأنسب والأحوط دفعًا للحرج عن الناس. (بنايه ج:۱۰، ص:۲۳۶)

قال وإن اشترى إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه غاصب د مغصوبه زر دراهمو په عوض كي داسي مينځه رانيسي كوم چي په دوه زره درهمه ارزي و بيا هغه يو چا ته هبه كړي، يا غاصب په مغصوبه دراهمو سره غله يا بل د خوراک شى رانيسي بيا هغه وخوري، نو په دغه صورتونو كي پر هغه د هيڅ شي صدقه كول نه لازميږي؛ ځكه چي دلته د مغصوبه دراهمو او په هغوى سره د رانيول سوي شي په مينځ كي اتحاد او مساوات معدوم دى، لهذا كله چي اتحاد او مساوات نسته، نو نفع به هم نه ښكاره كيږي او د نفع به هيڅ اعتبار هم نه كيږي، ليكن پر غاصب د مغصوب شي (زرو درهمو) په اندازه مال لازميږي. (احسن الهدايه)



# فَصــلٌ فِيمَا يَتَغَيَّرُ بِفِعْلِ الْغَاصِبِ

## دا فصل په (بيان د) هغو شيانو کي دی کوم چي د غاصب په فعل سره متغيّر کيږي

**تشريح**: په دغه فصل کي دا بيان سوي دي چي د غاصب په فعل سره د مالک (مغصوب منهٔ) ملکيت زائليږي، او ښکاره خبره ده چي ملکيت له غصب او د غصب له متعلقاتو څخه وروسته زائليږي، په همدې وجه دا فصل وروسته بيان کړی سوی دی.

### په غصب کړی سوي شي کي د بدلون راتللو حکم او تفصيل

فَصْلٌ : قَالَ: وَإِذَا تَغَيَّرَتِ الْعَيْنُ الْمَغْصُوبَةُ بِفِعْلِ الْغَاصِبِ فرمايي: که چيري د غاصب په فعل سره غصب کړی سوی شی متغيّر سي حَتّٰى زَالَ اسْمُهَا وَأَعْظَمُ مَنَافِعِهَا تر دې چي د هغه نوم او د هغه ستر [متعيّن] منافع زائل سي زَالَ مِلْكُ الْمَغْصُوبِ مِنْهُ عَنْهَا نو له هغه شي څخه د مغصوب منهٔ [مالک] ملکيت زائليږي وَمَلَكَهَا الْغَاصِبُ او غاصب د هغه مالک کيږي وَضَمِنَهَا او د هغه ضامن کيږي [يعني غاصب به د هغه ضمان (تاوان) ورکوي] وَلَا يَحِلُّ لَهُ الِانْتِفَاعُ بِهَا حَتّٰى يُؤَدِّيَ بَدَلَهَا او د غاصب لپاره له هغه [مغصوب] شي څخه نفع اخيستل نه روا کيږي تر دې چي د هغه بدل اداء کړي كَمَنْ غَصَبَ شَاةً وَذَبَحَهَا وَشَوَاهَا أَوْ طَبَخَهَا لکه څوک چي پسه غصب کړي او هغه ذبح کړي او کباب يې کړي يا يې پوخ کړي أَوْ حِنْطَةً فَطَحَنَهَا يا غنم غصب کړي او هغه ميده کړي [اوړه يې کړي] أَوْ حَدِيدًا فَاتَّخَذَهُ سَيْفًا يا اوسپنه غلا کړي او له هغې څخه توره جوړه کړي أَوْ صُفْرًا فَعَمِلَهُ آنِيَةً يا ژړ غلا کړي او له هغه څخه يو لوښی جوړ کړی وَهٰذَا كُلُّهُ عِنْدَنَا او دغه ټوله تفصيل زموږ په نيز دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَنْقَطِعُ حَقُّ الْمَالِكِ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مالک حق نه منقطع کيږي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو روايت دی غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا اخْتَارَ أَخْذَ الدَّقِيقِ مګر دا چي کله مالک [د غنمو پر ځای] د اوړو اخيستل اختيار کړي لَا يُضَمِّنُهُ النُّقْصَانَ عِنْدَهُ نو د امام

ابويوسف رَحِمَهُ الله په نيز مالک له غاصب څخه د نقصان ضمان نه سي اخيستلای لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا ځکه چي دا سُود ته رسول کوي ايعني د سُود سبب ګرځي ا وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يُضَمِّنُهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د نقصان ضمان ځني اخيستلای سي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَزُولُ مِلْكُهُ عَنْهُ او له امام ابويوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت هم سوی دی چي له هغه [مغصوب شي] څخه د مالک ملکيت زائليږي لٰكِنَّهُ يُبَاعُ فِي دَيْنِهِ ليکن هغه به د مالک په قرض کي خرڅول کيږي وَهُوَ أَحَقُّ بِهِ مِنَ الْغُرَمَاءِ بَعْدَ مَوْتِهِ او مالک به د نورو قرضخواهانو په نسبت د هغه زيات حقدار وي د غاصب تر مرګ وروسته لِلشَّافِعِيِّ: أَنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي عَين مغصوب موجود دی فَيَبْقَى عَلَى مِلْكِهِ نو ځکه هغه به د مالک پر ملکيت باقي پاتيږي وَتَتْبَعُهُ الصَّنْعَةُ او عمل [په عَين کي لاسوهنه] د هغه تابع کيږي كَمَا إِذَا هَبَّتِ الرِّيحُ فِي الْحِنْطَةِ وَأَلْقَتْهَا فِي طَاحُونَةٍ لکه کله چي پر غنمو باد راسي او هغوی په يو ژرنده کي واچوي فَطَحَنَتْ او ژرنده هغوی ميده کړي [اوړه يې کړي] وَلَا مُعْتَبَرَ بِفِعْلِهِ او د غاصب فعل لره هيڅ اعتبار نسته لِأَنَّهُ مَحْظُورٌ ځکه چي [د غصب] فعل [شرعًا] ممنوع دی فَلَا يَصْلُحُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ نو ځکه هغه به د ملکيت د سبب جوړېدلو صلاحيت نه لري [يعني د مالک کېدو سبب نه سي جوړېدلای] عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي معلومه سوې ده فَصَارَ كَمَا إِذَا انْعَدَمَ الْفِعْلُ أَصْلًا نو دا داسي سوه لکه فعل چي بالکل معدوم وي [يعني لکه فعل چي بالکل سوی نه وي] وَصَارَ كَمَا إِذَا ذَبَحَ الشَّاةَ الْمَغْصُوبَةَ وَسَلَخَهَا وَأَرَّبَهَا او دا داسي سوه لکه کله چي غاصب غصب کړې سوې پسه ذبح کړي او هغه له پوسته وکاږي او ټوټه، ټوټه يې کړي وَلَنَا: أَنَّهُ أَحْدَثَ صَنْعَةً مُتَقَوِّمَةً زموږ دليل دا دی: چي غاصب يو قيمت لرونکی صنعت پيدا کړی دی [په بله وينا دا چي دلته غاصب په خپل فعل سره يو متقوم شی ايجاد کړی دی] فَصَيَّرَ حَقَّ الْمَالِكِ هَالِكًا مِنْ وَجْهٍ نو د مالک حق يې په يوه اعتبار سره هلاک شُده ګرځولی دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ تَبَدَّلَ الِاسْمُ وَفَاتَ مُعْظَمُ الْمَقَاصِدِ آيا ته نه ګوري! چي ادغه شي ا نوم بدل سو او د هغه ستر مقاصد فوت سول وَحَقُّهُ فِي الصَّنْعَةِ قَائِمٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او [په دې حواله سره] په صنعت کي د غاصب حق په هر اعتبار سره موجود دی فَيَتَرَجَّحُ عَلَى الْأَصْلِ

الَّذِي هُوَ فَائِتٌ مِنْ وَجْهٍ نو دا به پر هغه اصل راجح كيږي كوم چي من وجه فوت سوى دى [په بله وينا دا چي نو دا حق به له هغه حق څخه راجح وي كوم چي من وجه فوت سوى دى (احسن الهدايه)] وَلَا نَجْعَلُهُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ مَحْظُورٌ بَلْ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِحْدَاثُ الصَّنْعَةِ او د غاصب فعل موږ د ممنوع كېدلو په حيثيت سره د ملكيت سبب نه ګرځوو بلكي د صنعت متقومه د پيدا كولو په حيثيت سره يې د ملكيت سبب ګرځوو بِخِلَافِ الشَّاةِ په خلاف د پسه لِأَنَّ اسْمَهَا بَاقٍ بَعْدَ الذَّبْحِ وَالسَّلْخِ ځكه چي تر ذبح كولو او پوست كښلو وروسته هم د هغه نوم باقي دى وَهٰذَا الْوَجْهُ يَشْمَلُ الْفُصُولَ الْمَذْكُورَةَ او دغه علت ټولو مذكوره صورتونو [مسائلو] لره شامل دى وَيَتَفَرَّعُ عَلَيْهِ غَيْرُهَا او پر دې نور صورتونه هم متفرع كيږي فَاحْفَظْهُ نو دا ياد ساته! وَقَوْلُهُ وَلَا يَحِلُّ لَهُ الِانْتِفَاعُ بِهَا حَتَّى يُؤَدِّيَ بَدَلَهَا اسْتِحْسَانٌ او د ماتن رَحِمَهُ الله دا قول "ولا يحل له الانتفاع بها حتى يؤدي بدلها" استحسان دى وَالْقِيَاسُ أَنْ يَكُونَ لَهُ ذٰلِكَ او قياس دا دى چي [تر بدل اداء كولو مخكي] هغه ته د انتفاع حق سته [يعني قياساً د هغه لپاره دا حلال دي چي تر بدل اداء كولو مخكي له دغه مغصوب شي څخه نفع واخلي] وَهُوَ قَوْلُ الْحَسَنِ وَزُفَرَ او همدا د امام حسن او امام زفر رَحِمَهُمَا الله قول دى وَهٰكَذَا عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَوَاهُ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ او همداسي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دى كوم چي فقيه ابو الليث روايت كړى دى وَوَجْهُهُ ثُبُوتُ الْمِلْكِ الْمُطْلِقِ لِلتَّصَرُّفِ او د هغه دليل د داسي ملكيت ثابتېدل دي كوم چي د تصرف جائز ګرځونكى دى [يعني د قياس دليل دا دى چي په غصب سره غاصب ته داسي ملكيت حاصل سو كوم چي د هغه په حق كي تصرف جائز ګرځوي (مُطْلِق د افعال د باب فاعل دى چي د هغه تحقيق به په لغاتو كي ذكر سي)] أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ وَهَبَهُ أَوْ بَاعَهُ آيا ته نه ګورې! چي كه غاصب دغه مغصوب شى هبه كړي يا يې خرڅ كړي جَازَ نو هم جائز دي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ قَوْلُهُ عليه السلام فِي الشَّاةِ الْمَذْبُوحَةِ الْمَصْلِيَّةِ بِغَيْرِ رِضَاءِ صَاحِبِهَا أَطْعِمُوهَا الْأُسَارَى [1] د استحسان دليل د نبي ﷺ دا فرمان دى د داسي پسه په حق كي كوم چي د مالک له رضا څخه بغير ذبح كړى سوى او كباب كړى سوى وو چي دا په قيديانو وخورئ! [قيديانو ته يې صدقه كړئ!] أَفَادَ الْأَمْرُ بِالتَّصَدُّقِ زَوَالَ مِلْكِ الْمَالِكِ وَحُرْمَةَ الِانْتِفَاعِ لِلْغَاصِبِ قَبْلَ الْإِرْضَاءِ [د صدقه كولو] دغه حكم د

---

[1] تخريج: رواه أبو داؤد في سننه، رقم الحديث: ۳۳۳۲.

مالک د ملکيت زائلېدلو او [د مالک] له اضي کولو څخه مخکي د غاصب لپاره د انتفاع حرامېدلو فايده ورکړه [يعني د تصدق په دغه فرمان سره دا معلومه سوه چي د غاصب په فعل سره د مالک ملکيت ختمېږي او د مالک تر اجازت او رضا مخکي له مغصوب څخه شي د غاصب نفع اخيستل حرام دي] وَلِأَنَّ فِي إِبَاحَةِ الِانْتِفَاعِ فَتْحُ بَابِ الْغَصْبِ او ځکه چي د انتفاع په روا ګرځولو کي د غصب د دروازې خلاصول سته فَيَحْرُمُ قَبْلَ الْإِرْضَاءِ حَسْمًا لِمَادَّةِ الْفَسَادِ نو ځکه د فسادي مادې له بېخه کښلو په خاطر به له راضي کولو [اجازت اخيستلو] څخه مخکي انتفاع حرامه وي وَنَفَاذُ بَيْعِهِ وَهِبَتُهُ مَعَ الْحُرْمَةِ لِقِيَامِ الْمِلْكِ او د حرمت باوجود د هغه بيع او هبه نافذېدل د ملکيت موجودېدلو په وجه دي كَمَا فِي الْمِلْكِ الْفَاسِدِ لکه څرنګه چي په ملک فاسد کي کيږي وَإِذَا أَدَّى الْبَدَلَ او کله چي غاصب بدل اداء کړي يُبَاحُ لَهُ نو د هغه لپاره انتفاع روا کيږي لِأَنَّ حَقَّ الْمَالِكِ صَارَ مُوَفًّى بِالْبَدَلِ ځکه چي په بدل سره د مالک حق پوره [اداء شده] وګرځېدی فَحَصَلَتْ مُبَادَلَةٌ بِالتَّرَاضِيْ نو په خپل مينځوي رضامندي سره مبادله واقع سوه وَكَذَلِكَ إِذَا أَبْرَأَهُ او همدارنګه کله چي مالک [له بدل او ضمان څخه] غاصب بري کړي [نو هم د هغه لپاره انتفاع روا کيږي] لِسُقُوطِ حَقِّهِ بِهِ ځکه چي په دې [ابراء] سره د مالک حق ساقط سو وَكَذَا إِذَا أَدَّى بِالْقَضَاءِ أَوْ ضَمَّنَهُ الْحَاكِمُ أَوْ ضَمَّنَهُ الْمَالِكُ او همدارنګه کله چي غاصب د قاضي په فيصله سره بدل اداء کړي يا قاضي له هغه څخه ضمان واخلي يا مالک ضمان ځني واخلي [نو هم د هغه لپاره انتفاع روا کيږي] لِوُجُودِ الرِّضَاءِ مِنْهُ ځکه چي د مالک له طرفه رضا موجوده سوه لِأَنَّهُ لَا يَقْضِيْ إِلَّا بِطَلَبِهِ ځکه چي قاضي فيصله نه کوي مګر صرف د مالک په مطالبه سره وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا غَصَبَ حِنْطَةً فَزَرَعَهَا أَوْ نَوَاةً فَغَرَسَهَا او پر همدغه اختلاف دي کله چي غاصب غنم غصب کړي او هغوی وکري، يا تاکی غصب کړي او هغوی شنې کړي [وکري] غَيْرَ أَنَّهُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُبَاحُ الِانْتِفَاعُ فِيهِمَا قَبْلَ أَدَاءِ الضَّمَانِ مګر د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په دغه دوو صورتونو کي له ضمان اداء کولو څخه مخکي هم انتفاع زوا کيږي لِوُجُودِ الِاسْتِهْلَاكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي په هر اعتبار سره هلاکول موجود سوه بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنيو صورتونو لِقِيَامِ الْعَيْنِ فِيهِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي

په هغوی کي په يوه اعتبار سره عَين موجود وي وَفِي الْحِنْطَةِ يَزْرَعُهَا لَا يَتَصَدَّقُ بِالْفَضْلِ عِنْدَهُ او په هغه غنمو کي به غاصب زياتوب [زائد مقدار] نه صدقه کوي کوم چي يې غاصب وکري، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د طرفينو رَحِمَهُمَا الله وَأَصْلُهُ مَا تَقَدَّمَ او د دې اصل [يعني د زائد مقدار د صدقه کولو په هکله د دغه اختلاف اصل] هغه دی کوم چي مخکي تېر سو [چي هغه په دې عبارت "ومن غصب عبدًا فاستغلّه إلخ" کي د دليل په توګه بيان سو]

**اللغات:** ﴿تغيّرت﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: بدلېدل، بدلون پکښي راتلل. ﴿زال﴾ د نصر ماضي ده: زائلېدل، ليري کېدل، ختمېدل. ﴿شاة﴾ دا لفظ د پسه، وزې او داسي نور ټولو لپاره مستعمل دی همدارنګه مذکر او مؤنث دواړو ته شامل دی، لکه څرنګه چي د الغَنَم لفظ دی. ﴿ثَوْب﴾ جامه، کپړه، ټوکر ﴿شواها﴾ د ضرب ماضي ده، شَوَى يَشْوِيْ شَيًّا: سور کول، کبابول (په اُور کي پخول). ﴿صفر﴾ ژړ، مشهوره فلز دی. ﴿الصَّنْعَة﴾ عمل، کاريګري (عمل الصانع). ﴿هبت﴾ د نصر ماضي ده: هوا چلېدل (باد را الوتل). ﴿طاحونة﴾ ژرنده. ﴿طحنت﴾ د فتح ماضي ده: ميده کول، اُوړه کول. ﴿محظور﴾ ممنوع. ﴿سَلَخَ﴾ د فتح او ضرب له بابه د ماضي صيغه ده: له پوسته کښل، پوستول. ﴿أَرَّب﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: غوښي ټوټه کول، اندام په اندام پرېکول. ﴿أحدث﴾ د افعال د باب ماضي ده: ايجادول، پيدا کول. ﴿مُطْلِق﴾ د افعال د باب فاعل دی، د دغه باب څو معناوي دي، کله چي يې په صِلَه کي التصرف راسي، نو معنی يې ده: روا ګرځول، جائز ګرځول (معجم وسيط). ﴿المصلية﴾ کباب کړی سوی، سور کړی سوی. ﴿أساریٰ﴾ جمع د أسِيْرٌ ده: قيدي، بندي. ﴿حسمًا﴾ د ضرب مصدر دی: غوڅول، په پوره توګه پرېکول، ختمول. ﴿نَفَاذ﴾ (بفتح النون) د نصر د باب مصدر دی: نافذېدل، جاري کېدل، پوره کېدل (مصباح اللغات). ﴿تراضي﴾ د تفاعل مصدر دی: يو له بل څخه راضي کېدل، په يو شي د دواړو عاقدَينو راضي کېدل. ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکول، ضايع کول، ختمول. ﴿فضل﴾ زياتوب، اضافي، زائد مقدار.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو شی غصب کړي او په هغه کي داسي تغيّر و تبدّل راولي چي د هغه نوم او د هغه منافع او مقاصد ټوله زائل سي (مثلاً غنم غصب کړي او بيا هغه اُوړه کړي، ځکه د غنمو د عين سره متعلق مقاصد [يعني کرل، نيښ کول او داسي نور] په ميده کولو سره له منځه ځي)، نو په داسي تغيّر سره زموږ په نيز له دغه شي څخه د مالک (مغصوب منهُ) ملکيت ختميږي او غاصب د هغه مالک ګرځي او د دغه ملکيت په وجه به غاصب د هغه ضمان اداء کوي. او تر څو چي غاصب ضمان نه ورکړي، تر هغه وخته د غاصب لپاره له دغه شي څخه نفع اخيستل صحيح نه دي، د نوم او مقاصدو د

تغیر (بل) مثال دا دی چې غاصب اوسپنه غصب کړي او بیا له هغه څخه توره یا داسې بل شی جوړ کړي یا پسه غصب او ذبح کړي، بیا هغه پوخ یا کباب کړي، ښکاره خبره ده چې دغه داسې تصرفات دي چې په هغوی سره د اصل مغصوب شي نوم او کار ومقصد دواړه ختمیږي، په همدې وجه زموږ په نیز داسې مغصوب شی د مالک (مغصوب منهٔ) له ملکیت څخه وځي او د غاصب په ملکیت کې داخلیږي، لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز دا مغصوب شی د مالک په ملکیت کې پاتې کیږي او د هغه ملکیت نه زائلیږي، وبه قال أحمد وهو رواية عن أبي يوسف رَحِمَهُمُ الله.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې د غاصب له دغه فعل او تصرف څخه وروسته هم مغصوب شی باقي پاتیږي او هغه نه ختمیږي، او د مالک په ملکیت کې د دغه شي باقي پاتېدل اصل دي او د غاصب فعل او تصرف د همدې اصل تابع دي، او څرنګه چې دغه اصل د اصل مالک سره باقي پرېښوول ممکن دي، نو ځکه له تغیّر او تصرّف څخه وروسته به هم مغصوب شی د مالک په ملکیت کې باقي ګرځول کیږي او د غاصب په ملکیت کې به نه داخلول کیږي؛ ځکه چې غاصب د ممنوع او غیر مشروع فعل یعني د غصب په ذریعه د دغه شي د مالک جوړېدلو کوښښ کړی دی، نو ځکه د هغه دا کوښښ به ضایع او بې ځایه وي. د دې مثال داسې دي لکه تېز باد چې د یوه سړي څه غنم پورته کړي او د بل سړي په ژرنده کې یې واچوي او ژرنده هغه اُوړه کړي، نو دغه اُوړه د غنمو د مالک کیږي، نه د ژرندي والا، نو همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم متغیّر شُده مغصوب شی د مالک کیږي، نه د غاصب. خو پر غاصب د مغصوب شي د متغیّر کولو او ناقصولو ضمان لازمیږي. لیکن که غاصب غنم غصب کړي او هغه اُوړه کړي، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز حکم دا دی چې که مالک د اُوړو اخیستل اختیار کړي، نو د نقصان ضمان نه لازمیږي بلکې د اُوړو په ورکولو سره غاصب بري الذمه ګرځي (یعني کله چې مالک له هغه څخه اُوړه واخلي نو د غاصب غاړه خلاصیږي او نور شی نه پر لازمیږي)؛ ځکه چې اُوړه او غنم دواړه یو دي او په هغوی کې غاصب صرف اجزاء متفرّق کړي دي، یو نوی کار یې نه دی پکښې کړی، نو ښکاره خبره ده چې د عَین (اُوړو) د اخیستلو سره سره د نقصان ضمان اخیستل به سُود او رابو وي او سُود حرام دی. لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز په دې صورت کې هم د نقصان ضمان لازمیږي؛ ځکه چې د هغه پر اصل د عَین د اخیستلو سره د نقصان ضمان اخیستل جائز دی، نو ځکه دا به مُفضي الی الربوا نه وي.

وصار کما إذا ذبح إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله پورتنۍ مسئله پر دې صورت قیاس کړی دی چې که غاصب پسه ذبح کړي، له پوسته یې وکاږي او ټوټه، ټوټه یې کړي، نو بیا هم هغه پسه د ده په ملکیت کې نه داخلیږي، که څه هم د غاصب فعل موجود دی، نو کله چې په دومره قدر تصرّف او

تغير سره غاصب د مغصوب شي نه مالک کیږي، نو د غنمو او داسي نورو په اوړه کولو سره به څنګه غاصب د هغوی مالک سي !؟.

**زموږ دلیل**: دا دی چي دلته غاصب په خپل فعل او تصرف سره یو قیمتي (متقوم) شی په وجود کي راوستی دی، ځکه د غنمو په اوړه کولو سره د هغوی قیمت زیاتیږي، همدارنګه پسه په ذبح کولو او پخولو سره له ژوندي پسه څخه زیات ګران قیمته ګرځي او له طحن (میده کولو او اوړه کولو) څخه وروسته غنمو ته دقیق ویل کیږي، نه حنطة، همدارنګه تر ذبح کولو وروسته د شاة (پسه) د نوم پر ځای لحمُ الشاة استعمالیږي او تر طبخ (پخولو) وروسته خو نوم، کار ومقصد ټوله بدلیږي او د غاصب دغه تصرف د مالک پر اصل حق غالب کیږي، په همدې وجه موږ غاصب د مذکوره مغصوب شي مالک ګرځوو او د هغه ایجاد و احداث د هغه د ملکیت سبب ګرځوو، نه غصب.

بخلاف الشاة المسلوخة إلخ: فرمايي چي په مذبوحه مسلوخه شاة سره زموږ پر اصل اعتراض کول صحیح نه دي؛ ځکه چي موږ تر طبخ وروسته د نوم بدلېدلو قائل یو او تر طبخ مخکي خو موږ هم مذبوحه مسلوخه ته شاة وایو لیکن تر طبخ او کبابولو وروسته هغه ته شاة نه وایو، نو ځکه دغه اصل قاعده په یاد ساتل ضروري دي چي د غاصب په کوم تصرّف سره چي د مغصوب شي نوم یا کار و مقصد زائل سي، د هغه په وجه د مالک ملکیت زائلیږي او په کوم تصرف سره چي نوم و کار زائل نه سي، د هغه په وجه له مغصوب شي څخه د مالک ملکیت هم نه زائلیږي.

وقوله لا يحلّ له الانتفاع إلخ: فرمايي په متن کي چي کوم دا خبره ذکر سوې ده چي له بدل اداء کولو څخه مخکي د غاصب لپاره له مغصوب شي څخه نفع اخیستل حلال او جائز نه دي، دا حکم پر استحسان مبني دی، کنې قیاساً د هغه لپاره داسي کول حلال او جائز دي؛ ځکه چي په همدې غصب سره غاصب ته داسي ملکیت حاصل سوی دی کوم چي د غاصب تصرف جائز ګرځولای سي؛ ځکه تر ضمان اداء کولو وروسته په همدې غصب سره د غاصب ملکیت په مغصوب شي کي ثابتیږي، په همدې وجه خو فقهاؤ د غاصب هبه او د هغه بیع جائز ګرځولي دي.

د استحسان دلیل دا دی چي یو وخت نبي کریم ﷺ له یو جنازې څخه واپس تشریف راوړی، نو یوې ښځي د هغوی دعوت وکړی او هغوی ته یې د پسه غوښې پېش کړې، کله چي نبي کریم ﷺ د هغه د خوړلو اراده وکړه، نو ورته محسوسه سوه چي دغه پسه د مالک له اجازت څخه بغیر ذبح کړی سوی دی. کله چي تحقیق او پوښتنه وسوه، نو معلومه سوه چي واقعي همداسي سوي دي، نو بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل "أَطْعِمُوْهَا الأُسَارَى" چي دا غوښې په قیدیانو او د صدقې په مستحقینو وخورئ!. له دغه حدیث څخه دري خبري معلومي سوې: ① د مالک له اجازت څخه بغیر ذبح کړی

سوي څاروي واجبُ التصدق دی، (٢) په فعلِ مغصوب سره د مالک ملکيت زائليږي، (٣) تر څو چي د مالک له طرفه اجازت حاصل نه سي، تر هغه وخته د غاصب لپاره له هغه څخه نفع اخستيل روا نه دي، دا حکم د استحسان مطابق دی او د متن د عبارت سره موافق دی.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چي که د مالک له رضا څخه بغير موږ د غاصب لپاره انتفاع روا وګرځوو، نو په دې سره به د غصب دروازه خلاصه سي او څوک به په غصب څه پروا نه کوي او د خلګو ملکيتونه به محفوظ پاته نه وي. ها! کله چي غاصب بدل (ضمان) اداء کړي، نو په دې سره به مالک (مغصوب منهٔ) ته د خپل حق عوض حاصل سي او د غاصب لپاره به له مغصوب شي څخه نفع اخيستل جائز او روا وګرځي.

وكذا إذا أبرأه إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک غاصب له ضمان څخه بري کړي، يا قاضي پر هغه د ضمان حکم صادر کړي، يا د مالک په مطالبه سره قاضي له غاصب څخه ضمان واخلي، نو په دغو ټولو صورتونو کي د غاصب لپاره انتفاع (له مغصوب شي څخه نفع اخيستل) روا کيږي، باقي عبارت واضح دی او مخکي تېر سوی دی. (احسن الهدايه)

## د سرو زرو او سپينو زرو د غصب کولو او د هغوی د جوړولو حکم

قَالَ: وَإِنْ غَصَبَ فِضَّةً أَوْ ذَهَبًا فرمايي: او که څوک سپين زر يا سره زر غصب کړي فَضَرَبَهَا دَرَاهِمَ أَوْ دَنَانِيرَ أَوْ آنِيَةً بيا له هغوی څخه دراهم يا دنانير يا لوښي جوړ کړي لَمْ يَزُلْ مِلْكُ مَالِكِهَا عَنْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له هغوی څخه د مالک ملکيت نه زائليږي فَيَأْخُذُهَا نو مالک به هغوی اخلي وَلَا شَيْءَ لِلْغَاصِبِ او د غاصب لپاره هيڅ شی نسته وَقَالَا [*]: يَمْلِكُهَا الْغَاصِبُ وَعَلَيْهِ مِثْلُهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي غاصب د هغوی مالک کيږي او پر ده د هغوی مثل واجب دی لِأَنَّهُ أَحْدَثَ صَنْعَةً مُعْتَبَرَةً صَيَّرَتْ حَقَّ الْمَالِكِ هَالِكًا مِنْ وَجْهٍ ځکه چي غاصب يو معتبر (او متقوم) صنعت پيدا کړی دی چي (په دې سره) هغه من وجه د مالک حق هلاک شُده ګرځولی دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ كَسَرَهُ آيا ته نه ګورې! چي غاصب هغه مات کړي دي وَفَاتَ بَعْضُ الْمَقَاصِدِ او د هغه ځيني مقاصد فوت سوي دي وَالتِّبْرُ لَا يَصْلُحُ رَأْسَ الْمَالِ فِي الْمُضَارَبَاتِ وَالشَّرِكَاتِ او اته نه ګورې! چي (د سرو

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، وكذا في الخانية (ج:٨، ص:٢٦٤)، والـدر المنتقى (ج:٤، ص:٨٥). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٦٢]

یا سپینو زرو نا جوړه کړی سوې ټوټه په مضارباتو او شرکاتو کي د راسُ المال جوړېدلو صلاحیت نه لري وَالْمَضْرُوبُ يَصْلُحُ لِذٰلِكَ او جوړه کړی سوې ټوټه د هغه صلاحیت لري وَلَهُ: أَنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي عَین په هره توګه باقي دی أَلَا تَرٰى أَنَّ الِاسْمَ بَاقٍ آیا ته نه ګوري! چي د هغه نوم پاته دی وَمَعْنَاهُ الْأَصْلِيُّ الثَّمَنِيَّةُ وَكَوْنُهُ مَوْزُونًا وَأَنَّهُ بَاقٍ او د هغه اصلي معني ثمن والی او موزوني کېدل دي او دا هم ټوله پاته دي حَتّٰى يَجْرِيَ فِيهِ الرِّبٰوا بِاعْتِبَارِهِ همدا وجه ده چي په هغه کي په همدې [د موزوني کېدو] په اعتبار سره سُود جاري کیږي وَصَلَاحِيَّتُهُ لِرَأْسِ الْمَالِ مِنْ أَحْكَامِ الصَّنْعَةِ دُوْنَ الْعَيْنِ او د راسُ المال جوړېدلو صلاحیت لرل د صنعت له احکامو څخه دي، نه د عَین له احکامو څخه وَكَذَا الصَّنْعَةُ فِيهَا غَيْرُ مُتَقَوَّمَةٍ مُطْلَقًا او همدارنګه په [سرو او سپینو زرو] کي صنعت مطلقاً قیمت لرونکی نه دی لِأَنَّهُ لَا قِيمَةَ لَهَا عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا ځکه چي د خپل جنس سره د مقابله کېدلو په وخت کي دوی لره هیڅ قیمت نسته.

**اللغات**: ﴿آنية﴾ جمع د إِنَاءٌ ده: د خوراک او چښاک لوښي، جمعُ الجمع: أَوَانِي. ﴿صيّر﴾ د تفعیل ماضي ده: ګرځول، جوړول. ﴿التبر﴾ د سرو یا سپینو زرو نا جوړه کړی سوې (نا تراشل سوې) ټوټه. ﴿مضروب﴾ د سرو او سپینو زرو جوړه کړی سوې (تراشل سوې) ټوټه یعني له سرو او سپینو زرو څخه جوړه سوې سکّه (کوم چي په یو خاص طرز او خاص قالب کي جوړه سوې وي چي هغه ته دینار او درهم ویل کیږي).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک سره زر یا سپین زر غصب کړي او له هغوی څخه دراهم یا دنانیر جوړ کړي یا لوښي ځني جوړ کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د غاصب په دغه فعل سره مغصوب شی د مالک له ملکیت څخه نه وځي او د غاصب په ملکیت کي نه داخلیږي بلکي مالک به هغه اخلي. د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز حکم دا دی چي په دغه فعل او تصرف سره د نوم او مقصد دواړو په اعتبار سره په مغصوب شي کي تغیّر و تبدّل راغلی دی او دغه تغیّر د غاصب په حق کي د مالک کېدلو ښکاره علامت دی: ځکه چي په دغه تغیّر سره من وجه د مالک حق زائل سوی دی او اوس د غاصب فعل دومره قدر پر هغه غالب دی چي په هغه کي د اصل مالک حق د معدوم په څېر ګرځېدلی دی او د دغه مغصوب شي (سره او سپینو زرو) ځیني مقاصد په دې توګه فوت سوي دي چي

له جوړولو څخه مخکې د سره او سپینو زر حیثیت د سامان وي او په مُتعینولو سره مُتعین کیږي، همدارنګه له جوړولو څخه مخکې هغوی راسُ المال نه سي جوړېدای، لېکن تر جوړولو وروسته هغوی راسُ المال جوړېدای سي (ځکه چي په جوړولو سره دراهم و دنانیر وګرځي). نو آیا له دومره قدر تغیر و تبدل وروسته به هم غاصب د هغوی نه مالک کیږي!؟.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي له جوړولو او تصرف کولو څخه وروسته هم په درهم او دینار کي د سپینو او سرو زرو نوم باقي پاتیږي، تر دې چي درهم د سپینو زرو او دینار د سرو زرو سکې ته ویل کیږي، همدارنګه د دوی ثمنیت او وزن هم باقي او قائم پاتیږي او د موزوني کېدو په وجه په دوی کي سُود او ربوا هم جاري کیږي، اوس تاسو ووایاست چي کوم شئ پر خپل اصل قائم وي او د هغه اوصاف هم باقي وي، نو هغه به څنګه متغیّر شمېرل کیږي، په همدې وجه موږ دا فیصله کړې ده چي په دغه مسئله کي له جوړولو او د غاصب له فعل او تصرف څخه وروسته هم له مغصوبه سپینو یا سرو زرو څخه د مالک ملکیت نه زائلیږي، او کله چي له هغوی څخه د مالک ملکیت نه زائلیږي، نو ښکاره خبره ده چي هغوی به د غاصب په ملکیت کي داخلیږي هم نه.

پاته سو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دا وینا موږ نه تسلیمو "چي له جوړولو څخهِ وروسته په سرو یا سپینو زرو کي د راسُ المال جوړېدلو صلاحیت راځي او ماقبل الضرب (تر جوړولو مخکې) هغوی راسُ المال نه سي جوړېدای او دا یو ډول تصرّف وتغیّر دی کوم چي د مالک د ملکیت زائلولو سبب دی" (دا موږ نه تسلیموو)؛ ځکه چي تر جوړولو وروسته د راسُ المال جوړېدلو صلاحیت لرل د صنعت او تصرّف له اثر څخه وي، د عَین او اصل له احکامو او اثراتو څخه نه وي، همدارنګه په هغه کي د غاصب فعل هم مطلقاً متقوّم نه وي، همدا وَجه ده که سره زر د سرو زرو یا سپین زر د سپینو زرو سره مقابله کړی سي، نو په هغوی کي تقوّم نه پاتیږي، معلومه ده چي د غاصب تصرف هم دلته کمزوری دی او دغه تصرف د مالک د ملکیت زائلولو سبب نه سي ګرځول کېدای. (احسن الهدایه)

## د لرګیو د غصب کولو او پر هغوی د ځای جوړولو حکم

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ سَاجَةً فَبَنٰی عَلَيْهَا فرمایي: او که څوک د ساج لرګی غصب کړي او پر هغه یو ځای جوړ کړي زَالَ مِلْكُ مَالِكِهَا عَنْهُ وَلَزِمَ الْغَاصِبَ قِيمَتُهَا نو له هغه څخه د مالک ملکیت زائلیږي او پر غاصب د هغه قیمت لازمیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لِلْمَالِكِ أَخْذُهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي مالک ته د هغه (ساج) د اخیستلو اختیار سته وَالْوَجْهُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ قَدَّمْنَاهُ او د دواړو طرفونو دلیل موږ مخکې بیان کړی دی وَوَجْهٌ آخَرُ لَنَا فِيهِ أَنَّ فِيمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ إِضْرَارًا بِالْغَاصِبِ بِنَقْضِ بِنَائِهِ

الْحَاصِلِ مِنْ غَيْرِ خَلَفٍ او په دې [مسئله] کې زموږ بل دلیل دا دی چې امام شافعي رَحِمَهُ الله کوم طرف ته تللی دی په هغه صورت کې غاصب ته نقصان رسول سته، د هغه د جوړ سوي ځای د ماتولو په وجه بغیر له څه بدله [یعني زموږ دوېم دلیل دا دی چې امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم صورت اختیار کړی دی په هغه کې د غاصب ضرر او تاوان دی په دې توګه چې د هغه جوړ سوی ځای به بغیر له عوضه مات سي] وَضَرَرُ الْمَالِكِ فِيمَا ذَهَبْنَا إِلَيْهِ مَجْبُورٌ بِالْقِيمَةِ او د مالک ضرر په هغه صورت کې چې د هغه وطرف ته موږ تللي وي په قیمت سره پوره کړی سوی دی [یعني زموږ په اختیار کړه صورت کې که څه هم د مالک ضرر سته، لېکن هغه ضرر په قیمت سره لیري کړی سوی دی] فَصَارَ كَمَا إِذَا خَاطَ بِالْخَيْطِ الْمَغْصُوبِ بَطْنَ جَارِيَتِهِ وَعَبْدَهُ نو دا داسي سوه لکه یو څوک چې په غصب کړی سوي تار [سپنسي] سره د خپلي مینځي یا غلام نس وګنډي أَوْ أَدْخَلَ اللَّوْحَ الْمَغْصُوبَ فِي سَفِينَتِهِ یا غصب کړی سوې تخته په خپل کښتۍ کې نصب کړي ثُمَّ قَالَ: الْكَرْخِيُّ وَالْفَقِيهُ أَبُو جَعْفَرٍ: إِنَّمَا لَا يُنْقَضُ إِذَا بَنَى فِي حَوَالِي السَّاجَةِ بیا امام کرخي او فقیه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُمَا الله ویلي دي: چې [د غاصب] جوړ سوی ځای به په هغه صورت کې نه ماتول کیږي کله چې غاصب د ساج لرګي په شا وخوا کې جوړ کړی وي أَمَّا إِذَا بَنَى عَلَى نَفْسِ السَّاجَةِ لېکن که هغه پر خودي ساج لرګي ځای جوړ کړی وي يُنْقَضُ نو دا ځای به نړول کیږي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځکه چې په دې ځای کې غاصب تجاوز کونکی [نا حقه تصرّف کونکی] دی وَجَوَابُ الْكِتَابِ يَرُدُّ ذَٰلِكَ لېکن د قدوري [متن] حکم د دې تردید کوي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زیاته صحیح ده.

**اللغات**: ﴿ساجة﴾ یو ډول تور ګران بیه لرګی دی کوم چې د ساج په نامه درختني څخه ترلاسه کول کیږي چې هغه اکثراً په هندوستان کې کرل کیږي، جمع: سَاجَات، ﴿إضرار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضرر رسول، ﴿نَقْض﴾ د نصر مصدر دی: ماتول، ﴿مجبور﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی، اصل معنیٰ یې ده: جوړ کړی سوي (اصلاح کړی سوي)، پټی کړی سوی، مراد: تلافي کړی سوی، پوره کړی سوی، ﴿لوح﴾ تخته، ﴿حوالی﴾ شا وخوا، چاپېره، ﴿متعد﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تجاوز کونکی (له حده تېرېدونکی)، نا حقه تصرف کونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک له يو چا څخه ګران بيه لرګی يا تير غصب کړي او پر هغه ځای جوړ کړي، نو له دغه لرګي څخه د مالک ملکيت زائليږي چې تر دې وروسته مالک ته د هغه داخيستلو اختيار نه پاتيږي او پر غاصب د هغه قيمت لازميږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مالک ته د هغه داخيستلو اختيار سته، د دواړو طرفونو دليل د دغه فصل په اول عبارت کې تېر سوی دی. په دې سلسله کې زموږ د احنافو دويم دليل دا دی چې که موږ مالک ته د لرګي د واپس اخيستلو اختيار ورکړو، نو د غاصب د ځای نړول به لازم سي او هغه ته به ضرر و نقصان ورسيږي او د دې په بدله کې به غاصب ته بدل او عوض هم حاصل نه سي، او د ځای نه نړولو او پر غاصب د قيمت لازمولو فايده به دا وي چې غاصب به هم له نقصان څخه بچ سي او مالک ته به د خپل لرګي په عوض کې قيمت حاصل سي. د دې مثال داسي دی لکه غاصب چې په غصب کرده تار او سپڼسي سره د خپلي مېنځي يا غلام نس وګنډي، يا غصب کرده تخته په خپل ماته کښتۍ کې نصب کړي، نو په دغو صورتونو کې هم له مغصوب شي څخه د مالک ملکيت زائليږي او پر غاصب د هغه قيمت لازميږي.

ثم قال الكرخي إلخ: اصل حکم خو همغه دی کوم چې په کتاب (متن) کې ذکر سوی دی، لېکن د امام کرخي او فقيه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُمَا الله يو قول دا دی چې که دغه لرګی په مېنځ کې استعمال سوی وي او ځای د هغه پر شا وخوا جوړ کړی سوی وي، نه پر لرګي، نو دا جوړ سوی ځای به نه نړول کيږي. ها! که چيري خاص پر لرګي ځای جوړ کړی سوي وي، نو هغه به ماتول کيږي، ځکه چې خاص پر لرګي د جوړولو په وجه غاصب متعدي دی او د متعدي سره داسي چلن کېدلای سي (چې د هغه جوړ سوی ځای ونړول سي). دا د امام کرخي او فقيه ابو جعفر رَحِمَهُمَا الله انفرادي رايه ده او اصل حکم همغه دی کوم چې په کتاب کې مذکور دی يعني د غاصب جوړ سوی ځای به نه نړول کيږي. (احسن الهدايه)

## غصب کړی سوی شی ضايع کول

قال: وَمِنْ ذَبَحَ شَاةَ غَيْرِهِ فرمايي: او که څوک د بل چا پسه غصب کړي فَمَالِكُهَا بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهَا وَسَلَّمَهَا إِلَيْهِ نو د پسه مالک ته اختيار دی که وغواړي نو له غاصب څخه دي د پسه د قيمت ضمان واخلي او هغه دي غاصب ته وسپاري وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ نُقْصَانَهَا او که وغواړي نو د پسه د نقصان ضمان دي څني واخلي وَكَذَا الْجَزُورُ او همداسي اوښ دی ايعني همدا حکم د اوښ د ذبح کولو

دی] وَكَذَا إِذَا قَطَعَ يَدَهُمَا او همدارنګه کله چې غاصب د پسه يا اوښ لاس پرېکړي هٰذَا هُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ همدا ظاهر روايت دی وَجْهُهُ أَنَّهُ إِتْلَافٌ مِنْ وَجْهٍ بِاعْتِبَارِ فَوْتِ بَعْضِ الْأَغْرَاضِ مِنَ الْحَمْلِ وَالدَّرِّ وَالنَّسْلِ او د ظاهر روايت دليل دا دی چې دا په يوه توګه اتلاف [ضايع کول] دي د بعضي مقاصدو د فوتېدلو په اعتبار سره لکه بار، شيدې او نسل وَبَقَاءِ بَعْضِهَا وَهُوَ اللَّحْمُ او د بعضي مقاصدو د پاتېدلو په اعتبار سره [دا اتلاف نه دی] يعني غوښې فَصَارَ كَالْخَرْقِ الْفَاحِشِ فِي الثَّوْبِ نو دا داسې سو لکه په [مغصوبه] کپړه کې چې زيات څيرې والي [غټ سوری] وي وَلَوْكَانَتِ الدَّابَّةُ غَيْرَ مَأْكُولِ اللَّحْمِ او که چيرې [مغصوب] څاروی داسې وي چې د هغه غوښې نه خوړل کيږي فَقَطَعَ الْغَاصِبُ طَرَفَهَا بيا غاصب د هغه يو طرف [اندام] پرېکړي لِلْمَالِكِ أَنْ يُضَمِّنَهُ جَمِيعَ قِيمَتِهَا نو مالک ته دا اختيار سته چې له غاصب څخه د هغه څاروي د ټوله قيمت ضمان واخلي لِوُجُودِ الِاسْتِهْلَاكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چې په هره توګه هلاکول [ضايع کول] موجود سوه بِخِلَافِ قَطْعِ طَرَفِ الْمَمْلُوكِ په خلاف د غلام د يوه طرف د پرېکولو حَيْثُ يَأْخُذُهُ مَعَ أَرْشِ الْمَقْطُوعِ ځکه مالک به دا غلام د پرېکړل سوي طرف د تاوان [ديت] سره اخلي لِأَنَّ الْآدَمِيَّ يَبْقَى مُنْتَفَعًا بِهِ بَعْدَ قَطْعِ الطَّرَفِ ځکه چې انسان [غلام] د يوه طرف [اندام] له پرېکولو څخه وروسته هم د نفع اخيستلو قابل پاتېږي. [يعني د يوه اندام له ضايع کېدلو څخه وروسته هم له غلام څخه نفع اخيستل کېدای سي].

**اللغات:** ﴿شاة﴾ د دغه لفظ معنیٰ او تحقيق د فصل د شروع په عبارت کې ذکر سو، ﴿خِيَار﴾ اختيار، ﴿ضمّنه﴾ د تفعيل ماضي ده: ضامن ګرځول، ضمان څخنې اخيستل، ﴿نقصان﴾ کمي، کمښت (کموالی)، ﴿جَزُوْر﴾ هغه اوښ او اوښه کوم چې د ذبح کولو قابل وي (معجم وسيط)، ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، بربادول، ﴿خَرْق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: څيرل، او الخَرْق: د کپړې سوری. ﴿الفاحش﴾ ډېر زيات، ﴿الطَّرَف﴾ (بفتح الطاء والراء): د يو شي يوه ټوټه (حصه)، عضو او اندام (احسن الهدايه)، ﴿أرش﴾ تاوان او ديت، د ما دون النفس ديت، يعني هغه مال کوم چې د يو اندام او يو حصه پر هلاکولو او زخمي کولو واجبېږي، او کوم مال چې د نفس پر هلاکولو واجبېږي، هغه ته دِيَة ويل کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د بل چا پُسه غصب کړي او هغه ذبح کړي، يا د يو چا اوښ غصب کړي او ذبح يې کړي، يا د غصب کرده پُسه يا اوښ پښه او لاس پرې کړي، نو په دغو صورتونو کې مالک ته دا اختيار حاصليږي چې که وغواړي نو مغصوب شی (پُسه يا اوښ) دې غاصب ته پرېږدي او له هغه څخه دې د ټوله قيمت ضمان واخلي (يعني په تاوان کې دې د پُسه يا اوښ ټوله قيمت ځني واخلي) او که وغواړي نو مغصوب شی دې قبول کړي او له غاصب څخه دې د نقصان ضمان (تاوان) واخلي، دا د ظاهر روايت حکم دی او د دغه حکم دليل دا دی چې دلته غاصب کوم کار کړی دی هغه من وجه اتلاف دی چې په هغه سره د بار وړلو، شيدې کولو او د نسل پيدا کولو لاره بنده سوه، او من وجه اتلاف نه دی؛ ځکه چې د هغه غوښې اوس هم موجوده دي او له هغوی څخه نفع اخيستل کېدای سي، نو ځکه مالک ته به د ټوله قيمت د ضمان يا د ضمان نقصان په اخيستلو کې د يوه اختيار حاصليږي. لکه په يو کېړه کي چې ډېر غټ سوری او څيري والی وي يعني د غاصب تر غصب وروسته مغصوبه کپړه زياته څيري سي، نو په دې صورت کې هم مالک ته د ټوله قيمت يا د ضمان نقصان د اخيستلو اختيار حاصليږي. نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم هغه ته دغه اختيار وي.

**ولو کانت الدابة إلخ**: مسئله دا ده که غاصب يو داسي څاروی غصب کړي چې د هغه غوښې نه خوړل کيږي او بيا د هغه يو اندام پرې کړي، نو په دې صورت کې پر غاصب د ټوله قيمت ضمان لازميږي او دلته مالک ته د ضمان نقصان اخيستلو اختيار نه حاصليږي؛ ځکه چې دا څاروی غير مأکولُ اللحم دی او د هغه غوښې د انتفاع قابل نه دي، نو ځکه دلته د غاصب د فعل په وجه من کُلّ وجه استهلاک موجود سو (ګواکي هغه د اندام په پرېکولو سره دغه غصب کرده څاروی هلاک کړی)، نو ځکه پر هغه به د ټوله څاروي د قيمت ضمان لازميږي، ها! که چيري غاصب د يو چا د غصب کرده غلام يو اندام پرې کړي نو څرنګه چې د يوه اندام تر پرېکېدلو وروسته هم انسان قابلِ انتفاع پاتيږي او د انسان د طرف واحد پرېکول من کُلّ وجه استهلاک نه دی، نو ځکه په دې صورت مالک ته دا اختيار حاصليږي چې خپل زخمي غلام له غاصب څخه قبول کړي او له غاصب څخه د پرېکړل سوي اندام ديت واخلي.

## غصب کړی سوی شی عيبداره کول

قَالَ: وَمَنْ خَرَقَ ثَوْبَ غَيْرِهِ خَرْقًا يَسِيرًا فرمايي: او څوک چې د بل چا کپړه معمولي غوندي څيري کړي ضَمِنَ نُقْصَانَهُ نو هغه د نقصان ضامن کيږي وَالثَّوْبُ لِمَالِكِهِ او کپړه د خپل مالک لپاره ده لِأَنَّ الْعَيْنَ قَائِمٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ وَإِنَّمَا دَخَلَهُ عَيْبٌ ځکه چې عين [ثوب] من کُلّ وجه موجود دی او په هغه کي صرف عيب داخل سوی دی فَيَضْمَنُهُ نو څيرونکی به د هغه عيب ضامن کيږي وَإِنْ خَرَقَ خَرْقًا كَبِيرًا

تَبْطُلُ عَامَّةَ مَنَافِعِهِ او که غاصب [مغصوبه کپړه] زیاته څیري کړي چي د هغې عام منافع ختم سي فَلِمَالِكِهِ أَنْ يُضَمِّنَهُ جَمِيعَ قِيمَتِهِ نو د کپړې مالک ته دا اختیار سته چي له غاصب [څیرونکي] څخه د کپړې د ټوله قیمت ضمان واخلي لِأَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ ځکه چي دا په همدغه اعتبار [یعني د عامو منافعو د ضایع کېدلو په اعتبار] سره هلاکول دي فَكَأَنَّهُ أَحْرَقَهُ نو ګواکي هغه دا کپړه وسوځوله قَالَ: مَعْنَاهُ يُتْرَكُ الثَّوْبُ عَلَيْهِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: د دې مطلب دا دی چي هغه کپړه به د غاصب سره پرېښوول کیږي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الثَّوْبَ وَضَمَّنَهُ النُّقْصَانَ او که مالک وغواړي نو کپړه دي واخلي او له غاصب څخه دي د نقصان ضمان واخلي لِأَنَّهُ تَعْيِيبٌ مِنْ وَجْهٍ مِنْ حَيْثُ إِنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ وَكَذَا بَعْضُ الْمَنَافِعِ قَائِمٌ ځکه چي دا په یوه اعتبار سره عیبداره کول دي په دې توګه چي عَین [ثوب] باقي دی او همدارنګه بعضي منافع هم موجود دي ثُمَّ إِشَارَةُ الْكِتَابِ إِلٰى أَنَّ الْفَاحِشَ مَا يَبْطُلُ بِهِ عَامَّةُ الْمَنَافِعِ بیا د قدوري [متن] اشاره دا ښیي چي خرقِ فاحش [زیات څیرل] هغه دي چي په هغه سره عام منافع ختم سي وَالصَّحِيحُ أَنَّ الْفَاحِشَ مَا يَفُوتُ بِهِ بَعْضُ الْعَيْنِ وَجِنْسُ الْمَنْفَعَةِ وَيَبْقٰى بَعْضُ الْعَيْنِ وَبَعْضُ الْمَنْفَعَةِ [لېکن] صحیح دا ده چي خرقِ فاحش هغه دي چي د هغه په وجه د عَین [کپړې] بعضي حصه او جنسِ منفعت فوت سي او د عَین او منفعت بعضي حصه پاته سي وَالْيَسِيرُ مَا لَا يَفُوتُ بِهِ شَيْءٌ مِنَ الْمَنْفَعَةِ وَإِنَّمَا يَدْخُلُ فِيهِ النُّقْصَانُ او خرقِ یسیر [معمولي څیرل] هغه دي چي د هغه په وجه هیڅ منفعت فوت نه سي بلکي په عَین کي صرف نقصان داخل سي لِأَنَّ مُحَمَّدًا جَعَلَ فِي الْأَصْلِ قَطْعَ الثَّوْبِ نُقْصَانًا فَاحِشًا وَالْفَائِتُ بِهِ بَعْضُ الْمَنَافِعِ ځکه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي د کپړې پرېکول نقصانِ فاحش ګرځولي دي حال دا چي په هغه سره بعضي منافع فو تیږي. (احسن الهدایه)

**اللغات**: ﴿خَرَقَ﴾ د ضرب ماضي ده: څیرل، پرېکول. ﴿یسیر﴾ معمولي، لږ غوندي. ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکول، ضایع کول. ﴿فائت﴾ د نصر د باب فاعل دی: فوت سوی (فوت شده).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د بل چا کپړه غصب کړي او هغه معمولي غوندي څیري کړي، نو پر غاصب د نقصان ضمان لازمیږي او که چیري مغصوبه کپړه زیاته څیري کړي چي د

هغې عام منافع ضائع سي، نو دا د سوځولو په درجه کې دي او د داسي څيرلو په وجه پر غاصب د ټوله قيمت ضمان لازميږي او مغصوبه کپړه به غاصب ته ورکول کيږي يا که مالک وغواړي نو دا څيرل سوې کپړه دي قبوله کړي او له غاصب څخه دي ضمان نقصان واخلي؛ ځکه چي خرقِ کثير من كُلّ وجه استهلاک نه دی، بلکي تعييب (عيبداره کول) دي او د تعييب په صورت کي هم مالک ته د ټوله قيمت يا د ضمان نقصان په اخيستلو کي ديوه اختيار حاصليږي.

د خرقِ کثير او خرقِ يسير د مصداق او مقدار په هکله څو اقوال نقل سوي دي: ① يو قول دا دی چي که د څيرلو په وجه د کپړې د قيمت يوه رُبع (څلورمه حصه) يا تر هغه زيات قيمت کم سي، نو دا خرقِ کثير او خرقِ فاحش دی او که له رُبع قيمت څخه لږ کم سي، نو دا خرقِ يسير دی، ② که د څيرلو په وجه د کپړې نيم قيمت کم سي، نو کثير دی او که تر هغه يې لږ قيمت کم سي، نو يسير دی، ③ که د خرق (څيرلو) په وجه کپړه د څه قابل پاته نه سي يعني هغه د کپړې پر ځای استعمالول ممکن نه وي، نو دا خرقِ کثير دی او که هغه د کپړې پر ځای استعمالول ممکن وي، نو دا يسير دی، ④ څلورم او صحيح قول کوم چي په کتاب هم کي ذکر سوی دی، دا دی چي که په څيرولو سره د کپړې د عَين (ذات) او منفعت بعضي حصه فوت سي، نو دا خرقِ کثير او فاحش دی او که په هغه سره عَين او منفعت فوت نه سي بلکي په عَين کي نقص او عيب پيدا سي، نو دا خرقِ يسير دی. د دغه قول دليل دا دی چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي ليکلي دي چي که يو څوک د بل چا کپړه غصب کړي او هغه د کميس جوړولو لپاره پرېکړي، نو ښکاره خبره ده چي په دغه قطع (پرېکولو) سره د منفعت بعضي حصه فوت سوه (چي تر قطع مخکي له دغه کپړې څخه چپنه يا داسي بله جامه هم جوړېدای سوه. لېکن په قطع [پرېکولو] سره هغه د کميس لپاره مُتعيّنه سوه) مګر امام محمد رَحِمَهُ الله دغه قطع خرقِ فاحش او قطعِ فاحش ګرځولی دی کوم چي د دې خبري دليل دی چي په قطعِ فاحش کي لږ منفعت فوتيږي لېکن په قطعِ يسير کي لږ منفعت هم نه فوتيږي. (احسن الهدايه)

## په غصب کړی سوې ځمکه کي درختي اېښوول يا ځای پکښي جوړول

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ أَرْضًا فَغَرَسَ فِيهَا أَوْ بَنَى فرمايي: او څوک چي يو ځمکه غصب کړي او په هغې کي درختي [نالان] کښېږدي يا ځای پکښي جوړ کړي قِيْلَ لَهُ: اِقْلَعِ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ وَرُدَّهَا نو هغه ته به ويل کيږي: چي خپل جوړ سوی ځای او اېښوول سوي درختي ليري کړه او ځمکه [مالک ته] واپس کړه! لِقَوْلِهِ الْعَلَيْهِ ❶: «لَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چي "د ظالم د رګ

❶ تخريج: رواه أبو داؤد، رقم الحديث: ۳۰۷۳، والنسائي في السنن الكبرىٰ، رقم الحديث: ۵۷۶۱.

لپاره [يعني د غاصب د اينښوول سوي بوټي او نيالگي لپاره] هيڅ حق نسته" [يعني هغه به له ځمکي څخه ليري کول کيږي] وَلِأَنَّ مِلْكَ صَاحِبِ الْأَرْضِ بَاقٍ او ځکه چي د ځمکي د مالک ملکيت باقي دی فَإِنَّ الْأَرْضَ لَمْ تَصِرْ مُسْتَهْلَكَةً ځکه ځمکه هلاکه کړل سوې نه ده وَالْغَصْبُ لَا يَتَحَقَّقُ فِيهَا او په ځمکه کي غصب نه ثابتيږي وَلَا بُدَّ لِلْمِلْكِ مِنْ سَبَبٍ حال دا چي د ملکيت [مالک کېدو] لپاره يو سبب ضروري دی فَيُؤْمَرُ الشَّاغِلُ بِتَفْرِيغِهَا نو ځکه د ځمکي مشغولونکي [غاصب] ته به د ځمکي د خالي کولو حکم کيږي كَمَا إِذَا شَغَلَ ظَرْفَ غَيْرِهِ بِطَعَامِهِ لکه څوک چي د بل چا لوښی په خپل خوراک سره مشغوله کړي [نو هغه ته د لوښي د خالي کولو حکم کيږي] فَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ تَنْقُصُ بِقَلْعِ ذَلِكَ بيا که چيري د دغه شيانو په کښلو سره ځمکي ته نقصان رسيږي فَلِلْمَالِكِ أَنْ يَضْمَنَ لَهُ قِيمَةَ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ مَقْلُوعًا وَيَكُونَانِ لَهُ نو مالک ته د دې اختيار سته چي غاصب ته د کښل سوي [اړول سوي] ځای او کښل سوو درختو قيمت ورکړي او دغه دواړه شيان د مالک سي لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لَهُمَا وَدَفْعَ الضَّرَرِ عَنْهُمَا ځکه چي په دې کي د مالک و غاصب دواړو مصلحت [او رعايت] هم سته او له دواړو څخه د ضرر دفع کول هم سته وَقَوْلُهُ قِيمَتُهُ مَقْلُوعًا مَعْنَاهُ قِيمَةُ بِنَاءٍ أَوْ شَجَرٍ يُؤْمَرُ بِقَلْعِهِ او د ماتن رَحِمَهُ الله د دې قول "قيمته مقلوعًا" مطلب دا دی چي د داسي ځای او داسي درختو قيمت دي ورکړي چي د هغه د کښلو حکم سوی وي لِأَنَّ حَقَّهُ فِيهِ ځکه چي د غاصب حق په همدغه ځای او درختو کي دی إِذْ لَا قَرَارَ لَهُ فِيهِ ځکه چي د هغه [ځای او درختو] لپاره په ځمکه کي قرار نسته فَيُقَوَّمُ الْأَرْضُ بِدُونِ الشَّجَرِ وَالْبِنَاءِ وَيُقَوَّمُ وَبِهَا شَجَرٌ وَبِنَاءٌ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ أَنْ يَأْمُرَهُ بِقَلْعِهِ نو ځکه [يو وار] به له درختو او ځای څخه بغير د ځمکي قيمت اندازه کړی سي [معلوم کړی سي] او بيا به د داسي درختو او ځای سره د هغې قيمت انداز کړی سي چي د ځمکي مالک ته د هغوی د کښلو د حکم کولو اختيار وي فَيَضْمَنُ فَضْلَ مَا بَيْنَهُمَا نو د دغه دوو قيمتونو په مينځ کي چي کوم زياتوب [او فرق] وي مالک د هغه ضامن کيږي [يعني هغه به د ځمکي مالک غاصب ته په ضمان کي ورکوي].

**اللغات**: ﴿غَرَسَ﴾ د ضرب ماضي ده: درخته او بوټي، شنه کول (اينښوول)، په ځمکه کي نيالگی اينښوول (لگول)، الغَرْس: اينښوول سوي درختي او بوټي (نيالگي)، ﴿إِقْلَعْ﴾ د فتح له بابه د واحد

مذکر امر حاضر صيغه ده: له بيخه کښل (کاړل)، ليري کول. ﴿البناء﴾ جوړ سوی ځای، عمارت، وداني، ﴿مقلوع﴾ د فتح د باب مفعول دی: کښل سوی (ګاړل سوی). ﴿عِرْق﴾ د دغه لفظ څو معناوي دي: د هر شي اصل، رګ، او داسي نور. عِرْقِ ظَالِمٍ او عِرْقٍ ظَالِمٍ: مراد ځني هغه بوټي او هغه نال دی کوم چي يې غاصب کس د غصب په توګه د بل چا په ځمکه کي کښيږدي، د دې لپاره چي په هغه سره ځان د ځمکي مستحق وګرځوي. په مذکوره حديث کي داسي بوټي (عرق) په ظلم سره موصوف کړی سوی دی، د دې لپاره چي خلکو ته معلومه سي چي د داسي بوټو او درختو کښل او د ايښوونکي غاصب (ظالم) له اجازت څخه بغير د هغوی ليري کول بالکل جائز دي (مصباح المنير)، ﴿عرق ظالم﴾ په ځيني رواياتو کي دغه الفاظ د موصوف او صفت په توګه يعني ”عِرْقٍ ظَالِمٍ“ ذکر سوي دي او په ځينو کي د اضافت په توګه يعني ”عِرْقِ ظَالِمٍ“ ذکر سوي دي، ﴿يُقَوَّم﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده. قَوَّمَ يُقَوِّمُ تَقْوِيمًا: قيمت ټاکل، قيمت اندازه کول. رېټ لګول. ﴿الشَّجَر﴾ واحد يې شَجَرَةٌ دی: درختي، وني.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی په زوره د يو چا ځمکه لاندي کړي او په هغې کي درختي او نالان کښيږدي يا يو ځای پکښي جوړ کړي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي دغه ظالم غاصب ته به ويل کيږي چي ژر تر ژره خپل جوړ سوی ځای او خپلي درختي ليري کړه! او د مالک ځمکه خالي کړه!؛ ځکه په حديث مبارک کي په واضحه توګه دا اعلان سوی دی ”لَيْسَ لِعِرْقِ ظَالِمٍ حَقٌّ“. عقلي دليل دا دی چي نه په ځمکه کي غصب متحقق کيږي (لکه مخکي چي ذکر سوه) او نه د ځای په جوړولو يا د درختوو په شنه کولو سره ځمکه هلاکه او ضايع کيږي او د عقار (جايداد) کېدلو په وجه په هغې کي د غاصب له طرفه د ملکيت سبب هم نه موجوديږي، نو ځکه دلته د فيصلې يوازيني لاره همدا ده چي غاصب د خپل ځای او درختو په ليري کولو او د ځمکي په خالي کولو سره مکلف کړی سي، لکه کله چي يو څوک په زوره د بل چا په لوښي کي خپل خوراک يا مثلاً خپل غنم خوندي کړي، نو ښکاره خبره ده چي په داسي صورت کي غاصب د لوښي په خالي کولو سره مکلف کيږي.

ها! که چيري د جوړ سي ځای په نړولو يا د درختو په کښلو سره ځمکي ته نقصان رسيږي، نو په دې صورت کي مالک ته پکار دي چي د غاصب جوړ سوی ځای او درختي خپله واخلي او هغه ته د نړول سوي ځای او کښل سوو درختو ضمان په شپږ قيمت ورکړي چي د هغه صورت دا دی چي يو وار دي د خالي ځمکي قيمت ته اندازه ولګول سي او بيا دي د جوړ سوي ځای او درختو سره د

ځمکي قيمت اندازه کړی سي، نو که چيري د ځای او درختو سره د ځمکي قيمت مثلاً دوه نيم لکه (۲۵۰۰۰۰) روپۍ وي او له ځای او درختو څخه بغير دوه لکه روپۍ وي، نو مالک دي غاصب ته پنځوس زره (۵۰۰۰۰) روپۍ ورکړي او د غاصب جوړ سوی ځای او درختي دي ځني واخلي او په خپل ځمکه کي دي يې پرېږدي. همدا د ټوله عبارت حاصل او نځوړ دی.

## په غصب کړی سوي شي کي زياتوب و اضافه کول (غصب شُده کپړې ته رنګ ورکول)

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ ثَوْبًا فَصَبَغَهُ أَحْمَرَ فرمايي: او څوک چي يو کپړه غصب کړي او هغې ته سُور رنګ ورکړي أَوْ سَوِيقًا فَلَتَّهُ بِسَمْنٍ يا نيني غصب کړي او په غوړو يې ګډې کړي فَصَاحِبُهُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ ثَوْبٍ أَبْيَضَ وَمِثْلَ السَّوِيقِ وَسَلَّمَهُ لِلْغَاصِبِ نو مالک ته اختيار دی چي که وغواړي نوله غاصب څخه دي د سپيني [نارنګول سوي] کپړې قيمت او هغسي نينې واخلي او مغصوب شی [کپړه او نينې] دي غاصب ته ورکړي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَهُمَا وَغَرِمَ مَا زَادَ الصِّبْغُ وَالسَّمْنُ فِيهِمَا او که وغواړي نو کپړه او نينې دي واخلي، او رنګ او غوړيو چي په دوی کي کوم څه [دقيمت] زياتوب کړی وي د هغه تاوان [عوض] دي ورکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي الثَّوْبِ: لِصَاحِبِهِ أَنْ يُمْسِكَهُ وَيَأْمُرَ الْغَاصِبَ بِقَلْعِ الصِّبْغِ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د داسي کپړې په هکله فرمايلي دي: چي مالک ته دا اختيار سره چي دا کپړه را وګرځوي او غاصب په ممکنه اندازه سره [له کپړې څخه] د رنګ پر ايستلو امر کړي اِعْتِبَارًا بِفَصْلِ السَّاحَةِ بَنَى فِيهَا په قياس کولو سره پر هغه ځای کوم چي غاصب په ساحه [د کورنو تر مينځ په خاليګاه] کي جوړ کړی وي لِأَنَّ التَّمْيِيزَ مُمْكِنٌ ځکه چي [د کپړې او رنګ] سره جلا کول ممکن دي بِخِلَافِ السَّمْنِ فِي السَّوِيقِ په خلاف په نينو کي د غوړيو لِأَنَّ التَّمْيِيزَ مُتَعَذِّرٌ ځکه [غوړي او نينې] سره جلا کول نا ممکن دي وَلَنَا مَا بَيَّنَّا أَنَّ فِيهِ رِعَايَةَ الْجَانِبَيْنِ او زموږ دليل هغه دی کوم چي [مخکي] موږ بيان کړی چي په دې کي [يعني زموږ په ذکر سوي صورت کي] د دواړو طرفونو رعايت سته وَالْخِيَرَةُ لِصَاحِبِ الثَّوْبِ لِكَوْنِهِ صَاحِبَ الْأَصْلِ او د کپړې مالک ته اختيار ځکه حاصل دی چي هغه د اصل [کپړې] مالک دی بِخِلَافِ السَّاحَةِ بَنَى فِيهَا په خلاف د خاليګاه [خالي ميدان] چي په هغه کي يې کور جوړ کړی وي لِأَنَّ النَّقْضَ لَهُ بَعْدَ النَّقْضِ ځکه چي [په هغه صورت کي] له ځای ماتولو څخه وروسته مات سوی سامان د غاصب لپاره پاتيږي أَمَّا الصِّبْغُ فَيَتَلَاشَى پاته سو رنګ نو

هغه بالکل ختمیږي [او د غاصب لپاره هیڅ شی نه پاتیږي] وَبِخِلَافِ مَا إِذَا انْصَبَغَ بِهُبُوبِ الرِّيحِ او په خلاف د هغه صورت کله چي د هوا چلېدلو [باد راتللو] په وجه کپړه [په خپله] ورنګیږي لِأَنَّهُ لَا جِنَايَةَ مِنْ صَاحِبِ الصِّبْغِ لِيَضْمَنَ الثَّوْبَ ځکه چي [په دغه رنګېدلو کي] د رنګ والا هیڅ قصور نسته چي هغه د کپړې ضمان ورکړي فَيَتَمَلَّكُ صَاحِبُ الْأَصْلِ الصِّبْغَ نو ځکه د اصل [کپړې] مالک به د رنګ مالک کیږي قَالَ أَبُو عِصْمَةَ فِي أَصْلِ الْمَسْأَلَةِ: وَإِنْ شَاءَ رَبُّ الثَّوْبِ بَاعَهُ وَيَضْرِبُ بِقِيمَتِهِ أَبْيَضَ وَصَاحِبُ الصِّبْغِ بِمَا زَادَ الصِّبْغُ فِيهِ او داصل مسئلې په هکله شیخ ابو عصمه مروزي رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي که د کپړې مالک وغواړي نو دغه کپړه دي خرڅه کړي او له هغه څخه دي صرف د سپیني کپړې قیمت واخلي او رنګ [رنګولو] چي په کپړه کي کوم څه [د قیمت] زیاتوب کړی وي هغه دي رنګ والا واخلي لِأَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَتَمَلَّكَ الصِّبْغَ بِالْقِيمَةِ ځکه د کپړې مالک ته دا اختیار سته چي د قیمت په عوض کي د رنګ مالک جوړ نه سي وَعِنْدَ امْتِنَاعِهِ تَعَيَّنَ رِعَايَةُ الْجَانِبَيْنِ فِي الْبَيْعِ او د مالک د منع کېدلو په صورت کي په بیع [خرڅولو] کي د دواړو طرفونو رعایت مُتعیّن دی وَيَتَأَتَّى هٰذَا فِيمَا إِذَا انْصَبَغَ الثَّوْبُ بِنَفْسِهِ او دا قول په هغه صورت کي هم جاري کیږي کله چي کپړه په خپله [بذات خود] رنګېدلې وي وَقَدْ ظَهَرَ بِمَا ذَكَرْنَا الْوَجْهُ فِي السَّوِيقِ او زموږ په ذکر سوي تفصیل سره په نینو کي هم وجه ښکاره سوه [په بله وینا دا چي زموږ ذکر کرده علت په نینو کي هم ښکاره دی] غَيْرَ أَنَّ السَّوِيقَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ خو نینې له مثلي شیانو څخه دي فَيَضْمَنُ مِثْلَهُ نو ځکه غاصب به د هغوی د مثل ضامن کیږي وَالثَّوْبُ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ او کپړه له ذواتُ القیم څخه ده فَيَضْمَنُ قِيمَتَهُ نو ځکه د هغې د قیمت به ضامن کیږي وَقَالَ فِي الْأَصْلِ: يَضْمَنُ قِيمَةَ السَّوِيقِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي فرمایلي دي: چي غاصب د نینو د قیمت ضامن کیږي لِأَنَّ السَّوِيقَ يَتَفَاوَتُ بِالْقَلْيِ ځکه چي په سره کولو [کبابولو] سره په نینو کي تفاوت راځي [یعني د کبابېدلو او سره کېدلو په وجه نینې یو له بل څخه متفاوته وي] فَلَمْ يَبْقَ مِثْلِيًّا نو هغوی مثلي پاته نه سوې [نو ځکه غاصب به د نینو قیمت ورکوي، نه مثل] وَقِيلَ: الْمُرَادُ مِنْهُ الْمِثْلُ او ویل سوي دي: چي له قیمت څخه د امام محمد

رَحِمَهُ الله مراد مثل دی سَمَّاهُ بِهِ لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ او مثل يې په قيمت سره ځکه نومولی دی چې قيمت د هغه قائم مقام دی وَالصُّفْرَةُ كَالْحُمْرَةِ او ژړ رنګ د سره رنګ په شېر دی وَلَوْ صَبَغَهُ أَسْوَدَ او که چيري غاصب کپړې ته تور رنګ ورکړي فَهُوَ نُقْصَانٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَعِنْدَهُمَا زِيَادَةٌ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا نقصان [نقص] دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز زياتوب [اضافه] ده وَقِيلَ: هٰذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ او ويل سوي دي: چې دا د وخت او زمانې اختلاف دی وَقِيلَ: إِنْ كَانَ ثَوْبًا يَنْقُصُهُ السَّوَادُ او ويل سوي دي: چې که مغصوبه کپړه داسي وي چې رنګ هغې ته نقصان رسوي فَهُوَ نُقْصَانٌ نو دا نقصان دی وَإِنْ كَانَ ثَوْبًا يَزِيدُ فِيهِ السَّوَادُ او که هغه داسي کپړه وي چې تور رنګ په هغې کي [د قيمت] زياتوب راولي فَهُوَ كَالْحُمْرَةِ نو هغه د سُور رنګ په شېر دی وَقَدْ عُرِفَ فِي غَيْرِ هٰذَا الْمَوْضِعِ او دا له دې ځخه په بل ځای کي [هم] معلوم سوي دي وَلَوْ كَانَ ثَوْبًا يَنْقُصُهُ الْحُمْرَةُ او که هغه داسي کپړه وي چې سور رنګ هغې ته نقصان رسوي بِأَنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ ثَلَاثِينَ دِرْهَمًا فَتَرَاجَعَتْ بِالصَّبْغِ إِلَى عِشْرِينَ په دې توګه چې د کپړې قيمت دېرش درهمه وي او د رنګولو په وجه شلو درهمو ته را شوه سي فَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُنْظَرُ إِلَى ثَوْبٍ يَزِيدُ فِيهِ الْحُمْرَةُ نو له امام محمد رَحِمَهُ الله ځخه روايت سوی دی چې داسي کپړې ته دې وکتل سي چې په هغې کي سور رنګ [د قيمت] زياتوب راولي فَإِنْ كَانَتِ الزِّيَادَةُ خَمْسَةً نو که چيري زياتوب پنځه درهمه وي يَأْخُذُ ثَوْبَهُ وَخَمْسَةَ دَرَاهِمَ نو د کپړې مالک به [له غاصب ځخه] خپله کپړه او پنځه درهمه اخلي لِأَنَّ إِحْدَى الْخَمْسَتَيْنِ جُبِرَتْ بِالصَّبْغِ ځکه چې له دوو پنځو ځخه د يوه نقصان د رنګ په وجه پوره کړی سو [په بله وينا دا چې د لسو درهمو ځخه پنځه درهمه د رنګ په وجه د رنګ ورکونکي (غاصب) په حصه کي راغله].

**اللغات**: ﴿صَبَغَ﴾ د فتح او نصر د باب ماضي ده، صَبَغَ يَصْبَغُ (و يَصْبُغُ) صَبْغًا: تهوکر او کپړه رنګول، رنګ ورکول، ﴿الصِّبْغ﴾ ما يصبغ به، يعني رنګ، ﴿لتّ﴾ د نصر ماضي ده: په غوړو لړل، په نينو غوړي ګډول، ﴿السويق﴾ نينې، يعني د غنمو او اوربشو وريتل سوي دانې (په اور باندي د غنمو او داسي نورو کباب کړل سوي دانې)، ﴿سَمْن﴾ لاسي غوړي (د غوا او داسي نورو غوړي)، ﴿يُمسِك﴾ د افعال د باب مضارع ده: نيول، (د ځان سره) راګرځول، ﴿الساحة﴾ د دغه لفظ څو معناوي دي، چې له هغوی

څخه يوه معنیٰ ده: د کورونو تر مينځ خاليګاه (خالي ميدان)، يعني هغه څه غونډي خالي ميدان او ځمکه کوم چې د يوه سراى او بل سراى په مينځ کي يا د سرايونو مخته خالي پرېښوول سوي وي، الفضاء الّتي يکون بين الدور (معجم وسيط)، ﴿أبو عصمة﴾ شيخ ابو عصمه سعد بن معاذ مروزي کوم چې د ابراهيم بن يوسف شاګرد وو، او هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شاګرد وو، ﴿تميیز﴾ د تفعيل مصدر دی: سره جلا کول، عليحده کول، ﴿يتلاشی﴾ د تفاعل مضارع ده: لاشی کېدل، ختمېدل، ﴿يتأتی﴾ د تفعّل مضارع ده: راتلل، حاصلېدل، ﴿القَلْي﴾ د ضرب مصدر دی: سره کول، کبابول، ﴿جُبِرت﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: د يو نقصان تلافي کول، اصلاح کول (سمول)، نقصان (کمي) پوره کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د بل څا کپړه (ټوکر) غصب کړي او هغې ته سور رنګ يا ژړ رنګ ورکړي، يا نيني غصب کړي او هغه د غوړيو سره ګډې کړي، نو په دې صورت کي زموږ په نېز مالک ته له دوو اختياراتو څخه يو اختيار حاصلېږي: ① يو دا چې مالک دې غاصب ته هغه کپړه او نينې ورکړي او له هغه څخه دې د خپل سپيني نارنګول سوي کپړې او نينو قيمت واخلي، ② دويم دا چې رنګول سوې کپړه او په غوړيو لړل سوي نينې دې ځني واخلي او د غاصب په فعل او تصرف سره چې د دغه کپړې او نينو په قيمت کي څومره زياتوب راغلی وي، د هغه زياتوب تاوان دې ورکړي (مثلاً که نارنګول سوې کپړه په څلور سوه روپۍ وي او د رنګېدلو په وجه د هغې قيمت پنځه سوه روپۍ سي، نو مالک دې دغه اضافه شُده سل روپۍ غاصب ته ورکړي). د کپړې په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دا دی چې مالک به کپړه ځني اخلي او غاصب ته به حکم کوي چې وروره! ته له کپړې څخه خپل رنګ و روغن وباسه او ما ته خپل سپينه کپړه وسپاره!؛ ځکه چې له کپړې څخه رنګ ايستل ممکن او آسانه دي، لېکن له نينو څخه غوړي ايستل ناممکن دي، لهذا چيري چې تمييز (جلا کول) ممکن وي او آسانه وي، هلته به غاصب ته د خپل کار ختمولو حکم کيږي او چيري دا ناممکن او مشکل وي، هلته به غاصب په دې سره نه مُکلّف کيږي.

د دې مثال داسي دی لکه څوک چې په هغه خاليګاه (ساحه) کي کوم چې د کورونو تر مينځ او د هغوی سره متعلقه وي په غاصبانه توګه يو ځای جوړ کړي، نو له ځای جوړونکي څخه د خپل ځای نړولو مطالبه کيږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي له غاصب څخه هم د رنګ ايستلو او ليرې کولو مطالبه کيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل همغه دی کوم چي د ساج لرګي والا په مسئله کي ذکر سو چي زموږ د بيان کرده صورت په اختيارولو کي د مالک او غاصب دواړو فايده او رعايت سته (او د دواړو لحاظ پکښي سوی دی).

او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي صورتِ مسئله د ځای جوړولو پر مسئله قياسوي، دا صحيح نه دي؛ ځکه چي له ځای نړولو څخه وروسته د ځای خښتي او داسي نور سامان بيرته غاصب ته حاصليږي، حال دا چي له کپړې څخه د رنګ ايستلو په صورت کي رنګ بالکل ختميږي او غاصب ته هيڅ په لاس نه ورځي، نو ځکه دا مسئله په ساحه کي د ځای جوړولو پر مسئلې قياسول صحيح نه دي.

قال أبوعصمة إلخ: شيخ ابو عصمه مروزي رَحِمَهُ الله د اصل مسئلې يعني د کپړې د غصب کولو او هغې ته د سور رنګ ورکولو د مسئلې په هکله ويلي دي چي په دغه مسئله کي د مالک او غاصب تر مينځ د فيصلې کولو يو صورت دا دی چي د کپړې مالک دي دغه رنګول سوې کپړه خرڅه کړي او د هغې له قيمت څخه دي د خپل سپيني کپړې قيمت واخلي او څومره قيمت چي پاته سي هغه دي غاصب ته ورکړي؛ ځکه چي مالک د رنګ پر اخيستلو او رانيولو نه سي مجبورول کېدای چي د قيمت په عوض کي د رنګ مالک جوړ سي، لهذا د مالک او غاصب دواړو د رعايت کولو يوازينۍ لاره بيع ده چي دا کپړه دي خرڅه کړل سي او دوی دواړو ته دي خپل حق ورکول سي. باقي عبارت ښکاره دی.

ولو صبغه أسود إلخ: د دې حاصل دا دی چي که غاصب غصب کرده کپړې ته تور رنګ ورکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا نقص او عيب دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا اضافه او زياتوب دی. دغه اختلاف په حقيقت کي د عصر او زمانې پر اختلاف مبني دی، ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په زمانه کي د بنو اُميه ؤ حکومت وو او هغو له تور رنګه کپړو او جامو څخه نفرت کوی نو پر دې بناء تور رنګ يو بې ارزښته رنګ وو چي د هغه قدر او رواج نه وو، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په زمانه کي د بنو عباس حکومت وو او هغو تور رنګه کپړې او کالي خوښوول چي په دې سره د تور رنګ قدر او ارزښت پيدا سو، په همدې وجه صاحبينو رَحِمَهُمَا الله تور رنګ د کپړې په قيمت کي د زياتوب سبب ګرځولی دی.

يو بل قول دا دی چي که غصب کرده کپړه داسي وي چي په تور رنګ سره هغې ته نقصان رسيږي او قيمت يې کميږي مثلاً په تور رنګ سره هغه نوره بدرنګه کيږي چي په دې سره د هغې

قیمت کمبوت کوي، نو بیا به تور رنګ نقصان ګڼل کیږي، او که کپړه داسي وي چي په تور رنګ سره دهغې قیمت زیاتیږي، نو هغه به د سُور رنګ په څېر اضافه و زیاتوب ګڼل کیږي، لنډه دا چي دغه اختلاف یو اهمه مسئله نه ده بلکي پر عُرف و عادت مبني دی او د همدې عُرف وعادت مطابق به د هغه فیصله کیږي.

ولوکان ثوبا إلخ: او که غصب کرده کپړه داسي وي چي په سُور رنګ سره هغې ته نقصان رسیږي په دې توګه چي د نا رنګول سوي کپړې قیمت دېرش درهمه وي او تر رنګېدلو وروسته د هغې قیمت شل درهمه سي، نو ښکاره خبره ده چي مالک ته لس درهمه تاوان ورسېدی، نو په دغسي صورت کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د هشام روایت دا دی چي په دې صورت کي به فیصله دا ډول کیږي چي یو داسي کپړې ته به کتل کیږي چي په سُور رنګ سره د هغې قیمت اضافه کیږي، نو که چیري په سُور رنګ سره د هغې په قیمت کي پنځه درهمه اضافه راځي، نو د اصل کپړې مالک (کوم ته چي لس درهمه تاوان رسېدلی دی، هغه) به له غاصب څخه خپل رنګول سوې کپړه او پنځه درهمه اخلي؛ ځکه چي مالک د لس درهمه تاوان حقداره دی او غاصب (رنګ ورکونکی) د خپل رنګ د قیمت یعني د پنځو درهمو حقداره دی، نو د مالک د لسو درهمو څخه به پنځه درهمه د غاصب د رنګ په عوض کي وګرځول سي او د غاصب په حصه کي به راسي او باقي تاوان یعني پنځه درهمه به مالک ته حاصل سي (لنډه دا چي که په سُور رنګ سره د مغصوبه کپړې لس درهمه قیمت کم سوی وي حال دا چي په داسي سُور رنګ سره د بلې کپړې قیمت مثلاً پنځه درهمه زیاتیږي، نو په دې صورت کي به دا ګڼل کیږي چي د مغصوبه کپړې قیمت صرف پنځه درهمه کم سوی دی، نو ځکه مالک به له غاصب څخه صرف پنځه درهمه اخلي). والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ

(دا) فصل (د غصب د بېلا بېلو مسئلو په بیان کي) دی.

## د غصب کړی سوی شی د غائبولو او ضمان ورکولو حکم

وَمَنْ غَصَبَ عَيْنًا فَغَيَّبَهَا او څوک چي يو شی غصب کړي او هغه غائب کړي فَضَمَّنَهُ الْمَالِكُ قِيمَتَهَا بیا مالک له هغه [غاصب] څخه د هغه شي د قیمت ضمان واخلي مَلَكَهَا نو غاصب د هغه مالک کیږي وَهٰذَا عِنْدَنَا او دا [حکم] زموږ په نېز دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَمْلِكُهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي غاصب د هغه نه مالک کیږي لِأَنَّ الْغَصْبَ عُدْوَانٌ مَحْضٌ ځکه چي غصب خالص ظلم دی فَلَا يَصْلُحُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ نو ځکه هغه به د ملکیت د سبب جوړېدلو صلاحیت نه لري كَمَا فِي الْمُدَبَّرِ لکه څرنګه په مُدبّر غلام کي دي وَلَنَا: أَنَّهُ مَلَكَ الْبَدَلَ بِكَمَالِهِ زموږ دلیل دا دی: چي مالک د پوره عوض مالک سوی دی وَالْمُبْدَلُ قَابِلٌ لِلنَّقْلِ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ او مبدل داسي شی [عَين] دی کوم چي له یوه ملکیت څخه بل ملکیت ته د منتقل کېدلو قابل دي [ځکه چي ټوله اعیان (شیان) له یوه ملکیته بل ملکیت ته منتقل کېدای سي] فَيَمْلِكُهُ نو ځکه به غاصب د هغه [عَين] مالک کیږي دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ د دې لپاره چي له هغه څخه ضرر لیري سي بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ په خلاف د مُدبّر لِأَنَّهُ غَيْرُ قَابِلٍ لِلنَّقْلِ لِحَقِّ الْمُدَبَّرِ ځکه چي هغه د مُدبّر جوړونکي مالک د حق په وجه [له یوه ملکیته بل ملکیت ته] د منتقل کېدلو قابل نه دی نَعَمْ قَدْ يُفْسَخُ التَّدْبِيرُ بِالْقَضَاءِ ها! د قاضي په فیصله سره تدبیر فسخ کېدلای سي لٰكِنَّ الْبَيْعَ بَعْدَهُ يُصَادِفُ الْقِنَّ لېکن د تدبیر تر فسخ کېدلو وروسته بیع پر خالص غلام واقع کیږي قَالَ: وَالْقَوْلُ فِي الْقِيمَةِ قَوْلُ الْغَاصِبِ مَعَ يَمِينِهِ فرمایي: او [د مغصوب شي] د قیمت په هکله د غاصب قول معتبر دی د قسم سره [یعني کله چي غاصب و مالک ته د مغصوب شي (عین) د قیمت ضمان ورکوي، که په دې دواړو کي هغوی د قیمت په هکله اختلاف وکړي، مثلاً غاصب ووایي چي د دې شي قیمت سل روپۍ دی او مالک ووایي چي یو نیم سل روپۍ دی، نو قول د غاصب معتبر دی د قسم

سره؛ لِأَنَّ الْمَالِكَ يَدَّعِي الزِّيَادَةَ وَهُوَ يُنْكِرُ ځکه چې مالک د زياتوب دعوىٰ کوي او غاصب [د زياتوب] انکار کوي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ يَمِينِهِ او قول د منکر د قسم سره معتبر وي إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْمَالِكُ الْبَيِّنَةَ بِأَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ مګر دا چې مالک له هغه څخه پر زيات قيمت بيّنه پېش کړي [نو بيا د مالک قول معتبر دی] لِأَنَّهُ أَثْبَتَهُ بِالْحُجَّةِ الْمُلْزِمَةِ ځکه اوس هغه زياتوب [زيات قيمت] په لازمونکي دليل سره ثابت کړی [ځکه چې ګواهي حجت مُلزمه دی] قَالَ: فَإِنْ ظَهَرَتِ الْعَيْنُ وَقِيمَتُهَا أَكْثَرُ مِمَّا ضَمِنَ فرمايي: بيا که هغه [غائب شده] شی ښکاره سي حال دا چې د هغه قيمت له هغه ضمان څخه زيات وي کوم چې غاصب [و مالک ته] ورکړی وي وَقَدْ ضَمِنَهَا بِقَوْلِ الْمَالِكِ أَوْ بِبَيِّنَةٍ أَقَامَهَا أَوْ بِنُكُولِ الْغَاصِبِ عَنِ الْيَمِينِ او غاصب د مالک د قول مطابق يا د مالک په بيّنه پېشولو سره يا له قسم څخه د غاصب د انکار کولو په وجه ضمان ورکړی وي فَلَا خِيَارَ لِلْمَالِكِ نو [په دې صورت کې] مالک لره هيڅ اختيار نسته وَهُوَ لِلْغَاصِبِ او مغصوب شی د غاصب دی لِأَنَّهُ تَمَّ لَهُ الْمِلْكُ بِسَبَبٍ اتَّصَلَ بِهِ رِضَاءُ الْمَالِكِ ځکه چې د هغه ملکيت په داسي سبب سره پوره سو چې د هغه سره د مالک رضا متصل سوې ده حَيْثُ ادَّعٰى هٰذَا الْمِقْدَارَ ځکه مالک د همدې مقدار دعوىٰ کړې ده قَالَ: فَإِنْ كَانَ ضَمِنَهُ بِقَوْلِ الْغَاصِبِ مَعَ يَمِينِهِ او که غاصب د قسم سره د خپل قول مطابق [مالک ته] ضمان ورکړی وي فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَمْضَى الضَّمَانَ وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْعَيْنَ وَرَدَّ الْعِوَضَ نو مالک ته اختيار دی که وغواړي نو مذکوره ضمان دي باقي پرېږدي [يعني هغه دي قبول کړي] او که وغواړي نو مغصوب شی دي ځني واخلي او عوض دي واپس ورکړي لِأَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ رِضَاهُ بِهٰذَا الْمِقْدَارِ ځکه چې [د ضمان] پر دغه مقدار د مالک رضا پوره سوې نه ده حَيْثُ يَدَّعِي الزِّيَادَةَ وَأَخْذُهُ دُونَهَا لِعَدَمِ الْحُجَّةِ ځکه مالک د زياتوب [زيات قيمت] دعوىٰ کوي او د حجت [ګواهي] د نشتوالي په وجه يې له هغه څخه کم اخيستی دی وَلَوْ ظَهَرَتِ الْعَيْنُ وَقِيمَتُهَا مِثْلُ مَا ضَمِنَهُ أَوْ دُونَهُ فِي هٰذَا الْفَصْلِ الْأَخِيرِ او که چيري [غائب شده] مغصوب شی ښکاره سي حال دا چې د هغه قيمت د هغه ضمان سره برابر وي کوم چې غاصب و مالک ته ورکړی وي يا له هغه څخه کم وي په دغه آخري صورت کي [يعني دا صورت چې غاصب د قسم سره د خپل قول مطابق ضمان ورکړی وي] فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو په ظاهر روايت کي همدغه حکم دی [يعني: هو بالخيار إن شاء أمضى

الضمان وإن شا أخذ العين ورد العوض] وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زياته صحيح ده خِلَافًا لِمَا قَالَهُ الْكَرْخِيُّ أَنَّهُ لَا خِيَارَ لَهُ په خلاف د هغه کوم چي امام کرخي رَحِمَهُ الله ويلي دي چي مالک لره اختيار نسته لِأَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ رِضَاهُ ځکه چي د مالک رضا پوره نه سوه حَيْثُ لَمْ يُعْطَ لَهُ مَا يَدَّعِيهِ ځکه مالک ته هغه مقدار نه ورکول سو د کوم چي هغه دعویٰ کوله وَالْخِيَارُ لِفَوَاتِ الرِّضَاءِ او اختيار د رضا فوتېدلو په وجه دی [يعني اختيار د رضا فوتېدلو په وجه ورکول کيږي].

**اللغات**: ﴿غيّب﴾ د تفعيل ماضي ده: غائبول، تر سترګو نيامول (پټول)، ﴿عدوان﴾ تجاوز، نافرماني او ګناه، ﴿يصادف﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: متصل کېدل، واقع کېدل، ﴿القِنّ﴾ خالص غلام کوم چي مُدبّر او مکاتب جوړ کړی سوی نه وي، کامل غلام، ﴿مبدل﴾ کوم شی چي د بدل (عوض) په مقابله کي وي، د کوم شي بدل چي ورکول سوی وي (لکه څرنګه چي مبيع ته هم په دې وجه مبدل ويل کيږي چي هغه د بدل يعني د ثمن په مقابله کي وي)، ﴿يَتِمّ﴾ د ضرب مضارع ده: پوره کېدل، بشپړ کېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي څلور مسئلې ذکر سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که غاصب د بل چا يو شی غصب کړي او بيا هغه شی يو ځای غائب کړي او مالک له غاصب څخه په ضمان (تاوان) کي د هغه شي قيمت واخلي، نو زموږ په نيز تر ضمان ورکولو وروسته غاصب د هغه شي مالک کيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز غاصب د هغه نه مالک کيږي؛ ځکه چي غصب سر تر پايه تعدي او ظلم دی او ظلم د ملکيت سبب نه سي جوړېدای، لکه يو سړی چي د بل چا مُدبّر غلام غصب کړي او هغه غائب کړي، نو په قيمت ورکولو سره غاصب د مُدبّر غلام نه مالک کيږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم په قيمت ورکولو سره غاصب د غائب شُده مغصوب شي نه مالک کيږي.

زموږ دليل دا دی چي کله غاصب بدل اداء کړي، نو ښکاره خبره ده چي مالک (مغصوب منهٗ) ته خپل حق ورسېدی، اوس که موږ غاصب د مغصوب شي مالک نه وګرځوو، نو په دې سره به هغه ته ضرر و تاوان ورسيږي، نو ځکه د دغه نبوي فرمان "لَا ضَرَرَ وَ لَا ضِرَارَ" پر بناء به له غاصب څخه د ضرر ليري کولو په خاطر هغه د مغصوب شي مالک ګرځول کيږي.

بخلاف المدبر الخ: فرمايي امام شافعي رَحِمَهُ الله چي دا مسئله د مُدبّر غلام پر مسئلې قياسوي، دا صحيح نه دي: ځکه چي مُدبّر غلام د خپل مالک په ملکيت کي وي او د مالک د حق په وجه د هغه بيع (خرڅلاو) نه سي کېدلای يعني له يوه ملکيته بل ملکيت ته نه سي منتقل کېدای. ها! که چيري

قاضي تدبير فسخ کړي نو د هغه بيع کېدلای سي، لېکن د قاضي تر فسخ وروسته مُدبّر خالص غلام ګرځي، نو دا بيع به د مُدبّر سره متصل نه سي بلکي د رقيق او خالص غلام سره به متصل سي، لهذا پورتنی مسئله د مُدبّر غلام پر مسئلې قياسول له فهم څخه ليري دي.

(۲)... دويمه مسئله واضحه ده.

(۳)، (۴)... د درېيمي او څلورمي مسئلې حاصل دا دی چي که د غاصب تر ضمان ورکولو وروسته غائب شُده مغصوب شی ښکاره سي او د هغه قيمت له ضمان څخه زيات وي (يعني له هغو پيسو څخه زيات وي کوم چي غاصب په ضمان کي مالک ته ورکړي وي) او غاصب دا ضمان د مالک د قول او وينا مطابق ورکړی وي يا يې د هغه د بيّنه پېشولو يا له قسم څخه د غاصب د انکار کولو پر بناء ورکړی وي، نو بيا خو معامله صفا ده او تر دې وروسته د هغه شي سره د مالک هيڅ واسطه نه پاتېږي، بلکي هغه د غاصب په ملکيت کي داخلېږي. لېکن که دا ضمان د غاصب د وينا مطابق ورکول سوی وی، نو مالک ته له دوو اختياراتو څخه يو اختيار حاصلېږي، يو دا چي خاموشي دي اختيار کړي او د ضمان په نامه چي يې کوم مال او پيسې له غاصب څخه اخيستي دي هغه دي قبول کړي او پر هغه دي صبر وکړي. او که وغواړي نو خپل شی دي واپس څني واخلي او غاصب چي کوم مال په ضمان کي ورکړی وي، هغه دي غاصب ته واپس ورکړي. ولو ظهرت العين وقيمتها مثل ما ضمنه إلخ: دا عبارت واضح دی.

## د غصب کړی سوي غلام د خرڅولو او ضمان ورکولو حکم

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا فَبَاعَهُ فَضَمَّنَهُ الْمَالِكُ قِيمَتَهُ فرمايي: او څوک چي يو غلام غصب کړي بيا هغه خرڅ کړي او مالک له هغه څخه د غلام د قيمت ضمان [تاوان] واخلي فَقَدْ جَازَ بَيْعُهُ نو د هغه [غاصب] بيع جائز سوه وَإِنْ أَعْتَقَهُ ثُمَّ ضَمِنَ الْقِيمَةَ او که غاصب هغه [مغصوب غلام] آزاد کړي بيا د قيمت ضمان ورکړي لَمْ يَجُزْ عِتْقُهُ نو د هغه آزادي [آزادول] نه جائز کېږي لِأَنَّ مِلْكَهُ الثَّابِتَ فِيهِ نَاقِصٌ ځکه په مغصوب غلام کي چي د غاصب کوم ملکيت دی هغه ناقص دی لِثُبُوتِهِ مُسْتَنِدًا أَوْ ضَرُورَةً ځکه هغه يا د استناد [منسوب کېدلو] په توګه ثابت دی يا د ضرورت پر بناء ثابت دی وَلِهَذَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْأَكْسَابِ دُونَ الْأَوْلَادِ په همدې وجه دا ملکيت [د مغصوب غلام] د ګټو په حق کي ښکاره کېږي، نه د اولاد په حق کي وَالنَّاقِصُ يَكْفِي لِنُفُوذِ الْبَيْعِ دُونَ الْعِتْقِ او ناقص ملکيت [فقط] د بيع

نافذېدلو لپاره کافي دی، نه دآزادۍ لپاره کَمِلْكِ الْمُكَاتَبِ دمكاتب دملكيت په شان اچي مكاتب په خپل ګټې (ګټل سوي مال) سره قط بيع و شراء کولای سي، لېکن خپل رانيول سوی غلام نه سي آزادولای].

**اللغات**: ﴿ضمّن﴾ د تفعيل ماضي ده: ضامن ګرځول، ضمان (تاوان) ځني اخيستل، ﴿ناقص﴾ نا تمام (نابشپړ)، کم، ﴿مستند﴾ داستفعال د باب فاعل دی: منسوبېدونکی، نسبت کېدونکی، ﴿الأكساب﴾ جمع د کَسْبٌ ده: ګټه، ګټل سوی مال، ﴿نفوذ﴾ د نصر مصدر دی: نافذېدل، جاري کېدل، قائمېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی ديو چا غلام غصب کړي او خرڅ يې کړي او بيا په ضمان (تاوان) کي مالک ته دهغه غلام قيمت ورکړي، نو د دغه غاصب بيع (خرڅول) جائز کيږي، لېکن که غاصب هغه آزاد کړي، بيا مالک ته ضمان ورکړي، نو داعتق (آزادي) نه جائز کيږي او نه نافذيږي؛ د بيع د جواز او د عتق د عدمِ جواز وجه دا ده چي په مغصوب غلام کي چي غاصب ته کوم ملکيت حاصل او ثابت دی، هغه ناقص دی؛ ځکه دا ملکيت هغه ته په دوه ډوله حاصل دی: ① يا خو د ضمان اداء کولو په وخت کي د غصبّ دوخت وطرف ته په منسوب کېدلو سره دا ملکيت ثابت دی (ځکه کله چي غاصب و مالک ته د قاضي په قضاء يا دواړو په رضا سره ضمان ورکړي، نو مغصوب شی د غصب له وخته دغاصب ملکيت ګرځي)، ② يا بيا د ضمان اداء کولو په وجه د ضرورت پر بناء ثابت دی چي بدل او مبدل دواړه ديوه کس په ملکيت کي جمع نه سي. او په ناقص ملکيت سره خو بيع ثابتېدلای سي لېکن په هغه سره د عتق ثبوت او نفاذ نه سي کېدلای، نو ځکه په دغه مسئله کي د غاصب بيع (خرڅول) جائز ګرځول سوي دي او د هغه اعتاق (آزادول) ممنوع ګرځول سوي دي. (احسن الهدايه)

## د مغصوبه مينځي د بچيانو حکم

قَالَ: وَوَلَدُ الْمَغْصُوبَةِ وَنَمَاؤُهَا وَثَمَرَةُ الْبُسْتَانِ الْمَغْصُوبِ أَمَانَةٌ فِي يَدِ الْغَاصِبِ د مغصوبه مينځي بچی او د هغې وده او د غصب کړی سوي باغ مېوه د غاصب په قبضه کي امانت دي إِنْ هَلَكَ که چيري هغه هلاک سي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر غاصب ضمان نسته إِلَّا أَنْ يَتَعَدَّى فِيهَا أَوْ يَطْلُبَهَا مَالِكُهَا فَيَمْنَعُهَا إِيَّاهُ مګر دا چي غاصب په هغه کي تعدی [نا حقه تصرف] وکړي يا مالک د هغه طلب وکړي او غاصب يې ځني منع کړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: زَوَائِدُ الْمَغْصُوبِ مَضْمُونَةٌ مُتَّصِلَةً كَانَتْ أَوْ مُنْفَصِلَةً امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مغصوب شي د زوائدو ضمان لازم دی [برابره ده] هغوی ور سره

متصل وي او که جلا وي لِوُجُودِ الْغَصْبِ د غصب د موجوديدلو په وجه وَهُوَ إِثْبَاتُ الْيَدِ عَلَى مَالِ الْغَيْرِ بِغَيْرِ رِضَاهُ او هغه [غصب] خپل قبضه ثابتول دي د بل چا پر مال د هغه له رضا څخه بغير كَمَا فِي الظَّبْيَةِ الْمُخْرَجَةِ مِنَ الْحَرَمِ إِذَا وَلَدَتْ فِي يَدِهِ لکه په هغه هوسۍ کې کوم چې له حرم شریف څخه را ایستل سوې [باسل سوې] وي کله چې هغه د ایستونکي کس په قبضه کې بچی وزیږوي يَكُونُ مَضْمُونًا عَلَيْهِ نو د هغه ضمان پر ده [ایستونکي] لازمیږي وَلَنَا: أَنَّ الْغَصْبَ إِثْبَاتُ الْيَدِ عَلَى مَالِ الْغَيْرِ عَلَى وَجْهٍ يُزِيلُ يَدَ الْمَالِكِ زموږ دليل دا دی: چې غصب د بل چا پر مال په داسي توګه قبضه ثابتول دي کوم چې د مالک قبضه زائله کړي عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه [مخکي] چې موږ ذکر کړه وَيَدُ الْمَالِكِ مَا كَانَتْ ثَابِتَةً عَلَى هٰذِهِ الزِّيَادَةِ حَتَّى يُزِيلَهَا الْغَاصِبُ او پر دغه زیاتوب [ولد المغصوبه...] د مالک قبضه ثابته نه وه چې غاصب هغه زائله کړي وَلَوْ اُعْتُبِرَتْ ثَابِتَةً عَلَى الْوَلَدِ او که [د مغصوبه مینځي] پر بچي د هغه قبضه ثابته ومنل سي لَا يُزِيلُهَا نو هم غاصب هغه نه زائلوي إِذِ الظَّاهِرُ عَدَمُ الْمَنْعِ ځکه چې ظاهر نه منع کول دي [یعني ښکاره همدا ده چې غاصب له مالک څخه دا بچی نه منع کوي] حَتَّى لَوْ مَنَعَ الْوَلَدَ بَعْدَ طَلَبِهِ تر دې چې که د مالک تر طلب [غوښتني] وروسته غاصب دا بچی له هغه څخه منع کړي يَضْمَنُهُ نو غاصب ضامن کیږي وَكَذَا إِذَا تَعَدَّى فِيهِ او همدارنګه کله چې غاصب په هغه کې تعدی [نا حقه تصرف] وکړي كَمَا قَالَ فِي الْكِتَابِ لکه څرنګه یې په کتاب [متن] کې ویلي دي [یعني: إلا أن يتعدى إلخ] وَذٰلِكَ بِأَنْ أَتْلَفَهُ أَوْ ذَبَحَهُ وَأَكَلَهُ أَوْ بَاعَهُ وَسَلَّمَهُ او تعدی [نا حقه تصرف] په دې توګه دی چې غاصب هغه ضایع کړي یا یې ذبح کړي یا یې خرڅ کړي او [مشتري ته] یې وسپاري وَفِي الظَّبْيَةِ الْمُخْرَجَةِ لَا يَضْمَنُ وَلَدَهَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ التَّمَكُّنِ مِنَ الْإِرْسَالِ او له حرم څخه په را ایستل سوې هوسۍ کي ایستونکی کس د هغې د بچي نه ضامن کیږي کله چې پر ایله کولو [او حرم ته پر استولو] له قادر کېدلو څخه مخکي د هغې بچی هلاک سي لِعَدَمِ الْمَنْعِ ځکه چې منع کول موجود نه سوه وَإِنَّمَا يَضْمَنُهُ إِذَا هَلَكَ بَعْدَهُ بلکي هغه وخت [ایستونکی کس] د هغه ضامن کیږي کله چې هغه تر دې [یعني تر قدرت على الإرسال] وروسته هلاک سي لِوُجُودِ الْمَنْعِ بَعْدَ طَلَبِ صَاحِبِ الْحَقِّ وَهُوَ الشَّرْعُ ځکه

چي [په دې صورت کې] د حق د خاوند يعني د شريعت له طلب څخه وروسته منع کول موجود سوه عَلٰى هٰذَا أَكْثَرُ مَشَايِخِنَا زموږ زياتره مشايخ پر همدې مسلک دي وَلَوْ أَطْلَقَ الْجَوَابَ او که [د ضامن کېدلو] حکم مطلق وي فَهُوَ ضَمَانُ جِنَايَةٍ نو دا د جرم ضمان [تاوان] دی وَلِهٰذَا يَتَكَرَّرُ بِتَكَرُّرِهَا په همدې وجه د جرم په مکرر کېدلو سره ضمان مکرر کيږي وَيَجِبُ بِالْإِعَانَةِ وَالْإِشَارَةِ او دا ضمان په اعانت او اشاره کولو سره هم واجبيږي فَلَأَنْ يَجِبَ بِمَا هُوَ فَوْقَهَا وَهُوَ إِثْبَاتُ الْيَدِ عَلٰى مُسْتَحِقِّ الْأَمْنِ أَوْلٰى وَأَحْرٰى نو کوم څه چي له هغه [اعانت او اشارې] څخه بالا دي يعني د امن پر مستحق شي [هوسۍ] خپل قبضه ثابتول، په هغه سره به په درجه اولیٰ او طريقه اولیٰ ضمان واجبيږي.

**اللغات:** ﴿نماء﴾ وده، اضافه و زياتوب. ﴿ثمرة﴾ مېوه. ﴿يتعدى﴾ د تفعّل مضارع ده: تجاوز او زياتوب کول، نا حقه تصرف کول. ﴿زوائد﴾ اضافي شيان. ﴿الضبية﴾ هوسۍ، وسۍ. ﴿يُزِيل﴾ د افعال مضارع ده: زائلول، ختمول. ﴿أتلف﴾ د افعال ماضي ده: ضايع کول، بربادول، هلاکول. ﴿التمكّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قادر کېدل، قدرت پيدا کول. ﴿إرسال﴾ د افعال مصدر دی، د دغه باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: ايله کول (پرېښوول)، استول. ﴿يتكرر﴾ د تفعّل مضارع ده: مکرر کېدل، څو ځلي کېدل، دوباره کېدل. ﴿إعانة﴾ د افعال مصدر دی: مرسته او مدد کول. ﴿أحرىٰ﴾ زيات وړ او مناسب.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که غاصب يو مېنځه غصب کړي او له هغې څخه بچی پيدا سي يا مغصوبه مېنځه وده او نما وکړي (مثلا چاغه سي) يا مغصوب باغ مېوه وکړي، نو زموږ په نېز دغه بچی، مېنځه او مېوه ټوله د غاصب په قبضه کي امانت ګرځي، لهذا که د غاصب له تعدی او زياتوب څخه بغير دا شيان هلاک سي، نو پر غاصب د هغه هيڅ ضمان او تاوان نه لازميږي (لکه څرنګه چي مخکي څو ځله د امانت حکم تېر سوی دی). ها! که چيري غاصب په دوی کي تعدی او نا حقه تصرف وکړي يا د مالک پر غوښته يې هغه ته نه ورکړي، نو بيا د هلاکېدلو په صورت کي پر غاصب د دوی ضمان لازميږي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي د مغصوب شي (مېنځې) زوائد برابره ده د هغه سره متصل وي او که منفصل وي (د متصل مثال لکه چاغښت او ښکلا او د منفصل مثال لکه بچی) په هر صورت کي هغه مضمون دي، يعني د زوائدو د هلاکېدلو او ضائع کېدلو په وخت کي پر غاصب د

مغوی ضمان لازميږي؛ ځکه چي د مغصوب شي په زوائدو کي هم غصب موجوديږي. د دې مثال داسي دی لکه يو سړی چي په حرم شريف کي يوه هوسۍ ونيسي او له حرم څخه يې وباسي، بيا له هغې څخه بچی پيدا سي، نو دا بچی پر هغه (ايستونکي) سړي مضمون کيږي يعني د هغه د هلاکېدلو او ضايع کېدلو په صورت کي ضمان پر لازميږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم د مغصوب شي زوائد پر غاصب مضمون کيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي غصب (په زوره اخيستل) دې ته وايي چي له شي څخه د مالک قبضه او ملکيت زائل کړی سي او خپل قبضه او ملکيت پر ثابت کړی سي، او پر زوائدو د غصب په وخت کي هيڅ قبضه او ملکيت نه ثابتيږي؛ ځکه چي په هغه وخت کي زوائد معدوم وي، نو ځکه په دوی کي به غصب هم نه ثابتيږي، او کله چي په دوی کي غصب نه ثابتيږي، نو دا شيان به پر غاصب مضمون کيږي هم نه. او که د څه وخت لپاره موږ دا خبره تسليم هم کړو چي پر زوائدو د مالک قبضه او ملکيت ثابتيږي، نو هم غاصب صرف له هغه وخت څخه د مالک د قبضې زائلونکی ګرځي کله چي د مالک پر غوښتنه غاصب دا بچی هغه ته نه ورکړي او له دې څخه منع سي، نو ځکه بغير له منع به غاصب ضامن نه ګرځول کيږي.

وفي الظبية المخرجة إلخ: د دې حاصل دا دی چي له حرم څخه د را ايستل سوي هوسۍ پر مسئلې د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه چي په دې مسئله کي د هوسۍ د بچي پر هلاکېدلو د ضمان لازمېدلو حکم مطلق نه دی، بلکي دا حکم د قدرت على الارسال باوجود حرم ته د بچي په نه استولو سره مقيد دي، يعني کله چي ايستونکی سړی حرم ته د هغه بچي پر استولو قادر وي خو بيا يې هم نه واستوي، نو هغه منع کونکی ګرځي او بيا د بچي په هلاکېدلو سره پر هغه ضمان لازميږي؛ ځکه چي د صاحبُ الحق يعني د شريعت د طلب او غوښتني باوجود د هغه نه استول تعدیٰ ده (ځکه په داسي صورت کي د شريعت طلب او حکم دا دی چي اصل يعني ښکار (هوسۍ) به د خپل بچي سره حرم ته استول کيږي او هلته به پرېښوول کيږي)، او متعدي خو موږ هم ضامن ګرځوو، لهذا د مطلقاً ضامن کېدلو په قول سره دليل نيول او په قياس کي پېښول صحيح نه دي.

ولو أطلق الجواب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د ضامن کېدلو حکم مطلق ومنل سي يعني برابره ده ايستونکی سړی پر ارسال قادر وي، که نه، په هر صورت کي پر هغه ضمان لازم کړی سي، نو بيا هم هيڅ اعتراض نه سي کېدای؛ ځکه چي دا د جنايت ضمان (د جرم تاوان) دی، د غصب ضمان دی، همدا رنګه ده که جرم مکرر سي، نو جرمانه (تاوان) مکرره کيږي، مثلاً که څوک يو وار هوسۍ را وباسي، نو پر هغه جرمانه لازميږي او که دوباره يې را وباسي، نو بيا جرمانه پر لازميږي، لنډه دا چي دا ضمان جنايت دی

او ضمانِ جنايت پر هغه سړي هم لازميږي کوم چي محض د حرم د ښکار پر نيولو د ښکار کونکي سره مرسته وکړي يا محض د حرم ښکار په ګوته ورکړي او اشاره ورته وکړي، نو پر هغه سړي خو به په درجه اولیٰ دا ضمان لازميږي کوم چي په حرم کي پر ښکار قبضه وکړي او له حرام ځخه يې وباسي، يا په بله وينا دا چي کله محض په اعانت او اشاره سره هم ضمان او جرمانه واجبيږي، نو کوم ځه چي له هغه ځخه په جرم کي بالا دي يعني دامن مستحقه هوسۍ (د حرم هوسۍ) نيول او خپل قبضه پر ثابتول، نو په هغه سره خو به په درجه اولیٰ واجبيږي.

## په ولادت (بچي زېږولو) سره په مغصوبه مينځه کي د نقص راتللو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَا نَقَصَتِ الْجَارِيَةُ بِالْوِلَادَةِ فِي ضَمَانِ الْغَاصِبِ فرمايي: او د ولادت په وجه چي په [قيمت د] مينځي کي کوم نقصان راسي نو هغه د غاصب په ضمان [او ذمه واری] کي دی فَإِنْ كَانَ فِي قِيمَةِ الْوَلَدِ وَفَاءٌ بِهِ نو که چيري د بچي په قيمت سره هغه نقصان [کم سوی قيمت] پوره کېدای سي [يعني د بچي قيمت دومره وي چي د نقصان (کم سوي قيمت) تلافي کولای سي] جُبِرَ النُّقْصَانُ بِالْوَلَدِ وَسَقَطَ ضَمَانُهُ عَنِ الْغَاصِبِ نو په بچي سره به د هغه نقصان تلافي کيږي او د نقصان ضمان له غاصب ځخه ساقطيږي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَنْجَبِرُ النُّقْصَانُ بِالْوَلَدِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په بچي سره به د نقصان تلافي نه کيږي لِأَنَّ الْوَلَدَ مِلْكُهُ ځکه چي بچي د مالک خپل ملکيت دی فَلَا يَصْلُحُ جَابِرًا لِمِلْكِهِ نو ځکه هغه د ده د ملکيت [د نقصان] تلافي کونکی نه سي کېدلای كَمَا فِي وَلَدِ الظَّبْيَةِ ① لکه ځرنګه چي د هوسۍ په بچي کي دي وَكَمَا إِذَا هَلَكَ الْوَلَدُ قَبْلَ الرَّدِّ ② او لکه ځرنګه چي بچی له واپس کولو ځخه مخکي مړ سي أَوْ مَاتَتِ الْأُمُّ وَبِالْوَلَدِ وَفَاءٌ ③ يا مور مړه سي حال دا چي په بچي سره نقصان پوره کېدای سي وَصَارَ كَمَا إِذَا جَزَّ صُوفَ شَاةِ غَيْرِهِ أَوْ قَطَعَ قَوَائِمَ شَجَرِ غَيْرِهِ ④ او دا داسي سو لکه يو څوک چي د بل چا د پسه وړی وسکستي [غچي کړي] يا د بل چا د درختي تنه پرېکړي أَوْ خَصَى عَبْدَ غَيْرِهِ ⑤ يا د بل چا غلام خصي کړي أَوْ عَلَّمَهُ الْحِرْفَةَ فَأَضْنَاهُ التَّعْلِيمُ ⑥ يا د بل چا غلام ته يو پېشه ور زده کړي او زده کړه هغه کمزوری کړي وَلَنَا: أَنَّ سَبَبَ الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ وَاحِدٌ او زموږ دليل دا دی: چي [ادلته] د زياتوب او نقصان سبب يو دی وَهُوَ الْوِلَادَةُ أَوِ الْعُلُوقُ او هغه د بچي

زېږول يا حامله کېدل دي [يعني په رحم کي د نطفې قرار نيول] عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي پېژندل سوي دي وَعِنْدَ ذٰلِكَ لَا يُعَدُّ نُقْصَانًا او په داسي حالت کي ولادت [او نقصان] نقصان نه شمېرل کيږي فَلَا يُوجِبُ ضَمَانًا نو ځکه هغه به ضمان نه واجبوي وَصَارَ كَمَا إِذَا غَصَبَ جَارِيَةً سَمِينَةً فَهَزَلَتْ ثُمَّ سَمِنَتْ ① او دا داسي سو لکه يو څوک چي چاغه [صحتمنه] مينځه غاصب کړي او هغه ډنګره سي او بيا بيرته چاغه سي أَوْ سَقَطَتْ ثَنِيَّتُهَا ثُمَّ نَبَتَتْ ② يا د هغې د مخ دوه غاښونه ولوېږي او بيا راشنه سي أَوْ قُطِعَتْ يَدُ الْمَغْصُوبِ فِي يَدِهِ وَأَخَذَ أَرْشَهَا وَأَدَّاهُ مَعَ الْعَبْدِ ③ يا د غصب کړی سوي غلام لاس پرېکړی سي او غاصب د هغه تاوان [ديت] واخلي او هغه د غلام سره [مالک ته] ورکړي يُحْتَسَبُ عَنْ نُقْصَانِ الْقَطْعِ نو هغه د قطع [پرېکولو] له نقصان څخه شمېرل کيږي [يعني په هغه سره د قطع د نقصان تلافي کيږي] وَوَلَدُ الظَّبْيَةِ مَمْنُوعٌ او د هوسۍ د بچي مسئله [مورد ته] تسليم نه ده وَكَذَا إِذَا مَاتَتِ الْأُمُّ او همدارنګه کله چي مور مړه سي [يعني د مور د مړه کېدلو مسئله هم مورد ته تسليم نه ده] وَتَخْرِيجُ الثَّانِيَةِ أَنَّ الْوِلَادَةَ لَيْسَتْ بِسَبَبٍ لِمَوْتِ الْأُمِّ او د دويم روايت تخريج دا ده چي ولادت د مور د مرګ سبب نه دی إِذِ الْوِلَادَةُ لَا تُفْضِي إِلَيْهِ غَالِبًا ځکه ولادت غالباً مرګ ته رسول نه کوي [يعني ولادت عموماً د ښځي د مرګ سبب نه ګرځي] وَبِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ الْوَلَدُ قَبْلَ الرَّدِّ او په خلاف د هغه صورت کله چي له واپس کولو څخه مخکي بچی مړ سي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ رَدِّ أَصْلِهِ لِلْبَرَاءَةِ ځکه د بري کېدلو لپاره [چي څرنګه] د هغه د اصل واپس کول ضروردي فَكَذَا لَا بُدَّ مِنْ رَدِّ خَلَفِهِ نو همداسي د هغه د نائب واپس کول هم ضروري دي وَالْخِصَاءُ لَا يُعَدُّ زِيَادَةً او خصي کول زياتوب نه شمېرل کيږي لِأَنَّهُ غَرَضُ بَعْضِ الْفَسَقَةِ ځکه دا خو داځيني فاسقانو غرض وي وَلَا اتِّحَادَ فِي السَّبَبِ فِيمَا وَرَاءَ ذٰلِكَ مِنَ الْمَسَائِلِ او له دې څخه بغير په نورو [دريو] مسئلو کي سبب متحد نه دی لِأَنَّ سَبَبَ النُّقْصَانِ الْقَطْعُ وَالْجَزُّ ځکه چي د نقصان سبب پرېکول او سکستل دي وَسَبَبَ الزِّيَادَةِ النُّمُوُّ او د زياتوب سبب وده کول دي وَسَبَبَ النُّقْصَانِ التَّعْلِيمُ وَالزِّيَادَةُ سَبَبُهَا الْفَهْمُ او [د غلام په مسئله کي] د نقصان سبب زده کړه او د زياتوب سبب پوهه [او ځيرکتيا] ده.

**اللغات**: ﴿وفاء﴾ د ضرب مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول، ﴿جُبِرَ﴾ د نصر ماضي مجهوله ده: د نقصان تلافي کول، یعني نقصان (کمي) پوره کول، اصلاح کول او سمول، ﴿جَزَّ﴾ د نصر ماضي ده: پرېکول، غوڅول، جزّ الصوف: وړی سکستل، ﴿قوائم الشجرة﴾ تنه، د درختي ډډ او بېخ، ﴿خصٰی﴾ د ضرب ماضي ده، خَصٰی یَخْصِيْ خِصَاءً: خصي کول، ﴿حرفة﴾ پېشه، کسب، ﴿أضناه﴾ د افعال ماضي ده: سخت کمزوري کول، ډنګرول او ضعیفه کول، ﴿عُلُوق﴾ د سمع د باب مصدر دی: ښځه حامله کېدل، په رحم کي نطفه قرار نیول، حمل نیول کېدل، ﴿هزلت﴾ د نصر او سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: ډنګرېدل، کمزوري کېدل، ﴿سَمِنَت﴾ د سمع له بابه مخکني صیغه ده: چاغېدل، پنډېدل، ﴿الثَّنِیَّة﴾ (بتشدید الیاء) د مخ دوه لوړ یا لاندي غاښونه (مصباح اللغات، مصباح المنیر)، جمع ثَنَایَا، ﴿أرش﴾ تاوان (جرمانه)، دیت (د ما دون النفس دیت)، ﴿فسقة﴾ جمع د فَاسِقٌ ده: بدکاره، د کبیره ګناهونو مرتکب او پر صغیره ګناهونو ټینګار کونکی، ﴿نمو﴾ وده او نما کول، ﴿الفهم﴾ پوهه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی د بل چا مینځه غصب کړي، بیا دا مینځه د هغه سړي (غاصب) په قبضه کي بچی وزېږوي (چي د هغه په وجه مینځه مثلاً خپل مخکني ښایست او ښکلا د لاسه ورکړي یا مثلاً یو بل نقص او کمزوري پکښي راسي)، نو د هغه ولادت په وجه چي د هغې په قیمت کي څومره نقصان (کمي) راسي، د هغه ضمان (تاوان) پر غاصب لازمیږي، مګر دا ضمان به د هغې په بچي سره پوره کول کیږي که چیري د بچي قیمت د ضمان سره برابر وي، او که چیري کم وي، نو د قیمت په اندازه ضمان ساقطیږي، مثلاً که د مغصوبه مینځي قیمت سل درهمه وي او تر ولادت وروسته د هغې قیمت شپېته درهمه سي، نو که چیري د هغې بچي قیمت څلوېښت درهمه وي نو د نقصان جبر او تلافي کیږي او مینځه به د خپل بچي سره مالک ته ورکول کیږي او پر غاصب هیڅ شی نه لازمیږي، او که چیري د بچي قیمت پنځویشت درهمه وي، نو له څلوېښتو څخه پنځویشت درهمه ساقطیږي او پر غاصب پنځلس درهمه لازمیږي. لېکن په قیمت سره د نقصان جبر او تلافي هغه وخت کېدای سي، کله چي بچی ژوندی وي کنې په دیت سره به د هغه تلافي کیږي یعني د نقصان په ضمان کي به دیت ورکوي.

**وقال زفر إلخ**: امام زفر، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله فرمایي چي د بچي په ذریعه به د مور د نقصان جبر او تلافي نه کیږي، بلکي مالک ته د مور او بچي له ورکولو څخه وروسته هم پر غاصب د دغه نقصان ضمان لازم پاتیږي؛ ځکه چي دا بچی هم د مالک (مولیٰ) ملکیت دی او مینځه هم د هغه

ملکيت ده، نو دا کېدای نه سي چي د هغه په خپل ملکيت سره د هغه د ملکيت تلافي وکړی سي (د هغه په خپل مملوک شي نقصان پوره کړی سي)، دغه حضراتو د خپل مسلک د تائيد او تقويت لپاره شپږ مثالونه ذکر کړي دي: ① که يو سړی له حرم شريف څخه يوه هوسۍ راوباسي او هغه بچی وزېږوي لېکن په دغه ولادت سره د هغې په قيمت کي څه کمي راسي، نو د هغې په بچي سره دغه نقصان (کمي) نه پوره کول کيږي بلکي پر هغه سړي دا لازميږي چي هوسۍ او بچی دواړه حرم ته واپس کړي او د دغه نقصان ضمان اداء کړي، ② همدارنګه که مالک ته د مور (مينځي) له واپس کولو څخه مخکي بچی مړ سي، نو ښکاره ده چي په هغه سره د مور د نقصان جبر او تلافي نه سي کېدای، بلکي پر غاصب د نقصان جلا (عليحده) ضمان لازميږي، ③ يا د ولادت په وجه د بچي مور مړه سي او بچی ژوندی پاته سي او قيمت دومره وي کوم چي نقصان او کمي پوره کولای سي، نو په دې صورت کي هم بالاتفاق په بچي سره د نقصان جبر او تلافي نه کيږي، بلکي پر غاصب د نقصان جلا ضمان لازميږي، ④ که يو سړی د بل چا د پسه وړی وسکستي، بيا پر هغه ځای نوري وړی را پورته سي، يا يو شوک د بل چا د درختي تنه پرېکړي او د هغه پر ځای بله تنه را پورته سي، نو په را پورته سوي وړيو او تنې سره ضمان نه اداء کيږي، بلکي پر پرېکونکي جلا ضمان واجبيږي، ⑤ که يو سړی د بل چا د غلام خوټي (خصيتين) وکاږي او هغه خصي کړي، نو په خصي کولو سره که څه هم د غلام په قيمت کي اضافه راسي، لېکن بيا هم پر هغه د خصي کولو د فعل ضمان لازميږي او د قيمت په اضافه کېدلو سره د خصي کولو د نقصان تلافي نه سي کېدای، ⑥ که يو شوک د بل چا غلام غصب کړي او هغه ته يو کسب او پېشه ور زده کړي او د زده کولو په نتيجه کي هغه غلام کمزوری سي، نو که څه هم د کسب تعليم او زده کړه يو هنر او کمال دی، خو بيا هم د هغه په وجه چي په غلام کي کومه کمزوري راغلې دی، پر غاصب د هغه ضمان لازميږي او د تعليم په اضافه کېدلو سره د هغه تلافي نه کيږي، لنډه دا چي څرنګه په دغه صورتونو کي پر غاصب د نقصان جلا ضمان لازميږي، همداسي به پورتنۍ مسئله کي هم پر هغه د نقصان جلا ضمان لازميږي او د بچي په قيمت سره به د هغه تلافي نه کيږي.

ولنا الخ: په دې سلسله کي زموږ دليل دا دی چي په پورتنۍ مسئله کي د نقصان و زياتوب سبب صرف يو دی چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه ولادت دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز عُلوق دی او په کوم شي کي چي صرف په يوه سبب او يوه علت سره نقصان و زياتوب راغلی وي، په هغه کي په زياتوب (زائد شده شي) سره د نقصان تلافي کيږي او د نقصان لپاره جلا ضمان او تاوان نه واجبيږي.

په همدې وجه موږ په پورتنۍ مسئله کې د بچي په قيمت سره د مېنځې د نقصان د تلافي کولو (پوره کولو) حکم کړی دی. د دې مثال داسې دی ① لکه يو سړی چې صحتمنه او چاغه مېنځه غصب کړي بيا هغه د غاصب سره ډنګره سي لېکن څه وخت وروسته بيرته چاغه سي، ② يا د هغې د مخ غاښونه ولوېږي او بيرته راشنه سي، ③ يا د غاصب په قبضه کې د مغصوب غلام لاس پرېکړی سي او غاصب د هغه ديت واخلي او د مغصوب غلام سره ديت هم مالک ته وسپاري، نو په دغو ټولو صورتونو کې غاصب له ضمان او ديت څخه بري کېږي او پر هغه جلا هيڅ ضمان او تاوان نه واجبېږي، نو ځکه همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم جلا پر غاصب هيڅ ضمان او تاوان نه واجبېږي.

و ولد الظبية إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله او داسې نورو چې د خپل قول په تائيد کې کوم د هوسۍ د بچي مسئله او داسې نوري مسئلې په قياس کې پېش کړي وې او په هغوی سره يې دليل نيولی وو، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله له دې ځايه د هغه شپږو مسئلو جواب ورکوي: ① د اولې مسئلې جواب دا دی چې ستاسو دا استدلال موږ نه تسلموو؛ ځکه د غيرِ ظاهر روايت حکم دا دی چې که په دغه هوسۍ کې د ولادت په وجه نقصان پيدا سي يا د ولادت په وجه هغه مړه سي او د بچي په قيمت سره د دغه نقصان تلافي ممکنه وي، نو د بچي په قيمت سره د دغه نقصان تلافي کېدای سي (صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله همدې طرف ته مائل دی)، نو د دې پر بناء مذکوره قياس غلط دی او زموږ په خلاف نه دی، ② د دويمې مسئلې جواب دا دی چې د مور د مرګ په صورت کې د بچي په قيمت سره د نقصان د تلافي کولو په هکله دوه روايتونه نقل سوي دي چې له هغوی څخه غيرِ ظاهر روايت دا دی چې د بچي په قيمت سره د دغه نقصان تلافي کېدای سي او پر غاصب جلا ضمان نه لازمېږي، نو د دغه روايت پر بناء مذکوره قياس زموږ په خلاف نه دی، او ظاهر روايت دا دی چې د بچي په قيمت سره د نقصان تلافي نه سي کېدای بلکې پر غاصب جلا ضمان لازمېږي، نو د هغه جواب دا دی چې د مېنځې د مرګ سبب ولادت نه دی؛ ځکه زياتره وختونه په ولادت سره مرګ نه واقع کېږي، ګواکې ولادت د زياتوب او اضافې سبب دی (د بچي په شکل سره) او د مېنځې د مرګ سبب نه دی، نو دلته د زياتوب او نقصان په سبب کې اتحاد (يو والی) پاته نه سو، حال دا چې زموږ کلام په همغه صورت کې دی چې د زياتوب او نقصان سبب صرف يو وي. ③ د "وكما إذا هلك الولد قبل الرد" جواب دا دی چې دلته د بري کېدلو لپاره د اصل (يعني د مور) پر هغه صفت واپس کول ضروري دي پر کوم صفت چې هغه غصب کړی سوې وي نو د هغه د خليفه (يعني د بچي) واپس کول هم ضروري سوه، حال دا چې غاصب مور پر هغه صفت واپس نه کړه بلکې په ولادت سره يې ناقصه کړه او بيا له واپس کولو

څخه مخکې بچي مړ سو، نو کوم څه چې واجب وو يعني د بچي سره واپس کول، هغه پوره نه سوه نو په دې وجه پر غاصب جلا ضمان لازميږي؛ ځکه چې زموږ کلام په همغه صورت کې دی کله چې مور د خپل بچي سره مالک ته واپس کړی سي، ⑤ د پنځمې مسئلې يعني د ''خصٰی عبد غيره'' جواب دا دی چې غلام خصي کول کوم چې تاسو زياتوب او اضافه شمېرلې ده، دا زياتوب نه دی، دا خو د بعضي فساقو او کمتره خلکو کار او غرض وي، نو په شريعت کې هغه لره هيڅ اعتبار نسته؛ ځکه چې شريعت دا کار حرام ګرځولی دی، ④، ⑥ د څلورمې او شپږمې مسئلې جواب دا دی چې په دغو مسئلو کې د نقصان او زياتوب اسباب سره جلا دي؛ ځکه په پُسه کې د نقصان سبب وړی سکستل او په درخته کې د نقصان سبب تنه پرېکول دي، لېکن په دوی کې د زياتوب او اضافې سبب وده کول او د دوی را پورته کېدل دي، او د کسب او پېښې په ور زده کولو کې د نقصان سبب تعليم (ور زده کول) دي چې هغه د تکليف موجب دی او د هغه په وجه په انسان کې ضعف او کمزوري راځي او د زياتوب سبب د هغه پوهه يعني ښه ذهن او ځير کتوب دی، او ښکاره خبره ده چې په دغه هرو دوو اسبابو کې اتحاد (يو والی) نسته، لهذا دغه مسئلې د پورتنۍ صورت مسئلې سره تعلق نه لري او له هغې څخه خارجه دي، نو زموږ په خلاف په هغوی سره دليل نيول او په قياس کې پېشول صحيح نه دي.

## د مغصوبه مينځې سره د زنا کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ جَارِيَةً فَزَنٰى بِهَا فَحَبِلَتْ فرمايي: او څوک چې يو مينځه غصب کړي او د هغې سره زنا وکړي نو هغه حامله سي ثُمَّ رَدَّهَا وَمَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا بيا غاصب هغه مينځه [مالک ته] واپس کړي او هغه په خپل نفاس کې مړه سي يَضْمَنُ قِيمَتَهَا يَوْمَ عَلِقَتْ نو پر غاصب د هغې د هغه ورځې قيمت لازميږي په کومه ورځ چې هغه حامله سوې وي وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِي الْحُرَّةِ او په آزاده ښځه کې پر غاصب ضمان نسته وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا [●]: لَا يَضْمَنُ فِي الْأَمَةِ أَيْضًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په مينځه کې هم غاصب نه ضامن کيږي لَهُمَا: أَنَّ الرَّدَّ قَدْ صَحَّ د صاحبينو دليل دا دی: چې واپس کول صحيح سوه [يعني د غاصب له طرفه مالک ته د مينځې واپس کول صحيح واقع سوي دي] وَالْهَلَاكُ بَعْدَهُ بِسَبَبٍ حَدَثَ فِي يَدِ الْمَالِكِ وَهُوَ الْوِلَادَةُ او تر هغه

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۵، ص:۱۴۴)، ومجمع الأنهر (ج:۴، ص:۹۳). [القول صحح ج:۲، ص:۲۶۳]

وروسته [د مينځې] هلاکېدل په داسې سبب سره سوي دي کوم چې د مالک په قبضه کې پيدا سوی دی چې هغه ولادت دی فَلَا يَضْمَنُ الْغَاصِبُ نو ځکه غاصب به نه ضامن کيږي كَمَا إِذَا حُمَّتْ فِي يَدِ الْغَاصِبِ ثُمَّ رَدَّهَا فَهَلَكَتْ لکه کله چې د غاصب په قبضه کې د دغه مغصوبه مينځې تبه سي او غاصب هغه [مالک ته] واپس کړي بيا هغه هلاکه سي أَوْ زَنَتْ فِي يَدِهِ ثُمَّ رَدَّهَا فَجُلِدَتْ فَهَلَكَتْ مِنْهُ يا دا مينځه د غاصب په قبضه کې زنا وکړي بيا غاصب هغه [مالک ته] واپس کړي او هغه په درو ووهلی سي بيا هغه هلاکه سي وَكَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً قَدْ حَبِلَتْ عِنْدَ الْبَائِعِ فَوَلَدَتْ عِنْدَ الْمُشْتَرِي وَمَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا او لکه څوک چې داسې مينځه رانيسي کوم چې د بائع سره حامله سوې وي او بيا هغه د مشتري سره بچی وزېږوي او په خپل نفاس کې مړه سي لَا يَرْجِعُ عَلَى الْبَائِعِ بِالِاتِّفَاقِ بِالثَّمَنِ نو مشتري بالاتفاق له بائع څخه ثمن واپس نه سي اخيستلای وَلَهُ: أَنَّهُ غَصَبَهَا وَمَا انْعَقَدَ فِيهَا سَبَبُ التَّلَفِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې غاصب دا مينځه په داسې حالت کې غصب کړې ده چې په هغې کې د تلف کېدلو [هلاکېدلو] سبب موجود نه وو وَرُدَّتْ وَفِيهَا ذٰلِكَ او بيا په داسې حالت کې [مالک ته] واپس کړی سوې ده چې په هغې کې د تلف کېدلو سبب [يعني حمل] موجود وو فَلَمْ يُوجَدِ الرَّدُّ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي أَخَذَ نو په هغه توګه واپس کول موجود نه سوه په کومه توګه چې غاصب [مينځه] اخيستې وه فَلَمْ يَصِحَّ الرَّدُّ نو ځکه واپسي [واپس کول] صحيح نه سوه وَصَارَ كَمَا إِذَا جَنَتْ فِي يَدِ الْغَاصِبِ جِنَايَةً فَقُتِلَتْ بِهَا فِي يَدِ الْمَالِكِ أَوْ دُفِعَتْ بِهَا بِأَنْ كَانَتِ الْجِنَايَةُ خَطَأً او دا داسې سوه لکه دغه مينځه چې د غاصب په قبضه کې يو جرم [قتل] وکړي او بيا د مالک په قبضه کې هغه د همدې جرم په سبب قتل کړل سي يا هغه د دې جرم په عوض کې ورکړل سي په دې توګه چې جرم [قتل] خطاءً وي يَرْجِعُ عَلَى الْغَاصِبِ بِكُلِّ الْقِيمَةِ نو مالک له غاصب څخه ټوله قيمت اخلي كَذَا هٰذَا نو همداسې به دا هم وي [يعني همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم غاصب د هلاک سوي مينځې د ټوله قيمت ضامن کيږي او مالک به ټوله قيمت ځني اخلي] بِخِلَافِ الْحُرَّةِ په خلاف د آزادې ښځې لِأَنَّهَا لَا تُضْمَنُ بِالْغَصْبِ لِيَبْقَى ضَمَانُ الْغَصْبِ بَعْدَ فَسَادِ الرَّدِّ ځکه چې په غصب سره د هغې ضمان نه لازميږي چې د واپسۍ تر فاسدېدلو وروسته د غصب ضمان باقي پاته سي وَفِي فَصْلِ الشِّرَاءِ

الْوَاجِبِ ابْتِدَاءُ التَّسْلِيمِ او د رانيولو په صورت کي ابتداءً ورسپارل واجب دي [يعني د مينځي د رانيولو په صورت کي پر بائع صرف د مينځي واپس کول واجب دي او هغه ورسپارلې ده] وَمَا ذَكَرْنَاهُ شَرْطُ صِحَّةِ الرَّدِّ او کوم څه چي موږ [دلته] ذکر کړي دي هغه د واپسۍ د صحيح کېدلو شرط دي وَالزِّنَا سَبَبٌ لِجَلْدٍ مُؤْلِمٍ لَا جَارِحٍ وَلَا مُتْلِفٍ او زنا د داسي دُرو [وهلو] سبب ده کوم چي دردونکي وي، نه زخميّ کونکي او هلاکونکي فَلَمْ يُوجَدِ السَّبَبُ فِي يَدِ الْغَاصِبِ نو ځکه د غاصب په قبضه کي [د مينځي د هلاکېدلو] سبب موجود نه سو.

**اللغات**: ﴿حَبِلت﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: حامله کېدل، بلاربېدل،
﴿عَلِقت﴾ مخکنۍ صيغه ده: حامله کېدل، د ښځي په رحم کي نطفه قرار نيول (حمل نيول کېدل)،
﴿حُمّت﴾ مخکنۍ صيغه ده خو دا ماضي مجهوله ده؛ ځکه د تبې د معنیٰ لپاره دا باب مجهول استعمالېږي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د بل چا مينځه غصب کړي او زنا ور سره وکړي چي د هغه په وجه مينځه حامله سي، بيا غاصب دغه حامله مينځه مالک ته وسپاري او د مالک سره بچی وزېږي او تر ولادت (بچي زېږولو) وروسته دا مينځه د نفاس د وينې د ډېرښت په وجه يا په يو بل سبب سره د نفاس په حالت کي مړه سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز غاصب د دغه مينځي ضامن کيږي او د عُلوق په ورځ (يعني په رحم کي د نطفې د قرار نيولو په ورځ) چي د هغې کوم قيمت وي، هغه قيمت واجبيږي. او که د مينځې پر ځای د آزادي ښځي سره دا معامله وسي او هغه مړه سي، نو پر زاني ضمان نه لازميږي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي څرنګه د آزادي ښځي په صورت کي زاني نه ضامن کيږي، همداسي د مينځي په مسئله کي هم زاني (کوم چي غاصب دی) نه ضامن کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي تر غصب او زنا وروسته غاصب دا مينځه خپل مالک ته سپارلې ده او تر ورسپارلو وروسته هغه د مالک سره د يو نوي سبب يعني د ولادت په وجه هلاکه سوې ده، نو ځکه پر غاصب به هيڅ ضمان نه لازميږي.

صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د خپل دليل په تائيد کي څو شواهد او مثالونه پېش کړي دي: ① که مغصوبه مينځه د غاصب سره ناروغه سي، بيا په همدې حالت کي غاصب دا مينځه مالک ته واپس کړي او هغه د مالک سره هلاکه سي، نو پر غاصب د هغې ضمان نه لازميږي. ② که مغصوبه مينځه د غاصب په قبضه کي د يو چا سره زنا وکړي، بيا غاصب هغه مالک ته واپس کړي او د مخکني جرم

(زنا) په وجه پر هغې حد جاري کړی سي او په دُرو ووهلی سي او هغه هلاکه سي، نو هم پر غاصب ضمان نه لازمیږي. ③ که (مثلاً) زید له یو چا څخه حامله مینځه رانیسي او بیا هغه مینځه د نفاس په حالت کي د مشتري (زید) سره مړه سي، نو بالاتفاق مشتري ته له بائع څخه د ثمن واپس اخیستلو اختیار نه حاصلیږي یعني پر بائع د هغې د مرګ ضمان (تاوان) نه لازمیږي.

نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم پر غاصب ضمان نه لازمیږي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي کوم وخت غاصب مینځه غصب کړې وه، په هغه وخت کي د تلف کېدلو او هلاکېدلو هیڅ سبب په دغه مینځه کي موجود نه وو، لېکن کله چي غاصب دا مینځه مالک ته واپس کړه، نو په هغې کي د هلاکېدلو سبب یعني حمل موجود وو، نو غاصب چي څرنګه صحیح سالمه مینځه غصب کړې وه، هغسي یې نه ده واپس کړې، لهذا واپس کول صحیح نه سوه، نو ځکه د مینځې هلاکېدل به د غاصب په ضمان او ذمه واري کي شمېرل کیږي او همدا غاصب به تر غاړه نیول کیږي. امام صاحب رَحِمَهُ الله چي کوم مثال پېش کړی دی، هغه واضح دی.

بخلاف الحرة إلخ: فرمایي صاحبینو رَحِمَهُمَا الله چي پورتنۍ مسئله د آزادي ښځي پر مسئله قیاس کړې ده، دا صحیح نه دي؛ ځکه چي آزاده ښځه مال نه دی او ګر سره په غصب سره د هغې ضمان نه لازمیږي، نو په هلاکېدلو سره به د هغې ضمان څنګه لازم سي. او که دا وویل سي چي د واپس کولو (رد) د فاسدېدلو او نه صحیح کېدلو په وجه به پر غاصب ضمان لازمیږي، نو د هغه جواب دا دی چي کله له واپس کولو څخه مخکي پر هغه ضمان نسته، نو له واپس کولو څخه وروسته به څنګه ضمان پر لازم سي. همدارنګه د مینځې د رانیولو (شراء) پر مسئلې قیاس کول هم صحیح نه دي؛ ځکه د مینځې د رانیولو په صورت کي پر بائع صرف د مینځې واپس کول واجب وي او هغه دا واجب کار ترسره کړی دی او په هغه وخت کي مینځې صحیح سالمه وي، لهذا کله چي بائع له خپل فریضې څخه خلاص سوی دی، نو ځکه وروسته به د مینځې په هلاکېدلو سره پر هغه ضمان نه لازمیږي.

همدارنګه د په دُرو سره د وهل کېدلو په وجه د مینځې د هلاکېدلو په صورت کي پر غاصب ځکه ضمان نه لازمیږي چي په زنا سره داسي دُرې واجبیږي کوم چي صرف تکلیف ورکونکي او دردونکي وي، داسي دُرې نه واجبیږي کوم چي زخمي کونکي یا هلاکونکي وي، لهذا په دې صورت کي د غاصب په قبضه کي د مینځې د هلاکېدلو سبب موجود نه سو (ځکه هغه چي په کوم سبب سره هلاکه سوې ده، دا هغه سبب نه دی کوم چي د بائع په قبضه کي واجب سوی دی؛ ځکه چي د هغه په قبضه کي جلدِ مُؤلِم واجب سوی دی، نه جلدِ مُتلِف او مُهلِک)، نو په دې وجه دلته هم غاصب نه ضامنْ کیږي. (احسن الهدایه)

## د مغصوب شي د منافعو د ضمان حکم

قَالَ: وَلَا يَضْمَنُ الْغَاصِبُ مَنَافِعَ مَا غَصَبَهُ فرمايي: او غاصب د غصب کړی سوي شي د منافعو نه ضامن کيږي إِلَّا أَنْ يَنْقُصَ بِاسْتِعْمَالِهِ مګر دا چي د ده په استعمال سره مغصوب شی ناقص سي [نقصان پکښي راسي] فَيَغْرَمُ النُّقْصَانَ نو بيا هغه د نقصان ضامن کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضْمَنُهَا فَيَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي غاصب د منافعو ضامن کيږي او پر هغه أجرتِ مثلي واجبيږي وَلَا فَرْقَ فِي الْمَذْهَبَيْنِ بَيْنَ مَا إِذَا عَطَّلَهَا أَوْ سَكَنَهَا او په دواړو مذهبونو کي د دې فرق نسته چي غاصب منافع بيکاره پريږدي يا هغوی په سکونت کي استعمال کړي وَقَالَ مَالِكٌ: إِنْ سَكَنَهَا او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: که غاصب هغوی استعمال کړي يَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ نو [په ضمان کي] أجرتِ مثلي واجبيږي وَإِنْ عَطَّلَهَا او که بيکاره يې پرېږدي [يعني استعمال يې نه کړي بلکي هسي ضايع سي] لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لَهُ: أَنَّ الْمَنَافِعَ أَمْوَالٌ مُتَقَوَّمَةٌ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي منافع هم قيمتدار [قيمت لرونکي] مالونه دي حَتَّى تُضْمَنَ بِالْعُقُودِ همدا وجه ده چي په عقدونو سره د منافعو ضمان واجبيږي فَكَذَا بِالْغُصُوبِ نو همداسي په غصبونو سره به هم د هغوی ضمان واجبيږي وَلَنَا: أَنَّهَا حَصَلَتْ عَلَى مِلْكِ الْغَاصِبِ زموږ دليل دا دی: چي دا منافع د غاصب په ملکيت کي حاصل سوي وي لِحُدُوثِهَا فِي إِمْكَانِهِ ځکه منافع د هغه په امکان [او تصرف] کي پيدا سوي دي إِذْ هِيَ لَمْ تَكُنْ حَادِثَةً فِي يَدِ الْمَالِكِ ځکه هغوی د مالک په قبضه کي پيدا سوي [موجوده] نه وې لِأَنَّهَا أَعْرَاضٌ لَا تَبْقَى ځکه چي منافع اعراض دي کوم چي باقي نه سي پاتېدلای فَيَمْلِكُهَا دَفْعًا لِحَاجَتِهِ نو ځکه غاصب به د هغوی مالک کيږي د هغه د حاجت دفع کولو په خاطر وَالْإِنْسَانُ لَا يَضْمَنُ مِلْكَهُ او انسان د خپل ملکيت نه ضامن کيږي كَيْفَ وَأَنَّهُ لَا يَتَحَقَّقُ غَصْبُهَا وَإِتْلَافُهَا او څنګه به غاصب ضامن سي حال دا چي د منافعو غصب کول او د هغوی تلف کول نه متحقق کيږي لِأَنَّهُ لَا بَقَاءَ لَهَا ځکه چي منافعو لره بقاء نسته [باقي نه پاتيږي] وَلِأَنَّهَا لَا تُمَاثِلُ الْأَعْيَانَ او ځکه چي منافع د اعيانو [شيانو] په څېر نه دي لِسُرْعَةِ فَنَائِهَا وَبَقَاءِ الْأَعْيَانِ ځکه چي منافع ژر فنا

کیږي او اعیان باقي پاتیږي وَقَدْ عُرِفَتْ هٰذِهِ الْمَآخِذُ فِي الْمُخْتَلِفِ او دا علتونه [د ابو الليث رَحِمَهُ الله] په مختلفُ الروایه کي معلوم سوي دي وَلَا نُسَلِّمُ أَنَّهَا مُتَقَوِّمَةٌ فِي ذَاتِهَا او موږ دا نه تسلیموو چي منافع بذات خود قیمتداره [قیمت لرونکي] دي بَلْ تُقَوَّمُ ضَرُورَةً عِنْدَ وُرُوْدِ الْعَقْدِ بلکي [پر منافعو] د عقد واردېدلو په وخت کي د ضرورت پر بناء هغوی قیمتداره کیږي وَلَمْ يُوجَدِ الْعَقْدُ حال دا چي [دلته] عقد سوی نه دی إِلَّا أَنَّ مَا انْتَقَصَ بِاسْتِعْمَالِهِ مګر دا چي کوم شی د غاصب په استعمال سره ناقص [او عیبداره] سي مَضْمُونٌ عَلَيْهِ د هغه ضمان [په دې وجه] پر غاصب لازم دی لِاسْتِهْلَاكِهِ بَعْضَ أَجْزَاءِ الْعَيْنِ ځکه چي هغه د عَین شي بعضي اجزاء هلاک کړل.

**اللغات**: ﴿ینقص﴾ د نصر د باب مضارع ده: ناقص کېدل، کمېدل، نقصان پکښي راتلل. ﴿یغرم﴾ د سمع د باب مضارع ده: تاوان (ضمان) پر لازمېدل، ضامن کېدل، تاوان پوره کول. ﴿إجر المثل﴾ د عمومي (بازاري) رېټ مطابق أجرت او کرایه. ﴿عطّل﴾ د تفعیل ماضي ده: بېکاره کول، بېکاره (نا مستعمله) پرېښوول. ﴿سکن﴾ د نصر ماضي ده: اوسېدل، استوګنه کول. ﴿متقوّم﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: قیمت لرونکی (قېمتي)، قیمتداره (کوم چي په شریعت کي څه قیمت لري). ﴿حدوث﴾ د نصر مصدر دی: نوي پیدا کېدل. ﴿الأعراض﴾ عارضي اوصاف. ﴿تماثل﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: یو شی د بل شي مثل کېدل (په څېر کېدل)، مشابه کېدل. ﴿أعیان﴾ جمع د عَيْنٌ ده: مُتعیّن شی، هر هغه شی کوم چي موجود وي او په لاس سره مسه کېدای سي او محفوظ کېدای سي، لکه عمومي شیان مثلا آس، غلام، ځمکه او داسي نور. نو هغه ته "عین" (عینْ شی) وایي، چي زموږ په اصطلاح هغه ته مطلق شی ویل کیږي. ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي چي ضمان (تاوان) لازم وي، هغه څه چي په ضمان کي شامل وي، هغه شی چي ضمان یې ورکول کیږي. ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکول، ضایع کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غاصب د مغصوب شي څه منافع استعمال کړي، مثلاً مغصوب شی آس وي او غاصب پر هغه سپور سي یا په غصب کرده کور کي څه وخت واوسیږي یا د غصب کرده باغ څه مېوه استعمال کړي، نو په دغسي استعمال سره زموږ په نېز پر هغه هیڅ ضمان او تاوان نه لازمیږي. ها! که چیري په دغه استعمال سره په مغصوب شي کي څه نقص او کمي راسي، نو بیا غاصب د هغه ضامن کیږي.

دامام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز غاصب د منافعو هم ضامن کيږي، برابره ده هغه منافع تر استعمال وروسته ختم سي لکه مېوه، يا تر استعمال وروسته هم هغه شی د انتفاع (نفع اخيستلو) قابل پاته سي لکه کور، آس او داسي نور. د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي که غاصب د مغصوب شي منافع استعمال کړي، نو پر هغه خو ضمان لازميږي، لېکن که بغير له استعماله هغه منافع ضايع سي، نو بيا پر هغه ضمان نه لازميږي.

په پورتني مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي منافع متقوّم (قيمتداره) مالونه دي او په عقدِ اجاره او داسي نورو عقدونو سره بالاتفاق د هغوی ضمان لازميږي، نو ځکه په غصب کولو سره به هم د هغوی ضمان او تاوان لازميږي لکه څرنګه چي د عَين شيانو او عَين مالونو په غصب کولو سره ضمان لازميږي (او منافع ځکه مالونه دي چي مال هر هغه څه ته وايي کوم چي د انسان په ملکيت کي وي او د انسان د مصلحت او ښېګڼې لپاره پيدا سوی وي او منافع همداسي دي، همدا وجه چي هغوی د مهر کېدلو قابل دي، حتی د اعيانو مال کېدل هم د هغو منافعو په اعتبار سره کوم چي د هغوی سره متعلق وي، همدا وجه ده که د يو شي منافع کم وي، نو د هغه شي ماليت او قيمت هم کم وي).

ولنا أنها حصلت إلخ: زموږ د دليل حاصل دا دی چي غاصب خو صرف (مثلاً) کور يا باغ غصب کړی دی او پاته سو استوګنه يا مېوه او داسي نور منافع خو د غاصب په ملکيت کي حاصل سوي دي او د هغه په امکان او تصرف و قبضه کي د هغه په کسب او فعل سره پيدا سوي دي، نه د مالک په قبضه او ملکيت کي؛ ځکه چي منافع اعيان نه دي بلکي اعراض دي کوم چي باقي پاتېدلای نه سي او غاصب د هغوی استعمالولو ته محتاج دی، نو د ضرورت او حاجت دفع کولو په خاطر به غاصب د هغوی مالک کيږي، لهذا کله چي دغه منافع د غاصب په ملکيت کي پيدا سوي دي، نو همدا غاصب به د هغوی مالک وي، او دا معلومه او څرګنده خبره ده چي انسان د خپل مملوک شي ضمان نه ورکوي، نو ځکه غاصب به هم د مغصوب شي د منافعو ضمان نه ورکوي.

ولا نسلم إلخ: فرمايي امام شافعي رَحِمَهُ الله چي منافع متقوّم ګرځولي دي، دا موږ نه تسليموو؛ ځکه چي منافع بذات خود نه متقوّم کيږي، بلکي کله چي پر منافعو عقد واقع سي، نو د ضرورت پر بناء هغوی متقوّم (قيمتداره) وګرځي. او په پورتني مسئله کي عقد معدوم دی (ځکه د غاصب له طرفه پر دغه منافعو هيڅ عقد نه دی وارد سوی)، نو ځکه د ضمان واجبېدلو سوال هم نه پيدا کيږي. ها! کوم شی چي د غاصب په استعمال سره عيبداره او ناقص وګرځي، نو دا د مغصوب شي د اجزاؤ او اوصافو د هلاکولو په څېر دي او د مغصوب شي د جزء په هلاکولو سره خو موږ هم پر غاصب د ضمان واجبېدلو قائل يو. (احسن الهدايه)



# فَصْلٌ فِيْ غَصْبِ مَا لَا يُتَقَوَّمُ

(دا) فصل په (بيان د) غصبولو کي د هغه شي دی کوم چي قيمت نه لري

## د نا قيمتداره شيانو د غصب حکم

قَالَ: وَإِذَا أَتْلَفَ الْمُسْلِمُ خَمْرَ الذِّمِّيِّ أَوْ خِنْزِيْرَهُ فرمايي: او که مسلمان د ذمي شراب يا د هغه خنزير ضايع کړي ضَمِنَ نو هغه ضامن کيږي فَإِنْ أَتْلَفَهُمَا لِمُسْلِمٍ او که هغه دیو مسلمان شراب يا خنزير ضايع کړي لَمْ يَضْمَنْ نو نه ضامن کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَضْمَنُهَا لِلذِّمِّيِّ أَيْضًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه د ذمي لپاره هم د دغو شيانو نه ضامن کيږي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا أَتْلَفَهُمَا ذِمِّيٌّ عَلٰى ذِمِّيٍّ أَوْ بَاعَهُمَا الذِّمِّيُّ مِنَ الذِّمِّيِّ او پر همدغه اختلاف دي کله چي ذمي د ذمي شراب يا خنزير ضايع کړي يا ذمي پر ذمي دا شيان خرڅ کړي لَهُ: أَنَّهُ سَقَطَ تَقَوُّمُهُمَا فِيْ حَقِّ الْمُسْلِمِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د مسلمان په حق کي د شرابو او خنزير قيمتداره کېدل ساقط سوي دي فَكَذَا فِيْ حَقِّ الذِّمِّيِّ نو همداسي به د ذمي په حق کي هم ساقطيږي لِأَنَّهُمْ أَتْبَاعٌ لَنَا فِي الْأَحْكَامِ ځکه چي د احکامو په حق کي ذميان زموږ تابع دي فَلَا يَجِبُ بِإِتْلَافِهِمَا مَالٌ مُتَقَوَّمٌ وَهُوَ الضَّمَانُ نو ځکه د شرابو او خنزير په ضايع کولو سره به قيمتداره مال يعني ضمان نه واجبيږي وَلَنَا: أَنَّ التَّقَوُّمَ بَاقٍ فِيْ حَقِّهِمْ زموږ دليل دا دی: چي د ذميانو حق کي [د دغو شيانو] قيمتداره کېدل باقي دي إِذِ الْخَمْرُ لَهُمْ كَالْخَلِّ لَنَا ځکه شراب د دوی لپاره داسي دي لکه زموږ لپاره سرکه وَالْخِنْزِيْرُ لَهُمْ كَالشَّاةِ لَنَا او خنزير د دوی لپاره داسي دی لکه زموږ لپاره پسه وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَدِيْنُوْنَ او موږ ته حکم سوی دی چي دوی او خپل دين سره پرېږدو [او د دوی په عقيده او دين کار نه ولرو. ځکه مسلمانان (اسلامي حکومت) چي د ذميانو سره کوم د ذمي والي عقد او ترون کوي، په هغه کي د دې خبري شرط لګول کيږي چي موږ به ستاسو په ځان (نفس)، مال او دين تعرض نه کوو] وَالسَّيْفُ مَوْضُوْعٌ او [له دوی څخه د ذمي والي په وجه] توره ساقطه سوې

ده [يعني د ذمي والي د عقد او تړون په وجه اوس د دوی سره جنګ او قتال نه سي کېدای چي اسلامي احکام پر لازم کړی سي] فَيَتَعَذَّرُ الْإِلْزَامُ نو ځکه [پر دوی احکام] لازمول ناممکن دي وَإِذَا بَقِيَ التَّقَوُّمُ او کله چي [د دوی په حق کي د خنزير او شرابو] قيمتداره کېدل باقي دي فَقَدْ وُجِدَ إِتْلَافُ مَالٍ مَمْلُوكٍ مُتَقَوِّمٍ نو د مملوک او قيمتدراه مال ضايع کول موجود سوه فَيَضْمَنُهُ نو ځکه ضايع کونکی [غاصب] به د هغه ضامن کيږي بِخِلَافِ الْمَيْتَةِ وَالدَّمِ په خلاف د مرادر سوي ځاروي او وينې لِأَنَّ أَحَدًا مِنْ أَهْلِ الْأَدْيَانِ لَا يَدِينُ تَمَوُّلَهُمَا ځکه چي هيڅ دين والا هم د دغو شيانو د مال کېدلو عقيده نه لري إِلَّا أَنَّهُ تَجِبُ قِيمَةُ الْخَمْرِ وَإِنْ كَانَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ مګر د شرابو قيمت به واجبيږي که څه هم هغه له مثلي شيانو څخه دي لِأَنَّ الْمُسْلِمَ مَمْنُوعٌ عَنْ تَمْلِيكِهِ ځکه چي مسلمان د شرابو له تمليک [مالک جوړولو] څخه منع سوی دی [يعني مسلمان له دې څخه ممنوع دی چي بل څوک (ذمي) د شرابو مالک جوړ کړي يعني شراب ورکړي] لِكَوْنِهِ إِعْزَازًا لَهُ ځکه چي داسي کول د شرابو اعزاز [احترام] دی بِخِلَافِ مَا إِذَا جَرَتِ الْمُبَايَعَةُ بَيْنَ الذِّمِّيَّيْنِ په خلاف د هغه صورت کله چي د دوو ذميانو په مينځ کي [د شرابو] معامله وسي لِأَنَّ الذِّمِّيَّ غَيْرُ مَمْنُوعٍ عَنْ تَمْلِيكِ الْخَمْرِ وَتَمَلُّكِهَا ځکه چي ذمي د شرابو له مالک جوړولو او مالک جوړېدلو څخه نه دی منع کړی سوی [يعني هغه له دې څخه ممنوع نه دی چي بل چا ته شراب ورکړي يا يې خپله واخلي] وَهَذَا بِخِلَافِ الرِّبٰوا او دا حکم د ربوا [سود] په خلاف دی لِأَنَّهُ مُسْتَثْنًى عَنْ عُقُودِهِمْ ځکه چي ربوا د ذميانو له عقدونو څخه مستثنیٰ ده وَبِخِلَافِ الْعَبْدِ الْمُرْتَدِّ يَكُونُ لِلذِّمِّيِّ او په خلاف د هغه مرتد غلام کوم چي د يو ذمي وي لِأَنَّا مَا ضَمِنَّا لَهُمْ تَرْكَ التَّعَرُّضِ لَهُ ځکه چي د مرتد غلام سره د تعرض پرېښوولو په هکله موږ دوی ته ضمانت نه دی ورکړی [يعني مسلمانان (اسلامي حکومت) چي پر کومو شرائطو د ذميانو سره د ذمي والي عقد او تړون کوي، په هغه کي دا نسته چي موږ به ستاسو په مرتدينو غلامانو هم تعرض نه کوو] لِمَا فِيهِ مِنَ الِاسْتِخْفَافِ بِالدِّينِ ځکه چي په دې کي د دينِ اسلام سپکاوی دی وَبِخِلَافِ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا إِذَا كَانَ لِمَنْ يُبِيحُهُ او په خلاف د هغه ځاروي چي [د ذبح کولو په وخت کي] پر هغه قصداً بسم الله ويل سوې نه وي کله چي هغه د داسي کس وي کوم چي هغه روا [حلال] ګڼي لِأَنَّ وِلَايَةَ الْمُحَاجَّةِ ثَابِتَةٌ ځکه چي په حجت سره د قائل کولو ولايت ثابت دی.

**اللغات**: ﴿الذمي﴾ هغه کافر کوم چي په دارُ الاسلام کي د اسلامي حکومت تر واک لاندي اوسيږي او اسلامي حکومت د هغه سره د عهد او تړون کړی وي چي دلته به د هغه نفس وآبرو، مال او دين په امن وي، ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده، أَتْلَفَ يُتْلِفُ إِتْلَافًا: ضايع کول، بربادول، هلاکول، له منځه وړل، يو شی له خپل مطلوب منفعت څخه ايستل (چي بيا له هغه څخه نفع نه سي اخيستل کېدای)، ﴿تقوّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: قيمتداره کېدل (قيمتي کېدل)، ﴿يدين﴾ د ضرب مضارع ده: دين اختيارول، عقيده لرل، ﴿الميتة﴾ هغه ځاروی کوم چي بغير له ذبح کولو مردار سي، ﴿إعزاز﴾ د افعال د باب مصدر دی: عزت ورکول، احترام کول، ﴿تموّل﴾ د تفعّل مصدر دی: مال کېدل، مال والا کېدل، ﴿تَعَرُّض﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تعرض کول، کار په لرل، په پسې کېدل، (د يو چا په يو کار او مطلب کي دخل اندازي کول)، ﴿استخفاف﴾ د استفعال مصدر دی: سپک ګڼل، سپکاوی کول، ﴿محاجة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: بحث ومباحثه کول او حجتونه پېشول، مناقشه او مناظره کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې او دلائل واضح او آسانه دي.

بخلاف الميتة إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی کوم چي په کتاب کي ذکر سوی نه دی، فرما چي په خلاف د مردار سوي ځارويو او وينې چي د دوی په اتلاف سره ضمان (تاوان) ځکه نه واجبيږي چي هيڅ يو دين او مذهب والا هم دغه شيان د مال په توګه نه ساتي، نو ځکه صرف د خنزير او شرابو ضمان به واجبيږي، صرف دومره ده چي شراب که څه هم مثلي شي دي، لېکن د هغه قيمت لازميږي؛ ځکه مسلمان د هغه له تمليک څخه ممنوع دی، ځکه چي په داسي کولو سره د شرابو اعزاز او احترام لازميږي او دا حرام دي.

وهذا بخلاف الربوا إلخ: دا جمله د مخکني جملې "لأن الذمي غير ممنوع عن تمليك الخمر وتملكها" سره متعلق ده، مطلب يې دا دی چي مذکوره حکم په خنزير او شرابو کي دی، په خلاف د ربوا چي هغه د ذميانو له عقد ذمه څخه مستثنیٰ ده، نو د ربوا د معاملاتو (عقودو) په باطلولو کي به پر دوی تعرض کيږي، يعني که ذميان په خپل مينځ کي د سُود کاروبار شروع کړي، نو دوی به له هغه څخه منع کول کيږي: ځکه چي موږ په دې باره د تعرض په پرېښوولو سره مأمور نه يو، لکه څرنګه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "إِلَّا مَنْ أَرْبٰى فَلَيْسَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ عَهْدٌ" (يعني څوک چي د سود کاروبار کوي، زموږ او د هغه تر مينځ هيڅ عهد او تړون نه پاتيږي)، وجه يې دا ده چي سُود اخيستل د دوی خپل فسق دی،

نه تدیّن، کنې د سُود حرمت په خپله د دوی په دین کي هم ثابت دی، لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي ﴿وَأَخْذِهِمُ الرِّبَوٰا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ﴾. [سورة النساء: ۱۶۱]

وبخلاف متروك التسمية: او په خلاف د دې صورت چي که يو حنفي مسلکه مسلمان قصداً د يو چا متروکُ التسميه څاروی تلف کړي، نو پر هغه (تلفونکي) ضمان نه لازميږي؛ ځکه چي د احنافو په نيز "متروکُ التسميه عمداً" حرام دی او مال نه دی، نو ځکه د هغه اتلاف به د ضمان مُوجب نه وي، د دې په خلاف د شوافعو په نيز "متروک التسميه عمداً" حلال او متقوّم مال دی، نو ځکه د هغه اتلاف به د ضمان مُوجب وي. لېکن په حجت و دليل سره د هغو د قائلولو ولايت ثابت او حاصل دی چي زموږ له طرفه قاطع حجت دا آيت دی ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ [سورة الأنعام: ۱۲۱]، دا آيت په دې باره کي صريح دی چي "متروکُ التسمية عمداً" حرام دی، نو ځکه د دغه قرآني نص په مقابله کي به د هيچا په اعتقاد سره په هغه کي حِلَت نه ثابتيږي او د شوافعو اعتقاد لره به اعتبار نه وي.

## د مسلمان له مغصوبه شرابو څخه سُرکه جوړول يا مغصوبه پوست او څرمن ته رنګ (دباغت) ورکول

قَالَ: فَإِنْ غَصَبَ مِنْ مُسْلِمٍ خَمْرًا فَخَلَّلَهَا فرمايي: او که څوک له يو مسلمان څخه شراب غصب کړي او له هغه څخه سرکه جوړه کړي أَوْ جِلْدَ مَيْتَةٍ فَدَبَغَهُ يا د مردار څاروي پوست [څرمن] ځني غصب کړي او هغه ته رنګ ورکړي فَلِصَاحِبِ الْخَمْرِ أَنْ يَأْخُذَ الْخَلَّ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو د شرابو مالک ته دا اختيار سته چي هغه سرکه بلا عوضه واخلي وَيَأْخُذَ جِلْدَ الْمَيْتَةِ وَيَرُدَّ عَلَيْهِ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ او [دا اختيار ورته سته] چي د مرادار څاروي پوست واخلي او دباغت [رنګ ورکولو] چي په هغه کي کوم څه [د قيمت] زياتوب کړی وي هغه غاصب ته واپس کړي وَالْمُرَادُ بِالْفَصْلِ الْأَوَّلِ إِذَا خَلَّلَهَا بِالنَّقْلِ مِنَ الشَّمْسِ إِلَى الظِّلِّ وَمِنْهُ إِلَى الشَّمْسِ په اول صورت سره [د ماتن رَحِمَهُ الله] مراد دا دی چي غاصب له لمر څخه وسايې ته او له سايې څخه ولمر ته په نقل کولو سره هغه شراب سرکه جوړ کړي وي وَبِالْفَصْلِ الثَّانِي إِذَا دَبَغَهُ بِمَا لَهُ قِيمَةٌ او په دويم صورت سره مراد دا دی چي غاصب د داسي شي په ذريعه پوست ته رنګ ورکړی وي کوم چي قيمتداره وي كَالْقَرَظِ وَالْعَفْصِ وَنَحْوِ ذٰلِكَ لکه د سَلَم درختي

پاني او ګل مازو وَالْفَرْقُ أَنَّ هٰذَا التَّخْلِيلَ تَطْهِيرٌ لَهُ بِمَنْزِلَةِ غَسْلِ الثَّوْبِ النَّجِسِ او [په دواړو صورتونو کي] فرق دا دی چي دا سرکه جوړول [سرکه ګرځول] د شرابو پاکول دي لکه مرداره کپړه پرېولل فَيَبْقٰى عَلٰى مِلْكِهِ نو ځکه هغه به د مالک پر ملکيت باقي پاتيږي إِذْ لَا تَثْبُتُ الْمَالِيَّةُ بِهِ ځکه چي په تطهير سره ماليت نه ثابتيږي وَبِهٰذَا الدِّبَاغِ اتَّصَلَ بِالْجِلْدِ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ لِلْغَاصِبِ كَالصِّبْغِ فِي الثَّوْبِ او په دغه دباغت [رنګ ورکولو] سره د غاصب قيمتداره مال [يعني قرظ او عفص] د مغصوبه پوست سره متصل سو، لکه په [رنګول سوې] کپړه کي رنګ فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهِ نو ځکه دا پوست به هم د هغه [رنګول سوي کپړې] په شان وي فَلِهٰذَا يَأْخُذُ الْخَلَّ بِغَيْرِ شَيْءٍ وَيَأْخُذُ الْجِلْدَ وَيُعْطِي مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ نو ځکه د شرابو مالک به سرکه بلا عوضه [مفت] اخلي او پوست به [داسي] اخلي [چي] دباغت ورکولو په هغه کي کوم څه [د قيمت] زياتوب کړی وي هغه به غاصب ته ورکوي وَبَيَانُهُ أَنَّهُ يَنْظُرُ إِلٰى قِيمَتِهِ ذَكِيًّا غَيْرَ مَدْبُوغٍ وَإِلٰى قِيمَتِهِ مَدْبُوغًا او د دې وضاحت دا دی چي د ذبح کړي سوي [حلال] څاروي د نا رنګول سوي او رنګول سوي پوست قيمت ته به کتل کيږي فَيَضْمَنُ فَضْلَ مَا بَيْنَهُمَا نو د دوی دواړو په مينځ کي چي کوم زياتوب [فرق] وي، د هغه به ضامن کيږي وَلِلْغَاصِبِ أَنْ يَحْبِسَهُ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ حَقَّهُ او غاصب ته دا حق سته چي دغه پوست [له مالک څخه] راوګرځوي تر دې چي خپل حق ترلاسه کړي كَحَقِّ الْحَبْسِ فِي الْمَبِيعِ لکه په مبيع کي د راګرځولو حق [يعني لکه څرنګه چي د بيع په صورت کي بائع ته د ثمن ترلاسه کولو تر وخته د مبيع راګرځولو حق او اختيار سته].

**اللغات**: ﴿خلّل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: خَلَّلَ يُخَلِّلُ تَخْلِيلًا: سرکه جوړول، سرکه ګرځول. ﴿دَبَغَ﴾ د نصر. فتح او ضرب د باب ماضي ده. دَبَغَ يَدْبَغُ دِبَاغَةً: پوست ته رنګ ورکول، څرمن وچول او پخول (يعني د مسالې. مالګي يا د لمر او داسي نورو شيانو په ذريعه د پوست لوندوالی او بدبويي ورختمول چي هغه ته زموږ په اصطلاح غالباً پوست ته رنګ ورکول وايي). ﴿جِلد﴾ پوست، څرمن (څرمنه). ﴿الدِّبَاغ﴾ (بالکسر): هغه څه په کوم سره چي پوست رنګ او وچ کړی سي (ما يُدبَغ به). ﴿القرظ﴾ دا د يو ډول اغزي داره درختي (سَلَم) پاڼي يا دانې دي چي په هغه سره به پوست او څرمني ته دباغت ورکول کېدی. او دغه درختي ته سَلَم ويل کيږي کوم چي د جوز د درختي په څېر پندي تنې لري. صاحب د مصباحُ المنير ليکلي دي چي له دې څخه د سَلَم د درختي پاڼي نه. بلکي دانې مراد دي: ځکه په پاڼو سره څرمني ته دباغت نه ورکول کيږي. ﴿العفص﴾ د څېړۍ درخته. کوم چي په غرونو کي راشنه کيږي. مراد ځني د څېړۍ د درختي ګل (مازو) او له هغه څخه جوړ سوي مواد دي

چي په هغه سره به څرمني ته دباغت ورکول کېدی چي هغه ته "مازو" یا "ماجو" ویل کیږي، ﴿ذکّي﴾ په شرعي توګه ذبح کړی سوی (حلال کړی سوی) څاروی. ﴿یستوفي﴾ د استفعال مضارع ده: پوره اخیستل، ترلاسه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو غاصب د مسلمان شراب غصب کړي او له هغه څخه سرکه جوړه کړي یا د مردار څاروي پوست (څرمن) غصب کړي او هغه ته رنګ ورکړي، نو زموږ په نېز مالک ته دا اختیار سته چي که وغواړي نو له غاصب څخه دي دا سرکه واخلي (کوم چي مخکي شراب وه) او هغه ته دي هیڅ عوض نه ورکوي، لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي غاصب د شرابو په سرکه کولو کي هیڅ مال صرف کړی نه وي بلکي صرف د لمر په ذریعه یا په داسي بله قدرتي (او مفتکي) ذریعه یې هغه سرکه کړي وي، لېکن که غاصب د شرابو په سرکه کولو کي مال صرف کړی وي، نو په دې صورت کي مالک ته هغه وخت د دغه سرکې د اخیستلو اختیار سته کله چي د غاصب د مال عوض ورکړي، لکه څرنګه چي د دباغت په مسئله کي هم دا حکم دی چي که غاصب په یو قیمتداره شي مثلاً په مازو سره پوست (څرمني) ته دباغت ورکړی وي، نو د هغه قیمتداره شي (مازو) په عوض ورکولو سره مالک ته د پوست اخیستلو اختیار حاصلیږي.

والفرق إلخ: د سرکې او دباغت په دواړو مسئلو کي فرق دا دی چي شراب سرکه کول داسي دي لکه ناپاکه او مرداره کپړه پرېولل، او که څوک د چا مرداره کپړه غصب کړي او هغه پرېولي، نو په پرېوللو سره غاصب د هغه نه مالک کیږي، همداسي به د شرابو په سرکه کولو سره هم غاصب د هغه نه مالک کیږي بلکي مخلل شراب به د مالک په ملکیت کي پاتیږي او هغه ته به بلا عوضه د دغه سرکې اخیستلو اختیار وي. د دې په خلاف د مردار څاروي پوست ته دباغت ورکول داسي دي لکه مغصوبه کپړې ته رنګ ورکول، او څرنګه چي مغصوبه کپړې ته د رنګ ورکولو په صورت کي چي د رنګ په وجه د کپړې څومره قیمت اضافه سوی وي، هغه اضافي او زائد مقدار پر مالک لازمیږي، همداسي مغصوبه پوست ته د دباغت ورکولو په صورت کي چي د پوست څومره قیمت اضافه سوی وي، هغه به هم پر مالک لازم وي چي غاصب ته به یې ورکوي.

وبیانه إلخ: د دباغت په ذریعه چي د پوست په قیمت کي څومره اضافه او زیاتوب راغلی وي، د هغه د اندازه کولو طریقه دا ده چي یو وار دي د مذبوح غیر مدبوغ پوست قیمت معلوم کړی سي او بیا دي د مدبوغ قیمت معلوم کړی سي او دواړه قیمتونه دي سره موازنه کړی سي، نو په دوی کي چي کوم فرق راسي، هغه به ورکوي.

## د مذکوره سرکې او څرمنې د ضايع کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِنِ اسْتَهْلَكَهُمَا فرمايي: او که غاصب هغه سرکه او پوست تلف کړي ضَمِنَ الْخَلَّ وَلَمْ يَضْمَنِ الْجِلْدَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د سرکې ضامن کيږي او د پوست نه ضامن کيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا ۞: يَضْمَنُ الْجِلْدَ مَدْبُوغًا وَيُعْطِي مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې غاصب د مدبوغ [رنګ ورکړل سوي] پوښت ضامن کيږي او دباغت چې په هغه کې کوم څه [قيمت] اضافه کړي وي هغه به مالک و غاصب ته ورکوي وَلَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ او که دا پوست په خپله د غاصب په قبضه کې تلف سي [او د هغه په تلف کولو او هلاکولو کې د غاصب عمل لره هيڅ دخل نه وي] لَا يَضْمَنُهُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق غاصب د هغه نه ضامن کيږي أَمَّا الْخَلُّ فَلِأَنَّهُ لَمَّا بَقِيَ عَلَى مِلْكِ مَالِكِهِ وَهُوَ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ ضَمِنَهُ بِالْإِتْلَافِ کوم چې سرکه ده نو ځکه کله چې هغه د خپل مالک په ملکيت کې باقي ده او هغه قيمتداره مال دی نو [ښکاره خبره ده چې] د هغه په تلف کولو سره به غاصب د هغه ضامن کيږي وَيَجِبُ مِثْلُهُ او د هغه مثل به واجبيږي لِأَنَّ الْخَلَّ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ ځکه چې سرکه له مثلي شيانو څخه ده وَأَمَّا الْجِلْدُ فَلَهُمَا أَنَّهُ بَاقٍ عَلَى مِلْكِ الْمَالِكِ او کوم چې پوست دی نو [د هغه په هکله] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې پوست [هم] د مالک په ملکيت کې باقي دی حَتَّى كَانَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ همدا وجه ده چې مالک ته د هغه د اخيستلو اختيار سته وَهُوَ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ حال دا چې هغه [هم] قيمتداره مال دی فَيَضْمَنُهُ مَدْبُوغًا بِالِاسْتِهْلَاكِ وَيُعْطِيهِ الْمَالِكُ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ نو ځکه د تلف کولو په وجه به غاصب د مدبوغ پوست ضامن کيږي او دباغت چې په هغه کې کوم څه [قيمت] اضافه کړي وي، مالک به هغه و غاصب ته ورکوي كَمَا إِذَا غَصَبَ ثَوْبًا فَصَبَغَهُ ثُمَّ اسْتَهْلَكَهُ لکه کله چې څوک کپړه غصب کړي او هغې ته رنګ ورکړي بيا يې تلف کړي يَضْمَنُهُ وَيُعْطِيهِ الْمَالِكُ مَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ نو غاصب د هغه کپړې ضامن کيږي او رنګ چې په هغه کپړه کې کوم څه [قيمت] اضافه کړي وي، مالک به هغه وغاصب ته ورکوي وَلِأَنَّهُ وَاجِبُ الرَّدِّ او په دې وجه هم چې د

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:۴، ص:۹۶، ۹۷)، و ردّ المحتار (ج:۵، ص:۱۴۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶۳]

غصب کړی سوي شي [پوست] واپس کول واجب دي فَإِذَا فَوَّتَهُ عَلَيْهِ لېکن کله چي غاصب هغه ضايع کړي يَخْلُفُهُ قِيْمَتُهُ نو قيمت به د هغه قائم مقام کيږي كَمَا فِي الْمُسْتَعَارِ لکه څرنګه چي په مستعار شي کي [قيمت د هغه قائم مقام] کيږي وَبِهٰذَا فَارَقَ الْهَلَاكَ بِنَفْسِهِ او په همدې سره استهلاک [تلف کول] او هلاک بنفسه [په خپله تلف کېدل] سره جلا سول [يعني په همدې تفويت سره په استهلاک او هلاک کي فرق ثابت سو] وَقَوْلُهُمَا يُعْطِيْ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ مَحْمُوْلٌ عَلَى اخْتِلَافِ الْجِنْسِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دا قول "يعطي ما زاد الدباغ فيه" د جنس پر اختلاف محمول دی أَمَّا عِنْدَ اتِّحَادِهِ يُطْرَحُ عَنْهُ ذٰلِكَ الْقَدْرُ لېکن د جنس د يو والي په صورت کي به د پوست له ضمان څخه هغومره مقدار [يعني ما زاد الدباغ] کمول کيږي وَيُؤْخَذُ مِنْهُ الْبَاقِيْ او ما بقي ضمان به له هغه څخه اخيستل کيږي لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ فِي الْأَخْذِ مِنْهُ ثُمَّ فِي الرَّدِّ عَلَيْهِ ځکه چي له غاصب څخه په اخيستلو او بېرته هغه ته په واپس کولو کي هيڅ فايده نسته وَلَهُ: أَنَّ التَّقَوُّمَ حَصَلَ بِصُنْعِ الْغَاصِبِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا تقوّم [قيمتداره کېدل] د غاصب په فعل سره پيدا سوي دي وَصَنْعَتُهُ مُتَقَوِّمَةٌ او د هغه فعل قيمتداره دی لِاسْتِعْمَالِهِ مَالًا مُتَقَوِّمًا فِيْهِ ځکه چي هغه په دې فعل کي قيمتداره مال استعمال کړی دی وَلِهٰذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ په همدې وجه غاصب ته دا اختيار سته چي دا پوست [تر هغه وخته] را وګرځوي تر څو چي هغه څه [قيمت] ترلاسه کړي کوم چي دباغت په هغه پوست کي اضافه کړی دی فَكَانَ حَقًّا لَهُ نو ځکه دا تقوّم به د غاصب حق وي وَالْجِلْدُ تَبَعٌ لَهُ فِي حَقِّ التَّقَوُّمِ او د تقوّم په حق کي پوست د غاصب د فعل تابع دی ثُمَّ الْأَصْلُ وَهُوَ الصَّنْعَةُ غَيْرُ مَضْمُوْنٍ عَلَيْهِ بيا اصل يعني فعل پر غاصب مضمون نه دی [يعني د فعل ضمان پر هغه لازم نه دی] فَكَذَا التَّابِعُ نو همداسي به تابع هم [پر هغه مضمون نه] وي كَمَا إِذَا هَلَكَ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ لکه کله چي د غاصب له فعل څخه بغير هغه پوست ضايع سي [نو پر هغه ضمان نه لازميږي] بِخِلَافِ وُجُوْبِ الرَّدِّ حَالَ قِيَامِهِ په خلاف د پوست موجودېدلو په حالت کي د واپسي واجبېدلو [يعني په خلاف د هغه صورت کله چي مذکوره پوست موجود وي نو د هغه واپس کول ضروري دي] لِأَنَّهُ يَتْبَعُ الْمِلْكَ ځکه چي دا واپسي [واپس کول] د ملکيت تابع دي وَالْجِلْدُ غَيْرُ تَابِعٍ لِلصَّنْعَةِ فِي حَقِّ

الْمِلْكِ او د ملکيت په حق کي پوست د صنعت تابع نه دی لِثُبُوتِهِ قَبْلَهَا وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُتَقَوِّمًا ځکه چي ملکيت خو له صنعت څخه مخکي ثابت دی که څه هم هغه قيمتداره نه دی بِخِلَافِ الذَّكِيِّ وَالثَّوْبِ په خلاف د ذبح کړی سوي [حلال کړی سوي] څاروي د پوست او کپړې لِأَنَّ التَّقَوُّمَ فِيهِمَا كَانَ ثَابِتًا قَبْلَ الدَّبْغِ وَالصَّبْغِ ځکه چي په دې دواړو کي له دباغت ورکولو او رنګولو څخه مخکي تقوّم ثابت وو فَلَمْ يَكُنْ تَابِعًا لِلصَّنْعَةِ نو ځکه دا تقوّم به [د غاصب] د فعل تابع نه وي وَلَوْ كَانَ قَائِمًا فَأَرَادَ الْمَالِكُ أَنْ يَتْرُكَهُ عَلَى الْغَاصِبِ فِي هٰذَا الْوَجْهِ وَيُضَمِّنَهُ قِيمَتَهُ او که چيري دا پوست موجود وي او مالک وغواړي چي پوست په همدغه توګه غاصب ته پرېږدي او له هغه څخه د پوست د قيمت ضمان واخلي قِيْلَ: لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ نو ويل سوي دي: چي مالک ته د دې اختيار نسته لِأَنَّ الْجِلْدَ لَا قِيمَةَ لَهُ ځکه چي پوست لره هيڅ قيمت نسته بِخِلَافِ صَبْغِ الثَّوْبِ په خلاف د کپړې رنګولو لِأَنَّ لَهُ قِيمَةً ځکه چي کپړه [له رنګولو څخه مخکي هم] قيمت لري وَقِيْلَ: لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَعِنْدَهُمَا لَهُ ذٰلِكَ او ويل سوي دي: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه ته د دې اختيار نسته [لېکن] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه ته د دې اختيار سته لِأَنَّهُ إِذَا تَرَكَهُ عَلَيْهِ وَضَمَّنَهُ ځکه کله چي مالک دا پوست غاصب ته پرېږدي او له هغه څخه ضمان [تاوان] واخلي عَجَزَ الْغَاصِبُ عَنْ رَدِّهِ نو غاصب د هغه له واپس کولو څخه عاجزه سو فَصَارَ كَالِاسْتِهْلَاكِ نو دا د هلاکولو [تلف کولو] په څېر سوه وَهُوَ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ او استهلاک پر همدغه اختلاف دی کوم چي موږ بيان کړی ثُمَّ قِيْلَ: يُضَمِّنُهُ قِيمَةَ جِلْدٍ مَدْبُوغٍ وَيُعْطِيهِ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ بيا ويل سوي دي: چي مالک به له غاصب څخه د رنګ ورکړی سوي پوست [وچ کړی سوي څرمني] د قيمت ضمان اخلي او دباغت چي په هغه کي کوم څه [قيمت] اضافه کړی وي هغه به مالک و غاصب ته ورکوي كَمَا فِي الِاسْتِهْلَاكِ لکه څرنګه چي د هلاکولو په صورت کي کيږي وَقِيْلَ: يُضَمِّنُهُ قِيمَةَ جِلْدٍ ذَكِيٍّ غَيْرِ مَدْبُوغٍ او ويل سوي دي: چي مالک به له غاصب څخه د ذبح کړی سوي څاروي د نا رنګ کړی سوی پوست د قيمت ضمان اخلي وَلَوْ دَبَغَهُ بِمَا لَا قِيمَةَ لَهُ كَالتُّرَابِ وَالشَّمْسِ او که چيري غاصب

مغصوبه پوست ته په داسي شي سره دباغت ورکړي چې هغه قيمت نه لري لکه خاوري او لمر فَهُوَ لِمَالِكِهِ بِلَا شَيْءٍ نو هغه پوست بلا عوضه د مالک دی لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ غَسْلِ الثَّوْبِ ځکه چې دا د کپړې پرېولولو په شان دي وَلَوِ اسْتَهْلَكَهُ الْغَاصِبُ او که چيري غاصب مغصوبه پوست ضايع کړي يَضْمَنُ قِيمَتَهُ مَدْبُوغًا نو هغه د رنګ ورکړی سوي پوست د قيمت ضامن کيږي وَقِيلَ: طَاهِرًا غَيْرَ مَدْبُوغٍ او ويل سوي دي: چې د پاک [حلال] نا رنګ کړی سوي پوست د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّ وَصْفَ الدِّبَاغَةِ هُوَ الَّذِي حَصَّلَهُ ځکه چې د دباغت [رنګولو او وچولو] صفت همدې غاصب حاصل کړی دی فَلَا يَضْمَنُهُ نو ځکه دئ [غاصب] به د دغه وصف نه ضامن کيږي وَجْهُ الْأَوَّلِ وَعَلَيْهِ الْأَكْثَرُونَ: أَنَّ صِفَةَ الدِّبَاغَةِ تَابِعَةٌ لِلْجِلْدِ د اول قول (چې پر هغه زياتره مشايخ دي) دليل دا دی چې د دباغت وصف د پوست [څرمني] تابع دی فَلَا تُفْرَدُ عَنْهُ نو ځکه هغه به له پوست څخه نه عليحده کيږي وَإِذَا صَارَ الْأَصْلُ مَضْمُونًا عَلَيْهِ او کله چې د اصل [پوست] ضمان پر غاصب لازم سو فَكَذَا صِفَتُهُ نو همداسې به د هغه د وصف ضمان هم پر لازم وي.

**اللغات:** ﴿استهلك﴾ د استفعال د باب ماضي ده: هلاکول، ضايع کول، تلف کول او له منځه وړل، ﴿مدبوغ﴾ د نصر، فتح او ضرب د باب مفعول دی: رنګ ورکړی سوی پوست، هغه پوست (څرمن) چې د مسالي يا داسي نورو موادو په ذريعه د هغه لوند والي او بدبويي ليري کړل سوي وي، وچ کړی سوی پوست، ﴿مضمون﴾ د سمع د باب اسمِ مفعول دی: د کوم شي چې ضمان (تاوان) لازم وي، هغه شی چې ضمان يې ورکول کيږي، ﴿الصَّنْعَة﴾ کاريګري (عمل الصانع)، ﴿صُنْع﴾ عمل او فعل، کړنه، ﴿صَبْغ﴾ (بالفتح) د فتح او نصر د باب مصدر دی: کپړې ته رنګ ورکول (رنګول)، صِبْغ (بالکسر): رنګ، ﴿دِبَاغ﴾ د دباغ او دباغة تحقيق و تعريف څه مخکي تېر سو، ﴿ذكي﴾ په شرعي توګه ذبح کړی سوی ځاروی، ﴿تُفْرَد﴾ د نصر، سمع او کرم د باب مضارع مجهوله ده، د دې په صِله کي چې "عَنْ" راسي، نو معنیٰ يې ده: عليحده کېدل، جلا کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که غاصب مذکوره سرکه يا مدبوغ پوست مالک ته له ورکولو څخه مخکي تلف کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه صرف د سرکې ضامن کيږي، د پوست

نه ضامن کیږي، لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د مدبوغ کېدو په حساب سره د پوست هم ضامن کیږي (یعني غاصب به و مالک ته د مدبوغ پوست ضمان او تاوان ورکوي) او په دباغت سره چي څومره قیمت اضافه سوی وي، هغه به مالک و غاصب ته واپس ورکوي. او که هغه پوست د غاصب سره په خپله تلف سي، نو بالاجماع نه ضامن کیږي؛ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د اجماعي حکم دلیل نه دی ذکر کړی چي د هغه وجه صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله دا ذکر کړې ده چي د مجمع علیه حکم دلیل لره ضرورت نسته؛ ځکه د هغه دلیل خو په خپله اجماع ده.

أما الخل إلخ: د سرکې د ضامن کېدلو دلیل دا دی چي سرکه متقوّم (قیمتداره) مال دی او د مالک په ملکیت کي پاته ده: ځکه چي دا سرکه په اصل کي د انګورو اُوبه او د انګورو شیره وه کوم چي د شراب ګرځېدلو په وجه نا متقوّمه (نا قیمتداره) ګرځېدلې وه. لیکن د هغې په نا متقوّمه کېدو سره د مالک ملکیت نه زائلیږي، همدا وجه ده که یو څوک شراب غصب کړي نو مالک ته د هغه د واپس اخیستلو حق سته. معلومه سوه چي د ملکیت لپاره د تقوّم ضرورت نسته، او کله چي د دغه شرابو د سرکه ګرځېدلو په صفت سره د شرابو نجاست زائل سو، نو هغه د مخکي په څېر قیمتداره وګرځېده، نه دا چي د هغه تقوّم اوس ثابت سو. لهذا کله چي د هغه قیمتداره کېدل ثابت سوه، نو ځکه په تلف کولو سره به غاصب د هغه ضامن کیږي او څرنګه چي سرکه له مثلي شیانو څخه ده، نو ځکه په ضمان کي به د هغې مثل واجبیږي.

**د صاحبینو دلیل**: أما الجلد إلخ: او د پوست په هکله د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي هغه هم د مالک په ملکیت کي پاته دی او متقوّم مال دی. د متقوّم کېدو ثبوت خو موږ پورته ذکر کړی او د مالک په ملکیت کي د پاتېدلو دلیل دا دی چي غاصب په دغه پوست کي له خپل صنعت او فعل څخه بغیر بل هیڅ شی نه دی ثابت کړی او پیدا کړی، او صرف د هغه په فعل سره د مالک ملکیت نه زائلیږي. په همدې وجه مالک ته د هغه د اخیستلو اختیار سته. نو ځکه د هغه تلف کولو په وجه به غاصب د هغه د مدبوغ کېدلو په حساب سره ضامن کیږي او په دباغت سره چي کوم څه اضافه او زیاتوب سوی وي. هغه به مالک غاصب ته ورکوي. لکه کله چي یو څوک کپړه غصب کړي او له رنګ ورکولو څخه وروسته هغه تلف کړي. نو هغه د دې رنګول سوي کپړې ضامن کیږي او په رنګ چي سره د کپړې په قیمت کي کوم څه زیاتوب راغلی وي. هغه مالک ده ته ورکوي.

ولأنه واجب الردّ إلخ: دا د صاحبینو رحمهما الله دویم دلیل دی چي که دغه پوست تلف سوی نه وای بلکي موجود وای. نو پر غاصب به د هغه واپس کول واجب وای. لیکن څرنګه چي اوس غاصب هغه

تلف کړی دی، نو ځکه اوس به د هغه پر ځای د هغه قیمت واپس کول واجب وي، لکه څرنګه چې په مستعار شي کي کیږي یعني که یو څوک له یو چا څخه په خواست (عاریتاً) یو شی واخلي او بیا هغه تلف او ضایع کړي، نو پر تلف کونکي (مستعیر) په ضمان کي د هغه شي قیمت واجبیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په همدې سره د استهلاک (تلف کولو) او هلاکت (تلف کېدلو) په مینځ کي فرق ثابت سو چې په استهلاک کي تفویت کیږي او په هلاکت کي تفویت نه کیږي، نو په همدې وجه شریعت په استهلاک کي ضمان واجب کړی دی او هلاکت (په خپله تلف کېدل) یې له ضمان څخه بري کړي دي.

وقولهما يعطي إلخ: یعني صاحبینو چې کوم دا حکم کړی دی چې "غاصب د مدبوغ پوست ضامن کیږي (یعني غاصب به ومالک ته د مدبوغ پوست ضمان ورکوي) او په دباغت سره چې د پوست څومره قیمت اضافه سوی وي، هغه (اضافه سوی مقدار) به مالک وغاصب واپس ته ورکوي"، دا حکم پر هغه صورت محمول دی چې له غاصب څخه د مدبوغ پوست کوم ضمان او تاوان اخیستل کیږي، هغه له یوه جنس څخه وي او کوم اضافه سوی مقدار چې مالک وغاصب ته واپس ورکوي، هغه له بل جنس څخه وي، په دې توګه چې قاضي د پوست قیمت په دراهمو سره اندازه کړي او د دباغت قیمت په دنانیرو سره اندازه کړي یعني غاصب ته ووایي چې ته د دغه پوست په ضمان او تاوان کي مالک ته دومره دراهم ورکړه! او مالک ته ووایي چې د دباغت په وجه د دغه پوست په قیمت کي دومره دنانیر اضافه سوي دي، لهذا ته هغه غاصب ته ورکړه!، نو په داسي صورت کي به مالک و غاصب ته اضافه سوی مقدار ورکوي. لېکن که د دغو دواړو جنس متحد وي مثلاً له دواړو طرفونو څخه دراهم ورکول کیږي، نو دې ته ضرورت نسته چې مالک له غاصب څخه هغه (دضمان دراهم) واخلي او له هغه څخه اضافه سوی مقدار غاصب ته واپس ورکړي، بلکي مالک چې غاصب ته څومره مقدار ورکوي، هغه دي له خپل ذمې څخه کم کړي او ما بقي دي ځني واخلي؛ ځکه په دې کي هیڅ فایده نسته چې یو وار له غاصب څخه هغه واخیستل سي او بیا بیرته غاصب ته واپس کړل سي.

**د امام صاحب دلیل**: وله أن التقوّم حصل إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې په مذکوره پوست کي چې کوم تقوّم پیدا سوی دی، هغه د همدې غاصب په صنعت او محنت سره پیدا سوی دی، په دې معنیٰ چې هغه په دغه پوست کي یو قېمتي مال استعمال کړی دی، په همدې وجه غاصب ته د دې اختیار سته چې دا پوست تر هغه وخته له مالک څخه راوګرځوي، تر څو چې د دباغت په وجه اضافه سوی مقدار له هغه څخه واخلي، لهذا دغه تقوّم د غاصب حق دی، نو د غاصب صنعت (فعل) د تقوّم په حواله سره اصل دی او پوست د هغه تابع دی او اصل یعني د غاصب

صنعت(فعل) غیرِ مضمون دی (یعني پر غاصب د خپل فعل او کاریګرۍ ضمان نه لازمیږي)، نو ځکه تابع یعني پوست به هم غیرِ مضمون وي او پر غاصب به د هغه ضمان نه لازمیږي، لکه کله چې هغه په خپله تلف سي، نو بالاتفاق پر غاصب د هغه ضمان نه لازمیږي.

بخلاف وجوب الردّ إلخ: دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دویم دلیل "ولأنه واجب الردّ" جواب دی چې په خلاف د واپسۍ واجب کېدلو چې دا خو د ملکیت تابع دي او پوست د ملکیت په حق کې د دباغت تابع نه دی؛ ځکه چې ملکیت خو د غاصب له صنعت څخه مخکې ثابت وو که څه هم هغه متقوّم نه وو، حاصل دا چې د ضمان دار ومدار پر تقوّم (متقوّم کېدلو) دی او په تقوّم کې اصل صنعت دی او صنعت نه مضمون کېږي، نو کوم شی چې د هغه تابع دی، هغه به هم نه مضمون کېږي، او د واپس کولو دار ومدار پر ملکیت دی او په ملکیت کې اصل پوست دی او ملکیت د غاصب له صنعت (فعل) څخه مخکې مالک ته حاصل وو، نو ځکه د پوست د موجودېدلو په صورت کې به پر غاصب د هغه واپس کول واجب وي.

بخلاف الذکي إلخ: دا د صاحبینو د قیاس "کما إذا غصب ثوبًا" جواب دی، حاصل یې دا دی چې د مذبوح څاروي پر پوست او پر کپړې قیاس کول صحیح نه دي؛ ځکه چې په دغو شیانو کې له دباغت او رنګولو څخه مخکې تقوّم ثابت وي، لهذا دا تقوّم د غاصب د صنعت تابع نه سو، نو ځکه د دوی په تلف کولو سره پر غاصب ضمان لازمیږي.

ولو کان قائمًا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که دغه مغصوب مدبوغ پوست (چې هغه ته په یو قیمتداره شي سره دباغت ورکول سوی وي) د غاصب سره موجود وي او مالک وغواړي چې هغه غاصب ته پرېږدي او په ضمان (تاوان) کې د هغه قیمت ځني واخلي، نو ځیني مشایخو ویلي دي چې بالاتفاق مالک ته د دې اختیار نسته؛ ځکه چې له دباغت څخه مخکې د مردار (غیرِ مذبوح) څاروي پوست هیڅ قیمت نه لري. په خلاف د رنګول سوي کپړې چې هغه له رنګولو څخه مخکې هم قیمت لري. او ځیني مشایخو ویلي دي چې دغه عدم اختیار د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز مالک ته د دې اختیار سته؛ ځکه کله چې مالک غاصب ته مغصوب پوست پرېښووی او له هغه څخه یې ضمان (تاوان) واخیستی او د دباغت قیمت یې نه ورکړی، نو ښکاره خبره ده چې غاصب د هغه له واپس کولو څخه عاجزه سو، نو دا داسي سوه لکه غاصب چې په خپله هغه هلاک او تلف کړي او د هلاکولو (استهلاک) په صورت کې هم دغسي اختلاف دی.

ثم قیل یضمنه إلخ: بیا چې څرنګه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز مالک ته د مدبوغ پوست د ضمان اخیستلو اختیار سته، نو د ضمان اخیستلو په هکله د مشایخو دوه قوله دي چې مالک به څرنګه

ضمان اخلي: ① يو قول دا دی چې مالک به له غاصب څخه په ضمان کې د مدبوغ پوست قيمت اخلي او د غاصب د فعل (دباغت) په وجه چې د دغه پوست قيمت څومره اضافه سوی وي، هغه به وغاصب ته ورکوي، لکه څرنګه چې د مدبوغ پوست د هلاکولو (تلف کولو) په صورت هم دغه حکم سوی دی. ② دویم قول دا دی چې مالک به له غاصب څخه په ضمان کې د مذبوح (پاک) او غیرِ مدبوغ پوست قيمت اخلي (د دباغت عوض به نه ورکوي).

ولو دبغه بما لا قيمة له إلخ: مذکوره تفصیل خو په هغه صورت کې دی کله چې غاصب مغصوب پوست ته په قیمتداره شي سره دباغت ورکړی وي، او که هغه په داسې شي سره دباغت ورکړی وي کوم چې هیڅ قیمت نه لري، مثلاً د خاورو په ذریعه یا لمر ته د ایښوولو په ذریعه یې مدبوغ کړی وي، نو بیا دا پوست بلا عوضه (مُفت) د مالک کیږي چې د هغه په بدله کې به غاصب ته هیڅ نه ورکوي؛ ځکه دا داسې ده لکه مغصوبه کپړه پړېولل. او که غاصب په دې صورت کې دغه پوست تلف او ضایع کړي، نو د جمهورو مشایخو په نېز هغه د مدبوغ پوست د قیمت ضامن کیږي او د ځینې مشایخو په نېز د مذبوح غیرِ مدبوغ پوست د قیمت ضامن کیږي؛ ځکه چې دلته غاصب په نا قیمتداره شي سره دباغت ورکړی دی او بیا دا دباغت د هغه خپل فعل دی او په خپل فعلِ سره یې دا وصف پیدا کړی دی، نو ځکه غاصب به د مدبوغ پوست نه ضامن کیږي. د اول قول یعني د زیاتره مشایخو د قول دلیل دا دی چې وصفِ دباغت خو د پوست تابع دی او د هغه سره متصل دی، او څرنګه چې پر غاصب د اصل یعني د پوست ضمان لازم دی، نو ځکه د هغه د وصف (دباغت) ضمان به پر هم لازم وي، لهذا هغه به په ضمان کې د مدبوغ پوست (پوست او دباغت دواړو) قیمت ورکوي.

## د مالګې یا د سرکې په ذریعه شراب سُرکه ګرځول (حکم او تفصیل)

وَلَوْ خَلَّلَ الْخَمْرَ بِإِلْقَاءِ الْمِلْحِ فِيْهِ او که غاصب په مغصوبه شرابو کې د مالګې په اچولو سره هغوی سرکه جوړ کړي قَالُوا: عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ صَارَ مِلْكًا لِلْغَاصِبِ وَلَا شَيْءَ لَهُ عَلَيْهِ نو مشایخو فرمایلي دي: چې د امام صاحب په نېز دا سرکه د غاصب ملکیت ګرځي او پر غاصب د مالک لپاره هیڅ شی نه لازمیږي وَعِنْدَهُمَا أَخَذَهُ الْمَالِكُ وَأَعْطٰى مَا زَادَ الْمِلْحُ فِيْهِ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به مالک دا سرکه اخلي او مالګې چې په هغه کې کوم څه [د قیمت] زیاتوب کړی وي مالک به هغه و غاصب ته ورکوي بِمَنْزِلَةِ دَبْغِ الْجِلْدِ لکه څرنګه چې د پوست د دباغت همدا حکم دی [کوم چې څه مخکې تېر سو] وَمَعْنَاهُ هٰهُنَا أَنْ يُعْطِيَ مِثْلَ وَزْنِ الْمِلْحِ مِنَ الْخَلِّ او دلته د "مَا زَادَ الْمِلْحُ" د ورکولو مطلب دا

دی چي مالک به وغاصب ته د مالکي د وزن په اندازه سرکه ورکوي وَإِنْ أَرَادَ الْمَالِكُ تَرْكَهُ عَلَيْهِ وَتَضْمِيْنَهُ او که مالک د غاصب سره د سرکې پرېښوولو او له غاصب څخه د ضمان اخيستلو اراده وکړي ايعني که مالک وغواړي چي هغه سرکه غاصب ته پرېږدي او له هغه څخه تاوان واخلي] فَهُوَ عَلَىٰ مَا قِيْلَ وَقِيْلَ فِي دَبْغِ الْجِلْدِ نو دا پر همغه دوو قولونو دي کوم چي د پوست [څرمني] د دباغت په هکله ويل سوي دي وَلَوِ اسْتَهْلَكَهَا او که چيري غاصب دا سرکه هلاکه کړي لَا يَضْمَنُهَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز غاصب د هغه نه ضامن کيږي خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله كَمَا فِي دَبْغِ الْجِلْدِ لکه څرنګه چي د پوست د دباغت په هکله [د امام صاحب او صاحبينو اختلاف] دی وَلَوْ خَلَّلَهَا بِإِلْقَاءِ الْخَلِّ فِيْهَا او که غاصب په شرابو کي د سرکې په اچولو سره هغوی سرکه جوړ کړي فَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ إِنْ صَارَ خَلًّا مِنْ سَاعَتِهِ نو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي که شراب په هغه ګړي سرکه وګرځي يَصِيْرُ مِلْكًا لِلْغَاصِبِ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو هغه د غاصب ملکيت ګرځي او پر هغه هيڅ ضمان نه لازميږي لِأَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ لَهُ ځکه چي دا د شرابو هلاکول اضايع کول] دي وَهُوَ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ حال دا چي هغه [د مسلمان په حق کي] نا قيمته دي وَإِنْ لَمْ تَصِرْ خَلًّا إِلَّا بَعْدَ زَمَانٍ او که شراب څه وخت وروسته سرکه وګرځي بِأَنْ كَانَ الْمُلْقَىٰ فِيْهِ خَلًّا قَلِيْلًا په دې توګه چي په هغه کي لږ سرکه اچول سوې وي فَهُوَ بَيْنَهُمَا عَلَىٰ قَدْرِ كَيْلِهِمَا نو دا سرکه د مالک او غاصب په مينځ کي د دوی د کَيل [پيمانې] په اندازه مشترکه کيږي لِأَنَّ خَلْطَ الْخَلِّ بِالْخَلِّ فِي التَّقْدِيْرِ ځکه چي [دلته] غاصب ګواکي سرکه د سرکې سره ګډه کړې ده [په بله وينا: ځکه چي غاصب مآلاً (عاقبةً) سرکه د سرکې سره ګډه کړې ده] وَهُوَ عَلَىٰ أَصْلِهِ لَيْسَ بِاسْتِهْلَاكٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله پر اصل داسي ګډول استهلاک نه دي وَعِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ هُوَ لِلْغَاصِبِ فِي الْوَجْهَيْنِ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کي هغه سرکه د غاصب کيږي او پر هغه هيڅ شی نه لازميږي لِأَنَّ نَفْسَ الْخَلْطِ اسْتِهْلَاكٌ عِنْدَهُ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خودي ګډول استهلاک دي وَلَا ضَمَانَ فِي الِاسْتِهْلَاكِ او [دلته] په هلاکولو کي هيڅ ضمان نسته لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مِلْكَ نَفْسِهِ ځکه چي هغه د خپل

ځان ملکيت هلاک کړی دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَضْمَنُ بِالِاسْتِهْلَاكِ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په اول صورت کي غاصب په استهلاک [هلاکولو] سره نه ضامن کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَيَضْمَنُ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي او په دويم صورت کي ضامن کيږي لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مِلْكَ غَيْرِهِ ځکه چي هغه د بل چا ملکيت تلف کړی دی وَبَعْضُ الْمَشَايِخِ أَجْرَوْا جَوَابَ الْكِتَابِ عَلَى إِطْلَاقِهِ أَنَّ لِلْمَالِكِ أَنْ يَأْخُذَ الْخَلَّ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ او بعضي مشايخو د قدوري [متن] حکم پر خپل اطلاق جاري کړی دی چي مالک ته په ټولو صورتونو کي بلا عوضه د هغه سرکې د اخيستلو اختيار سته لِأَنَّ الْمُلْقَى فِيهِ يَصِيرُ مُسْتَهْلَكًا فِي الْخَمْرِ ځکه کوم شی چي ور اچول سوی دی هغه په شرابو کي هلاک سوی ګرځي فَلَمْ يَبْقَ مُتَقَوِّمًا نو هغه قيمتداره پاته نه سو وَقَدْ كَثُرَتْ فِيهِ أَقْوَالُ الْمَشَايِخِ او په دې باره کي د مشايخو ډېر قولونه [نقل سوي] دي وَقَدْ أَثْبَتْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او په "کفايةُ المنتهي" کي موږ هغوی ثابت کړي [بيان کړي] دي.

**اللغات**: ﴿خَلَّلَ﴾ د تفعيل ماضي ده: سرکه کول، سرکه جوړول (سرکه ګرځول)، ﴿إِلْقَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: اچول (ور اچول)، الْمُلْقَى: ور اچول سوی، ﴿كَيْل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پيمانه کول (يو شی د خپل حجم په اعتبار سره اندازه کول مثلاً غنم په کاسه يا بل لوښي سره اندازهکول. او د وزن په اعتبار سره د شي اندازه کولو ته وزن کول او تلل وايي)، ﴿خَلْط﴾ د ضرب د باب مصدر دی: يو شی د بل شي سره ګډول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غاصب شراب غصب کړي او د مالکي په ذريعه هغه سرکه وګرځوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا سرکه د غاصب کيږي او پر غاصب د مالک لپاره هيڅ ضمان (تاوان) نه لازميږي؛ ځکه چي شراب د مسلمان په حق کي متقوّم (قيمتداره) نه دي او مالګه متقوّم ده. نو غاصب په خپل متقوّم مال سره يو نا متقوّم شی قيمتداره ګرځولی دی، لهذا د غاصب جانب لره به ترجيح وي، نو ځکه غاصب به له څه تاوان څخه بغير د هغه مالک کيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چي مالک به دغه مخلل شراب اخلي او د مالګي په وجه چي د هغه په قيمت کي کوم زياتوب او اضافه راغلې وي، هغه به غاصب ته ورکوي، لکه څرنګه چي د پوست (څرمني) د دباغت په مسئله کي کيږي.

وإن أراد المالك إلخ: په مذکوره صورت کي که مالک دا وغواړي چي سرکه غاصب ته پرېږدي او له هغه څخه ضمان (تاوان) واخلي، نو په دې باره کي هم د مشايخو هغه دوه قولونه دي کوم چي د دباغت په مسئله کي ذکر سوه، يعني د بعضو په نېز بالاتفاق مالک ته د دې اختيار نسته؛ ځکه چي له سرکه وړ اچولو څخه مخکي د شرابو هيڅ قيمت نه وو. او د بعضو په نېز د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم دا حکم دی او د صاحبينو په نېز مالک له هغه څخه ضمان اخيستلای سي.

او که غاصب مذکوره سرکه تلف او ضايع کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه نه ضامن کيږي او د صاحبينو په نېز ضامن کيږي، لکه څرنګه له دباغت ورکولو څخه وروسته د پوست تلف کولو همدا حکم دی.

ولو خلّلها بإلقاء الخلّ: د دې حاصل دا دی چي که غاصب په مغصوبه شرابو کي سرکه واچوي او د سرکې په ذريعه شراب سرکه وګرځوي، نو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی چي که دغه شراب سمدستي سرکه وګرځي، نو هغه د غاصب ملکيت ګرځي او پر هغه هيڅ ضمان هم نه لازميږي؛ ځکه که څه هم هغه دا شراب هلاک کړي او تلف کړي دي، ليکن شراب د مسلمان په حق کي متقوّم مال نه دي او د غير متقوّم مال استهلاک د ضمان مُوجب نه دي فلا يضمنه الغاصب. او که چيري غاصب په مغصوبه شرابو کي معمولي سرکه واچوي چي هغوی څه وخت وروسته سرکه وګرځي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا سرکه د غاصب او مالک دواړو په مينځ کي مشترکه کيږي او هر يوه ته به د خپل مال يعني د شراب او (وراچول سوي) سرکې په اندازه سرکه ورکول کيږي؛ ځکه که څه هم دلته غاصب ابتداءً شراب او سرکه سره ګډ کړي دي ليکن اخيراً او عاقبةً هغه سرکه د سرکې سره ګډه کړې ده او سرکه د سرکې سره ګډول استهلاک نه دی، نو ځکه دا سرکه به د دوی په مينځ کي مشترکه کيږي او د دوی په مينځ کي به د خپل ملکيت په حساب سره تقسيميږي. همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دی. (بنايه ج: ۱۰، ص: ۳۱۰)

د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کي يعني برابره ده هغه شراب سمدستي سرکه وګرځي يا څه وخت وروسته سرکه وګرځي (په دواړو صورتونو کي) غاصب د هغه مالک کيږي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په يوه صورت کي هم پر هغه ضمان نه لازميږي، ليکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دويم صورت (يعني د څه وخت وروسته سرکه ګرځېدلو په صورت) کي د استهلاک په وجه غاصب ضامن کيږي؛ څکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي د دواړو ملکيتونه سره

ځلا دي، نو د استهلاک په وجه به غاصب د بل چا (مالک) د ملکیت هلاکونکی وي او د بل چا د ملکیت استهلاک د ضمان مُوجب دی.

وبعض المشايخ إلخ: فرمايي: چي په دې سلسله کي د بعضي مشايخو رايه دا ده چي برابره ده غاصب د نامتقوّم (نا قيمتداره) شي په ذريعه مغصوبه شراب سرکه وګرځوي، يا د مالګي يا سرکې په ذريعه يې سرکه وګرځوي، په دريو سره صورتونو کي دغه سرکه د مالک کيږي او پر مالک د هغې هيڅ عوض او تاوان نه لازميږي؛ ځکه کوم شی چي غاصب په شرابو کي اچولی دی هغه په شرابو کي سره تللی او هلاک سوی دی او د هغه هيڅ قيمت او ماليت نه دی پاته سوی، او د نا قيمتداره مال استهلاک د ضمان مُوجب نه دی، نو په دې وجه بعضي مشايخو دلته د "للمالك أن يأخذ الخلّ في الوجوه كلّها بغير شيء" حکم کړی دی. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې باره کي له مشايخو څخه ډير اقوال نقل سوي دي کوم چي موږ په کفايت المنتهي کي بيان کړي دي، چي له هغوی څخه يو قول د هدايې په حاشيه کي هم ذکر سوی دی.

## د ساز او موسيقۍ د آلاتو د ماتولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ كَسَرَ لِمُسْلِمٍ بَرْبَطًا أَوْ طَبْلًا أَوْ مِزْمَارًا أَوْ دُفًّا فرمايي: او څوک چي د يو مسلمان باجه يا ډول يا شپېلۍ يا دريه ماته کړي أَوْ أَرَاقَ لَهُ سَكَرًا أَوْ مُنَصَّفًا يا هغه د مسلمان سَكَر يا منصف شراب وبيوي [چپه کړي] فَهُوَ ضَامِنٌ نو هغه ضامن دی [يعني پر ماتونکی او بيونکی کس د دغو شيانو ضمان (تاوان) لازم دی] وَبَيْعُ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ جَائِزٌ او د دغو شيانو بيع جائز ده وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ*: لَا يَضْمَنُ وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه نه ضامن کيږي او د دې شيانو بيع نه جائز کيږي وَقِيْلَ: اَلِاخْتِلَافُ فِي الدُّفِّ وَالطَّبْلِ الَّذِي يُضْرَبُ لِلَّهْوِ او ويل سوي دي [يعني يو قول دا دی]: چي دغه اختلاف په هغه دريه او ډول کي دی کوم چي د لهو ولعب لپاره وهل کيږي فَأَمَّا طَبْلُ الْغُزَاةِ وَالدُّفُّ الَّذِي يُبَاحُ ضَرْبُهُ فِي الْعُرْسِ او پاته سو د غازيانو

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة داماد افندي رَحِمَهُ الله: ومن كسر لمسلم بربطًا أوطبلا...أو أراق له سكرا ومنصفا... وقالا: لا يضمن ولا يجوز بيعها؛ لأن هٰذه الأشياء أُعدت للمعصية، فيبطل تقوّمها. وبقولهما قالت الأئمة الثلاثة وعليه الفتوى، لفساد الزمان فيما بين الناس (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۹۷، ۹۸)، وكذا في الدر المختار (ج:۵، ص:۱۴۹)، الهندية (ج:۵، ص:۱۳۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶۴]

ډول او هغه دريه چي په واده کي د هغه وهل روا دي يَضْمَنُ بِالْإِتْلَافِ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ نو د هغوی په ضايع کولو [او ماتولو سره] غاصب بېله خلافه [بالاتفاق] ضامن کيږي وَقِيلَ: الْفَتْوَى فِي الضَّمَانِ عَلَى قَوْلِهِمَا او ويل سوي دي: چي د ضمان [تاوان] په باره کي فتویٰ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول ده وَالسَّكَرُ اسْمٌ لِلنِّيْءِ مِنْ مَاءِ الرُّطَبِ إِذَا اشْتَدَّ او سَکَر د خرماوو د کچه اوبو نوم دی کله چي هغه ګاټه سي [يعني د خُرما کچه (اومې) اوبه چي کله ښه خنډي سي نو هغوی ته سَکَر ويل کيږي] وَالْمُنَصَّفُ مَا ذَهَبَ نِصْفُهُ بِالطَّبْخِ او منصف [د انګورو] هغه شېره ده چي په پخولو سره د هغه نيمه حصه ختمه سوې وي [يعني د انګورو اُوبه چي دومره پر اُور پخې کړل سي چي نيمه حصه يې ختمه سي . نو هغه ته منصف ويل کيږي] وَفِي الْمَطْبُوخِ أَدْنَى طَبْخَةٍ وَهُوَ الْبَاذَقُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رِوَايَتَانِ فِي التَّضْمِينِ وَالْبَيْعِ او [د انګورو] هغه شېره کوم چي معمولي پخه کړل سوې وي او همدا باذق دی. [د هغه] د ضامن کولو او بيع جائز کېدلو په هکله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دي لَهُمَا: أَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ أُعِدَّتْ لِلْمَعْصِيَةِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دغه شيان د معصيت [او ګناه] لپاره تيار کړل سوي دي فَبَطَلَ تَقَوُّمُهَا كَالْخَمْرِ نو ځکه د شرابو په څېر د دوی قيمتداره کېدل هم باطل سوه وَلِأَنَّهُ فَعَلَ مَا او ځکه دلته چي هغه [ماتونکي او بيونکي کس] کوم څه کړي دي [يعني د موسيقۍ د آلاتو ماتول. سَکَر او منصف شراب چپه کول] فَعَلَ آمِرًا بِالْمَعْرُوفِ وَهُوَ بِأَمْرِ الشَّرْعِ هغه يې د امر بالمعروف کوونکي په توګه يعني د شريعت په حکم سره کړي دي فَلَا يَضْمَنُهُ نو ځکه هغه به نه ضامن کيږي كَمَا إِذَا فَعَلَ بِإِذْنِ الْإِمَامِ لکه [په هغه صورت کي چي نه ضامن کيږي] کله چي هغه دا کار د امام په اجازت سره وکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهَا أَمْوَالٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مذکوره شيان هم مالونه دي لِصَلَاحِيَّتِهَا لِمَا يَحِلُّ مِنْ وُجُوهِ الِانْتِفَاعِ ځکه چي دغه شيان صلاحيت لري د انتفاع د هغو طريقو کوم چي حلال [روا] دي [يعني په دغو شيانو کي په حلالو طريقه سره د نفع ورکولو او نفع اخيستلو صلاحيت موجود دی] وَإِنْ صَلُحَتْ لِمَا لَا يَحِلُّ که څه هم د هغه طريقو صلاحيت هم لري کوم چي حلال نه دي [يعني که څه هم دا شيان په حرامو طريقو سره د نفع ورکولو قابل هم دي] فَصَارَ كَالْأَمَةِ

الْمُغَنِّيَةِ نو دا د غزلچي [سروز ګره] مينځي په څېر سوه [يعني د دوی حالت او حکم د سروز ګرې مينځي په څيري سوا] وَهٰذَا لِأَنَّ الْفَسَادَ بِفِعْلِ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ او دا ځکه چي دلته کوم فساد دی هغه د اختيارمن فاعل د فعل په وجه دی [يعني هغه په خپل فعل (ماتولو او بيولو) کي مختار دی] فَلَا يُوجِبُ سُقُوطَ التَّقَوُّمِ نو ځکه دا به د تقوّم د ساقطېدلو مُوجب [سبب] نه ګرځي وَجَوَازُ الْبَيْعِ وَالتَّضْمِينُ مُرَتَّبَانِ عَلَى الْمَالِيَّةِ وَالتَّقَوُّمِ او د بيع جائز کېدل او ضامن کول دواړه پر ماليت او تقوّم مُرتّب [او مبني] دي وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ بِالْيَدِ إِلَى الْأُمَرَاءِ او د لاس په ذريعه امر بالمعروف کول اميرانو [او حاکمانو] لره حواله دي [يعني په زور او قوت سره امر بالمعروف کول د حاکمانو کار دی] لِقُدْرَتِهِمْ ځکه چي همدوی [پر دې] قادر دي وَبِاللِّسَانِ إِلَى غَيْرِهِمْ او په ژبه سره امر بالمعروف کول [زباني امر بالمعروف] له اميرانو څخه بغير نورو خلکو لره حواله دی وَتَجِبُ قِيمَتُهَا غَيْرَ صَالِحَةٍ لِلَّهْوِ او د دغو شيانو قيمت د لهو د نه قابل کېدلو په حساب سره واجبيږي [مثلاً خاص د باجې يا ډول قيمت نه واجبيږي. بلکي د هغوی د لرګيو چي څومره قيمت وي، هغه واجبيږي] كَمَا فِي الْجَارِيَةِ الْمُغَنِّيَةِ وَالْكَبْشِ النَّطُوحِ وَالْحَمَامَةِ الطَّيَّارَةِ وَالدِّيكِ الْمُقَاتِلِ وَالْعَبْدِ الْخَصِيِّ تَجِبُ الْقِيمَةُ غَيْرَ صَالِحَةٍ لِهٰذِهِ الْأُمُورِ لکه څرنګه چي په بدلچي [سروز ګره] مينځه کي، جنګي [ښکر وهونکي] مرږ کي، الوځونکي کوتره کي، جنګي چرګ او خصي غلام کي چي د دغه کارونو د نه قابل کېدلو په حساب سره قيمت واجبيږي كَذَا هٰذَا نو همداسي به دا هم وي [يعني همدغسي به د باجه او داسي نورو مذکوره شيانو قيمت د لهو د نا قابل والي په حساب سره واجبيږي] وَفِي السَّكَرِ وَالْمُنَصَّفِ تَجِبُ قِيمَتُهُمَا وَلَا يَجِبُ الْمِثْلُ او په سکر او منصف شرابو کي د دوی قيمت واجبيږي او مثل يې نه واجبيږي لِأَنَّ الْمُسْلِمَ مَمْنُوعٌ عَنْ تَمَلُّكِ عَيْنِهِ ځکه چي مسلمان د دوی د ذات له مالک جوړېدو څخه منع سوی دی [يعني مسلمان له دې څخه منع سوی دی چي داسي شربت واخلي او مالک يې جوړ سي] وَإِنْ كَانَ لَوْ فَعَلَ او که [بيا هم] هغه داسي وکړي [يعني د دوی مِثل واخلي] جَازَ نو جائز دي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَتْلَفَ عَلَى نَصْرَانِيٍّ صَلِيبًا او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي يو څوک د نصراني [عيسايي] صليب ضايع کړي حَيْثُ يَضْمَنُ قِيمَتَهُ صَلِيبًا نو ضايع کونکی د هغه د صليب کېدلو د

قيمت ضامن کيږي [يعني پر هغه د سم او روغ صليب ضمان واجبيږي] لِأَنَّهُ مُقَرٌّ عَلٰى ذٰلِكَ ځکه نصراني پر خپل دين باقي پرېښوول سوی دی.

**اللغات:** ﴿کسر﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ماتول. ﴿بربط﴾ معرب لفظ دی (يعني له عجمي څخه عربي ته را اوښتی لفظ دی): يو خاص قسم باجه ده، دا لفظ په اصل کي له بَر او بَط څخه مرکب دی چي د بَر معنیٰ ده: سينه او د بَط معنیٰ ده: بطه، نو د بربط خپله معنیٰ ده: د بطي سينه. ﴿طبل﴾ ډول، کوم چي د موسيقۍ له آلو څخه مشهوره آله ده. ﴿مزمار﴾ شپېلۍ، تولۍ. ﴿دُف﴾ دريه، دريا. ﴿أَرَاقَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: بيول (بهول)، چپه کول. ﴿اللهو﴾ عربي قاموسونويسو داسي تعريف کړی دی: ①... "التَّرْوِيحُ عَنِ النَّفْسِ بِمَا لَا تَقْتَضِيْهِ الْحِكْمَةُ" (په داسي کار او داسي شي سره نفس ته راحت او سکون ورکول چي هغه بالکل د حکمت او پوهی خلاف وي)، ② د نفسي خواهش لوبي او بازۍ، ③ لغو او بې ځايه کار. ﴿السَّکَر﴾ هر نشه داره شربت، دلته ځني مراد د تازه خرما هغه اوبه (شربت) دي کوم چي دومره وايشول سي چي سخت او ګاټه وګرځي (د احنافو په نېز د سَکَر تعريف همدا دی). ﴿مُنَصَّف﴾ د انګورو هغه اوبه (شېره) کوم چي دومره پخې کړل سي چي نيمه حصه يې ختمه سي او نيمه حصه پاته سي. ﴿بَاذِق﴾ د انګورو هغه اوبه کوم چي معمولي پخې کړل سي (يعني له نيمايي څخه کمه حصه يې ختمه سي او زياته حصه يې پاته سي) او نشه پکښې راسي، او دې ته په عربي کي "قنديد" هم ويل کيږي. ﴿عُرْس﴾ د دې لفظ خپله معنیٰ ده: زفاف يعني ناوې د خاوند کور ته استول (ناوکۍ د مېړه کور ته بېول)، کوم ته چي واده ويل کيږي، او په حاشيه کي د دې تعريف په "مجلس النكاح" سره سوی دی، خو د لغت په عامو کتابو کي يې دا معنیٰ منقوله نه ده. ﴿النَّيء﴾ کچه، اُوم، نا پوخ. ﴿أُعِدَّت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده: تيارول، چمتو کول. ﴿مُغَنِّيَة﴾ بدله او سندره ويونکې ښځه (بدلچي او سندرغاړې ښځه، سروزګره). ﴿کَبْش﴾ مږ، نر پسه. ﴿النطوح﴾ ښکر وهونکی (ښکر غورځونکی). ﴿حمامة﴾ کوتره. ﴿طيّارة﴾ الوتونکې، مراد ځني هغه کوتره ده کوم چي يې (په کپس او داسي نورو کي) ساتي او د بازۍ

په توګه يې الوځوي، ﴿تَمَلُّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: د يو شي مالک کېدل، مالک جوړېدل. ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: ضايع کول، بربادول. ﴿مُقَرّ﴾ د افعال د باب مفعول دی، أَقَرَّ يُقِرُّ: د دغه باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: باقي پرېښوول، برقرار ساتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د يو مسلمان د ساز او موسيقۍ آلات مثلاً ډول، باجه او داسي نور مات کړي، يا د هغه د خُرما يا انګورو نشه داره شربت چپه او ضايع کړي، نو پر ماتونکي او ضايع کونکي کس په ضمان (تاوان) کي د دغو شيانو قيمت واجبيږي، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د مذکوره شيانو په ماتولو او ضايع کولو سره هيڅ ضمان او تاوان نه لازميږي او نه د دوی بيع جائز کيږي؛ ځکه دغه شيان د لهو ولعب له آلو څخه دي او د دوی ضايع کونکی او له دوی څخه د خلکو منع کونکی د نبي کريم ﷺ په دغه فرمان عمل کونکی دی "مَنْ رَأَىٰ مِنكُمْ مُنكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ إلخ" کوم چي د شريعت مطالبه او د حالاتو تقاضا ده، او لهو ولعب مُفضِي الي المعصية او باطل دي او څرنګه چي شراب اُمّ الخبائث دي او د هغوی تقوّم باطل دی، همداسي په باجه، ډول او داسي نورو کي هم خباثت سته او د دوی تقوّم هم باطل دی او د غيرِ متقوّم (نا قيمتداره) شيانو په ضايع کولو سره ضمان نه لازميږي، نو ځکه په دې مسئله کي به پر فاعل ضمان نه لازميږي. متأخرينو مشايخو او فقهاؤ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول مفتیٰ به ګرځولی دی؛ ځکه چي اوس د خلکو حالات ډېر خراب سوي دي او هر کس د لهو ولعب شوقي ليدل کيږي، نو په داسي حالاتو کي د ضمان په واجبولو سره به خلکو ته حرج لاحق سي، والحَرَج مدفوعٌ في الشرع.

**ولأبي حنيفة إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي مذکوره شيان في نفسه قيمتداره دي خو له دوی څخه غلطه او ناجائزه فايده اخيستل کيږي، لېکن په غلط استعمالولو سره (د دوی) ماليت نه باطليږي، نو ځکه د دوی ضايع کونکي به ضامن کيږي، او د دوی حالت د بدلچي سروز ګوي مينځي په څېر دی چي که له هغې څخه د سروز او سندرو کار اخيستل کيږي نو حرام دي او که د خدمت کار ځني اخيستل کيږي نو حلال او روا دي، همدغسي د سَکَر او مُنصّف استعمال د لهو ولعب په توګه

ناجائز دي او نه سرکه ځني جوړ کړل سي نو حلال دي. وجه يې دا ده چي حرام کار ځني اخيستل حرام دي. دلته د اختيارمن فاعل په اختياري فعل سره دي. نه دا چي په محل (مذکوره شيانو) کي فساد سته. محل خو قيمتداره مال دي. نو ځکه د دوی په تلف کولو او ضايع کولو سره به هغه ضامن کيږي. او بل دا چي د دوی ضائع کېدل او ضمان واجبېدل د دوی پر ماليت او تقوم مرتب دي او په دوی کي ماليت او تقوم موجود دي. نو ځکه بيع به يې جائز کيږي او ضايع کونکی به يې ضامن کيږي.

او پاته سو د صاحبينو رحمهما الله دا وينا موږ نه تسليموو چي "د دغو شيانو ضايع کونکی د امر بالمعروف پر بنا، داسي کوي نو ځکه د هغه دا فعل د شريعت عين سطابق دی"؛ ځکه چي د "فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ" مصداق او محمل اميران او حاکمان دي. لهذا که چيري دغه کار امير وکړي يا يې بل څوک د امير په حکم او اجازت سره وکړي. نو بيا خو ضمان نه لازميږي. ليکن که يو عام کس دا کار وکړي او هغه هم د امير او امام له اجازت څخه بغير، نو پر هغه به ضمان لازميږي؛ ځکه چي له اميرانو څخه بغير د نورو کسانو په حق کي د امر بالمعروف دائره "فَإِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ" ده.

وتجب قيمتها إلخ: بيا د مذکوره شيانو قيمت په دې حساب سره واجبيږي چي هغوی به د لهو ولعب قابل او لائق نه وي او د سروز او موسيقی د قابل کېدلو په حساب سره يې قيمت نه واجبيږي، لکه څرنګه چي يو څوک د بل چا سروزه ګره مينځه، يا خصي سوی غلام، يا جنګي چرګ هلاک او ضايع کړي. نو صرف د دوی قيمت واجبيږي او په قيمت کي د سروز، خصي والي او جنګي والي لحاظ نه کيږي.

وفي السكر والمنصف إلخ: فرمايي چي د سَکَر او مُنَصَّف د چپه کولو او ضايع کولو په صورت کي د دوی قيمت واجبيږي، نه د دوی مثل؛ ځکه مسلمان د داسي شيانو له مالک جوړېدو څخه ممنوع دی چي دا حرام دي. خو څرنګه چي په دوی کي بيا هم ماليت او تقوم پاته وي، نو ځکه د مجبورۍ په درجه کي د دوی مثل اخيستل هم جائز دي.

و هذا بخلاف ما إلخ: د مذکوره آلو (باجه، ډول او داسي نورو) د ضمان په هکله چي کوم حکم ذکر سوی دی، دا د هغه صورت په خلاف دی کله چي يو څوک د نصراني ذمي صليب مات کړي، يعني په دې صورت کي ماتونکی او ضايع کونکی د صليب د قيمت ضامن کيږي چي نصراني ته به په ضمان (تاوان) کي د صليب کېدلو په حساب سره يعني د روغ صليب قيمت ورکوي؛ دليل دا دی چي باجه، ډول او داسي نور داسي شيان دي چي د هغوی د باقي پرېښوولو حکم نه دی سوی، په خلاف د صليب چي ذميان پر هغه باقي پرېښوول سوي دي لکه څرنګه چي د دوی پر شرابو باقي او برقرار

پرېښودل سوي دي: ځکه چي صليب د ذميانو ديني نخښه او شعار دى او موږ ته دا حكم سوى دى چي دوى او خپل دين سره پرېږدو (أمرنا بتركهم وما يدينون). نو ځکه د صليب پر ماتونکي کس به په تاوان کي خاص د صليب قيمت واجبيږي.

## د أم ولد او مدبره مينځي د غصب کولو حکم

قال: وَمَنْ غَصَبَ أُمَّ وَلَدٍ أَوْ مُدَبَّرَةً فرمايي: او څوک چي أم ولد مينځه يا مدبره مينځه غصب کړي فَمَاتَتْ فِي يَدِهِ بيا هغه د ده [غاصب] په قبضه کي مړه سي ضَمِنَ قِيمَةَ الْمُدَبَّرَةِ وَلَا يَضْمَنُ قِيمَةَ أُمِّ الْوَلَدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز غاصب د مُدبره مينځي د قيمت ضامن کيږي او د أم ولد مينځي د قيمت نه ضامن کيږي [يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر داسي غصبونکي کس په ضمان (تاوان) کي صرف د مُدبره مينځي قيمت لازميږي، نه د أم ولد] وَقَالَا®: يَضْمَنُ قِيمَتَهُمَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي غاصب د دواړو د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّ مَالِيَّةَ الْمُدَبَّرَةِ مُتَقَوِّمَةٌ بِالِاتِّفَاقِ ځکه چي د مُدبره مينځي ماليت بالاتفاق قيمتداره دى [يعني مُدبره مينځه بالاتفاق قيمت لرونکى مال دى] وَمَالِيَّةَ أُمِّ الْوَلَدِ غَيْرُ مُتَقَوِّمَةٍ عِنْدَهُ وَعِنْدَهُمَا مُتَقَوِّمَةٌ او د أم ولد ماليت د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز قيمتداره نه دى او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز قيمتداره دى وَالدَّلَائِلُ ذَكَرْنَاهَا فِي كِتَابِ الْعَتَاقِ مِنْ هٰذَا الْكِتَابِ او [د امام صاحب او صاحبينو] دليلونه موږ د دغه کتاب [هدايې] په کتاب العتاق کي ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿أم ولد﴾ هغه مينځي ته وايي چي خپل مالک (مولیٰ) جماع ور سره کړې وي او د جماع په نتيجه کي له هغې څخه بچى پيدا سوى وي (لکه مخکي چي څو ځله د دې تعريف تېر سوى دى)، ﴿مدبرة﴾ هغه مينځي ته وايي چي مالک د هغې آزادي پر خپل مرګ معلقه کړې وي. يعني مالک ورته ويلي وي چي "زما تر مرګ وروسته ته آزاده يې!"، ﴿ضَمِنَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضامن

---

® القول الراجح: قول الإمام رحمه الله، كما ذكر في مجمع الأنهر (ج:٤، ص:٩٨)، والدر المختار (ج:٥، ص:١٢٩). [الفصول حج ج:٢، ص:٢٩٥]

کېدل. پريو چا ديو شي ضمان (تاوان) لازمېدل. ﴿ماليّة﴾ مال ته منسوب دی: مال والی. مالي حيثيت. مال. ﴿متقوّمة﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث اسم فاعل صيغه ده: قيمت لرونکی (قېمتي). کوم شی او کوم مال چي (په شريعت کي) څه قيمت لري، هغه ته "متقوم" وايي. ﴿العتاق﴾ د ضرب عَتَقَ يَعْتِقُ له بابه اسم دی، دغه لفظ د لغت په کتابو کي د "عين" په فتحه سره منقول دی: آزادي.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو څرګند او آسانه دی چي د مُدبّره مينځي ماليت بالاتفاق متقوّم دی يعني هغه يو قيمتداره مال دی، نو څکه که غاصب ديو چا مُدبّره مينځه غصب کړي او هغه د ده سره مړه سي، نو د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نېز د هغې په ضمان (تاوان) کي پر غاصب د هغې قيمت لازمېږي، لېکن که مغصوبه مينځه اُم ولد وي او بيا هغه د غاصب سره مړه سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز غاصب د هغې د قيمت نه ضامن کېږي؛ څکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر اصل د اُم ولد ماليت متقوّم نه دی او ستاسو مخته شو څله دا خبره تېره سوې ده چي د غير متقوّم (ناقيمتداره) شي په تلف کولو او ضايع کولو سره ضمان نه واجبېږي. د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مُدبّره مينځي په څېر اُم ولد هم متقوّم (قيمتداره) مال دی، نو څکه د دغو حضراتو په نېز چي څرنګه غاصب د مُدبّره مينځي ضامن کېږي، همداسي د اُم ولد هم ضامن کېږي.

**د صاحبينو دليل**: په دې سلسله کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د عامو مينځو په څېر د اُم ولد سره هم وطي کېدای سي او هغه د اجارې او مزدورۍ په توګه هم ورکول کېدای سي او له هغې څخه خدمت هم اخيستل کېدای سي، ښکاره خبره ده چي دغه شيان له تقوّم څخه بغير ممکن نه دي، يعني دا پر دې دلالت کوي چي مينځه قيمتداره مال دی او د قيمتداره مال په تلف کولو سره پر تلف کونکي د هغه ضمان (تاوان) واجبېږي. نو څکه د دغه اُم ولد مينځي ضمان به هم واجبېږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي تقوّم يعني قيمتداره کېدل د هغه إحْرَاز (خوندي کولو) په وجه ثابتېږي کوم چي د مالدار والي لپاره وي (يعني چي مالک د خرڅولو او ګټي کولو لپاره غلام يا مينځه خوندي کړې وي)، او اُم ولد د نسب او د بچي د حُصول لپاره خوندي کېږي (همدا وجه ده چي د مالک تر مرګ وروسته اُم ولد مينځه د مالک د هيڅ وارث او قرض غوښتونکي لپاره مزدوري او ګټه نه کوي) او مالک هغه نه

سي خرڅولای، نو ځکه د هغې ماليت به متقوّم نه وي، لهذا کله چې د هغې د ماليت تقوّم ساقطيږي او هغه قيمتداره مال نه دی، نو ښکاره خبره ده چې د هغې په هلاکېدلو او مړه کېدلو سره به ضمان هم نه واجبيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "وَالدَّلَائِلُ مَا ذَكَرْنَاهَا" سره همدغه دليلونو ته اشاره کړې ده.

دلوی څښتن ﷻ په فضل او رحمت سره نن د رمضان مبارک د مياشتې په نولسمه نېټه د جمعې په ورځ د ماځيگر پر مهال د "فتحُ الهدايه" دغه ټوک پای ته ورسېدی، دالله ربُ العزت عظيم فضل او احسان دی چې زه احقر يې د حنفي فقه ديو اهم او مستند کتاب د تشريح وتوضيح په سعادت سره برخمن کړم، الله ﷻ دي داحقر دغه حقير کوښښ په خپل دربار کې قبول کړي او الله تعالیٰ دي دا زمونږ او زمونږ د مور و پلار، استاذانو او خپرونکي لپاره دآخرت ذخيره جوړه کړي او په خپل فضل او کرم سره دي د باقي ټوکونو د تشريح توفيق هم راکړي.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ

وَصَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَأَزْوَاجِهٖ

وَأَهْلِ بَيْتِهٖ أَجْمَعِيْنَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ

کتبه: حبيب الرحمٰن مدني

۱۹/ رمضان/ ۱۴۴۰هـ

مطابق ۲۴/مئي/۲۰۱۹م

